محقق جدید ایډیشن

# معارف القرآن

جلد ۹

پښتو

تالیف

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمّد شفیع رحمۃ اللہ علیہ

مع

## آسان ترجمه قرآن

حضرت مولانا مفتی محمّد تقی عثمانی صاحب مدّظلّه

مترجم

حضرت مولانا شاه فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امداد العلوم وجامعه اسلامیه چارسده

**خصوصیات مع تسهیلات و اضافات**

① هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول ② آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله ③ تکی په تکی او روانه ترجمه ④ د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه لیکل ⑤ په حاشیه کښې د غیر تفسیر شده آیاتونو تفسیر ⑥ د عربی او فارسی د اشعارو په پښتو کښې ترجمه ⑦ د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل


فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنګی قصه خوانی بازار پیښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دچھاپ حقوق صرف ناشرسره محفوظ دي

دکتاب نوم : معارف القرآن پښتو محقق ایډیشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتي محمد شفيع صاحب رحمة الله عليه
مفتي اعظم پاکستان

خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنګی

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

د ملاویدو پتې:- د فیصل کتب خانې نه سوا

- مکتبه روغانیول جلال آباد
- مکتبه رحیمی خوست
- نعمت کتب خانه کابل
- صداقت کتب خانه قندهار وکابل
- علمی کتب خانه ګردیز
- مکتبه علمیه اکوړه خټک
- دینی کتب خانه تیمرګره
- شیخ الهند کتب خانه خوست
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- مکتبه فریدیه خوست
- دیوبند کتب خانه خوست
- جدید رشیدیه کتب خانه کابل
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- مکتبه نعمانیه غزنی
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوٰی کتب خانه جلال آباد

# فهرست مضامین

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## پاره نمبر [۲۲]



Scanned with Ca

Scanned with Ca

Scanned with Ca

## پاره نمبر [۲۳]

Scanned with Ca

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| | دسورت دمضمونونو خلاصه:: | ۴۱۰ |
| | د تکلف او تصنع بدی بیانول :: | ۴۱۱ |
| | دعملونو مقبولیت دالله ﷻ په نزد د اخلاص په انداز دي :: | ۴۱۶ |
| | دهغې زمانې مشرکان هم د نن زمانې دکافرانو نه غوره وو:: | ۴۱۷ |
| | محشر کښې ظالم څخه د مظلوم د حق وصولولو صورت:: | ۴۳۸ |
| | ټول عملونه به دظلمونو او حقونو په بدله کښې ورکولې شي خو ایمان به نشي ورکولې :: | ۴۳۹ |
| | **پاره نمبر [۲۴]** | |
| | عبرت او نصیحت:: | ۴۴۵ |
| | د مرګ او د خوب په وخت کښې د روح قبض کیدل او په دواړو کښې د فرق تفصیل:: | ۴۴۸ |
| | د دعا قبلیدل:: | ۴۵۲ |
| | دمشاجرات صحابه ؓ متعلق یو اهم هدایت :: | ۴۵۳ |
| | د سورة مؤمن خصوصیات او فضائل وغیره:: | ۴۷۲ |
| | د هرې بلا څخه حفاظت:: | ۴۷۲ |
| | ددښمن څخه حفاظت :: | ۴۷۲ |
| | یو عجیبه واقعه:: | ۴۷۳ |
| | اصلاح خلق کښې ددې آیتونو مبارك تاثیر او د فاروق اعظم ؓ مصلحینو دپاره یو عظیم هدایت:: | ۴۷۳ |
| | د آل فرعون مؤمن:: | ۴۹۷ |
| | دقبر عذاب :: | ۵۰۱ |
| | د دعا حقیقت او ددې فضائل او درجات اود قبولیت شرط:: | ۵۰۹ |
| | د نبی کریم ﷺ په وړاندې د کافرانو یو پیشکش:: | ۵۲۹ |
| | د منکرانو د انکار او استهزاء پیغمبرانه جواب :: | ۵۳۲ |
| | آیا کفار د فروع اعمال مکلف او مخاطب دی او که نه ؟ :: | ۵۳۲ |
| | د آسمان او زمکې په پیدا کیدو کښې ترتیب ا و دایام تخلیق تعیین:: | ۵۳۶ |
| | محشر کښې د انسان د اندامونو ګواهی:: | ۵۴۹ |
| | د تلاوت په وخت کښې خاموشه کیدل واجب دی .نه خاموشه کیدل د کافرانو عادت دې :: | ۵۵۲ |
| | داستقامت معنی :: | ۵۵۵ |
| | الله تعالی څخه سوا بل چاته سجده کول جائز نه دی :: | ۵۶۰ |
| | دکفر یو خاص قسم الحاد دې ، ددې تعریف او احکام | ۵۶۵ |
| | د یوې غلطۍ ازاله:: | ۵۶۶ |
| | دې زمانه کښې د کفر او الحاد صورت حال | ۵۶۷ |

......

Scanned with Ca

وَمَنْ يَّقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتَعْمَلْ

او هغه څوك چې اطاعت كوي [حكم مني] | ستاسو نه | دالله | او دهغه درسول | او عمل كوي

او په تاسو كښې چې څوك دالله ﷻ او دهغهٔ د رسول ﷺ تابعداري كوي | ..................اونيک

صَالِحًا نُّؤْتِهَآ اَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ ۙ وَاَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا

نيك | وركوو به مونږ هغې لره | اجر دهغې | دوه خله | او تيار كړي دي مونږ | هغې لره | رزق

عمل اوكړي | نو مونږ به هغې ته ددې نه يو په دوه اجر وركړو | او د هغې دپاره مونږ د عزت

كَرِيْمًا ۝ يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ اِنِ اتَّقَيْتُنَّ

ښه | اے ښځو دنبي | نهٔ يئ تاسو | پشان ديوې ښځې | دعامو ښځونه | كه يريږئ تاسو دالله نه

رزق تيار كړي دي | اې د پيغمبر بيبيانو ؛ تاسو دنورو عامو ښځو په شان نه يئ | كه تاسو د الله نه ويريږئ

فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِيْ فِيْ قَلْبِهٖ

نو مهٔ كوئ تاسو پوستوالې | په خبرو كښې | چې طمع پيداشي | دهغه سړي | چې په زړه دهغه كښې

نو نرمې خبرې مه كوئې | ګنې د كوم سړي په زړه كښې چې د [فسق] مرض وي دهغه به درته طمع

مَرَضٌ وَّقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ۝ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ

مرض دې [خرابي ده] | اووايئ | خبره | سيده صفا | او قرار اونيسئ | په كورونو خپلو كښې |

پيدا شي | او صفا واضحه خبره كوئ | ........................ او په خپلو كورونو كښې قلارې

وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْاُوْلٰى

اومهٔ ښكاره كوئ زينت | پشان دښكاره كولو دزينت | دجاهليت ددور | ړومبنى [پخواني] |

ناستې اوسيږئ | او دجاهليت د تيرې زمانې په شان ډول سنګار مه ښايئ | اود مونځونو

وَاَقِمْنَ الصَّلٰوةَ وَاٰتِيْنَ الزَّكٰوةَ وَاَطِعْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ؕ اِنَّمَا

او قائيموئ | مونځ | او وركوئ زكات | او حكم مني دالله | او درسول دهغه | بيشكه |

پابندي كوئ | او زكاة وركوئې | اودالله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ حكمونه منئ

يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ اَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ

غواړي الله | چې لرې كړي | ستاسو نه | ګندګي [ګناه] | اې خاندان د نبي | او پاك كړي تاسو

الله ﷻ ته دا منظوره ده | چې ستاسو نه هره پليتي لرې كړي | اې د پيغمبر دكور خلقو | او تاسو ښه

تَطْهِيْرًا ۝ وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلٰى فِيْ بُيُوْتِكُنَّ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ

په پاكولو سره | او ياد ساتئ | هغه | چې لوستلې كيږي | په كورونو ستاسو كښې | دايتونه دالله نه

پاكې اوساتي | .........او ستاسو په كورونو كښې چې دالله ﷻ آيتونه او د علم خبرې

وَالْحِكْمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ لَطِيْفًا خَبِيْرًا ۝

او دحكمت نه | بيشكه الله | دي | باريك ليدونكې | خبردار |

لوستلې شي | هغه ياد ساتئ | بيشكه الله ﷻ په هر راز پوهه په هرڅيز خبر دې

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

او په تاسو کښې چه څوک د الله تعالی او دهغه د رسول تابعداري وي، او نيک عمل کوي، نو هغې ته به مونږ د هغې ثواب هم دوچند ورکړو، او دهغې دپاره مونږ عزتمند رزق تيار کړې دې. اے د نبي کريم (صلی الله عليه وسلم) بيبيانو اکه تاسو تقوی اختيار کړئ، نو تاسو د عامو زنانو پشان نه يئ لهٰذا تاسو په نرمئ سره خبرې مه کوئ، پس د چاپه زړه کښې چه مرض وي، هغه به په زړه کښې بے ځايه لالچ اوساتي او خبره هغه کوئ، چه ښيګړې والا وي او په خپلو کورونو کښې قرار سره اوسيږئ او (پردو سړو ته) خپل ډول او سنګار مه ښايئ، څرنګه چه په اول جاهليت کښې به ښودلې شول او مونځ قائم کړئ، او زکوٰة ادا کړئ، او د الله تعالی او دهغه د رسول فرمان برداری کوئ، او د نبي (صلی الله عليه وسلم) اهل بيت! (کوروالو) الله تعالی دا غواړي چه ستاسو نه ګندګی لرې اوساتي، او تاسو ته داسې پاکوالې درکړي، چه هر طرف ته مکمل وي او ستاسو په کورونو کښې چه د الله تعالی کوم آيتونه او د حکمت خبرې بيانولې شي، هغې لره ياد کړئ، يقين اوکړئ الله تعالی ډير زيات باريک بين او هره خبره اوريدونکې دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَمَنْ يَّقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ﴾ [او څوك چه په تاسوكښې دالله تعالى او دهغه درسول فرمانبرداري كوي] يعنى كومو كارونو لره چه الله تعالى واجب كړي دي هغه ادا كوي او په خپله دنبي كريم ﷺ د خاوندوالى چه كوم حقونه او اطاعت وغيره واجب دي هغه ادا كوي ځكه چه درسالت دحيثيت حقونه دالله تعالى په اطاعت كښې داخل شو ﴿وَتَعْمَلْ صَالِحًا﴾ او [په غيرواجبو كارونو كښې چه كوم] نيك كارونه] دي هغولره [كوي ﴿نُّؤْتِهَآ اَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ﴾ نومونږ به دوي لره ددې ثواب[هم] دوچند وركړو ﴿وَاَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيْمًا﴾ اومونږ دوى لره] علاوه د وعده شوى دوچند اجرنه [يو] خاص [عمده رزق] كوم چه په جنت كښې دنبى كريم ﷺ د بيبيانو دپاره مخصوص دې او كوم چه دصلې دعمل نه زياتى دى [تياركړې دې] داطاعت په صورت كښې د دوچند اجر او داطاعت په پرېښودو ددوچند عذاب وجه شرافت د ښځولى د نبى كريم ﷺ دې چه دلالت پرې [يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ] كوى ځكه چه دخاصانو كوتاهى هم دنورو دكوتاهئ نه سخته وي دغه شان د دوى اطاعت هم دنورود اطاعت نه زيات مقبول وى پس په وعده او وعيد دواړو كښې دغه نورونه ممتاز وى او خاص كر دكلام كولو په مقام كښې دا ونيل ممكنه ده چه دامهات المؤمنين اطاعت او خدمت كول دنبى كريم ﷺ زړهٔ مبارك ته زيات راحت رسوونكې وى پس دوى ﷺ ته راحت رسول داجر دزيات والى موجب شو او دغه شان دنافرمانئ سزائ هم زياته شوه تردې پورې ازواجو ته دنبى كريم ﷺ دحقونو متعلق خطاب وو وړاند اوس د عامو احكامو متعلق دزيات اهتمام دپاره خطاب دې چه ﴿يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ﴾ [اے دنبى] ﷺ [بيبيانو] محض په دې خبره مه خوشحالېږئ چه مونږ دنبى كريم ﷺ بيبيانې يو او په دې وجه عامو ښځو نه ممتازې يو دا نسبت او شرافت زمونږ دپاره بس دې پس دا وسوسه مه كوئ دا خبره صحيح ده چه ﴿لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ﴾ [تاسو دمعمولى ښځو په شان نه يئ] بيشكه چه د دوى نه ممتازې يئ مګر مطلقا نه بلكه ددې سره يو شرط هم دې هغه داچه ﴿اِنِ اتَّقَيْتُنَّ﴾ [كه تاسو تقوى اختيار كړئ] نو بيا واقعى چه ددې نسبت په سبب سره تاسوته دنورونه زيات فضيلت حاصل دې تردې چه ثواب به درته دوچند ملاويږى اوكه دا شرط ثابت

نه شي نو دانسبت به په عکس سره د دوچند عذاب سبب جوړ شي هرکله چه خبره داده چه نسبت بغير دتقوى نه هيڅ نه دې [نو] تاسولره دشرعي احکامو پوره پابندي کول پکار دي عموما او په ذکر شوو احکامو د راتلونکي ايت کښې خصوصا او هغه احکام دادي ﴿فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ﴾[تاسو] دنامحرم سړي سره [په خبروکښې] هرکله چه ضرورت دخبرو کولو پيښ شي [نزاکت مه کوئ] ددې مطلب دانه دې چه قصدا نزاکت مه کوئ ځکه چه ددې بدوالي خو بديهي دې دويمه داچه په ازواجو مطهراتو کښې خو ددې هډو څه احتمال نشته بلکه مطلب دادې چه لکه څنګه دښځو په خبرو کښې فطري انداز وي چه طبعي نرمي او نزاکت په کښې وي په دغه انداز سره خبرې مه کوئ [چه] په دې سره ﴿فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ﴾[داسې سړي ته] طبعا فاسد [خيال پيداکيږي دکوم په زړه کښې چه خرابي] او بدي [ده] بلکه په داسې موقعو باند په تکلف او اهتمام سره دغه فطري اندز بدلوئ خبرې کوئ ﴿وَقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوفًا﴾[او د] پاکدامنۍ د [قاعدې موافق خبره کوئ] يعنې په داسې انداز سره چه زيګوالي[جزوالي] او سپور والي[سختوالي] په کښې وي چه دا دپاکدامنۍ حفاظت دې او بداخلاقي نه ده بداخلاقي هغه ده چه دچا زړه ته پرې ازار ورسيږي او په فاسدې طمعې بندولوسره ازارنه لازميږي په دې کښې خوئ د خبرو کولو متعلق حکم وکړو [او] وړاند دپردې متعلق ارشاد دې او مشترکه خبره په دواړو کښې فقط پاکدامني ده يعنې ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾[تاسو په خپلو کورونو کښې قرار ونيسئ] مراد ددې نه دادې چه محض په خان دکپړو راغورزولو اوپرده کولو باند صبر[بسوالئ] مه کوئ بلکه پرده په داسې طريقه سره کوئ چه بدن سره دکپړو په نظر رانه شي لکه چه نن صباپه شريفانو کښې دپردې طريقه داسې متعارف ده چه ښځې دکورونو نه نه وځي البته دضرورت موقعې په بل دليل سره مستثنى وي [او] وړانددې حکم دتاکيد دپاره ارشاد دې چه ﴿وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ﴾[دپخوانئ زمانې دجهالت د دستور موافق مه ګرځئ] په کومه کښې چه دبې پردګئ رواج وو اګر چه بغيردبې حيايئ نه ولې نه وي او دتير پخواني جاهليت نه مراد هغه جاهليت دې کوم چه داسلام نه وړاند وو او ددې په مقابله کښې يو دمابعد جاهليت دې چه پس داسلامي احکامو دتعليم او تبليغ نه په دې عمل ونه کړې شي پس کومه بې عملي چه داسلام نه پس وي هغه بل جاهليت دې په دې وجه په تشبيه کښې تخصيص د اولنى جاهليت ظاهر دې ځکه دمشبه او مشبه به تغائر ضروري وې مطلب دادې چه دبل جاهليت په جاري کولو داولنى جاهليت پيروي مه کوئ دکوم دختمولو دپاره چه اسلام راغلې دې تردې ځائ پورې دعفت متعلق احکام وو [او] وړاند دنورو شرعي احکامو ارشاد دې چه﴿وَأَقِمْنَ الصَّلَاةَ وَآتِينَ الزَّكَاةَ﴾ [تاسو دمونځو نو پابندي ساتئ او زکوات] که دنصاب مالکان يئ [ورکوئ] ځکه چه دا دواړه لوې شرعي احکام دي په دې وجه ددوى تخصيص وکړې شو[او] نور چه څومره احکام دي تاسو ته معلوم دي په ټولو کښې ﴿وَأَطِعْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾[دالله تعالى او دهغه د رسول] ﷺ [خبره منئ] اومونږ چه په تاسو دا احکام لازم کړي دي او ددې مومکلف کړې يئ نو خاص ستاسو نفع ده ځکه چه ﴿إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ﴾[الله تعالى ته] ددې احکامو په ښودلو سره تشريعا [دا منظوره ده ﴿لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ﴾ چه اے] دپيغمبر ﷺ [دکوروالو تاسونه] دمعصيت او نافرمانۍ [ګندګئ لره لرې کړي﴿وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا﴾ اوتاسولره] په ظاهر باطن عقيدې عمل او اخلاقو په اعتبار سره بالکل [پاك صفا کړي] ځکه چه په

احکامو دعلم راتلو په سبب دمخالفت نه چه موجب د ګندګۍ اومانع د پاکوالي دې بچ کیدل ممکن دی [او] چونکه په دې احکامو عمل واجب دې او عمل موقوف دې داحکامو په پیژندو او ددې په یادو ساتلو په دې وجه ﴿وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَى فِي بُيُوتِكُنَّ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ وَالْحِكْمَةِ﴾ [تاسو دالله تعالی دې ایتونو] یعنی قرآن [لره او دې علم] داحکامو لره [یادساتئ چه ستاسو په کورونو کښې ددې چرچه وی] او داهم دنظر په ورانډې ساتئ چه ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ لَطِيفًا خَبِيرًا﴾ [بیشکه الله تعالی په رازو نو پوه دې] چه دزړونو په عملونو هم پوه دې او [پوره خبردار دې] چه پټ عملونه هم پیژنی په دې وجه پټه په ښکار په ظاهراو باطن په او امرو عمل کول او دنواهیونه دځان ساتلو اهتمام واجب دې

## معارف او مسائل

﴿وَمَنْ يَقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ وَتَعْمَلْ صَالِحًا نُؤْتِهَا أَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ﴾ داآیت مبارک په یو حیثیت سره د ازواجو مطهراتو دپاره د دوئ د هغې عمل جزا ده چې دوئ د اختیار ورکولو ددې آیت مبارک په نازلیدو سره د رسول الله ﷺ په نکاح کښې پاتې کیدل خوښ کړل او ددنیا فراخي غوښتل ئې پرې قربان کړل، نو ددې په بدل کښې الله تعالی ورته د یو عمل غبرګه درجه ورکړه.

په ازواجو مطهراتو باندې د الله تعالی لوئې انعامات دی چې دوئ ئې د خپل رسول بیبیانې جوړې کړې ددوئ په کورونو کښې به وحی نازلیده. ځکه به د دوئ ډیر لږه او معمولی کوتاهي هم لویه وی، د نورو په زیان رسولو سره چې څومره تکلیف به رسول کریم ﷺ ته وو ددوئ په زیان رسولو به ورته دهغې څخه زیات تکلیف وو. نود قرآن عظیم الشان په دې الفاظ: ﴿وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَى فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ کښې هم دې سبب ته اشاره ده.

**فائده:** ازواجو مطهراتو ته داخصوصیت ورکړې شو چې دوئ ته به د یو عمل دوچنده ثواب ملاویږی. ددې دا مطلب نه دې چې ګنی دامت بل چاته به د نیک عمل دوچند ثواب نه ملاویږی. ولې چې کوم اهل کتاب مسلمانان شوی وو دهغوئ باره کښې به نبی کریم ﷺ فرمائیل چې: ﴿اولئك يؤتون اجرهم مرتين﴾ نو هم ددې په بنا رسول کریم ﷺ هم قیصر روم ته په خپل خط مبارك کښې داسې اولیکل چې: ﴿يؤتك الله اجرك مرتين﴾[1]

یو حدیث پاك کښې هم درې قسمه خلقو د پاره د دوچند اجر ورکولو بیان راغلې دې[2]، چې تفصیل ئې په سورة قصص کښې د آیت ﴿أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُمْ مَرَّتَيْنِ﴾[3] لاندې لیکلې دې.

**دعالم د نیك عمل ثواب هم د نورو څخه زیات دې او دګناه سزا ئې هم دنورو څخه زیاته ده::** امام ابو بکر جصاص رحمه الله په احکام القرآن کښې فرمائیلی دی چې په کومه وجه الله تعالی د ازواجو مطهراتو نیك عمل ثواب او دګناه عذاب ئې دوچند. ګرځولې دې چې د هغوئ رضی الله عنهن په کورونو کښې به د الله ﷻ وحی نازلیده دغه وجه په عالمانو کښې هم موجوده ده، ځکه به هغه عالم ته د نورو څخه زیات ثواب ورکولې شی چې پخپل علم باندې عمل کوی او دګناه عذاب به

---

[1]) صحیح البخاری، باب کیف کان بدء الوحی...الخ: ج ۱، ص ۵

[2]) صحیح البخاری، کتاب الجهاد، باب فضل من أسلم من أهل الکتابین: ج ۱، ص ۴۲۲

[3]) ترجمه: هم دا خلق دی کومو ته چه به ددوی دصبر په وجه دوه ځله اجر ورکولے شي.

Scanned with CS

هم د نورو ښځه زيات وي.([1])

قرآن کريم صرف په فاحشة مبينة باندې دوچند عذاب ورکول بنا کړی دی . خو د دوچند اجروثواب دپاره ئې څو شرطونه ايخودي دي.

﴿وَمَن يَقْنُتْ مِنكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ وَتَعْمَلْ صَالِحًا﴾ يو شرط ئې قنوت يعنی د الله تعالی او دهغه د رسول ﷺ فرمانبرداری کول دی . او دويم شرط عمل صالح دې ، ولې چې اجروثواب هغه وخت ملاويږي چې فرمانبرداری کول مکمل وي او د سزا دپاره يوه ګناه هم کافي ده.

**ازواجو مطهراتو ته خاص هدايت:** ﴿يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ إِنِ اتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ﴾ تيرو شوؤ آيتونو کښې ازواج مطهراتو د رسول کريم ﷺ ښځه دداسې مطالبو کولو ښځه منع کړې شوې وې چې دهغې پوره کول رسول کريم ﷺ ته ګران وو يا د رسول کريم ﷺ د شان سره مناسبې نه وې ، کله چې دوئ ﷺ هغې لره اختيار کړه نو د دوئ ﷺ درجه د عامو زنانوؤ ښځه پورته کړې شوه يعنی ددوئ يو عمل ئې د دوؤ اوګرځولو. دې پسې د عمل د اصلاح اود رسول کريم ﷺ د مجلس او د زوجيت مناسب جوړولو په غرض دوئ ته څو هدايات ورکړې شو. دا ټول هدايات اګر چې ازواج مطهرات دپاره خاص نه دی بلکه ددې حکم ټولو مسلمانانو زنانوؤ دپاره دې خو دې ځائې کښې ازواج مطهرات ته خصوصي خطاب شوې دې ، ددې مطلب دادې اګر چې دا عملونه او احکام ټولو مسلمانانو زنانوؤ دپاره عام دی خو تاسو له په دې باندې د نورو ښځه زيات عمل کول پکار دی نو په :﴿لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ﴾ کښې هم دغه خصوصيت مراد دې.

**آيا ازواج مطهرات د ټولې دنيا د زنانوؤ ښځه زياتې غوره دی ؟** د آيت مبارك ددې الفاظونه په ظاهر دا معلوميږي چې ازواج مطهرات د ټولې دنيا د زنانوؤ ښځه زياتې غوره دی خو قرآن عظيم الشان د مريم بی بی په باره کښې داسې فرمائی چې : ﴿إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَاكِ وَطَهَّرَكِ وَاصْطَفَاكِ عَلَىٰ نِسَاءِ الْعَالَمِينَ﴾([2]) چې ترې دمريم بی بی غوره والې د ټولې دنيا د زنانوؤ ښځه زيات ثابتيږي . او په ترمذی کښې د انس ﷺ ښځه روايت دې فرمائی چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې کافی دی تاسو لره د ټولو زنانوؤ ښځنې مريم بنت عمران ، خديجه بنت خويلد ، فاطمه بنت محمد ﷺ اوآسيه زوجه فرعون([3]) . دې حديث پاك کښې مريم بی بی سره نورې درې زنانه بيبيانې ددنيا د زنانوؤ ښځه زياتې غوره خودلې شوې دی.

په دې وجه په دې آيت مبارك کښې دا ازواجو مطهراتو کوم زيات غوروالې او پورته والې چې بيان شوې دې هغه په دې خاص حيثيت سره دی چې دوئ ازواج مطهرات د نبی ﷺ اونساء النبی دی او په دې کښې څه شك نشته چې په دې حيثيت سره دوئ د دنيا د ښځو نه بلاشبهه افضل دی خودې ښځه عام مطلق فضيلت نه ثابتيږي چې دنورونصونوښځه خلاف وي. [مظهری]([4])

---

[1] ) أحكام القرآن للجصاص تحت هذه الآية: ج ٨، ص ٣٠٠، ٣٠١

[2] ) ترجمه: بيشکه الله ته غوره کړې يې اوته يې پاکيزه ساتلې يې او ته ئې د دنيا په ټولو ښځو باندې غوره کړې يې.

[3] ) جامع الترمذی، أبواب المناقب، باب فضل خديجة رضی الله تعالی عنها: ج ٢، ص ٢٢٧

[4] ) تفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ٧، ص ٣٣٦

Scanned with Ca

﴿لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ﴾ څخه روستو د ﴿اِنِ اتَّقَيْتُنَّ﴾ شرط د هغې غوروالی دې چې الله ﷻ ورته په دې حیث ورکړې دې چې د پیغمبر ﷺ بیبیانی دی. ددې خبرې څخه مقصود په دې خبرداره کول دی چې یوازې په دغې نسبت باندې تکیه مه کوئی چې مونږ د نبی ﷺ بیبیانې یو بلکه دا فضیلت په دې اړه لری چې تقوی کوئی او د الله ﷻ د احکامو تابعداری کوئ [قرطبی و مظهری]. (۱)

دې پسې څو هدایات ازواج مطهرات ته ورکړې شو.

① رومبې هدایت د زناناؤ د پردې باره کښې په آواز او کلام باندې ئې پابندی ده فرمائی چې ﴿فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ﴾ یعنی که یو پردی سړی سره د خبرو کولو ضرورت پیښ شی نو د پردې شاته ورسره په دې شان خبرې کوئی چې پوستوالې ا و خوږوالې په کښې نه وی کوم چې د زناناؤ فطری څیز دې. دې خوږوالی ا و پوستوالی څخه مطلب هغه نرمی ده چې د مخاطب په زړه کښې مینه راپاروی لکه دې پسې فرمائی چې:

﴿فَيَطْمَعَ الَّذِىْ فِىْ قَلْبِهٖ مَرَضٌ﴾ [یعنی داسې نرمې خبرې مه کوئ چې دهغې سړی مینه راپاریږی دکوم چې په زړه کښې مرض دې.

دلته د مرض څخه مراد منافقت یا ددې څه برخه ده، د اصلی منافق کار هم دادې خوکه د یو مخلص مؤمن څخه داسې کار اوشی چې حراموالی ته مخه شی نو هغه اګر چې منافق نه دې خو د کمزوری ایمان خاوند ضرور دې چې دمنافقت یوه حصه ده، خالص ایمان چې په کښې د منافقت بوئی نه وی دهغې د خاوند دسره حرامو ته مخه کیدې هم نشی. [مظهری]. (۲)

ددې هدایت خلاصه دا راؤځی چې زنانه دې د پردو سړو څخه پداسې پیمانه ځانونه ساتی چې د چا کمزوری ایمان والا په زړه کښې ورته مینه هم راپاره نشی. دزناناؤ دپردې تفصیلی بحث هم په دې سورت کښې راروان دې. د لته دومره قدرې چې بیبیانو د رسول کریم ﷺ ته د خصوصی هدایتونو په ترڅ کښې ورته ضرورت وو د هغې تشریح لیکلې شی، نو دکلام باره کښې چې کوم هدایت ورکړې شوې دې دهغه د اوریدلو نه پس بعضې امهات المؤمنین ددې آیت دنازلیدو څخه روستو به پردو سړو سره د پردې شاته که خبرې کولې نو په خپله خوله به ئې لاس ایخودو چې آواز ئې بدل شی، په دې وجه د عمرو العاص ؓ په یو حدیث پاك کښې دی چې:

﴿ان النبی ﷺ نهی ان یکلم النسآء الا باذن ازواجهن﴾ [طبرانی په حسن سند سره، مظهری]. (۳)

**مسئله**: ددې آیت مبارك او ددې حدیث څخه خو ثابت شو چې د زنانه آواز په ستر کښې داخل نه دې خو په دې ئې هم احتیاطاً دلته پابندی اولګوله او په ټولو عبادتونو او احکامو کښې ددې لحاظ کړې شو ېدې چې زنانه دې په زوره خبرې نه کوی چې پردی سړی ئې نه آؤری، کله چې مونځ کښې امام څخه غلطی اوشی نو سړی ورته په خله فتح ورکوی خو زنانه به په خله فتح نه ورکوی بلکه د یو لاس شا دې په بل باندې اووهی.

(۱) تفسیر القرطبی: ج ۱۴، ص ۱۷۷، وتفسیر المظهری: ج ۷، ص ۳۳۷

(۲) تفسیر المظهری: ج ۷، ص ۳۳۸

(۳) تفسیر المظهری: ج ۷، ص ۳۳۷، وکنزالعمال، رقم الحدیث: ۱۳۶۲۵

Scanned with Ca

② دویم هدایت دمکمل پردې کولو دې ، فرمائی چې ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ﴾ [یعنی پخپلو کورونو کښې ناستې اوسئ اود پخوانی جاهلیت د ښځو پشان مه گرځئ ] دلته د جاهلیت اولی څخه مراد هغه جاهلیت دې چې د اسلام څخه وړاندې په دنیا کښې خور شوې وو ، په دې لحاظ دې لفظ کښې دې خبرې ته اشاره موندې شی چې دې څخه روستو څه بل جاهلیت هم راتلونکې دې چې بې پردګئ او بې حیائی به خوره شی ، شاید هغه دنن زمانې جاهلیت وی چې هر چرته لیدلې شی .

دې آیت مبارك کښې د پردې متعلق اصلی حکم دادې چې زنانه دې په کورونو کښې پاتې کیږی . دې سره ئې داهم اوفرمائیل چې څنګه د اسلام څخه مخکښې د جاهلیت د زمانې ښځې به بې پردې گرځیدې دغسې تاسو مه گرزئ د ﴿تَبَرُّجَ﴾ اصلی معنی ښکاره کیدل دی او دلته مراد پردو سړو ته خپل زینت ښکاره کول دی لکه یو آیت مبارك کښې فرمائی چې : ﴿غَيْرَ مُتَبَرِّجٰتٍۭ بِزِيْنَةٍ﴾ .

د زناناؤ د پردې پوره بحث او تفصیلی احکام به هم په دې سورت کښې بیانولې شی . دلته صرف ددې آیت مبارك تشریح لیکلې شی دې آیت مبارك څخه د پردې باره کښې دوه خبرې معلومې شوې . اول دا چې په اصل کښې الله ﷻ داغواړی چې زنانه دې د کورونو څخه بهر نه اووځی ، دوی کور کښې دننه کارونو دپاره پیدا شوی دی، په شریعت کښې اصلی پرده دکورونو پرده ده .

دویمه خبره دا معلومه شوه چې که څوك زنانه د ضرورت دپاره د کور څخه بهر اووزی نو زینت سره دې نه اوزی بلکه بورقه [بوغره] یا څادر دې په سر وی ، لکه چې هم دې سورت کښې راروان دی :

**کورونو کښې د پاتې کیدو څخه د ضرورت مواقع استثنی دی :** ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ سره په کورونو کښې د زناناؤ پاتې کیدل واجب اوګرځولې شو چې مفهوم او مطلب ئې دا دې چې زناناؤ دپاره دکورونو څخه بهر وتل بالکل بند او حرام وی لیکن اول خو پخپله هم ددې آیت مبارك په ﴿وَلَا تَبَرَّجْنَ﴾ سره دې ته اشاره اوشوه چې مطلقا د ضرورت دپاره وتل منع نه دی بلکه هغه وتل منع دی چې په کښې د زینت ښکاره کول وی . بل دا چې هم ددې سورت دا راتلونکی آیت ﴿يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ﴾ حکم دا ښائی چې څه درجه کښې زناناؤ دپاره د کور څخه د وتلو اجازت هم شته خوشرط دادې چې د برقعې [بوغرې] وغیره په پرده کښې اووځی .

دې څخه علاوه رسول کریم ﷺ دضرورت مواقع دې څخه مستثنی کړی دی لکه ازواجو مطهراتو ته ئې اوفرمائیل چې :

﴿قد اذن لكن ان تخرجن لحاجتكن﴾ [مسلم][1] دضرورت په وجه تاسو ته دکورونو څخه د وتو اجازت شته دی . بیا د رسول کریم ﷺ هغه عمل مبارك هم دا ښائی چې په ضرورت سره زناناؤ دپاره د کورونو څخه وتل جائز دی کوم عمل ئې چې د حجاب د آیت مبارك د نازلیدو څخه روستو ثابت دې لکه حج او عمرې دپاره د رسول کریم ﷺ ازوا ج مطهرات هم

[1] ) صحیح مسلم، کتاب السلام، باب اباحة الخروج للنساء لقضاء حاجة الانسان: ج ۲، ص ۲۱۵

Scanned with Ca

تلي دي او دغسې غزاګانو له ئې ورسره تلل په صحیح احادیثو مبارکو سره ثابت دي. ډیرو روایتونو څخه دا ثابتیږي چې ازواج به د خپلو والدینو د معاملات دپاره هم د کورونو څخه بهر وتلې، دغسې دخپلو خپلوانو عزیزانو د بیمار پرسئ ا و تعزیت دپاره به هم د کوره وتلې او د رسول کریم ﷺ په زمانه کښې مساجدو ته دتلو اجازت هم ورته وو.

صرف د نبی کریم ﷺ په ژوند مبارك کښې نه بلکه د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس هم د سوده رضي الله عنها او زینب بن جحش رضي الله عنها وغیره او د نورو ازواجو مطهراتو حج او عمرې ته تلل ثابت دی چې صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې پرې چا بد نه دی ګڼرلی، او تردې چې عمر فاروق رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کښې ازواج مطهرات په خپل انتظام کښې حج ته اولیږلې. او ورسره ئې عثمان غنی رضي الله عنه او عبدالرحمان بن عوف رضي الله عنه هم د دوئ د نګرانئ دپاره اولیږل. سوده رضي الله عنها او زینب بنت جحش رضي الله عنها چې درسول کریم ﷺ د وفات نه پس حج ته نه تللې نو د هغې بنیادئې دا آیت مبارك نه ووګرځولې، بلکه د یو حدیث پاك تر مخه ئې دغسې کول هغه دا چې کله نبی کریم ﷺ ازواج مطهرات حجة الوداع ته بوتلې نو د واپسئ په وخت ئې اوفرمائیل چې: ﴿هذه ثم لزوم الحصر﴾[1] د هٰذه اشاره دغې حج ته وه او حصر د حصیر جمع ده، معنی ئې پوزکې [چټائی] دې، د حدیث پاك مطلب دادې چې ستاسو راوتل صرف دې دپاره اوشو، دې نه پس د خپلو کورونو په پوزکو[چټائی] ناستې اوسئ. سوده بنت زمعه رضي الله عنها او زینب بنت جحش رضي الله عنها ددې حدیث پاك دا مطلب واخستو چې ستاسو وتل صرف ددې حجة الوداع دپاره جائز وو، بیا آئنده تاسو دپاره جائز نه دی. نورو پاکو بیبیانو عائشه صدیقه رضي الله عنها په شان فقیهه بی بی هم داخله ده هغوئ ترې دا مطلب واخستو چې ددغسې شرعی سفر یعنی حج په شان د شرعی عبادت دپاره د زناناؤ وتل جائز دی ګنې نو خپلو کورونو کښې ورله پاتې کیدل لازم دی.

خلاصه داده چې د آیت: ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ د مفهوم نه د قرآن عظیم الشان په اشارو او په عمل د نبی کریم ﷺ اود صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم په اجماع د ضرورت موقعې مستثنی دی چې په کښې د حج او عمرې عبادتونه هم داخل دی. دغه شان طبعی ضرورتونه، د مورپلار اودخپلو خپلوانو ملاقات، دبیمار تپوس کول وغیره هم داخل دی. دغه شان که د یوې زنانه د نان نفقې څه بل انتظام نه وی نو په پرده کښې دمزدورئی دپاره هم تلې شی. خو په داسې صورتونو کښې به شرط دا وی چې خپل زیب زینت به چاته نه ښکاره کوی. بلکه برقعه [بوغره] یا غټ څادر وغیره کښې به ځان پټوی او بیا به بهر اوځی.

**د عائشه صدیقه رضي الله عنها د بصرې سفر او د جنګ جمل په موقعه د روافضو غلطې خبرې:** څنګه چې مونږ دبیان کړؤ دلیلونو تر مخه ضرورت دپاره د زناناؤ د کور نه وتل روا بللې وو، نو عائشه صدیقه رضي الله عنها او ورسره ام سلمه رضي الله عنها او صفیه رضي الله عنها تولې د حج دپاره تلې وې. هلته ئې د عثمان رضي الله عنه د شهادت او د باغیانو د بغاوت خبر واؤریدو نو سخته غمژنه شوه. په دې باندې ډیره فکر منده شوه چې په مسلمانانو کښې بې اتفاقی راغله او فتنې فسادونه راپیداشول. هم په دې حالت

[1] جامع الأصول، رقم الحديث: ۷۱۵۰، وسنن ابى داود، بالفاظ ثم ظهور الحصر كتاب المناسك باب فرض الحج: ج ۱،ص ۲۴۸

کښې طلحه بن زبیر ؓ، نعمان بن بشیر ؓ، کعب بن عجره ؓ او څه نور صحابه کرام د مدینې منورې نه راؤتښتېدل او مکې مکرمې ته لاړل. ځکه چې د عثمان ؓ قاتلانو د دوئ قتل پسې راخستې وه. ځکه چې دوئ ؓ د باغیانو خلاف وو او هغوئ ئې د دغې کار نه منع کول. دوئ ؓ هلته د ام المؤمنین عائشه صدیقه ؓ په خدمت کښې حاضر شو او مشوره ئې ترې اوغوښتله. عائشه صدیقه ؓ ورته اوفرمائیل چې تاسو تر هغه وخته پورې دې ځائې ایسار اوسئې تر کومې چې باغیان د علی ؓ په خوا کښې راجمع دی. او علی ؓ ترینه قصاص ځکه نه اخلی چې هسې نه دا فتنه نوره هم زیاته شی. تاسو تر هغه وخته پورې داسې یو ځائې اوسیږی چې تاسو محفوظ یئ. او تر څو چې امیر المؤمنین په دې انتظام باندې قابو بیا پیدا نه کړی، تاسو که دې باره کښې څه کوشش کولې شئ چې باغیان د امیر المؤمنین دخوا نه خواره شی او امیر المؤمنین تر دقصاص یا بدل اخستو جوګه شی.

دا حضرات په دې راضی شو او بصرې ته ئې د تلو اراده اوکړه ولې چې دغه وخت د مسلمانانو لښکرې دغه ځائې کښې جمع شوې وې. دوئ ؓ ام المؤمنین ته خواست اوکړو چې مونږ سره بصرې ته لاړه شئ او هلته مونږ سره ایساره شئ.

دغه وخت کښې د عثمان ؓ قاتلان ښه په زور کښې وو او علی ؓ د دې وس نه لرلو چې دهغوئ نه ئې د عثمان ؓ قصاص اخستې وې. لکه څنګه چې په نهج البلاغه کښې په یو روایت کښې راغلی دی، دا کتاب د شیعه ګانو یو مستند کتاب دې، په نهج البلاغه کښې لیکلی دی چې امیر المؤمنین ته ځینې خپلو ملګرو پخپله داسې اووئیل چې که تاسو هغې خلقو ته سزا ورکړه چې په عثمان ؓ ئې حمله کړې ده نو ښه به وی. امیر المؤمنین ورته اوفرمائیل چې ائې زما رووره ستانه ماسره ددې ښه احساس دې خو څه دا کار په دې وخت کښې څنګه کولې شم، ځکه چې دا خلق په مدینه منوره باندې راخواره شوی دی. او ستاسو غلامان او چاپیر چل کښې بانډچیان هم دوئ سره ملګری شوی دی. که څه د دوئ د سزا حکم جاری کړم نو دوئ ته څنګه سزا ورکولې شم؟

یو طرفته عائشه صدیقه ؓ ته د امیر المؤمنین علی ؓ دمجبورئی اندازه وه او بل طرفته په دې خبره هم پوهه وه چې د عثمان ؓ په شهادت مسلمانانو ته ډیر غم رسیدلې دې، په دې هم پوهه وه چې ډیر خلق دا شکایت کوی چې امیر المؤمنین د عثمان ؓ د قاتلانو نه قصاص ولې نه اخلی او په دې هم خفه وه چې دا خلق د امیر المؤمنین په خوا کښې کینی پاسی. خو دغه خلق په دې نه وو پوهه چې امیر المؤمنین د مجبورئی نه دوئ ته څه نشو وئیلې ځکه که هغوئ ؓ داسې کولې نو په دې کښې د نورو فتنو اوفسادونو پیدا کیدو ویره وه.

په دې وجه عائشه صدیقه ؓ د بصرې سفر اختیار کړو ځکه چې ځینې خلقو هغوئ نه هم داشان مطالبه کوله. په دې کښې ئې مطلب دا وو چې په دې دوران کښې به خلق پوهه کړی او د صبر تلقین به ورته اوکړی، د امیر المؤمنین دطاقت پیدا کولو کوشش به اوکړی، د حکومت انتظام به مضبوط کړی او خپل مینځ کښې به ګیلې شکوې ختمې کړی. او د خلقو په مینځ کښې به د اصلاح راوستلو کوشش اوکړی. دې سفر کښې ورسره خپل خورئې عبد الله بن زبیر ؓ هم ملګرې وو. ددې سفر مقصد پخپله ام المؤمنین قعقاع ؓ ته بیان کړې وو لکه چې دغه بیان به دلته هم راشی، د دغې فتنې په وخت کښې د مؤمنانو په مینځ کښې د

Scanned with Ca

روغي او اصلاح کار چې ځومره ضروري وو نو هغه ښکاره خبره ده. په دې غرض کښې ام المؤمنین د بصرې سفر خپلو نزدې رشته دارو سره او د پردې د اوسپنې په کجاوه کښې اختیار کړو نو د شیعه ګانو او روافضو په دې باندې دا وئیل چې ام المؤمنین عائشه صدیقه رضي الله عنها د قرآن عظیم الشان د حکمونو خلاف ورزی اوکړه.
دې نه پس چې منافقانو او فسادیانو چې په خپل مینځ کښې د جنګ صورت پیدا کړو دا خو د عائشه صدیقه رضي الله عنها په وهم او ګمان کښې هم نه وو. د دې آیت مبارك د تفسیر دپاره هم دومره کافي دی، وړیسې دجنګ جمل د تفصیل دا موقعه نه ده خو دحقیقت واضح کولو دپاره ځو کرښې لیکلې شي.
خپل مینځ کښې دجنګونو او فتنو پیدا کیدو په وخت کښې چې کوم صورتونه په دنیا کښې راپیښیږي هغې نه د بصیرت خاوندان نشي غافله کیدلې، دلته هم دا صورت راپیښ شو چې د مدینې منورې ځخه کوم صحابه کرامو سره عائشه صدیقه رضي الله عنها راغلې وه، دغې د بصرې سفر له منافقانو او مفسدانو د امیر المؤمنین علي رضي الله عنه په وړاندې په غلط انداز سره پیش کړو، هغه داسې چې دا ټول په دې وجه بصرې ته ځي چې دوئ هلته ستاسو د مقابلې دپاره یو لښکر تیار کړي، که تاسو امیر المؤمنین یې نو ستاسو فرض دی چې تاسو د دې فتنې د پیدا کیدو ځخه وړاندې وړاندې دا فتنه هم په دغه ځائې کښې ختمه کړئ. د حسن رضي الله عنه، حسین رضي الله عنه، عبدالله بن جعفر رضي الله عنه او عبدالله بن عباس رضي الله عنه پشان جلیل القدر صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم دغې رائې سره اختلاف هم اوکړو او مشوره ئې ورکړه چې تاسو تر هغه وخته پورې د لښکر لیږلو کار ملتوی کړئ تر ځو چې صحیح صورت حال معلوم شوې نه وی. خو د زیاتو خلق رائې بل طرفته وه. هر کله چې ددغې بل طرفته خلق په کثرت کښې وو ځکه علي رضي الله عنه دهغوئ خبره اومنله او لښکر ئې راؤښکلو، دغه شرارتیان او فسادیان هم ورسره په ملګرتیا کښې راوؤتل کله چې دغه لښکر بصرې ته اورسیدو نو قعقاع رضي الله عنه ئې ام المؤمنین ته دحال معلومولو دپاره اولیږلو، هغوئ ورغلل او عرض ئې اوکړو چې ائې ام المؤمنین رضي الله عنها! ستاسو د لته د راتلو مطلب څه وو؟ نو ام المؤمنین رضي الله عنها ورته اوفرمائیل چې ﴿ای بنی الاصلاح بین الناس﴾ [ائې خویه! زما مطلب د خلقو په مینځ کښې اصلاح کول دی] بیا طلحه رضي الله عنه او زبیر رضي الله عنه ئې هم د قعقاع رضي الله عنه په مجلس کښې راؤبلل، قعقاع رضي الله عنه هغوئ نه تپوس اوکړو چې تاسو څه غواړئ؟ هغوئ رضي الله عنهم عرض اوکړو چې مونږ د عثمان رضي الله عنه په قاتلانو باندې د شرعي حد جاري کیدو نه بغیر بل څه نه غواړو. قعقاع رضي الله عنه هغوئ پوهه کړل چې دا کار په دې وخت کښې ممکن نه دې تر ځو چې د مسلمانانو ډله مضبوطه شوې نه وی. د دې دپاره تاسو له ضروري دی چې د دې وخت د روغې او اصلاح نه کار واخلئ.
دغې صحابه کرامو رضي الله عنهم خبره اومنله او قعقاع رضي الله عنه چې ورغلو او امیر المؤمنین ئې د صورت حال نه خبر کړو نو هغوئ رضي الله عنه ډیر خوشحاله شو او په اطمینان کښې شو. او ټولو خلقو د واپسئ اراده اوکړه. اودرې ورځې په دغه میدان کښې په د اسې حال کښې ایسار شو چې هیچا ته په دې کښې شك نه وو او س به د دواړو ډلو ترمینځه د مصالحت اعلان کیږي او په ځلورمه ورځ هم دغه اعلان کیدونکی وو او امیر المؤمنین رضي الله عنه ملاقات طلحه رضي الله عنه او زبیر رضي الله عنه سره کیدونکې وو چې په هغه کښې د عثمان رضي الله عنه دغه قاتلان شریك نه وو. د دې قاتلانو

Scanned with Ca

دا کار خوښ نه شو او دا منصوبهٔ ئې جوړه کړه چې تاسو اول د عائشه صدیقه رضی الله عنها په ډله ورشئ او هم په دغه څائې کښې مرګ ژوبله او لوټ مار شروع کړئې . چې دهغوئ دا خیال راشي چې د علی رضی الله عنه د طرفه وعده ماته شوه اوهغوئ په دې غصه کښې د علی رضی الله عنه په لښکر باندې حمله اوکړي ددوئ دا شیطانی چل اوچلیدو او د علی رضی الله عنه په لښکر کښې چې کوم مفسدین وو د هغوئ د طرفنه چې کله د عائشه صدیقه رضی الله عنها په ډله باندې حمله اوکړې شوه نو هغوئ په دې ګڼړلو باندې معذوره وو چې دا حمله د علی رضی الله عنه د طرفنه شوې ده نو په دې وجه ددوئ د طرفه هم جوابی کاروائی شروع شوه . علی رضی الله عنه چې کله دا صورت اوکتلو نو د جنګ کولو نه سوا بل څه صورت نه وو ، او کومه حادثه چې په خپل مینځ کښې د قتل وقتال راتلونکې وه هغه راغله . ﴿إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّآ إِلَيْهِ رٰجِعُونَ﴾ .

داواقعه هم په دې شان طبری اود تاریخ نورو ثقه پوهانو د حسن رضی الله عنه ، حسین رضی الله عنه ، عبدالله بن جعفر رضی الله عنه او عبدالله بن عباس رضی الله عنه وغیره په روایت سره نقل کړې ده .[روح المعانی][1]

غرض دا چې د فسادیانو او شرارتیانو شرارت او فتنې کولو په نتیجه کښې ددغې دواړو پاکو ډلو په مینځ کښې بې ارادې جنګ اوشو . چې کله دا فتنه ختمه شوه او په حقیقت خبر شو دواړه حضرات ډیر خفه شو . عائشه صدیقه رضی الله عنها ته به چې کله دا واقعه رایادیدله نو دومره به اوژړل چې لوپټه مبارکه بهٔ ئې د اوښکو نه لونده شوه . دا حال د علی رضی الله عنه هم وو . او کله چې جنګ نه پس د شهیدانو کتلو دپاره ئې تشریف یوړو نو خپل پتونونه به ئې په خپلو لاسونو وهل او فرمائیل به ئې چې کاش ددې واقعې نه وړاندې زه داسې مړ شوې وې چې نوم مې نه وې پاتې شوې.

او په څینو روایتونو کښې راغلی دی چې کله به ام المؤمنین په قرآن عظیم الشان کښې دا آیت مبارك ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ لوستلو نو په ژړا به شوه ، تر هغې چې لوپټه مبارکه به ئې په اوښکو لونده شوه [عبدالله بن احمد په زوائدا لزهد کښې او ابن المنذر او ابن شیبه دمسروق نه[روح]][2]

د آیت مبارك په لوستلو د عائشه صدیقه رضی الله عنها ژړل په دې وجه نه وو چې ګویا هغوئ پخپل کور کښې نه پاتې کیدو په وجه خپل څان ګناهګار ګڼړلو یا ئې دغه سفر ګنی منع ګڼړلو ، بلکه د کور نه په راوتلو چې کومه ناخوښه واقعه او سخته راپیښه روته اوشوه په هغې باندې غمژنه وه ، [دا ټول مضمون روایتونه او ټول د تفسیر روح المعانی نه اخستې شوی دی].

**ازواجومطهراتو ته د قرآن پاك درېم ، څلورم او پنځم هدایت:** ﴿وَأَقِمْنَ الصَّلٰوةَ وَآتِينَ الزَّكٰوةَ وَأَطِعْنَ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ﴾ [اود مونځونو پابندی کوئ او زکاة ورکوئې اودالله جل جلاله او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم حکمونه منئ]

دوه هدایتونه په تفصیل سره رومبې تیر شو ی دی ، یعنی پردو سړو سره په نزاکت او نرمئ خبرې مه کوئې ، او بې ضرورته د کورونو نه مه اوځئ ، او درې هدایتونه په دې آیت مبارك کښې راغلل ، داټول پنځه هدایتونه شو چې زناناؤ دپاره دینی ضرورتونه دی .

---

[1] ) روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ١٦، ص ١٠٦، ١٠٧

[2] ) روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ١٦، ص ١٠٨، والزهد لأحمد بن حنبل، رقم الحدیث: ٩٢٠

Scanned with Ca

**دا پنځه واړه هدايتونه د ټولو مسلمانانو دپاره عام دي** دبيان شوؤ هدايتونو نه په آخرى هدايتونو كښې هيڅ‌ځا ته دا شك نشي پيدا كيدې چې دا به ګني د ازواجو مطهراتو سره مخصوص دي ، ولې چې مونځ ، زكوة ، دالله تعالى او درسول كريم ﷺ تابعدارى كول په هر يو مسلمان فرض وى. د زنانوؤ د پردې باره كښې رومبو دوؤ هدايتونو باندې هم چې لږ شان غور اوكړې شى نو په داګه كيږى چې دا هم ازواجو مطهراتو سره مخصوص نه دى بلكه ددې حكم ټولو مسلمانانو زنانوؤ ته دې ، پاتې شوه دا خبره چې دې نه وړاندې قرآن عظيم الشان چې فرمائى ﴿يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ اِنِ اتَّقَيْتُنَّ﴾[اى د پيغمبر بيبيانو ' تاسو دنورو عامو ښځو په شان نه يئ كه تاسو د الله نه ويريږئ] دې نه په ظاهره اګر چې تخصيص معلوميږى خو داسې نه ده بلكه ددې مطلب دادې چې د نورو مسلمانانو زنانوؤ په نسبت ددې پابندى ښه مضبوطه كوئى ولې چې تاسو د عامو مسلمانانو زنانوؤ پشان نه يئ بلكه دهغوئ نه لوړه درجه لرئى ، والله سبحانه وتعالى اعلم.

﴿اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ اَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيْرًا﴾[په مخكښينو آيتونو كښې چې ازواج مطهرات مخاطب كړې شوى وو او هدايات ورته بيان شوى وو ، هغه اګر چې ددوئ د ذات سره مخصوص نه وو بلكه ټول امت ددې احكامو مكلف دې ، خو دې دپاره د ازواجو مطهراتو مخاطب كولو دا مطلب دې چې هر كله تاسو د نبى كريم ﷺ بيبيانې ئئ او دنورو نه مو درجه هم زياته ده نوځكه ددې احكامو پابندى د نورو نه زياته او په لوړه پيمانه دې دپاره كوئى چې په تاسو باندې د پليتئ اوګندګئ هيڅ قسم داغ رانشى ځنګه چې د الله ﷻ حكمت ئې غواړى.

د رجس لفظ په قرآن عظيم الشان كښې ډيرو معنو دپاره استعمال شوې دې ، يو ځائې كښې رجس بتانو په معنى كښې راغلې دې ، لكه فرمائى چې ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ﴾[1] ، كله رجس د مطلق ګناه دپاره ، كله د عذاب دپاره ، او كله د پليتئ او ګندګئ په معنى كښې استعمال شوې ده حاصل ئې دادې چې كوم څيز په شريعت كښې يا طبعاً د نفرت او كركې جوګه وى هغه ته رجس وى ، په دې آيت مبارك كښې دا عامه معنى مراد ده ، [بحر محيط][2]

**دې آيت مبارك كښې د اهل بيت نه څوك مراد دي؟** دې وړاندې آيتونو كښې نساء النبى يعنى د نبى كريم ﷺ بيبيانو ته خطاب وو ځكه د تانيث په صيغې سره خطاب اوكړې شو خو دلته په اهل بيت كښې ازواجو مطهراتو سره د هغوئ اولاد اوپلرونه هم داخل دى ځكه د مذكر صيغه ددې دپاره استعمال كړه يعنى ﴿عَنْكُمُ﴾ او ﴿يُطَهِّرَكُمْ﴾ ئې اوفرمائيل او د تفسير ځينې امامانو د اهل بيت نه مراد صرف ازواج مطهرات اخستې دى لكه عكرمه رحمه الله او مقاتل رحمه الله چې فرمائيلى دى او سعيد بن جبير رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما نه هم دغه روايت نقل كړې دې او دليل كښې ئې وړپسې آيت مبارك ﴿وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلٰى فِيْ بُيُوْتِكُنَّ﴾ پيش كړې دې ، [ابن ابى حاتم

---

[1] ترجمه: پس تاسو دپليتئ نه يعنى دبتانونه ځان ساتئ.

[2] تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ۹، ص ۱۵۲

او ابن جریر روایت کړو.[1]

او په وړاندې آیتونو کښې د نساء النبی په الفاظو سره خطاب کول هم ددې قرینه ده ، عکرمه رضی الله عنه خو په بازار کښې اعلان کولو چې په دې آیت مبارك کښې د اهل بیت نه مراد ازواج مطهرات دی ، ولې چې دا آیت مبارك دهغوئ په شان کښې نازل شوې دې او فرمائیل به ئې چې په دې باندې زه مباهلې کولو دپاره هم تیار یم . خو د ابن کثیر کثرو روایاتو نه دا ثابتیږی چې په اهل بیت کښې علی رضی الله عنه ، فاطمه رضی الله عنها ، حسن رضی الله عنه او حسین رضی الله عنه هم شامل دی . لکه صحیح مسلم کښې د عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چې یو ځل نبی کریم ﷺ د کور نه بهر تشریف راوړو چې تور رومی څادر ئې په سر وو حسن بن علی رضی الله عنه چې راغلو نو هغوئ رضی الله عنه باندې ئې ددغې څادر پلو واچولو بیا حسین رضی الله عنه چې راغلو نو هغوئ باندې ئې هم واچولو ، بیا فاطمه رضی الله عنها او علی رضی الله عنه ئې په دغې څادر کښې ځان سره کړل او بیا ئې دا آیت مبارك تلاوت کړو چې ﴿إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا﴾.[2]

او ځینې روایاتو کښې دا هم دی چې د آیت لوستلو نه پس ئې دا اوفرمائیل چې ﴿اللهم هولاء اهل بیتی﴾[ابن جریر].[3]

ابن کثیر[4] رحمه الله ددې مضمون کثر احادیث نقل کولو نه پس فرمائیلی دی چې د امامانو د تفسیر په دې دواړو أقوالو کښې څه بې سمونی خکه نشته دې چې دا آیتونه هم د ازواجو مطهراتو باره کښې نازل شوی دی ، پدې شان د اهل بیت نه هغوئ مراد اخستل هم بنکاره دی ولې چې د شان نزول مصداق هم هغوئ دی خو نور اهل بیت تر مراد اخستل ورسره بې سمونه نه دی چې هغه فاطمه رضی الله عنها ، علی رضی الله عنه ، حسن رضی الله عنه او حسین رضی الله عنه دی کوم چې د نبی کریم ﷺ د ارشاد مطابق په اهل بیت کښې شامل دی ، دې نه وړاندې آیتونو کښې ﴿فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ﴾ او نورې تولې صیغې د مؤنث راوړې شوی دی او دې نه پس بیا ﴿وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَىٰ﴾ د مؤنث صیغې استعمال شوی دی خو ددې منځو میانه آیت کښې د ﴿عَنكُمُ﴾ او ﴿يُطَهِّرَكُمْ﴾ د مذکر صیغې استعمالول دا نبائی بلکه ددې خبرې نه مضبوط دلیل دې چې په دې کښې یوازې ازواج مطهرات نه بلکه څه نارینه هم داخل دی .

وریسې فرمائی چې ﴿لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا﴾ دې نه بنکاره مراد دادې چې ددې هدایتونو په ذریعه به الله تعالی اهل بیتو لره د ګناهونو اوناکاره څیزونو نه محفوظ ساتی او پاك به ئې لری . خلاصه داده چې دې نه تشریعی پاکول مراد دی چې او تکوینی پاکول چې دا د پیغمبرانو ﷺ خاصیت دې ترې مراد نه دی په دې وجه دې سره دا لازم نه دی چې دوئ یعنی اهل بیت دې معصوم یعنی دګناه نه پاك وی او ګناه دې ترې بالکل نه کیږی لکه د انبیاء کرامو ﷺ نه نه کیږی . دلته شیعه ګانو دجمهور امت نه اختلاف کړې دې او وائی چې

---

[1] ) تفسیر ابن جریر تحت هذه الآیة: ج ۲۰، ص ۲۶۷

[2] ) صحیح مسلم، کتاب الفضائل، باب فضائل الحسن والحسین رضی الله عنهما: ج ۲، ص ۲۸۳

[3] ) تفسیر ابن جریر الطبری: ج ۲۰، ص ۲۶۶، وجامع الترمذی، أبواب المناقب، من سب اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم: ج ۲،ص ۲۲۶

[4] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۶، ص ۴۵

Scanned with Ca

اهل بیت د رسول ﷺ یو ازې د هغوئ عصبه کیدې شي او ازواج مطهرات دې کښې نه دي داخل بل اختلاف ئې دا کړې دې چې دغه خاص اهل بیت دګناه نه هم د انبیاء کرامو پشان معصوم او پاك دي ،خو ددې جواب او تفصیلي بحث مې په احکام القرآن سورۀ احزاب کښې لیکلې دې ،هغې کښې مې داخبره په شرعي دلیلونو سره ثابته کړې ده چې بغیر د پیغمبرانو ﷺ نه بل څوك معصوم نه دی ، اهل علم دې لره کتې شي ، د عوامو ورته ضرورت نشته دې .

﴿وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَىٰ فِي بُيُوتِكُنَّ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ وَالْحِكْمَةِ﴾ د الله ﷻ د آیتونو څخه مراد قرآن پاك او د حکمت څخه مراد د نبي کریم ﷺ تعلیمات او سنت دی څنګه چې عامو مفسرینو ددې تفسیر دلته په سنت سره کړې دې ، او دلته د ﴿اذْكُرْنَ﴾ دوه مطلبونه کیدې شي ، یو دا چې دا څیزونه پخپله یاد لری چې نتیجه ئې پرې عمل کول دی ، بله دا چې ددې یادګیرنه او تبلیغ د امت نورو خلقو ته کوئی او هغوئ ته ئې رسوئی.

**فائده**: ابن عربي رحمه الله په احکام القرآن کښې فرمائیلي دي چې دې نه دا ثابت شو چې کوم کس د نبي کریم ﷺ څخه یو آیت یا حدیث واوري نو په هغه لازم دی چې دا امت ته اورسوي تر دې چې په ازواجو مطهراتو باندې هم لازم کړې شو چې د هغوئ په کورونو کښې دقرآن کوم آیتونه نازل شي یا چې نبي کریم ﷺ دوئ ته کوم تعلیمات ورکړي نو دهغې ذکر دې د امت نورو کسانو ته ورکوي او دا دالله ﷻ امانت نورو ته او رسوي([1]).

**د قرآن کریم پشان د حدیث پاك حفاظت**: دې آیت مبارك کښې څنګه چې د قرآني آیتونو تبلیغ او تعلیم په امت باندې لازم کړې شوې دې دغه شان د حکمت په لفظ فرمائیلو سره د نبي کریم ﷺ د احادیثو تبلیغ اوتعلیم هم لازم کړې شوې دې ، صحابه کرامو رضي الله عنهم داحکم په هر حال کښې په ځانې راؤزیدې ، اوپه صحیح بخاري کښې د معاذ رضي الله عنه واقعه چې هغه د نبي کریم ﷺ نه آؤریدلې یو حدیث پاك عامو خلقو په دې وجه بیان نه کړو چې خلق به ئې ددې په درجه کښې نه ایښودو سره په څه غلط فهمئ کښې اخته نشي خو بیا ئې د خپل وفات په وخت کښې هغه حدیث پاك خلقو ته واؤرولو او وې فرمائیل چې هغه وخت مې د یو دیني بنیګړې په وجه ددې بیان چاته نه وو کړې خو اوس دغه امانت ، امت ته رسول ضروري ګڼړم ، په دې باره کښې د بخاري شریف الفاظ دادي چې:

﴿فاخبربه معاذعند موته تأثما﴾ یعني معاذ رضي الله عنه دا حدیث پاك خلقو ته وفات په وخت څکه واؤرولو چې هسې نه په دې ګناهګارنه شي چې خلقو ته یې د نبي کریم ﷺ حدیث اونه رسولو.([2]) دا واقعه ددې خبرې ثبوت دې چې صحابۀ کرامو رضي الله عنهم ددې حکم قرآني په ځانې راؤړل واجب او ضروري ګڼړل ، او په ډیر احتیاط سره ئې دا بندوبست کړې وو چې احادیث نبوي ﷺ خلقو ته اورسوي ، په دې شان د حدیث پاك حفاظت هم دقرآن پاك حفاظت سره نزدې نزدې شو ، په دې معامله کښې شبهې راپیدا کول حقیقت دادې چې په قرآن عظیم الشان کښې شبهې راپیدا کول دي ، والله اعلم.

---

[1]) أحكام القرآن لابن العربي: ج ٦، ص ٣٥٨

[2]) صحيح البخاري، كتاب العلم، باب من خص بالعلم قوماً دون قوم: ج ١، ص ٢٤

Scanned with Ca

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّ الْمُسْلِمِيْنَ | وَالْمُسْلِمٰتِ | وَالْمُؤْمِنِيْنَ | وَالْمُؤْمِنٰتِ | وَالْقٰنِتِيْنَ |
| بيشکه مسلمانان سړي | او مسلمانانې ښځې | او مومنانې سړي | او مومنانې ښځې | او فرمان منونکی سړي |
| بیشکه مسلمانان سړي او مسلمانانې ښځې ، | | او مومنان سړي او مومنانې ښځې | | او تابعدار سړي |
| وَالْقٰنِتٰتِ | وَالصّٰدِقِيْنَ | وَالصّٰدِقٰتِ | وَالصّٰبِرِيْنَ | |
| او فرمان منونکې ښځې | او رښتینی سړي | او رښتینې ښځې | او صبر کونکی سړي | |
| او تابعدارې ښځې ، | او رښتینې سړي او ریښتینې ښځې | | او صابره سړي | |
| وَالصّٰبِرٰتِ | وَالْخٰشِعِيْنَ | وَالْخٰشِعٰتِ | وَالْمُتَصَدِّقِيْنَ | |
| او صبر کونکې ښځې | او عاجزی کونکی سړي | او عاجزی کونکې ښځې | او صدقه ورکونکی سړي | |
| او صابره ښځې | او ویریدنکی سړي او ویریدونکې ښځې | | او خیرات کونکی سړي | |
| وَالْمُتَصَدِّقٰتِ | وَالصَّآئِمِيْنَ | وَالصّٰٓئِمٰتِ | وَالْحٰفِظِيْنَ | |
| او صدقه ورکونکې ښځې | او روژه نیونکی سړي | او روژه نیونکې ښځې | او حفاظت کونکی سړي | |
| اوخیرات کونکې ښځې ، | او روژه دار سړي او روژه دارې ښځې | | اودخپلو شرمگاهونو حفاظت | |
| فُرُوْجَهُمْ | وَالْحٰفِظٰتِ | وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ | كَثِيْرًا | |
| شرم دخایونوخپلو | او حفاظت کونکې ښځې | او یادونکی سړي الله لره | ډیر | |
| کونکی سړي اوحفاظت کونکې ښځې | ..................او الله ﷻ ډیر ډیر یادونکی سړي | | | |
| وَالذّٰكِرٰتِ ۙ | اَعَدَّ اللّٰهُ | لَهُمْ | مَّغْفِرَةً | وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ۝ |
| او یادونکې ښځې | تیار کړې دي الله | دپاره دهغوئ | ښښنه | او اجر لوئ |
| او ښځې | الله ﷻ د دې ټولو دپاره لویه ښښنه او لوئې اجر تیارکړې دي | | | |

## آسان ترجمه قرآن

بے شکه فرمان بردار سړي او فرمانبردارې زنانه مومنان سړي او مومنانې زنانه، عبادت گزار سړي او عبادت گزارې زنانه، رښتونې سړي او رښتونې زنانه، صبر کونکې سړي او صبر کونکې زنانه، په زړه سره ټیټیدونکې سړي او په زړه سره ټیټیدونکې زنانه صدقه ورکونکې سړي او صدقه ورکونکې زنانه، روژه دار سړي او روژې دارې زنانه د خپلو شرمگاهونو حفاظت کونکې سړي او حفاظت کونکې زنانه، او د الله تعالیٰ ذکر په کثرت سره کونکې سړي او ذکر کونکې زنانه، دې ټولو دپاره الله تعالیٰ مغفرت او لوئې اجر تیار کړې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿إِنَّ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمٰتِ﴾ [بیشکه داسلام کارکوونکی سړي او داسلام کارکوونکې ښځې﴿وَالْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ﴾ او ایمان راوړونکې سړي او ایمان راوړونکې ښځې] دمسلمین او مسلمات په دې تفسیر سره داسلام نه مراد دمونځ روژې زکوات حج وغیره عملونه شول او په

مؤمنين اومؤمنات كښې د ايمان نه مراد عقيدې شوې لکه چه په صحيح بخاري اومسلم[1] كښې د حضرت جبرائيل عليه السلام په تپوس د نبي كريم ﷺ نه د اسلام او ايمان متعلق هم د اجواب وركول نقل دى ﴿وَالْقٰنِتِيْنَ وَالْقٰنِتٰتِ﴾ [او فرمانبرداى كوونكى سړى او فرمانبردارى كوونكې ښځې ﴿وَالصّٰدِقِيْنَ وَالصّٰدِقٰتِ﴾ او رښتونى سړى او رښتونې ښځې] په دې رښتونوالى كښې دقول رښتونوالې هم داخل دې او دعمل هم او په ايمان او نيت كښې رښتونوالې هم يعنى نه د د وى په خبرو كښې څه دروغ وى اونه په عمل كښې كم همتى او سستى اونه ريا كارى يا نفاق ﴿وَالصّٰبِرِيْنَ وَالصّٰبِرٰتِ﴾ [او صبر كوونكى سړى او صبركوونكې ښځې] په دې كښې د صبر ټول قسمونه راغلل يعنى په طاعتونو اوعبادتونو ثابت قدم پاتې كيدل او د نافرمانيو نه خپل نفس بند ساتل او په مصيبتونو صبر كول ﴿وَالْخٰشِعِيْنَ وَالْخٰشِعٰتِ﴾ [او خشوع كوونكى سړى او خشوع كوونكې ښځې] په لفظ د خشوع كښې د مونځ او عبادت خشوع هم داخله ده چه زړه هم عبادت طرف ته متوجه وى او خپل اندامونه او جوړونه هم د دې مناسب ساتى او په دې كښې عامه تواضع هم داخله ده كومه چه د تكبر مقابل ده يعنى داخلق دتكبر او خپلې لويئ نه هم پاك دى او په مونځ وغيره عبادتونو كښې هم خشوع او خضوع د دوى وظيفه ده ﴿وَالْمُتَصَدِّقِيْنَ وَالْمُتَصَدِّقٰتِ﴾ [او خيرات كوونكى سړى او خيرات كوونكې ښځې] په دې كښې زكوات او نفل صدقې ټولې شاملې دى ﴿وَالصّٰٓئِمِيْنَ وَالصّٰٓئِمٰتِ﴾ [او روژه ساتونكى سړى او روژه ساتونكې ښځې ﴿وَالْحٰفِظِيْنَ فُرُوْجَهُمْ وَالْحٰفِظٰتِ﴾ او د خپل شرمګاه حفاظت كولو والا سړى او حفاظت كولو والا ښځې ﴿وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ﴾ او ډير خدائ لره يادونكى سړى او يادونكې ښځې] يعنى كوم چه د فرض ذكرونو نه علاوه نفلى ذكرونه هم ادا كوى ﴿اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا﴾ [د دې ټولو د پاره الله تعالى مغفرت او لوئ اجر تيار كړې دې.

## معارف او مسائل

**د قرآن پاك عام خطابونه نارينوؤ ته دى زنانه د دې په ترغ كښې داخلې دى .د دې حكمت.** د قرآن عظيم الشان په عامو احكامو كښې اگر چې نارينه او زنانه دواړه شامل دى خو خصوصا خطاب نارينوؤ ته شوې دې ، زنانه د دې په ترغ كښې داخل دى ، هر ځائې كښې په ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ سره خطاب شويدې خو زنانه ضمنا په دې كښې مخاطبې دى ، په دې كښې دې خبرې ته اشاره ده چې د زنانوؤ ټولې معاملې په ځان پټولو اوپه پردې كولو بنا دى چې په دې كښې د دوئ عزت دى ،په ټول قرآن پاك كښې غور كولو سره معلوميږى چې د مريم بنت عمران ځخه سوا د بلې هيڅ يوې زنانه نوم په قرآن عظيم الشان كښې نه دې اخستې شوې. بلكه د دوئ نارينوؤ ته منسوب يادې كړې شوى دى لكه امراة فرعون ، امراة نوح ، امراة لوط وغيره. د مريم په نوم سره د يادولو خصوصيت شايد دا وى چې د عيسى عليه السلام هيڅوك پلار نه وو ځكه ئې هم مورته د نسبت كولو په غرض هم د دې نوم ياد كړې شو ، والله اعلم.

د قرآن عظيم الشان دا طرز اگر چې پخپله په يو لوئې حكمت او مصلحت باندې بنا وو خو د زنانوؤ په زړونو كښې د اخيال راتلل يو طبعى كار و وو ځكه د حديثو په كتابونو كښې د اسې

---

[1] ) صحيح البخاري، كتاب الإيمان، باب سوال جبرائيل النبي صلى الله عليه وسلم الخ: رقم الحديث ٥٠.
صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب الإيمان ما هو وبيان خصاله، رقم الحديث:٥

Scanned with Ca

کنړ روایتونه دي چې په کښې زناناؤ نبی اکرم ﷺ ته عرض اوکړو چې مونږ وینو چې الله ﷻ په قرآن عظیم الشان کښې هر ځائې کښې د نارینو ذکر کوی او هم هغوئ مخاطب کوی ددې ځخه معلومه شوه چې په مونږ زناناؤ کښې هډو خیر نشته دې مونږ ددې ځخه ویریږو چې عبادت به موهم قبول نه وی. [بغوی روایت کړو د ازواجو مطهراتو ځخه](۱).

او ترمذی کښې په حسن سند سره د ام عماره انصاریه(۲) رضی الله عنها ځخه او ځینې روایتونو کښې د اسماء بنت عمیش رضی الله عنها ځخه دغسې عرض کول منقول دی او ددې آیتونو د نازلیدو سبب هم دغه خواست نقل شوې دې

دې آیتونو مبارکو کښې د زناناؤ د زړونو ساتلو په غرض د دوئ د عملونو قبولوالې په خصوصیت سره بیان شوېدې ، په دې کښې دا ضباط کړې شوی دی چې د الله ﷻ په نزد د قبلیدو او فضیلت اډانړه په نیکو عملونو او د الله ﷻ په تابعدارئ کولو ده ، په دې کښې د نارینو زناناؤ هیڅ فرق نشته دې .

**دالله تعالی د ډیر یادولو حکم او ددې حکمت** د اسلام ارکان پنځه عبادتونه دی ،مونځ ، زکوة ، روژه ، حج ، او جهاد ، لیکن په ټول قرآن عظیم الشان کښې ددې د ډیر ډیر کولو حکم نشته مګر د الله ﷻ د ذکر په باره کښې د قرآن عظیم الشان په ګنړو آیتونو کښې د ډیر ډیر کولو ارشاد دې ، لکه په سورۀ انفال ، سورة جمعه کښې او په دې سورة کښې ئې ﴿وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ﴾ اوفرمائیلو.

غالبا ددې حکمت دادې چې اول خو د الله ﷻ ذکر د ټولو عبادتونو اصل روح دې لکه چې د معاذ بن انس رضی الله عنه په روایت سره راغلی دی چې یو سړی نبی اکرم ﷺ ځخه تپوس اوکړو چې په مجاهدینو کښې د ټولو ځخه زیات اجر او ثواب دچا دې ؟نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې د ټولو ځخه زیات ذکر چې دالله تعالی ځوك کوی . بیا ئې تپوس اوکړو چې په روژدارو کښې د ټولو ځخه زیات ثواب د چا دې ؟ نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې د هغه چا چې د الله ﷻ ذکر د ټولو ځخه زیات کوی . بیا دغسې د مونځ ، زکوة ، اوحج ، صدقې باره کښې سوالات اوکړو خو هر ځل ورته نبی اکرم ﷺ هم دا اوفرمائیل چې ځوك د الله ﷻ دټولو ځخه زیات ذکر کوی نو هم هغه د زیات اجر مستحق دی . [احمد ، روایت کړو د ابن کثیر ځخه](۳).

بله دا چې په ټولو عبادتونو کښې دا زیات آسان دې ، شریعت هم دې دپاره څه شرط نه دې ایخودې[ایښی] ، په اودس کښې ، بې اودسه ، په ملاسته[پروته] ، په ناسته ، په ولاړه ، په روانه هر وخت د الله ﷻ ذکر کولې شی . دې کښې څه خواری کول نشته ،د څه اوزګارتیا ضرورت نشته ،اثر او فائده ئې دومره لویه ده چې د الله ﷻ په ذکر کولو سره دنیوی کارونه هم دین او عبادت جوړیږی . د خوراك ځخه وړاندې او وروسې دعا ، کور ځخه د وتلو دعا او د واپس راتلو دعا ، په سفر کښې د وتلو دعا ، د سفر په دوران کښې دعا ، او وطن ته د واپس راتلو دعاګانې ، د څه کاروبار کولو ځخه مخکښې او روستو دعاګانې د نبی اکرم ﷺ د

---

(۱) تفسیر البغوی: ج ٦، ص ٣٥١

(۲) جامع الترمذی، أبواب التفسیر، باب سورة الأحزاب: ج ۲، ص ۲۵۵، ومعجم کبیر للطبرانی، رقم الحدیث: ۷۳۰۹

(۳) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٤٢١، ومسند أحمد، حدیث معاذ بن انس، رقم الحدیث: ۱۶۰۱۹

خودلو شوؤ دعاګانو حاصل هم دادې چې مسلمانان دې هيڅکله څه کار نه کوی چې په هغې کښې د الله ﷻ د يادو څخه غافله وی ، اوکه څوك دغه دعاګانې په يو کار کښې اوکړی نو دغه دنيوی کارونه هم دين جوړيږی

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللّٰهُ

او نشته دې حق | يو مومن سړی لره | اونه يوې مومنې ښځې لره | کله چې | فيصله اوکړی الله |

او دهيڅ مومن يا مومنې دپاره جائز نه دی | چې کله ورته الله ﷻ او دهغهٔ رسول ديو کار

وَرَسُوْلُهٗٓ اَمْرًا اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ ۭ وَمَنْ

او رسول دهغه | ديو کار | چې وی هغوئ ته | اختيار | دکار خپل نه | او هغه څوك |

حکم اوکړی | چې بيا دې هم هغوئ ته څه اختيار وی | او څوک

يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا ۝ وَاِذْ

چې نافرمانی کوی دالله | او درسول د هغه | نوګمراهه شو|په ګمراهئ ښکاره سره|اويادده کړه کله چې

چې دالله ﷻ اودهغهٔ درسول ﷺ نافرمانی کوی| نو هغه ښکاره ګمراه شو| او[ياد ساته] هرکله چې

تَقُوْلُ لِلَّذِيْٓ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاَنْعَمْتَ عَلَيْهِ

ونيل تا | هغه سړی ته | چې احسان کړې ووٓ الله | په هغه باندې| او احسان کړې ووٓ تا | په هغه باندې|

تا[زيد بن حارثه ته] په چاچې الله ﷻ احسان کړې وو او تا پرې هم احسان کړې دا اووئيل

اَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَاتَّقِ اللّٰهَ وَتُخْفِيْ فِيْ نَفْسِكَ مَا

چې اوساته | خان ته | ښځه ستا | اواويريږه دالله نه | او پټه ساتله تا | په زړهٔ خپل کښی | هغه خبره

چې خپله ښځه پخپله نکاح کښې اوساته |اودالله ﷻ نه اوويريږه | اوتا په خپل زړه کښې

اللّٰهُ مُبْدِيْهِ وَتَخْشَى النَّاسَ ۚ وَاللّٰهُ اَحَقُّ

چې الله | ښکاره کونکې ووٓ دهغې | او ته يريدلې | دخلقو نه | حالانکه الله | زيات حقدار دې |

هغه خبره پټه ساتله [کومه چې الله ﷻ ښکاره کوله |اوته دخلقو داعتراض نه ويريدلې |حالانکه الله ﷻ

اَنْ تَخْشٰىهُ ۭ فَلَمَّا قَضٰى زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا

ددې چې ته او يريږې دهغه نه | پس هرکله چې | پوره کړو | زيد | هغې نه | حاجت [خپل] |

ددې زيات حقدار دې |چې ته دهغهٔ نه اوويريږې | بيا هرکله چې زيد د خپلې ښځې نه حاجت پوره کړو

زَوَّجْنٰكَهَا لِكَيْ لَا يَكُوْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ حَرَجٌ

نوپه نکاح درکړه مونږ تاته هغه |دپاره ددې چې | نه وی | په مومنانو باندې| څه تنګی [سختی]

[اوطلاق ئې ورکړو] | نو مونږ تاته هغه په نکاح کړه |ددې دپاره چې د بيا دپاره مسلمانانو ته دهغه چا د

Scanned with CS

فِيْٓ اَزْوَاجِ اَدْعِيَاۗىِٕهِمْ اِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا ۭ

په معامله دښځو | دخلې بللو خامنو خپلو کښې | کله چې | پوره کړی هغوئ | دهغوئ نه | حاجت خپل

ښځو په نکاح سره اخستلو کښې هيڅ تنګی پاتې نشی اچې په خويتوب ئې نيولی وی اکله چې ترې هغوی حاجت پوره کړی

وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا ۝ مَا كَانَ عَلَى النَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ فِيْمَا

او دې | حکم دالله | خامخا کيدونکې | نشته | په نبی باندې | څه ګناه [بنديز] | په هغه کار کښې

او دالله ﷻ حکم خامخا پوره کيږی |الله تعالی چې د پيغمبر دپاره د کومې خبرې فيصله کړې ده

فَرَضَ اللّٰهُ لَهٗ ۭ سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ

چې مقرر کړې وی الله | دپاره دهغه | داطريقه دالله ده | په معامله دهغه پيغمبرانو کښی |

په هغې کښې په ده هيڅ الزام نشته | د پخوانو [پيغمبرانو] دپاره هم الله تعالی دغه شان فيصلې کړې

خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۭ وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ قَدَرًا مَّقْدُوْرَا ۝

چې تير شوی دی | دمخکښې نه | او دې | حکم دالله | يوه ازلی فيصله | مقرر کړې شوی |

وې |...................او دالله ﷻ دهر کار اندازه مقرر شوې ده

الَّذِيْنَ يُبَلِّغُوْنَ رِسٰلٰتِ اللّٰهِ وَيَخْشَوْنَهٗ وَلَا يَخْشَوْنَ

دا طريقه ده دپاره دهغه خلقو | چې رسوی | پيغامونه دالله | او يريږی دهغه نه | اونهٔ يريږی هغوئ |

دا ټول هغه پيغمبران دی |چې دالله ﷻ پيغامونه ئې خلقو ته رسول | اوله ده نه بهٔ ويريدل

اَحَدًا اِلَّا اللّٰهَ ۭ وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا ۝

دهيچا نه | مګر دالله نه | او کافی دې الله | دپاره دحساب اغستلو |

اودالله ﷻ نه سوا به دهچا نه نه ويريدل |اودحساب اخستلو له يوازې الله ﷻ کافی دې

## آسان ترجمه قرآن

او کله چه الله تعالٰی او دهغه رسول د يوې خبرې باره کښې اتله فيصله اوکړی، نو نه د يو مومن سړی دپاره ددې ګنجائش شته او نه د يوې مومنې زنانه دپاره. چه هغوی ته په خپله معامله کښې څه اختيار باقی پاتې شی، او چا چه د الله تعالٰی او دهغه د رسول نافرمانی اوکړه، نو هغه په ښکاره ګمراهئ کښې پريوتلو. او (اے پيغمبره) ياد کړه، چه کله تا هغه سړی ته، په چا باندې چه الله تعالٰی هم احسان کړې وو او تا هم احسان کړې وو دا وئيل چه: خپله بی بی په خپله نکاح کښې ساته. او د الله نه اويريږه او تا په خپل زړه کښې هغه خبره پټوله، چه هغې لره الله تعالٰی ښکاره کونکې وو او ته د خلقو نه ويريدې، حالانکه الله تعالٰی ددې خبرې زيات حقدار دې، چه ته دهغه نه اويريږې، بيا چه کله زيد خپلې بی بی سره تعلق ختم کړو، نو موږ هغې سره ستا نکاح اوکړه، دې دپاره چه مسلمانانو لره د خپلو په خولۀ بللې شوې ځامنو بيبيانو (سره نکاح کولو) کښې هغه وخت څه تنګی پاتې نشی هرکله چه هغوی خپلو بيبيانو سره تعلق ختم کړې وی، او الله تعالٰی چه کوم حکم ورکړې وو، په هغې باندې خامخا عمل کيدونکې وو دنبی کريم (صلی الله عليه وسلم) دپاره په هغې کار کښې هيڅ د اعتراض خبره نشته، کوم چه الله تعالٰی دهغه

Scanned with Ca

دپاره مقرر کړي وی هم دا د الله تعالیٰ سنت دی. چه په دي پاندې د هغې (انبياء کرامو) معامله کښې هم عمل کیدو، کوم چه مخکښې تیر شوې دی او د الله تعالیٰ فیصله مقرر کړې شوې وی. پیغمبران هغه خلق دی، چه د الله تعالیٰ رالیږلې شوې احکامات خلقو ته رسوی او دهغه نه ویریږی، او د الله تعالیٰ نه ماسوا دهیچا نه نه ویریږی، او حساب اخستلو دپاره الله تعالیٰ ته د هیچا ضرورت نشته.

## خلاصه تفسير

﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ﴾ [او چا ایماندار سړی او چا ایماندارې ښځې له لائق نه دی ﴿إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا﴾ هرکله چه الله تعالی او دهغه رسول] ﷺ [دڅه کار اګر چه هغه ددنیا څه خبره ولې نه وی وجوبا [حکم ورکړی ﴿أَن يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ﴾ چه] بیا [دغو] مؤمنانو [ته د دوی په دغه کارکښې څه اختیار] باقی [پاتې شی] یعنی ددې اختیار څه ګنجائش نه پاتې کیږی چه خواه وئ کړی یا ئې ونه کړی بلکه عمل کول پرې واجبیږی ﴿وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ [او کوم سړې چه] پس دوجوبی حکم نه [د الله تعالی او دهغه درسول] ﷺ [خبره ونه منی ﴿فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُّبِينًا﴾ هغه په صریح ګمراهئ کښې پریوتلو ﴿وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِي﴾ او] هغه وخت له یادکړئ [هرکله چه تاسو ﷺ] په پوهولو او مشوره سره [هغه سړی ته فرمائیل ﴿أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِ﴾ په کوم چه الله تعالی هم انعام وکړو] چه د اسلام توفیق ئې ورکړو کوم چه دینی انعام دې او دغلامئ نه ئې ازاد کړو چه دنیوی نعمت دې ﴿وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ﴾ [او تا پرې هم انعام وکړو] دینی تعلیم دې ورته وفرمائیلو او ازاد دې کړو او دترور لور دوئ ورته په نکاح کړه مراد ترې نه حضرت زید رضي الله عنه دې چه تادۀ له پوهولو ﴿أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ﴾ [چه خپلې بی بیا زینب رضي الله عنها [له په خپله ښځولئ کښې پاتې کړه] او ددې په معمولی خطاګانو باند نظر مه کوه چې کله کله ددې سره ناموافقه کیږی ﴿وَاتَّقِ اللَّهَ﴾ [او دالله تعالی نه وویریږه] او ددې په حقوقو کښې هم کوتاهی مه کوه چه چرې ددې سره دې دناموافقت پیدانه شی [او] هرکله چه شکایتونه دحدنه زیات شو او په قرائنو سره داصلاح او موافقت امید پاتې نه شو نو دغه وخت دپوهولو سره ﴿وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ﴾ [تاسو ﷺ په خپل زړۀ کښې هغه خبره] هم [پټه کړې وه ﴿مَا اللَّهُ مُبْدِيهِ﴾ کومې له چه الله تعالی] په اخرکښې [ظاهرونکې وو] مراد ددې نه دنبی کریم ﷺ نکاح دې دحضرت زینب سره هرکله چه زید رضي الله عنه دې له طلاق ورکړی کومې لره چه الله تعالی په [زوجنکها] کښې قولا او په خپله په نکاح کولو سره فعلا ظاهره وفرمائیله [او] ددې مشروط اومعلقې ارادې سره ﴿وَتَخْشَى النَّاسَ﴾ [تاسو ﷺ دخلقو] دطعن [نه] هم [ویره کول] څکه چه دغه وخت په دې نکاح کښې څه دینی اهم مصلحت په ذهن کښې به نه وو راغلې محض دنیوی مصلحت به خاص دحضرت زینب رضي الله عنها په خیال کښې وو او په دنیوی کارونوکښې داسې اندیشه کیدل څه باك نه لری بلکه په څنو حیثیتونو سره مطلوب دی لکه چه په اعتراض سره دنورو ددین دخرابئ احتمال وی او دوی لره دهغې نه بچ کول مقصود وی ﴿وَاللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَاهُ﴾ [او ویریدل خو تاسوله دالله تعالی نه زیات لائق دی] یعنی چونکه په واقع کښې په دې کښې دینی مصلحت دې لکه چه وړاند په [لکی لایکون الخ] کښې ذکر دې په دې وجه دخلقو نه ویره مه کوئ چنانچه پس د دینی مصلحت داطلاع نه بیا دوی ﷺ څه اندیشه ونه کړه او په اراده دنکاح کښې ویره کول څه چه پس دنکاح نه ئې هم ویره ونه کړه چه قصه ئې وړاند راځی چه

﴿فَلَمَّا قَضٰى زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا﴾ [بیا هر کله چې زید ددې نه] زینب نه [زړه موړ کړو] یعنې طلاق ئې ورکړو او عدت ئې هم تیرشو نو ﴿زَوَّجْنٰكَهَا لِكَيْ لَا يَكُوْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ حَرَجٌ فِيْٓ اَزْوَاجِ اَدْعِيَآئِهِمْ﴾ [مونږ تاسو سره ددې نکاح وکړه چه په مسلمانانو دخپلې خلې ونیلو دخامنو دبیبیانو دنکاح [په باره کښې څه تنګی پاتې نه شی ﴿اِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا﴾ کله چه هغه] دخلې ونیلو خامن [دهغوی نه خپل زړونه ماړه کړی] یعنې طلاق ورکړی مطلب دادې چه ددې شریعت اظهار مقصود وو ﴿وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا﴾ [او د الله تعالی داحکم خوکیدونکې وو] خکه چه حکمت ددې مقتضی وو وړاند دطعن جواب دې چه ﴿مَا كَانَ عَلَى النَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ فِيْمَا فَرَضَ اللّٰهُ لَهٗ﴾ [ددې پیغمبر دپاره الله تعالی چه کومه خبره] تکوینایا تشریعا [مقرر کړې وه په دې کښې په نبی څه الزام] او دطعن خبره [نشته ﴿سُنَّةَ اللّٰهِ فِى الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ﴾ الله تعالی دهغه] پیغمبرانو ﷺ [په حق کښې] هم [دا معمول جاری ساتلې دې کوم چه مخکښې تیر شوی دی] چه دوی ته دکوم کار اجازت وی بې تکلف دوی هغې لره کوی او طعن پرې نه دې شوې دغه شان په دې نبی هم اعتراض نشته [او] ددغو پیغمبرانو ﷺ هم چه ددې قسمه څومره کارونه وی ددغو تولو په باره کښې هم ﴿وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ قَدَرًا مَّقْدُوْرًا﴾ [د الله تعالی حکم تجویز کړې شوې] د وړاندنه [وی] او دهغې موافق بیا دوی ته حکم کیږی او هغه عمل کوی شاید د دوی ﷺ په قصه کښې دا مضمون راوړل او بیا دانبیاء کرامو ﷺ په تذکره کښې دامکرر راوړل دې طرف ته اشاره ده چه داسې کارونه په شان دتولو تکوینی کارونو د داسې حکمت متضمن وی چه دوړاند نه په علم الهی کښې تجویز شوی وی بیا په نبی کریم ﷺ طعن کول په الله تعالی طعن کول دی په خلاف دهغه کارونونه په کومو چه په خپله الله تعالی ملامتیا وفرمائی اګر چه دغه دمقدر والی په وجه متضمن دحکمت وی مګر محل دملامتیا کیدل ئې دلیل دې چه داخرابئ هم لری په دې وجه ددې مفاسدو په اعتبار سره په دوی نکیر جائز دې وړاند یو خاص مدح ده د دغو پیغمبرانو چه ددوی ﷺ تسلی وشی یعنی [داتول] تیر شوی پیغمبران ﴿ الَّذِيْنَ يُبَلِّغُوْنَ رِسٰلٰتِ اللّٰهِ﴾ [داسې وو چه دالله تعالی احکام به ئې رسول] که په قولی تبلیغ به مامور شول نو قولی اوکه په فعلی تبلیغ به مامور شول نو فعلی [او] په دې باب کښې ﴿وَيَخْشَوْنَهٗ وَلَا يَخْشَوْنَ اَحَدًا اِلَّا اللّٰهَ﴾ [دوئ دالله تعالی نه به ویریدل او دالله تعالی نه سوا به دبل چانه نه ویریدل] نو تاسو ﷺ ته هم تر څو چه معلومه نه وه چه دانکاح فعلی تبلیغ دې نوپه داسې قسم فعلی تبلیغ نه کولو کښې څه باك نشته لیکن تاته چه هر کله دا خبره معلومه شوه نو اوس تاسو هم څه قسم اندیشه مه کوئ خکه چه مقتضا ده دشان درسالت نو چنانچه ددې خبرې دښکاره کیدو نه پس دوی ﷺ اندیشه نه کوله او سره ددې چه په خپله دوی ﷺ ته د رسالت په تبلیغ کښې دچانه ویره نه ده پیښه شوې نه ددې احتمال وو بیا هم دپیغمبرانو قصه اورول د زړه دزیات قوی کولو دپاره دی [او] ددوی ﷺ دزیاتې تسلئ دپاره فرمائی چه ﴿وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا﴾ [الله تعالی] دعملونو [دحساب اخستو دپاره کافی دې] بیا دچانه ویره دڅه ده دارنګ په تاطعن کوونکو له به هم سزا ورکړی تاسو ﷺ په طعن سره غمژن کیږئ مه

## معارف او مسائل

داخبره مخکښې هم څو خله معلومه شوې ده چې په سورۀ احزاب کښې هغه احکام زیات راغلی دی چې دهغې تعلق د نبی کریم ﷺ د تعظیم ، محبت او مکمل تابعدارئ کولو سره دې

Scanned with Ca

او د نقصان رسولو نه ورته منع شوې ده. دا آيتونه مبارکه هم د دغې مضمون د څو واقعاتو باره کښې نازل شوی دی.

**اوله واقعه**: واقعه دا راپيښه شوه چې زيد بن حارثه ﷛ د يو کس غلام وو او نبی کريم ﷺ دې د عکاظ بازار کښې د يو کس نه اخستې وو اودا دجاهليت زمانه وه. اودې وخت کښې ددوئ عمر هم کم وو. نبی کريم ﷺ د اخستو نه پس آزاد کړو او دعربو د عام رواج مطابق ئې ورته خپل خوئې اووئيلو او دهغه پالنه بهٔ ئې کوله. په دې وجه مکه مکرمه کښې ورته خلقو زيد بن محمد وئيلو. نو قرآن عظيم الشان دا د جاهليت قسم اوګرځولو او ددې نه منع اوکړه داسې خوئې دې ددغه سړی په نوم نشی يادولې، اودا حکم اوکړې شو چې هغه دې خپل اصلی پلار ته منسوب کولې شی، په دې باره کښې هغه آيتونه نازل شو چې هغه په دې سورت کښې وړاندې تير شوی دی لکه فرمائی چې ﴿اُدۡعُوۡهُمۡ لِاٰبَآئِهِمۡ﴾ دې نه پس ورته صحابه کرامو ﷡ زيد بن حارثه وئيل شروع کړل.

**يوه لطيفه**: په ټول قرآن عظيم الشان کښې د پيغمبرانو ﷩ نه سوا بل د هيڅ صحابی ﷡ نوم نه دی راغلې. صرف د زيد بن حارثه ﷛ نوم په قرآن عظيم الشان کښې راغلې دې. ځينې حضراتو ددې حکمت دا بيان کړې دې چې هرکله په قرآنی حکم سره د زيد ﷛ نه د محمد ﷺ ولديت لرې کړې شو او په دې وجه د يو لوئې اعزاز څخه محروم کړې شو. نو دهغې په بدله کښې په قرآن عظيم الشان کښې د هغه نوم ذکر کړې شو چې، نو په قرآن عظيم الشان کښې د زيد په لفظ وئيلو سره چونکه دا دقرآن پاك يو لفظ دې نو په حديث پاك کښې چې په يوحرف باندې د لسو نيکو ورکولو کومه وعده شوې ده چې په عمل نامه کښې به لس نيکی ليکلې کيږی نو کله چې څوك قرآن پاك کښې ددوئ نوم اولولی نو ورته به ديرش نيکئ ملاويږی.

نبی کريم ﷺ به هم د هغوئ عزت کولو نو د عائشه صديقه ﵂ د يو روايت مطابق کله هم چې هغوئ يعنی زيد ﷛ لښکر سره ليږلې دی نو دهغې د اميرپه حيث يې ليږلې دی [ابن کثير][1]

**څيره ادم**: دا په اسلام کښې د غلامئ حقيقت وو چې هر کله په تعليم او تربيت سره په کښې لياقت او قابليت پيدا شو نو دمقتداء او پيشوا درجه ورکړې شوه.

کله چې زيد بن حارثه ﷛ ځوان شو نو نبی کريم ﷺ ورسره د نکاح کولو دپاره د خپلې ترور لور زينب ﵂ اوټاکله، او پيغام يې د نکاح ورکړو. هغوئ ﵂ چونکه يو ځل د غلامئ ليبل لګيدلې وو چې آزاد شده غلام وو ځکه زينب ﵂ پخپله او ددوئ ﵂ رور عبد الله بن جحش ددې رشتې نه انکار اوکړو او دائې ګڼړل چې د نسب او خاندان لحاظ سره مونږ ددوئ ﷛ نه بهتر يو.

په دې واقعه باندې دا آيت مبارك نازل شو چې ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤۡمِنٍ وَّلَا مُؤۡمِنَةٍ﴾ په دې کښې داهدايت اوکړې شو چې کله نبی کريم ﷺ يو واجبی حکم ورکړی نو هغه کارکول واجب شی. د هغې نه

[1] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤٢٤، ومسند أحمد، حديث السيدة عائشة رضى الله عنها، رقم الحديث: ٢٦٦٤٩

Scanned with Ca

څوك انكار نشي كولې. اګر چې په شريعت كښې هغه كار كول واجب نه وي. او چې څوك داسې نه كوي نو په آخر د آيت مبارك كښې دې انكار كولو ته ګمراهي ونيلې شوې ده.

هر كله چې زينب رضي الله عنها او ددې رور دا آيت مبارك اولوستو نو خپل انكار ئې په اقرار كښې بدل كړو او نكاح اوشوه او مهر ئې نبي كريم ﷺ د خپل طرفنه ادا كړو، چې لس زره ديناره او شپيته درهمه وو، ددې سره يو بار اوړونكې څاروې، پوره زنانه جوړه او پنځوس مده اوړه او لس مده كهجورې شاملې وې [ابن كثير] (١)

ددې آيت مبارك د نازليدو مشهوره واقعه د جمهورو مفسرينو په نزد هم دغه د زيد بن حارثه رضي الله عنه او زينب بن جحش دنكاح واقعه ده، [ابن كثير، قرطبي، مظهري] (٢)

ابن كثير وغيره مفسرينو دغسې دوه واقعې نور هم نقل كړى دى په هغې كښې دابيان هم دې چې دا آيت مبارك هم ددې واقعاتو په باره كښې نازل شوې دې. يوه واقعه د جليبيب صحابي رضي الله عنه واقعه ده چې يو انصاري صحابي رضي الله عنه ورسره د لور بي بي د نكاح كولو نه انكار كړې وو. خو ددې آيت مبارك په نازليدو هغه راضي شو او جليبيب سره ئې ددغې جينۍ نكاح اوكړه. نبي كريم ﷺ هغوئ دپاره د رزق د فراخوالي دعا اوكړه، د صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم د بيان مطابق الله جل جلاله دهغوئ په كور كښې داسې بركت واچولو چې د مدينې منورې په ټولو كورونو كښې يوازې ددغې كور ښائست او خرچ زيات وو. آخر جليبيب رضي الله عنه په يو جهاد كښې شهيد شو او نبي كريم ﷺ د كفن دفن انتظام په خپل لاس مبارك اوكړو.

داشان يوه واقعه دحديث شريف په روايتونو كښې د ام كلثوم بنت عقبه بن ابى معيط هم منقول ده، [ابن كثير] (٣) او پدې كښې څه بې سمونى څكه نشي كيدې چې ګڼ واقعات هم ددې د نازليدو سبب جوړې دې شي.

**نكاح كولو كښې د نسب دخيال ساتلو حكم او درجه:** زينب رضي الله عنها او دهغې رور عبدالله رضي الله عنه چې اول د نكاح كولو نه انكار كړې وو نو د هغې وجه دا وه چې د دغې دواړو يعني بي بي او خاوند مينځ كښې خانداني او نسبي يو شان والې نه وو. او دا وجه په شريعت كښې هم مطلوب ده، او د نبي كريم ﷺ ارشاد دې چې د جينۍ نكاح خپل سيال سره كول پكار دى، دلته دا سوال پيدا كيږى چې بيا د زينب رضي الله عنها او دهغې د رور عذر ولې قبول نه كړې شو؟

جواب ئې دادې چې د ښځې خاوند مينځ كښې ديني سيالي خو لازمه اوضروري ده چې ديوې مسلمانې بي بي نكاح به كافر سره د امت د اجماع تر مخه نشي كوې او جائز هم نه دى اګر چې يوه ښځه په دې راضي هم شي ولې چې دا يوازې د ښځې حق نه دې چې ددې په خوښه به هغه د مينځه اوخي، بلكه دا د الله تعالى حق او دهغه فريضه ده. په خلاف د مالي او نسبي سيالۍ نه چې دا د جينۍ حق دې بلكه د جينۍ اختيار مند خلق هم ورسره شريك دى، كه يوه عقلمنده، بالغه مالداره جينۍ يو عاجز غريب سره په نكاح كولو راضي شي او خپل دغه حق پريږدى نو اختيار ئې شته دې، دغه شان كه ددې ټول اختيار مند خلق هم راضي شي چې يو مالداره جينۍ

---

(١) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٣٧٨

(٢) تفسير المظهرى تحت هذه الآية: ج ٧، ص ٣٤٦، وتفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤٢١، والمعجم الكبير للطبرانى (بالاختصار) رقم الحديث: ١٩٦٠٢

(٣) تفسير ابن كثير: ج ٦، ص ٤٢٢، وتفسير القرطبي: ج ١٤، ص ١٨٦، ١٨٧

Scanned with Ca

بو غریب او ددې نه د کم نسب والا سړی ته د یوې مهمې ښیګړې په خاطر په نکاح کړې شي نو هیڅ منع په کښې نشته دې بلکه په دیني لحاظ سره دغه شان کول غوره خبره ده ، ځکه خو نبی کریم ﷺ په ګڼړو موقعو کښې دغه حق شانته غورزولې دې او د دیني ښیګړې په خاطر ئې د نکاح کولو مشوره ورکړې ده.

او د قرآن عظیم الشان د تشریحاتو نه دا ثابت دی چې د نبی کریم ﷺ حق د امت په ټولو نارینهٔ زناناؤ باندې دهر چا نه زیات څه چې ددوئ د ځانونو نه هم زیات دې ، لکه قرآن عظیم الشان فرمائي چې ﴿اَلنَّبِیُّ اَوْلٰی بِالْمُؤْمِنِیْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ﴾ ځکه خو د نبی کریم ﷺ دنکاح دحکم نه کله چې زینب رضی الله عنها او رور ې ئې انکار اوکړو نو د قرآن عظیم الشان دا حکم نازل شو.

پاتې شوه دا خبره چې هر کله د نسبي سیالئ لحاظ ساتل هم د نبی کریم ﷺ په نزد پکار وو نو پخپله هغوئ په دې موقعه لحاظ اونه ساتلو؟ نو ددې جواب دادې چې تقریر نه داسې واضح شو چې د دیني ښیګړو په مقابله کښې دغه شان لحاظونه پرېښودل پکار دی ځکه چې د نبی کریم ﷺ په مبارکه زمانه کښې ګڼړ نکاحونه په بې سیالئ خلقو کښې ددین د مصالحت په بنا شوی دی ، لهذا ددې نه په اصل مسئله څه اثر نه پریوزی.

**دسیالئ مسئله**: نکاح یوه داسې مسئله ده چې که د ښځې خاوند په طبیعتونو کښې جوړښت نه وی نو د نکاح په مقصدونو کښې خلل راځی ، دیو بل په حقونو کښې نقصان راځی ، جنګ جګړې ترې نه پیدا کیږی ، ځکه شریعت کښې د سیالئ د لحاظ ساتلو حکم ورکړې شوې دې ، خو ددې مطلب دا هم نه دې چې د اوچت او غټ خاندان خلق دې دکم خاندان خلق ذلیل او سپك ګڼړی. ځکه چې ذلت او عزت په اسلامي تقوی او دینداریٔ باندې انحصار لری ، چا کښې چې دا څیزونه نه وی نو هغه ته که هر څومره خانداني شرافت حاصل وی نو بیا هم د الله ﷻ په نزد د هغې هیڅ حیثیت نشته ، صرف دانتظامي معاملو د مضبوطوالی په خاطر د سیالئ د لحاظ ساتلو حکم ورکړې شوې دې.

یو بل حدیث پاك کښې چې د نبی کریم ﷺ ارشاد دې چې د جینکو نکاح د هغوئ د ولیانو او اختیارمندو په ذریعه کول پکار دی[1] ، یعنی بالغې جینئ سره دا هم مناسب نه دی چې دخپل نکاح کولو معامله پخپله اوچلوی. د حیا تقاضا داده چې والدین یا نور اختیار مند دې ئې دا معامله اوچلوی. او دائې هم اوفرمائیل چې د جینئ نکاح دې ئې سیال سره اوکړې شی. ددې حدیث پاك سند اګر چې ضعیف دې خو د صحابه کرامو رضی الله عنهم د اقوالو او آثارو نه ئې تائید کیږی او د دلیل نیولو جوګه جوړیږی ، امام محمد رحمه الله په کتاب الاثار کښې د فاروق اعظم رضی الله عنه داقول نقل کړې دې چې:

زه به دا حکم جاری کوم چې د یو اعلی اولوړ خاندان د جینئ نکاح دې دهغې نه د کمې درجې خاندان کښې اونه کړې شی ،[2] دغه شان عائشه صدیقه رضی الله عنها او انس رضی الله عنه هم ددې تاکید کړې دې چې د سیالئ لحاظ ساتل پکار دی کوم چې په ګڼړو سندونو سره منقول دی. امام ابن همام رحمه الله هم په فتح القدیر کښې ددې تفصیل لیکلې دې[3].

---

[1]) جامع الترمذی، أبواب النكاح، باب ما جاء لا نكاح الا بولی: ج ۱، ص ۲۰۸

[2]) کتاب الأثار، کتاب النکاح، باب تزويج الأ كفاء وحق الزوج على زوجته، رقم الحديث: ٤٤٢

[3]) فتح القدير، كتاب النكاح، باب الاوليا والكفاءة، فصل فی الكفاءة: ج ۳، ص ۲۸۰، ۲۸۱

Scanned with Ca

حاصل دادې چې په نکاح کښې د سيالۍ لحاظ ساتل پکار دی چې د ښځې خاوند تر مينځه جوړښت پاتې شي ، خو که ددې نه بله زياته ديني ښيگړه رامخې ته شي نو نسبي او مالي غير سيالي سره هم نکاح کول جائز څه چې بهتر دی څنگه چې د صحابه کرامو ﷺ د گڼړو واقعاتو نه ثابت دی ، دې نه دا هم معلومه شوه چې دې واقعاتو سره دسيالۍ اصل مسئله بې سمونه نه ده. والله اعلم.

**دويمه واقعه** :: د نبي كريم ﷺ په حكم د زينب بنت جحش نكاح زيد بن حارثه ﷺ سره اوشوه خو د دواړو په طبيعتونو كښې جوړښت رانغلو ، زيد به دا شكايت كولو چې زينب ﷺ دژبې نه تيزه ده خپل شرافت راباندې ضباطوی او ځان رانه اوچت حسابوی ځكه مې په ښه زړه سره خدمت نه كوي . بل طرفته نبي كريم ﷺ ته دوحی په ذريعه دا خودلې شوی وو چې زيد ﷺ زينب ﷺ ته طلاق وركوي . د هغې نه پس به ستاسو په نكاح كښې راځي . نو هر كله چې زيد ﷺ دغه شان شكايتونه نبي كريم ﷺ ته بيان كړل او د طلاق وركولو اراده ئې اوكړه نو اگر چې نبي كريم ﷺ ته د وحی په ذريعه داخودلې شوې وه چې زيد به طلاق وركوی او بيا به هم ستاسو ﷺ په نكاح كښې راځي ، خو نبي كريم ﷺ د دوو وجوهاتو په وجه زيد ﷺ د طلاق وركولو نه منع كړو . يو ددې وجې نه چې اگر كه طلاق وركول په اسلامي شريعت كښې جائز دی خو دا يو ناخوښه كار دې بلكه ابغض المباحات دې ، او په تكويني ډول ديو كار واقع كيدل په شرعي حكم باندې څه اثر نه غورځوی .

بله وجه دا وه چې د نبي كريم ﷺ په زړهٔ مبارك كښې دا خيال راپيدا شو چې كه ددوئ ﷺ د طلاق وركولو نه پس زينب ﷺ زما په نكاح كښې راشي نو عرب به د جاهليت د دستور مطابق ماته پيغور راكوي چې د خپل ځوئې د ښځې سره دې نكاح اوكړه . اگر چې قرآن عظيم الشان دا دستور د جاهليت د سورهٔ احزاب د تيرو شوؤ آيتونو ترمخه ختم كړې دې ، دې نه پس يو مؤمن دپاره خو ددې وسوسې خطره هم نه وه ، خو كافران قرآن عظيم الشان نه مني ، دوئ دخپل جاهلانه رسم تر مخه پركتې په ټولو احكامو كښې د خپل اصلي ځوئې پشان گڼړی په دې بناء به پيغور وركولو والاؤ د طعن ژبې به خلاصې شي . ځكه هم دا انديښنه زيد ﷺ لره د طلاق منع كولو باعث جوړه شوه . هم دا وجه ده چې د الله ﷻ د طرفه پرې د محبوبانه زورنې په انداز كښې د قرآن عظيم الشان دا آيتونه نازل شو چې : ﴿وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِيٓ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَٱتَّقِ ٱللَّهَ وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا ٱللَّهُ مُبْدِيهِ وَتَخْشَى ٱلنَّاسَ ۚ وَٱللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَاهُ﴾ [يعني هر كله چې تا اووئيل هغه سړی ته په چاچې الله ﷻ احسان كړی وو دهغه كس څخه مراد زيد ﷺ دې. په هغه باندې الله ﷻ رومبی انعام دا اوكړو چې اسلام كښې يې داخل كړو ، دويم دا چې ستاسو د صحبت شرف يې ورته وراوبخښلو او تا پرې يو احسان دا اوكړوچې او تا پرې هم احسان كړې چې د غلامۍ نه دې آزاد كړو بله دا چې دهغه تربيت دې اوكړو او داسې شو چې ټولو صحابه كرامو دهغه تعظيم كولو .

وړپسې هغه قول نقل فرمائي چې نبي كريم ﷺ زيد ته فرمائيلی ووچې: ﴿أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَٱتَّقِ ٱللَّهَ﴾ [يعني خپله بي بي په خپله نكاح كښې اوساته او طلاق مه وركوه او د الله تعالى نه ويريږه. ددې مطلب دا هم كيدې شي چې طلاق مه وركوه ځكه چې دا ابغض المباحات دې ، او دا هم كيدې شي چې پخپله نكاح كښې ئې اوساته او د طبعي نفرت په وجه به د هغې حقوقو ادا

Scanned with Ca

کولو کښې کوتاهي نه کوې ، د نبی کریم ﷺ دا فرمائیل په خپل ځائې صحیح او درست وو خو هر کله چې د الله ﷻ د طرفه په واقعه پوهه کړې شوې وو او په زړه مبارک کښې ئې د زینب رضی الله عنها سره د نکاح کولو اراده راپیدا شوې وه بیا هم زید رضی الله عنه نې د طلاق ورکولو نه منع کول هغوی ﷺ سره د رسمي خیر خواهئ ښکاره کولو په وجه وو چې د پیغمبر د شان مناسب نه وو ، او خاص کر په داسې حالت کښې چې د خلقو د پیغور ورکولو اندیښنه په کښې هم وه ځکه په دې آیت مبارک کښې د زورنې دا الفاظ پرې نازل شو چې تاسو پخپل زړه کښې هغه خبره پټوله کومه چې الله ﷻ ښکاره کوله کله چې د الله ﷻ د طرفه زینب رضی الله عنها سره نکاح کولو خبر ورکړې شو او ستاسو ﷺ په زړه مبارک کښې دنکاح اراده پیدا شوه نو دغه اراده مو پټه او ساتله او داسې رسمي خبرې اترې مو اوکړې چې ستاسو ﷺ شان سره مناسبې نه وې ، او د خلقو د پیغور اندیښنې نه ویره داسې اوفرمائیل چې تاسو ﷺ د خلقو نه په ویره کښې شوئ حالانکه ستاسو ﷺ شان سره د الله ﷻ نه ویریدل ښائي یعنی کله چې تاسو ته دا معلومه ده چې دا معامله د الله ﷻ د طرفه کیدونکې ده ، دهغه د خفګان په کښې هیڅ اندیښنه او خطره نشته دې نو بیا خالص د خلقو د پیغورونو په ویریدو سره دغسې کول تاسو ﷺ لره مناسب نه وو.

ددې واقعې لیکلې شوې تفصیل ټول په ټوله د تفسیر ابن کثیر ، قرطبی او روح المعانی نه اخستې شوې دې[۱] او د ﴿وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللَّهُ مُبْدِيهِ﴾ دا تفسیر چې هغه څیز چې تاسو پخپل زړه مبارک کښې پټ کړې وو هغه دا اراده وه چې که زید طلاق ورکړل نو د الله ﷻ د حکم مطابق به تاسو ﷺ ورسره نکاح اوکړئ . دا تفسیر حکیم ترمذي او ابن ابی حاتم وغیره محدثینو رحمهم الله د علی بن حسین رضی الله عنه ، زید العابدین په روایت سره نقل کړې دې ، دهغې الفاظ دادي:

﴿اوحی الله تعالی الیه ﷺ ان زینب سیطلقها زید ویتزوجها بعده علیه الصلوة والسلام﴾[روح المعانی از حکیم ترمذی][۲] **ترجمه:** الله ﷻ نبی کریم ﷺ ته راؤلیږله چې زینب رضی الله عنها ته زید طلاق ورکوونکې دې او د هغې نه پس به ئې نبی کریم ﷺ په نکاح اخلي .

او ابن کثیر رحمه الله د ابن ابی حاتم رحمه الله په حواله دا الفاظ ذکر کړی دی چې :

﴿ان الله تعالی اعلم نبیه انها ستکون من ازواجه قبل ان یتزوجها فلما اتاه زید لیشکوها الیه قال اتق الله وامسك علیه زوجك فقال اخبرتك انی مزوجکها وتخفی فی نفسك ما الله مبدیه﴾[۳]

**ترجمه:** الله ﷻ خپل نبی کریم ﷺ ته خودلی وو چې زینب رضی الله عنها به هم ددوئ ﷺ په ازواجو مطهراتو کښې داخلیږی ، بیا کله چې زید د هغوئ ﷺ په خدمت کښې شکایت اوکړو نو هغه رضی الله عنه ته ئې اوفرمائیل چې الله ﷻ نه ویریږه او خپلې بی بی ته طلاق مه ورکوه ، په دې باندې الله ﷻ اوفرمائیل چې ما درته خودلی وو چې ددې نکاح به تاسو سره کوم او تاسو ﷺ خپل زړهٔ مبارک کښې پټ کړې وو هغه څیز چې الله ﷻ دهغې ښکاره کوونکې وو.

جمهورو مفسرینو رحمهم الله ، زهری رحمه الله ، بکر بن العلا رحمه الله ، قشیری رحمه الله ، قاضی ابوبکر ابن العربی رحمه الله هم دا تفسیر اختیار کړې دې چې د کوم څیز پټول بیان کړې شو هغه د الله ﷻ په

---

[۱] ) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱۶، ص ۱۲۷، وتفسیر ابن کثیر: ج ۶، ص ۴۲۴، ۴۲۵

[۲] ) تفسیر روح المعانی: ج ۱۶، ص ۱۲۷

[۳] ) تفسیر ابن کثیر: ج ۶، ص ۳۷۸

Scanned with Ca

وحي سره دنکاح اراده وه . پخلاف په کومو روایتونو کښې چې د ﴿مَا فِي نَفْسِكَ﴾ تفسیر د زینب ﷞ په محبت سره منقول دي ددې په باره کښې ابن کثیر فرمائیلي دي چې مونږ ددې روایتونو ذکر کول ځکه خوښ نه کړل چې په دې کښې یو روایت هم صحیح نه دې (۱)
د قرآن عظیم الشان د الفاظو نه دهغې تفسیر تائید کیږي کوم چې د زین العابدین ﷬ په روایت دې نه مخکښې بیان شو. ځکه چې په دې آیت مبارك کښې الله ﷻ پخپله اوخودل چې په زړهٔ کښې پټ کړې شوې څیز هغه وو چې الله ﷻ ئې ښکاره کوونکې وو ، او الله ﷻ چې کوم څیز په وروسته آیت مبارك کښې ښکاره کړو هغه زینب ﷞ سره نکاح کول دي لکه فرمائي چې : ﴿زَوَّجْنَٰكَهَا﴾[روح](۲)

**دخلقو د طعن او بدو وئیلو نه ساتل ښه دي خو کله چې په یو شرعي مقصود باندې اثر نه پرېوځي** : دا سوال پیدا کیږي چې د خلقو د پیغورونو وغیره نه د ځان ساتلو په غرض رسول کریم ﷺ دغه معامله ولې پټه کړه چې هغه د زورنې سبب جوړ شو ؟ جواب ئې دادې چې په دې معامله کښې اصل ضابطه چې د قرآن عظیم الشان اوسنت نه ثابته ده هغه داده چې دکوم کار په کولو سره په خلقو کښې د غلط فهمۍ پیدا کیدو او ددوئ د پیغورونو ورکولو وغیره خطره وي نو د خلقو ددین د حفاظت په خاطر او دوئ لره د پیغورونو ورکولو وغیره دګناه نه د بچ کولو په نیت دغه کار پرېښودل په هغه صورت کښې خو جائز دي کله چې دغه کار د شرعي مقصدونو نه وي او د حلال حرام څه دیني حکم دې پورې تړلې شوې نه وي ، اګر چې دغه کار پخپله ستائیلې شوې وي ، ددې مثال په حدیث پاك او د رسول کریم ﷺ په سنت کښې موجود دې نو رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د جاهلیت په زمانه کښې کله چې بیت الله شریف تعمیر کړې شو نو په کښې څو څیزونه د ابراهیمي بنا نه خلاف اوکړې شو .
① ړومبې دا چې دبیت الله شریف څه حصه د عمارت نه بهر همداسې پرېښودې شوې وه .
② دویمه دا چې په بنائې ابراهیمي ﷵ کښې د بیت الله شریف دوه دروازې وې یوه ئې مشرقي اوبله مغربي طرفته وه چې بیت الله شریف ته په داخلیدو او راوتلو کښې تکلیف نه وي . نو دې جاهلو خلقو دمغرب دروازه بالکل بنده کړه اودمشرق طرف والا دروازه ئې دومره پورته اولګوله چې دپوړئي [زینې] نه بغیر ورته داخلیدل نشو کیدلې اودا اول د زمکې فرش سره لګیدلې وه ، دې نه مقصد دا وو چې صرف هغه خلق داخلیدې شي چې چاته هغوئ به اجازت ورکولو .
رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې که ماسره دا خطره نه وې چې نوي مسلمانان به په غلطۍ کښې اخته شي نو بیت الله شریف به مې د ابراهیم ﷵ د بناء په شان جوړ کړې وو . داحدیث پاك په ټولو معتبرو کتابونو کښې موجود دې(۳) . دې نه معلومه شوه چې رسول کریم ﷺ خلق په غلط فهمۍ کښې د اخته کیدو نه ساتل ځکه ئې خپله اراده چې د شریعت تر مخه ستائیلې شوې وه پرېښوده او الله ﷻ پرې هیڅ ملامته اونه کړه چې د هغې نه ددغې عند الله

---

(۱) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٤٢٤، ٤٢٥
(۲) تفسیر روح المعاني: ج ١٦، ص ١٢٧
(۳) تفسیر ابن کثیر سورة البقرة: ١٢٧، ج ١، ص ٤٣٦، وصحیح البخاري، کتاب العلم، باب من ترک بعض الاختیار---الخ: ج ١، ص ٢٤

Scanned with Ca

مقبول کیدل هم معلوم شو مګر د بنائې ابراهیمی ﷺ مطابق بیت الله شریف د وباره جوړول داسې معامله نه وه چې شرعی څه مقصد پرې انحصار لرلو یا حلال او حرام ورسره تعلق لرلو.

په خلاف د زینب ﷺ د واقعې نه چې ورسره یو شرعی مقصد تړون لرلو ، هغه دا چې د جاهلیت د خراب رسم او باطل خیال تردید اوکړې شی چې د پرکتمی طلاقې کړې ښځې سره به ئې نکاح کول حرام ګنړل ، ولې چې د زمانې راسې جاری دا رسم هله ماتولې او ختمولې شو چې د هغې عملی ننداره ورکړې شی ، نو دې دپاره د زینب ﷺ دغه نکاح کول دالله تعالی د طرفه اوتاکلې شوه ، په دې تقریر سره دبیت الله شریف دنوی سره دجوړولو معامله او د زینب ﷺ نکاح کول دالله ﷻ په حکم سره ددې عملونو د ظاهری تعارض جواب اوشو.

او داسې معلومیږی چې رسول کریم ﷺ د هغې حکم الهی قولی تبلیغ کافی اوګنړلو کوم چې دسورة احزاب په رومبو آیتونو کښې راغلې دې او ددې عملی ننداړې ورکولو ته ئې اونه کتل څکه ئې سره دعلم او ارادې هغې لره پټ کړو ، الله تعالی په دې آیتونو کښې د هغې سمون راوستو او په دې شان ئې ښکاره کړل چې:

﴿لِكَيْلَا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِي أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ إِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا﴾ [نو مونږ تاته هغه په نکاح کړه دې دپاره چې د بیا دپاره مسلمانانو ته دهغه چا د ښځو په نکاح سره اخستلو کښې هیڅ تنګی پاتې نشی چې په څویتوب ئې نیولی وی کله چې ترې هغوی حاجت پوره کړی]

او د ﴿زَوَّجْنَاكَهَا﴾ لفظی معنی داده چې مونږ د هغوئ نکاح تاسو سره اوکړه ، دې نه ددې نکاح یو جدا خصوصیت هم معلوم شو چې دا الله ﷻ پخپله اوکړو او دعامو شرطونو لاندې رانه وستې شو ، او دا معنی ئې هم کیدې شی چې مونږ ددې نکاح حکم ورکړو چې د شرعی قاعدو او شرطونو مطابق دې اوکړې شی ، په دې بنا څینو مفسرینو رومبې او څینو دویم احتمال غوره کړې دې.

او د زینب ﷺ د نورو ښځو په وړاندې دا اوفرمائیل چې ائې بیبیانو! ستاسو نکاح خو ستاسو والدینو کړې ده او زما نکاح پخپله الله ﷻ په آسمان کښې اوکړه ،(۱) څنګه چې په روایتونو کښې راغلې دی ، دا په دواړو صورتونو صادقیږی البته دې نه رومبې صورت ښه واضح شو ، خو دویم صورت ورسره هم بې سمونه نه دې.

**د شبهو او اعتراضونو دجواب تمهید:** ﴿سُنَّةَ اللَّهِ فِي الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۚ وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ قَدَرًا مَقْدُورًا﴾ دا تمهید دې په دې نکاح باندې د راولاړیدونکو شکونو او شبهاتو ، هغه داسې چې هر کله د رسول کریم ﷺ نورې بیبیانې ددې نه وړاندې هم موجودې وې نو بیا ددې نکاح ضرورت څه پیښ شو؟

څکه فرمائی چې داسنت دالله تعالی دې چې محمد ﷺ سره خاص نه دې ، ددوئ نه وړاندې پیغمبرانو کښې هم جاری پاتې شوې دې . یعنې ددینی ښیګړو په خاطر هغوئ ته ډیرو بیبیانو سره دنکاح کولو اجازت ورکړې شوې وو ، په هغوئ کښې داؤد ﷺ او سلیمان ﷺ زیات مشهور دی چې د داؤد ﷺ سل او د سلیمان ﷺ درې سوه بیبیانې وې ، که ددینی مصلحتونو په بناء رسول کریم ﷺ ته هم د ډیرو بیبیانو کولو اجازت ورکړې شو نو څه لرې خبره نه ده او

(۱) سنن النسائی الکبری، رقم الحدیث: ۸۹۱۸، کتاب عشرة النساء، باب الافتخار.

Scanned with Ca

د پيغمبرئي دشان سره هم بې سموني نه لري. د پيغمبرئ او د تقوى شان سره هم بې جوړه نشي کيدې.
په آخرى جمله کښې ئې دا اوفرمائيل چې د نکاح معامله هم د عام رزق پشان د الله ﷻ د طرفه پريکړې خبره ده چې د چا نکاح به د چا سره کيږي ، په ازلي تقدير کښې چې څه ليکلې شوى دى هم هغه به کيږي ، په دې واقعه کښې د زيد ؓ او زينب ؓ مينځ کښې د طبيعتونو اختلاف ، د زيد خفګان ، بيا د طلاق ورکولو قصد ، دا ټول د دغې تکويني او تقديرى کار سلسلې دى.
دې پسې د هغې پيغمبرانو ؊ د خاص صفتونو بيان دې ، کومو ته چې د ګڼړو بيبيانو ساتلو اجازت ورکړې شوې وو ، فرمائى چې:
﴿الَّذِيْنَ يُبَلِّغُوْنَ رِسٰلٰتِ اللّٰهِ﴾[يعنى دا ټول هغه پيغمبران دى چې دالله ﷻ پيغامونه ئې خلقوته رسول]
**يو حکمت**: کيدېشى چې په دې کښې د پيغمبرانو ؊ د ګڼړو بيبيانو لرلو حکمت ته هم اشاره وى چې د دوئ ټول عملونه او قولونه امت ته رسيدل دى او د نارينوؤ د وخت يوه لويه حصه ، خپلو زنانوؤ مکانونو کښې ښځو او ماشومانو سره نه تيريږي. په دغې وخت کښې چې څۀ وحى نازله شى يا پخپله پيغمبر ﷺ څه حکم اوکړى يا څه عمل اوکړى ، دا هر څه د امت امانت دى ، چې د دغې بيبيانو په ذريعه امت ته په آسانه رسولې شى. نور صورتونه د مشکلاتو نه خالي نه دى ، ځکه د دوئ د بيبيانو کثرت غوره دې چې د دوئ د کورنى ژوند عملونه او قولونه او د دوئ ﷺ کورنې سيرت عام امت ته رسيدل آسان شى. والله اعلم.
د پيغمبرانو ؊ دويم صفت دا بيان کړې شوېدې چې: ﴿وَيَخْشَوْنَهٗ وَلَا يَخْشَوْنَ اَحَدًا اِلَّا اللّٰهَ﴾[او له ده نه بۀ ويريدل او د الله ﷻ نه سوا به دهچا نه نه ويريدل] په دې کښې دا هم داخل دى چې د دينى ښيګړو په خاطر د يو کار د پاره عملى تبليغ حکم ورته اوشى نو پرې عمل کولو کښې هيڅ قسم کوتاهى نه کوى ، که څوك ورته پيغورونه ورکوى نو هغوئ په کښې چرې هم کوتاهى نه کوى، او نه په کښې څه ويره کوى.
**يو اشکال او دهغې جواب**: دلته هر کله چې د ټولو پيغمبرانو ؊ دا حال بيان کړې شوې دې چې هغوئ ؊ د الله ﷻ نه سوا بل هيچا نه نه ويريږى نو دهغې نه په ړومبى آيت مبارك کښې د رسول کريم ﷺ په باره کښې دا ارشاد دې چې:
﴿تَخْشَى النَّاسَ﴾ [تاسو د خلقو نه ويريږئ] نو دا به څنګه درست شى ؟
د دې جواب دا دې چې په دې آيت مبارك کښې دا بيان شوې دې چې د تبليغ د رسالاتو باره کښې پيغمبران ؊ د غير الله نه نه ويريږى ، او رسول کريم ﷺ په داسې يو کار کښې د پيغور نه ويريدو چې هغه په ظاهره دنيوى وو ،تبليغ د رسالت سره دهغې تعلق نه وو، بيا کله چې په دغې آيتونو سره دا خبره واضحه شوه چې دا نکاح هم د عملى تبليغ او د رسالت يوه حصه ده نو دهغې نه پس ئې بيا د هيڅ قسم ويره د پيغورونو هم اونه کړه ، او دغه نکاح ئې په عمل کښې راوسته اګر چې ډيرو کافرانو اعتراضونه اوکړل او تر ننه پورې ئې کوى

Scanned with Ca

| |
|---|
| مَا كَانَ مُحَمَّدٌ |
| نه دي \| محمد ﷺ \| |
| محمد ستاسو \| |
| اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ |
| پلار د يو کس \| د نارينو ستاسو نه \| وليکن \| رسول د الله دي \| او آخري د پيغمبرانو دي \| |
| په سړو کښې د هيچا پلار نه دي \| هغه خو د الله ﷻ يو پيغمبر دي \| او آخري نبي دي |
| وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا |
| او دي الله \| په هر څيز باندې \| ښه عالم \| |
| او الله ﷻ ته هر څيز ښه معلوم دي |

## آسان ترجمه قرآن

(اے مسلمانانو) محمد (ﷺ) ستاسو د سړو نه د هيچا پلار نه دي، ليکن هغه د الله تعالیٰ رسول دي، او په ټولو نبيانو کښې د ټولو نه اخري نبي دي او الله تعالیٰ په هره خبره باندې پوهيدونکې دي.

## خلاصه تفسير

په وړاندې ايتونو کښې ئې د حضرت زينب رضي الله عنها د نکاح عملي تبليغ والې او د انبياؤ ﷺ سنتوالې او په دې حيثيت سره غوره والې ښودلې شوې وو اوس د اعتراض کوونکو جواب دې کومو چه به د انکاح بد ګڼړله بدې ردې به ئې وئيلې يعنی ﴿مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ﴾ [محمد] ﷺ [ستاسو په سړو کښې د چا پلار نه دي] يعني کوم خلق چه د نبي کريم ﷺ سره علاقه د اولاد والی نه لري لکه چه په دې ايت کښې ئې عامو صحابه کرامو رضي الله عنهم له مخاطب کړې دی فرمائي [رجالکم] يعني ستاسو په سړو کښې د چا پلار نه دې په دې کښې نسبت عامو خلقو طرف ته وشو او د نبي کريم ﷺ نه ئې نسبت قطع کړې شو په دې وجه د خپل خاندان په افرادو کښې د چا سړي پلار کيدل د دې منافي نه دی مطلب ئې دادې چه د عام امت د خلقو سره تاسو ﷺ ته داسې پلار ولی حاصله نه ده چه په څه صحيح دليل سره د دهٔ د طلاقې شوې بی بی سره د نکاح د حراموالي موجب وی ﴿وَلٰكِنْ﴾ [ليکن] البته يو بل قسم له روحاني پلار والې ضرور حاصل دې چنانچه ﴿رَّسُوْلَ اللّٰهِ﴾ [د الله رسول دې] او هر يو رسول د روحاني مربي والی په وجه د امت روحاني پلار وی [او] د اروحاني پلار والې ئې په دومره درجه کامل دې چه د ټولو رسولانو نه غوره افضل او اکمل دې چنانچه دوی ﷺ ﴿وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ﴾ د ټولو نبيانو په ختميدو باندې] او کوم نبي چه داسې وی هغه په روحاني پلار والی کښې د ټولو نه زيات وی يعني چه د دوی ﷺ د روحاني پلار والی سلسله به تر قيامته پورې وی چه د دې په نتيجه کښې به د دوی ﷺ روحاني اولاد د ټولو نه زيات وی مطلب دادې چه د امت د پاره ستاسو ﷺ پلار والې جسماني او نسبي نه دی چه د نکاح د حرمت سره متعلق وی بلکه پلار والې روحاني دې په دې د متبنی خوئ د طلاقې شوې سره نکاح څه قابل اعتراض نه دې بلکه د دې روحاني پلار والی تقاضا داده چه ټول خلق په تامکمل اعتماد او اعتقاد ساتی او ستا په هيڅ قول او فعل باند شک او شبهه نه کوی [او] که د اوسوسه وی چه د انکاح ناجائز خو نه وه ليکن که نه وې شوې نو

Scanned with Ca

غوره به وه چه خلقو ته د اعتراض او لعن طعن موقع نه وې ملاوشوې نو په دې پوهيدل پكار دي چه﴿وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا﴾[الله تعالى] د [هرشي] د وجود ياعدم مصلحت[لره ښه پيژني]

## معارف او مسائل

دې آيت كښې دهغې خلقو خيال رد كړې شوې دې چې خپل جاهليت رسم مطابق به ئې زيد بن حارثه د رسول كريم ﷺ خوئې بللو او د هغوئ رضي الله عنه طلاقې كړې بي بي زينب رضي الله عنها سره په نكاح كولو سره به ئې په رسول كريم ﷺ بد وئيل او پيغورونه به يې وركول چې ګني رسول كريم ﷺ د خپل خوئي د بي بي سره نكاح اوكړه ، د دې د رد كولو دپاره دومره وئيل كافي وو چې رسول كريم ﷺ د زيد رضي الله عنه پلار نه دې بلكه دهغوئ رضي الله عنه پلار حارثه دې ، خو د مبالغې اوتاكيد په غرض ئې اوفرمائيل چې : ﴿مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ﴾[يعني محمد ﷺ ستاسو په سړو كښې دهيچا پلار نه دې] نو دچا چې په اولاد كښې څوك سړې هم نه وي هغه ته دا پيغور وركول څنګه صحيح كيدښې چې د هغه څوك خوئي شته او دهغه طلاقه شوې ښځه د رسول كريم ﷺ دپاره حرام ده كله چې هغه خوئي طلاق وركړي.

ددې مضمون بيانولو د پاره لنډ الفاظ دا وو چې: ﴿اَبَآ اَحَدٍ مِّنْكُمْ﴾ يې اووئيل وې خو كله چې رجال لفظ په كښې اضافه كړې شو نو دا شبه لرې كړې شوه چې رسول كريم ﷺ خو دڅلور خامنو والد دې ، درې خامن ئې د خديجه رضي الله عنها نه وو چې قاسم ، طيب او طاهر وو ، او څلورم ئې د ماريه قبطيه رضي الله عنها نه ابراهيم وو ، دا څلور واړه په ماشوموالى كښې وفات شوى وو. په دې كښې هيڅ يو هم د رجال حد ته نه وو رسيدلې ، او دا هم وئيلې شي چې ددې آيت د نازليدو په وخت د رسول كريم ﷺ هيڅ يو خوئي نه وو. قاسم ، طيب او طاهر وفات شوى وو او ابراهيم لا پيدا شوې نه وو د مخالفينو د اعتراض اوپيغور جواب هم په دې جمله سره شوې وو مګر دې پسې د نورو شبهو د لرې كولو دپاره ئې اوفرمائيل چې:

﴿وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ﴾ ، د ﴿لٰكِنْ﴾ حرف په عربى ژبه كښې دې دپاره راځي چې كه په رومبى كلام كښې څه شبه راپورته كيدې شي نو هغه په دې سره لرې كولې شي ، لكه هر كله چې دلته دا اوفرمائيلې شو چې رسول كريم ﷺ په تاسو كښې د چا پلار نه دې نو دا شبه راپورته كيدې شوه چې هر نبى او رسول ﷺ د خپل امت پلار وى ، په دې لحاظ رسول كريم ﷺ هم د ټولو سړو څه چې دهر امتى پلار دې نو د پلارولۍ نسبت نه ئې انكار كول ګويا د پيغمبرۍ نه انكار كول وو.

ددې جواب د ﴿لٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ﴾ لفظ سره وركړې شو چې حقيقى او نسبى پلار كيدل يو خانله څيز دې چې په دې باندې د نكاح حرام كيدلو او حلاليدو احكام عائد كيږى او په حيثيت د نبوت امت روحانى پلار كيدل بل څيز دې چې دا احكام دهغې متعلق نه دى. نو دې ټولې جملې مطلب دا شو چې نبى كريم ﷺ د امت په سړو كښې د چا نسبى پلار نه دې خو روحانى پلار د هر چا دې.

په دې جواب سره د يو بل پيغور جواب هم وركړې شو چې مشركانو به وئيل چې رسول كريم ﷺ ميراث يعنى مقطوع النسل دې هيڅ نارينه اولاد ئې نشته دې چې نسب ئې پرې چليږى او د رسول كريم ﷺ پيغام وړاندې اورسى، خو ورځې پس به ئې هر څۀ ختم شي. دې الفاظو دا ښكاره كړل چې اګر چې د رسول كريم ﷺ نارينه نسبى اولاد نشته خو دپيغمبرۍ د پيغام

Scanned with Ca

خورولو دپاره د نسبي اولاد ضرورت نه وي بلکه د غه کار روحاني اولاد چلوي ،او چونکه دوئ ﷺ رسول دی او رسول د امت روحاني پلار وي. په دې بنا رسول کريم ﷺ په دنيا کښې د روحاني پلار په حيثيت د هر چا نه د ګڼراولاد روحاني پلار دې. چې تر قيامته پورې ئې ټول امت اولاد دې.

هر کله چې دلته د رسول کريم ﷺ د پيغمبرئ بيان هم را غلو او په دې منصب کښې رسول کريم ﷺ د ټولو پيغمبرانو ﷺ نه زياته لوړه مرتبه لرى نو دغه شان ئې په ﴿خَاتَمَ النَّبِيِّنَ﴾ سره ښکاره کړې شو.

خَاتِمْ او خَاتَمْ کښې دوه قراتونه دی نو امام حسن ﷺ او عاصم ﷺ ، خاتَم په زور سره لوستې دې او نورو اَمامانو خاتِم په زير سره لوستې دې ، خو په دواړو قرآتونو کښې ددې معنى يو شان داسې ده چې دواړه د آخر معنى هم ورکوى او د مهر معنى هم ورکوى خو د دويمې معنى يعنى مهر نتيجه هم آخر څکه ده چې مهر د هر څيز د بندولو دپاره په آخر کښې لګولې شى، د دواړو قراتونو دواړه معنې دعربى په کتابونو کښې بيان شوى دى د لغت د کتابونو نومونه د ادى: قاموس ، صحاح ، لسان العرب ، تاج العروس وغيره[1] . هم دغه وجه ده چې په تفسير روح المعانى کښې د خاتم معنى مهر کړې شوې ده چجې حاصل ئې هم هغه آخر راوځى ، د روح ا لمعانى الفاظ دادى چې:

(²)والخاتم اسم آلة لما يختم به كالطابع لما يطبع به فمعنى خاتم النبيين الذي ختم النبيون به ومآله آخر النبيين (³)

هم دا مضمون په تفسير بيضاوى او تفسير احمدى کښې هم راغلې دې او امام راغب ﷺ په مفردات القرآن کښې فرمائيلى دى چې:

﴿وخاتم النبوة لانه ختم النبوة اى تممها بمجيئه﴾[يعنى خاتم النبوة ورته څکه وئيلې شى چې رسول کريم ﷺ په راتلو سره نبوت ختم کړو](⁴).

اوپه محکم ابن سيده کښې راغلى دى چې: ﴿وخاتم كل شئ وخاتمته عاقبته واخره﴾(⁵)[د هر څيز خاتم او خاتمه دهغې انجام او آخر ته وئيلې شى]

خلاصه دا شوه چې خاتم د تاء په زور سره او زير دواړو سره دا معنى لرى چې رسول کريم ﷺ د پيغمبرانو ﷺ ختموؤنکې دې ، په دې لحاظ سره رسول کريم ﷺ د ټولو په آخر کښې پيغمبر کړې شوې دې.

خاتم الانبياء داسې يو صفت دې چې په نبوت او رسالت کښې د رسول کريم ﷺ ډير لوړ فضيلت او خصوصيت ښکاره کوى. ولې چې عموما په هر څيز کښې درجه په درجه ترقى کيږى

---

[1] ) لسان العرب، مادة ختم: ج ۱۲، ص ۱۶۳، وتاج العروس، فصل الخاء: ج ۱،ص ۷۶۸۷

[2] ) ترجمه: 'خاتم' اسم آله ده او هغه څيز ته وائى چه کوم سره مهر لګولى شى، لکه 'طابع' هغه څيز ته وائى کوم سره چه مهر لګولى شي- نو 'خاتم النبيين' معنى دا ده چه هغه څيز کوم سره چه انبياء ختم کړى شوه، خلاصه دا چه آخرى نبى دى-

[3] ) روح المعانى تحت هذه الآية: ج ۲۲، ص ۳٤

[4] ) مفردات القرآن للأصفهانى، كتاب الخاء، ج ۱، ص ۱٤۳

[5] ) المحكم والمحيط الاعظم لا بن سيده: ج ۵،ص ۱۵٦، حرف الخاء-

Scanned with Ca

او انتها ته په رسيدو هغه مکمل کيږي ، هم دغه نتيجه اصل مقصود وي ، قرآن عظيم الشان پخپله دا واضح کړی دی فرمائی چې : ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي﴾ [يعنی نن مې ستاسو دين مکمل کړو او خپل نعمت مې درباندې پوره کړو]

د وړاندينو پيغمبرانو ﷺ دينونه هم پخپلو خپلو وختونو کښې مکمل وو ،نيمگړی نه وو ، خو کمال مطلق دين مصطفوی ﷺ ته حاصل شو چې اولين او آخرين دپاره حجت او ترقيامته پوې چليدونکې دين دې. دلته د خاتم النبين د صفت په اضافه کولو سره ددې مضمون هم نور زيات وضاحت او تکميل اوشو چې رسول کريم ﷺ ته مقطوع النسل او ميراث وئيل جهالت ځکه دې چې رسول کريم ﷺ د ټول امت د پلار کيدو شان لری او دخاتم النبين لفظ دا ښائی چې د رسول کريم ﷺ نه پس تر قيامته پورې ټول راتلونکی نسلونه او قومونه به هم د رسول کريم ﷺ په امت کښې شامل وی ، په دې بنا د رسول کريم ﷺ د امت شمير به هم د نورو ټولو امتونو نه زيات وی ، او د رسول کريم ﷺ روحانی اولاد به هم د نورو پيغمبرانو ﷺ په نسبت زيات وی .

د خاتم النبين صفت دا هم ښائی چې د رسول کريم ﷺ شفقت په خپل روحانی تولاد ټول امت باندې د نور پيغمبرانو ﷺ نه زيات وی او رسول کريم ﷺ به تر قيامته پورې د راپيښيدونکو ضرورتونو واضح کولو پوره انتظام کوی ځکه چې رسول کريم ﷺ نه پس بل څوك پيغمبر او بله وحی په دنيا کښې راتلونکی نشته دې پخلاف د پخوانو پيغمبرانو ﷺ چې هغوئ سره به دا فکر مل نه وو هغوئ پوهيدل چې کله په قوم کښې گمراهی خوريږی نو زمونږ نه پس نور انبياء به راځی هغوئ به ددې اصلاح کوی ، خو خاتم الانبياء ﷺ سره دا فکر مل شوې وو چې تر قيامته پورې به د راپيښيدونکو حالاتو باره کښې امت ته هدايت ورکول دی ، نو په دې باندې د رسول کريم ﷺ احاديث گواه دی چې رسول کريم ﷺ پسې کوم پيشوايان خلق چې راتلونکی وو په هغې کښې ئې د اکثرو نومونه اوخودل ، دغسې د گمراهئ د مشرانو حالات او پتې ئې داسې واضحه کړی دی چې په لږ غور کولو سره هم په کښې چاته څه شبه نه پاتې کيږی. ځکه خو رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې : ﴿انی ترکتکم علی شريعة بيضاء ليلها ونهارها سواء﴾[1] [ما تاسو په داسې روښانه لار پريښودئی چې په کښې شپه او ورځ برابر دی] يعنی هيڅ وخت هم په کښې د گمراهئ خطره نشته دې .

په دې آيت مبارك کښې دې ته هم خيال کول پکار دی چې د ې نه وړاندې د رسول کريم ﷺ صفت رسول راغلې دې نو پکار دا وو چې دخاتم النبيين په ځائې ورته خاتم الرسل يا ختم الرسل اووئيلې شوې وې .

مگر قرآن کريم ددې په ځائې د خاتم النبين لفظ اختيار کړو؟ ددې وجه داده چې د جمهورو علماء کرامو ﷺ په نزد په نبی او رسول کښې يو فرق دې چې نبی هغه دې کوم ته چې الله ﷻ وحی راليږی او د خلقو اصلاح ورته حواله شی ، خواه دې دپاره مستقل کتاب او مستقل شريعت ورکړی يا د بل نبی د کتاب اوشريعت په تابعدارئ کښې د خلقو اصلاح کوی لکه هارون ﷺ چې د موسی ﷺ د کتاب اوشريعت په تابعدارئ کښې خلقو ته په هدايت کولو

---

[1] سنن ابن ماجة، المقدمة، باب اتباع سنة رسول الله صلى الله عليه وسلم (باختلاف يسير) ج ۱،ص ۲

Scanned with Ca

باندې مامور وو. البته رسول خاص هغه نبي ته وئیلې شي چې ورته مستقل کتاب او مستقل شریعت ورکړې شوې وی په دې بناء دنبی لفظ د رسول د لفظ په نسبت زیات عام شو ، نو د آیت مبارك مطلب دا شو چې رسول کریم ﷺ د انبیاء کرامو ﷺ ختموؤنکې او په ټولو کښې آخری د ې که هغه د مستقل شریعت خاوند وی یا صرف د بل نبي تابع وی دې نه معلومه شوه چې د نبي ټول قسمونه په دوئ باندې ختم شو . دې نه پس به هیڅوك نبي نشي راتلې ، امام ابن کثیر ﷫ په خپل تفسیر کښې فرمائیلي دی چې:

فهذه الاية نص فى انه لا نبي بعده واذا لا نبي بعده فلا رسول بالطريق الاولى لان مقام الرسالة اخص من مقام النبوة فان كل رسول نبي ولا ينعكس بذالك وردت الاحاديث المتواترة عن رسول ﷺ من حديث جماعة من الصحابة (۱)

دا آیت مبارك ددې عقیدې دپاره ښکاره نص دې چې رسول کریم ﷺ نه پس بل څوك نبي نشته او چې کله نبي شته نو رسول به په سر کښې نه وی څکه لفظ نبي عام دې او لفظ رسول خاص دې او دا هغه عقیده ده چې متواتر احادیث پرې ګواه دی چې د صحابه کرامو ﷺ د یولوئې جماعت په روایت سره تر مونږه رارسیدلې دی.

ددې آیت لفظي تشریح په څه قدرې تفصیل سره څکه او کړې شوه چې زمونږ د ملك مرزا قادیانی چې د پیغمبرئی دعوه کړې وه ، دې آیت لره پخپله لار کښې خنډ ګڼړلې دې او ددې په تفسیر کښې ئې قسما قسم بدلونونه او احتمالونه راپیدا کړی دی ، الحمد لله زما په دې تقریر سره به ددغې ټولو جواب کیږی .

**د ختم نبوت مسئله** :: په دې مسئله باندې د صحابه کرامو ﷺ نه تر ننه پورې د هر دور مسلمانانو اتفاق او اجماع ده چې رسول کریم ﷺ آخری رسول او خاتم النبیین دې ، د رسول کریم ﷺ نه پس هیڅ یو نبي په دنیا کښې راتلونکې نشي کیدې . نو هر هغه څوك دروغژن او کافر دې چې دنبوت او پیغمبرئ دعوی کوی . په دې وجه د تفصیلي بحث کولو ضرورت دلته نه وو لیکن په دې مسئله کښې قادیانانو دا زور لګولې دې چې د مسلمانانو په زړونو کښې شکونه او شبهې پیدا شی ، په سوؤنو لوئې واړه کتابونه ئې دې دپاره چهاپ کړی دی چې کم عقل خلق ګمراه کړی ، څکه مې ددې مسئلې پوره تفصیل په یوه مستقل رساله ختم نبوت کښې لیکلی دې ، په هغې کښې یو سل آیتونه ، دوۀ سوه زیات احادیث او په سوؤنو اقوال او آثار دمتقدمینو او متاخرینو علماء کرامو ﷭ ذکر شوی دی چې ورسره د امسئله واضحه کړې شوې ده او د قادیانی دهوکې د شبهې جواب ورکړې شوې دې دلته په دې کښې خو ضروری خبرې لیکلې شی .

**د نبي کریم ﷺ خاتم النبیین کیدو سره په آخره زمانه کښې دعیسی ﷷ راکوزیدل بې سوبه نه دی** :: هر کله چې د قرآن عظیم الشان په ګڼړو آیتونو کښې او متواترو احادیثو سره دا ثابته ده چې د قیامت نه وړاندې په آخری زمانه کښې به عیسی ﷷ بیا دنیا ته تشریف راوړی او دیر لوئې دجال به وژنی او ددغې وخت هره ګمراهی به ختمه کړی چې تفصیل ئې زما په رساله [التصريح بما تواتر فى نزول المسيح] کښې بیان شوې دې مرزا قادیانی دې نه انکار کوی چې عیسی ﷷ

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية: ج ۶، ص ۴۲۸

Scanned with Ca

ژوندې آسمان ته خېژولې شوې دې ، بيا په آخره زمانه کښې به تشريف راوړي. حالانکه د قرآن عظيم الشان او سنت د بې شميره نصوصو نه دا ثابت دی ، اوبيا هم قادياني دعوى اوکړه چې زه مسيح موعود يم ، دې دپاره ئې دليل دا پيش کړو چې که د عيسى عليه السلام بن مريم دنيا ته بيا راتلل اومنلې شي نو دې سره به بې سمونی وی چې رسول کريم ﷺ خاتم النبيين دی.

ددې جواب داسې واضح دې چې دخاتم النبيين او آخرالنبيين معنى داده چې د رسول کريم ﷺ نه پس به بل پيغمبر بل نشی کيدې. ددې نه دا لازميږی چې د رسول کريم ﷺ نه وړاندې چاته چې پيغمبرى ورکړې شوې ده هغوئ ﷺ نه به پيغمبرى واپس واخستې شی يا به ګنی څوك دغسې پيغمبر دنيا ته واپس نشی راتلې ، البته د رسول کريم ﷺ نه پس به چې څوك د رسول کريم ﷺ د امت د اصلاح دپاره او تبليغ دپاره راځی ، د هغوئ عليه السلام پيغمبرى به پخپل حال پاتې وی او په دې امت کښې به د اصلاح خدمت هم درسول ﷺ د تعليماتو مطابق، لکه چې په صحيح احاديثو کښې په ښکاره راغلی دی ، امام ابن کثير رحمه الله ددې آيت مبارك په تفسير کښې اوفرمائيل چې:

والمراد بكونه عليه السلام خاتمهم انقطاع حدوث وصف النبوة فى احد من الثقلين بعد تحليته عليه السلام بها فى هذه النشاة ولا يقدح فى ذالك ما اجمعت عليه الامة واشتهرت فيه الاخبار ولعلها بلغت مبلغ التواتر المعنوى ونطق به الكتاب على قول ووجب الايمان به واكفر منكره كالفلاسفة من نزول عيسى عليه السلام اخرالزمان لانه كان نبيا قبل ان يحلى نبينا ﷺ بالنبوة فى هذه النشاة[1]

د رسول کريم ﷺ د خاتم الانبياء کيدلو دا مراد دې چې د نبوت صفت پيدا کيدل د هغوئ ﷺ نه پس بند شو اوس به چاته هم دغه صفت او منصب نشی ورکولې ، دې نه په دې مسئله باندې هيڅ اثر نه پريوزی چې پرې د امت اجماع ده او قرآن عظيم الشان هم پرې ناطق دې او درسول کريم ﷺ احاديث چې تقريبا د تواتر درجې ته رسيدلی دی په دې ګواه دی هغه دا چې عيسى عليه السلام به په آخره زمانه کښې نازليږی ولې چې هغوئ عليه السلام ته زمونږ د پيغمبر ﷺ نه وړاندې پيغمبرى ورکړې شوې ده .

**د نبوت د مفهوم بدلول او د ظلی بروزی نبوت ایجاد:** د نبوت دې دعوى کوونکی دخپل نبوت دپاره يوه نوې لاره راؤويستله چې د نبوت يو نوې قسم ئې راؤښکلو چې د قرآن عظيم الشان اوسنت نه ئې هيڅ ثبوت نشی کيدې ، او بيا ئې دا اوئيل چې دا قسم نبوت دقرآنی حکم د ختم نبوت سره بې سمونی نه ده . ددې خلاصه داده چې هغه د نبوت په مفهوم کښې هغه لار اختيار کړه چې په هندوانو او نورو قومونو کښې مشهوره ده. هغه داسې يو کس دبل کس په شکل وصورت کښې راتلې شی ، اوبيا ئې دا اووئيل چې څوك چې د رسول کريم ﷺ دمکمل اطاعت په وجه رسول کريم ﷺ هم رنګ او هم شکل شوی وی نو د داسې کس راتلل پخپله د رسول کريم ﷺ راتلل دی ، دا په حقيقت کښې د رسول کريم ﷺ سيورې او ځرګنديدل دی، نو په دې سره د ختم نبوت په عقيده باندې څه اثر نه غورزيږی

خو اول په اسلام کښې او دا نوې لفظ دکومه ځايه راغلو ؟ ددې هيڅ ثبوت نشته ، دې نه سوا د ختم نبوت مسئله هر کله چې په اسلامی عقيدو کښې يوه بنيادی عقيده ده ځکه دې لره

[1] ) ما وجدت فى تفسير ابن كثير، بل وجدت فى روح المعانى تحت هذه الآية: ج ١٦، ص ١٤٢

Scanned with Ca

رسول کریم ﷺ مختلفو وختونو کښې په مختلفو عنواناتو سره په دې شان واضح کړې ده چې د چا بدلون راوستل په کښې نشي چلېدې ، ددې جواب پوره مفصل زما په ختم نبوت نومې کتاب کښې کتلې شي ، دلته یو څو څیزونه د ضرورت په اندازه پیش کول ضروري ګڼم.
صحیح بخاري اومسلم وغیره ټولو کتابونو کښې د احادیثو د ابی هریره رضی الله عنه دا روایت په صحیح اسناد سره راغلې دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې:

ان مثلی ومثل الانبیاء علیهم السلام من قبلی کمثل رجل بنی بیتا فأحسنه واجمله الا موضع لبنة من زاویة فجعل الناس یطوفون به ویعجبون له ویقولون هلا وضعت هذه اللبنة وانا خاتم النبیین [رواه احمد والنسائی والترمذی][1] وفی بعض الفاظه فکنت انا سددت موضع اللبنة وختم بی البنیان

زما او زما نه د وړاندې پیغمبرانو ﷺ مثال د هغه سړی پشان دې چې یو مکان ئې جوړ کړې وی او هغه ئې مضبوط اوښائسته کړې وی خو دهغې ددیوال په ګټ کښې دیو خښتې ځائې یې خالی پرېښې وی چې خلق ئې د کتو دپاره راځی دغه تعمیر خوښ کړی خو ټول داوائی چې دې مکان جوړونکی په کښې ولې دغه یوه خښته ځائې پرېښودې دې چې تعمیر به ورسره مکمل شوې وو ، رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې داآخری خښته زه یم او په څېنې الفاظو دحدیث کښې راغلی دی چې ما دغه خالی ځائې مکمل کړو او دنبوت محل مې مکمل کړو [احمد ، نسائی ، ترمذی]

په اعلی پیمانه ددې مثال ورکولو حاصل دادې چې پغمبری د یو عالیشان محل پشان ده چې ممبران ئې پیغمبران ﷺ دی ، د رسول کریم ﷺ نه وړاندې دامحل بالکل تیار شوې وو خو دیو خښتې ځائې د نه لګیدو نه سوا بل هیڅ کمې ، په دغې محل کښې نه شو لیدلې ، رسول کریم ﷺ دغه ځائې مکمل کړو اودپیغمبرئ محل ئې تیار کړو. اوس په دې کښې نه څه بل نبوت ځائې کیدېشی او نه رسالت .او که د نبوت یارسالت څه نور قسمونه اومنلې شی نو د هغې دپاره په دې محل کښې هیڅ ځائې نشته .
د صحیح بخاری ، مسلم ، او مسند احمد وغیره په حواله د ابی هریره رضی الله عنه په روایت رسول کریم ﷺ فرمائیلی دی چې:

کانت بنو اسرائیل تسوسهم الانبیاء کلما هلك نبی خلفه نبی وانه لانبی بعدی وسیکون خلفاء فیکثرون [الحدیث][2]

د بنی اسرائیلو سیاست او انتظام پخپله د پیغمبرانو ﷺ په لاس کښې وو کله به چې یو نبی وفات شو نو بل نبی به د هغه په ځائې تشریف راوړو او زمانه پس څوك نبی نشته البته زما خلیفګان به وی چې زیات وی .

دې حدیث پاك دا هم واضح شو چې هرکله نبی کریم خاتم النبین دې او د نبی کریم ﷺ څخه وروستو به بل نبی نه رازی نو د امت د هدایت کار به څوك چلوی ؟ ددې متعلق یې اوفرمائیل

[1]) صحیح البخاری، کتاب المناقب، باب خاتم النبیین صلی الله علیه وسلم: ج ۲، ص ۵۰۱، وجامع الترمذی، أبواب الامثال، باب ما جا فی مثل النبی صلی الله علیه وسلم والانبیا-الخ ج ۲، ص ۱۱۳، ومسند أحمد، مسند ابی هریرة رضی الله تعالی عنه، رقم الحدیث: ۷۶۹٤

[2]) صحیح البخاری، کتاب الانبیاء، باب ما ذکر عن بنی اسرائیل: ج ۱، ص ٤۹۱، وصحیح مسلم، کتاب الامارة، باب وجوب الوفاء ببیعة الخلفا الاول، ومسند أحمد، مسند ابی هریرة رضی الله عنه، رقم الحدیث: ۸۱۸۰

Scanned with Ca

چې د نبی کریم ﷺ څخه وروستو به د امت د تعلیم او هدایت انتظام به د نبی کریم ﷺ خلفاء کوی چې د نبی کریم ﷺ خلیفګان به وی او نبوت مقاصد به پوره کوی ، که ظلی بروزی څه د نبوقسم وې نو یا غیر تشریعی نبوت باقې وې نو ضرور به وو چې دې ځائې کښې دهغه ذکر شوې وې، چې اګر چې نبوت ختم شو مګر فلانې قسم د نبوت باقی دې چې دې سره به د دنیا انتظام کیږی.

لیکن دې حدیث پاك کښې په ښکاره الفاظو سره اوفرمائیلې شو چې د نبوت هیڅ قسم د رسول کریم ﷺ نه پس پاتې نشو، په وړاندینو امتونو کښې چې کوم دینی کار به پیغمبرانو ﷺ د بنی اسرائیلو کولو هغه به اوس د رسول کریم (ص) خلیفګان په امت کښې سرته رسوی.

د صحیح بخاری اومسلم په حواله د ابی هریره (ص) په روایت په حدیث مرفوع کښې داسې راغلی دی: ﴿لم یبق من النبوة الا المبشرات﴾ [1]

د پیغمبرئ څښې بل هیڅ څیز سوا د مبشراتو نه پاتې نشو.

په مسند احمد وغیره کښې د عائشه صدیقه رضی الله عنها او ام کرز کعبیه رضی الله عنها په روایت رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې:

لایبقی بعدی من النبوة شیٔ الا المبشرات قالوا یا رسول الله ﷺ وما المبشرات قال الرؤیا الصالحة یرىٰها المسلم اوترى له [2]

زما نه پس د پیغمبرئ څښې هیڅ پاتې نشو ، سوا د مبشراتو نه ، صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو یارسول الله ﷺ مبشرات څه ته وائی ، وې فرمائیل چې ریښتونی خوبونه چې مسلمان ئې پخپله اووینی یا بل مسلمان دده په باره کښې اووینی.

[ طبرانی دې حدیث پاك ته صحیح وئیلی دی کذا فی کنز]

دې حدیث پاك نه هم ښکاره شو چې د هیڅ قسم پیغمبرئی اوس ګنجائش نشته دې . که هغه تشریعی وی اوکه غیر تشریعی ، او د مرزا قادیانی په قول که ظلی وی یابروزی وی ، صرف ریښتیا خوبونه به خلق وینی چې په هغې به ورته څه معلومات حاصلیږی.

او په مسند احمد او ترمذی کښې د انس بن مالك رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل : ﴿ان الرسالة والنبوة قد انقطعت فلا رسول بعدی ولا نبی﴾

ترجمه: بیشکه رسالت او نبوت زمانه پس ختم شوې دې . زمانه پس به نه څوك رسول وی او نه څوك نبی. [ترمذی ، روایت کړو او ورته ئې صحیح حدیث وئیلې دې] [3]

دې حدیث هم واضح کړل چې غیر تشریعی نبوت هم د رسول کریم ﷺ نه پس باقی نه دې ، اوظلی، بروزی قسم نبوت خو چرته هډو شته دې نه، په اسلام کښې خودا د سره پیژندلې نشی.

دلته د ختم نبوت دمسئلې احادیث راجمع کول مقصود نه دی ، داځو مې د دوؤ سوؤ نه زیات د ختم نبوت په رساله کښې راجمع کړی دی . صرف په یو څو احادیثو سره مې دا اوخودل او ددې

[1] ) صحیح البخاری، کتاب التعبیر، باب المبشرات: ج ۲، ص ۱۰۳۵
[2] ) مسند أحمد، حدیث السیدة عائشة رضی الله تعالی عنها، رقم الحدیث: ۲۵۷۱۹
[3] ) جامع الترمذی، أبواب الرویا، باب ذهبت النبوة–الخ: ج ۲، ص ۵۳، ومسند أحمد، مسند انس بن مالك رضی الله عنه رقم الحدیث: ١٤١٧٧

Scanned with Ca

نه مې مقصود دا وو چې مرزائی قادیانی د نبوت د شته والی ثابتولو په غرض کوم ظلی ، بروزی عنوان ایجاد کړې دې ، اول خو په اسلام کښې ددې څه بنیاد نشته دې ، بالفرض که دا وې هم ، نو دې احادیثو ښه په ښکاره اوښودل چې رسول کریم ﷺ نه بس د نبوت هیڅ قسم ، په هیڅ شان سره پاتې نه دې.

هم داوجه ده چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه تر اوسه پورې د مسلمان امت د ټولو طبقو د خلقو اجماع په دې عقیده شوې ده چې رسول کریم ﷺ نه پس هیڅوك ، هیڅ قسم نبی یا رسول نشی کیدې ، داسې دعوی کوونکی دروغژن د قرآن عظیم الشان نه منکر او کافر دې ، اود صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع د ټولو نه اول هم په دې مسئله اوشوه . د خلیفهٔ اول ابوبکر صدیق رضی الله عنه په زمانه د خلافت کښې د نبوت د عوی کوونکئ مسیلمه کذاب سره جهاد اوکړې شو هغه اودهغه منونکی اووژلې شو.

د پخوانو امامانو رحمهم الله او د امت علماء کرامو رحمهم الله اقوال او تصریحات هم ، په دې معامله کښې د ختم نبوت نومې رسالې په دریمه حصه کښې ښه په تفصیل سره لیکلې شوی دی ، دلته یو څو کلمات نقل کولې شی :

اخبرالله تعالى فى كتابه ورسول الله ﷺ فى السنة المتواترة عنه انه لانبى بعده ليعلمون ان كل من ادعى هذا المقام بعده فهوكذاب افاك دجال ضال مضل ولوحرق وشعبذواتى بأنواع السحروالطلاسم والنيرنجيات فكلها محال وضلال عند اولى الالباب كما اجرى الله سبحانه على يدالاسود العنسى باليمن ومسيلمة الكذاب باليمامة من الاحوال الفاسدة والاقوال الباردة ما علم كل ذى لب وفهم وحجى انهما كاذبان ضالان لعنهما الله تعالى وكذالك كل مدع لذالك الى يوم القيامة حتى يختموا بالمسيح الدجال [ابن كثير رحمه الله ][1]

الله ﷻ په خپل کتاب کښې او رسول کریم ﷺ په خپلو متواترو احادیثو کښې خبر ورکړې دې چې درسول کریم ﷺ نه پس هیڅ قسم نبی نشته دپاره ددې چې خلق پوهه شی چې درسول کریم ﷺ نه پس څوك چې ددې مقام دعوی کوی هغه سخت دروغژن ، دخانه خبرې جوړونکې ، دجال ، ګمراه ، او ګمراه کوونکې دې ، اګر چې هغه هرڅومره ټوټکې اوکړی قسماقسم جادو او کړی نظربندی اوکړی او دلاس چالاکی ښکاره کړی چې ټول په ټوله محال او دعقل مندو په نزد ګمراهی ده لکه چې الله ﷻ د اسود عنسی په لاس په یمن کښې او د مسیلمه کذاب په لاس په یمامه کښې دغسې ګډوډ حالات او بیهوده اقوال ښکاره کړل چې دهغې په لیدو سره هر دعقل اوپوهې خاوند په دې پوهه شو چې دا دواړه دروغژن اوګمراه دی ، الله ﷻ دې په دواړو لعنت اوکړی. دغسې هغه څوك هم چې تر قیامته پورې د پیغمبرئ دعوی کوی نو هغه به دروغژنو اتو کافروی. تر دې چې دپیغمبرانو ددعویدارو دا سلسله به په مسیح دجال باندې ختمه شی.

امام غزالی رحمه الله پخپل کتاب الاقتصاد فی الاعتقاد کښې ددې آیت مبارك د تفسیر اودختم نبوت د عقیدې باره کښې لیکلی دی چې :

وليس فيه تاويل ولاتخصيص و من اوله بتخصيص فكلامه من ا

په دې آیت مبارك کښې د څه تاویل یا تخصیص څه

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤٣١

Scanned with Ca

| | |
|---|---|
| لهذيان لايمنع الحكم بتكفيره لانه مكذب لهذا النص الذي اجمعت الامة على انه غير مأول ولا مخصوص | ځائې نښته او څوك چې په كښې تاويل كولو سره تخصيص راؤباسي نو خبرې ئې د ماليخوليا دى او دا تاويل ئې ددې لار نشي بندولې چې كافر ورته او وئيلې شي ځكه چې دې دې آيت لره دروغ بولى كوم چې د امت د اجماع سره دا موؤل يا مخصوص نه دې |

او قاضى عياض رحمه الله پخپل كتاب شفاء كښې د رسول كريم ﷺ نه پس د نبوت دعويدار ته كافر ، سخت دروغژن او رسول كريم ﷺ لره دروغژن بلونكى او ددې آيت مبارك منكر فرمائيلې دې الفاظ دادى:

| | |
|---|---|
| واجمعت الامة على حمل هذا الكلام على ظاهره وان مفهومه المراد به دون تأويل ولا تخصيص فلاشك في كفر هولآء الطوائف كلها قطعا اجماعا وسمعا (١) | امت اجماع كړې ده چې دا كلام دې په خپل ظاهر محمول كړې شى او په دې باندې چې ددې آيت مبارك نفس مفهوم مراد دې بغير د څه تاويل يا تخصيص نه ځكه ددې ټولو فرقو په كفر كښې څه شك نشته بلكه ددوئ كفر په قطعى ډول په اجماع د امت او نقل يعنى كتاب او سنت سره ثابت دې. |

د ختم نبوت د رسالې په دريمه حصه كښې ددين د امامانو او دهرې طبقې د لويو علماء كرامو رحمهم الله ډير اقوال راجمع كړې شوى دى او د لته چې كوم نقل شوى دى يو مسلمان دپاره هغه هم كافى دى .والله اعلم.

| | | |
|---|---|---|
| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | اذْكُرُوا |
| اے هغه كسانو | چى ايمان موراوړې دې | يادوئ |
| ............ | اثې مومنانو تاسو الله ﷻ لره | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اللهَ | ذِكْرًا كَثِيْرًا ۙ | وَّسَبِّحُوْهُ | بُكْرَةً | وَّاَصِيْلًا ۝ | هُوَ الَّذِيْ |
| الله | په يادولو ډيرو سره | او پاكى بيانوئ دهغه | سحر | او مابنام | هغه هغه ذات دې |
| ډير ډير يادوئ | | اوسحر مابنام دهغهٔ پاكى بيانوئ | | الله ﷻ داسې ذات دې | چې دې په تاسو رحمتونه |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يُصَلِّيْ | عَلَيْكُمْ | وَمَلٰٓئِكَتُهٗ | لِيُخْرِجَكُمْ | مِّنَ الظُّلُمٰتِ |
| چى رحمت وانى | په تاسو باندې | او فرښتې دهغه | دپاره ددې چى راوباسى تاسو | دتيرونه |
| راوروى | اودهغه فرښتې ستاسو دپاره دعاگانې كوى | | چې د [كفر] د تورو تيارو نه مو [اسلام] | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِلَى النُّوْرِ ؕ | وَكَانَ | بِالْمُؤْمِنِيْنَ | رَحِيْمًا ۝ | تَحِيَّتُهُمْ | يَوْمَ |
| رنړا ته | او دې | په مومنانو باندې | ډير مهربانه | استقبال دهغوئ به | په هغه ورځ |
| رنړا ته راوباسى | او دې په مومنانو ډير مهربان دې | | الله ﷻ سره د ملاقات په ورځ | | |

١) الشفاء بتعريف حقوق المصطفى ﷺ ، فصل فى بيان ما هو من المقالات كفر ج ٢، ص ٢٨٦

Scanned with Ca

يَلْقَوْنَهٗ سَلٰمٌ ۚۖ وَاَعَدَّ لَهُمْ اَجْرًا كَرِيْمًا ۝

چې ملاويږي دهغه سره | په سلام سره وي | او تيار کړي دي الله | دپاره دهغوئ | اجر عزتمند |

په ددوئ دعا دا وي | چې السلام عليکم | او الله ﷻ د دوی دپاره ډيره ښه بدله تياره کړې ده

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّاۤ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ۝

اے نبی | بيشکه ليږلي ئې مونږ ته | گواهي کونکې | زيرې ورکونکې | او يرونکې |

ائې پيغمبره ! مونږ ته يو گواهي کونکې [نيکانو ته] زيرې ورکونکې د [بدانو] ويرونکې

وَّدَاعِيًا اِلَى اللّٰهِ بِاِذْنِهٖ وَسِرَاجًا مُّنِيْرًا ۝ وَبَشِّرِ

او دعوت ورکونکې | الله ته | په حکم دهغه سره | او ډيوه | روښانه کونکې | او زيرې ورکړه |

او د الله ﷻ طرف ته دهغه په حکم رابلونکې او يوه روښانه ډيوه [په دې صفاتو موصوف] ليږلې ئې | اوته

الْمُؤْمِنِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَضْلًا كَبِيْرًا ۝ وَلَا تُطِعِ

مومنانو ته | چې بيشکه | دپاره دهغوئ | دطرفه دالله نه | فضل | لوئ دې | او حکم مۀ منه |

مومنانو ته زيرې ورکړه | چې په هغوئ باندې دالله ﷻ لوئې فضل کيدونکې دې | او د کافرانو او

الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَدَعْ اَذٰىهُمْ وَتَوَكَّلْ

دکافرانو | او منافقانو | او پريږده [پر وامۀ کوه] | دتکليفونو دهغوئ | او بروسه اوکړه

منافقانو تابعداري مه کوه | او د دوئ د تکليفونو دررسولو پرواه مه کوه [بلکه په هغې صبر کوه] او

عَلَى اللّٰهِ ۭ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ۝

په الله باندې | او کافی دې | الله | چې سرې معاملات ورحواله کړی |

په الله ﷻ بهروسه کوه | او الله ﷻ درله کافی کارساز دې

## آسان ترجمه قرآن

اے ايمان والو! الله تعالىٰ په کثرت سره يادوئ، او سحر او ماښام د هغه تسبيح کوئ. هم هغه دې چه په تاسو باندې په خپله هم رحمت رالیږی، اودهغه فرشتې هم، دې دپاره چه هغه تاسولره د تيارونه اوباسی او رڼرا ته مو راولی، اوهغه په مومنانو باندې ډير زيات مهربان دې. په کومه ورځ چه مومنان الله تعالىٰ سره ملاؤ شي په هغه ورځ به دهغوی استقبال په سلام سره کيږی، او الله تعالىٰ دهغوی دپاره عزت مند انعام مقرر کړې دې اے نبی! بے شکه مونږ تالره داسې جوړ کړې ليږلې دې، چه ته گواهی ورکونکې، زيرې اوروونکې او خبردارونکې ئې او د الله تعالىٰ په حکم سره خلقو لره الله تعالىٰ طرف ته بلونکې ئې، او رڼرا خورونکې ډيوه ئې. اوته مومنانو ته زيرې واؤروه چه په هغوی باندې د الله تعالىٰ د طرف نه لوئې فضل کيدونکې دې. او د کافرانو او منافقانو خبره مه منه. اودهغوی د طرف نه چه کوم تکليف دراورسی، دهغې پرواه مه کوه. او په الله تعالىٰ باندې بهروسه کوه. او کافی دې الله تعالىٰ حفاظت کونکې.

Scanned with Ca

## خلاصه تفسير

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا﴾ [اے ایماندارو تاسو] دالله تعالی احسانات عموما او دداسې مکمل رسول د رالیږلو احسان لره خصوصا یادوئ او دهغه داسې شکر اداکړئ چه ﴿اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا﴾ [الله تعالى لره ښه ډیر یادوئ] په دې کښې ټول طاعتونه راغلل [او] په دې ذکر اوطاعت همیشوالې ساتئ پس ﴿وَّسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا﴾ [سحر مابنام] یعنی همیشه [دهغه تسبیح] او پاکی [کوئ] یعنی [په زړه] سره هم او په اندامونو سره هم او په ژبه سره هم پس په اولې جملې سره عام والې دعملونو او طاعتونو او په دویمه جمله کښې عموم دزمانې او وختونو حاصل شو یعنی مه داسې کوئ چه ځنې حکمونه په ځای کوئ او ځنې نه او مه داسې کوئ چه په ځنې ورځ څه کارکوئ او په ځنې ورځ نه اولکه څنګه چه هغه په تاسو ډیر احسانونه کړي دي او اینده ئې هم کوی پس خامخا مستحق د ذکر اوشکر دې چنانچه ﴿هُوَ الَّذِيْ يُصَلِّيْ عَلَيْكُمْ وَمَلٰٓئِكَتُهٗ﴾ [هغه داسې] رحیم [دې چه هغه] په خپله هم [او] د ده په حکم سره [د ده فرښتې] هم [په تاسو رحمت لیږی] دهغه رحمت لیږل خو رحمت کول دی او دفرښتو رحمت لیږل درحمت دعا کول دی لکه چه فرمائی [اَلَّذِيْنَ يَحْمِلُوْنَ الْعَرْشَ.. اِلٰى.. وَقِهِمُ السَّيِّاٰتِ] ([1]) پورې او دارحمت لیږل ځکه دی ﴿لِيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ﴾ چه الله تعالى] په برکت د دې رحمت سره [تاسولره] دجهالت اوګمراهئ [دتیارو] دعلم اوهدایت [رڼا طرف ته راولی] یعنی د خدائی رحمت او دملائکو ددعا برکت دې چه تاسوته دعلم او هدایت توفیق او په دې ثابت قدمی حاصله ده چه دا هروخت نوې کیږی [او] ددې نه ثابته شوه چه ﴿وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَحِيْمًا﴾ [الله تعالی په مؤمنانو ډیرمهربانه دې] او دارحمت خودمؤمنانو په حال باند په دنیاکښې دې اوپه اخرت کښې به هم دغه مورد درحمت وی چنانچه ﴿تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهٗ سَلٰمٌ﴾ [هغوی چه به هرکله دالله تعالی سره ملاویږی نو هغوی ته به چه کومه سلامی وی هغه به دا وی چه] الله تعالى به په خپله دوی ته ارشاد فرمائی [السلام علیکم] چه اول خوسلام په خپله ښه داعزاز ده بیا چه هرکله په خپله د الله تعالى دطرف نه سلام وی لکه چه فرمائی [سَلٰمٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِيْمٍ] ([2]) اوپه حدیث کښې دی چه الله تعالى به په خپله جنتیانو ته فرمائی السلام علیکم رواه ابن ماجه([3]) وغیره او دا سلام خو روحانی انعام دې چه مطلب ئې اکرام] دې [او] وړاند په عام عنوان سره دجسمانی انعام خبر دې چه ﴿وَاَعَدَّ لَهُمْ اَجْرًا كَرِيْمًا﴾ [الله تعالى دهغه] مؤمنانو [دپاره عمده صله] په جنت کښې [تیاره کړې ده] چه د دوی د ورتللو قدرې تاخیر دې دتللو سره به ورته ملاؤ وی وړاند نبی کریم ﷺ ته خطاب دې چه

---

[1]) ترجمه: او هغه فرښتے چه عرش ئے اوچت کړے دے اوکومے چه تر ے نه ګیر چاپیره دی هغوی تولے دخپل رب تسبیح او تعریف بیانوی او په هغه ایمان راوړی او دمومنانو په حقله داسے ښښنه غواړی چه اے زمونږه ربه ! ستا رحمت او ستا علم په هرڅه باندے راخور شوے دے ، نو چاچه توبه وکړه او ستا په لار روان دی هغوی وبخښه او د دوزخ د عذاب نه ئے بچ کړه ، اے زمونه ربه! ته هغوی د هیشه اوسیدلو په باغونو کښ ورننباسه دکومو چه ورسره تا وعده کړے ده او هغه هم چه دهغوی په پلارانو بیبیانو او اولاد کښ صالحان دی بیشکه چه ته زبردست یې دحکمت خاوند یې او هغوی د هر قسم تکلیفونو نه محفوظ وساته او تاچه په دغه ورځ څوک د تکلیف نه بچ وساتلو تو هغه سره د غټه مهربانی وکړه او دا ډیره لویه کامیابی ده.

[2]) ترجمه: دمهربان رب له طرف نه به پرے سلامونه ونیلے شی.

[3]) سنن ابن ماجة، المقدمة، باب فيما انكرت الجهمية: ج ۱، ص ۱۷

Scanned with Ca

﴿يَاَيُّهَا النَّبِيُّ﴾ [اے نبی] کریم ﷺ ته دیوخوتنو اعتراض کوونکو دطعن نه غمژن کیږه مه که دا بې عقلان تانه پیژني نو څه وشو مونږ خو دې لویولویو نعمتونو او رحمتونو لره کوم چه مؤمنانوته په خطاب کښې ذکر شول تاسوله واسطه جوړه کړې ده اوستا دمخالفینو دسزا دپاره په خپله ستابیان کافي مقرر کړې دې چه د دوی په مقابله کښې به ستانه ثبوت نه شي اخستې پس په دې سره ظاهره ده چه ته زمونږ په نزد څومره مقبول او محبوب یې، چنانچه ﴿إِنَّا أَرْسَلْنٰكَ﴾ [مونږ بیشکه تالره په دې شان سره رسول جوړ کړې لیږلې ئې چه تاسو ﷺ] به دقیامت په ورځ دامت په اعتبار سره به خپله سرکاري ﴿شَاهِدًا﴾ [ګواه یې] چه ستاسو ﷺ دبیان موافق به د دوی فیصله وی لکه چه فرمائي [انا ارسلنا الیکم رسولا شاهدا علیکم] ([1]) او ظاهره ده چه په خپله صاحب دمعاملې لره دبل فریق اهل معامله په مقابله کښې ګواه مقررول داعلی درجې اکرام او لوئ شان دې چه دقیامت په ورځ به ئ ظهور کیږی [او] په دنیا کښې چه کوم ستاسو کمالي صفتونه ظاهردی هغه دادی چه [تاسو] مؤمنانو ته ﴿وَّمُبَشِّرًا﴾ خوشخبری ورکوونکی یې ﴿وَّنَذِيْرًا﴾ او] کفاروته [ویره ورکوونکی یې او] په عام طور سره ټولو لره ﴿وَّدَاعِيًا اِلَى اللّٰهِ بِاِذْنِهٖ﴾ [دالله تعالی طرف ته دهغه په حکم سره بلونکی یې] او دا بشارت او انذار او دعوت تبلیغ دی [او] په خپله دخپل ذات اوصفاتو اوکمالاتو او عباداتو او عاداتو وغیره دمجموعی حالاتو په اعتبار سره [تاسو] دسرنه تر پښو پورې دهدایت په نمونه کیدوکښې ﴿وَسِرَاجًا مُّنِيْرًا﴾ په منزله [دیوروښانه چراغ یې] چه ستاسو هرحالت د طالبانو دا انوارو دپاره سرمایه دهدایت ده پس په قیامت کښې په دې مؤمنانو چه به څه رحمت وی هغه به ستاسو ددې صفتونو دبشیر او نذیر او داعی او سراج منیرپه واسطه سره وی پس ته دا غم اوپریشانی لرې کړه [او] په خپل منصبی کارکښې لګیا اوسه یعنی ﴿وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَضْلًا كَبِيْرًا﴾ [مؤمنانو ته خوشخبری ورکړه چه په دوی دالله تعالی دطرف نه لوئ فضل کیدونکې دې او] دغه شان کافرانو اومنافقانو لره ویروئ کوم چه ئ په یوخاص عنوان سره تعبیر کړې دې هغه داچه ﴿وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ﴾ [دکافرانو اومنافقانو خبره مه منې] دنبی کریم ﷺ نه خو ددې دسره امکان نه وو چه دوی ﷺ دکافرانو اومنافقانو په خبرو کښې راشي تبلیغ او دعوت پریږدی لیکن دخلقو دطعن او تشنیع نه دبچ کیدو دپاره ممکنه وه چه دوی ﷺ په دې عملی تبلیغ کښې کوم چه دحضرت زینب ﵂ دنکاح په ذریعه مقصود وو څه سستی وکړی دائ دکفارو د خبرو په منلو سره تعبیر کړو ﴿وَدَعْ اَذٰىهُمْ﴾ [او د دوی] کافرانو اومنافقانو [دطرف نه چه] څه [ازار در ورسیږی] لکه چه په دې نکاح کښې چه فعلی تبلیغ دې قولی ازار ورسیدو [ددې خیال مه کوئ او] دفعلی ازار هم فکر مه کوئ اوکه ددې وسوسه درته راشي نو ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ﴾ [په الله تعالی تکیه کوئ ﴿وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا﴾ او الله تعالی کارساز دې] هغه به تالره دضرر نه بچ کوی اوکه په تبلیغ کښې څه ظاهری ضرر رسیږی دغه باطنی نفع وی دغه د وعدې دکفایت او وکالت منافی نه ده.

---

[1] ) ترجمه: بیشکه مونږ تاسو ته یو رسول راولیږلے دے چه په تاسو به ګواهی ورکوی.

Scanned with Ca

## معارف او مسائل

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا﴾ دې نه وراندې آيتونو كښې د نبي اكرم ﷺ د تعظيم، تكريم او ورته د زيان رسولو نه ساتلو هدايات وو، دهغې په ترڅ كښې د زيد رضي الله عنه او زينب رضي الله عنها قيصه راغله او دغه مناسبت سره د نبي اكرم ﷺ خاتم النبيين كيدل بيان شو. دې پسې د نبي اكرم ﷺ د كاملو صفتونو بيان راروان دې. او دا بيان په دې آيتونو كښې شوې دې چې د نبي اكرم ﷺ ذات مبارك او صفتونه ټولو مسلمانانو دپاره په دنيا كښې د ټولو نه لوئې نعمت دې. ددې د شكر ادا كولو دپاره په دې آيت مبارك كښې د الله ﷻ د ډير ډير ذكر كولو حكم وركړې شوې دې.

**د الله تعالى ذكر داسې عبادت دې چې په هر حال كښې فرض دې او ددې د ډير ډير كولو حكم دې:**

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا﴾ ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چې الله ﷻ پخپلو بندګانو باندې د الله ﷻ د ذكر نه سوا داسې فرض نه دې په ذمه كړې چې هغې دپاره به ئې خاص حد نه وي مقرر كړې، لكه مونځ شو چې پنځه وختونه ئې ټاكلې شوي دي او هر وخت دپاره ئې ركعتونه ټاكلې شوي دي. د رمضان شريف روژې ټاكلې شو يدى. د حج ځايونه، عملونه او وختونه ټاكلې شوي دي. زكوة هم په كال كښې يو ځل فرض كيږي. خو د الله ﷻ ذكر يو داسې عبادت دې چې نه خو ددې حد ټاكلې شوېدې او نه ددې دپاره څه وخت مقرر كړې شوې دې. او ددې دپاره شمير هم څۀ شرط نه دې. ددې دپاره څه خاص شان او خاص شكل نه دې ټاكلې شوې. دې دپاره اودس هم شرط نه دې.هروخت اوپه هرحال كښې د الله ﷻ د ډير ډيرو ذكر كولو حكم دې خواه مقامي وي اوكه په سفر كښې وي، روغ وي اوكه ناروغه وي په اوچه وي او كه په لونده وي، د ورځې وي او كه د شپې وي. په هر حال كښې د الله ﷻ دذكر كولو حكم دې.

هم دغه وجه ده چې ددې د پريخودو هيڅ عذر نشي قبلولې سوا ددې څخه چې عقل فكر ئې ختم شي او بې هوشه شي. د مجبورئ، معذورتيا په حالتونو كښې په نورو عبادتونو كښې لنډولو، كمولو يا معافئ اجازت شته دې. خو د الله ﷻ د ذكر دپاره هيڅ شرط نه دې ايخودې شوې. څكه ددې په پريخودو كښې په هيڅ حال كښې څه عذر نشي آوريدلې كيدې. ددې فضيلتونه اوبركتونه هم بې شميره دي. امام احمد رحمه الله د ابى الدرداء رضي الله عنه څخه روايت كړې دې چې نبي اكرم ﷺ صحابه كرامو رضي الله عنهم ته داسې خطاب اوفرمائيلو، تاسو ته داسې څيز اونه ښايم چې د ټولو عملونو څخه زيات غوره اوستاسو د مالك په نزد د ټولو څخه زيات مقبول دې او تاسولره د سپينو او سروزرو د خيرات كولو څخه زيات غوره دې، او ددې څخه هم زيات غوره دې چې تاسو د الله ﷻ په لار كښې جهاد دپاره اوزئ او دښمن سره مقابله اوكړئ، هغوئ ستاسو څټونه وهى او تاسو دهغوئ څټونه وهئ، صحابه كرامو رضي الله عنهم عرض اوكړو چې يارسول الله ﷺ! هغه كوم عمل او كوم يو څيز دې؟ نبي اكرم ﷺ ورته اوفرمائيل چې ﴿ذكر الله عزوجل﴾ يعنى د الله تعالى ذكر [ابن كثير].[1]

---

[1]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤٣١، ومسند أحمد، حديث ابى الدردا رضى الله تعالى عنه، رقم الحديث: ٢٢٣٣٤

داسې د امام احمد او ترمذی رحمه الله په حواله ابوهریره رضی الله عنه اوفرمائیل چې ما د نبی اکرم ﷺ نه یوه دعا واورېدله چې هېڅرې ئې نه پرېږدم هغه داده :

﴿اللهم اجعلنی اعظم شكرك واتبع نصيحتك واكثر ذكرك واحفظ وصيتك﴾ [یا الله ﷻ ! ما داسې جوړ کړې چې زه ستا شکر اوباسم او ستا د نصیحت تابع جوړ شم ، او په کثرت سره ستا ذکر کوم ، او ستا وصیت لره محفوظ اوساتم] [ابن کثیر] [1]

دې دعا کښې نبی اکرم ﷺ د الله ﷻ څخه ډېر ډېر ذکر کولود توفیق سوال کړې دې.

یو کلیوال او صحرائی د نبی اکرم ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو چې د اسلام عملونه ، فرض او واجب خو ډېر زیات دی تاسو راته داسې لنډ ټول اړخیزه خبره راوښائی چې ښه په کلکه ئې جاری لرم. نبی اکرم ﷺ ورته اوفرمائیل چې :

﴿لايزال لسانك رطبا بذكر الله تعالى﴾ [2] [ستاسو ژبه دې هر وخت د الله تعالی په ذکرسره تازه وی] [مسند احمد ، و ابن کثیر].

ابو سعید خدری رضی الله عنه څخه روایت دې چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې :

﴿اذكروا الله تعالى حتى يقولوا مجنون﴾ [د الله ﷻ ذکر دومره کوئی چې خلقوته لیونی ښکاره شئ ] [ابن کثیر د مسند احمد څخه]. [3]

اود عبدالله بن عمر رضی الله عنه څخه روایت دې چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې څوك په داسې یو مجلس کښې کښیناستل چې په کښې د الله ﷻ ذکر اونشی نو د قیامت په ورځ به دغه مجلس هغوئ دپاره د افسوس باعث وی. [احمد او ابن کثیر]. [4]

﴿وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا﴾ [اوسحر مابنام دهغهٔ پاکی بیانوئ] دصبا ، مابنام څخه مراد یا خو ټول وختونه دی یا ترې هم د صباو مابنام خاص وختونه ځکه مراد دی چې په دې وختونو کښې د الله ﷻ د ذکر تاکید هم زیات دې او برکت ئې هم زیات دې ګنی نو د الله ﷻ ذکر څه خاص وخت سره مخصوص او محدود نه دې.

﴿هُوَ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ وَمَلَائِكَتُهُ﴾ یعنی کله چې تاسو د الله ﷻ ډېر ډېر ذکر کولو سره عادت شئ او دصبا ، بیګاه تسبیحات مو همیشه دپاره لوستل نو الله ﷻ به درته داعزت او قدر درکړی چې پخپله به درباندې رحمت نازلوی او فرښتې به ئې تاسو دپاره دعا کوی.

دې آیتو مبارکو کښې لفظ د صلوة الله ﷻ دپاره هم استعمال کړې شوې دې او فرښتو دپاره هم خو د صلوة مصداق بیل بیل دې. د الله ﷻ صلوة دهغه رحمت نازلول دی او د فرښتو صلوة الله ﷻ څخه ئې د رحمت نازلولو دعا غوښتل دی.

ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل چې صلوة د الله ﷻ د طرفنه رحمت دې او دفرښتو د طرفنه استغفار یعنی د مغفرت دعا او پخپل مینځ کښې یو بل ته دعا کول دی ، په دې بنا درې واړه معنی ترې

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٤٣٢، وجامع الترمذی، أبواب الدعوات، قبیل أبواب المناقب: ج ٢، ص ٢٠١، ومسند أحمد، مسند ابی هریرة رضی الله تعالی عنه، رقم الحدیث: ١٠٤٤٤٨

[2] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٤٣٢، وجامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب ما جاء فی فضل الذکر: ج ٢، ص ١٧٥، ومسند أحمد، حدیث عبدالله بن بسر رضی الله تعالی عنه رقم الحدیث: ١٨١٤٩

[3] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٤٣٢، ومسند أحمد، مسند ابی سعید الخدری رضی الله عنه رقم الحدیث ١١٩١٧

[4] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٤٣٢، ومسند أحمد، مسند عبدالله بن عمر رضی لله عنهما، رقم الحدیث: ٧٢٩٢

Scanned with

مراد دی چې عموم مشترك بللې شی ځوك چې عموم مشترك جائز نه بولی دهغوئ په نزد به ورته عموم مجاز وئیلې شی.

﴿تَحِیَّتُهُمْ یَوْمَ یَلْقَوْنَهٗ سَلٰمٌ ﴾ داهم دهغې صلوة وضاحت او تفسیر کول دی چې کوم د الله ﷻ د طرفنه په مؤمنانو بندګانو باندې ئې کولې شی مطلب دا چې کله به مؤمنان الله ﷻ سره یو ځائې شی نو د الله ﷻ دطرفه به دوئ ته دعزت ورکولو دپاره خطاب په السلام علیکم سره کولې شی.

امام راغب رحمه الله وغیره فرمائی چې الله ﷻ سره د ملاویدو وخت څخه مراد د قیامت ورځ ده[1]، او د تفسیر ځینې امامانو ترې جنت ته د داخلیدو وخت مراد اخستې دې، چرته به چې دوئ ته د الله ﷻ دطرفه او د فرښتو د طرفه هم سلام رسی. ځینې مفسرینو ترې مراد د مړکیدو وخت اخستې دې. چې د ټول جهان نه به خلاص شی یو اځې د الله ﷻ په وړاندې به حاضر شی.

عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دې چې کله ملك الموت د یو مؤمن د روح قبض کولو دپاره راشی نو اول ورته د اپیغام رسوی. چې ستا رب تاته سلام وئیلې دې[2]. او د لقاء لفظ په دې درې واړو حالتونو باندې صادقیږی. ځکه په دغې ټولو اقوالو کښې څه بې سمونی نشته، مطلب دا چې په دغې درې واړو حالتونو کښې پرې د الله ﷻ د طرفه سلام وئیل کیدې شی. [روح المعانی][3]

**مسئله**: دې آیت مبارك څخه ثابته شوه چې د مسلمانانو خپل مینځ کښې د الئ دې د السلام علیکم لفظ وی، په مشر، کشر کښې چې هر یو وړاندې شو.

**د رسول کریم ﷺ خاص صفات**: ﴿یٰٓاَیُّهَا النَّبِیُّ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِیْرًا ۙ وَّدَاعِیًا اِلَى اللّٰهِ بِاِذْنِهٖ وَسِرَاجًا مُّنِیْرًا ﴾ دا بیا راګرځیدل دی د نبی اکرم ﷺ خاص صفتونه دکمال او مناقبو ته په دې آیت مبارك کښې د نبی اکرم ﷺ پنځه صفتونه بیان کړې شوی دی. ① شاهد ② مبشر ③ نذیر ④ داعی الی الله ⑤ سراج منیر.

شاهد څخه مراد دادې چې دوئ به د قیامت په ورځ د امت دپاره ګواهی ورکوی، لکه صحیح بخاری کښې، نسائی کښې او ترمذی شریف کښې د ابی سعید خدری رضی الله عنه څخه روایت دې چې د هغې ځینې جملې دادی: د قیامت په ورځ به نوح علیه السلام پیش شی نو تپوس به ترې اوشی چې آیا تاسو علیه السلام زمونږ پیغام خپل قوم ته رسولې وو؟ نوح علیه السلام به عرض اوکړی چې ما رسولې وو. بیا به ئې امت پیش کړې شی چې ددې څخه به انکار اوکړی او وائی به چې مونږ ته ئې د الله ﷻ پیغام نه وو رسولې. دغه وخت به نوح علیه السلام ته ګواه پیش کولو دپاره اووئیلې شی. هغه به عرض اوکړی چې محمد ﷺ او دهغوئ امت ګواه دې[4]. ځینې روایتونو کښې راغلی دی چې نوح علیه السلام به په ګواهئ کښې امت محمدیه پیش کوی په دې ګواهئ به د نوح علیه السلام امت دا اعتراض اوکړی چې دوئ خو لا په هغه وخت کښې پیدا هم نه وو. نو په دې معامله ګواهان

---

[1] تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۳۵۳

[2] تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۱٤، ص ۱۹۹

[3] تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱٦، ص ۱۵۸

[4] صحیح البخاری، کتاب التفسیر، باب سورة البقرة، وکذلک جعلناکم أمة...الخ: ج ۲، ص ٦٤٤، وجامع الترمذی، أبواب التفسیر، باب ومن سورة البقرة: ج ۲، ص ۱۲۵

Scanned with Ca

څنګه کیدې شي ؟ ددې جواب به امت محمدیه دا ورکړي چې بیشکه هغه وخت کښې مونږ موجود نه وو خو ددې خبر مونږ د خپل رسول ﷺ څخه اوریدلې دې او په هغې زمونږ ایمان او عقیده ده. دغه وخت به نبی اکرم ﷺ څخه دخپل امت ددغې قول تصدیق اوغوښتې شي چې نبی اکرم ﷺ به ئې اوکړي.
خلاصه داده چې نبی اکرم ﷺ به د خپلې ګواهۍ په ذریعه دخپل امت تصدیق او توثیق اوکړي او فرمائی به چې بیشکه ما ورته خبر ورکړې وو.
او په امت باندې د شاهد کیدو یو عام مطلب دا هم کیدې شي چې نبی اکرم ﷺ به د خپل امت د ټولو ښو او خراب عمل ګواهي ورکوي ، ددې ګواهۍ بنیاد به داوي چې د ټول امت عملونه هره ورځ صبا ، بیګاه د نبی اکرم ﷺ وړاندې پیش کولې شي. او څینې روایتونو کښې راغلي دي چې په هفته کښې یو ورځ ورته پیش کیږي. چې ددغې عملونو په وجه به نبی اکرم ﷺ دخپل امت هر یو غړې پیژني ، څکه به دقیامت په ورځ نبی اکرم ﷺ دخپل امت ګواه جوړولې شي. [ابن مبارك د سعید بن المسیب رضی الله عنه څخه روایت کړې دې، مظهری][1].
او د مبشر معنی زیرې ورکوونکې ، مراد دادې چې نبی اکرم ﷺ د خپل امت نیکانو او د شریعت مطابق خلقو ته د جنت زیرې آوروونکی دې.
او د نذیر معنی ویرونکې ده ، مطلب دا چې نبی اکرم ﷺ د امت هغه خلق دعذاب څخه ویروي چې کوم د الله ﷻ د احکامو خلاف ورزی او نافرمانی کوي.
داعي الی الله څخه مراد دادې چې خپل امت لره د الله ﷻ موجودګی ، توحید او فرمانبردارئی ته رابلي.
د ﴿دَاعِيًا إِلَى اللَّهِ﴾ سره د ﴿بِإِذْنِهِ﴾ لفظ لګول دې ته اشاره کوي چې د تبلیغ او دعوت خدمت ډیر سخت دې هغه د الله ﷻ د اجازت څخه بغیر سرته نشي رسولې.
د سراج معنی ډیوه او د منیر معنی روښانه کوونکې. د نبی اکرم ﷺ پنځم صفت دابیان شوې دې چې نبی اکرم ﷺ روښانه کوونکې ډیوه ده. او څینې حضراتو د سراج منیر څخه مراد قرآن عظیم الشان اخستې دې. خو د قرآن عظیم الشان د روانۍ څخه نزدې دا معلومیږي چې دا هم د نبی اکرم ﷺ صفت دې.
دخپل وخت بیهقی ، قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله په تفسیر مظهری کښې فرمائیلی دی چې د نبی اکرم ﷺ داعی الی الله کیدل خو دظاهر او ژبې په اعتبار سره دی او سراج منیر صفت ئې د زړه مبارك په اعتبار سره دې چې څنګه ټول جهان د نمر څخه رڼا حاصلوي دغسې د ټولو مؤمنانو زړونه د نبی اکرم ﷺ د زړه مبارك په نور سره روښانه کیږي ، په دې وجه صحابه کرام رضی الله عنهم چا چې په دې جهان کښې د نبی اکرم ﷺ صحبت او ملګرتیا بیا موندله ، د ټول امت څخه څکه زیات غوره دی چې د هغوئ رضی الله عنهم زړونو د نبی اکرم ﷺ زړهٔ مبارك څخه نیغ په نیغه مخامخ فیض او نور حاصل کړو. نور امت ته په څو څو واسطو سره دغه فیض او نور رارسیږي. [انتهی][2].

---

[1] ) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۳۵۳
[2] ) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۳۵٤

Scanned with Ca

اودا ئې هم وئيلې دي چې ټول پيغمبران ﷺ خصوصا نبي اکرم ﷺ ددنيا څخه سفر چې اوکړو نو بيا هم پخپلو قبرونو کښې ژوندي دي ، د انبياء ﷺ برزخي ژوند دعامو خلقو د برزخي ژوند څخه په ډيرو درجاتو زيات او يو منفرد وي چې په حقيقت ئې الله ﷻ پوهيږي.
بهرحال ددغې ژوند په وجه تر قيامته پورې د مؤمنانو زړونه د هغوئ انبياء ﷺ څخه د نور فيض حاصلوي . څوك چې د انبياء ﷺ تعظيم زيات کوي او محبت ورسره زيات ساتي ، درود شريف پرې زيات وائي ، هغه به د نور برخه زياته مومي .
د نبي اکرم ﷺ نور مبارك د ډيوې پشان اوبللې شو حالانکه د نبي اکرم ﷺ باطني نور د نمر دنور څخه په څو څو چنده زيات دې . ولې چې نمر سره ددنيا ظاهر روښانه کيږي ليکن د نبي اکرم ﷺ زړه مبارك سره د ټول جهان باطن او د مؤمنانو زړونه روښانه کيږي . ددې تشبيه ورکولو وجه دا معلوميږي چې ډيوې څخه فائده اخستل اختياري دي چې هر وخت ترې فائده اخستې شي او ورته رسيدل هم آسان دي چې په آسانه حاصليدې شي ، پخلاف د نمر څخه چې هلته رسيدل هم تقريبا نشي کيدې او هر وخت ترې فائده اخستل هم نشي کيدې .
د نبي اکرم ﷺ دا صفات څنګه چې په قرآن پاك کښې راغلي دي ، دې څخه وړاندې په تورات کښې هم راغلي دي ، لکه امام بخاري رحمه الله نقل کړي دي چې عطاء بن يسار رضي الله عنه فرمائيلي دي چې زه يو ورځ عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه سره ملاؤ شوم ، هغوئ رضي الله عنه ته مې خواست اوکړو چې په تورات کښې د نبي اکرم ﷺ کوم صفات بيان شوي دي هغه ماته بيان کړئ . هغوئ رضي الله عنه راته اوفرمائيل چې : زهٔ درته ښايم . قسم مې دې په الله ﷻ وي چې کوم صفات د نبي اکرم ﷺ په قرآن عظيم الشان کښې راغلي دي هغه په تورات کښې هم راغلي دي او وې فرمائيل چې :

إِنَّا أَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا وحرزا للاميين انت عبدي ورسولي سميتك المتوكل ليس بفظ ولا غليظ ولا سخاب في الاسواق ولا يدفع السيئة بالسيئة ولكن يعفوا ويغفرلن يقبضه الله تعالى حتى يقيم به الملة العوجاء بان يقولوا لا اله الا الله ويفتح به اعينا عميا واذانا صما وقلوبا غلفا[1]

اې نبي ﷺ ! مونږ ته ګواهي ورکوونکې ، زيرې ورکوونکې ، ويروونکې اوپناه او حفاظت د اميانو يعنې عربو ليږلې يئ ، تاسو ﷺ زما بنده او رسول يئ ما ستانوم توکل کوونکې نه وي کيخود ، دوئ به تندخويه سخت مزاجه او په بازارونو کښې شور کوونکی نه دوی د بدئي بدله به په بدئي نه ورکوي ، بلکه معاف کوي به ئې او دوئ لره به الله تعالى تر هغې نه وفات کوي تر څو چې ددوئ ﷺ په ذريعه کوږ ملت نيغ نه کړي چې لا اله الا الله به وائي او ددوئ په ذريعه به الله تعالي ړندې سترګې ، کاڼه غوږونه اوبند زړونه پرانيځي.

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | اِذَا | نَكَحْتُمُ | الْمُؤْمِنٰتِ | ثُمَّ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو چې | ايمان مو راوړې دې | کله چې | نکاح اوکړئ تاسو | د مومنانو ښځوسره | بيا طلاق ورکړئ هغوئ له |

اې مومنانو هرکله چې دمسلمانانو ښځو سره نکاح اوکړئي | بيا دلاس لګولو نه وړاندې ورته طلاق ورکړئ

[1]) صحيح البخاري، کتاب البيوع، باب کراهية الصخب في السوق: ج ۱، ص ۲۸۵

Scanned with Ca

| مِنۡ قَبۡلِ | اَنۡ تَمَسُّوۡهُنَّ | فَمَا لَكُمۡ | عَلَيۡهِنَّ |
|---|---|---|---|
| مخکښې د دې نه | چې تاسو مسح کړئ هغوئ | نو لازم نه دې ستاسو دطرفنه | په هغوئ باندې |
| ......نو ستاسو د طلاق په وجه دهغوئ دپاره هیڅ عدت نشته | | | |
| مِنۡ عِدَّةٍ | تَعۡتَدُّوۡنَهَا | فَمَتِّعُوۡهُنَّ | |
| هیڅ عدت | چې تاسو مطالبه اوکړئ دپوره کیدو دهغې | پس [نفع] څه مال ورکړئ هغوئ له | |
| چې شمیر ئې کړئ | .................نو څه مناسب سامان ورته ورکړئ | | |
| وَسَرِّحُوۡهُنَّ | سَرَاحًا جَمِيۡلًا ﴿۴۹﴾ | | |
| او آزادې کړئ هغوئ | په آزادلو ښو سره | | |
| او په ښه طریقه ئې رخصت کړئ | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اے ایمان والو! کله چه تاسو مومنانو زنانو سره نکاح کړی وی، بیا تاسو هغوی ته د نزدیکت نه مخکښې طلاق ورکړو نو دهغوی په ذمه ستاسو هیڅ عدت واجب نه دې، چه دهغې شمار په تاسو لازم وی لهٰذا هغوی ته څه تحفه ورکړئ او هغوی لره په ځائسته طریقې سره رخصت کړئ.

## خلاصه تفسیر

﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا﴾ [اے ایما ندارو] ستاسو دنکاح په احکامو کښې یو حکم خو دادې چه ﴿اِذَا نَكَحۡتُمُ الۡمُؤۡمِنٰتِ﴾ [هر کله تاسو د مسلمانانو ښځو سره نکاح وکړئ] ﴿ثُمَّ طَلَّقۡتُمُوۡهُنَّ مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ تَمَسُّوۡهُنَّ﴾ او [بیا دوی لره ورانډ دلاس وروړو نه] په څه وجه [طلاق ورکړئ] ﴿فَمَا لَكُمۡ عَلَيۡهِنَّ مِنۡ عِدَّةٍ تَعۡتَدُّوۡنَهَا﴾ نو ستاسو په دوی څه عدت] واجب [نشته کوم چه تاسو شماروئ] چه دوی لره په دې عدت کښې د دویم نکاح نه منع کړئ لکه چه د عدت واجبیدو په صورت کښې شرعا دامنع کول جائز بلکه واجب دی او هر کله چه په دې صورت کښې عدت نشته ﴿فَمَتِّعُوۡهُنَّ وَسَرِّحُوۡهُنَّ سَرَاحًا جَمِيۡلًا﴾ [نو دوی لره څه] مال [متاع ورکړئ او په غوره طریقه سره دوی لره رخصت کړئ] او د مؤمنانو ښځو په شان دکتابیانو ښځو هم داحکم دې په ایت کښې د مؤمنات قید پطور دشرط نه دې بلکه یو ترغیبی هدایت دې چه مؤمن له په خپل نکاح کښې دمسلمانې ښځې انتخاب کول غوره دی او لاس لګول کنایه ده دصحبت کولو نه خواه حقیقتا وی یا حکما وی لکه د دوارو خلوت صحیحه وشی نو داهم دصحبت په حکم کښې دی او صحبت حقیقتا وی یا حکما په دوارو صورتونو کښې عدت واجب دې لکه په هدایه وغیره[1] کښې دی او که مهر مقرر شوې وی نو دامتاع دنیم مهر ادا کول دی او سراح جمیل دادې چه داپه ناحقه منع نه کړی او کوم متاع چه ورکول واجب دی هغه ادا کړی او ورکړې شوې واپس وانه خلی او په ژبه سره هم سخته خبره او نه کړی.

---

[1] بدائع الصنائع، كتاب الطلاق، فصل في عدة الأشهر: ج ۷، ص ۳۸۸، وتبيين الحقائق، كتاب الطلاق، باب العدة: ج ۳، ص ۲۶

Scanned with CamScanner

## معارف او مسائل

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ﴾ دې څخه مخکښې آيت مبارك كښې د نبی اكرم ﷺ يو څو صفات د كمال او د نبی اكرم ﷺ د مخصوص شان بيان وو، وروسته د نبی اكرم ﷺ د خصوصيتونو بيان راروان دې چې دنكاح او طلاق په باره كښې نبی اكرم ﷺ سره يو قسم خصوصيت لري. او د عام امت په نسبت نبی اكرم ﷺ يو خانله شان لري، دې څخه مخكښې د تمهيد په ډول د طلاق باره كښې يو عام حكم بيان كړې شوې دې چې د ټولو مسلمانانو د پاره عام دې.

دې آيت مبارك كښې دهغې درې احكام بيان شوي دې.

**رومبې حكم:** رومبې حكم دادې چې يوې ښځې سره د نكاح كولو نه روستو د خلوت صحيحه څخه وړاندې دطلاق وركولو معامله راپيښه شي نو مطلقا په ښځه باندې عدت تيرول واجب نه دي، هغه سمدستي بله نكاح كولې شي. دې آيت مبارك كښې لاس لګولو څخه مراد كور والې دې. كه هغه حقيقي وي او كه حكمي. او د دواړو صورتونو يو حكم كيدل د تفسير په خلاصه كښې معلوم شوی دی. او حكمي كور والې دادې چې خلوت صحيحه ورسره اوشي.

**دويم حكم:** دويم حكم دادې چې طلاقې كړې ښځې ته په شرافت او ښه اخلاقو سره څه سامان وركړې او رخصت ئې كړې. نو هرې طلاقې كړې شوې ښځې ته څه سامان وركول مستحب او مسنون دی. او په څينې صورتونو كښې واجب دی چې تفصيل ئې د تفسير په خلاصه كښې تير شوې دې. دغه شان د سورة بقره آيت مبارك: ﴿لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ﴾ (١) لاندې هم تير شوې دې. دلته د متاع لفظ غوره كولو حكم شايد داوی چې دا لفظ د خپل مفهوم او مطلب په اعتبار سره عام دې. يعنی هر هغه څيز ته متاع وئيلې شی چې فائده ترې اخستې شی، په دې كښې د ښځو واجب حقوق مهر وغيره هم شامل دی، يعنی كه دغې وخت پورې مهر نه وی وركړې شوی نو د طلاق په وخت په خوشحالئ سره ادا كړئی، او په دې كښې غير واجب حقوق وركول هم شامل دی، لكه طلاقې شوې ښځې ته د جامو جوړه وركول او رخصتول ئې چې هرې طلاقې كړې ښځې ته ئې وركول مستحب دی. [په مبسوط او محيط كښې داسې دی، په حواله د روح] (٢).

په دې لحاظ سره د ﴿مَتِّعُوْهُنَّ﴾ صيغه د امر راوړل دعام ترغيب وركولو په غرض دی چې په كښې واجب او غير واجب دواړه قسمونه شامل دی. [روح] (٣)

دحديث امام عبد بن حميد د حسن رحمه الله څخه روايت كړې دې چې متعه يعنی سامان وركول هرې طلاقې كړې ښځې د پاره دی، خواه ورسره خلوت صحيحه شوې وی يا نه وی شوې، او د هغې مهر مقرر شوې وی او كه نه وی مقرر شوې (٤).

(١) ترجمه: په تاسو ته څه ګناه نشته كه چرې تاسو ښځو ته دلاس وروړلو نه مخكې طلاق وركړئ.
(٢) تفسير روح المعانی تحت هذه الآية: ج ١٦، ص (١٦٩)
(٣) تفسير روح المعانی تحت هذه الآية: ج ١٦، ص (١٦٩)
(٤) تفسير روح المعانی: ج ١٦، ص ١٦٩

Scanned with CS

**د طلاق په وخت د متعې يعنې د لباس تفصيل**:: بدائع کښې راغلې دي چې دطلاق د متعې ځخه هغه لباس مراد دې چې زنانه ئې د کور ځخه د وتو په وخت خامخا استعمالوی ، چې په کښې قميص ، پرتوګ ، څادر ، او لوئې څادر چې د سر ځخه تر پښو پورې په کښې ځان پټولې شی[1]. چونکه په لباس کښې د قيمت او دقسم ډير فرقو نه دی چې اعلی او ادنی او اوسط په کښې کيدلې شی په دې وجه فقهاء کرامو ﷺ دا تفصيل کړې دې چې ددغې ښځې خاوند اشان ته به کتلې شی ، لکه دواړه دمالدارې کورنئ وی نو اعلی قسم جامې دې ورکولې شی ، که يو د غريبې او بل د مالدارې کورنئ ځخه وی نو د درميانه درجې او که دواړه د غريبې کورنئ وی نو دادنی درجې دې ورکولې شی .[خصاف په نفقات کښې داسې فرمائيلی دی][2].

**اسلام ښځې د په معاشرې بې مثله تعليم**:: دنيا کښې د حقونو ادا کول عموما صرف دوستانو او عزيزانو تر مينځه ادا کولې شی ، زيات ځخه زيات عامو خلقو کښې محدود کولې شی ، د ښه اخلاقو او ښه زيست روزګار تول زور هم دغلته خرچ کولې شی ، د خپلو مخالفو او دښمنانو حقونه هم پيژندل ، دې دپاره قوانين ايخودل د اسلامی شريعت کار دې ، په دې زمانه کښې اګر چې د انسانيت د حقوقو د حفاظت دپاره په دنيا کښې ډيرې مستقلې اداري قائمې کړې شوی دی او دې دپاره څه قاعدې او ضابطې هم جوړې کړې شوی دی . دې مقصد دپاره ددنيا د قومونو ځخه د لکونو روپو پنګه هم راجمع کولې شی ، خو اول په ادارو باندې سياسی مقصدونه خوراځ شوی دی ، د مصيبت زپلو خلقو امداد په کښې بې غرضه او هر چرته نشی کولې ، بلکه هلته کولې شی چرته چې سياسی مقصدونه پوره کيږی او که بالفرض دا اداری په صحيح ډول د خلقو خدمت کوی نو صرف هلته چرته چې په يوه علاقه کښې څه عامه پيښه د طوفان او وبائی مرضونو اوشی په وړه پيمانه مصيبتونو او تکليفونو نه نه ځان خبروی ، او نه ئې مدد ته څوك ځان رسولې شی ، د اسلامی شريعت حکيمانه تعليم ته اوګورئی چې دطلاق معامله د مخالفت په بنياد راولاړيږی ، چې د خاوند او ښځې تر مينځه غصه او خفګان پيدا شی. نتيجه ئې دا شی چې کوم تړون د يو ځائې کيدو ، محبت او مينې په بنياد باندې شوې وو هغه اوس الته شو ، په کرکه ، دښمنئ او انتقامی جذباتو باندې بدل شو. د قرآن عظيم الشان دې آيت مبارکه ته اوګورئ او نور داسې ډيرو آيتونو ته فکر اوکړئی چې خالص د طلاقونو په موقعه چې مسلمانانو ته کوم هدايت ورکړې شوې دې هغه داسې دې چې په هغې کښې د ښه اخلاقو او ښکلی زيست روزګار پوره امتحان اخستلې کيږی. د نفس تقاضا داده چې کومې ښځې مونږ ته تکليف اورسولو تنګ ئې کړلو تر دې پورې چې تعلق پريکولو ته مجبوره شو نو ددې بدل کښې دې لره ښه ذليله شی بلکه په هر شان بې عزتئ سره د کور نه اوويستلې شی.

خو قرآن عظيم الشان دعامو طلاقو شوؤ ښځو دپاره دا لويه پابندی اولګوله چې دغه ښځه دې دعدت تولموده دخاوند په مکان کښې تيروی . طلاق ورکونکی باندې ئې دا لازم کړل چې په دغې موده کښې دې طلاقه کړې ښځه د خپل کور ځخه بهر ته نه اوباسی او په ښځه ئې

---

[1] ) بدائع الصنائع، کتاب النکاح، فصل بيان ما يسقط به نصف المهر:ج ۲، ص ٦٤

[2] ) النفقات للخصاف: ج ۳۸، ص ۳٦، باب نفقة المرأة على الزوج وما يجب لها من ذلك.

Scanned with Ca

هم ددغې كور نه د نه وتلو پابندي اولګوله. دويم په خاوند باندې ئې دا پابندي اولګوله چې د طلاق وركولو باوجود دې هم دعدت دزمانې نفقه په مخه جاري لري ، دريمه مستحب پابندي ئې په خاوند دا اولګوله چې د عدت پوره كيدو څخه روستو د ښځې د رخصتولو په وخت دې ورته متاع وركوي ، او په عزت دې ئې رخصتوي. په هغو ښځو باندې ئې د عدت تيرولو پابندي او نه لګوله چې صرف نكاح ئې ترلې وي او كوروالي يا خلوت صحيحه ورسره د خاوند ئيې نه وي شوې. ليكن هغې ته د متاع وركولو تاكيد په نسبت د نورو ښځو زيات كړې شوې دې. دې سره

**دريم حكم** دا وركړې شوې دې چې: ﴿وَسَرِّحُوهُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا﴾ [په ښه شان ئې رخصت كړئ چې په هغې كښې دا پابندي اولګولې شوه چې په خله دې هم ورته سخته خبره نشي كولې د څه پيغور وركولو وغيره طريقه دې نشي اختيارولې]

دمخالفت په وخت د مخالف دحقونو خيال هم هغه څوك ساتلې شي چې د خپل ځان په جذباتو قابو لري د اسلام په ټول تعليماتو كښې ددې لحاظ ساتلې شوې دې.

يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّآ أَحْلَلْنَا لَكَ

| اے نبي | بيشكه مونږه | حلالې كړې | ستا دپاره

| ائې نبي ﷺ ! مونږ ستا دپاره ستا بيبيانې حلالې كړې دي

أَزْوَاجَكَ الّٰتِيٓ اٰتَيْتَ أُجُورَهُنَّ وَمَا مَلَكَتْ

بيبيانې ستا | هغه بيبيانې | چې وركړې دې تا | مهر دهغوئ | او هغه ښځې | چې مالك شي |

چې تا ورته مهر وركړې دې | او هغه ښځې هم چې ستا په ملكيت كښې دي

يَمِينُكَ مِمَّآ أَفَآءَ اللهُ عَلَيْكَ

ښئ لاس ستا دهغوئ | په هغه وينځو كښې | چې په غنيمت كښې دركړې دي الله | تاته |

چې الله ﷻ درته په غنيمت كښې دركړې دي

وَبَنٰتِ عَمِّكَ وَبَنٰتِ عَمّٰتِكَ وَبَنٰتِ خَالِكَ وَبَنٰتِ خٰلٰتِكَ

او لونړه د تره ستا | او لونړه دپلار دخور ستا | اولونړه | دماما ستا | او لونړه دمور دخور ستا

او ستا د تره لونړه او ستا دترورريانو لونړه او ستا دماماګانو لونړه او ستا دخاله ګانو لونړه

الّٰتِيْ هَاجَرْنَ مَعَكَ وَامْرَأَةً مُّؤْمِنَةً إِنْ وَّهَبَتْ نَفْسَهَا

هغه | چې هجرت ئې كړې دې | ستا سره | او هغه ښځه مومنه | چې اوبخښي | خان خپل |

هغه چې تا سره ئې هجرت كړې دې | او هغه مومنه ښځه چې خپل خان [بې عوضه] نبي ﷺ

لِلنَّبِيِّ إِنْ أَرَادَ النَّبِيُّ أَنْ يَّسْتَنْكِحَهَا خَالِصَةً لَّكَ

نبي ته | كه اراده لري نبي | چې په نكاح واخلي هغه | دا رعايت خاص ستا دپاره دې |

ته اوبښي | هله كه نبي ﷺ ئې په نكاح كښې راوستل اوغواړي | دا حكم خاص ستا دپاره دې

Scanned with Ca

مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ط قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا

نهٔ دپاره د نورو مومنانو | معلوم دی مونږ ته | هغه حدونه | چې مقرر کړي دي مونږه |

نورو مومنانو دپاره داسې [بې مهره د نکاح کولو] حکم نه دې | مونږ ته هغه حکمونه معلوم دي | کوم

عَلَيْهِمْ فِيْۤ اَزْوَاجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ

په هغوئ باندې | په باره د ښځو د هغوئ کښې | او په باره د هغه وينځو کښې | چې مالکان شوي دي د هغې

چې مو په دوئ باندې د بيبيانو او وينځو په حق کښې مقرر کړي دي

اَيْمَانُهُمْ لِكَيْلَا يَكُوْنَ عَلَيْكَ

ښي لاسونه د هغوئ | [ته مو ددې حدونو نه جدا ساتلې ئې] دپاره ددې | چې نهٔ وي | په تا باندې

......... د دې دپاره چې په تا باندې څه تنګسيا رانشي

حَرَجٌ ط وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝ تُرْجِيْ مَنْ تَشَآءُ

څه تنګی | او دې الله | بخښونکې | مهربانه | جدا کړه ته | هغه ښځې | چې غواړې ته

او الله ﷻ ډير بخښونکې مهربان دې | په دې بيبيانو کښې ته چې کومه غواړې نو د خان نه ئې

مِنْهُنَّ وَتُئْوِيْۤ اِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ ط وَمَنِ

د هغوئ نه | او اوساته د خان سره | هغه ښځې | چې تهٔ غواړې ساتل د هغې | او هغه ښځې

په ډډه ساته | او چې ته غواړې نو خان ته ئې رانزدې کړه | ......... او کومه چې

ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ ط

چې بيا ئې طلب کړې تهٔ | د هغه ښځو نه | چې جدا کړي دي تا | پس نشته دې ګناه | په تا باندې

دې په ډډه ساتلې وي | که هغه [بيانزدې کول] او غواړې | نو په دې کښې هيڅ ګناه نشته

ذٰلِكَ اَدْنٰۤى اَنْ تَقَرَّ اَعْيُنُهُنَّ وَلَا يَحْزَنَّ

دا کار | نزدې دې | دې ته چې | يخې به شي | سترګې د هغوئ | او نهٔ به غمژنې کيږي |

په دې حکم سره زيات اميد دې | چې د هغوئ سترګې يخې شي | او غمژنې نه شي

وَيَرْضَيْنَ بِمَاۤ اٰتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ ط وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا

او راضي به وي هغوئ | په هغې | چې ورکوې تهٔ هغوئ ټولو ته | او الله پوهيږي | په هغه څه |

او ته چې څه هغوئ ته ورکړې | هغه ټولې به په هغې راضي وي | ......او الله ﷻ ته ستاسو د

فِيْ قُلُوْبِكُمْ ط وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَلِيْمًا ۝ لَا يَحِلُّ

چې په زړونو ستاسو کښې دي | او دې الله | په هر څه پوهه | تحمل والا | حلالې نهٔ دي |

زړونو حال معلوم دې | ......... او هغه په هر څه پوهه بردبار دې | ددې موجوده ښځو نه علاوه نورې

لَكَ النِّسَآءُ مِنْۢ بَعْدُ وَلَاۤ اَنْ تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ اَزْوَاجٍ

ستا دپاره | نورې ښځې | روستو ددې نه | او نهٔ دا | چې بدلوې به تهٔ | په ځائې د دوئ | نورې ښځې |

ښځې [واده کول] ستا دپاره حلالې نه دي | او دا هم جائز نه دي چې ته د دوئ په بدل کښې نورې ښځې واخلې

Scanned with Ca

وَلَوْ اَعْجَبَكَ　حُسْنُهُنَّ　اِلَّا　مَا　مَلَكَتْ

اگر که خوښ وی ستا | ښائیست دهغوئ | مګر حلالې دی | هغه وینځې | چی مالك شی دهغې |

اگر که دهغوئ ښائست دې زړه ته پریوځی | سوا ددې نه چې ستا وینځه وی

يَمِيْنُكَ ۗ　وَكَانَ اللّٰهُ　عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ　رَّقِيْبًا ۟

ښئ لاس ستا | او دې الله | په هر څیز باندې | نګران [ساتونکې] |

..............او الله ﷻ د هر څیز نګهبان دې |

## آسان ترجمه قرآن

اے نبی! مونږ ستا دپاره ستا هغه بیبیانې حلالې کړې دی، کومو ته چه تا دهغوی مهر ادا کړې وی او الله تعالٰی چه د غنیمت د مال نه کوم تاته درکړې دې، په هغې کښې چه کومې وینځې ستا په ملکیت کښې راغلې دی، هغه هم (ستا دپاره حلالې دی) او ستا هغه د تره لونړه او د ترور لونړه او د ماما لونړه او د خالاګانو لونړه هم، کومو چه ستا سره هجرت کړې وی او هغه مسلمانه زنانه چه بغیر د مهر نه ئې خپل ځان (د نکاح کولو دپاره) نبی ته پیش کړې وی په شرط ددې چه نبی هغې سره نکاح کول اوغواړی، دا ټول احکامات خاص ستا دپاره دی د نورو مومنانو دپاره نه دی، مونږ ته هغه احکامات ښه معلوم دی، چه مونږ دهغوی د بیبیانو او وینځو باره کښې هغوی باندې لازم کړې دی، (او ته مو دهغې نه مستثنٰی کړې ئې) دې دپاره چه په تا باندې هیڅ تنګی نه وی، او الله تعالٰی ډیر بخونکې او ډیر مهربان دې. په دغې بیبیانو کښې چه د کومې نمبر ته روستو کول غواړې، (روستو کولې شې) او کومه چه غواړې، ځان سره ساتلې شې، او کومو لره چه تا جدا کړې وی، په هغوی کښې چه کومه واپس رابلل غواړې نو په دې کښې هم ستا دپاره هیڅ ګناه نشته په دې طریقه کښې ددې خبرې زیاته توقع ده، چه د هغې ټولو سترګې په یخې وی او هغوی ته به غم نه وی، او ته چه هغوی ته څه ورکوې، په هغې باندې به هغه ټولې راضی وی او الله تعالٰی هغې ټولو خبرو باندې پوهیږی، کومې چه ستاسو په زړونو کښې دی، او الله تعالٰی د علم او حلم مالک دې. ددوی نه پس نورې زنانه ستا دپاره حلالې نه دی، او نه دا جائز دی، چه ته د دوی په بدله کښې نورې بیبیانې راولې، اګر چه دهغوی حسن تاته خوښ راشی. البته چه کومې وینځې ستا په ملکیت کښې وی (هغه ستا دپاره حلالې دی) او الله تعالٰی د هر څیز پوره نګرانی کونکې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ﴾ [اے نبی!] ﷺ خنې احکام تاسره مخصوص دی چه په دې سره ستا اختصاص اوشرف هم ثابتیږی په هغو کښې خنې دادی اول حکم ﴿اِنَّآ اَحْلَلْنَا لَكَ اَزْوَاجَكَ﴾ [مونږ ستادپاره ستا دابیبیانې] کومې چه دا وخت ستاپه خدمت کښې حاضرې دی او ﴿الّٰتِيْٓ اٰتَيْتَ اُجُوْرَهُنَّ﴾ [کوموته چه تا دهغوی مهر ورکړې دې] سره ددې چه دځلورونه زیاتې دی [حلالې کړی دی] دویم حکم ﴿وَمَا مَلَكَتْ يَمِيْنُكَ﴾ [او هغه ښځې هم] په خاص طور حلالې کړی دی [کومې چه ستا وینځې دی ﴿مِمَّآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلَيْكَ﴾ کومې چه الله تعالٰی تالره غنیمت کښې درکړې دی] ددې خاص طور بیان به په معلوماتو او مسئلو کښې راشی دریم حکم ﴿وَبَنٰتِ عَمِّكَ وَبَنٰتِ عَمّٰتِكَ﴾ [اوستا د ترونو لونړه او

Scanned with Ca

ستاد پلار دخویندو لونړه] مراد ددې نه دپلارد خاندان جینکۍ دی ﴿وَبَنٰتِ خَالِكَ وَبَنٰتِ خٰلٰتِكَ﴾[او ستادماماګانو لونړه اوستا دمور دخویندو لونړه] مراد ددې نه دمور دخاندان جینکۍ دی یعنی دې ټولو لره [هم] الله تعالی ستا دپاره حلالې کړې دی مګر دا دمطلق خاندان ښځې نه بلکه په دوی کښې صرف ﴿الّٰتِيْ هَاجَرْنَ مَعَكَ﴾ هغه [کومو چه تاسره هجرت کړی وی] دستاسره مطلب دادې چه دهجرت په دې کارکښې یې موافقت کړې وی او دزمانې ملګرتیا قید نشته او ددې قیدنه هغه ووتلې کومې چه مهاجرې نه وی څلورم حکم ﴿وَامْرَاَةً مُّؤْمِنَةً اِنْ وَّهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ﴾[او هغه مسلمانه ښځه] یې [هم] ستادپاره حلاله کړې ده [کومه چه بې عوضه] یعنی بې مهره [خان پیغمبرته ورکړی] یعنی په نکاح کښې راتلل وغواړی ﴿اِنْ اَرَادَ النَّبِيُّ اَنْ يَّسْتَنْكِحَهَا﴾[په دې شرط سره چه پیغمبردې لره په نکاح کښې راوستل غواړی] او د مسلمانې په قید سره ترې نه کافره ووتله چه نبی کریم ﷺ لره ددې سره نکاح درست نه وه او دا حکم پنځم دې او[داټول] احکام ﴿خَالِصَةً لَّكَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾[ستادپاره مخصوص کړې شوی دی نه دنورو مؤمنانو دپاره] چه د دوی دپاره نور احکام دی چنانچه﴿قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِيْٓ اَزْوَاجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ﴾ [مونږ ته هغه احکام معلوم دی] او دایتونو او احادیثو په ذریعه نوروته هم ښودلې شوی دی [کوم چه مونږ په دغو] عاموموْمنانو [باند ددوی دبیبیانواو وینځوپه باره کښې مقرر کړی دی] کوم چه ددې احکامونه جدا او بدل دی دکومو نه چه دنمونې په طور یو بره هم په ایت [اِذَا نَكَحْتُمُ] کښې مذکور دې په کوم کښې چه فمتعوهن سره دمهر لزوم دهرنکاح دپاره ثابتیږی خواه حقیقتا وی یا حکما او خواه په خپل مینځ کښې په قرار داد سره وی یا په شرعی حکم سره او نکاح نبوی ﷺ په څلورم حکم سره دمهرنه خالی دې او دا اختصاص څکه دې ﴿لِكَيْلَا يَكُوْنَ عَلَيْكَ حَرَجٌ﴾[چه په تادی څه قسمه تنګی] واقع [نه وی] پس په کومو مخصوصواحکامو کښې چه دنورونه وسعت دې لکه حکم اول او څلورم په دې کښې خو تنګی نه کیدل ظاهردی او په کومو کښې چه ظاهرا تقیید او تضیق دې لکه دریم او پنځم حکم هلته دتنګۍ نه کیدو دا معنی ده چه مونږ دا قید ستاد ځنو مصالحو دپاره لګولې دې که داقیدنه وې نو ستاهغه مصلحت به فوت شوې وو او هغه وخت به تاته تنګی وه کومه چه مونږ ته معلومه ده په دې وجه رعایت ددې مصلحت وشو چه دغه تنګی محتمله واقع نه شی او د دویم حکم متعلق تفصیل به په معلوماتو او مسئلو کښې راشی [او] دحرج رفع کولو رعایت څه په دې مختصو احکام کښې نه دې بلکه دعامو مؤمنانو متعلق چه کوم احکام دی په هغې کښې هم دا امر ملحوظ دې څکه چه ﴿وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا﴾ [الله تعالی غفور رحیم دې] پس په رحمت سره په احکامو کښې دسهولت رعایت فرمائی او په اسانو احکامو کښې هم چه هرکله چه کوتاهی چرې وشی مغفرت فرمائی کوم چه دلیل دغایت رحمت دې کومه چه بناده داسانۍ داحکاموا درفع دحرج او دا خو بیان وو دهغو ښځو دقسمونو کومې چه ستادپاره حلالې شوې دی وراند ددې بیان دې چه کوم قسمونه حلال شوی دی په هغو کښې چه خومره څه وخت تاسره وی دهغې څه احکام دی پس شپږم حکم دا ارشاد دې چه ﴿تُرْجِيْ مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ﴾[په دوی کښې ته چاله غواړې] او ترځو پورې چه غواړې [دخان نه لرې ساته] یعنی هغې له نمبر مه ورکوه ﴿وَتُـْٔوِيْٓ اِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ﴾[او چاله چه غواړې] او ترځو پورې چه غواړې [خپل خان ته نزدې ساته] یعنی هغې له نمبر ورکوه او چې کومې تالرې کړی وی په هغو کښې چې بیرته کومه یوه واپس خان ته طلب

Scanned with Ca

کړي نو هم ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ﴾ [په تا څه ګناه نشته] مطلب دا شو چه په بيبيانو کښې دشپې دنمبر
د وارو غيره رعايت په تا باند واجب نه دې او په دې کښې يو لوئ ضروري مصلحت دې هغه
دا چه ﴿ذٰلِكَ اَدْنٰۤى اَنْ تَقَرَّ اَعْيُنُهُنَّ﴾ [په دې کښې زياته توقع ده چه د دوی] ﴿ بيبيانو [سترګې يخې
وی] يعنی خوشحاله وی ﴿وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ بِمَاۤ اٰتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ﴾ [او زړونه ئې خفه نه وی او څه چه
هم تاسو ﷺ دوی ته ورکوئ په هغې تولې راضی وی] ځکه چه دغمژن کيدو بناء عادتا
دعوی داستحقاق وی او کله چه معلومه شی چه څه مال لګول توجه ګرځول وی دغه محض
داحسان په طور سره وی دغه زمونږ نه څه حق دې اونه ضروري دې نو بيا به څه قسم ګله يا
شکوه نه وې او دوينځو د وار نه کيدل تولو ته معلوم دی [او] اے مسلمانانو دا مخصوص
احکام واورئ او په زړه کښې داخيالات مه پيداکوئ چه دا احکام عام ولې نه شول که تاسو
داسې وکړئ نو ﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِيْ قُلُوْبِكُمْ﴾ [الله تعالی ته ستاسو د تولو خبروعلم دې] په داسې خيال
کولو به تاسو ته سزا درکړی ځکه چه دا په الله تعالی اعتراض او په رسول الله صلی الله عليه
وسلم باند حسد دې کوم چه موجب د عذاب دې ﴿وَكَانَ اللّٰهُ﴾ [او الله تعالی] دا څه چه کوئ
﴿عَلِيْمًا حَلِيْمًا﴾ [په هر څه پوهيدونکې دې] او اعتراض کوونکوته چه کومه زر سزا ورنکړې شوه نو
په دې سره نفی دعلم نه لازميږی بلکه ددې وجه داده چه هغه [بردباره] هم [دې] په دې وجه
کله په سزا وخت اړوی مخکښې هغه احکام بيانوی چه دحضرت رسالت مآب سره خاص دی
ارشاد کوی چه په دوی کښې ځنې خو دبرنو احکامو په نتيجه کښې دی او ځنې نوی پس چه
بره کوم په دريم او پنځم حکم کښې په منکوحه ښځوکښې دهجرت او ايمان قيد لګولې شوې
دې پس ﴿لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنْ بَعْدُ﴾ [د دغو نه علاوه نورې ښځې] په کومو کښې چه دا قيد نه
وی [ستاد پاره حلالې نه دی] يعنی په خپلوانو کښې غير مهاجراتې حلالې نه دی او په نورو
ښځو کښې غير مؤمنانې حلالې نه دی دا خو تتمه شوه د برنی حکم [او] وړاند اووم حکم نوې
دې چه ﴿وَلَاۤ اَنْ تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ اَزْوَاجٍ﴾ [او نه دا جائز ده چه ته ددې] موجوده [بيبيانو په ځائ
نورې بيبيانې وکړې] داسې چه په دوی کښې ځنولره طلاق ورکړې او د دوی په ځائ نورې
وکړې او داسې چه بغير د دوی د طلاقولو نه دچاسره نکاح وکړې نو ددې ممانعت نشته دغه
شان که بغير د قصد دبدلولو نه چالره طلاق ورکوې نو ددې هم ممانعت ثابت نه دې بلکه لفظ
د تبدل ددې مجموعه په ممانعت باند دال دې پس دا تبدل منع دې ﴿وَّلَوْ اَعْجَبَكَ حُسْنُهُنَّ﴾ [اګر چه
تاته ددغو] نورو [حسن ښه معلوم شی ﴿اِلَّا مَا مَلَكَتْ يَمِيْنُكَ﴾ مګر کومې چه ستا وينځې وی] چه
هغه دپنځم او اووم دواړو حکمونو نه مستثنی دی يعنی هغوی دکتابيه کيدو سره هم حلالې
دی او په دوی کښې تبدل هم درست دې ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ رَّقِيْبًا﴾ [او الله تعالی دهرشی]
دحقيقت اواثارو اومصلحتونو [پوره نګران دې] په دې وجه په دې تولو احکامو کښې
مصلحتونه اوحکمتونه دی اګر چه عامو مکلفينوته هغه په تعين سره نه دی ښودلې شوی په
دې واسطه سره چاته دسوال يا داعتراض منصب او استحقاق نشته.

### معارف او مسائل

په دې آيتونو کښې د نکاح او طلاق وغيره باره کښې د هغې اوؤ حکمونو بيان دې چې رسول
کريم ﷺ د پاره مخصوص دی ، دا رسول کريم ﷺ دپاره يو جدا شان او د خصوصی عزت
نخښنه ده، په دې کښې ځينې احکام خو داسې دی چې خصوصيت ئې رسول کريم ﷺ سره

Scanned with Ca

بالکل واضح اوصفا دي اوخيني په کښې داسې هم شته دي چې ټولو مسلمانانو دپاره عام دی خوځینې قیدونه او شرطونه په کښې رسول کریم ﷺ دپاره مخصوص دی ، تفصیل ئې دادې

**اولنې حکم:** ﴿إِنَّآ أَحْلَلْنَا لَكَ أَزْوَاجَكَ ٱلَّٰتِيٓ ءَاتَيْتَ أُجُورَهُنَّ﴾ [مونږ ستا دپاره ستا بیبیانې حلالې کړی دی چې تا ورته مهر ورکړې دې] دا په ظاهره ټولو مسلمانانو دپاره عام حکم دې مګر په دې کښې دخصوصیت وجه داده چې دغه وخت دهغوئ په نکاح کښې دڅلورو نه زیاتې بیبیانې موجودې وې او عامو مسلمانانو دپاره د څلورو نه زیاتې ښځې په نکاح کښې په یو ځل لرل حلال نه دی ، یعنی دا د رسول کریم ﷺ خصوصیت داسې شو چې په یو ځل رسول کریم ﷺ دپاره د څلور بیبیانو نه زیاتې په نکاح کښې لرل حلال کړې شو.

او په دې آیت مبارك کښې د ﴿ٱلَّٰتِيٓ ءَاتَيْتَ أُجُورَهُنَّ﴾ قید لګول احترازی نه دی ، او دا د حلالوالی شرط هم نه دې بلکه د واقعې ښکاره کول دی چې څومره بیبیانې د رسول کریم ﷺ په نکاح کښې راغلې وی رسول کریم ﷺ د ټولو مهر نقد ادا کړې وو. د قرض څه نیتته وغیره په کښې نه وه. لکه څنګه چې د رسول کریم ﷺ عادت مبارك وو چې پخپلې ذمه څیز به ئې رز تر زره ادا کولو او بې ضرورته به ئې په کښې مهلت نه اخستلو. ددې واقعې په ښکاره کولو سره د مسلمانانو هم دغسې شوق پیدا کول او ترغیب دې.

**دویم حکم:** ﴿وَمَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ مِمَّآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَيْكَ﴾ [او هغه ښځې هم چې ستا په ملکیت کښې دی چې الله ﷻ درته په غنیمت کښې درکړی دی] په دې آیت مبارك کښې لفظ د ﴿أَفَآءَ﴾ د فيئ نه مشتق دې ، د اصطلاحی معنې په لحاظ سره دا هغې مال ته وئیلې شی چې کافرانو نه بې جنګه یا د صلح په ډول حاصل شی. اوکله مطلق د غنیمت مال ته وئیلې شی. دې آیت مبارك کښې ددې ذکر دشرط په ډول نه دې راغلې چې ګنې صرف هغه وینځې تاسو دپاره حلالې دی چې نیغ په نیغه مو په جنګ یا صلح کښې د غنیمت یا فئ په ډول حاصل کړې وی بلکه هغه هم تاسو دپاره حلالې دی چې په بیعه تاسو اخستې وی.

لیکن په دې حکم کښې په ظاهره د رسول کریم ﷺ څه خصوصیت او امتیار نشته ، بلکه ټول امت ته دا حکم دې ، هر کله چې د آیت مبارك د ظاهری روانئ نه په دې کښې هم دهغوئ خصوصیت معلومیږی ، په دې بنا روح المعانی کښې لیکلی دی چې څنګه د رسول کریم ﷺ ازواجو مطهراتو سره د رسول کریم ﷺ نه پس د چا امتی نکاح کول حلال نه دی. دغه شان د رسول کریم ﷺ وینځه هم د رسول کریم ﷺ نه پس چا امتی دپاره نه حلالیږی[۱]. لکه ماریه قبطیه رضي الله عنها چې د روم د بادشاه مقوقس هغوئ دپاره د ډالئ په ډول رالیږلې وه. دې لحاظ سره په ﴿وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ﴾ کښې هم د رسول کریم ﷺ یو خصوصیت ثابت شو.

اوسیدی حکیم الامت قدس سره نور دوه خصوصیتونه په بیان القرآن کښې بیان کړی دی کوم چې ددغه بیان کړی خصوصیت نه زیات واضح دی.

① اول دا چې الله ﷻ ، رسول کریم ﷺ ته یو خصوصی اختیار هم ورکړې وو چې د غنیمت د مال تقسیمولو نه وړاندې به رسول کریم ﷺ ترې یو څیز اخستې شو چې د رسول کریم ﷺ خاص ملکیت به شو دغې څیز ته به په اصطلاح کښې صفی النبی وئیلې شو. څنګه چې د خیبر

---

[۱] ) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ١٦، ص ١٨٢

Scanned with Ca

په غزا کښې رسول کريم ﷺ ځان دپاره صفيه رضي الله عنها مخصوصه کړې وه.

④ بل خصوصيت دادې چې د دارالحرب د يو غيرمسلم د طرفه د اميرالمؤمنين په نوم باندې راليږلې شوې ډالۍ خالص د اميرالمؤمنين نه رسي بلکه د بيت المال به وي چې د ټولو مسلمانانو حق به په کښې وي. خو د رسول کريم ﷺ د پاره حکم دا وو چې هغه به خاص د رسول کريم ﷺ ملکيت ګرځيدو لکه ماريه قبطيه چې مقوقس د ډالۍ په ډول راليږلې وه[1]. والله اعلم.

**دريم حکم:** ﴿وَبَنٰتِ عَمِّكَ وَبَنٰتِ عَمّٰتِكَ﴾ دې آيت مبارک کښې عم او خال د مفرد او عمّت او خلت د جمع په صيغې سره راوړلې شو، علماء کرام ددې دوه وجوهات بيانوی. تفسير روح المعانی د ابی حيان دا توجيه خوښه کړې ده چې د عربو په محاورو او شعرونو کښې د عم جمع نه استعماليږی بلکه مفرد ئې استعماليږی[2].

د آيت مبارک مطلب دا شو چې ستاسو د ترۀ او د ترور لونړه، اود ماما اود ماسی [خاله] لونړه تاسو دپاره حلالې کړې شوې. د ترۀ او ترور لونړه کښې د پلار د خاندان ټولې جينکۍ او د ماما او ماسی په لونړو کښې د مور د خاندان ټولې جينکۍ راغلې چې دوئ سره د نکاح حلالوالې يوازې رسول کريم ﷺ سره مخصوص نه دې، د ټولو مسلمانانو هم دا حکم دې ليکن دوئ سره د نکاح د حلالوالی حکم رسول کريم ﷺ دپاره خاص په هغه صورت کښې دې چې دوئ د مکې مکرمې نه مدينې منورې ته هجرت کړې وی. خو هجرت دپاره دا ضروری نه ده چې د رسول کريم ﷺ په معين يې کړې وی يا يې په يو وخت کښې هجرت کړې وی بلکه مراد نفس هجرت دې که رسول کريم ﷺ سره په سفر کښې شريکې وی او که بل وخت ئې سفر کړې وی. په دوئ کښې چې چا هجرت د سره نه وو کړې، هغوئ سره د رسول کريم ﷺ نکاح حلال اونه ګرځولې شو بلکه د رسول کريم ﷺ د ترۀ ابی طالب لور ام هانی رضي الله عنها فرمائيلی دی چې ما سره د رسول کريم ﷺ نکاح ځکه حلاله نه وه چې ما د مکې مکرمې نه هجرت نه وو کړې. بلکه زه په طلقاء کښې شمير کړې شوې اوم. طلقاء هغه خلقو ته وئيلې شی چې رسول کريم ﷺ د فتح مکې په وخت په هغوئ هيڅ غرض او نه لرلو او نه ئې اووژل اونه ئې غلامان جوړ کړل بلکه آزاد ئې پريښودل [روح وجصاص][3].

د نکاح دحلالوالی دپاره د هجرت دا شرط د رسول کريم ﷺ په باره کښې خالص د مور، پلار، د خاندان د جينکو اوبيبيانو په حق کښې وو او د عام امت بيبيانو سره د نکاح د حلالوالی دپاره دا شرط نه وو

د مور پلار په خاندان کښې ددې شرط لګولو حکمت دا کيدې شی چې عموما د خاندان د جينکو پخپل خاندان باندې يو فخر وی چې د پيغمبر ﷺ د زوجيت سره نه بنائی ځکه ددې علاج په دې شان اوشو چې هغوئ به هله د رسول کريم ﷺ بيبيانې جوړيدې شی چې د الله ﷻ او رسول ﷺ سره ئې د محبت کولو ثبوت په هجرت کولو سره ورکړې وی. او دې دپاره يې

[1] ) بيان القرآن: ج ۹، ص ۵۹

[2] ) تفسير روح المعانی: ج ۱۶، ص ۱۷۷

[3] ) تفسير روح المعانی: ج ۱۶، ص ۱۷۶، وأحکام القرآن للجصاص، تفسير سورة الأحزاب: ج ۸، ص ۳۲۱، وجامع الترمذی، أبواب التفسير، باب وفی سورة الأحزاب: ج ۲، ص ۱۵۶

Scanned with Ca

خپل وطن ، خپل کورکلي ، خپل خپلوان او خپل مال وجائيداد په پريښودلو سره قربان کړي وي ، دهجرت کولو په موقعه انسان ته قسماقسم تکليفونه وررسي . په دې شان د الله ﷻ په لار کښې چې کوم تکاليف رسي نو دهغې د عملونو په اصلاح کولو کښې خاص دخل وي.
خلاصه داده چې دمور پلار دخاندان د بيبيانو سره د رسول کريم ﷺ د نکاح کولو خصوصي شرط دادې چې هغوئ د مکې مکرمې نه هجرت کړې وي.

**څلورم حکم:** ﴿وَامْرَأَةً مُّؤْمِنَةً إِنْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ إِنْ أَرَادَ النَّبِيُّ أَنْ يَسْتَنْكِحَهَا خَالِصَةً لَّكَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ [يعني که يوه مومنه ښځه چې خپل ځان تاته هبه کړي يعني بغير د مهر څخه تاسره نکاح کول غواړي نو هغې سره د نکاح اراده اوکړه ، ستا دپاره بغير د مهر هم نکاح حلاله ده. او دا خالص حکم صرف ستا دپاره دې نورو مؤمنانو دپاره نه دې . دې معامله کښې د نبي کريم ﷺ خصوصيت بالکل واضح دې ، ځکه عامو خلقو دپاره په نکاح کښې د مهر شرط لازم دې ، تر دې پورې چې که د نکاح په وخت کښې د مهر ذکر نه وي نو يا نفي سره اوشي يعني ښځې اووئيل چې مهر به نه اخلم ، يا سړي اووئيل چې نکاح په دې شرط باندې کوؤچې مهر به نه ورکوؤ ، نو په دواړو صورتونو کښې به د دوئ وينا اوشرط شرعي حيثيت سره لغو وي، اوشرعي طور سره به مهر مثل واجب کيږي ، صرف د نبي کريم ﷺ دپاره خصوصيت وو چې نکاح بلامهر ورته حلاله کړې شوې وه ، خو چې ښځه بغير د مهر څخه د نکاح کولو خواهش منده وي.

**فائده:** دا حکم چې ښځه ستا دپاره خپل ځان هبه کړي يعني بغير د مهر څخه نکاح کول غواړي، نو هغه ستا دپاره حلاله ده. د علماء کرامو رحمهم الله په دې کښې اختلاف دې چې داسې څه واقعه پيښه شوې هم ده کنه؟ ځينو فرمائيلي دي چې د رسول کريم ﷺ يوې داسې ښځې سره نکاح کول ثابت نه دي چې د هغې حاصل دادې چې دوئ ﷺ يو هبه کوؤنکې ښځې سره نکاح نه ده کړې او ځينې علماء کرام رحمهم الله فرمائي چې داسې کيدل ثابت دي [روح المعاني][1].
دې حکم سره لګيدلې جمله : ﴿خَالِصَةً لَّكَ﴾ ځينې حضراتو رحمهم الله صرف دې څلورم حکم سره مخصوص کړې ده خو زمخشري وغيره مفسرينو داجمله هغې ټولو احکامو سره لګولې ده کوم چې پورته بيان شوي دي . چې دا ټول خصوصيتونه درسول کريم ﷺ دي[2] ، ددې په آخر کښې يې اوفرمائيل : ﴿لِكَيْلَا يَكُونَ عَلَيْكَ حَرَجٌ﴾ دا خصوصي احکام تاسو ﷺ دپاره ځکه ورکړې شوي دي چې په تاسو ﷺ څه تنګی نه وي. په دغې بيان شوؤ خصوصي احکامو کښې ړومبې حکم او څلورم حکم داسې دي چې په دې کښې تنګي پورته کيدل زياته آساني ورکړې کيدل ښکاره دي مګر په پاتې نورو دريو حکمونو خو په ښکاره په رسول کريم ﷺ باندې نور قيدونه اولګولې شو چې ورسره تنګي زياتيدل پکار وو. خو په دې کښې دداسې ښيګړو خيال ساتلې شوې دې چې ددغې قيدونو لګولو نه بغير به رسول کريم ﷺ ته تکليف زيات راپيښيدو چې زړه مبارک به ئې ورسره تنګيدو ، په دې بنا په زياتي قيدونو لګولو سره هم د هغوئ تنګي

[1] ) تفسير روح المعاني: ج ١٦، ص ١٨٠، تفصيل دپاره اوګورئ: مصنف ابن ابی شيبة، رقم الحديث: ١٧١٧ نه ١٧١٧٧ پورې، باب ما قالوا فی التی وهبت نفسها للنبی صلی الله عليه وسلم.
[2] ) تفسير الکشاف تحت هذه الآية: ج ٥، ص ٣٤

لرې کول مقصود وو.

**پنځم حکم:** پنځم حکم هغه دې چې د مؤمنة د قید نه معلومیږي. هغه داسې چې عام مسلمانان خو کتابي زناناؤ سره نکاح کولې شي ځنګه چې د قرآن عظیم الشان نص پرې وارد شوې دې. خو رسول کریم ﷺ دپاره د بي بي مؤمن کیدل ئې هم شرط دی، کتابیانو زناناؤ سره ئې نکاح نه کیږي.

هر کله چې ددې پنځو احکامو خصوصیت رسول کریم ﷺ سره بیان کړې شو، وروسې د عامو مسلمانانو حکم ئې اجمالي طور: ﴿قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِي أَزْوَاجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ﴾ سره بیان اوفرمائیلو دا بیان شوي حکمونه رسول کریم ﷺ دپاره مخصوص دي، د نورو مسلمانانو د نکاح دپاره چې مونږ فرض کړي دي یعني مونږ پیژنو، لکه دنورو مسلمانانو بې مهره نکاح نشي کیدې او کتابي زناناؤ سره نکاح کیدې شي. او په تیرو شوؤ احکامو کښې د رسول کریم ﷺ د نکاح دپاره کوم قیدونه او شرطونه چې ضرروی اوګرځولې شو هغه د نورو دپاره نه دي.

په آخر کښې فرمائي چې: ﴿لِكَيْلَا يَكُونَ عَلَيْكَ حَرَجٌ﴾ یعني دنکاح په معامله کښې ستاسو دپاره دا خصوصي احکام ځکه بیان شو چې په تاسو ﷺ باندې څه تنګي نه وي او چې کوم قیدونه او شرطونه په تاسو ﷺ باندې د نورو مسلمانانو په نسبت زیات لګولې شوي دي اګر چې په ظاهره دایو قسم تنګي ده خو ددغې شرطونو په ښیګړو که تاسو غور اوکړئ نو دهغې دا مطلب به درته ښکاره شي چې هغه هم ستاسو د روحاني پریشانۍ او زړۀ تنګۍ لرې کولو دپاره دي.

دې ځائې پورې د نکاح باره کښې پنځه احکام بیان شوي دي چې رسول کریم ﷺ سره څه نه څه خصوصیت لري وروسې دې احکامو سره تړلي دوه حکمونه بیانوي لکه:

**شپږم حکم:** ﴿تُرْجِي مَن تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ مَن تَشَاءُ﴾، ﴿تُرْجِي﴾ د ارجاء نه مشتق دې چې معنی ئې روستو کول دي. او ﴿وَتُؤْوِي﴾ د ایواء نه مشتق دې چې معنی ئې نزدې کول دي، مطلب دادې چې ستاسو ﷺ اختیار دې چې په ازواجو مطهراتو کښې څوک غواړئ، روستو ئې کړئ او څوک چې غواړئ ځان ته ئې رانزدې کړئ، دا رسول کریم ﷺ دپاره مخصوص حکم دې، د عام امت دپاره د چا چې ډیرې بیبیانې وي نو په ټولو کښې هغه دپاره برابري کول ضروري دي. ددې خلاف کول حرام دي. برابرۍ نه ئې مراد په خرچ اخراجاتو او شپې تیرولو کښې برابري ده. لکه څومره شپې چې یوې بي بي سره تیروي نو دومره به بلې سره هم تیروي. کمې زیاتې به په کښې نه کوي. خو رسول کریم ﷺ ته په دې کښې مکمل اختیار ورکړې شوې وو. په ټولو بیبیانو کښې دبرابرئ کولو پابندي ترې لرې کړې شوې وه. او په آخر د آیت مبارک کښې ورته دا اختیار هم ورکړې شو چې د کومې بي بي نه یو ځل د کناره کیدو اراده اوکړئ او هغه بیا ځان ته رانزدې کول غواړئ نو دغسې کولې شئ د: ﴿وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ﴾ ﴿وَتُؤْوِي إِلَيْكَ﴾ هم دغه مطلب دې، الله ﷻ رسول کریم ﷺ ته دا عزت ورکړو چې په ازواجو مطهراتو کښې د برابرۍ کولو دحکم نه یې مستثنی کړو خو سره ددې به رسول کریم ﷺ د برابرۍ کولو پابندي کوله، امام ابوبکر جصاص رحمه الله اوفرمائیل چې د حدیث روایت هم دادې چې رسول کریم ﷺ به ددې آیت مبارک دنازلیدو نه پس هم په ازواجو مطهراتو کښې دبرابرۍ کولو پوره خیال ساتلو، بیا په خپل اسناد سره یې د عائشه صدیقه رضي الله عنها

Scanned with Ca

نه دا حديث نقل كړو چې په مسند احمد ﷫، ترمذي ، نسائي او ابی داؤد ووغيره كښې هم موجود دي.

كان رسول الله ﷺ يقسم فيعدل فيقول اللهم هذا قسمي فيما املك فلا تلمني فيما لا املك قال ابوداؤد يعني القلب(۱)

رسول كريم ﷺ د ټولو ازواجو مطهراتو په مينځ كښې برابري كوله ، اودعابه ئې كوله چې يا الله ! په څه څيز كښې مې چې اختيار دې په هغې كښې مابرابري اوكړه، مگر په كوم څيز كښې مې چې اختيارنشته په هغې مې ملامت نه كړې.

يعنی په خرڅ خوراك اودشپې په نمبر كښې برابري كوم او په دې كښې مې وس شته دې خو په زړه مې اختيار او وس نشته په هغې مې اونه نيسې، چې چا سره زياته او چا سره كمه مينه كوم.

او په بخاري كښې دعائشه صديقه ﷝ نه روايت دې چې كه رسول كريم ﷺ به د يوې بی بی د شپې په نمبر هغې ته د څه عذر په بنا نه شوؤ ورتلې نو دهغې نه به ئې اجازت غوښتلو. حالانكه دا آيات هم نازل شوی وو ﴿وَتُؤْوِىٓ اِلَيْكَ﴾ چې په هغې كښې د بيبيانو په مينځ كښې د برابرئ كولو فرض د رسول كريم ﷺ نه معاف كړې شوی وو(۲).

داحديث پاك هم دحديث په ټولو كتابونو كښې مشهور دې چې كله په مرض وفات كښې رسول كريم ﷺ دپاره د ازواج مطهراتو كورونو ورتلل مشكل شو نو د ټولو بيبيانو نه ئې اجازت اوغوښتلو چې عائشه صديقه ﷝ د بيمارئ ورځې تيرې كړې هغوئ اجازت وركړو(۳).

ټول پيغمبران ﷨ خصوصا د رسول كريم ﷺ داسې شان لرلو چې د هغوئ د آسانئ دپاره به ورته په يو كار كښې د الله ﷻ د طرفه دهغې د نه كولو اجازت وركړې شو نو د شكرگذارئ په دول ئې په اصل عزيمت عمل كولو او رخصت به ئې صرف د ضرورت په وخت استعمالولو.

﴿ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ تَقَرَّ اَعْيُنُهُنَّ وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ﴾ يعنی رسول كريم ﷺ ته دا ازواجو مطهراتو باره كښې دبرابرئ فرضيت پورته كول او رسول كريم ﷺ ته هم هر قسم اختيار وركول د هغې د علت اوحكمت بيان دې ، رسول كريم ﷺ ته ددې عام اختيار وركولو مصلحت دادې چې د ټولو ازواجو مطهراتو سترگې يخې پاتې كيږي او هغوئ ﷢ پخپله حصه راضي اوسيږي.

دلته دا شبه كيدې شی چې داحكم خو په ظاهره د ازواجو مطهراتو د مرضئ اومنشاء خلاف او دهغوئ دخفگان وجه جوړيدېشی ،نو څنگه د هغوئ ﷢ د خوشحالئ سبب گرځيدې شی ؟ ددې جواب د تفسير په خلاصه كښې پورته تير شوې دې چې په اصل كښې د خفگان سبب خپل حقدار گڼړلې كيدې شی ، دچا په باره كښې چې انسان ته دا معلوم وی چې زما حق د فلانی په ذمه دې كه هغه ذدغې حق په ادا كولو كښې كوتاهی كوی نو غم خفگان ورسره مل شي . او په چا چې څوك خپل حق نه گڼړی نو د هغه د طرفه مهربانی كول سراسری خوشحالی وی ، دلته هم كله چې دا اووئيلې شو چې په بيبيانو كښې برابري كول په رسول كريم ﷺ

---

(۱) أحكام القرآن للجصاص: ج ۸، ص ۳۲۸، وسنن ابی داود، كتاب النكاح، باب فی القسم بين النساء: ج ۱، ص ۲۹۰، وجامع الترمذی، أبواب اسلاح، باب ما جاء فی التسوية بين الضرائر، ومسند أحمد، حديث السيدة عائشة رضی الله عنها، رقم الحديث: ۲۵۸۵۳

(۲) صحيح البخاری، كتاب التفسير، سورة الاحزاب، باب قوله ترجی من تشآء الخ: ج ۲، ص ۷۰۶

(۳) صحيح البخاری، كتاب المغازی، باب مرض النبي ووفاته (صلی الله عليه وسلم) ج ۲، ص ۶۳۹

Scanned with Ca

باندې واجب نه دي بلکه رسول کريم ﷺ د خپلې خوښې مالك دې نو هرې بی بی ته به چې څومره حصه د رسول کريم ﷺ د توجه او صحبت حاصلیده هغې لره به ئې احسان اوښیکره ګڼله او په هغې باندې به خوشحالیده.

په آخر د آیت مبارك کښې فرمائی چې: ﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِىْ قُلُوْبِكُمْ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَلِيْمًا﴾ [یعنی والله ته ستاسو د زړونو حال معلوم دې او هغه په هر څه پوهه بردبار دې] په دې آیتونو مبارکو کښې د شروع تر دې ځائې پورې دهغه احکامو بیان راروان دې چې د نکاح په باره کښې رسول کريم ﷺ سره څه خصوصیت لرې، وروستو هم ددغې ځینو احکامو بیان راروان دې په مینځ کښې دا آیت مبارك راغلو چې الله تعالی ستاسو دزړونو په حالاتو پوهیږی او علیم حلیم دې. وړاندې روستو سره ددې آیت مبارك څه جوړښت نه ښکاری، په روح المعانی کښې فرمائی چې رسول کريم ﷺ ته د څلورو نه زیاتو بیبیانو په نکاح کښې دساتلو او بې مهره دنکاح کولو اجازت ورکړې شوې وو. نو ددې آیت مبارك په مینځ کښې د راوړلو مطلب دا هدایت ورکول دی چې مسلمانان دې داسې وسوسې په زړه کښې نه پریږدی اودا پوخ ایمان دې لری چې دا ټول خصوصیات د الله ﷻ دطرفه دی په کومو کښې چې ډیر حکمتونه او ډیرې ښیګړې دی، د نفسانی خواهشاتو دکاملولو دلته څه درك نه لګی[۱].

**د نبی کريم ﷺ زاهدانه طرز زندګی او دې سره د بیبیانو کثرت مسئله:** د رسول کريم ﷺ د بیبیانو ډیروالی باندې هغه خلق ډیر بحث کوی کوم چې د اسلام مخالف دی. خو که د رسول کريم ﷺ په ژوند مبارك باندې نظر واچولې شی نو یو شیطان ته هم د رسول کريم ﷺ د شان خلاف د وسوسې پید اکولو ګنجائش نه پاتې کیږی. چې د هغه نه ثابته ده چې د ټولو نه اول نکاح ئې د پنځویشتو کالو په عمر کښې خدیجة الکبری رضي الله عنها سره کړې وه. چې کونده وه او عمر ئې ډیر وو، او د اولاد مور وه. دې نه مخکښې د دوؤ خاوندانو په نکاح کښې پاتې شوې وه او پنځوس کالو عمر پورې ئې یوازې دغې بی بی سره د خلمی توب ټول عمر تیر کړو. دغه پنځوس کلن عمر ئې دمکې مکرمې دخلقو په وړاندې تیر کړو. کله چې څلویښت کلن شو او دخپلې پیغمبرئ اعلان ئې اوکړو نو په ښار کښې مخالفت شروع شو او مخالفینو ئې په تنګولو او په هر قسم عیب لګولو باندې سترې شو. جادوګر ئې ورته اووئیل، شاعر او مجنون ئې ورته اووئیلو، خو هیڅ یو دښمن ته دا توفیق اونه شو چې د تقوی او پاکیزګئ په خلاف د څه څیز نسبت ئې ورته کړې وې، کله چې پنځوس کلن عمر مبارك ته اورسیدو نو د خدیجة الکبری رضي الله عنها د وفات نه پس ئې سوده په نکاح کښې راغله چې هغه هم کونده وه.

مدینې منورې ته ئې چې هجرت اوکړو او عمر مبارك ئې څلور پنځوس کاله شو نو په دویمه هجرئ کښې عائشه صدیقه رضي الله عنها د رسول کريم ﷺ کور مبارك ته رارخصت کړې شوه. ددې نه یو کال پس ئې حفصه رضي الله عنها او څور ورځې پس ئې زینب بنت خزیمه رضي الله عنها سره نکاح اوشوه، خو میاشتې پس چې دغه زینب وفات شوه نو په څلورم کال د هجرت ئې ام سلمه رضي الله عنها سره نکاح اوشوه او دا کونده شوې وه او ددې اولاد هم وو. په پنځم کال د هجرت زینب بن جحش رضي الله عنها سره د الله تعالی په حکم نکاح اوشوه چې بیان ئې د سورۂ احزاب په اول کښې تیر شوې دې.

---

[۱]) تفسیر روح المعانی: ج ۱۶، ص ۱۸۶

دغه وخت دهغوئ عمر اته پنځوس کاله وو. په اخري پنځو کالو کښې ئې نورې بيبانې هم په حرم [نکاح] کښې راغلې. د پيغمبر کورنی ژوند او کورنو معاملو سره ددين يوه لويه حصه تړلې شوې وی. ددې نهو ازواجو مطهراتو په ذريعه چې څومره دين خور شو د هغې اندازه صرف ددې نه لګولې شی چې صرف د عائشه صديقه ﷝ نه دوه زره دوه سوه لس احاديث او ام سلمه ﷝ نه درې سوه اته شپيته احاديث په معتبرو روايتونو سره د احاديثو په کتابونو کښې جمع دی. ام سلمه ﷝ چې کوم احکام او فتاوې خلقو ته اوخودلې د هغې باره کښې حافظ ابن قيم په اعلام الموقعين کښې ليکلی دی چې که راجمع کړې شی نو يو مستقل کتاب به پرې ترې جوړ شی[1]. د عائشه صديقه ﷝ د دوؤ سوؤ نه زيات صحابه کرام ﷡ شاګردان وو او ددوئ ﷝ نه ئې د فقهي مسائل او فتاوې ئې ازده کړې وې. او ډيرو بيبيانو سره په نکاح کولو يو حکمت دا هم وو چې د هغوئ ټول خاندان په اسلام کښې داخل شی. دا اجمالي نقشه چې څوك خپلې مخې ته کيږدي نو آيا هغوئ به دا اووئيلې شی چې دغه د بيبيانولې ډيروالې د څه نفسانی يا جنسی خواهش دپاره وو، معاذ الله که داسې وې نو ټول عمر ئې جره [بې واده] يا کونډې بی بی سره ولې تيرولو، اود آخرى عمر په پنځو کالو کښې ئې د غه ډيروالې د بيبيانو ولې راوستو؟ دا مضمون په پوره تفصيل سره او دغه د بيبيانو د ډيروالي مسئله اوپه دې باندې شرعی او عقلی، فطری او اقتصادی حيثيت سره مکمل بحث په معارف القرآن سورۀ نساء کښې د دريم آيت لاندې راغلې دې هلته دې اوکتلې شی.

**اووم حکم:** ﴿لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنْ بَعْدُ وَلَآ اَنْ تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ اَزْوَاجٍ وَّلَوْ اَعْجَبَكَ حُسْنُهُنَّ﴾ [يعنی ددې موجوده ښځو نه علاوه نورې ښځې [واده کول] ستادپاره حلالې نه دی] اوداهم جائز نه دی چې ته ددوئ په بدل کښې نورې ښځې واخلې اګر که دهغوئ ښائست دې زړه ته پريوځی] دې آيې مبارك کښې د ﴿مِنْ بَعْدُ﴾ دوه تفسيرونه کيدې شی، يوداچې ستاسود موجوده بيبيانونه علاوه چې ستاسو په نکاح کښې دی، بلې بی بی سره ستاسو نکاح حلاله نه ده، نو د څينې صحابه کرامو ﷡ او د تفسير د امامانو نه هم دا تفسير منقول دې لکه انس ﷛ اوفرمائيل چې کله الله ﷻ ازواجو مطهراتو ته دا اختيار ورکړو چې تاسو ددنيا دولت غواړئ اوکه دا غواړئ چې هم د رسول کريم ﷺ په نکاح کښې پاتې شئ او هغوئ سره ساده ژوند تيرول خوښوئ؟ ټولو بيبيانو د رسول کريم ﷺ په نکاح کښې اوسيدل خوښ کړل او د زيات خرچ غوښتل ئې پريښودل نو ددې په بدله کښې د انعام په ډول الله ﷻ هم ددې نهو بيبيانو په موجودګئ کښې بلې سره د نکاح کولو نه منع اوکړه [بيهقی پخپل سنن کښې په حواله د روح][2].

او ابن عباس ﷛ اوفرمائيل چې څنګه الله ﷻ ازواج مطهرات هغوئ دپاره مخصوص کړل چې دهغوئ نه پس به هم هغوئ بل چا سره نکاح نشی کولې دغسې ئې رسول کريم ﷺ هم هغوئ دپاره مخصوص کړو چې دهغوئ نه علاوه به بلې بی بی سره نکاح نشی کولې. عکرمه ﷡ نه هم يو روايت داسې نقل کړې شوې دې[3].

---

[1] اعلام الموقعين، فصل اول من وقع عن الله: ج ١، ص ١٣

[2] تفسير روح المعاني: ج ١٦، ص ١٨٨، وسنن الكبرىٰ للبيهقي، رقم الحديث: ١٣١٢٥

[3] تفسير المظهري: ج ٧، ص ٣٦٧

Scanned with Ca

او عکرمه ابن عباس ﷺ ، او مجاهد ﷺ نه په یو روایت کښې د لفظ ﴿مِنۢ بَعۡدُ﴾ د اتفسیر نقل کړې شوې دې چې ﴿من بعد الاصناف المذکورة﴾ مطلب دا چې د آیت مبارك په شروع کښې هغوئ دپاره چې څومره قسمه بیبیانې حلالې کړې شوې دی ، دهغې نه پس یعنی ددوئ نه سوا بل قسم ښځو سره د هغوئ نکاح حلاله نه ده. مثلاً د آیت په شروع کښې د خپل خاندان د ښځو نه صرف هغه ښځې حلالې ګرځولې شوې وې کومې چې دمکې مکرمې نه مدینې منورې ته په هجرت کول کښې دهغوئ په پل تلې وی او دخاندان په ښځو کښې غیر مهاجرات ناجائزه اوګرځولې شوې هم داشان د مؤمنة قید لګولو سره دوئ ﷺ دپارره د اهل کتابو ښځو نکاح ناجائزه اوګرځولې شوه نو د آیت جملې ﴿مِنۢ بَعۡدُ﴾ مطلب دادې چې څومره قسمونه هغوئ دپاره حلال کړې شوی دی ، یوازې هم هغوئ سره نکاح کیدې شی ، په عامو ښځو کښې خو مسلمانیدل ئې شرط دی ، او دخاندان په بیبیانو کښې د مسلمانیدو سره مهاجر کیدل هم شرط دی ، په کومو کښې چې دا دوه شرطونه موجود نه وی هغوئ سره به نکاح کول حلال نه وی. ددې تفسیر په رنړا کښې که اوکتلې شی نو دا جمله څه نوې حکم نه دې. بلکه هم درومبی حکم تاکید او وضاحت کول دی کوم چې د آیت مبارك په شروع کښې بیان شوې دې او ددې آیت په وجه نهو نه پس چا بلې ښځې سره نکاح کول حرام اونه ګرځولې شو ، بلکه هغو ښځو سره ئې نکاح کول منع کړې شو چې عامو ښځو کښې مؤمنه نه وی او د خپل خاندان په ښځو کښې هجرت کوؤنکې نه وی دعامو ، نورو ښځو سره نکاح کول دهغوئ په خوښه پاتې شو ، د عائشه صدیقه ﷺ د یو روایت نه هم ددې دویم تفسیر تائید کیږی([1]) چې رسول کریم ﷺ ته دنورو نکاحونو کولو اجازت وو. [والله اعلم]([2])

﴿وَلَآ أَن تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنۡ أَزۡوَٰجٖ﴾ ددې آیت مبارك که دویم تفسیر اختیار کړې شی نو د جملې مطلب واضح داسې دې که اګر که ددغې موجوده بیبیانو نه علاوه تاسو دپاره په دې شرط نورو بیبیانو سره نکاح کول حلال دی چې عامې بیبیانې مؤمنې وی او د خپل خاندان بیبیانې مهاجرې هم وی ، خو دا جائز نه دی چې یوې ته طلاق ورکړئې او دهغې په ځائې بلې سره نکاح اوکړئې ، یعنې خالص د تبدیلې په نیت سره هیڅ نکاح جائز نه ده البته که د بدلون نیت مو نه وی نو هر څومره نکاحونه نور زیات هم کولې شئ! و د رومبی تفسیر په بنیاد به ئې معنی دا وی چې آئنده دپاره موجوده بیبیانو نه کښې نه د بلې ښځې اضافه کولې شئ ، او نه ئې په بیان شوې طریقه تبادله کولې شئ چې کنې یوې له په طلاق ورکولو سره د هغې په ځائې بله بی بی په نکاح سره واخلئ ، والله سبحانه وتعالی اعلم

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ | ءَامَنُواْ | لَا تَدۡخُلُواْ | بُيُوتَ ٱلنَّبِيِّ | إِلَّآ | أَن يُؤۡذَنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | مه ننوځئ | کورونو دنبی ته | مګر هله | چې اجازت اوکړې شی |

ائې مومنانو ! دپیغمبر کورونو ته مه داخلیږئ اخو هله ورداخلیږئ چې دخوراک دپاره درته اجازت اوکړې شی

[1] جامع الترمذی، أبواب التفسير، باب ومن تفسير سورة الاحزاب: ج ۲، ص ۱۵٦

[2] تفصيل دپاره اوګورئ: تفسير البغوی، تحت هذه الآية: ج ٦، ص ۳٦٦، ۳٦۷، وتفسير المظهری: ج ۷، ص ۳٦۷، ۳٦۸

Scanned with Ca

لَكُمْ | إِلَىٰ طَعَامٍ | غَيْرَ نَٰظِرِينَ | إِنَىٰهُ | وَلَٰكِنْ

تاسو ته | خوړلو دطعام ته | په داحال چې نه یئ انتظار کونکی | لوخی دپخکړئ دهغه ته | ولیکن |

............ په دې طریقه چې دهغې طعام دپخلی انتظار مه کوئی | ........................خو کله چې

إِذَا | دُعِيتُمْ | فَادْخُلُوا | فَإِذَا | طَعِمْتُمْ | فَانتَشِرُوا

کله چې | دعوت درکړې شی تاسو ته | نو ننوځئ | پس هرکله چې | اخوراك اوکړئ تاسو | نو خوارۀ شئ

دعوت درکړې شی نو بیا ورځئ | ............بیا چې ډوډئ اوخورئ | .........نو خوارۀ واره شئ

وَلَا مُسْتَأْنِسِينَ | لِحَدِيثٍ | إِنَّ | ذَٰلِكُمْ كَانَ | يُؤْذِي النَّبِيَّ

او مۀ کینئ مینه کونکی | دپاره دخبرو | بیشکه | دا کار ستاسو | تکلیف ورکوی نبی ته |

او خبرو ته ښخ ناست مه پاتې کیږئی | بیشکه ستاسو په دې خبرو پیغمبر ته تکلیف رسی

فَيَسْتَحْيِي | مِنكُمْ | وَاللَّهُ | لَا يَسْتَحْيِي | مِنَ الْحَقِّ | وَإِذَا

نو هغه حیا کوی | ستاسو نه | او الله | نۀ کوی حیا | دبیا نولو دحق نه | او کله چې |

خو هغه ستاسو خاطر کوی | ..........او الله ﷻ په صفا وینا کښې دچا خیال نه ساتی | اوهرکله چې

سَأَلْتُمُوهُنَّ | مَتَاعًا | فَاسْأَلُوهُنَّ | مِن وَرَاءِ | حِجَابٍ | ذَٰلِكُمْ

غواړئ تاسو دهغوئ نه | څه څیز | نو غواړئ دهغوئ نه | روستو | دپردې نه | دا کار ستاسو

د پیغمبر د بیبیانو نه څه څیز غواړئ | نود پردې شاته ئې غواړئی | ........... داکار ستاسو

أَطْهَرُ | لِقُلُوبِكُمْ | وَقُلُوبِهِنَّ | وَمَا كَانَ | لَكُمْ

ډیر پاك دې | دپاره دزړونو ستاسو | او دزړونو دهغوئ | اونۀ دی جائز | ستاسو دپاره |

اود هغوئ دزړونو دپاره ډیره پاکه طریقه ده | .........او تاسو دپاره دا جائز نه دی | چې

أَن تُؤْذُوا | رَسُولَ اللَّهِ | وَلَا أَن | تَنكِحُوا | أَزْوَاجَهُ

چې تکلیف اورسوئ | رسول دالله ته | اونۀ دا چې | تاسو په نکاح واخلئ | بیبیانې دهغه |

دالله ﷻ رسول ته تکلیف ورکړئی | یا دا چې د هغه نه پس دهغه بیبیانو کښې چا سره چرې

مِن بَعْدِهِ | أَبَدًا | إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ | عِندَ اللَّهِ | عَظِيمًا

روستو دهغه نه | هیڅکله | بیشکه دا کار [ستاسو دپاره] | دې | په نز دالله | لویه گناه |

نکاح اوکړئ | ..................داخبره دالله ﷻ په نیز ډیره لویه گناه ده

إِن تُبْدُوا | شَيْئًا | أَوْ تُخْفُوهُ | فَإِنَّ اللَّهَ | كَانَ | بِكُلِّ شَيْءٍ

که ښکاره کوئ تاسو | څه څیز | یا پټوئ هغه | پس بیشکه الله | دې | په هر څیز باندې |

که تاسو یوه خبره ښکاره کوئ او که پټوئ ئې | .........نو الله ﷻ په هرڅیز ډیر ښه عالم دې

عَلِيمًا | لَّا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ | فِي آبَائِهِنَّ | وَلَا أَبْنَائِهِنَّ

ښه عالم | نشته گناه په هغوئ باندې | په کورته راتلو دپلرونو دهغوئ کښی | اونۀ د ځامنو دهغوئ کښی

...........................دپیغمبر بیبیانو دپاره خپلو پلارانو ته

.........او ځامنو ته

Scanned with Ca

| وَلَآ اِخْوَانِهِنَّ | وَلَآ اَبْنَآءِ اِخْوَانِهِنَّ | وَلَآ اَبْنَآءِ اَخَوٰتِهِنَّ |
|---|---|---|
| اونه د رونړو دهغوئ کښې | اونه د خامنو دورونړودهغوئ کښې | اونه د خامنو دخويندودهغوئ کښې |

او رونړو ته.............او وريرونو [د رور خامنو]ته.............او خوريونو[د خورخامنو] ته

| وَلَا نِسَآئِهِنَّ | وَلَا مَا | مَلَكَتْ |
|---|---|---|
| اونه د ښځو دميل ملاپ دهغوئ کښې | اونه د هغه وينځو کښې | چې مالکان شوي وي |

اوخپلو [مسلمانانو] زنانو ته ..............او خپلو وينځو ته [په مخامخ کيدو باندې] هيڅ گناه نشته

| اَيْمَانُهُنَّ | وَاتَّقِيْنَ اللّٰهَ | اِنَّ اللّٰهَ | كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | شَهِيْدًا |
|---|---|---|---|---|
| ښې لاسونه دهغوئ | اواويريږئ دالله نه | بيشکه الله | دې په هر څيز باندې | حاضر [نظرلرونکې] |

اوتاسو دالله ﷻ نه ويريږئ| ..............الله ﷻ په هره څيز باندې گواه دې

## آسان ترجمه قرآن

اے ایمان والو! د نبي کور ته (بغير د اجازت نه) داخليږئ مه. مګر دا چه تاسو ته د خوراک دپاره د راتللو اجازت درکړې شي، او هغه هم په داسې طريقه، چه تاسو دهغې خوراک د پخيدلو په انتظار کښې مه کينئ. ليکن کله چه تاسو ته دعوت درکړې شي، نو لاړ شئ، بيا چه کله خوراک اوکړئ، نو خپله خپله لار اونيسئ، او په خبرو کښې مشغوليا مه کوئ. حقيقت دادې، چه دې خبرې سره نبي ته تکليف رسيږي، او هغه تاسو (ته د وتلو) نه شرميږي. او الله تعالیٰ په حقه خبره کښې هيڅ نه شرم نه کوي. اوچه کله تاسو د نبي د بيبيانو نه څه غواړئ، نو د پردې نه شاته غواړئ دا طريقه ستاسو زړونو لره هم او دهغوی زړونو لره هم ډيره پاک ساتلو ذريعه ده. او ستاسو دپاره جائز نه دی، چه تاسو د الله تعالیٰ رسول ته تکليف اورسوئ، او نه دا جائز دي، چه دهغه نه پس دهغه بيبيانو سره چرې نکاح اوکړئ، دا د الله تعالیٰ په نزد ډيره سخته خبره ده. که تاسو څه خبره ښکاره کوئ، يا هغې لره پټوئ، نو الله تعالیٰ د هر څيز پوره پوره علم لرونکې دې. د نبي د بيبيانو دپاره خپل پلار (نه مخکښې راتلو) کښې هيڅ گناه نشته، او نه خپلو خامنو ته، نه خپلو ورونړو ته، نه خپلو وريرونو ته، نه خپلو خوريونو ته، او نه خپلو زنانو ته او نه خپلو وينځو ته (مخکښې راتلو کښې څه گناه شته) او (اے زنانو) تاسو د الله تعالیٰ نه ويريږئ، يقين اوکړئ، الله تعالیٰ د هرې خبرې مشاهده کونکې دې.

## خلاصه تفسير

﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ﴾ [اے ايماندارو دنبي کورونو ته] بغير بللونه [مه ورځئ ﴿اِلَّاۤ اَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ اِلٰى طَعَامٍ﴾ مګر څه وخت چه تاسوته دخوراك دپاره] دراتللو[اجازت درکړې شي] نو بيا په تللو کښې څه باك نشته مګر بيا هم تلل[په داسې طور] ﴿غَيْرَ نٰظِرِيْنَ اِنٰىهُ﴾ چه تاسو [چه ددغې] خوراك [دتياريدو منتظرنه يئ] يعنې بغيرد بللو نه خو دسره مه ځئ او چه وبللې شئ نو هم ډير مخکښې مه ځئ چه ناست يئ ﴿وَلٰكِنْ اِذَا دُعِيْتُمْ﴾ [ليکن هر کله چه تاسو وبللې شئ] چه اوس راځئ خوراك تيار دې ﴿فَادْخُلُوْا فَاِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا﴾ [نو بيا ځئ بيا چه هر کله خوراك وخورئ نو پورته کيږئ او ځئ ﴿وَلَا مُسْتَاْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ﴾ او په خبرو کښې په مينه شروع

Scanned with CamScanner

شوی مه کښېنئ] ځکه چه ﴿إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ﴾ [په دې خبره نبي] صلى الله عليه وسلم [ته تکليف وي ﴿فَيَسْتَحْيِي مِنكُمْ﴾ پس هغه ستاسو لحاظ کوي] او په ژبه سره څه نه فرمائي چه پورته شئ ځئ ﴿وَاللَّهُ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ﴾ [او الله تعالى په صفا خبره وئيلو کښې] دچا [لحاظ نه کوي] په دې وجه ئې صفا صفا ووئيله [او] د اوس نه دا حکم کولې شي چه دنبي کريم ﷺ بيبيانې رضي الله عنهن دتاسونه پرده کوي نو د اوس نه ﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ﴾ [هر کله چه تاسو د دوي نه څه شې غواړئ نو د پردې نه بهر] ودرېږئ [او غواړئ] يعني بې ضرور ته خو دپردې خواله تلل او خبره کول هم نه دي پکار مگر چه ضرورت وي نو دخبرو په کولو کښې څه باك نشته مگر مخامخ کيدل نه دي پکار ﴿ذَٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ﴾ [دا خبره] د هميشه دپاره [ستاسو دزړونو او ددوي رضي الله عنهن دزړونو دپاکيدو دپاره ښکلې ذريعه ده] يعني ځنگه چه تراوسه پورې د جانبينوزړونه پاك دي په دې سره دائنده دپاره هم د عدم طهارت احتمال دفع شو کوم چه د غير معصوم په اعتبار سره فی نفسه محتمل کيدې شو [او] نبي کريم ﷺ ته دتکليف رسولو حراموالې صرف دفضولو کښيناستو په صورت کښې منحصر نه دې بلکه علي الاطلاق حکم دې چه ﴿وَمَا كَانَ لَكُمْ﴾ [تاسولره] په څه کار کښې [جائز نه دي ﴿أَن تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ﴾ چه رسول الله] صلى الله عليه وسلم [ته تکليف ورسوئ ﴿وَلَا أَن تَنكِحُوا أَزْوَاجَهُ مِن بَعْدِهِ أَبَدًا﴾ اونه دا جائز دي چه تاسو د دوي ﷺ نه پس د دوي ﷺ د بيبيانو رضي الله عنهن سره چرې هم نکاح وکړئ ﴿إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ عِندَ اللَّهِ عَظِيمًا﴾ بيشکه دا دالله تعالى په نزد ډيرلويه] دگناه [خبره ده] اولکه ځنگه چه دا نکاح ناجائز ده دغسې د دې په ژبه سره ذکرکول يا په زړه کښې ئې اراده کول ټول گناه دي پس ﴿إِن تُبْدُوا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوهُ﴾ [که تاسو] ددې متعلق [څه شی لره] په ژبه سره [ظاهرکړئ يا ددې] ارادې [لره] په زړه کښې [پټه وساتئ ﴿فَإِنَّ اللَّهَ﴾ نو الله تعالى] ته د دواړو خبردې ځکه چه هغه ﴿كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا﴾ [هرشی لره ښه پيژني] پس تاسولره به په دې سزا درکړي اومونږه چه بره کوم حکم دپردې کړې دې ددې نه ځنې مستثنی هم دي د هغه بيان دادې چه ﴿لَّا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِي آبَائِهِنَّ﴾ [دپيغمبر] ﷺ [په بيبيانو رضي الله عنهن د خپلو پلارانو] مخې ته راتلو [په باره کښې څه گناه نشته ﴿وَلَا أَبْنَائِهِنَّ﴾ [اونه دخپلو ځامنو] يعني دکومو چه ځامن وي ﴿وَلَا إِخْوَانِهِنَّ﴾ [او نه دخپلو ورونړو ﴿وَلَا أَبْنَاءِ إِخْوَانِهِنَّ﴾ او نه دخپلو وريرونو ﴿وَلَا أَبْنَاءِ أَخَوَاتِهِنَّ وَلَا نِسَائِهِنَّ﴾ اونه دخپلو خوريونو اونه دخپلو] دين شريکو [ښځو ﴿وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾ او نه دخپلو وينځو] يعني دوي ته مخې ته کيدل جائز دي [او] اے دپيغمبر بيبيانو رضي الله عنهن ددې ذکر شوو احکامو په عمل کولو کښې ﴿وَاتَّقِينَ اللَّهَ﴾ [دالله تعالى نه ووېرېږئ] چه د هيڅ حکم خلاف ونه کړئ ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا﴾ [بيشکه الله تعالى په هرشي حاضر] ناظر [دې] يعني د هغه نه هيڅ شې پټ نه دې ځوك چه ددې خلاف کوي هغه له د سزا نه ويريدل پکار دي.

## معارف او م سائل

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا﴾ دې آيتونو کښې د اسلامی معاشرې څو آداب او احکام بيان شوی دی چې تعلق ئې وړاندې آيتونو سره دې چې کوم آداب په دې آيتونو کښې اوخودلې شو . هغه ړومبې د نبی اکرم ﷺ د مکان مبارك اود نبی اکرم ﷺ د ازواجو مطهراتو باره کښې نازل شوی دی اگر چې ددې حکم د نبی اکرم ﷺ ذات سره مخصوص نه دې .

Scanned with Ca

**اول حکم ـ د دعوت طعام او د میلمنو ځینې آداب:** ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ إِلَىٰ طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ وَلَٰكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ فَادْخُلُوا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوا وَلَا مُسْتَأْنِسِينَ لِحَدِيثٍ﴾ دې کښې ډوډۍ ته د رابللواو د میلمستیا باره کښې د درېو حکمونو بیان شوې دې او دا حکم اګرچې مسلمانانو دپاره عام دې خو د نازلیدو سبب ئې چونکه خاص واقعه د نبی اکرم ﷺ په مکان مبارك کښې شوې ده ځکه په عنوان کښې ئې د ﴿بُيُوتَ النَّبِيِّ﴾ ذکر راغلو. رومبې ادب دادې چې دنبی اکرم ﷺ په مکانونو کښې بې اجازته مه ورننوځئ ﴿لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ﴾.

دویم ادب دادې چې کله درته د راننوتو اجازت هم اوشی بلکه خوراك دپاره بلنه هم درته وی نو وخت ځنه مخکښې مه ورننوځئ چې هلته خوراك د تیاریدو په انتظار کښې کینئ.

﴿غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ﴾ . ناظر دلته په معنی د انتظار کوؤنکی ده او لفظ د إِنَا په کسري د همزه سره د روټئ پخیدو معنی ورکوی ، آیت مبارك ﴿لَا تَدْخُلُوا﴾ نه یو استثناء په ﴿إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ﴾ سره اوکړې شوه ، او بله په ﴿غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ﴾ سره اوکړې شوه ، مطلب ئې دادې چې مه خو بې اجازته ورننوځئ اومه د وخت ځنه وړاندې ورننوځئ چې د خوراك د پخیدو انتظار کوئی ، بلکه کوم وخت دپاره چې اوبللې شئ هم هغه وخت ورننوځئ ، ﴿وَلَٰكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ فَادْخُلُوا﴾.

دریم ادب دادې چې د خوراك ځنه فارغ شئ نو خپلو کارونو دپاره بیا خوارهٔ شئ هم هلته د خبرو دپاره بنخ مه کینئ. ﴿فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوا وَلَا مُسْتَأْنِسِينَ لِحَدِيثٍ﴾

**مسئله:** د اپه عامو حالاتو کښې دی چرته چې د میلمنو د خوراك کولو ځنه روستو تر ډیره ناست پاتې کیدل ئې کوربه دپاره د تکلیف باعث وی خواه په دې وجه چې په فارغیدو سره خپل ځه نور کار کول غواړی یا په دې وجه چې دې پسې نورو میلمنو ته روټئ ورکول مقصود وی ، خو که چرته د میلمنو ډیره ناسته کوربه دپاره د تکلیف باعث نه جوړیدله بیا هلته ایساریدل او خبرې کول ځه باك نه لری. لکه چې تن صباړواج جوړ شویدې ، ددې دلیل ورپسې جمله ده فرمائی چې : ﴿إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيِي مِنْكُمْ وَاللَّهُ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ﴾ یعنی د خوراك کولو ځنه روستو په خبرو کښې مشغولیدو ځنه ځکه منع اوکړې شوه چې په دغسې کولو سره نبی اکرم ﷺ ته تکلیف رسیدلو . ولې چې د میلمنو د خوراك انتظام به په زنانه مکان کښې وو چرته به چې د میلمه د حد ځنه زیات ایساریدل کوربه دپاره د تکلیف باعث جوړیدو.

آیت مبارك کښې دا هم ارشاد اوشو چې اګر که نبی اکرم ﷺ ته دمیلمنو په دغې رویه سره تکلیف رسی خو نبی اکرم ﷺ د میلمه توب لحاظ کوی او پدغې ادب خودلو کښې ورته حیا ورځی ، لیکن الله ﷻ دحق خبرې ښکاره کولو کښې حیا نه کوی.

**مسئله:** دې جملې ځنه د میلمنو د خاطر او عزت کولو څومره اهمیت معلومیږی اګر چې د میلمستیا آداب او طریقې د نبی اکرم ﷺ په فرائضو کښې شامل وو خو د میلمستوب لحاظ ئې دومره اوکړو چې دغه وینا کول ئې هم روستو کړل تر دې چې الله ﷻ پخپله قرآن عظیم الشان کښې دغه آداب اوخودل.

Scanned with Ca

﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ ۚ ذَٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ ۚ﴾

**دویم حکم د زناناؤ پرده** دلته هم اګر چې د شان نزول د خاص واقعې په بنا باندې په بیان او تعبیر کښې خاص د ازواجو مطهراتو بیان دې خو حکم د ټول امت د پاره عام دې ، خلاصه د حکم داده چې که پردی نارینه د ښځو څخه ضروري څيز جامه یا لوښي وغیره اخستل غواړي نو مخامخ په مخامخ دې دغه عمل نه کوی بلکه د پردې شاته دې غواړي او وې وئیل چې دغسې د پردې کولو حکم نارینواؤ زناناؤ دواړو لره دنفساني وسوسو څخه پاك لرلو د پاره شوې دې.

**د زناناؤ د پردې خاص اهمیت** :: دلته داخبره د نظر کولو جوګه ده چې د پردې حکمونه کوم زناناؤ او نارینواؤ ته ورکړې شوې دې دهغې دواړو شان لوړ داسې دې چې زنانه ازواج مطهرات دی چې الله ﷻ د هغوئ د زړونو پاك لرلو ذمه پخپله اخستې ده لکه فرمائي چې : ﴿لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ﴾ [تفصیل ئې وړاندې تیر شو هدې]

بل طرفته نارینه صحابه کرام ﷺ دی چې د ډیرو مقام په کښې د فرښتو څخه هم وړاندې دې ، خو بیا هم د نفساني وسوسو څخه د دوئ د زړونو دپاکوالی په خاطر داضروري اوګڼلې شو چې نارینه اوزنانه دې د یو بل نه پرده کوی ، نن څوك داسې نارینه شته چې د صحابه کرامو ﷺ نه د زیات پاکوالي دعوی اوکړی او زنانه دازواج مطهرات څخه د زیات پاکوالی دعوی اوکړی او خپل مینځ کښې د یو تربله د ګډون کولو څه بها نه بولی ؟ چې زمونږ اختلاط د زناناؤ سر د څه خرابئ موجب نه دی.

**ددې آیتونونازلیدو اسباب**:: ددې آیتونو شان نزول څو واقعات بیانولې شی چې تر مینځه ئې هیڅ بې سموني نشته بلکه ټول واقعات شان نزول جوړیدې شی ، د آیت مبارك په شروع کښې د میلمستیا دا آداب بیان شوی دی چې بې بللو به خوراك له نه ورځئ . دخوراك د پخیدو په انتظار کښې به نه کینی ، ددې شان نزول ابن ابی حاتم دسلیمان بن ارقم ﷺ نه دا نقل کړدې[۱] چې دا د هغې لټانو او دروندباور خلقو باره کښې نازل شوې دې کوم چې نابللی د چا کورته ورځی او د خوراك په انتظار کښې هلته کینی.

او امام عبد بن حمید د انس ﷺ نه روایت کړې دې چې دا آیت مبارك د ځینې هغه خلقو باره کښې نازل شو هدې چې په انتظار کښې به پاتې کیدل او د خوراك د وخت نه بهٔ وړاندې د رسول کریم ﷺ کور مبارك ته ورتلل او هلته به ئې تر هغه وخت پورې خبرې اترې کولې چې دودئ به تیاره شوه په هغې کښې به شریك شو نو داسې خلقو ته د آیت په شروع کښې راغلی هدایتونه جاری کړې شو( ) ، د ا د هغه زماني خبره ده چې د پردې حکمونه نه وو نازل شوی ، او عام نارینه بهٔ په زنانه مکان کښې هم ورننوتل.

دویم حکم چې د زناناؤ د پردې باره کښې دې ، ددې د شان نزول په باره کښې د امام بخاری ﷺ دوه روایتونه دی ، یو روایت دادې چې انس ﷺ نه نقل دې ، فرمائي چې عمر فاروق ﷺ رسول کریم ﷺ ته عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! تاسو له ښه او خراب هر قسمه خلق

[۱]) تفسیرابن ابی حاتم، رقم الحدیث:۱۷۷٦۰، ج:۱۰، ص۳۱٤۹، وتفسیر الدرالمنثور تحت هذه الآیة:ج ۸، ص ۱۹۳
[۲]) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، باب سورة الاحزاب، باب قوله'لاتدخلوا بیوت النبی' الآیة(باختلاف یسیر) ج ۲، ص ۷۰٦

راځي که تاسو ﷺ ازواج مطهراتو ته د پردې حکم اوفرمائې نو ډېر ښه به وي نو پدې د پردې دا آيت مبارك نازل شو([1]).

په صحيحينو يعني بخاري او مسلم کښې د فاروق اعظم رضي الله عنه دا قول منقول دې چې هغوئ رضي الله عنه فرمائي چې:

وافقت ربي في ثلث فقلت يارسول الله ﷺ لو اتخذت في مقام ابراهيم مصلى فانزل الله تعالى [وَاتَّخِذُوا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهِيْمَ مُصَلًّى] وقلت يارسول الله ﷺ ان نساءك يدخل عليهن البر والفاجر فلو حجبتهن فانزل الله اية الحجاب وقلت لازواج النبي ﷺ لما تمالان عليه في الغيرة عسى ربه ان طلقكن ان يبدله ازواجا خيرا منكن فنزلت كذالك([2])

ما موافقت اوکړو خپل رب سره په دريو څيزونو کښې يو دا چې ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چې مقام ابراهيم د خپل مونځ ځائې جوړ کړئي نو دې باره کښې الله تعالى [وَاتَّخِذُوا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهِيْمَ مُصَلًّى] آيت مبارك نازل کړو ، او ما رسول کريم ﷺ ته دا عرض اوکړو چې ستاسو ﷺ د بيبيانو مخې ته هر قسم ښه او خراب انسانان راځي ښه به داوي چې تاسو دوئ لره په پرده کښې لرئي نو الله ﷻ د پردې آيت مبارك نازل کړو ، او کله چې دازواج مطهراتو مينځ کښې غيرت اورشك زيات شو نو ما ورته اووئيل چې که رسول کريم ﷺ تاسو ته طلاق درکړي نو لرې نه ده چې الله ﷻ به ورته ستاسو نه زياتې غوره بيبيانې ورکړي نو هم په دغې الفاظو کښې قرآن نازل شو.

**فائده:** د فاروق اعظم رضي الله عنه پخپل کلام کښې ادب د نظر جوګه دې چې په ښکاره وئيل دا وو چې په دريو څيزونو کښې زما رب ما سره موافقت اوکړو.

يوه بله واقعه هم دانس رضي الله عنه په روايت په صحيح بخاری کښې دا راغلې ده چې انس رضي الله عنه اوفرمائيل چې د حجاب د آيت د حقيقت نه زه دهر چا نه زيات واقف يم ځکه چې زه په دې واقعه کښې حاضر اوم. کله چې زينب بن جحش رضي الله عنها دنکاح نه پس حرم نبوی ته رارخصت کړې شوه دلته په مکان کښې هغوئ سره موجود وه ، هغوئ د ولسمې څه خواړه تياره کړه او خلق ئې د هغې د خوړلو دپاره راوبلل ، څه خلق په کښې هلته خبرو کولو دپاره پاځه کيناستل([3]). د ترمذی د روايت مطابق هلته رسول کريم ﷺ پخپله هم تشريف لرلو، او ام المؤمنين زينب رضي الله عنها هم موجوده وه چې د حيا له وجه ئې مخ ديوال ته کړې وو. نو د خلقو په دغسې ناسته باندې هغوئ ته تکليف اوشو. هغوئ د کور نه بهر تشريف يوړو ، او نورو بيبيانو ته د ملاقات او سلام دپاره لاړل. بيا چې دغه خپل کور ته واپس راغلل نو بيا هم دغه خلق ناست وو. دغه وخت چې خلقو محسوس کړل نو خواره واره شو. رسول کريم ﷺ دې نه لږ وخت پس بهر تشريف راوړو ، زه هم هلته موجود اوم ، په دې دوران کښې د حجاب دا آيت مبارك نازل شو چې مونږ ته ئې واورولو: ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ﴾

---

[1] صحيح البخاري، كتاب التفسير، سورة الاحزاب، باب قوله لاتدخلوا بيوت النبي الآية (باختلاف يسير) ج ۲، ص ۷۰٦

[2] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤٥٠، وصحيح البخاري، كتاب الصلاة، باب ما جاء في القبلة (بالفاظ مختلفة) ج ۱، ص ۵۸، وصحيح مسلم، كتاب الفضائل، باب من فضائل عمر رضي الله عنه: ج ۲، ص ۲۷٦

[3] صحيح البخاري، كتاب التفسير، سورة الاحزاب: ج ۲، ص ۷۰٦

Scanned with Ca

انس ﷺ چې دا واقعه نقل کړه نو وې فرمائیل چې زه ددې آیتونو په نازلیدو کښې د ټولونه زیات نزدې یم ولې چې دا زما په وړاندې نازل شوی دی [الترمذی کتاب التفسیر][1].

ددې آیتونو د حجاب د نازلیدو په اسبابو کښې د ادرې واړه واقعې د حدیث په روایتونو کښې راغلی دی ، دې کښې هیڅ بې سمونی نشته ، کیدې شی چې دا درې واړه واقعات په جمع ددې آیتونو د نازلیدو سبب جوړ شوې وی .

**دریم حکم** .درسول کریم ﷺ دوفات نه پس هم دازواج مطهراتونکاح هیچا امتی سره جائزنه ده. ﴿وَمَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَلَآ اَنْ تَنْكِحُوْٓا اَزْوَاجَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖٓ اَبَدًا﴾ دلته د ړومبئ جملې په ذریعه په عامو الفاظو کښې داسې هره خبره او کار حرام اوګرځولې شو چې ورسره رسول کریم ﷺ ته تکلیف رسی ، وریسې داحکم ورکړې شو چې د رسول کریم ﷺ د وفات نه پس هم رسول کریم ﷺ بیبیانو سره دهیڅ یو امتی نکاح کول حلال نه دی .

دې آیت مبارك کښې چې ړومبې څومره احکام بیان شوی دی اګر چې په هغې کښې خطاب رسول کریم ﷺ ته دې خو حکم ئې ټول امت دپاره عام دې ، سوا ددې آخری حکم نه چې د رسول کریم ﷺ د وفات نه پس ئې هیڅ یو امتی سره دبیبیانو نکاح نه حلالیږی . حالانکه امت دپاره عام حکم د ادې چې څوك وفات شی نو دعدت تیریدو نه پس د هغه بی بی سره د بل چا نکاح حلاله ده .

ددې وجه دا هم کیدې شی چې بیبیانې د رسول کریم ﷺ د قرآن عظیم الشان په نص سره امهات المؤمنین یعنی د امت میندې دی خو ددې اثر دومره قدرې دې چې نکاح ئې چا امتی سره نه حلالیږی . داسې نه ده چې ګنی ټول امتیان خپل مینځ کښې څکه رونړه خویندې شوې او نکاح ئې یو بل سره نه حلالیږی .

دا هم وئیلې شوی دی چې رسول کریم ﷺ پخپل قبر مبارك کښې ژوندی دی ګویا مثال ئې داسې شو چې څوك په سفر چرته د کور نه بهر وتلې وی نو په دغې وجه ئې بی بی سره د بل چا نکاح نشی کیدې . هم په دې وجه دهغوئ میراث نشی تقسیمیدې ، او د بیبیانو حال ئې هم دعامو بیبیانو پشان نه دې . ددې حکمت دا هم کیدې شی چې د یوې شرعی قاعدې مطابق هره ښځه به په جنت کښې خپل آخری خاوند سره وی ، حذیفه ﷺ خپلې بی بی ته وصیت کړې وو چې که په جنت کښې زما بی بی اوسیدل غواړې نو زما د وفات نه پس بل چاسره نکاح اونه کړې ولې چې په جنت کښې بهٔ بی بی آخری خاوند سره وی ، [قرطبی][2].

په دې بناء الله تعالی د رسول کریم ﷺ د بیبیانو دا عزت او قدر برقرار اوساتلو چې دوئ دې په جنت کښې هم د رسول کریم ﷺ بیبیانې وی څکه ئې نکاح چا امتی سره کول حرام اوګرځولې شو .

دې نه سوا په طبعی ډول څوك خاوند دانه خوښوی چې دهغه بی بی دې د بل چا بی بی جوړه شی ، خو دهرچا دغه طبیعت او خواهش پوره کول شریعت ضروری او نه ګڼړل البته د

---

[1] ) جامع الترمذی، کتاب التفسیر ، باب من سورة الاحزاب: ج ۲، ص ۱۵۷

[2] ) تفسیر القرطبی تحت هذه الآية: ج ۱٤، ص ۳۲۹، وسنن البیهقی، رقم الحدیث: ۱۳۸۰۳، کتاب النکاح، باب ما خص به من ان أزواجه الخ.

Scanned with Ca

رسول کریم ﷺ ددغې طبعي خواهش هم لحاظ او عزت اوساتلې شو چې رسول کریم ﷺ د بیبیانو نکاح ئې امتی سره حرام او گرځولې شوه.

**مسئله**: پدې خو د امت اتفاق دې چې کومې بیبیانې د رسول کریم ﷺ تر وفات پورې د رسول کریم ﷺ په حرم [نکاح] کښې پاتې شوی وی د هغوئ خو همدغه حکم دې چې اوسه پورې بیان شو، لیکن د رسول کریم ﷺ د طلاقو کړو بیبیانو یا به بله وجه ترې د جدا شوؤ بیبیانو په باره کښې د امت د فقهاء کرامو اقوال مختلف دی چې قرطبی په تفصیل سره لیکلی دی[1]:

﴿إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ عِندَ اللَّهِ عَظِيمًا﴾ یعنی رسول کریم ﷺ ته څه شان سره زیان، تکلیف رسول یا د رسول کریم ﷺ دوفات نه پس بیبیانو سر نکاح کول د الله ﷻ په نزد لویه گناه ده.

﴿إِن تُبْدُوا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوهُ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا﴾ په آخر د آیت مبارک کښې دا مضمون دوباره کړې شو چې الله ﷻ د زړونو او ارادو او خیالونو باندې هم واقف دې، تاسو چې څه ښکاره کوئی یا پټوی دا ټول هر څه الله ﷻ ته ښکاره دی، په دې کښې تاکید دې چې په دې بیان شوؤ احکامو کښې څه قسم شك، شبه یا وسوسه په زړه کښې مه راولئ او ددغې احکامو د څه قسم مخالفت کولو نه ځان ساتئ.

په دې آیت مبارك کښې درې کارونه بیان شوی دی، په دې کښې د زنانوؤ د پردې مسئله د ډیرو وجو نه تفصیل طلب ده خکه هغه د ضرورت په اندازه لیکلې شی.

## د حجاب احکام

**د بې حیایئ بندولو اسلامی نظام**: د بې حیایئ، بدکارئی، زنا او په دې باندې آماده کوؤنکی څیزونه هم هغه هلاکوؤنکې خرابئ دی چې هلاکوؤنکی اثرات ئې صرف شخصیات او کسان نه بلکه قبیلې او خاندانونه او کله کله لوئې ملکونه هم تباه کوی، دې وخت چې په دنیا کښې د قتل اولوټ مار دواقعاتو جائزه واخستې شی نو معلومه به شی چې ددې شاته د ښځې یاشهوت د جذباتو څه سبب شته دې، هم دا وجه ده چې د کله نه دنیا پیدا شوې ده په دې کښې د اسې څه قوم، مذهب یا علاقه داسې نشته چې دا به بد نه گڼړی یا به ئې هلاکوؤنکې خرابی او عیب نه گڼړی.

ددنیا په دې آخری زمانه کښې مغربی او یورپی قومونو خپل مذهبی حدونه او زاړه قوی روایتونه ټول مات کړل او زنا لره څه جرم نه گڼړی تمدن او معاشرت کول یې په داسې سانچه کښې قالب کړی دی چې په هر قدم په کښې جنسی خرابی او بې حیایئ ته عامه بلنه ورکول د ی.

خوبیا هم ددې نتیجو ته ئې جرم وئیلې دې. عزت فروشی، په جبر زنا کول، په ښکاره د بې حیایئ کارونه کول یې قابل سزا جرم اوگرځول، چې مثال ئې ددې نه سوا بل هیڅ نه دې چې څوك خشاك لرگی راجمع کړی، تیل پرې باندې واچوی او ورته اور ورته کړی. او بیا ددې نه پس په راپورته شوؤ لمبو باندې پابندی اولگوی او ددې قابو کولو فکر کوی، د کټوئی پخولو په غرض اورور لاندې بل کړی اوبیا ددې په جوش وهلو او خوټکیدو باندې قابو موندل غواړی.

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٤، ص ٢٢٩، وسنن البيهقي، رقم الحديث: ١٣٨٠٣، كتاب النكاح، باب ما خص به من ان أزواجه الخ.

Scanned with Ca

خو ددې په خلاف اسلام چې کوم څيزونه جرمونه او انسانيت دپاره مضر اوګرځول اود سزا جوګه جرم ئې ورته اوونيل نو هغې ته لار جوړونکی څيزونو باندې پابندئ يې هم اولګولې او هغه ئې منع اوګرځول . ددې اصلي مقصد د زنا او بدکارئ نه بچ کيدل وو. نو شروع ئې ددې قانون نه اوکړه چې تاسو خپل نظرونه ښکته لرئ . دښځو باره کښې ئې دا هدايات جاري کړل چې دوئ دې د خپلو کورونو په چار ديوارئ کښې اوسيږي . دوئ دې څادر او برقعه په سر کوی . خپل بدن دې ښه پټ کړی او بيا که بهر راؤځي نو خير دې . بل هدايت ئې ورته دا اوکړو چې د لارې يا سړك په غاړه غاړه دې تګ کوی . کله چې بهر اوځي نو خوشبو دې نه لګوی . کوم کالی[زيورات] چې شرنګار کوی هغه دې نه اچوی . بيا سره ددې که په داسې زنانه باندې څوك غلط نظر اچوی نو دداسې کس دپاره ئې داسې عبرتناکه سزا مقرر کړه چې دهغې په يو کس باندې جاري کولو سره ددې اثر په ټول قوم باندې کيږي او عبرت ترې حاصليږي .

د يورپ خلقو اودهغوئ په تقليد کوونکو خلقو دخپلې بې حيائ د جائز ګرځولو دپاره ، د زنانه پرده کول د دوئ د صحت ، اقتصادي او معاشي خرابئ باعث ګرځولو سره د معاشرې دپاره مضر ثابتو او بې پرده ګرځيدلو په فائدو باندې بحثونه کړی دی ددې مفصل جواب په خپله خپله زمانه علماء کرامو ﷺ په خپلو خپلو کتابونو کښې ليکلې دی . دې باره کښې دومره قدرې ځان پوهول پکار دی چې په هر يو جرم او ګناه کښې څه نه څه فائده خامخا وی ، غلا ، ډاکه ، دهوکه کول اګر چې په يو لحاظ سره د ډيرې فائدې کاروبار دی خو کله چې ددې ضررناکې او هلاکوونکې نتيجې مخې ته راشی نو هيڅوك ورته هم د فائدې کاروبار نه وائی . په بې پردګئ کښې څه معاشي فائدې به ورته هم ښکاری . خو کله چې ترې ټول ملك او قوم په زرګونو فتنو او فسادونو کښې انخښلی نو بيا ورته فائده مند وئيل د عاقل کار نشی کيدې .

**دجرمونو بندولو دپاره د ذريعو د بندولو ښکلی اصول او په دې کښې د برابرئ اوسمون لار :**. څنګه چې د عقيدو اصول ، توحيد ، رسالت ، آخرت د ټولو پيغمبرانو ﷺ په شريعتونو کښې سره شريك او متفق عليه راغلی دی ، دغسې عام ګناهونه ، بې حيائ اوناکاره کارونه په هر شريعت او مذهب کښې حرام ګرځولی شوی دی . ليکن په پخوانو شريعتونو کښې ددې اسباب او ذريعې مطلقا حرامې نه وی ګرځولې شوی تر څو چې ددې په ذريعه څه جرم واقع نشی ، خو هرکله چې شريعت محمد ﷺ تر قيامته پورې جاري پاتې کيدونکې وو ، څکه د الله ﷻ د طرفه ددې د حفاظت کولو خاص انتظام اوکړې شو چې جرمونه او ګناهونه حرام وو ، دی ته د رارسيدو ټولې ذريعې وسيلې حرامې اوګرځولې شوې . لکه شراب څکل چې حرام اوګرځولې شو نو شراب جوړول ، خرڅول ، اخستل او بل چا ته ئې ورکول هم حرام اوګرځولې شو ، دغسې هر کله چې سود حرام اوګرځولې شو د سود پشان معاملې هم ناجائزه اوګرځولې شوې ، په دې وجه فقهاء کرامو ﷭ د ټولو خرابو معاملو نه حاصله شوې فائده هم د سود پشان خبيث مال اوګرځولو .

شرك بت پرستئ لره الله ﷻ لوئې ظلم او ناقابل معافی جرم اوګرځولو ،نو ددې په سببونو او ذريعو باندې ئې هم سختې پابندئ اولګولې ، د نمر ختو ، پريوتو ، او په مينځ آسمان کښې د کيدو په وخت چونکه مشرکانو د نمر عبادت کول که په دغې وختونو کښې مونځ کولې شو نو نمر پرستو خلقو سره يو قسم مشابهت وو چې څه وخت به په شرك کښې د اخته کيدو سبب

Scanned with Ca

جوړېدلو ، په دې وجه شریعت په دغې وختونو کښې مونځ او سجده کول حرام او ناروا اوګرځول . بتان او تصویرونه چونکه د بت پرستۍ نزدې ذریعې وې ځکه بتان او تصویرونه جوړول حرام او د دې استعمال ناجائزا وګرځولې شو.

او دغه شان شریعت چې زنا حرامه اوګرځوله نو ددې ټول نزدې ذریعې هم په حرامو کښې داخلې کړې شوې. پردۍ ښځې یا امرد ا ومراهق ته په شهوت سره نظر کول د سترګو زنا اوګرځولې شوه ، په شهوت سره د دوئ کلام او خبرې اترې آؤریدل د غوږونو او لاس وراوړل د لاسونو ، په دې غرض تلل د پښو زنا اوګرځولې شوه. څنګه چې په حدیث پاک[1] کښې راغلی دی هم ددې جرمونونه د ساتلو په غرض ښځو دپاره د پردې احکام نازل شو ،مګر د اسبابو او ذریعو نزدې او لرې یو اوږده ده ، که تر لرې پورې دا سلسله بنده کړې شي نو ژوند تیرول به ګران شي ، او عمل کولو کښې به ډیره تنګی راپیښه شي چې ددې شریعت اسلامي د مزاج نه خلاف دی. قرآن عظیم الشان په دې باره کښې داسې ښکاره اعلان فرمائي چې: ﴿مَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ﴾ [یعنی په دې دین کښې په تاسو بآندې څه تنګی نه ده راوستې شوې] پدې وجه د اسبابو اوذریعو په معامله کښې دا حکیمانه فیصله اوکړې شوه چې کوم کارونه د یوې ګناه داسې نزدې سبب وی چې د عام عادت تر مخه په دې کښې اخته کس خامخا په دغې ګناه کښې هم اخته کیږي نو دغسې نزدې اسباب هم اسلامی شریعت اصل ګناه سره تړل کړل او حرام ئې اوګرځول ، ځینې داسې سببونه دی چې دهغې په کولو سره د عادت تر مخه په ګناه کښې اخته کیدل خو ضروری نه وی البته په دغې ګناه کښې څه نا څه دخل ضروری لری ، نو دغه قسم اسباب او ذریعې مکروهه اوګرځولې شوی او کوم اسباب چې ددې ته هم زیات لرې دی چې په ګناه کښې شاذ ، نادر دخل لری ، نو هغې پسې ئې مخه پرواه اونه کړه او مباحو کښې ئې داخل کړل.

د رومبې مسئلې مثال شراب فروشي ده چې دا د شراب نوشۍ نزدې سبب دې ځکه ئې دا هم د شراب نوشۍ پشان حرام اوګرځول. پردۍ ښځې ته په شهوت سره لاس ور اوړل اګر چې خالص زنا نه ده خو ددې نزدې سبب دې ځکه شریعت ، دې لره هم حرام اوګرځول.

او د دویمې مسئلې مثال داسې دې لکه چې څوک په داسې یو کس انګور خرڅوی کوم چې ترې شراب جوړوی ، او پیشه ئې هم دغه وی یا اخستونکې پخپله دا اووائی چې زه ئې شرابو جوړولو دپاره اخلم. دا اګر چې دشراب خرڅولو په درجه کښې حرام نه دی خو مکروه تحریمی اوناجائز دی. دا حکم د سنیما جوړول او سودی بینک چلولو دپاره زمکه یا مکان په کرایه د ورکولو هم دې. کله چې ددغې معاملې کولو په وخت ورته معلوم وی چې هغه هم دې ناجائز کار دپاره په کرایه اخلی.

د دریمې درجې مثال دادې چې عامو خلقو باندې انګور خرڅ کړې شی ، په هغوئ کښې څوک داسې هم وی چې هغه ترې شراب جوړوی ، که دمعاملې کولو په وخت دا پته نه وه چې دې ترې شراب جوړوی یا هغه پخپله هم نه وو وئیلی چې شراب ترې جوړوم ، نو د شریعت تر مخه

---

[1] مسند أحمد، مسند أبي هريرة رضي الله عنه، رقم الحديث: ۸۸۲۹، وصحيح ابن حبان رقم الحديث. ۴۵۰۰، كتاب الحدود، باب الزاني وحده.

Scanned with Ca

داسې خرخول اخستل مباح او جائز دي.

**ضروري خبرداری** دلته دا خبره یاد لرل پکار دي چې اسلامي شریعت کوم کارونه په اوله درجه کښې د ګناه نزدې سبب او ګرځولو او حرام ئې کړو نو ددې نه پس دا تولو دپاره مطلقا حرام دي اګر چې هغه په ګناه کښې د اخته کیدو سبب هم یو وخت کښې نه جوړیږي، یعنی اوس پخپله یو شرعي حکم دې چې مخالفت کول ئې حرام دي.

ددې تمهید نه پس په دې ځان پوهه کړئي چې د ښځو پرده کول هم د شریعت تر مخه دهغې ذریعو د بندولو په اصولو باندې بنا دئ چې پرده نه کول په ګناه کښې د اخته کیدو سبب ګرځي. نو دلته به هم د سبب او ذریعو هغه بیان شوي حکمونو جاري کیږي، لکه د یو ځوان سړي په وړاندې دځوانې ښځې خپل بدن ښکاره کول په ګناه کښې د اخته کیدو داسې نزدې سبب دي چې دعادت تر مخه عموما ترې په ګناه کښې اخته کیدل خامخا راځي. نو د شریعت تر مخه دا د زنا پشان حرام شو. ځکه چې په شریعت کښې د عمل ته د فاحشه حکم ورکړې شوېدې چې مطلقا حرام دی. اګر چې دامعامله یو معصوم سره وي یا د چا ځان چې مکمل په قابو کښې وي هغه سره داسې اوکړې شي او هغه د ګناه نه بچ شي. دضرورت او علاج وغیره موقعې دی نه مستثنی کیدل جدا خبره ده، دې نه په اصل حرامو الی باندې څه اثر نه غورزیږي، دامسئله د وختونو او حالاتو نه هم متاثره کیږي د اسلامي په ړومبئ زمانه کښې هم دا حکم وو کوم چې نن د فسق او فجور په زمانه کښې دي.

دویمه درجه د پردې نه کولو داده چې دخپل کور د چار دیوارئ نه دبهر وتلو په وخت بورقه یا لوئې پرونې په سر کړي بدن تول پټ کړي او باهر ته اووځي نو دا د فتنې لرې سبب دې. ددې حکم دادې چې که داسې کول د فتنې سبب جوړوي نو ناجائز نه دي او که دفتنې ویره په کښې نه وي نو هلته روا دي. ځکه ددې حکم دزمانې او حالاتو په بدلیدو سره بدلیدې شي د رسول کریم ﷺ په زمانه کښې د زنانو په دغه شان وتل د فتنې سبب نه جوړیدل، ځکه رسول کریم ﷺ زنانو ته په دغسې شان مسجد ته راتلو اجازت سره دځو شرطونو ورکړې وو. او زنانو لره ئې د مسجد د راتلو نه بندول منع کړي وو، اګر چې دغه وخت هم دوئ ته ترغیب ددې ورکړې شوې وو چې زنانه دې هم په کور کښې مونځونه کوي چې ددې ثواب زیات دې. د نبي کریم ﷺ د وفات نه پس کله چې صحابه کرامو ﷺ مسجد ته دزنانو راتلل د فتنې نه خالي اونه لیدل سره ددې چې په بورقه یا لوئې پرونی کښې راتللې نو هغوئ په اجماع او اتفاق سره زنانو سره په مسجدونو کښې د جمع په مونځونو کښې د شریکیدو نه منع کړې، نو عائشه صدیقه ﷺ اوفرمائیل چې که رسول کریم ﷺ ننني حالات لیدلې نو خامخا به ئې زنانو لره مسجدونو ته د راتلو نه منع کړې وې[1]. دې نه معلومه شوه چې د صحابه کرامو ﷺ فیصله د رسول کریم ﷺ د فیصلې نه مختلفه نه ده، بلکه رسول کریم ﷺ چې دکومو شرطونو په بنا اجازت ورکړې وو اوس هغه شرطونه پاتې نشو نو حکم هم د رسول کریم ﷺ په فیصلې سره بدل شو.

[1] صحیح مسلم، کتاب الصلاة، باب خروج النساء الی المساجد اذا لم یترتب علیه فتنة الخ: ج ۱، ص ۱۸۳

Scanned with Ca

د زناناؤ د پردې بيان د قرآن عظيم الشان په اوؤ آيتونو مباركو كښې راغلې دې درې په سورهٔ نور كښې تير شوى دى ، څلور آيتونه په سورهٔ احزاب كښې دى ، يو په كښې رومبى تير شو ، يو د ادې او نور وړپسې راروان دى ، چې په كښې د پردې درجې تاكلې شوى دى او د احكامو تفصيل او چې كوم دى نه مستثنى دى د هغې مفصل بيان دې دا شان د اوياؤ نه زياتو احاديثو د رسول كريم ﷺ كښې قولا او عملا د پردې احكام خودلې شوى دى ، ددې تولو په يو ځائې د معلومولو دپاره احقر يو مستقله رساله [تفصيل الخطاب فى تفسير آيات الحجاب] په نوم ليكلې ده . چې داحكام القرآن [عربى] سورهٔ احزاب د يوې حصې په ډول خوره شوېده ، د قرآن عظيم الشان په دغې تفسير كښې د هرآيت مبارك تفسير خو پخپل خپل ځائې راځى د رسالې د نورو مضمونونو څو ضرورى اقتباسات دلته ليكلې شى .

## د حجاب د نازليدو تاريخ

د بيباكئ سره د زناناؤ ګرځون خو ددنيا په ټول تاريخ كښې د آدم ﷺ نه واخله تر د خاتم الانبياء پورې درست نه دې ګڼرلې شوې ، يوازې د شريعتونو خاوند نه بلكه د دنيا د عامو شريفو خاندانونو هم دغسې ګرځون ته په ښه سترګه نه دى كتلى .

موسى ﷺ چې كله مدين ته لاړل هلته كومو بيبيانو چې خپلې ګډې چيلئ را ايسارې كړې وې او د اوبو په انتظار كښې ناستې وې دهغې وجه هم دا خودلې شوې ده چې هغه ښځو د نارينوؤ په مينځ كښې ورتلل نه خوښول ، د نارينوؤ نه پاتې اوبه ئې خپلو څارو ته وركول قبول كړې وو . د حجاب آيت مبارك د زينب بنت جحش ؓ د نكاح په وخت نازل شوې دې خو ددې نه وړاندې هم دجامع ترمذى د يو روايت مطابق په كور كښې د هغوئ د ناستې شان داسې بيان شوې دې چې :

﴿وهى مولية وجهها الى الحائط﴾ [مخ يې ديوال ته كړې ناسته وه] ([1]).

دې نه معلومه شوه چې د حجاب د آيت مبارك د نازليدو نه وړاندې هم د پردو نارينوؤ زناناؤ مينځ كښې بيباكه ګډو نه او بې تكلفه ملاقات اوخبرو اترو كولو رواج په شريفو اونيكو خلقو كښې چرته هم نه وو ، په قرآن عظيم الشان كښې د كوم جاهليت اولى اوپه هغې كښې دزناناؤ دتبرج او ښكاره كيدو كوم بيان چې راغلې دې هغه هم د عربو په شريفو خاندانو كښې نه ، بلكه په وينځو اوبې باكه ښځو كښې رواج وو ، د عربو په شريفو خاندانونو كښې به دغه رواج بدګڼرلې شو ، نو د عربو ټول تاريخ ددې ګواه دې ، دارنګه په هندوستان كښې به هندانو د بدمذهب خلقو اونورو شركى مذهبونو والو دا نه خوښول چې نارينه او زنانه دې بې باكه ګډون كوى ، نارينوؤ سره دزناناؤ اوړه په اوړه كار كول په بازارونو او سړكونو باندې دزناناؤ ، پريدونه كول او دتعليم په ډګر كښې څه چې د ژوند په هر ډګر كښې نارينوؤ زناناؤ بې تكلفه ګډون كول ، په ميلمستيا او كلبونو كښې دبې تكلفه ملاقاتونو سلسله صرف د يورپى قومونو د بې حيايئ او فحاشئ پيداوار دې ، چې په كښې د اقومونه هم د خپلې ماضى باغيان شوى دى . پخوا زمانه كښې د دوئ هم دا رواج نه وو څنګه چې الله تعالى په جسمانى

---

[1] ) جامع الترمذى، أبواب التفسير، باب ومن سورة الأحزاب: ج ٢، ص ١٥٧، وصحيح مسلم، كتاب النكاح، باب زواج زينب بنت جحش الخ: ج ١، ص ٤٦٠

Scanned with Ca

پیدائش کښې نارینه او زنانه خپل مینځ کښې جدا جدا لرلی دی دغسې د زنانوؤ په طبیعت کښې ئې هم داسې یو فطری حیا جوهر ایښودې دې چې په فطری ډول دوئ د عامو نارینوؤ نه یو طرفته پاتې کیدو او ترې پردې کولو ته را اړوی ، دا حیا الله ﷻ د دوئ په طبیعتونو او فطرونو کښې د هغې وخت نه ایښودې دې کوم وخت نه چې بنیادم پیدا کول شروع شوی دی ، او د اسلام په شروع کښې هم د پردې کولو هم د غه شان وو .

د ښځو د پردې داخاص نوعیت چې زنانه دې د خپل کور په چاردیوارئ کښې پاتې کیږی ، او چې په شرعی ضرورت بهر ته اوځی نو ټول بدن دې پټ کړی هله دې اوځی دا دمدینې د هجرت نه پس په کال پنځمه هجرئی کښې جاری شوې دې .

تفصیل ئې دادې چې د امت د علماء کرامو رحمهم الله په اتفاق سره ددې پردې باره کښې رومبې آیت مبارک هغه دې کوم چې پورته داسې بیان شوې دې .

﴿لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ﴾ چې د زینب بنت جحش رضی الله عنها د نکاح په موقعه هغه وخت نازل شوې دې کله چې دا ام المؤمنین رضی الله عنها په حرم نبوی کښې داخله شوه . ددې نکاح د نیټې باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله په اصابه کښې او ابن عبدالبر په استیعاب کښې دوه قولونه نقل کړی دی ، یو کښې کال دریمه هجرئی ښائی او بل کښې کال پنځمه هجری ښائی(۱) ، ابن کثیر رحمه الله کال پنځم هجری غوره کړې ده . ابن سعد رحمه الله د انس رضی الله عنه نه هم کال پنځم هجری نقل کړې ده . د عائشه صدیقه رضی الله عنها د ځینې رِوایتونو نه هم ددې غوره والې معلومیږی(۲) ، والله اعلم .

په دې آیت مبارك کښې زنانو ته په پرده کښې د پاتې کیدو حکم اوشو او نارینوؤ ته داحکم اوشو چې څه څیز غوښتل وی نو دپردې شاته دی ترې غوښتې شئ ، په دې کښې د پردې خاص تاکید بیامونډې شی چې بې ضرورته خو د نارینوؤ زنانوؤ مینځ کښې جدا جدا پاتې کیدل دی که دضرورت په وخت څه خبره کول دی نو هغه دې د پردې روستو کولې شی .

قرآن عظیم الشان کښې د زنانوؤ دپردې او ددې د تفصیلونو باره کښې اوهٔ آیتونه نازل شوی دی ، څلور په سورهٔ احزاب کښې او درې په سورهٔ نور کښې تیر شویدی . دې باندې د ټولو اتفاق دې چې د پردې باره کښې د ټولو نه رومبې نازلیدونکې هم دا آیت مبارك دې چې : ﴿لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ﴾ د سورهٔ نور درې واړه آیتونه او د سورهٔ احزاب دشروع آیت چې په کښې ازواج مطهراتو ته دا حکم شوې دې چې پخپلو کورونو کښې کینئ . ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ داټول اګرچې د قرآن عظیم الشان په ترتیب کښې رومبی دی خو نازل شوی روستو دی . د سورهٔ احزاب په رومبی آیت مبارك کښې داخبره په ښکاره کړې شوې ده چې داحکم هغه وخت ورکړې شوېدې کله چې الله ﷻ ازواجو مطهراتو ته دا اختیار ورکړې وو چې که ددنیا فراخی غواړئ نو رسول کریم ﷺ نه طلاق واخلئ ، اوکه آخرت غوره کوئ او ددنیا په معاشرت کښې په موجوده حالت باندې قناعت کوئ نو په نکاح کښې ئې پاتې شئ .

د اختیار ورکولو په دې واقعه کښې دا هم بیان شوی دی چې کومو ازواج مطهراتو ته دا اختیار ورکړې شوې وو په هغه کښې زینب بن جحش رضی الله عنها هم داخله وه په دې بنا ثابته شوه چې

---

(۱) الاصابة حرف الزاء القسم الأول: ج ۳، ص ٤٩٤، والاستيعاب: ج ۱، ص ۵۹۷

(۲) طبقات ابن سعد: ج ۸، ص ۱٤٤

Scanned with Ca

د هغوئ نکاح د دې آيت مبارك د نازليدو نه وړاندې شوې وه . د غسې د سورهٔ نور هغه آيتونه چې په کښې د پردې باره کښې تفصيلات دی ، دا اګر چې په قرآنی ترتيب کښې وړاندې دی خو د افك په قيصه کښې د دې نه روستو نازل شوی دی کومه چې د غزوهٔ بنی المصطلق يا مريسيع نه په واپسئ کښې راپيښه شوې وه ، دا غزه په کال شپږمه هجرئ کښې شوی ده[1] .
او د شرعی پردې احکام دهغې وخت نه جاری شوی دی کله چې د زينب ﷺ په نکاح کښې د پردې آيت مبارك نازل شو . د سورهٔ نور د حجاب باره کښې آيتونه په سورهٔ نور کښې تير شوی دی .

**سترعورت دهغوی او د زنانو د حجاب مينځ هنم فرق** : د نارينو او زنانو د بدن هغه اندامونه چې هر چا نه ئې پټول د شريعت ، طبيعت ، او عقل تر مخه فرض دی دې ته په عربئ کښې عورت ، په اردو کښې ، فارسی کښې او پښتو کښې ورته ستر وائی . د ايمان نه پس د تولو نه اول فرض هم د دې پټول دی ، کله نه چې انسان پيدا شوې دې ، دهغې وخت نه ئې دا ذمه داری مقرر شوې ده او د ټولو پيغمبرانو ﷺ په شريعتونو کښې فرض پاتې شو ده ، لکه د شريعت راتلو نه هم مخکښې کله چې په جنت کښې د آدم ﷺ نه جامې د هغې ونې د خوراك په وجه کوځې شوې کومې نه چې منع شوې وو او ستر ئې ښکاره شو ، هغوئ ﷺ دواړو دا نه برداشت کول چې ستر دې ئې ښکاره پاتې شی ، ځکه خو ئې په خپل ستر باندې د جنت د ونو پاڼې اينبودل شروع کړل : ﴿وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ﴾ .
په هر کيف د انسان د پيدا کيدو سره سم د ستر پټول ضروری کيدل راروان دی البته داعضاء مستور په تعين او تحديد کښې اختلاف کيدې شی چې دکوم ځائې نه تر کوم ځائې پورې دی ، د ستر پټول په نارينو زنانو په هر حالت فرض دی . خواه څوك ليدونکې ئې وی او که نه وی ، لکه د جامو څوك خاوند چې که د شپې په تيارې کښې په بربنډ مونځ کوی نو په اتفاق سره دغه مونځ نه کيږی . [بحر رائق][2] . يا مونځ خو ئې په پټ ستر شروع کړی وی او دمونځ په دوران کښې ئې ستر ښکاره شی نو بيا ئې هم مونځ مات شو . اګر چې هيچا هم ورته نه وی کتلی [د فقهې دعامو کتابونو په حواله][3] .
که څوك مونځ نه کوی ، بيا هم په دې کښې هيڅ اختلاف نشته چې دغه وخت هم خپل ستر پټول فرض دی . که څوك داسې ځان له ځائې کښې موجود وی ، او بل څوك کتونکې ورته هم نه وی نو دصحيح قول مطابق دا ددهٔ دپاره جائز نه دی ، البته که څوك شرعی ، يا طبعی عذر ورته وی نو بيا به جائز شی ، [بحررائق شرح منيه][4] .
دا بيان شوې مسئله او حکم د ستر عورت وو اوس :

**دويمه مسئله** : د حجاب او پردې داده چې زنانه دې د پردو نارينو نه پرده کوی نو د ومره خبره خو هميشه دپاره په پيغمبرانو ﷺ او نيکانو خلقو کښې جاری پاتې شوې ده چې د پردو نارينو زنانو مينځ کښې په بې باکئ سره ګډون کول نه دی خوښ کړی . د شعيب ﷺ د دوؤ

[1] ) صحيح البخاری، كتاب المغازی، باب غزوة بنى المصطلق : ج ۲، ص ۵۹۳
[2] ) البحر الرائق، كتاب الصلاة، باب شروط الصلاة: ج ۳، ص ۵۷، ۵۸
[3] ) تفصيل دپاره اوګورئ: البحر الرائق، كتاب الصلاة، باب شروط الصلاة: ج ۱، ص ۲۸۳
[4] ) البحر الرائق: ج ۳، ص ۵۹، ۵۸

Scanned with Ca

لونړو بيبيانو هغه قيصه خو په قرآن عظيم الشان کښې ډيره مشهوره ده چې کله پرې موسی ﷺ په مدين کښې ورپيښ شو هغوئ خپلې ګډې چيلئ د اوبو ورکولو د ځائې نه يو طرفته په دې وجه ايسارې کړې وې چې پردو نارينو سره ئې هسې ګډون کول نه غوښتل بلکه دائې معمول وو چې نارينه به دغې کار نه اوزګار شو نو دهغوئ نه پاتې اوبه به ئې خپلو څاروؤ ته ورکړې ، موسی ﷺ ته هغوئ دوه وجې بيان کړې :

يوه دا چې پردو ينارياؤ سره ګډون نه خوښوؤ ، اوبله دا چې دکور نه راوتل هم زمونږ د پاره مجبوری ځکه ده چې باباجی مو بوډا دې او بل څوك نارينه مو کور کښې نشته .

مطلب دا چې د شعيب ﷺ په شريعت کښې هم اګر چې د پردې احکام خو نه وو نازل شوی خو بيا هم دا ورته ښه ښکاريدل نه چې زنانه د پردو نارينو سره بې باکئ سره ګډون اوکړی ځکه چې د اسلامی په ابتداء کښې د اشان وو خو بيا هم په کال دريمه هجرئی يا پنځمه هجرئ کښې زناناؤ باندې د پردو نارينو نه پرده کول فرض کړې شوی ، تفصيل ئې راروان دې :

معلومه شوه چې د عورت د ستر او د زناناؤ د حجاب مسئلې جدا جدا دی ، د عورت ستر هميشه دپاره فرض پاتې شوې دې او د زناناؤ حجاب په کال دريمه يا پنځمه هجرئ کښې فرض شو ، د عورت پټول په زناناؤ ، نارينو دواړو باندې دخلقو په وړاندې او ځان له ځائې کښې هم فرض دی . او حجاب صرف دپردو نارينو نه دې . دا تفصيل بيانولو ضرورت ځکه راپيښ شو چې ددې دواړو مسئلو په يو ځائې کولو سره خلقو ته د قرآن عظيم الشان په حکمونو کښې ډيرې شبهې راولاړيږی . لکه د زناناؤ مخ او خپړې ئې په نص سره عورت او ستر نه دی . دواړه قدمونه ئې په قياس سره ترې فقهاء کرامو ﷫ مستثنی کړی دی . په دې وجه که په مونځ کښې د زناناؤ مخ ، خپړې ، او قدمونه ښکاريدل نومونځ ئې په اتفاق سره او اجماع سره جائز دی مخ او خپړې خو په نص سره مستثنی دی او قدمينو لره فقهاء کرامو په دې باندې قياس کړی دی ليکن په حجاب کښې ، يعنی پردو نارينو نه په پردې کولو کښې ئې دا اندامونه هم مستثنی دی که نه دی دې کښې اختلاف دې ځکه چې دسورة نور د آيت ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا﴾ لاندې ئې تفصيل تير شو ېدې او خلاصه ئې راروانه ده .

**شرعی حجاب درجې او ددې د حکمونو تفصيل** : د نارينو دپردې باره کښې د قرآن عظيم الشان د اوؤ آيتونو او د حديث پاك د اوياؤ رواياتو حاصل دا معلوميږی چې اصل مطلب او مقصد د اشخاص شرعی حجاب دې يعنی دا چې د زناناؤ موجودګی اود هغې نقل و حرکت دې د پردو نارينو دسترګو نه پناه وی . چې د کورونو په چار ديوارئ او د رازوړنده پردو په ذريعه کيدې شی ، دې نه سوا د حجاب چې څومره صورتونه منقول دی هغه ټول دضرورت په وجه باندې دی او دضرورت په وخت او اندازه باندې مشروط دی .

په دې شان د ړومبئ درجې اصلی شرعی حجاب خو په دې راتلې شی چې زنانه دې خپلو کورونو کښې اوسيږی ، بيا هم هر کله چې زناناؤ ته هم د ضرورت په وجه د کور نه وتل خامخا راپيښيږی نو شريعت ددې لحاظ کړې دې چې شريعت اسلامی ټول ارخيزه او مکمل نظام دې د ټولو انسانی ضرورتونو خيال ساتی . په داسې صورت کښې د قرآن عظيم الشان اوسنت تر مخه ددې طريقه داده چې د سر نه تر پښو پورې بورقه[ابوغره] يا لوئې پړونې په سر کړی او بدن په کښې ټول پټ کړی چې د لارې کتو دپاره صرف يوه سترګه ښکاری يا د بورقې د جالئ

Scanned with Ca

نه دي کار اخلی دا طریقه هم د ږومبۍ درجې دپردې پشان د ټولو عالمانو او فقهاء کرامو ﷭ اتفاقي ده.

ځینې روایتونو نه د پردې دریمه درجه هم معلومیږي چې په کښې د صحابه کرامو ﷺ، تابعینو ﷭، اود امت د فقهاء کرامو ﷭ رائې مختلفې دي هغه دا چې د ضرورت په وجه کومې زنانه چې د کور نه بهر اوځي نو مخ او دلاسونو مروندونه هم ښکاره کولې شي خو شرط دادې چې ټول بدن پټ وي، د شرعي پردې ددې درې واړو درجو تفصیل دادې چې:

**دحجاب ږومبۍ درجه د کورونو د چاردیوارئې:** د قرآن عظیم الشان تر مخه اصل مقصد هم دا درجه ده، د سورة احزاب دا آیت مبارک:

﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَسْئَلُوهُنَّ مِن وَرَآءِ حِجَابٍ﴾ ددې واضح دلیل دې او ددې نه هم زیات واضح دلیل ئې د سورت احزاب د شروع دا آیت مبارك ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ دې او ددې زیاته تشریح ئې په دې شان شویده چې رسول کریم ﷺ پرې څنګه عمل کړې وو.

د پردې باره کښې کله چې ږومبې آیت د زینب ﷞ دنکاح په وخت کښې نازل شو، د حدیث پاك روایتونو نه معلومیږي چې انس ﷛ په دغه موقعه موجود وو هغوئ وائي چې ځکه زه په دې واقعه باندې ښه پوره خبر یم، فرمائي چې رسول کریم ﷺ ددې آیت مبارك په نازلیدو د ناریناؤ مخې ته د یو څادر وغیره پرده واچوله او زینب ﷞ ئې دهغې په ذریعه دناریناؤ د نظر نه پټه کړه[1]. یعنې په بورقه او په یو لوئې څادر پسرولوسره په پرده کښې نکړه. په شان نزول کښې د عمر فاروق ﷛ واقعه هم وړاندې تیره شوې ده دهغې نه هم معلومیږي چې دهغوئ ﷛ مطلب هم دا وو چې امهات المؤمنین د ناریناؤ د نظر نه پټې جدا په کور کښې دننه وي څنګه چې د ﴿يدخل عليك البر والفاجر﴾[2] الفاظو نه ئې هم معلومیږي.

د صحیح بخاري په حواله عائشه صدیقه ﷞ په روایت کله چې په غزوۀ موته کښې رسول کریم ﷺ ته د زید بن حارثه ﷛، جعفر ﷛ او عبدالله بن رواحه ﷛ د شهید کېځ خبر په مسجد نبوي ﷺ ورکړې شو نو د رسول کریم ﷺ په مخ مبارك باندې د سخت غم خفګان نخښې څرګند شوې، عائشه صدیقه ﷞ اوفرمائیل چې دغه وخت ما دخپلې کوټګۍ دننه نه د دروازې د یو چوند [سورې] په ذریعه دا هر څه کتل.[3]

دې نه ثابته شوه چې عائشه صدیقه ﷞ دغه وخت هم دحجرې نه په بورقه یا لوئې پرونی کښې بهر راؤ نه وتله بلکه د حجرې مبارکې دننه نه ئې دغه هر څه اولیدل.

او په صحیح البخاري کتاب المغازي د عمرة القضاء په باب کښې دي چې عروه بن زبیر ﷛ او د عبدالله بن عمر ﷛ په مسجد نبوي ﷺ کښې د عائشه صدیقه ﷞ د حجرې نه بهر [حجرې سره] لګیدلي ورسره ناست وو او د رسول کریم ﷺ د عمرو باره کښې ئې خپل مینځ کښې خبرې کولې، ابن عمر ﷛ اوفرمائیل چې په دغې دوران کښې مونږ د عائشه

[1]) صحیح مسلم، کتاب النکاح، باب زواج زینب بنت جحش ونزول الحجاب الخ: ج ۱، ص ۴۶۰

[2]) صحیح مسلم، کتاب فضائل، باب من فضائل عمر رضی الله عنه: ج ۲، ص ۲۷۶-ترجمه: تاسو ته هر نیک او بد انسان راځي.

[3]) صحیح البخاري، کتاب الجنائز، باب ما ینهی عن النوح والبکاء: ج ۱، ص ۱۷۴

Scanned with CamScanner

صديقه ﷺ د مسواك كولو او د مرئ د صفا كولو آواز د حجرې دننه نه واؤريدو[1] ، وړيسې واقعه كښې د رسول كريم ﷺ دعمرو بيان دې.
دې روايت نه هم معلومه شوه چې د حجاب د آيت مبارك د نازليدو نه پس د ازواجو مطهراتو دا معمول شوې وو چې په كورونو كښې دننه به پاتې كيدوسره ئې پرده كوله.
دغسې په صحيح بخارى غزوة الطائف كښې يو حديث پاك كښې دى چې رسول كريم ﷺ په يو لوښى كښې خپله خوله مباركه كنګال كړه او هغه اوبه ئې ابى موسى ﷺ او بلال ﷺ ته وركړې چې وې څكئ او په مخونو ئې اومخئ. ام سلمه ﷺ د پردې نه روستو دا واقعه ليدله. هغوئ ﷺ د خپل كور دننه نه ورته آواز اوكړو چې دې تبرك كښې دخپلې مور بى بى هم حصه اوكړئى[2]. داحديث پاك هم ددې خبرې ګواه دې چې د حجاب د نازليدو نه پس به ازواج مطهرات خپلو كورنو كښې په پرده كښې پاتې كيدې.
**فائده**: په دې روايت كښې دا خبره هم د نظر كولو قابله ده چې ازواج مطهرات هم لكه د نورو مؤمنانو پشان د رسول كريم ﷺ د تبركاتو شوق لرلو ، دا هم د رسول كريم ﷺ خصوصيت كيدې شى ، ګنى د ښځې خاوند مينځ كښې خو بې تكلفه تعلقات دا اثر لرى چې خاوند سره دښځې دومره عقيدت نه وى چې په دې شان دهغه پاكوالئ ، تعظيم ئې په زړه كښې ځائې شى.
او په صحيح بخارى كتاب الادب كښې د انس ﷺ نه روايت دې چې هغوئ ﷺ او ابوطلحه يو ځل رسول كريم ﷺ سره يو ځائې چرته روان وو ، هغوئ ﷺ او صفيه ﷺ په اوښ باندې يو ځائې سواره وو ، په لاره كښې ناڅاپى اوښ تيندك اووهلو چې دابى طلحه ﷺ د بيان مطابق هغوئ ﷺ او صفيه ﷺ دواړه د اوښ نه راغوځيدل ابوطلحه اول رسول كريم ﷺ ته ورغلو او عرض ئې اوكړو چې الله ﷻ دې مې په تاسو قربان كړى څه تكليف خو درته نشته ، رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې نه ، ته د زنانه خبر واخله ، ابو طلحه ﷺ رومبې خپل مخ په څه زړوكى پټ كړو بيا صفيه ﷺ ته ورغلو او هغې باندې ئې څه زړوكې واچولو ، هغه راپورته شوه او هم داسې په پرده كښې پټه ئې په اوښ سوره كړه.[3]
په دې ناڅاپه راپيښه كښې صحابه كرامو ﷺ د ازاوجو مطهراتو د حجاب څومره زيات بندوبست اوكړو؟
او په جامع ترمذى كښې د عبدالله بن مسعود ﷺ نه روايت دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې:
﴿اذاخرجت المراة استشرفها الشيطان﴾[1]، [دې حديث پاك ته ترمذى شريف صحيح غريب وئيلى دى] يعنى كله چې يوه زنانه د كور نه اوځى نو شيطان ئې څارى ، چې په مسلمانانو كښې د خرابئ جوړولو ذريعه جوړه كړى ، او ابن خزيمه رحمه الله او ابن حبان رحمه الله په دې حديث پاك كښې دا الفاظ هم نقل كړى دى ، ﴿واقرب ماتكون من وجه ربها وهى فى قعربيتها﴾ يوه مسلمانه زنانه

---

[1] ) صحيح البخارى، كتاب المغازى، باب عمرة القضاء: ج ٢، ص ٦١٠
[2] ) صحيح البخارى، كتاب المغازى: ج ٢، ص ٦٢٠
[3] ) صحيح البخارى، كتاب الادب، باب قول الرجل جعلنى الله فداك: ج ٢، ص ٩١٣
[4] ) جامع الترمذى، أبواب الرضاء، باب (قبيل الطلاق واللعان) ج ١، ص ٢٢٢

Scanned with Ca

هغه وخت الله ﷻ ته زیاته نزدې وی چې خپل کور کښې دننه په پرده کښې وی(۱) ، دې حدیث نه هم دا معلومیږی چې زنانو دپاره اصل خبره داده چې په خپلو کورونو کښې ناستې وی او بهر نه اووځی.

او یو حدیث پاك کښې د رسول کریم ﷺ ارشاد مبارك دې چې: ﴿لیس للنساء نصیب فی الخروج الا مضطرة﴾ [طبرانی بحواله کنز ص: ۶۶۳ ج: ۸]. یعنی زنانه بهر ته د وتو حق نه لری خو هله چې مجبوری ورته راپیښه شی(۲) ، او علی ؓ نه روایت دې فرمائی چې زه یوه ورځ د رسول کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر ووم ، رسول کریم ﷺ صحابهٔ کرامو ؓ نه تپوس اوکړو چې: ﴿ای شئ خیر للمراة﴾ زنانه دپاره کوم څیز زیات غوره دې؟ صحابه کرام ؓ چپ پاتې شو ، هیڅ جواب ئې اونه وئیلو. بیا چې خپل کور ته ورغلم او فاطمه ؓ نه مې دا تپوس اوکړو نو هغې ؓ اوفرمائیل چې:

﴿لا یرین الرجال ولا یرونهن﴾

زنانه دپاره زیاته غوره خبره داده چې دوئ نارینهٔ ته نه ګوری او نه نارینه دوئ ته نه ګوری. علی ؓ فرمائی چې کله مې ددې بیان رسول کریم ﷺ ته اوکړو نو وې فرمائیل چې:

﴿صدقت انها بضعة منی﴾

هغې صحیح اووئیل بیشکه هغه زما یوه حصه ده.(۳)

د افك په واقعه کښې عائشه صدیقه ؓ څکه په ډاګه میدان کښې دشپې ځان له پاتې شوې وه چې ازواج مطهراتو ؓ به صرف د بورقې اولوئې څادر پرده نه کوله بلکه په سفر کښې به هم په خپلې بنده کجاوه کښې پاتې کیده. هغه به بنده په بنده په اوښ کیخودې شوه او هغې نه به راکوزولې شوه. په دې بنا هغه کجاوه به د مسافر دپاره د کور پشان شوه ، عائشه صدیقه ؓ په دغه ډاګ میدان څکه پاتې شوې وه چې د صحابه کرامو ؓ د اخیال راغلو چې هغه ؓ په کجاوه کښې ناسته ده حالانکه هغه تشه وه ام المؤمنین په کښې نه وه ناسته او طبعی ضرورت دپاره صحرا ته تلې وه. په دې غلطئ کښې قافله روانه شوه. او ام المؤمنین په ډاګه پاتې شوه(۴) . په دې بنا کجاوه دکور پشان ثابته شوه چې بهتر راوتل ترې بې ضروره نه کیدل او دا ددې خبرې ثبوت شو چې د حجاب شرعی مطلب رسول کریم ﷺ او ازواجو مطهراتو ؓ دا ګڼړلې وو چې زنانه دې په خپل ځائې کښې پخپلو کورونو کښې دننه پاتې کیږی او په سفر کښې دې په خپله کجاوه کښې پاتې کیږی چې د کور پشان ده ، ولې چې هغوئ ؓ د نارینو مخې ته رانشی کله چې په سفر کښې د اشخاصو د حجاب دغه انتظام کولې شو نو چې ډیره په ځائې وی دهغې انتظام خو به نور هم زیات وی.

**دویمه درجه د بورقې د حجاب:** کله چې د ضرورت په وجه یوه زنانه دکور نه بهر اوځی نو حکم دادې چې یا خو دې بورقه په سر کوی یا دې دومره لوې پړونې په سر کوی چې د سر نه تر پښو

---

۱) صحیح ابن خزیمة، رقم الحدیث: ۱۵۹۳، کتاب الامامة فی الصلاة، جماع أبواب صلاة النساء فی الجماعة، وصحیح ابن حبان، کتاب الحظر والاباحة، باب ذکر الاخبار عما یجب علی المراة، رقم الحدیث: ۵۶۹۰

۲) کنز العمال، رقم الحدیث: ۴۵۰۶۲، ومجمع الزوائد، رقم الحدیث: ۳۲۲۱

۳) کنز العمال، رقم الحدیث: ۴۶۰۱۱، ومجمع الزوائد، رقم الحدیث: ۱۵۲۰۰، ومسند البزار، رقم الحدیث: ۵۲۶

۴) صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب حدیث الافک: ج ۲، ص ۵۹۳

Scanned with

پورې په کښې پټه شي ، د اد سورۀ احزاب د هغې آیت مبارك نه ثابت دې چې راروان دې لکه فرمائی چې ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ يُدۡنِينَ عَلَيۡهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّۚ﴾ [اې نبی ﷺ ، تاسو خپلو پاکو بیبیانو ،لونړو بیبیانو او دعامو مسلمانانو زناناؤ ته حکم ورکړئی چې خپل جلبابونه یعنی پړونی استعمالوی] جلباب هغه څادر ته وئیلې شی چې ښځه د سر نه تر پښو پورې پټه کړی [دا روایت ابن عباس رضی الله عنه نه منقول دې]
ابن جریر پخپل سند سره عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه د جلباب د استعمالولو دا طریقه نقل کړې ده چې ښځه په کښې د سر نه تر پښو پورې پټه وی ، مخ او پوزه ئې هم په پټه وی ، د لارې د لیدو دپاره ئې صرف یوه سترګه ښکاره کړې وی[1] ، ددې آیت مبارك تفسیر بۀ راشی ، دلته صرف دومره څودل دی چې د ضرورت په وخت کښې کله چې زنانه د کور نه بهر د مجبورئی په طور اوځی نو جلباب دې په دغه طریقه استعمالوی .
دا صورت هم د امت د فقهاء کرامو رحمهم الله په اتفاق سره د ضرورت په وخت جائز دې ، خو په صحیح احادیثو کښې ددې صورت په اختیارولو باندې هم څو پابندیانې لګولې شوی دی ،مثلاً خوشبوئی دې نه لګوی ، شرنګیدونکې کالې یعنی زیورات دې نه اچوی ، دلارې په غاړه بۀ ځی ، د ناریناؤ په ګڼړه کښې دې نه ورداخلیږی وغیره وغیره .
**دریمه درجه دشرعی پردې ده چې په کښې د فقهاء کرامو رحمهم الله اختلاف دې** :: دریمه درجه داده چې ټول بدن د زنانه دې پټ وی صرف مخ او د لاسونو خپړې ئې که ښکاره وی نو خیر دې داهغه حضرات وائی چې د ﴿الاماظهرمنها﴾ تفسیر مخ او د لاسونو خپړې کوی ، د هغوئ په نزد مخ او د لاسونو خپړې ښکاره پریښودل جائز شو ، [دا روایت ابن عباس رضی الله عنه نه منقول دې]
او چا چې ﴿الاماظهرمنها﴾ نه مرا بورقه او جلباب اخستې دې هغوئ ددې ښکاره کول ناجائز ګڼړی [لکه څنګه د ابن مسعود رضی الله عنه په روایت کښې دی][2].
چا چې ورته جائز وئیلی دی نو هغوئ ورسره دا شرط ایښودې دې چې د فتنې فساد خطره وی مګر چونکه د زنانه د زینت ټولـه مرکز د هغې مخ دې نو ددې ښکاره کول د فتنې اوفساد نه خالی نه شی کیدې نو خبره دې ته راؤځی چې مخ ښکاره کول دې هم جائز نه شی.
دځلورو ا مامانو نه امام مالك رحمه الله ، امام شافعی رحمه الله ، امام احمد بن حنبل رحمه الله خو رومبې مذهب اختیار کړې دې خو د مخ او لاسونو د خپرو ښکاره کولو ئې مطلقا اجازت نه دې ورکړې خواه د فتنې ویره هم وی او کنه وی ، امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله اګر چې دویم مسلك اختیار کړې دې خو دا شرط ئې لګولې دې چې دفتنې ویره نه وی ، خو عادتا چونکه د فتنې ویره خامخا وی ځکه حنفی فقهاء کرامو رحمهم الله هم د نامحرمو په مخکښې د مخ او لاسونو د خپرو ښکاره کولو اجازت نه دې ورکړې.
دځلورو وارو امامانو رحمهم الله روایتو ددې مذاهبو په کتابونو په حوالـه سره په رسالـه تفصیل الخطاب کښې په تفصیل سره بیان کړې شوی دی چې د احکام القرآن یوه حصه ګرځیدلې ده.
د احنافو اصل مذهب دادې چې مخ او دلاسونو خپرې د حجاب نه مستثنی دی ځکه دلته د

---

[1] ) تفسیر الطبری تحت هذه الآیة: ج ۲، ص ۳۲٤
[2] ) روح المعانی، سورة النور: ۳۱، ج ٦، ص ٤٥

حنفي مذهب څو روايتونه نقل کولی شی چې په کښې په دې بنا ددې د ښکاره کولو نه منع کړې شوې ده کله چې د فتنې ويره وی ليکی:

اعلم انه لا ملازمة بين كونه ليس عورة جواز النظر اليه فحل النظر منوط لعدم خشية الشهوة مع انتفاء العورة ولذا حرم النظر الى وجهها ووجه الامرة اذا شك في الشهوة ولا عورة [فتح القدير جلد: ۱ ص: ۱۸۱] (۱)

په دې بيان ځان پوهه کړه چې دې کښې څه کلام نشته چې يو اندام عورت نه وی نو ګنی هغې ته دې کتل هم کيدې شی ، ولې چې يو اندام ته کتل هله کيدې شی چې د شهوت راپورته کيدو خطره نه وی سره ددې چې هغه اندام به په ستر کښې داخل نه وی او په دې وجه د يوې پردئ زنانه ياد بې رېږې هلك مخ ته کتل هم په هغه وخت کښې کتل حرام دی چې په شهوت راولاړيدو کښې شك وی سره ددې چې مخ عورت نه دې

د فتح القدير دې عبارت نه چې خطره نې دشهوت نه وی ، نه دا تفسير هم معلوم شو چې اګر که بالفعل په شهوتی نيت سره کتل نه وی خو د شهوتی خيال د راپيدا کيدو شك وی نو په دې بنا يوازې د پردئ زنانه مخ ته نه بلکه د بې رېږې هلك مخ ته هم کتل حرام دی او په جامع الرموز کښې د شهوت د خيال پيدا کيدو تشريح دا شوې ده چې په زړه کښې دې ته د نژدې کيدو ميلان پيدا شی ښکاره خبره ده چې داسې ميلان نه پيدا کيدل خو د پخوانو بزرګانو په زمانه کښې شاذ ونادر وو ، رسول کريم ﷺ چې يوې زنانه ته د کتو نه د فضل ﷺ مخ په لاس مبارك سره واړولو داهم ددې خبرې واضح دليل دې نو هر کله چې په دغه زمانه کښې دا حال وو نو اوس په دې زمانه کښې به دغه حال نه وی بلکه خطره د شهوت به په کښې خامخا وی.

او شمس الائمه سرخسی رحمه الله په دې مسئله باندې تفصيلی بحث کولو نه پس ليکلی دی چې:

وهذا كله اذا لم يكن النظر عن شهوة فان كان يعلم انه ان نظر اشتهى لم يحل له النظر الى شئ منها [مبسوط جلد: ۱ ص: ۱۵۲] (۲)

دا دمخ او څپرو د لاسونو د کتلو رواکيدل هله دی چې دغه نظر کول په شهوت سره نه وی او که کتونکې په دې پوهيږی چې مخ ته په کتلو سره ئې شهوت راولاړيږی نو ددغې زنانه هيڅ ځائې ته کتل هم روانه دی.

او علامه شامی په رد المحتار کتاب الکراهية کښې فرمائيلی دی چې:

فان خاف الشهوة او شك امتنع النظر الى وجهها فحل النظر مقيدة بعدم الشهوة والا فحرام وهذا في زمانهم واما في زماننا فمنع من الشابة الا النظر لحاجة كقاض وشاهد يحكم ويشهد وايضا قال في شروط الصلوة وتمتنع الشابة من

که د شهوت خطره يا شك وی نو د زنانه مخ ته کتل منع دی ولې چې د کتلو رواکيدل په دې شرط دی چې شهوت ئې نه راولاړيږی او کله چې داسې نه وی نو بيا حرام دی او دا خبره د پخوانو بزرګانو په زمانه کښې کيدې شوه خو زمونږ په زمانه کښې مطلقا ځوانې زنانه ته کتل منع دی البته دضرورت په وجه روا دی لکه قاضی يا ګواه چې د دغې زنانه باره کښې فيصله کوی يا ګواهی ورکوی . او دارنګه په شروط الصلوة کښې فرمائی چې ځوانې زنانه لره د پردو سړو په مخکښې

---

(۱) فتح القدير، كتاب الصلاة، باب شروط الصلاة التى تتقدمها: ج ۱، ص ۱۸۱
(۲) المبسوط، كتاب الاستحسان، باب النظر الى الأجنبيات: ج ۱۲، ص ۳۷۲

Scanned with Ca

كشف الوجه بين رجال لا لانه عورة بل لخوف الفتنة.() خپل مخ ښکاره کول منع دی په دې وجه نه چې دا عورت دې بلکه په دې وجه چې دفتنې ویره په کښې ده.

ددې بحث او د اختلاف د فقهاء کرامو رحمهم الله خلاصه دا ده چې امام شافعي رحمه الله، امام مالك رحمه الله، امام احمد بن حنبل رحمه الله خوانې ښځې ته کتل د عام عادت په وجه د فتنې سبب اوګرځولو او مطلقا ئې ترې منع اوکړه خواه په واقع کښې فتنه وی یا نه وی لکه د شریعت په ډیرو حکمونو کښې چې ددې مثالونه موجود دی، مثلا سفر چونکه عادة د مشقت او محنت سبب وی لهذا په سفر کښې یې اود رخصت ټول احکام هم په دې بنا کړل اګر چې په یو سفر کښې په چا باندې هیڅ قسم مشقت نه وی بلکه د خپل کور نه ورته هم زیات آرام وی خو بیا به هم مونځ کښې قصر کوی او د کوچې کولو [روژه نه کولو] اجازت ورته شته دې. د غه شان که یو بنده اوده وی نو هغه د ځان نه بې خبره وی چې دعادت تر مخه ترې باد هم وتلې شی خکه خو دې دا خوب د باد وتلو قائمقام اوګرځولې شو او په دې سره د اودس ماتیدو حکم ورکړې شو خواه که په حقیقت کښې او واقع کښې ترې باد وتلی وی یا نه وی وتلی.

خو امام اعظم رحمه الله د زنانه مخ یا مړوندونور ته دا درجه ورنکړه چې ګنی مخ ښکاره کول د فتنې قائمقام اوګرځولې شی، البته حکم ئې په دې بنا کړو چې چرته د فتنې احتمال وی هلته به منع وی، او چرته چې دا احتمال نه وی نو جائز به وی خو مخکښې معلومه شوه چې په ننني دور کښې داسې احتمال نه وی بالکل شاذ او نادر وی ځکه متاخرینو فقهاء کرامو رحمهم الله بالاخر هم هغه حکم ورکړو کوم چې دریو امامانو ورکړې وو چې صرف دځوانې زنانه مخ یا مړوند ته کتل منع دی.

ددې حاصل دا شو چې اوس په باتفاق د ائمه اربعه دا دریمه درجه د پردې ممنوع شوه چې ښځه دې ګنی خپل نور ټول بدن په بورقه وغیره کښې پټ کړی مګر صرف مخ او تلی دې ښکاره کړی او د سړو منیخ ته دې رازی [یعنی دا هم ممنوع دی] دپردې کولو صرف دوه صورتونه دی یو هغه چې اصل مقصد چې زنانه دپاره په کور کښې پاتې کیدل او بغیر د څه ضرورت څخه بهر نه وتل. او بله دا چې د ضرورت دپاره د کور څخه بهر وتل خو د ضرورت په وخت کښې او د ضرورت په قدر.

**مسئله**:: د پردې په دغې بیان شوؤ حکمونو کښې ځینې صورتونه مستثنی هم دی، لکه ځینې نارینه نه دغه پرده نشته دې او ځینې زنانه مثلاً بوډۍ هم د پردې ددغې حکم نه څه قدرې مستثنی دی، ددې څه تفصیل خو په سورۀ نور کښې تیر شو څه به د سورۀ احزاب په هغې آیتونو مبارکو کښې بیانولې شی په کوم کښې چې دا استثنی بیان شوې ده. هرکله چې د پردې مسئله ډیره ضروری وه ځکه مې دخپلې رسالې تفصیل الخطاب فی احکام الحجاب څه خلاصه دلته اولیکله چې عوامو دپاره کافي دې، چا ته چې دپوره تحقیق ضرورت وی نو زما په د غه رساله کښې دې ئې اوګوری، دا رساله د سورۀ احزاب په تفسیر احکام القرآن کښې خوره شوې ده، والله سبحانه وتعالی اعلم

[۱] ) ويشهد الخ الدر المختار مع الشامية، كتاب الحظر والاباحة، فصل فى النظرو المس: ج ٦، ص ٣٧٠، وأيضاً قال فى شروط الصلاة الخ: ج ١، ص ٤٠٦

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّ اللَّهَ | وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ | يُصَلُّونَ | عَلَى النَّبِيِّ | يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ |
| بیشکه چې الله \| او فرښتې دهغه \| درود [یعنی رحمت] لیږي \| په نبي ﷺ باندې \| اے هغه کسانو \| | | | | |
| بیشکه الله او ددهٔ فرښتې په نبي باندې درودونه وائی[د الله درود رحمت او د فرښتو درود دعا ده] ائې | | | | |
| ءَامَنُوا | صَلُّوا | عَلَيْهِ | وَسَلِّمُوا | تَسْلِيمًا ﴿٥٦﴾ |
| چې ایمان مو راوړې دې \| درود اولیږئ \| په هغه باندې \| او سلام وایئ \| په سلام ونیلو سره \| | | | | |
| د ایمان خاوندانو ! تاسو هم په دهٔ باندې درود او سلام وایې | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**بے شکه الله تعالیٰ او دهغه فرښتې په نبي علیه السلام باندې درود لیږي. اے ایمان والو! تاسو هم په هغوی باندې درود اولیږئ، او سلام اولیږئ ډیر سلام.**

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّ اللَّهَ وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ﴾ [بیشکه الله تعالی د هغه فرښتې رحمت لیږی په دې پیغمبر] صلی الله علیه وسلم باندې ﴿يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾ اے ایماندارو [تاسو هم په ده رحمت لیږئ او ښه سلام پرې لیږئ] چه د دوی ﷺ حق د عظمت کوم چه ستاسو په ذمه دې ادا شی.

## معارف او مسائل

﴿إِنَّ اللَّهَ وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ﴾ دې څخه مخکښې آیتونو کښې د نبی اکرم ﷺ څه خصوصیات او امتیازات بیان شوی وو. هم په دې سلسله کښې د ازواجو مطهراتو د پردې حکم راغلې وو. وروسته به هم د پردې څه حکمونه راشی، په مینځ کښې د هغې څیز حکم ورکړې شو کوم د پاره چې د اټول خصوصیات او امتیازات ایخودې شوی وو. هغه د نبی اکرم ﷺ د شان لوئی څرګندول او د نبی اکرم ﷺ د لوئې مینې او اطاعت کولو شوق راپیدا کول دی.

د آیت مبارك اصل مقصود مسلمانانو ته دا حکم ورکول وو چې په نبی اکرم ﷺ باندې صلوة او سلام اولیږئ خو ددې په تعبیر کښې ئې داسې اوفرمائیل چې اول الله ﷻ د خپل اود فرښتو صلاة په هغوئ باندې لیږل بیان کړل، وروسته ئې عامو مؤمنانو ته ددې حکم ورکړو چې په هغې کښې یې د نبی اکرم ﷺ شرف اولوئی په دې شان ښکاره کړه چې د نبی اکرم ﷺ باره کښې مسلمانانو ته د کوم کار کولو حکم ورکړې کیږی نو هغه پخپله الله ﷻ اود الله ﷻ فرښتې کوی. نو په عامو مسلمانانو خو د نبی کریم ﷺ ډیر زیات احسانات دی، دوئ له پکار دی چې ددې ډیر زیات اهتمام اوکړی. او په دې تعبیر کښې یوه فائده دا هم ده چې ددې څخه د هغه مسلمانانو یو فضیلت ثابتیږی چې کوم په نبی کریم ﷺ باندې ډیر زیات درود وسلام لیږی چې الله ﷻ هغوئ خپل ځان سره په هغه کار کښې شریك کړل کوم چې الله ﷻ پخپله هم کوی او د الله ﷻ فرښتې یې هم کوی.

**د صلوة او سلام معنی** :: عربی ژبه کښې صلوة لفظ څو معنو د پاره استعمالولې شی ① رحمت ② دعا ③ تعریف او ثناء. دلته په آیت مبارك کښې د صلوة نسبت الله ﷻ ته شوی دی نو مراد ترې رحمت نازلول دی، چې فرښتو ته ئې نسبت نو مطلب ئې نبی اکرم ﷺ ته دعا کول دی. او که مؤمنانو ته ئې نسبت اوشی نو مطلب ترې د صفت او تعریف مجموعه ده، نو عامو مفسرینو ئې هم دا معنی لیکلې ده، او امام بخاری رحمه الله د ابی العالیه رحمه الله څخه نقل کړی دی چې دلته د الله ﷻ د صلوة څخه مراد د نبی اکرم ﷺ تعظیم کول دی[۱]. په دنیا کښې داسې شان سره چې لویه مرتبه ئې ورکړه. او آذان او اقامت وغیره کښې ئې د نبی اکرم ﷺ ذکر خپل ځان سره شامل کړو، د نبی اکرم ﷺ دین ئې د دنیا په گوټ گوټ کښې غالب او خور کړو او د نبی اکرم ﷺ په شریعت باندې ئې عمل کول تر قیامته پورې جاری اولرل. ورسره دا چې د نبی اکرم ﷺ د شریعت محفوظ ساتلو ذمه داری الله ﷻ واخسته. او آخرت کښې به ئې تعظیم په داسې شان سره کوی چې د نبی اکرم ﷺ مقام به د ټولو خلقو څخه زیات اوچت وی. او د شفاعت کولو هغه مقام به ورکړی چې بل هیڅ یو پیغمبر علیه السلام او فرښتې ته دغه مقام حاصل نه وی چې په نورو تکو کښې ورته مقام محمود هم وئیلې شی. د فرښتو د صلوة څخه مطلب د نبی اکرم ﷺ مدح او ثناء کول دی.

په دې معنی باندې چې دا شبهه کیدې شی چې هر کله په صلوة کښې نبی اکرم ﷺ سره د حدیثو د روایتونو مطابق د نبی اکرم ﷺ آل او صحابه کرام رضی الله عنهم هم شاملولې شی. د الله ﷻ په تعظیم او مدح او ثناء کښې د نبی کریم ﷺ څخه سوا څوك څنگه شریکولې شی؟ د دې جواب په روح المعانی وغیره کښې ورکړې شوې دې چې د تعظیم او مدح اوثناء درجات ډیر زیات دی، نبی اکرم ﷺ ته د دې اعلی درجه حاصله ده او په یوه درجه کښې صحابه کرام رضی الله عنهم او آل وغیره اوعام مؤمنان شامل دی.

**یوه شبه او د هغې جواب** :: ځینې حضرات دا جائز نه گنړی چې په یو وخت کښې د یو لفظ څخه گنړې معنی مراد واخستې شی چې عموم مشترك ورته وئیلې شی. په دې بنا توجیه به ئې دا سې کولې شی او سمون به ئې داسې راوستې شی چې دلته د صلوة معنی هم یوه مراد اخستې شوې ده چې هغه تعظیم، مدح وثناء او خیرخواهی ده، د دې معنی نسبت کله چې الله ﷻ ته اوشی نو حاصل به ئې رحمت وی، او که فرښتو ته ئې نسبت اوشی نو دعا او استغفار به ترې مراد وی. اوکه عامو مؤمنانو ته د دې نسبت اوکړې شی نو د دعا مدح او ثناء او د تعظیم مجموعه به ترې مراد وی.

د سلام لفظ مصدر دې او معنی ئې السلامة ده، لکه سلام چې په معنی د سلامت استعمالیږی. چې مراد ترې د نقصونو، عیبونو او آفتونو څخه سالم پاتې کیدل دی، نو د السلام علیکم معنی داده چې د نقصونو، زیانونو او آفتونو څخه سلامتی دې تاسره وی، د عربی ژبې د قاعدې مطابق دلته د حرف عَلٰی راوړو موقعه نه ده خو هر کله چې د سلام لفظ د ثناء معنی لره شامل دې څکه د عَلٰی حرف سره علیك یا علیکم وئیلې شی.

---

[۱] صحیح البخاری، کتاب التفسیر، سورة الأحزاب، باب قوله ان الله وملئکته الآیة: ج ۲، ص ۷۰۷

ځيني حضراتو دلته د سلام څخه مراد د الله ﷻ ذات اخستي دي ولې چې د الله ﷻ يو نوم مبارك سلام هم دې په دې بنا د السلام عليكم معنى به دا وى چې الله ﷻ ستا د ساتنې حفاظت او ضامن او ذمه وار دي.

**د صلوة او سلام طريقه** :: د صحيح بخاري او د نورو ډيرو كتابونو د حديث په حواله دا حديث پاك راغلې دې چې كعب بن عجره اوفرمائيل چې يو سړى نبى اكرم ﷺ څخه تپوس اوكړو چې د سلام طريقه خو مونږ ته معلومه شوى ده چې مونږ ﴿السلام عليك ايها النبى﴾ وايو د صلوة طريقه هم راته اوښائي. نبى اكرم ﷺ اوفرمائيل چې دا الفاظ وايئ.

﴿اللهم صل على محمد وعلى آل محمد كما صليت على ابراهيم وعلى آل ابراهيم انك حميد مجيد﴾ ﴿اللهم بارك على محمد وعلى آل محمد كما باركت على ابراهيم وعلى آل ابراهيم انك حميد مجيد﴾[1]

نورو روايتونو كښې دې باره كښې څه نور كلمات هم منقول دى. د صحابه كرامو ﷺ د تپوس كولو وجه غالباً دا وه چې د سلام وئيلو طريقه خو راته په تشهد كښې داخودلې شويده ﴿السلام عليك ايها النبى ورحمة الله وبركاته﴾ ځكه ئې د صلوة الفاظ پخپله ټاكل خوښ نه كړل بلكه د نبى اكرم ﷺ د طرفه ئې دې دپاره الفاظ ټاكل خوښ كړل.

مونږ كښې د صلوة هم دا الفاظ غوره كړې شوى دى. خو د دې ټاكلو مطلب دا نه دې چې ددې څخه سوا په نورو الفاظو كښې درود شريف وئيل ګنى منع دى ځكه چې پخپله نبى اكرم ﷺ څخه ددرودشريف مختلف الفاظ منقول دى. نو په هر قسم الفاظ سره صلوة وسلام اداكول به صحيح او ثواب به ئې پرې ملاويږى خواه هغه الفاظ نبى اكرم ﷺ څخه منقول هم نه وى. البته دا خبره ياد ساتئ چې د نبى اكرم ﷺ په نقل شوؤ الفاظو وئيلو كښې به بركت او ثواب زيات وى. ځكه صحابه كرامو ﷺ هم نبى اكرم ﷺ څخه ددې د الفاظو ټاكلو خواست اوكړو.

**مسئله** :: د مونځ په قعده كښې خو تر قيامت پورې صلوة او سلام په هغې الفاظو سره ادا كول مسنون دى كوم چې اوس ددې څخه وړاندې نقل كړې شو، خو د مونځ څخه بهر كله چې نبى اكرم ﷺ پخپله مخاطب وى لكه څنګه چې د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې وو نو هلته دې هم هغه الفاظ د ،،الصلوة والسلام عليك،، اختيار كړې شى د نبى كريم ﷺ د وفات څخه وروستو روضهٔ اقدس ته مخا مخ څوك موجود وى نو په هغې كښې هم صيغه د ،،السلام عليك،، اختيارول مسنون دى. ددې څخه علاوه كوم ځائې كښې چې غائبانه طور سره صلوة وسلام وئيلې كيږى نو د صحابه كرامو او تابعين د امت ائمه كرامو څخه د غائب په صيغې استعمال منقول دى. لكه څنګه چې عامو محدثينو كتابونه ددې څخه ډك پراته دى.

**د صلوة او سلام ددې بيان شوې طريقې حكمت** :: د رسول كريم ﷺ د ژبې مبار كې اود رسول كريم ﷺ د عمل څخه ثابته شوې كومه طريقه ده دهغې حاصل دادې چې مونږ تول مسلمانان دې رسول كريم ﷺ دپاره د الله تعالى نه د رحمت او سلامتئ دعا اوكړو اوس دلته دا سوال پيدا كيږى چې د آيت مبارك د مقصد دا وو چې مونږ دې د نبى كريم ﷺ د تعظيم او تكريم حق پخپله ادا كړو، خو طريقه ئې دا اوخودله چې الله ﷻ څخه اوكړو. په دې كښې اشاره دې طرفته

---

[1] صحيح البخارى، كتاب التفسير، سورة الأحزاب، باب قوله ان الله ملئكته الآية: ج ٢، ص ٧٠٨، وصحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب الصلاة على النبى صلى الله عليه وسلم بعد التشهد: ج ١، ص ١٧٥

Scanned with Ca

ده چې د رسول كريم ﷺ دتعظيم او فرمانبردارئ ادا كولو حق زمونږ د هيچا په وس كښې نشته دې. ځكه په مونږ دا لازم كړې شو چې الله ﷻ ځخه دعا كوؤ ،[روح]( ).[1]

**د صلوة او سلام احكام:** د مونځ په آخرى قعده كښې درود شريف لوستل خو دټولو امامانو ﷭ په نزد سنت مؤكده ضروري دى خو دامام شافعي ﷫ او امام احمد بن حنبل ﷫ په نزد واجب دى. مطلب دا چې په پاتې كيدو سره د دوئ په نزد مونږ دوباره ادا كول واجب دى.

**مسئله:** دې بانـدې د جمهورو فقهـاء كرامو ﷭ اتفـاق دې چې د رسـول كريم ﷺ يـادولو يا آؤريدو سره درود شريف لوستل په مسلمانانو واجبېږى ولې چې په حديث پاك كښې په داسې نه كولو بانـدې وعيد راغلې دې. د جامع ترمذى پـه حوالـه رسـول كريم ﷺ اوفرمائيل چې ﴿رغم انف رجل ذكرت عنده فلم يصل على﴾ هغه څوك دې خوارشى چې زما ذكر دهغه په وړاندې اوشى او هغه په ما درود او نه وائى. [ترمذى دې ته حسن وئيلى دى او ابن السنى په جيد سند سره دا روايت نقل كړې دې]( ).[2]

يو بل حديث پاك كښې راغلى دى چې: ﴿البخيل من ذكرت عنده فلم يصل على﴾[هغه كس بخيل دې چې دهغه په مخكښې زما ذكر اوشى او هغه په ما درود شريف اونه وائى][ترمذى روايت كړې دې او دې ته ئې حسن حديث وئيلى دى]( ).[3]

**مسئله:** كه په يو مجلس كښې د رسول كريم ﷺ ذكر بيا بيا كيږى نو صرف يو ځل درود شريف وئيلو سره واجب ادا كيږى ، ليكن مستحب دادى چې هر ځل درود شريف وائى خوّاه پخپله ئې ذكر اوكړى يا ئې د بل څخه واورى. د محدثينو څخه زيات ذكر د رسول كريم ﷺ څوك كولې شى ځكه چې د هغوئ مشغله هر وخت د رسول الله ﷺ احاديث دى. او په هغې كښې بار بار د نبى كريم ﷺ ذكر مبارك راځى د حديث د ټولو امامانو دا طريقه ده چې، هر ځل پرې درود شريف اوسلام وائى او ليكى. اوګورئـى د حديث ټول كتابونه په دې ګواه دى. هغوئ ددې پرواه هم نه كوى چې دې سره به د كتاب ضخامت زيات شى ځكه اكثر واړه واړه احاديث وى چې پـه هغـې كـښې دوه درې كرښـې پـس دنبـى كـريم ﷺ نـوم مبـارك راځـى. حضرات محدثينو چرته هم صلوة او سلام نه پريږدى.

**مسئله:** ځنګه چې د ژبې د ذكر مبارك پـه وخت زبانى صلوة او سلام واجب دې هغسې په قلم سره دليكلو په وخت صلوة او سلام ليكل هم واجب دى ، دې دپاره صلعم ليكل كافى نه دى څو پورې چې صلوة اوسلام نه وى ليكلې شوې.

**مسئله:** د رسول كريم ﷺ دذكر مبارك پـه وخت ډير غـوره ، اعلى او مـستحب خـو هـم دادئ چې صلوة و سلام دواړه اوليكلې شى ليكن كه څوك صرف صلوة او يا سلام لولى يا ليكى نو د جمهورو فقهاء كرامو ﷭ په نزد څه ګناه نه لرى ، شيخ الاسلام نووى ﷫ وغيره صرف د يو

---

[1] ) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ١٦، ص ٢٠٦

[2] ) جامع الترمذي، أبواب الدعوات، باب (قول رسول الله صلى الله عليه وسلم رغم أنف رجل) ج ٢، ص ١٩٤

[3] ) جامع الترمذي، أبواب الدعوات، باب (قول رسول الله صلى الله عليه وسلم رغم أنف رجل) ج ٢، ص ١٩٤

Scanned with Ca

وئيلو يا ليکلو ته مکروه وئيلي دي[1] . ابن حجر هيثمي رحمه الله دي کراهت نه دهغوئ مراد خلاف اولی اخستي دي چي ورته په اصطلاح کښي مکروه تنزيهي وئيلي شي او د امت د علماء جاري عمل په دي گواه دي چي دوئ دا دواړه سره جمع کوي او کله کله په يو هم اکتفاء کوي.

**مسئله** :: د صلوة لفظ سوا د پيغمبرانو علیهم السلام نه بل چا دپاره د جمهورو علماء کرامو رحمهم الله په نزد جائز نه دی ، امام بيهقي پخپل سنن کښي د ابن عباس دا فتوی نقل کړي ده چي: ﴿لايصلى على احد الا على النبي صلى الله عليه وسلم لكن يدعى للمسلمين والمسلمات بالاستغفار﴾[2]

د امام شافعي رحمه الله په نزد غير نبی دپاره دصلوة لفظ په مستقل ډول استعمالول مکروه دی، د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله او دهغوئ رحمه الله د ملگرو هم دا مذهب دي البته په تبعيت د پيغمبر علیه السلام سره جائز دی ، لکه رسول کريم صلی الله علیه وسلم باندي په صلوة اوسلام ليږلو کښي ورسره آل صحابه کرام رضی الله عنهم ياتول مؤمنان شريك کړي .

او امام جويني رحمه الله فرمائيلي دي چي دصلوة باره کښي دغه حکم د سلام په باره کښي هم دي چي غير نبی دپاره يوازي دا استعمالول صحيح نه دی ، سوا ددي نه چي چا سره د خطاب کولو په وخت د پيشکشئ او ډالئ په ډول السلام عليکم ورته اووائی نو دا جائز اوسنت طريقه ده خو غائب دپاره علیه السلام وئيل يا ليکل صحيح نه دي ، [خصائص کبری سيوطی ج: ۲ص/۲۲۲]

د علامه لقائي رحمه الله په حواله قاضي عياض رحمه الله فرمائيلي دي چي د امت د محققينو علماء کرامو دا موقف دي او زما په نزد هم دا صحيح دی ، دي لره امام مالك رحمه الله ، سفيان رحمه الله او ډيرو فقهاء کرامو رحمهم الله او متکلمينو رحمهم الله هم اختيار کړی دی چي صلوة او سلام رسول کريم صلی الله علیه وسلم او نورو پيغمبرانو دپاره استعمالول خاص دی. غير نبی دپاره جائز نه دی څنگه چي لفظ د سبحانه او تعالى استعمالول چا الله جل جلاله دپاره خاص دی ، د پيغمبرانو علیهم السلام نه سوا عامو مسلمانانو دپاره د بخښني او د الله جل جلاله د رضا کيدو دعا کول پکار دی لکه چي قرآن کريم کښي د صحابه کرامو متعلق فرمائی : ﴿رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ﴾ [روح المعاني][3]

دصلوة اوسلام د احکامو مفصل بحث داحقر په رساله [تنقيح الکلام في احکام الصلوة والسلام] په عربي ژبه کښي د احکام القرآن د يوي حصي په حيث هم خوره شوي ده .

| إِنَّ الَّذِينَ | يُؤْذُونَ | اللَّهَ | وَرَسُولَهُ | لَعَنَهُمُ اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه هغه کسان | چي تکليف رسوی | الله ته | اورسول دهغه ته | لعنت وئيلي دي په هغوئ باندي الله |
| بيشکه څوک چي الله جل جلاله او دهغه رسول صلی الله علیه وسلم ته تکليف ورکوی | | | | ......نوالله جل جلاله |

| فِي الدُّنْيَا | وَالْآخِرَةِ | وَأَعَدَّ | لَهُمْ | عَذَابًا مُّهِينًا |
|---|---|---|---|---|
| په دنيا کښي | او په آخرت کښي | او تيار کړي ئي دي | دپاره دهغوئ | عذاب سپکونکي |
| به پري په دنيا اوآخرت کښي لعنت ورروی | | او هغوئ دپاره ئي رسوا کونکي عذاب تيار ساتلي دي | | |

[1] شرح النووي على صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب الصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم بعد التشهد: ج ۱، ص ۱۷۵، والأذكار للنووي، فصل اذا صلى على النبي صلى الله عليه وسلم الخ: ج ۱، ص ۱۶۳

[2] السنن الكبرىٰ للبيهقي (باختصار) كتاب الصلاة، باب هل يصلى على غير النبي صلى الله عليه وسلم الخ: ج ۲، ص ۱۵۳

[3] تفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ۱۶، ص ۲۱۷

Scanned with Ca

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | يُؤْذُوْنَ | الْمُؤْمِنِيْنَ | وَالْمُؤْمِنٰتِ | بِغَيْرِ مَا |
| او هغه کسان | چې تکلیف رسوی | مومنانو سړو ته | او مومنانو ښځو ته | بغیر دهغې عمل نه |
| او څوک چې مؤمنانو سړو او مومنانو ښځو ته هیڅه بیسه [بغیرد څه وجې] تکلیف | | | | |
| اكْتَسَبُوْا | فَقَدِ احْتَمَلُوْا | بُهْتَانًا | وَّاِثْمًا | مُّبِيْنًا |
| چې کړې وی هغوئ | پس هغوئ په سر اغستلی ده سزا | دغټ دروغو | او دګناه | ښکاره |
| ورکوی | نو هغوئ ډیر لوئې بهتان لګوی | ............ او ښکاره ګناه کوی | | |

## آسان ترجمه قرآن

او کوم خلق چه الله تعالی او دهغه رسول ته تکلیف رسوی، الله تعالی په دنیا او آخرت کښې هغوی باندې لعنت کړې دې او دهغوی دپاره ئې داسې عذاب تیار کړې دې، چه هغوی په ذلیله کړی. او کوم خلق چه مومنانو سړو او مومنانو زنانو ته بغیر دهغوی د څه جرم نه تکلیف رسوی، هغوی د بهتان او د ښکاره ګناه بوج په خپل ځان باندې بار کړې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ [بیشکه کوم خلق چه الله تعالی او دهغه رسول] ﷺ [لره] قصدا [ازاروی ﴿لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ﴾ الله تعالی په هغوی په دنیا او آخرت کښې لعنت کوی ﴿وَاَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِيْنًا﴾ او دهغوی دپاره ئ ذلیل کوونکې عذاب تیار کړې دې او] دغه شان ﴿وَالَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوْا﴾ [کوم خلق چه مسلمانانو سړو اومسلماتانو ښځو لره بغیر ددې چه دوی څه] داسې کار [کړې وی] په کوم سره چه هغوی مستحق دسزاشی [آزار رسوی ﴿فَقَدِ احْتَمَلُوْا بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا﴾ نو دغه خلق د بهتان او صریح ګناه] په خپل ځان [بار پورته کوی] یعنی که دغه ازار قولی وی نو بهتان دې اوکه فعلی وی نو مطلق ګناه ده.

## معارف او مسائل

په تیر شوؤ آیتونو کښې مسلمانانو ته په هغې څیزونو خبرداري ورکړې شوې دې په کومو سره چې رسول کریم ﷺ ته زیان او تکلیف رسیدلو. مګر څه مسلمانانو نه بهٔ دا کاربې د څه واقفیت یا بې توجهئ نه بې قعده صادریدل، لکه د هغوئ په کورونو مبارکو کښې نابللی ورتلل یا په بلنه باندې ئې ډیر وختی کورونو مبارکو ته ورننوتل یا دخوراك څکاك ګولو نه پس ئې هلته په کورونو مبارکو کښې تر ډیره کیناستل او خبرې اترې کول، د کومو باره کښې چې دې آیت مبارك ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ﴾ کښې خبرداري ورکړې دې. هر کله چې دا قصدی کار نه وو خکه پرې خبرداري ورکول کافی اوکنرلې شو، اوس په دې دوؤ آیتونو مبارکو کښې د هغې زیان او تکلیف بیان دې چې د اسلام مخالفینو کافرانو او منافقانو به په قصد سره د رسول کریم ﷺ ته رسول، خکه دلته د تفسیر په خلاصه کښې د قصدًا لفظ زیات کړې شو چې په کښې بدنی زیانونه هم داخل دی کوم چې دکافرانو دلاسه په مختلفو وختونو کښې رسول کریم ﷺ ته رسیدلی وو او روحانی تکلیفونو نه هم چې رسول کریم ﷺ ته به پیغورونه ورکولې شوه او ازواجومطهراتو به د دروغو تورو نه پورې کولې شو، په دې ارادی

و قصدی تکلیفونو رسولو باندې په دې آیت مبارك کښې د لعنت او سخت عذاب بیان راغلې دې . ددې آیت مبارك په شروع کښې دا ارشاد اوشو : کوم خلق چې الله ﷻ ته نقصان رسوی ، ددې مطلب داسې خبرې او کارونه کول دی چې په عادت کښې د نقصان رسولو سبب جوړیږی اګر چې الله تعالی ته هیڅوك د زیان رسولو طاقت نشی لرلې لیکن داسې کارونه چې عادتا زیان رسولو دپاره کولې شی هغه ئې الله ﷻ ته نقصان رسول اوبلل.

دې کښې د تفسیر د امامانو اختلاف دې چې الله ﷻ ته د نقصان ورکولو نه څه مراد دې ؟ د تفسیر ځینې امامانو ﷺ فرمائیلی دی چې ددې نه مراد هغه اقوال اوکارونه دی کوم چې د رسول کریم ﷺ په احادیثو کښې بیان شوی دی چې دا الله ﷻ ته نقصان رسوونکی ځیزونه دی لکه د راپیښو او مصیبتونو په وخت کښې زمانې ته بد رد وئیل ولې چې اصلی کوونکې الله ﷻ دې . څکه دې ته کنځل کول او بد رد ورته وئیل ګویا الله ﷻ ته کنځل کول او بد رد وئیل شو . اګر چې ددغې خلقو په خیال کښې بهٔ حقیقی کوونکې هم دغه زمانه وه چې جدا ګناه کول شو . ځینې روایتونو کښې راغلی دي چې د سادار ځیزونو تصویرونه جوړول الله ﷻ ته د نقصان ورکولو سببونه دی(۱) پدې بنا په آیت مبارك کښې الله ﷻ ته دنقصان ورکولو نه مراد دغه خبرې او کارونه شو.

او د تفسیر نورو امامانو اوفرمائیل چې دلته په حقیقت کښې رسول کریم ﷺ ته د زیان ورکولو نه بندول او په دې باندې وعید کول مقصود دی خوپه آیت مبارك کښې رسول کریم ﷺ ته نقصان ورکول الله ﷻ ته نقصان ورکول اوبللې شو څکه چې رسول کریم ﷺ ته نقصان رسول په حقیقت کښې الله ﷻ ته نقصان رسول دی څنګه چې په حدیث پاك کښې ئې بیان راغلې دې او د قرآن عظیم الشان دروانئ نه هم دا دویم قول غوره معلومیږی ، ولې چې وړاندې هم رسول کریم ﷺ ته د نقصان ورکولو بیان وو او وروستو هم ددې بیان راروان دې ، او رسول کریم ﷺ ته نقصان ورکول ګویا الله ﷻ ته نقصان ورکول د عبدالرحمان بن مغفل مزنی ﷺ په روایت سره دا شان ثابتیږی .

قال رسول الله ﷺ فی اصحابی لاتتخذواهم غرضا من بعدی فمن احبهم فبحبی احبهم ومن ابغضهم فببغضی ابغضهم و من اذاهم فقد اذانی ومن اذانی فقد اذی الله ومن اذی الله یوشك ان یاخذ(۲)

رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې زما د صحابؤ په باره کښې د الله ﷻ نه ویریږئ د الله ﷻ نه ویریږئ ، هغوئ ﷺ لره زما نه پس د خپلو اعتراضونو اوتنقیدونو نشانه مه جوړوئ ولې چې هغوئ ﷺ سره چا مینه اوکړه نو زما د مینې په وجه ئې ورسره مینه اوکړه او چا چې ورسره بغض اوکړو نوزما په وجه ئې ورسره بغض اوکړو او چا چې ماته نقصان اورسولو هغه الله ﷻ ته نقصان اورسولو او چا چې الله ﷻ ته زیان اورسولو نو نزدې ده چې الله ﷻ به ئې په خپل ګرفت راګیر کړی

دې حدیث پاك نه څنګه چې دا معلوم شو چې رسول کریم ﷺ ته نقصان رسول ګویا الله ﷻ ته نقصان رسول دی ، دغسې ترې داهم معلوم شو چې صحابه کرامو ﷺ ته نقصان رسول او بې ادبی ئې کول ګویا د رسول کریم ﷺ بې ادبی کول او رسول کریم ﷺ ته نقصان رسول دی.

(۱) مصنف ابن ابی شیبة؛ رقم الحدیث: ۲۵۲۱٤
(۲) جامع الترمذی، أبواب المناقب، باب فیمن سب أصحاب النبی: ج ۲، ص ۲۲۵

Scanned with Ca

ددې آيت مبارك شان نزول باره كښې ډير روايات دى په ځينو كښې راغلى دى چې دا په عائشه صديقه رضي الله عنها باندې د تور پورې كلو و په باره كښې نازل شوې دې لكه د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چې كله عائشه صديقه رضي الله عنها باندې د دروغو تور پورې كړې شو نو د عبدالله بن ابى منافق په كور كښې څه خلق راجمع شو او دا خبرې اترې ئې كولې چې دغه تور پورې كول خواره كړې شى دغه وخت رسول كريم ﷺ صحابه كرامو رضي الله عنهم ته دا شكايت اوكړو چې داخلق ماته نقصان رسوى ، [مظهرى] [1]

ځينې روايتونو كښې راغلى دى چې صفيه رضي الله عنها سره د رسول كريم ﷺ د نكاح كولو په وخت ځينې منافقانو پيغور وركړو چې دهغې باره كښې دا آيت مبارك نازل شو [2]. صحيح خبره داده چې دا آيت مبارك د هرې داسې معاملې باره كښې نازل شوې دې په كومې سره چې رسول كريم ﷺ ته نقصان رسيدلو چې دغه دواړه واقعې او نورې دغه شان واقعې په كښې هم شامليدې شى چې د زينب رضي الله عنها د نكاح معامله په كښې هم راتلې شى ، دغه شان نورو صحابه كرامو رضي الله عنهم ته بد وئيل او په هغوئ رضي الله عنهم تبرا كول هم داخل دى .

### رسول كريم ﷺ ته هر قسم نقصان رسول كفر دې ::

**مسئله:** څوك چې په څه شان سره رسول كريم ﷺ ته نقصان رسوى د رسول كريم ﷺ په ذات مبارك يا صفاتو مباركو كښې څوك په ښكاره ياپه اشارې سره عيب راؤباسى نوهغه كافر شو چې ددې آيت مبارك ترمخه به پرې په دنيا اوآخرت دواړو كښې د الله ﷻ لعنت وى [مظهرى] [3]

ورپسې دويم آيت كښې دا بيان دې چې عامو مؤمنانو ته نقصان رسول حرام او لوئې بهتان دې كله چې د شريعت تر مخه هغه ددې حقدار نه وى ، عامو مؤمنانو سره دا قيد ځكه اولګولې شو چې دوئ كښې دواړه صورتونه كيدې شى دا هم ممكن دى چې دوئ داسې څه كار كړې وى چې په بدله كښې ورته نقصان رسول د شريعت تر مخه جائز وى او داسې هم كيدې شى چې دغسې څه كارئې نه وى كړې په رومبى آيت مبارك كښې داسې څه شرط او قيد ئې ځكه نه وو لګولې چې هلته د نقصان رسولو د جواز څه صورت بالكل نه شو كيدې ولې چې الله ﷻ اورسول ﷺ ددې نه پاك دې .

**بې مسلمان ته د څه شرعى وجې نه بغير تكليف رسول حرام دى ::** دې آيت مبارك كښې د ﴿وَالَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ تر ﴿بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا﴾ پورې چا مسلمان ته بغير د څه شرعى وجې نه تكليف رسول حرام ثابت كړل او رسول كريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چې :

﴿المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده والمؤمن من امنه الناس على دمائهم واموالهم﴾ [ترمذى روايت كړې دې د ابى هريره رضي الله عنه نه ، مظهرى] [4]

---

[1] ) تفسير المظهرى، ج ۷، ص ۳۸۰، ۳۸۱، تفسير روح المعانى تحت هذه الآية: ج ۱٦، ص ۲۲۲

[2] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤۸۰

[3] ) تفسير المظهرى، ج ۷، ص ۳۸۱

[4] ) جامع الترمذى، أبواب الإيمان، باب ما جاء فى ان المسلم من سلم المسلمون من لسانه الخ: ج ۲، ص ۹۰، وسنن النسائى، كتاب الإيمان وشرائعه، باب صفة المؤمن: ج ۲، ص ۲٦٦، وتفسير المظهرى: ج ۷، ص ۳۸۲

Scanned with Ca

مسلمان یوازې هغه کیدې شي چې دهغه د لاس نه او ژبې نه ټول مسلمانان محفوظ وي او مؤمن یوازې هغه څوك دې چې د مسلمانانو وینې اومالونه دهغه نه محفوظ اوپه امن کښې وي.

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ | قُلْ | لِّاَزْوَاجِكَ | وَبَنٰتِكَ | وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِيْنَ | يُدْنِيْنَ

اے نبی ﷺ | اووایه | ښځو خپلو ته | او لونړو خپلو ته | او دښځو دمومنانو ته | چې زوړند دوی |

ائې پیغمبره ! خپلوبیبیانو ته او خپلو لونړو ته اود نور مسلمانانو بیبیانو ته اووایه | چې په خپلو

عَلَيْهِنَّ | مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ؕ | ذٰلِكَ | اَدْنٰٓى | اَنْ يُّعْرَفْنَ

دپاسه دځانونو خپلو | پلو دڅادرونو خپلو نه | داطریقه | زیاته نزدې ده | چې اوپیژندې شي هغوئ

ځانونو څادرونه راښکته ساتی | دغه شان به زر پیژندې شي | او دوئ ته به [دبې هوده سړو دطرفنه]

فَلَا يُؤْذَيْنَ ؕ | وَكَانَ اللّٰهُ | غَفُوْرًا | رَّحِيْمًا ۝ | لَئِنْ لَّمْ | يَنْتَهِ

او تکلیف ورنه کړې شي | او دې الله | ښنونکې | مهربانه | که چرې | منع نه شو |

څه تکلیف نه رسی | اوالله ﷻ ښنونکې مهربان دې | ..........که چرې منافقان او هغه خلق چې

الْمُنٰفِقُوْنَ | وَالَّذِيْنَ | فِيْ قُلُوْبِهِمْ | مَّرَضٌ | وَّالْمُرْجِفُوْنَ

منافقان خلق | او هغه کسان | چې په زړونو دهغوئ کښې | خرابی وي | او افواگانې خورونکې خلق

زړونو کښې چې بیماری ده | ...........اوهغه خلق چې په مدینه کښې افواهگانې خوروی

فِي الْمَدِيْنَةِ | لَنُغْرِيَنَّكَ | بِهِمْ | ثُمَّ | لَا يُجَاوِرُوْنَكَ

په مدینه کښې | خامخا به مونږه مسلط کړو تا | په هغوئ باندې | بیا | به په گاوند کښې پاتې نه شي ستا سره

منع نه شول | .........نومونږ به ورپسې تا ورپاڅوؤ | نوبیا به دوئ تاسره په مدینه کښې

فِيْهَآ | اِلَّا | قَلِيْلًا ۛ | مَّلْعُوْنِيْنَ ۛ | اَيْنَمَا | ثُقِفُوْٓا

په دې ښار کښې | مگر | ډیر لږ | لعنتونه به پرې ونیلې کیږی | هر چرته چې | موندې کیږی |

ډیرلږ پاتې شي | .....................او لعنتیان به شي | ..............هر ځائې چې موندلې شي

اُخِذُوْا | وَقُتِّلُوْا | تَقْتِيْلًا ۝ | سُنَّةَ اللّٰهِ | فِي الَّذِيْنَ

رانیولې کیږی به | اووژلې کیږی به | په سختو وژلوسره | داطریقه دالله ده | په معامله دهغه کسانو کښې

نو نیولې به شي | او قتلولې به شي | ..................الله ﷻ د پخوانو خلقو پحقله هم دا طریقه ساتلې

خَلَوْا مِنْ | قَبْلُ ۚ | وَلَنْ تَجِدَ | لِسُنَّةِ اللّٰهِ | تَبْدِيْلًا ۝

چې تیر شوی دی | مخکښې ددې نه | او هر گز به ته بیا اونه مومې | طریقې دالله لره | هیڅ بد لیدل

ده | ..........اودالله ﷻ په طریقه کښې به هیڅ قسم تبدیلی بیا نه مومې

## آسان ترجمه قرآن

اے نبي! ته خپلو بیبیانو، خپلو لونړو، او د مسلمانانو زنانو ته اووایه، چه هغوی دې خپل څادرونه خپل مخ دپاسه زوړند ساتي په دې طریقه کښ ددې خبرې زیاته توقع ده، چه هغوی به اوپیژندلې شي،

Scanned with Ca

نو هغوی ته به تکلیف نشي ورکولې او الله تعالیٰ ډیر بخښونکی او ډیر مهربان دی. که هغه خلق منع نه شو، کوم چه منافق دي او چه دهغوی په زړونو کښې رنز دې، او چه په ښهر کښې د هر افواه ګانې خوروي، نو مونږ به ضرور داسې اوکړو، چه ته به دهغوی خلاف پاځې، بیا به هغوی تا سره په دې ښهر کښې یوځائې نه اوسیږی، البته لږې ورځې. چه په هغوی به لعنت کړې شوې وی، (بیا) چه چرته هم ملاؤ شی، رانیولې به شی، او هغوی به یو یو وژلې شی دا د الله تعالیٰ هغه معمول دې، چه په دې باندې دهغې خلقو په معامله کښې هم عمل کیدلو، کوم چه مخکښې تیر شوي دی او ته به د الله تعالیٰ په معمول کښې هیڅ تبدیلی اونه مومې.

## خلاصه تفسیر

﴿یٰٓاَیُّهَا النَّبِیُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ وَبَنٰتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِیْنَ﴾ [اے پیغمبره خپلو بیبیانو ته اوخپلو لونړوته او د نورو مسلمانانو ښځوته هم ووایه ﴿یُدْنِیْنَ عَلَیْهِنَّ مِنْ جَلَابِیْبِهِنَّ﴾ [چه دسرنه لاندې راولې: د خپل] مخ [دپاسه لږ شان خپل څادرونه ﴿ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ یُّعْرَفْنَ﴾ په دې سره به زر پیژندې شي: ﴿فَلَا یُؤْذَیْنَ﴾ نو ازار به ورته نه شی رسولې] یعنی که په څه ضرورت سره وځی نو په څادر دې سر او مخ هم پټوي لکه چه دسوره نور په اخر کښې په [غیرمتبرجت بزینة] کښې ددې تفسیر په روایت سره تیر شوی دی چونکه د وینځو دپاره سر فی نفسه په ستر کښې داخل نه دې او په مخ ښکاره کولو کښې دوی ته د ازادو ښځو نه زیات رخصت دې ددې وجه دا ده چه دا دخپل مالك په خدمت کښې لګیاوی دکار روزګار دپاره دې ته بهر وتل او دمخ وغیره ښکاره کولو ضرورت زیات وی په خلاف د ازادو ښځونه چه هغوی دومره مجبوره نه دی او چونکه او باش خلق ازادو ښځولره د دوی دخاندانی وجاهت په وجه زیاتې نه چیړلې وینځو لره به یې چیړلی خنې وخت به د وینځو په دوکه کښې دوی ازادو ښځولره هم چیړلې په دې وجه دې ایت ازادو ښځولره د وینځونه د ممتاز کولو دپاره هم او ددې دپاره هم چه سر او څټ د دوی په عورت کښې داخل وو دنبی کریم ﷺ بیبیانو رضی الله عنهن لونړو او دعامو مسلمانانو بیبیانو ته داحکم وکړو چه په اوږد څادر کښې دې خان پټوی نو اوځی دې کوم لره چه دسر نه لاندې په مخ رازوړند کړی په دې حکم سره به دشرعی پردې دحکم تعمیل هم وشی او په ډیره اسانۍ سره به دشریرو او باشوخلقو نه حفاظت هم اوشی پاتې شوې وینځې نو ددوی د حفاظت انتظام به په وړاند ایت کښې راشی [او] په دې مخ او سر پټولو کښې که څه بې احتیاطی یا کمی بلا قصده وشی نو ﴿وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِیْمًا﴾ [الله تعالی بخښنې والا مهربان دې] دغې لره به معاف کړی وړاند هغو خلقو ته خبرداری دې کومو چه به وینځې چیړلې او هغو خلقو ته هم کومو چه به یو بل شرارت کولو چه دمسلمانانو خلاف به یې غلطې افواه ګانې خورولې او د دوی پریشانه کول یې غوښتل فرمانی ﴿لَئِنْ لَّمْ یَنْتَهِ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِیْنَ فِیْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ﴾ [دا] خاص اصل [منافقین او] دعامومنافقانو نه [هغه خلق دکومو په زړونو کښې چه] دشهوت پرستۍ [خرابۍ ده] چه په دې وجه وینځو لره چیړی او پریشانه کوی یې [او] په دې منافقانو کښې ﴿وَالْمُرْجِفُوْنَ فِی الْمَدِیْنَةِ﴾ [هغه خلق کوم چه په مدینه کښې] غلطې او پریشانه کوونکې [افواه ګانې خوروی] داخلق [که] دخپلو دې حرکتونو نه [واپس نه شول ﴿لَنُغْرِیَنَّكَ بِهِمْ﴾ نو خامخا به] دیوې نه یوه ورځ [مونږ تا لره په دوی مسلط کړو] یعنی دمدینې نه به د دوی دویستلو حکم وکړو ﴿ثُمَّ لَا یُجَاوِرُوْنَكَ فِیْهَآ اِلَّا

﴿قَلِيْلًا﴾ [بيا] ددې حکم نه پس [داخلق به تاسره په مدينه کښې ډير کم پاتې شي هغه هم] دهر طرف نه﴿مَّلْعُوْنِيْنَ﴾ [لعنتي شوی وی] يعنی دمدينې نه دوتلو دتياري دپاره چه څه لږه موده دوی ته مقرر شي په دغه موده کښې خو به دوی دلته او سيږي او په دغه موده کښې به هم د هرطرف نه ذليل او خوار وی بيا به وويستلې شي او دويستلو نه پس به هم چرې په امن نه وی بلکه ﴿اَيْنَمَا ثُقِفُوْٓا اُخِذُوْا وَقُتِّلُوْا تَقْتِيْلًا﴾ [کوم ځای چه موندې شي نيولې به شي او وژلې به شي] په دې وجه چه ددې منافقانو دکفر مقتضی خو هم داوه ليکن دنفاق په پرده کښې دوی ته پناه ملاوشوې ده هرکله چه په ډاګه داسې مخالفتونه شروع کړی نو هغه مانع پورته شو په دې وجه به د دوی سره هم دکفر داصلی اقتضا موافق معامله وی چه د دوی ويستل او قيدول او قتلول ټول جائز دی اوکه د ويستلو دپاره څه موده معينه شي نو په دغه موده کښې دننه به دمعاهدې په بنا به دوی دقتل او قيد نه په امن کښې وی منافقانو ته چه دا درکه ورکړې شوه نو په دې کښې د وينځو دحفاظت هم انتظام وشو او دنورو غلطو شرارتونو او افواه ګانو دخورولو هم مخ نيوې وشو مطلب د ايت داشو چه که دا خلق په ډاګه داحکامو دمخالفت او دمسلمانانو خلاف دحرکتونو نه واپس شي اګر چه پټ په پټه په خپل منافقانه چالونو کښې لګيا وی نو دا سزا به جاری نه شي ورنه بيا به دعامو کفارو په حکم کښې داخل شي دسزا لائق به شي او په فساد او شورش باند سزا جاری کول څه د دوی سره مخصوص نه دی بلکه ﴿سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ﴾ [الله تعالی په هغو] مفسدانو [خلقو کښې هم خپل دا دستور] جاری [ګرځولې دې کوم چه] د دوی نه [وړاند تيرشوی دی] چه هغوی ته ئې اسمانی سزاګانې ورکړې ياې دانبياؤ په لاس د جهاد په ذريعه سزاګانې ورکړی دی پس که وړاند داسې نه وې شوې نو په داسې سزا کښې څه استعباد کيدې شو او اوس خو ددې هيڅ ګنجائش نشته ﴿وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا﴾ [او ته به د الله تعالی په دستور کښې] دهيچا دطرف نه [څه ردوبدل بيانه مومې] چه ګونند الله تعالی څه حکم جاری کول وغواړی او څوک هغه منع کړی په لفظ د سنت الله کښې خوئ ددې اظهار وکړو چه دالله تعالی دمشيت او ارادې نه اول هيڅوک څه کار نه شي کولې اوپه [وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا] کښې ئې دا وښو ده چه هرکله الله تعالی دڅه شي اراده وکړی نو څوک هغه منع کولې نه شي.

## معارف او مسائل

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ﴾ رومبو آيتونو کښې عامو مسلمانانو نارېناؤ ته نقصان رسول ګناه کبيره او حرام کيدل او خصوصا سيد المرسلين ﷺ ته نقصان ورکول د لعنت موجب کفر وئيلې شوی دی ، هر کله چې د منافقانو د طرفه بۀ ټولو مسلمانانو او رسول ﷺ ته دوه قسمه نقصانونه رسيدل نو په دې آيتونو کښې دهغې د بنديز انتظام شوې دې ، ددې په ضمن کښې د زناناؤ د پردې زيات حکمونه بيان شوی دی دهغې مناسبت به درته اوس ښکاره کړې شي. ددغې دوؤ نقصانونو ځينې يو نقصان دا وو چې د منافقانو عوامو او آواره خلقو به د مسلمانانو وينځې هغه وخت تنګولې او تکليف به ئې ورکولو چې کله به هغوئ څه کار دپاره بهر اووتلې او کله به ئې شک کښې اصيلې يعنې آزادې ښځې تنګولې ، چې د هغه په وجه سره به عامو مسلمانانو او نبی اکرم ﷺ ته تکليف رسيدو.

Scanned with Ca

دویم نقصان ورکول ئې دا وو چې همیشه به ئې داسې غلط خبرونه خورول چې فلانئ دښمن په مدینه منوره باندې حمله کوؤنکې دې هغه به ټول مسلمانان ختم کړي . په دې آیتونو کښې رومبی نقصان څخه د محفوظ پاتې کیدو انتظام د آزادو بیبیانو آسان او زر انتظام دا کیدې شو چې دې خلقو به د خاندانی اثر ، رسوخ په وجه د آزادو بیبیانو چیړلو په قصد سره زړه نه شو کولې البته کله کله به ئې د وینځو شبه کښې دوئ هم اوچیړلې څکه د دوئ د پیژندګلی د نخښې ضرورت راپیښ شو چې د شریرانو د چیړلو څخه په امن کښې پاتې شی او د وینځو د حفاظت بل څه انتظام اوکړې شی .

بل طرفته اسلامی شریعت د آزادو او وینځو په پرده کښې بنا برضرورت یو فرق ایښې دې چې د وینځو دپاره په بهر دننه هغه پرده مقرر کړې ده چې کومه د اصیلو زنانوؤ دپاره په کور دننه د خپلو نژدې رشته دار نارینؤ څخه مقرر شوې ده چې وینځې بهر هم که مخ او خپرې وغیره ښکاره کړی نو خیر څکه دې چې د هغوئ په ذمه د خپل آقا د کور خدمت کول دی هغې دپاره بیا بیا د وتلو ضرورت پیښیږی ، اصیلې که د ضرورت دپاره کله کله بهر ته اوځی نو ورته دا حکم ورکړې شو چې دومره لوئې پړونې پۀ سر کړی چې د سر څخه تر پښو پورې ټول اندامونه په کښې پټ کړی . دې شان سره د وینځو څخه بیلتون راغلو چې په غلطئ سره شریرانو د چیړ څخه هم محفوظې شوې .

او د وینځو د حفاظت انتظام داسې اوشو چې دغې منافقانو ته دسزا زورنه په داسې شان ورکړې شوه چې که خپلو دغې شرارتونو څخه منع نشو نو الله ﷻ به ورته د خپل نبی ﷺ او د مسلمانانو په لاس سزا ورکړی .

آیت مبارك کښې د اصیلې زنانه د پردې باره کښې دا حکم شوې دې چې ﴿يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ﴾ د ﴿يُدْنِينَ﴾ مصدر ادناء دې ، چې لفظی معنی ئې نژدې کول دی ، د ﴿عَلَيْهِنَّ﴾ معنی د ه پخپلو ځانونو باندې او ﴿جَلَابِيبِ﴾ دجلباب جمع ده چې لوئې پړونی ته وئیلې شی ، ابن مسعود رضی الله عنه ددې په باره کښې فرمائی چې دا هغه څادر دې چې لوپټې [انړی پړونی] دپاسه پسرولې شی . [ابن کثیر] ([1]).

ابن عباس رضی الله عنه ددې شان داسې بیانوی چې : ﴿امر الله نساء المؤمنين اذا خرجن من بيوتهن فی حاجة ان يغطين وجوههن من فوق رءوسهن بالجلابيب ويبدين عينا واحدة﴾ [ابن کثیر] ([2]).

[الله ﷻ د مسلمانانو زنانوؤ ته حکم ورکړو چې کله هغوئ په څۀ ضرورت سره د خپلو کورونو نه اوځی نو خپلو سرونو باندې دې داسې لوئې څادر پسر کړی چې تر پښو پورې ئې رازوړنده وی مخونه دې په کښې پټوی او صرف یوه سترګه دې ښکاره کوی]

او امام محمد بن سیرین رحمه الله وائی چې ما عبیده سلمانی رحمه الله نه ددې آیت مبارك مطلب او د جلباب کیفیت چې معلوملول اوغوښتل نو هغوئ رحمه الله داسې اوکړل چې یو لوئې څادر ئې پسر کړو تر پښو پورې ئې رازوړند کړو او صرف کسه سترګه ئې ښکاره کړه او داسې د آیت عملی تفسیر ئې بیان کړو ([3])

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٤٨١

[2]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٤٨٢،٤٨١

[3]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٤٨٢،٤٨١

Scanned with CamScanner

د سر د طرفه په مخ باندې ځادر رازوړندول چې د ابن عباس رضي الله عنه او عبيده سلماني په بيان کښې راغلي دی دا لفظ د ﴿عَلَيْهِنَّ﴾ تفسير دې چې خپل ځان پورې د ځادر رانزدې کولو مطلب ځادر د سر د طرفه په مخ باندې رازوړوندول دی.
دې آيت مبارك نه ښه په ښکاره د مخ پټولو حکم ښکاره شو چې دهغې څخه ددې مضمون مکمل تائيد اوشو چې کوم پورته د حجاب د اولنی آيت مبارك په ذيل کښې مفصل بيان شوی دی اګر چې مخ او خپرې پخپله د ستر اندامونه نه دی خو دفتنې ويره په کښې شته ، ځکه ئې پټول ضروری شو ، څنګه چې د حجاب د ړومبی آيت مبارك په تفسير کښې ددې تفصيل بيان شوې دې صرف دمجبوری صورتونه دې نه مستثنی دی .
**ضروری خبرداری:** دې آيت مبارك کښې حره [آزادو] ښځو ته په يو خاص طريقې سره د پردې هدايت فرمائيلې شوی دی چې ځادر د پورته سر نه رازوړند کړی، په مخ باندې او مخ پټ کړئی چې د عامو وينځو سره يو فرق ښکاره شي. او دوئ د شريريانو دشر څخه محفوظ پاتې شي.
په دې مذکوره بيان کښې دا خبره واضح طور سره بيان شوې ده چې ددې مطلب بالکل دا نه دې چې اسلام د عصمت او عفت په حفاظت کښې په آزادو [حرائرو] او وينځو کښې فرق بيان کړې دې ، چې د حرائرو حفاظت يې او کړو او وينځې يې پريښودې ، بلکه په حقيقت کښې دا فرق شريرانو پخپله باندې پيدا کړې وو چې حرائرو باندې به يې لاس نه شو پورته کولې . خو د وينځو چيړل به ئې غوښتل. اسلامی شريعت ددوئ ددې اختيار شوی فرق څخه دا فائده واخسته چې اکثر ښځې هم ددوئ ددې عمل په ذريعه پخپله محفوظ شی . پاتې شوه د وينځو مسئله نو د هغوئ د عصمت او عزت حفاظت په اسلام کښې داسې ضروری دې لکه څنګه چې د حرائرو دې . خو ددې دپاره د قانونی اختيارولو څخه بغير کار نه چليږی. نو په راتلونکی آيت مبارك کښې يې ددې قانون اوخودلو چې کوم خلق دخپل حرکت څخه منع نه شی نو هغوئ ته به په هيڅ شان معافی نه کيږی. بلکه چرته چې ملاويږی نو نيولې کيږی به او قتل کيږی به، دې د وينځو عصمت هم د حرائرو پشان محفوظ کړو.
ددې څخه واضح شو چې علامه ابن حزم چې ددې شبې نه د ځان ساتلو په غرض ددې آيت مبارك تفسير د جمهورو علماء نه مختلف کړې دې نو دهغسې تاويل کولو څه ضرورت پاتې نشو . شبهه خو به هله وې چې کله د وينځو د حفاظت انتظام نه وې شوې.
**د مسلمان د مرتد کيدو سزا قتل دی:** دې آيت مبارك کښې يې دمنافقانو دوه شرارتونه بيانکړل . بيا قرآن عظيم الشان اوفرمائيل چې که دغې دوارو نه دوئ واونه ړيدل نو ﴿مَّلْعُونِينَ ۖ أَيْنَمَا ثُقِفُوا أُخِذُوا وَقُتِّلُوا تَقْتِيلًا﴾ داخلق چې چرته وی نو لعنت او رټنه به دوئ سره وی او چرته چې پيښ شی ګرفتارولې او وژلې به شی . دا سزاء دعامو کافرانو نه ده دقرآن او سنت بې شميره نصونه په دې ګواه دی چې دعامو کافرانو دپاره په اسلامی شريعت کښې دا قانون نه دې بلکه قانون دادې چې اول ورته د اسلام بلنه ورکړې شی د دوئ شکونه او شبهې دې لرې کړې شی بيا هم که مسلمانان نشی نو د ذميانو جوړيدو حکم دې ورکړې شی که دا حکم ئې قبول کړو نو ددوئ د مال او ځان د عزت حفاظت کول به په مسلمانانو باندې هم د مسلمانانو پشان فرض شی ، او که څوك کافر دا هم قبول نه کړی نو د دوئ په مقابله کښې د جنګ کولو حکم دې .

دې آیت مبارك كښې دې خلقوته د مطلقا د قید او قتل سزا آورولې شوې ده دهغې وجه داده چې داد منافقانو معامله وه چې ځانونه به ئې مسلمانان ګڼړل او کله چې مسلمان د شریعت د حکمونو په ښکاره مخالفت او ددې نه انکار کوی نو هغه دشریعت په اصطلاح کښې مرتد بللې شی ، دوئ سره د اسلامی شریعت تر مخه د صلح کولو هیڅ صورت نشته ، صرف یوازېنۍ صورت ئې دادې چې بیا مسلمانان شی او توبه د خپلو کړو نه اوباسی اسلامی حکمونو په قول او عمل سره اومنی ، ګنی بیا به وژلې شی ، څنګه چې د رسول کریم ﷺ د واضحو ارشاداتو او صحابهٔ کرامو ﷺ د اجتماعی عمل کولو نه ثابت دی ، نو مسیلمه کذاب او دهغه د ډلې خلاف جنګ او جهاد کول په اجماع د صحابه کرامو ﷺ سره ثابت دی او د مسیلمه وژل ددې کافی ثبوت دې او په آخر د آیت مبارك کښې دې ته د الله ﷻ پخوانې سنت او دستور وئیلې شوې دې دې څخه معلومه شوه چې د پخوانو پیغمبرانو ﷺ په شریعتونو کښې د مرتد سزا هم قتل وو.

په دې اوسنۍ خلاصه د تفسیر کښې دې سزاګانو لره د عامو کافرانو په ضابطه کښې د راوړو دپاره چې کومه توجیه کړې شوې ده په دې تقریر سره د هغې ضرورت نه پاتې کیږی.

**یو خو مسئلې** :: دې آیت مبارك څخه دا ثابت شو چې:

① اصیلې زنانه چې د څه ضرورت په وجه د کوره بهر اوځی نو دسر څخه تر پښو پورې لو ئې پړونې به پسروی چې ټول اندامونه او مخ ئې په کښې پټ شی ، بورقې سره هم دا مطلب پوره کیږی. ② په مسلمانانو کښې داسې غلط خبرونه خورول حرام دی چې ورسره مسلمانان پریشانه کیږی او نقصان ورته رسی.

| يَسْـَٔلُكَ | النَّاسُ | عَنِ السَّاعَةِ ؕ | قُلْ | اِنَّمَا | عِلْمُهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| تپوس کوی ستانه | خلق | په باره دقیامت کښې (۱) | ورته اووایه | بیشکه | علم دقیامت |
| دا خلق ستا نه دقیامت [دنیټې] په باره کښې تپوس کوی | | | ته ورته اووایه چې دهغې حال | | |

| عِنْدَ اللّٰهِ ؕ | وَمَا يُدْرِيْكَ | لَعَلَّ السَّاعَةَ | تَكُوْنُ قَرِيْبًا ۝ |
|---|---|---|---|
| خاص دالله سره دي | اوڅه خبر ئي ته | کیدي شي چې قیامت | وی نزدي |
| [صرف] الله ﷻ ته معلوم دي | اوتاته څه معلومه ده ؟ کیدیشی چې قیامت ډیر زر رانزدې شی | | |

[۱] ، دَ قیامت دَ نزدیکت خبر: دَ قیامت دَ وخت ټیك وخت مقررول الله تعالی هیڅ چاته نه دي خودلی. خو دلته ئې دَ هغې نزدیکت طرف ته اشاره اوکړه. په حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ دَ شهادت اود مینځ ګوته اوچته کړه او وئ فرمائیل "انا والساعة کهاتین" زه او قیامت دَ دې دواړو ګوتو په شان یو. یعنی دَ مینځ کومه ګوته چه څومره وړاندې وتلې ده دَ شهادت دَ ګوتې نه زه دَ قیامت نه بس هم دومره وړاندې راغلې یم. قیامت ډیر نزدې راروان دې. حضرت شاه صاحب رحمه الله لیکی چه دا هم کیدې شی منافقانوڅه چل نیولې وی چه دَ کوم څیز (دنیاکښې چاسره جواب نه وی) هم دَ هغې بار بار سوال کوی. په دې باندې دلته ذکر شو او ممکن دی چه اول څه فرمائیلې شوی وو «لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فِی الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَاَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِيْنًا» په دې باندې دَ تکذیب او توقومسخرو په توګه به ئې وئیلې وی چه هغه قیامت او آخرت به کله راځی، دَ کوم دمګئ چه راکولې شی؟ آخردَ هغې خو څه وخت اوښایه.

Scanned with Ca

إِنَّ اللَّهَ لَعَنَ الْكٰفِرِيْنَ وَأَعَدَّ لَهُمْ

بیشکه چی الله | لعنت کړې دې | په کافرانو باندې | او تیار کړې ئې دې | دپاره دهغوئ |

بیشکه الله ﷻ کافران د خپل رحمت نه لرې ساتلی دی | ........او هغوئ دپاره ئې

سَعِيْرًا ۝ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ أَبَدًا ۚ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا

دغرغندو وور | همیشه به وی | په هغې کښې | تل ترتله | نۀ به مومی | دوست |

دلمبو اور تیار کړې دې | همیشه به په کښې پراته وی | هیڅوک به خپل یار یا مددګار بیا

وَّلَا نَصِيْرًا ۚ يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوْهُهُمْ فِي النَّارِ

اونۀ مددګار | په کومه ورځ | چی به اړولې کیږی | مخونه دهغوئ | په وور کښې |

نۀ مومی | په کومه ورځ چې دهغوئ مخونه په دوزخ کښې اړولی راړولی شی

يَقُوْلُوْنَ يٰلَيْتَنَآ أَطَعْنَا اللَّهَ وَأَطَعْنَا

وائی به هغوئ | کاش چی وې مونږه | چی حکم منلې وې مونږه دالله | او حکم منلې وې مونږه |

نو دا به وائی چې ائې کاش ! که مونږ دالله ﷻ حکمونه منلی وې | اود رسول

الرَّسُوْلَا ۝ وَقَالُوْا رَبَّنَآ إِنَّآ أَطَعْنَا سَادَتَنَا

درسول | او وائی به هغوئ | اے ربه زمونږه | بیشکه مونږه | خبرې اومنلې | دسردارانو زمونږه

خبره مو منلې وې | او دا به وائی چې ائې زمونږ ربه ! مونږ دخپلو سردارانو او مشرانو خبره منلې وه

وَكُبَرَآءَنَا فَأَضَلُّوْنَا السَّبِيْلَا ۝ رَبَّنَآ اٰتِهِمْ

او دمشرانوزمونږه | نو هغوئ بې لارې کړو مونږه | دنیغې لارې نه | اے ربه زمونږه | ورکړه دوئ ته |

نو مونږئې د نیغې لارې نه بې لارې کړې وو | ........ائې زمونږه ربه ! هغوئ ته

ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيْرًا ۝

دوچند | دعذاب نه | او لعنت اوکړه په دوئ | لعنت سخت |

دوچنده سزا ورکړه | ........اولونې لعنت پرې اووروه

## آسان ترجمه قرآن

خلق ستا نه د قیامت باره کښې پوښتنه کوی، او وایه، چه ددې علم خو الله تعالی سره دې، او تا ته څه پته ده، شاید چه قیامت نزدې راغلې وی. په دې کښې هیڅ شک نشته چه الله تعالی کافرانو لره د رحمت نه لرې کړې دی، او دهغوی دپاره ئې د لمبو والا اور تیار کړې دې په دې کښې به هغوی همیشه دپاره اوسیږی، چه هغوی ته به نه څوک حمایتی ملاویدې شی، او نه څوک مددګار. په کومه ورځ چه به دهغوی مخونه په اور کښې اړولې راړولې شی، هغوی به وائی چه: اے کاش ! مونږ د الله تعالی اطاعت کړې وې او د رسول خبره مو منلې وې. او وائی به چه: اے زمونږ پروردګاره ! حقیقت دادې. چه مونږ د خپلو سردارانو او د خپلو مشرانو خبره منلې ده. او هغوی مونږ بے لارې کړو. اے زمونږ پروردګاره ! هغوی ته دوچند عذاب ورکړه. او په هغوی باندې داسې لعنت اوکړه، چه ډیر سخت لعنت وی.

Scanned with Ca

## خلاصه تفسیر

﴿یَسْئَلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ﴾[دا] منکران [خلق تانه دقیامت متعلق] منکرانه [تپوس کوی] چه کله به وی [ته] د دوی په جواب کښې ﴿قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللهِ﴾[وفرمایه چه ددغې] وخت [خبر بس دالله تعالی سره دې ﴿وَمَا یُدْرِیكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُوْنُ قَرِیْبًا﴾ ته څه خبرېږې] چه کله دې البته اجمالا دې خلقوله پوهیدل پکاردی چه [عجیبه نه ده چه قیامت اوس واقع شی] خکه چه هرکله څه وخت معین نه وی نو په نزدې زمانه کښې ددې د واقع کیدو احتمال هم نه شی نظر انداز کیدې چه مقتضائې داوه چه داخلق دانجام نه ویریدلې او تیاری ئې ورله کولې او دمنکرانه سوالونو او مسخرونه ئې ځان ساتلې او دقیامت دنزدې فرمائیلو وجه داهم کیدې شی چه قیامت هره ورځ رانزدې کیږی اوکوم شې چه مخې ته راروان وی هغه نزدې ګنړل دا نشمندی ده او په دې لحاظ سره هم قیامت ته نزدې وئیلې شی چه دقیامت هیبتناك واقعات او دسختئ ترمخه ددنیا داټول عمر هم لږ په نظر راځی او د زرګونو کلونو داموده دیوڅو ورځو برابر محسوسیږی ﴿إِنَّ اللهَ لَعَنَ الْكٰفِرِیْنَ وَأَعَدَّ لَهُمْ سَعِیْرًا﴾[بیشکه الله تعالی کافران درحمت نه لرې ساتلی دی او د دوی دپاره ئې سیزونکې اور تیار کړې دې﴿خٰلِدِیْنَ فِیْهَا أَبَدًا﴾ په کوم کښې چه به دوی همیشه همیشه وسیږی] ﴿لَا یَجِدُوْنَ وَلِیًّا وَّلَا نَصِیْرًا﴾ او[نه به څوك یار بیامومی اونه] څوك مددګار﴿یَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوْهُهُمْ فِی النَّارِ﴾ په کومه ورځ چه به د دوی مخونه په دوزخ کښې اړولې را اړولې شی] یعنی پرمخې به دې کښې راښکلې شی کله دمخ په یوه ډډه اوکله په بله ډډه او دغه وخت به د ډیر حسرت نه ﴿یَقُوْلُوْنَ یٰلَیْتَنَا أَطَعْنَا اللهَ وَأَطَعْنَا الرَّسُوْلَا﴾[داسې ووائی چه اے کاش مونږ] په دنیا کښې [دالله تعالی اطاعت کړې وې او مونږ درسول اطاعت کړې وې] نو نن به په دې مصیبت کښې مبتلا شوی نه وې [او] دحسرت سره به په خپل ګمراه کوونکو باندې ورته غصه ورشی نو ﴿وَقَالُوْا رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا﴾[داسې به وائی چه اے زمونږه ربه مونږ دخپلو سردارانو] یعنی حکومت د خاواندانو ﴿وَكُبَرَآءَنَا﴾[او دخپلو مشرانو] په کومو کښې چه په څه بله وجه سره دا صفت موندلې شو چه دهغوی خبره منل او تابعداری ئې کول زمونږ په ذمه ضروری وی [خبره منلې وه﴿فَأَضَلُّوْنَا السَّبِیْلَا﴾ پس هغوی مونږ لره د] نیغې [لارې نه ګمراه کړی وو﴿رَبَّنَا آتِهِمْ ضِعْفَیْنِ مِنَ الْعَذَابِ﴾اے زمونږ ربه دوی لره دوچند سزا ورکړې ﴿وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِیْرًا﴾ او په دوی ډیر لوئې لعنت وکړې] دا داسې مضمون دې لکه دسوره اعراف په څلورمه رکوع کښې چه وړاند تیرشوې دې [رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ أَضَلُّوْنَا فَآتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ النَّارِ](1) چه جواب ئې په دغه ایت کښې دابیان شوې دې [قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ]

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښې د الله ﷻ او رسول کریم ﷺ مخالفت کوؤنکو ته په دنیا او آخرت کښې دلعنت او عذاب وعید آوږولې شوې وو او دکافرانو ډیرې ډلې پخپله د قیامت او آخرت منکرې وې او دانکار د وجې د توقو په ډول به ئې تپوس کولو چې هغه قیامت به کله راځی ، په آخر د سورت کښې ددې جواب په دې آیتونو کښې ورکړې شوې دې چې تفسیر ئې هم دغلته اوشو.

(1) ترجمه: اے زمونږ ربه دا خلق دی چه مونږ ئے ګمراه کړی وو نو دوئ له د دوزخ دوه چند عذاب ورکړه» الله به ورته وفرمائی چه عذاب هر یو له دوه چند دے.

Scanned with Ca

| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا تَكُوْنُوْا | كَالَّذِيْنَ | اٰذَوْا |
|---|---|---|---|---|

اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړي دې | مه کيږئ تاسو | پشان دهغه کسانو | چې هغوئ تکليف رسولې وو
ائې مومنانو ! تاسو د هغه چا په شان مه کيږئ | چې موسی ﷺ ته ئي تکليفونه

| مُوْسٰى | فَبَرَّاَهُ اللّٰهُ | مِمَّا | قَالُوْا | وَكَانَ |
|---|---|---|---|---|

موسی ته | پس برې کړو هغه له الله | دهغه خبرو نه | چې کړې وې هغوئ | او وو هغه |
ورکول | نو الله ﷻ هغه دخلقو دخبرو نه برې کړو | او هغه دالله ﷻ

| عِنْدَ اللّٰهِ | وَجِيْهًا | يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | اتَّقُوا اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|

دالله سره | عزت والا | اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | اويريږئ دالله نه |
په نيز ډير عزت مند وو |........ائې د ايمان خاوندانو ! دالله ﷻ نه اوويريږئ

| وَقُوْلُوْا | قَوْلًا سَدِيْدًا | يُّصْلِحْ | لَكُمْ | اَعْمَالَكُمْ |
|---|---|---|---|---|

اووايئ | خبره ټيک | صحيح به کړي | تاسو لره | عملونه ستاسو |
اوخبره پخه [اوريښتوني] کوئ |............الله ﷻ به ستاسو عملونه قابل د قبول کړي

| وَيَغْفِرْ | لَكُمْ | ذُنُوْبَكُمْ | وَمَنْ | يُّطِعِ اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|

او معاف به کړي | تاسو لره | گناهونه ستاسو | او هغه چاچې | اطاعت اوکړو دالله |
اوستاسو گناهونه بۀ معاف کړي | .......... اوچا چې دالله ﷻ اودد

| وَرَسُوْلَهٗ | فَقَدْ فَازَ | فَوْزًا | عَظِيْمًا |
|---|---|---|---|

او درسول دهغه | نو کامياب شو | په کاميابئ | لويې سره |
د رسول ﷺ خبره اومنله | نو هغه ډير زيات کامياب شو |

## آسان ترجمه قرآن

اے ايمان والو! دهغه خلقو پشان مه کيږئ، چا چه موسٰی عليه السلام ته تکليف رسولي وو. بيا الله تعالٰی هغه لره دهغې خبرو نه بری کړو، کومې چه هغې خلقو جوړې کړي وې او هغه د الله تعالٰی په نزد لوئې مرتبې والا وو اے ايمان والو! د الله تعالٰی نه اويريږئ، او نيغه برابر خبره کوئ. الله تعالٰی به ستاسو د فائدې دپاره ستاسو کارونه صحيح کړی، او ستاسو د گناهونو مغفرت به اوکړی، او څوک چه د الله تعالٰی او دهغه د رسول اطاعت اوکړی هغه داسې کاميابي حاصله کړه، چه زبردسته کاميابي ده.

## خلاصه تفسير

﴿يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ﴾ [اے ايماندارو تاسو دهغه خلقو په شان مه کيږئ ﴿اٰذَوْا مُوْسٰى فَبَرَّاَهُ اللّٰهُ مِمَّا قَالُوْا﴾ کرمو چه] څه تهمت جوړکړو [موسی] ﷺ [ته ئ ازار رسولې وو پس هغوی لره الله تعالٰی بری ثابت کړل دهغه څيز نه کوم چه هغوی وئيلو] يعنی هغوی ﷺ ته څو هيڅ نقصان ونه رسيدو تهمت لگوونکی دروغژن او مستحق دسزا شو ﴿وَكَانَ عِنْدَ اللّٰهِ وَجِيْهًا﴾ [او هغوی] ﷺ يعنی موسی ﷺ [دالله تعالٰی په نزد لوئ معزز] پيغمبر [وو] په دې وجه الله تعالٰی د

Scanned with Ca

هغوی علیه السلام براء ت ظاهر وفرمائیلو لکه چه دنورو پیغمبرانو علیهم السلام دپاره د داسې تهمتونو نه براء ت عام دې مطلب دادې چه تاسو درسول الله صلی الله علیه وسلم په مخالفت کولو سره د؛ ته ازار مه رسوئی څکه چه ددوی مخالفت دالله تعالی مخالفت دې ورنه ددې په نتیجه کښې به تاسو په خپله خپل نقصان وکړئ په دې وجه په هرکار کښې دالله تعالی او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم اطاعت کوئ دکوم حکم چه وړاند راخی چه ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ﴾ [اے ایماندارو دالله تعالی نه وویریږئ] یعنی په هرکار کښې د هغه اطاعت کوئ [او] خاص په خبرو کولو کښې ددې ډیر رعایت ساتئ چه هرکله خبره کوئ ﴿وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا﴾ [ربښتونې خبره کوئ] په کومه کښې چه د عدل او داعتدال نه تجاوز نه وی ﴿يُّصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ﴾ [الله تعالی به] ددې په صله کښې [ستاسو عملونه قبول کړی ﴿وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ﴾ او ستاسو ګناهونه به معاف کړی] څنې ددې عملونو په برکت سره څنې د توبې په برکت سره کومه چه په تقوی اوقول سدید کښې داخل ده او دا ثمرات د اطاعت دی او اطاعت داسې څیز دې چې ﴿وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ [کوم سړې چه دالله تعالی اودهغه درسول] صلی الله علیه وسلم [اطاعت وکړی ﴿فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيْمًا﴾ هغه به لوئ کامیابئ ته ورسیږی.

## معارف او مسائل

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا﴾: دې څخه وړاندې آیتونو کښې الله جل جلاله او رسول صلی الله علیه وسلم ته ضرر ورکول هلاکونکی او خطرناک خودلې شوی دی اوس په دې آیت مبارک کښې په خاص ډول مسلمانانو ته د الله جل جلاله او د رسول صلی الله علیه وسلم د مخالفت څخه د ځان ساتلو هدایت څکه دې چې دا مخالفت کول دوئ ته د ضرر ورکولو سبب دې.

په ړومبی آیت کښې دا بیان دې چې موسی علیه السلام ته خپل قوم ضرر ورکړې وو نو ائې مسلمانانو تاسو داسې اونه کړئی ، ضروری نه ده چې مسلمانانو هم ګنی دغسې څه کار کړې وو ، بلکه په دې سره دوئ ته د ځان ساتلو هدایت دې ، په یو روایت کښې چې د څینې صحابه کرامو رضی الله عنهم یوه داسې واقعه منقول ده[1] د هغې مطلب هم دادې چې په قصد ئې هغه نه وو کړې بلکه دهغوئ ددې خیال نه وو ساتلې چې ګنی دې سره به نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته نقصان رسی. ولې چې د یو صحابی رضی الله عنه شان داسې نه وو چې نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته ئې ګنی په قصد سره نقصان رسولو ، د اسې کار ضرف منافقانو کولې شو.

اود موسی علیه السلام قیصه پخپله نبی اکرم صلی الله علیه وسلم بیان کړیده او ددې آیت مبارک تفسیر ئې بیان کړو چې امام بخاری رحمه الله په کتاب التفسیر او کتاب الانبیاء کښې د ابی هریره رضی الله عنه څخه روایت کړې دې ، وې فرمائیل چې موسی علیه السلام ډیر زیات حیاناک او خپل بدن مبارک پټ ساتونکې وو، غسل به ئې هم په پرده کښې کولو حالانکه د دوئ علیه السلام د قوم طریقه بۀ دا وه چې نارینۀ بۀ بنه په ډاګه د ټولو مخامخ په بربنډه لامبل ، د موسی علیه السلام په دې عادت مبارک باندې څینې بنی اسرائیلو اعتراض اوکړو چې د موسی علیه السلام بدن مبارک کښې څه بیماری شته دې او په دې وجه موسی علیه السلام د خلقو مخکښې نه لامبی او دا پټوی. یا پرې برګې [پیس] مرض دې یا ئې خصیتین یعنی هګی پړسیدلی دی یا څه بل بیماری ئې ده. الله جل جلاله اراده اوفرمائیله چې ددې عیبونو څخه ئې بری کړی.

---

[1] ) تفصیل دپاره اوګورئ. تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤٨٦، وروح المعانی: ج ١٦، ص ٢٣٥

Scanned with Ca

یو ځل موسی ﷺ په یو ځانله ځائې کښې د پردې روستو غسل فرمائیلو ، جامې مبارک ئې یو کانړی باندې کیخودې چې غسل ئې اوکړو او هغې خپلو جامو ته ئې لاس مبارک ور اوږاندې کړو نو دغه کانړئی د الله ﷻ په حکم سره روان شو او جامې ئې هم ځان سره یوړې. موسی ﷺ خپله همسا راواخسته او ورپسې روان شو او فرمائیل ئې چې: ﴿ثوبی حجر ثوبی حجر﴾ ائې کانړیه جامې ائې کانړیه جامې مې. خو کانړئی په مخه روان وو. او داسې ځائې ته اورسیدو چې کوم ځائې کښې د بنی اسرائیلو یوه ډله موجوده وه. هغوئ د موسی ﷺ ټول بدن مبارك پخپلو سترګو اولیدو چې هر عیب او رنځ ښخه پاك وو. بیا موسی ﷺ خپلې جامې راواخستې او وائې غوستلې. بیا موسی ﷺ پخپله همسا مبارکه هغه کانړئی وهل شروع کړو. په الله ﷻ دې قسم وی چې په دغې کانړئی کښې د موسی ﷺ د ګوذار درې، څلور یا پنځه نخښې اوشوې.

نبی اکرم ﷺ چې دا واقعه بیان کړه نو وې فرمائیل چې د قرآن عظیم الشان ددې آیت مبارك[1] یعنی د آیت مذکوره کالذي آذو موسی کښې دموسی ﷺ دکومې ایذاء چې ذکر دې هم مطلب دادې ، ځینې صحابه کرام ﷺ په دې باره کښې بله څه قصه هم بیان کړې ده[2] ، مشهوره داده چې هغه هم دې سره تړلې ده ، خو تفسیر د آیت مبارك هم هغه غوره دې چې په مرفوع حدیث کښې موجود دې.

﴿وَكَانَ عِندَ اللَّهِ وَجِيهًا﴾ [یعنی موسی ﷺ د الله ﷻ په نزد مخوریز وو] د الله ﷻ په نزد د مخوریز کیدو مطلب دا دی چې الله ﷻ ئې دعا قبوله کړه او دهغوئ غوښتنه نه ئې رد کوله ، نود ډیرو واقعاتو ښخه ثابته ده چې موسی ﷺ مستجاب الدعوات وو ، ډیر داسې واقعات قرآن عظیم الشان خودلی دی چې موسی ﷺ دځینې دعا کړې ده الله ﷻ هغه قبوله کړې ده، د ټولو ښخه عجیبه دعا قبلیدل ئې دادی چې الله ﷻ د دوئ په دعا ورسره دده رور هارون ﷺ پیغمبر کړو حالانکه د پیغمبرئ مرتبه چاته په سفارش د بل چا نشی ورکولې. [ابن کثیر].[3]

**الله تعالی د خپل عادت مطابق پیغمبران ﷺ داسې جسمانی عیبونه هم پاك لرې دکومو ښخه چې خلق کرکه شوی** :: دې واقعه کښې چې قوم پرې کوم عیب لګولې وو دهغې ښخه د براءت یې دومره اهتمام اوکړو چې د معجزې په طور کانړی کپړې اوتښتولې او موسی ﷺ اضطراری طور سره د خلقو مخکښې بربنډ راؤتلو. دې واقعې ښخه اندازه اولګوئی چې الله ﷻ خپل پیغمبران ﷺ د څه جسمانی عیبونو ښخه دپاك ساتلو بلکه پاك ښکاره کولو دپاره څومره انتظام اوکړو ، الله ﷻ کانړی ته د موسی ﷺ د جامو مبارکو د اوړلو او دکافرانو په ډله د ورننوتلو حکم اوکړو چې موسی ﷺ اضطراراً اوبې اختیارئ سره دخلقو په مخکښې بربنډ راشی او خلق دا پخپله اوګوری چې موسی ﷺ د هر جسمانی عیب ښخه هم پاك دی ، دغسې د بخاری شریف د حدیث ښخه دا خبره ثابته ده چې پیغمبران ﷺ ټول په ټوله په عالی نسب کښې پیدا

---

[1] ) صحیح البخاری، کتاب الانبیاء، باب قبیل باب قوله یعکفون الخ: وصحیح البخاری، کتاب التفسیر، تفسیر سورة الأحزاب، باب قوله لاتکونوا کالذین اذوا موسیٰ: ج ۲، ص ۷۰۸

[2] ) تفصیل دپاره اوګورئ- تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ١٦، ص ٢٣٥، والمستدرک للحاکم رقم الحدیث: ٤١١٠، کتاب ذکر الانبیاء علیهم السلام، باب ذکر وفاة موسیٰ علیه السلام-

[3] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٤٨٧

Scanned with Ca

شوي دي. ولې چې خلق د داسې كسانو خبرې اورېدو او منلو ته تيار نه وي د كومو كسانو نسب چې سپك گڼلې شي ، دغسې د پيغمبرانو ﷺ په تاريخ كښې څوك پيغمبر نابينا ، كوڼ ، گونگى يا په لاس پا پښو باندې معذور نه دې ثابت شوي . د ايوب ﷺ يا د يعقوب ﷺ د واقعې څخه دا اعتراض نشى كېدې ولې چې هغوئ عليهم السلام د الله ﷻ په حكمت سره څو ورځو دپاره د الله ﷻ په خاص امتحان او آزميښت كښې راوستې شوي وو ، چې بيا ختم كړې شو . والله اعلم.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَقُولُوا۟ قَوْلًا سَدِيدًا ۝ يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَٰلَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ﴾ ځينې مفسرينو د قول سديد مطلب په صدق سره كړې دې ، ځينو پخه او مستقيم سره او ځينو په صواب وغيره سره كړې دې. ابن كثير ﷫ د دې ټولو نقل كولو څخه روستو اوفرمائيل چې ټول حق دي[1] ، مطلب دا شو چې قرآن كريم دې ځائې كښې د صادق يامستقيم وغيره الفاظ پرېښودل لفظ دسديد يې اختيار كړو ځكه چې دغه بيان شوې درې واړه معنې په سديد كښې راجمع دي ، يعنې لفظ يو دې او معنې په كښې دا درې واړه يو ځائې شوي دي. كاشفي په روح البيان كښې فرمائيلي دي چې قول سديد هغه دې چې رښتيا وي او د دروغو څه رنگ هم په كښې نه وي. صواب وي د خطا څه رنگ په كښې نه وي. سمه خبره وي چې د ټوقې ټقالو او گپ شپ خبره نه وي. نرمه خبره وي ، زړه دردونكې نه وي[2].

**د ژبې اصلاح د ټولو عملونو او اندامونو د اصلاح اثرناكه ذريعه ده:** دې آيت مبارك كښې اصل حكم ټولو مسلمانانو ته دا وركړې شوې دې چې:

﴿ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ﴾ [يعنې تقوى اختيار كړئ] چې حقيقت ئې د الله ﷻ د تمام احكاماتو په عمل كښې راوستل دي ، چې دهغه ټول حكمونه په عمل كښې راولى او ټولو منع شوؤ او مكروهو څيزونو څخه ځان اوساتى. ښكاره خبره چې دا كار انسان دپاره آسان نه دې ځكه د ﴿ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ﴾ څخه روستو د يو خاص عمل هدايت دې چې هغه د خپل كلام سمون راوستل او اصلاح كول دي داهم اگر چې د تقوى يوه حصه ده خو چې په دې قابو بيا مونده شي. نو دتقوى نورې ټولې حصې ورته پخپله حاصلېږي ، لكه چې په آيت مبارك كښې هم په قول سديد باندې د ﴿يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَٰلَكُمْ﴾ وعده ده. مطلب دادې چې كه تاسو خپله ژبه د غلطو خبرو څخه اوساتله او د سمې اوصحيح خبرو عادت شوئ نو الله ﷻ به ستاسو د ټولو عملونو اصلاح اوكړي. او ټول به سم كړي. او په آخر د آيت كښې ئې دا وعده اوفرمائيله ﴿وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ﴾ يعنې چا چې په خپله ژبه قابو بيا مونده د رښتيا او سمې خبرې كولو عادت ئې جوړ كړو. نو الله ﷻ به دده نور عملونه هم درست كړي او دۀ څخه صادر شوي گناهونه به ئې معاف كړي.

**په قرآنى احكامو كښې د آسانولو خاص انتظام:** د قرآن عظيم الشان عام انداز بيان ته چې په ژور نظر اوكتلې شي نو معلومېږي چې چرته داسې حكم شوې وي چې په هغې باندې عمل كولو كښې تكليف او سختى وي نو ورسره دهغې د آسانولو طريقه هم خودلې شوې ده ، او هر كله چې دټول دين خلاصه تقوى ده چې پوره كولو كښې ئې ډير مشقت دې هم دغه وجه ده چې

[1] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤٨٨

[2] ) تفسير روح البيان المعروف تفسير حقي: ج ١١، ص ١٤٦

Scanned with Ca

چرته د ﴿اتَّقُوا اللهَ﴾ حکم ورکړې شوې دې نو ورپسې داسې څه عمل خودلې شوې دې چې د هغې په کولو سره د تقوی په نورو کارونو باندې د الله ﷻ د طرفه عمل کول آسانولې شی ، ددې یو مثال په دې آیت مبارك کښې د ﴿اتَّقُوا اللهَ﴾ څخه روستو د ﴿وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا﴾ خودل کول دی . او دې څخه وړاندې آیت مبارك کښې د ﴿اتَّقُوا اللهَ﴾ څخه روستو ﴿لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ آذَوْا مُوسَىٰ﴾ فرمائیلو سره دا هدایت اوکړې شو چې د تقوی په لاره کښې د ټولو نه لوئې خنډ الله تعالی او نیکو بندګانو ته تکلیف ورکول دی ، چې هغه پریخودې شی ، نو تقوی بهٔ آسانه شی .

په یو آیت مبارك کښې فرمائی چې : ﴿اتَّقُوا اللهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ﴾ مطلب دا چې د تقوی د آسانولو دپاره دداسې کسانو سره ناستې پاتې کولو خودنه اوکړې شوه چې په خبرو او کارونو کولو کښې رښتینې وی یعنی د الله ﷻ اولیاء وی ، دغسې په بل آیت مبارك کښې ﴿اتَّقُوا اللهَ﴾ سره ﴿وَلْتَنظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾ زیات کړې شو ، ددې معنی داده چې هر انسان سره دا فکر مل کیدل پکار دی چې هغه صبا دپاره څه سامان لیږلې دې چې خلاصه ئې د آخرت فکر دې ولې چې دې سره دتقوی ټول ارکان آسانیږی .

**چې ژبه او خبرې درستې شی نو دې سره د دین دنیا کارونه آسانیږی:** شاه عبدالقادر دهلوی صاحب رحمه الله چې ددې آیت کومه ترجمه کړې ده ، دهغې څخه دا معلومیږی چې په دې آیت مبارك کښې د سمو خبرو په عادت جوړلو باندې د عملونو اصلاح کولو وعده چې شویده هغه صرف دینی عملونه ندی بلکه په دې قول کښې ټول دنیای کارونه هم داخل دی . څوك چې د قول سدید عادت شی یعنی دروغ چرې هم نه وائی ، په سوچ فکر سره خبرې کوی ، چې خطاګانو غلطئ څخه پاکې وی ، چاته دهوکه نه ورکوی ، زړه خفه کوونکې خبرې نه کوی ، د هغه د آخرت عملونه بهٔ هم درست شی ، اوددنیا کارونه بهٔ ئې سم شی . د شاه صاحب رحمه الله ترجمه داده : وایئ خبره سمه چې سم دم کړی تاسو لره ستاسو کارونه .

| إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ |
|---|
| بیشکه وړاند کړو مونږه دا امانت |
| بیشکه مونږ آسمانونو زمکې |

| عَلَى السَّمَاوَاتِ | وَالْأَرْضِ | وَالْجِبَالِ | فَأَبَيْنَ | أَن يَحْمِلْنَهَا |
|---|---|---|---|---|
| آسمانونو ته | او زمکې ته | او غرونو ته | نو انکار اوکړو هغوئ | چې بار کړی دغه امانت |

او غرونو ته [دحکم منلو د ذمه وارئ اوچتولو] امانت پیش کړو | نو ټولو ددې [

| وَأَشْفَقْنَ | مِنْهَا | وَحَمَلَهَا | الْإِنسَانُ | إِنَّهُ | كَانَ | ظَلُومًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او اویریدل | دهغې نه | او بار کړو هغې لره | انسان | بیشکه هغه | دې | ډیر ظالم |

غلطئ] ذمه وراځ دقبلولو نه انکار اوکړو | اوددې نه ویریدل | او صرف انسان وو چې ذمه وارئ ئې قبوله کړه | هغه

| جَهُولًا | لِّيُعَذِّبَ اللهُ | الْمُنَافِقِينَ |
|---|---|---|
| ډیر ناپوهه [غیر ذمه وار] | دپاره ددې چې عذاب ورکړی | الله | منافقانو سرو ته |

بیشکه ډیر ظالم اوناداني دې | نو نتیجه ئې دا شوه | چې الله ﷻ منافقانو سرو

| وَالْمُنٰفِقٰتِ | وَالْمُشْرِكِيْنَ | وَالْمُشْرِكٰتِ | وَيَتُوْبَ اللّٰهُ |
|---|---|---|---|
| او منافقانو ښځو ته | او مشرکانو سړو ته | او مشرکانو ښځو ته | او توبه قبوله کړي الله |
| اومنافقانو ښځو او مشرکانو سړو او مشرکانو ښځو ته سزا ورکوي \| او دمومنانو | | | |

| عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ | وَالْمُؤْمِنٰتِ ؕ | وَكَانَ اللّٰهُ | غَفُوْرًا | رَّحِيْمًا ۟ |
|---|---|---|---|---|
| د مومنانو سړو | او دمومنانو ښځو | او دی الله | بښونکي | مهربانه |
| سړو اودمومنانو ښځو توبه به قبوله کړي \| او الله ﷻ بښونکي مهربان دي | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

مونږ دا امانت آسمانونو زمکې او غرونو باندې پیش کړو، نوهغوی ددې دپورته کولو نه انکار اوکړو، او ددې نه اویریدل، او انسان ددې بوج اوچت کړو حقیقت دادې چه هغه لوئې ظالم، او لوئې نادان دې نتیجه دا شوه، چه الله تعالیٰ به منافقانو سړو، او منافقانو ښځو ته او مشرکانو سړو او مشرکانو ښځو ته عذاب ورکړي او مومنانو سړو او مومنانو ښځو باندې به رحمت سره توجه اوفرمائي او الله تعالیٰ ډیر بخونکې ډیر مهربان دې.

## خلاصه تفسیر

﴿اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَالْجِبَالِ﴾ [بیشکه مونږ دا امانت] یعنی احکام کوم چه په منزله دامانت دی [اسمانونو اومزکې او غرونوته وړاندکړل] یعنی په دوی کښې موشعور پیداکړوکوم چه په کښې اوس هم شته دوی ته مخامخ خپل احکام او په صورت دمنلوبه دوی انعام او اکرام اوپه صورت دنه منلوپه دوی عذاب اوتکلیفونه پیش کړل دوی ته مو داختستو اونه اخستواختیار ورکړو او مطلب ددې پیش کولودا وو چه که تاسو دا احکام په خپل ځان اخلئ نو ددې موافق دعمل کولو په صورت کښې به تاسوته ثواب ملاؤ شي او دخلاف کولو په صورت کښې به عذاب وی اوکه نه ئې اخلئ نو مکلف کیدې نه شی اودثواب اوعذاب به هم مستحق نه شئ تاسوته دواړه اختیاره دی چه ددې په نه اخستوبه نافرمانه کیدې نه شئ څومره چه دوی ته شعور وو دغه اجمالا په دومره قدر مضمون دپوهیدو دپاره کافي وو چونکه دوی ته اختیار هم ورکړې شوې وو ﴿فَاَبَيْنَ اَنْ يَّحْمِلْنَهَا﴾ [پس دوی] دویرې او عذاب په سبب دثواب داحتمال نه هم دست برداری وکړه او [ددې د ذمه وارئ نه ئې انکاروکړو ﴿وَاَشْفَقْنَ مِنْهَا﴾ او ددې] د ذمه وارئ [نه وویریدل] چه خدائ خبرانجام به ئې څه وی اوکه دوی ذمه واری قبول کړې وې نو په شان دانسان به دوی ته هم عقل ورکړې شوې وو کوم چه داحکامو د تفصیل د ثوابونو او عذابونو دپوهیدو دپاره ضروری دې چونکه دائ منظوره نه کړه په دې وجه دعقل ضرورت هم رانغې غرض دوی خو عذر وکړو [او] هرکله چه ددې اسمانونو اومزکې اوغرونونه پس ئې انسان لره پیداکړو دده نه ددې خبرې تپوس وشونو ﴿وَحَمَلَهَا الْاِنْسَانُ ؕ﴾ [انسان] په وجه ددې چه په علم الهی کښې دده خلیفه کیدل مقرر وو [دې لره ئې په خپله ذمه واخسته] غالبا هغه وخته پورې په دده کښې هم دضرورت په قدر دومره شعوربه وو او غالبا دا پیش کول د اخذمیثاق نه وړاندې وی او هغه میثاق ددې امانت پورته کولو فرع ده او ددې میثاق په وخت به دده ته عقل ورکړې شوې وی او داتپوس دچاخاص انسان نه په مثل دحضرت ادم عليه السلام نه دې

Scanned with CamScanner

شوې بلکه په مثل داخذ میثاق به دا وړاندکول هم عام وی او التزام هم عام وو پس اسمانونه غرونه اومزکه مکلف نه شو اودې مکلف جوړکړې شو په ایت کښې ددې یادول غالبا په دې حکمت سره دی لکه چه میثاق ئې یاد کړې دې او چونکه مکلف پیریان هم دی په دې وجه غالبا دوی په دې عرض او حمل کښې شریك دی مګر دانسان دذکر تخصیص صرف په دې وجه دې چه په دې مقام کښې کلام ددهٔ سره دې بیاددې التزام نه پس دانسان حالت په اعتباردا کثرو افرادو دا اوشو چه ﴿اِنَّهٗ كَانَ ظَلُوْمًا جَهُوْلًا﴾[هغه] انسان په عملیاتو کښې [ظالم دې] او په علمیاتوکښې [جاهل دې] یعنی په دواړوکاورنو کښې په عملونوکښې هم او په عقیدوکښې هم خلاف ورزی کوی داخو حالت په اعتبار داکثرو افرادو دې باقی دمجموعې په اعتبارسره ددې ذمه داریٔ انجام داشو ﴿لِّيُعَذِّبَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ﴾[چه الله تعالی به منافقانو سړو ښځو﴿وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكٰتِ﴾ اومشرکانو سړو اوښځوته] چه داخلق داحکامو ضائع کوونکی دی [سزا ورکړی﴿وَيَتُوْبَ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ﴾او په مؤمنانو سړو اوښځو به توجه] او رحمت [وفرمائی او] پس دمخالفت نه هم که څوك واپس شی نو بیابه دې هم دمؤمنانو سړو او ښځو په زمره کښې شامل کړې شی څکه چه ﴿وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا﴾[الله تعالی غفور رحیم دې]

## معارف او مسائل

دې ټول سورت کښې د رسول کریم ﷺ په تعظیم او عزت او د رسول کریم ﷺ په تابعداریٔ کولو باندې زور ورکړې شوې دې . په آخر د سورة کښې ددغې تابعداریٔ کولو لوئې مقام او درجه خودلې شوې ده ، په دې کښې د الله ﷻ اود رسول کریم ﷺ د تابعداریٔ او د دوئ د حکمونو منلو ته امانت وئیلې شوې دې ، چې وجه به ئې اوس په دې پسې خودلې شی .

**دامانت نه څه مراد دې ؟:** دلته د امانت په تفسیر کښې د ائمهٔ تفسیر صحابه کرامو ﷺ او تابعینو ﷺ وغیره هم ډیر قولونه منقول دی ، شرعی فرائض ، دپاکدامنیٔ حفاظت کول ، د مالونو امانتونه ، د جنابت غسل ، مونځ ، زکوة ، روژه ، حج وغیره څکه جمهورو مفسرینو ﷺ فرمائیلی دی چې د دین ټولې وظیفې او عملونه په ی کښې داخل دی . [قرطبی][1].

تفسیر مظهری کښې فرمائی چې د شریعت ټول تکلیفونه د امر ، نهی ، مجموعه امانت دی[2] ، ابو حیان ﷫ په بحر م حیط کښې اوفرمائیل چې :

﴿الظاهرانها كل مايؤتمن عليه من امرونهي وشأن ودين ودنيا والشرع كله امانة وهذا قول الجمهور﴾[3]

یعنی هر هغه څیز چې په هغې کښې اعتماد په انسان باندې کولې شی یعنی امر نهی ،او په هر هغه حال چې د هغې تعلق دین یا دنیا سره وی او شریعت ټول په ټوله امانت دې او هم دا د جمهورو قول دې .

خلاصه داده چې د امانت نه مراد د شرعی حکمونو مکلف او مامور کیدل دی چې دهغې په سر ته رسولو باندې د جنت دا همیشه همیشه نعمتونو او خلاف ورزیٔ کولو یا کوتاهۍ کولو

---

[1] ) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٤، ص ٢٥٣
[2] ) تفسیر المظهري: ج ٧، ص ٣٨٨
[3] ) تفسیر البحر المحیط: ج ٩، ص ١٧٨

Scanned with Ca

باندې د جهنم د عذاب وعده ده . او ځینو حضراتو فرمائیلي دي چې د امانت نه مراد دالله تعالی دحکمونو دباره پورته کولو جوګه والې او استعداد دې چې دعقل او شعور په خاص درجه باندې موقوف دې . اوترقي او د الله ﷻ د خلیفه کیدو حقدار وی په دې خاص استعداد باندې بناء ده ، د مخلوق په کومو جنسونو کښې چې دا استعداد نشته ، هغه په خپل ځائې که هر څومره پورته او لوړ مقام لري خو د دغې مقام نه زیاته ترقي نشي کولې ، په دې وجه آسمانونو زمکه وغیره کښې تر دې پوې چې په فرښتو کښې هم ترقي نشته ، دچا د نزدیکت چې کوم مقام د مخکښې نه دې ، پس هم هغه دې ، د دوئ حال دادې چې ﴿وَمَامِنَّآ اِلَّا لَهٗ مَقَامٌ مَّعْلُوْمٌ﴾ یعنی په مونږ کښې څوك داسې نشته چې د هغه به یو ټاکلې مقام نه وی .

د امانت په دې مفهوم کښې هغه ټول روایتونه د احادیثو چې دامانت په باره کښې راغلی دی ترون او مطابقت لري د جمهورو مفسرینو قولونه هم په دې کښې تقریبا ټول متفق دی .

د بخاري شریف او مسلم شریف او مسند احمد رحمه الله په حواله حذیفه رضي الله عنه روایت کوی چې رسول کریم ﷺ مونږته دوه حدیثونه آؤرولی وو ، په دې کښې یو خو مونږ پخپلو سترګو سره اولیدل ، او د بل انتظار دې .

اولنې حدیث پاك دادې چې اول ددینی خلقو په زړونو کښې امانت نازل کړې شو ، بیا قرآن عظیم الشان نازل کړې شو نو ایماندارو خلقو د قرآن عظیم الشان نه علم او د سنت نه عمل حاصل کړو .

دې پسې بل حدیث پاك دادې چې یو وخت داسې راتلونکی دې چې په کښې به یو کس د خوبه رابیدار شی نو دهغه د زړۀ نه به امانت اوښکلې شی اود هغې څه أثر او نخښه به داسې پاتې شی لکه چې د اورسکروټه په پښو باندې اورغړولې شی. نو هغه خو لاړه اوغورزیده خو اثر ئې په پښه باندې دپړسوب او پولئ په شکل کښې پاتې شی.سره ددې چې په دې کښې د اورڅه حصه نشته دې، تر دې پورې چې خلق به یو تر بله معاملې او لوظونه کوی خوبیا هم هیڅوك په کښې د امانت حق نه أدا کوی او خلق به دا وائی چې په فلانئ قبیله کښې یو کس امانتدار دې[1] .

دې حدیث پاك کښې امانت داسې یو څیز لره ګرځولې شوې دې چې تعلق ئې د انسان زړۀ سره دې او هم هغه ددې صلاحیت لري چې شرعي تکالیف او دینی وظائف پورته کولې شی .

او په مسند احمد کښې د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې څلور څیزونه داسې دی چې کله هغه تاسو ته حاصل شی او ددنیا بل هیڅ یو څیز درته حاصل نشی نو د افسوس خبره به نه وی . ① د امانت حفاظت کول ② د خبرو رښتیا والې ③ ښه خوئې ④ او حلاله لقمه [ابن کثیر][2] .

---

[1] ) صحیح البخاری، کتاب الرقاق، باب رفع الامانة: ج ٢، ص ٩٦١، وصحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب رفع الامانة والإیمان من بعض القلوب الخ: ج ١، ص ٨٢، ومسند أحمد، حدیث حذیفة بن ایمان رضی الله عنه رقم الحدیث: ٢٣٩٥٦

[2] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٤٩٢، ومسند أحمد، مسند عبدالله بن عمرو رضی الله عنه، رقم الحدیث: ٦٨١٢

**د امانت د پیش کولو تحقیق:** په دې آیت مبارك كښې دا ارشاد دې چې مونږه امانت آسمانونو زمكې او غرونو ته پیش كړو نو ټولو دهغې دپورته كولو نه انكار اوكړو ، او ددې نه ویریدل چې مونږ به ددې حق ادا نه كړې شو او انسان دغه بوج پورته كړو. د لته دا خبره قابل غور ده چې آسمانونه ، زمكه او غرونه چې دا بې ساه څیزونه دی او دوئ كښې په ظاهره باندې شعور او علم نشته دې ، په دوئ باندې د پیش كولو او ددوئ د جواب وركولو څه صورت كیدې شی. ځینې حضراتو خو دې ته مجاز و تمثیل اووئیلو لكه قرآن عظیم الشان چې د تمثیل په ډول یو بل ځائې كښې هم فرمائی چې: ﴿لَوْ أَنزَلْنَا هَٰذَا الْقُرْآنَ عَلَىٰ جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهُ خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ اللَّهِ﴾ [كه مونږ دا قرآن عظیم الشان په غرونو باندې نازل كړې وې نو تا به لیدلی وې چې هغه به هم ددې د دروندوالی نه راټیټ شوې او ټوټې ټوټې شوې وو ، د الله ﷻ د ویرې نه]. دا یو مثال وركړې شوې دې ، په حقیقت كښې په غر باندې نازلول تر مراد نه دی ، دې حضراتو دا آیت مبارك ﴿إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ﴾ هم مجاز او تمثیل ګرځولې دې.

خو د جمهورو عالمانو رحمهم الله په نزد دا صحیح ځكه نه دی چې د په كوم آیت مبارك نه په تمثیل باندې دلیل شوې دې. هلته خو قرآن عظیم الشان په صرف ﴿لَوْ﴾ سر دا پخپله ښكاره كړل چې دا قضیه فرضیه ده او په ﴿إِنَّا عَرَضْنَا﴾ كښې ثابته شوې واقعه ده چې په مجاز او تمثیل باندې ئې حملول بغیر د څه دلیل نه جائز نه دی. په دلیل كښې دا وئیل چې داڅیزونه حس او شعور نه لري نو په دې سره ددغې سوال جواب ځكه نشی كیدې چې دا د قرآن عظیم الشان په ښكاره فرمائیلو سره رد كړې شوې دې ، قرآن عظیم الشان دا واضح ارشاد فرمائیلې دې چې: ﴿وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ﴾ داسې یو څیز نشته چې د الله ﷻ تسبیح به نه وائی ، دې نه ښه په ښكاره شوه چې د الله ﷻ تسبیح كول هله كیدې شی چې الله ﷻ لره پیژنی او هغه لره خالق او مالك منی او د ټول مخلوق نه یې زیاته پورته او اعلی ترین پایه كښې ئې ګنړی او دا بغیر د ادراك او شعور نه كیدې نشی. په دې وجه دې آیت مبارك نه ثابته شوه چې ادراك او شعور په ټولو مخلوقاتو كښې تر جماد پورې موجود دی ، ددغې ادراك او شعور مطابق داڅیزونه مخاطب هم ګرځولې شی او دې جواب هم وركولې شی. د جواب مختلف صورتونه كیدې شی ، د الفاظو او حرفونو په ذریعه هم كیدې شسی چې عقل ئې هم منی ، ولې چې الله ﷻ دې جماداتو ، آسمانونو ، زمكې او غرونو ته د خبرو كولو او ګویایئ طاقت وركولې شی. هم په دې وجه د جمهور امت په نه نزد آسمانونو ، زمكې او غرونو ته په حقیقی ډول امانت عرض كړې شوې وؤ او دغې څیزونو هم په حقیقی ډول د خپل دغې پیټی پورته كولو نه عاجز كیدل ښكاره كړل او په دې كښې څه تمثیل یا مجاز نشته دې.

**دا امانت پیش كول اختیاری وو د زور نه وو:** اوس دا سوال پورته كیږی چې كله الله ﷻ آسمانونو ، زمكې او غرونو ته دا امانت پخپله وړاندې كړو نو دغې څیزونو د انكاركولو مجال څنګه شو؟ دا خو دالله تعالی حكم نه منل وو چې دهغې په سزا كښې ئې تباه كومل پكار وو ، دې نه علاوه قرآن عظیم الشان نه ثابت دی چې آسمانونو اوزمكې د اول نه د الله ﷻ د حكمونو تابعداری قبوله كړې وه ، لكه فرمائی چې: ﴿قَالَتَا أَتَيْنَا طَائِعِينَ﴾ یعنی كله چې الله ﷻ آسمانونو او زمكې ته اوفرمائیل چې په رضا راځئ او كه په زبردستئ مو راولم. نو دې دواړو اووئیل

Scanned with

چې د حکم منلو دپاره په خوشحالئ حاضر يو.
جواب ئې دادې چې مذکوره آيت مبارك کښې خو يوه حاکمانه پابندی د راتلو ورته حکم وو چې نه راتلل ئې د سزا او تباهئ کولو سبب جوړيدل خو د امانت د مخکښې کولو په موقعه ورته ددې د قبلولو اونه قبلولو اختيار ورکړې شوې وو ځکه په نه قبلولو د سزا حقدار او نه ګرځيدل.
ابن کثير رحمه الله په ډيرو سندونو سره د ډيرو صحابه کرامو رضي الله عنهم، تابعينو رحمهم الله، ابن عباس رضي الله عنه حسن بصری رحمه الله او مجاهد رحمه الله نه د امانت د پيش کولو دا تفصيل نقل کړې دې چې الله ﷻ اول په آسمان بيا په زمکه بيا په غرونو باندې په اختياری صورت کښې چې زمونږ امانت يعنی داحکامو اطاعت بار اوچت کړئ ددې د معاوضې دپاره مقرره ده، هر يو سوال اوکړو چې بدله ئې څه ده؟ نو اوفرمائيل چې که امانت مو پوره کړو يعنی د الله ﷻ په حکم مو عمل اوکړو نو ورته په جزا، ثواب او د الله ﷻ په نزد د عزت خاص درجه درکولې شی. ګنې نو عذاب او سزا به ورکولې شی، دغې ټولو لويو لويو جسمونو ددې په آوريدو سره جواب ورکړو چې ائې زمونږ ربه! مونږ اوس هم ستا د حکم تابعداری کوؤ ليکن مونږ ددې بار د پورته کولو نه خپل ځانونه عاجز بيا مومو، مونږ ثواب هم نه غواړو او عذاب هم نه شو برداشت کولې([1]).
او په تفسير قرطبی کښې د حکيم ترمذی په حواله ابن عباس رضي الله عنه نه دا روايت منقول دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ آدم عليه السلام ته خطاب اوفرمائيلو چې مونږ خپل امانت آسمانونو او زمکې ته پيش کړو نو هغې ددې پورته کول برداشت نه کړې شو، اوس به ئې تاسو پورته کوئې خو هغه څيز سره کوم چې دې سره دې. آدم عليه السلام سوال اوکړو چې دې سره بل څه څيز دې؟ جواب کښې ورته اوفرمائيلې شو چې که دغه امانت مو سرته اورسولو نو تاسو ته به جزا درکولې شی او که دغه امانت مو ضائع کړو نو سزا به درکولې شی، آدم عليه السلام ددې پورته کول، منظول کړل، تر دې چې د امانت په بار پورته کولو باندې دومره وخت هم نه وو تير شوې څومره چې د ماسپخين او مازيګر تر مينځه وی، چې په دومره لږ وخت کښې بيا شيطان تيرويستې وو کوم چې مشهور دی او جنت نه راؤښکلې شو([2]).

**د امانت پيش کولو واقعه په کومه زمانه کښې اوشوه:** اوس چې کوم د ابن عباس رضي الله عنه روايت پورته ذکر شو، هغې نه معلوميږی چې امانت پيش کيدل د آدم عليه السلام د پيدا کيدو نه وړاندې آسمانونو اوزمکې وغيره ته شوی وو. آدم عليه السلام پيدا کړې شو نو هغوئ عليه السلام ته ددې بيان اوکړې شو چې آسمانونو او زمکې وغيره ددې امانت پورته کولو نه عذر پيش کړې دې.
ښکاره خبره ده چې د امانت پيش کولو دا واقعه د ازل يعنی د الست د لوظ قول نه مخکښې خبره ځکه ده چې دا د امانت د بار روميئ کړئ ده او د خپل منصب د حلف بردارئ قائمقام ده.

**د زمکې د خلافت دپاره د امانت د بار پورته کولو قابل کيدل ضرروی وو:** الله ﷻ په ازلی تقدير کښې د آدم د خپل خليفه جوړولو خبره غنه کړې وه چې دوئ عليه السلام به په زمکه کښې د الله ﷻ خليفه وی

[1]) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤٩٠
[2]) تفسير القرطبی: ج ١٤، ص ٢٥٤، وجامع الاحاديث للسيوطی، رقم الحديث: ١٤٩٨٦

Scanned with Ca

او دا خلافت هغه چاته سپارل وو څوك چې د الله ﷻ د حكمونو بار پورته كولې شي ، ولې چې ددې خلافت حاصل هم دادې چې زمكه باندې د الله ﷻ قانون جارې كړي . خلقو لره د الله ﷻ حكمونو منلو ته غاړه ايښودونكې جوړ كړي ، په دې باندې تكويني ډول آدم ﷺ ددې امانت پورته كولو دپاره غاړه كيخوده ، سره ددې چې د الله ﷻ د لوئې لوئې مخلوق ددې نه عاجزه راتلل هم معلوم شوي وو [مظهري و بيان القرآن] (۱).

﴿إِنَّهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا﴾ دظلم نه پخپل ځان باندې ظلم كوونكې مرا دې دې او د جهول نه مراد دادې چې د انجام نه خبر نه وي . دې جملې نه په ظاهره دا ګنړلې شي چې د امطلقا د انسان د بدئې بيانولو دپاره راغلې دې چې دې نادان انسان پخپل ځان باندې ظلم اوكړو چې دومره لوئې بار ئې پورته كړو كوم چې ددهٔ د طاقت نه بهر وو . خو د قرآن عظيم الشان د ښكاره احكامو نه معلوميږي چې واقعه داسې نه ده ځكه كه د انسان نه مراد آدم ﷺ وي يا ټول انسانان وي ، نو په دوئ كښې آدم ﷺ خو بې ګناه نبي دې ، هغوئ ﷺ چې كوم بار پورته كړې وو د هغې حق ئې هم يقينا ادا كړو ، هم ددې په نتيجه كښې زمكې ته د خليفة الله په حيثيت اوليږلې شو ، فرښتو ته حكم اوشو چې هغوئ ﷺ ته سجده اوكړي او په آخرت كښې د هغوئ ﷺ مقام د فرښتو نه هم پورته دې . او كه ټول انسانان ترې مراد وي نو په دې پوره نوع كښې د لكونو په شمير پيغمبران ﷺ دي او په كروړونو هغه نيكان او اولياء كرام په كښې دي چې فرښتې پرې هم رشك كوي ، كومو چې په خپل عمل سره ثابته كړه چې دوئ ددغې امانت خداوندي اهل او حقدار وو ، د امانت د حق ادا كوونكو تر مخه قرآن عظيم الشان ټول انساني نوع لره اشرف المخلوقات اوګرځولو ځكه فرمائي چې : ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيٓ ءَادَمَ﴾ (۲) ، دې نه ثابته شوه چې نه خو آدم ﷺ ددې قابل دې چې بد ئې اوونيلې شي او نه ټول انسانان ، ځكه مفسرينو حضراتو فرمائيلي دي چې دا جملهٔ د بد بيانولو دپاره نه بلكه د اكثرو افرادو د انسان په اعتبار سره دواقعې بيانولو په ډول ارشاد شوې ده .

مطلب دادې چې د انساني نوع اكثريت ظلوم او جهول ثابت شو كوم چې ددې امانت حق ادا نه كړو او په زيان كښې پريوتل . او چونكه د اكثرو دا حال وو ځكه ئې انساني نوع ته نسبت اوكړې شو .

خلاصه دا شوه چې په آيت مبارك كښې ظلوم او جهول خالص هغې انساني افراد و ته اووئيلې شو چې د شرعي احكامو په تابعدارئ كښې پوره اونه ختل او د امانت حق ئې ادا نه كړو چې مراد ترې د امت كفار او منافقان ، فاسقان ، فاجران او ګناه ګاران مسلمانان دي ، دا تفسير د ابن عباس رضي الله عنهما ابن جبير رحمه الله او حسن بصري رحمه الله وغيره نه منقول دې ، [قرطبي] (۳).

او ځينې حضرات فرمائي چې د ظلوم او جهول الفاظ د مينې او د خطاب په ډول ساده بوده معنې دپاره د استعمال شوي دي چې انسان د الله ﷻ د مينې او د هغه د نزديكت دمقام په تلاش كښې او په څه انجام باندې سوچ اونه كړو ، په دې شان دا الفاظ د ټولو انسانانو دپاره

(۱) تفسير المظهري (باختصار) ج ۷، ص ۳۹۰، وتفسير بيان القرآن (باختلاف) ج ۱، ص ۱۷، ۱۸ تفسير سورة البقرة.
(۲) مونږ د آدم اولاد ته عزت وركړو.
(۳) تفسير القرطبي : ج ۱٤، ص ۲۵۷، ۲۵۸

هم کيدي شی ، تفسير مظهری کښې مجدد الف ثاني رحمه الله او د نورو صوفياء کرامو رحمهم الله نه دا شان مضمون نقل کړې شو ېدې .

﴿لِيُعَذِّبَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ﴾ [يعنی تر هغې چې عذاب به ورکړي الله ﷻ منافقانو سړو او ښځو ته او مشرکانو سړو او ښځو ته او رحمت او بخښنه به اوکړي مؤمنانو سړو او ښځو ته].

﴿لِيُعَذِّبَ﴾ کښې لام د علت او غرض بيانولو دپاره نه دې بلکه د عربيت د اصطلاح په لحاظ سره لام د عاقبت او انجام دپاره دې لکه يو عربي شعر کښې راغلی دی چې :

لدوا للموت وابنوا للخرا [پيدا ئی يا پيدا کيږی د مرګ دپاره ا و تعمير کوئی د ويجاړو دپاره]

مراد دادې چې د هر پيدا کوونکی انجام مرګ او د هر تعمير کيدونکی انجام ورانی او ويجاړی ده .

ددې جملې تعلق ﴿حَمَلَهَا الْاِنْسَانُ﴾ سره دې ، مطلب دا چې د انسان د امانت بار پورته کولو انجام به دا وی چې په انسانانو کښې به دوه ډلې شی يو کافران او بل منافقان وغيره چې د الله ﷻ د فرمانبردارئ کولو نه ئې غاړه اورغړوله او امانت ئې ضائع کړو هغوئ ته به عذاب ورکولې شی ، او مؤمنان ، سړی او ښځې کومو چې د امانت حق ادا کړو دوئ سره به د رحمت مغفرت معامله کيږی .

دې آخری جمله کښې د ظلوم او جهول د الفاظو ددې تفسير تائيد اوشو چې اکثرو امامانو د تفسير نه پورته نقل کړې شوې دې چې دا ټول انسانانو دپاره نه بلکه خاص هغې کسانو دپاره دی چا چې د الله ﷻ امانت ضائع کړو ،والله سبحانه وتعالی اعلم.

تمت سورة الاحزاب بعونه تعالى وحمده للعشرين من محرم الحرام ۱۳۹۲ يوم الثلثاء

| اياتونه | | سورة سبا مکية وهي اربع وخمسون اٰية وست رکوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۵۴ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زيات رحم کونکې دې | | ۶ |

| اَلْحَمْدُ | لِلّٰهِ | الَّذِيْ | لَهٗ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ټوله ثناء | الله لره ده | هغه الله | چې هغه لره دی | هغه څه | چې په آسمانونو کښې دی | او هغه څه |

ټول تعريفونه صرف يو الله ﷻ لره دی | چې دهر هغه څه مالک دې چې په آسمانونو

| فِي الْاَرْضِ | وَلَهُ الْحَمْدُ | فِي الْاٰخِرَةِ | وَهُوَ الْحَكِيْمُ |
|---|---|---|---|
| چې په زمکه کښې دی | او هغه لره ده ثنا | په آخرت کښې [هم] | او هغه خاوند دحکمت دې |

اوزمکه کښې دی| په دنيا او آخرت کښې ټول تعريفونه هغه لره دی|اوهغه صاحب دحکمت اوپه

| الْخَبِيْرُ ① | يَعْلَمُ | مَا | يَلِجُ | فِي الْاَرْضِ | وَمَا | يَخْرُجُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او خبردار دې | معلوم دی هغه ته | هغه څه | چې ننوځی | په زمکه کښې | او هغه | چې رااوزی |

هر څه خبر دې | هغه ته ټول معلوم دی | هر هغه څه کوم چې زمکه کښې ورننوځی ||وهر هغه څه کوم

مِنْهَا　وَمَا　يَنْزِلُ　مِنَ السَّمَآءِ　وَمَا　يَعْرُجُ　فِيْهَا ؕ

دهغې نه | او هغه | چې نازلیږی | دآسمان نه | او هغه | چې خیژی | په هغې کښې |

چې ترې بهر راوځی | اوکوم چې د آسمان نه راکوزیږی | او کوم چې آسمان ته خیژی

وَهُوَ الرَّحِيْمُ　الْغَفُوْرُ ۝

او هغه رحم کونکې | ښښونکې دې |

اوهغه ډیر رحم کونکې ډیر زیات ښښونکې دې |

## آسان ترجمه قرآن

ټول تعریفونه هغه الله تعالی دپاره دی، چه دهغه صفت دادې، چه په آسمانونو او زمکه کښې چه څه دی، ټول دهغه دی او په آخرت کښې هم تعریف هغه لره دې، او هم هغه دې، چه د حکمت مالک دې، مکمل خبردار دې. هغه هغې څیزونو لره هم پیژنی چه زمکې ته دننه ځی، او هغې لره هم چه ددې نه بهر راوځی، اوهغې لره هم چه د آسمان نه راکوزیږی او هغې لره هم چه آسمان ته خیژی، او هم هغه دې چه لوئې مهربان دې، ډیر بخونکې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ﴾[ټول حمد] اوثنا [هغه الله تعالی لره لائق دی﴿لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾ دکوم چه ملکیت دې څه چه په اسمانونو کښې دی اوڅه چه په مزکه کښې دی او] څنګه چه هغه فی الحال مستحق دحمد دې دغه شان ﴿وَلَهُ الْحَمْدُ﴾[هغه لره حمد] اوثنا ﴿فِي الْاٰخِرَةِ ؕ﴾[په اخرت کښې هم [لائق دې] ددې ظهوربه داسې وی چه جنتیان جنت ته د داخلیدو نه پس به دالله تعالی حمدپه دې الفاظو سره وکړی [الحمدلله الذي هدانالهذا(١)، الحمدلله الذي اذهب عنا الحزن(٢)، الحمدلله الذي صدقناوعده(٣)] ،وغیره ﴿وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ۝﴾او هغه حکمت والادې] چه داسمانونو اومزکې ټولو مخلوقاتولره یې بې شماره مصلحتونو اومنافعو باند مشتمل جوړکړی دی اوهغه [خبردار] هم [دې] چه دې مصلحتونو او نفعولره دپیدا کولو نه وړاند پیژنی په هرشی کښې مصلحتونه او نفعې یې په ډیر حکمت سره ایښودی دی او هغه داسې خبردار دې چه ﴿يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْاَرْضِ﴾[هغه هرڅه پیژنی کوم شې چه په مزکه کښې دننه دا خلیږی] مثلا دباران اوبه ﴿وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا﴾[او څه چه ترې نه راوځی] مثلا اونې او عام بوټی ﴿وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَآءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيْهَا ؕ﴾[اوڅه شې چه داسمان نه راکوزیږی اوڅه شې چه دې ته خیژی] مثلا فرښتې چه داسمان نه راکوزیږی او خیژی اومثلا شرعی احکام چه داسمان نه نازلیږی اونیك عملونه کوم چه اسمان ته خیژولې شی [او] چونکه په دې څیزونو کښې جسمانی یا روحانی نفع ده ددې مقتضا داده چه ټول خلق پوره شکرادا کړی اوڅوك چه کوتاهی وکړی هغه به مستحق دسزا وی لیکن ﴿وَهُوَ الرَّحِيْمُ الْغَفُوْرُ ۝﴾[هغه] الله [رحیم] او[غفور] هم [دې] او په خپل رحمت سره صغیره ګناهونه په

---

١
٢ ) ترجمه: د الله لاکھ لاکھ احسان دے کوم چہ مونږ دے مقام تہ اورسولو.
٣ ) ترجمه: د الله لاکھ لاکھ شکر دے کوم چہ مونږ نہ غم لرے کړو.
) د الله شکر دے کوم چہ مونږ سره خپله وعده رښتونی کړه.

Scanned with C

نیکوعملونو سره او کبیره په توبه سره اوکله دواړه قسمه گناهونه محض په خپل فضل سره معاف کوی اوکومه گناه چه د کفر اوشرک حدته ورسیږی هغه په ایمان راوړو سره معاف کوی.

| وَقَالَ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | لَا تَأْتِيْنَا |
|---|---|---|---|
| اووائی | هغه کسان | چی کافران دی | ولې نه راځی مونږ ته |
| او کافران وائی چې په مونږ به | | | |

| السَّاعَةُ | قُلْ | بَلٰى | وَرَبِّيْ | لَتَأْتِيَنَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| قیامت | ورته اووایه | چی هو | قسم دې په رب زما | چی خامخا به راځی تاسو ته |
| قیامت نه راځی | [ائې پیغمبره] ته ورته اووایه چې ولې به نه راځی ؟ | زما دې په رب قسم وی | | |

| عٰلِمِ الْغَيْبِ | لَا يَعْزُبُ | عَنْهُ | مِثْقَالُ | ذَرَّةٍ | فِي السَّمٰوٰتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| چی عالم دې په غیب باندې | نه پټیږی | دهغه نه | په اندازه | دیوې ذرې | په اسمانونو کښی |
| چې په غیبو عالم دې | چې خامخا به راځی | د هغه نه په زمکه او اسمانونو کښې یوه ذره هم پټه نه ده | | | |

| وَلَا فِي الْاَرْضِ | وَلَآ اَصْغَرُ | مِنْ ذٰلِكَ | وَلَآ اَكْبَرُ | اِلَّا | فِيْ كِتٰبٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| اونه په زمکه کښی | او نه وړوکې | دهغې نه | اونه لوئ | مگر دی | په یو کتاب |
| ............ اوددې [ذرې] نه وړوکې اونه ترې نه غټ څیز | خودا ټول هرڅه په یو ښکاره کتاب | | | | |

| مُّبِيْنٍ | لِّيَجْزِيَ | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا |
|---|---|---|---|
| ښکاره کښی | دپاره ددې چی بدله ورکړی الله | هغه کسانوته | چی ایمان ئې راوړې دې |
| [لوح محفوظ] کښې درج دی | د دې دپاره چې الله ﷻ هغه مومنانو ته اجر ورکړی | | |

| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | اُولٰٓئِكَ | لَهُمْ | مَّغْفِرَةٌ | وَّرِزْقٌ | كَرِيْمٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| او عملونه کوی نیک | دا کسان چی دی | ده دپاره ددوئ | بښنانه | او رزق | عزتمند |
| څوک چې نیک کارونه کوی | هم داهغه خلق دی | چې دوئ دپاره مغفرت او دعزت روزی ده | | | |

| وَالَّذِيْنَ | سَعَوْ | فِيْٓ اٰيٰتِنَا | مُعٰجِزِيْنَ |
|---|---|---|---|
| او هغه کسان | چی کوشش کوی | په آیتونو زمونږ کښی | چی شکست ورکونکی دی هغې لره |
| اودا هغه خلق دې کوم چې زمونږ د آیتونو د ناکامه کولو کوشش کوی | هغوئ | | |

| اُولٰٓئِكَ | لَهُمْ | عَذَابٌ | مِّنْ رِّجْزٍ اَلِيْمٌ | وَيَرَى الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| دا کسان چی دی | دې دپاره ددوئ | عذاب | دعذاب دردناک نه | اووینی هغه کسان |
| ته به د [رنگ په رنگ] سختونه نه ډک دردناک عذاب ورکولې شی | او کومو خلقو | | | |

| اُوْتُوا الْعِلْمَ | الَّذِيْٓ | اُنْزِلَ | اِلَيْكَ | مِنْ رَّبِّكَ |
|---|---|---|---|---|
| چی ورکړې شوې دې هغوئ ته علم | چی هغه کتاب | چی نازل کړې شوې دې | تاته | دطرفه درب ستا نه |
| ته چې علم ورکړې شوې دې | هغوئ پوهیږی چې کوم [کتاب] ستا د رب دطرفه په تانازل شوې دې | | | |

هُوَ الْحَقَّ ۙ وَيَهْدِيْٓ اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ۝ وَقَالَ

چې هغه حق دي | او ښودنه کوي | لارې ته | د غالب | او ستائيلي شوي خداني | او وائي |

هغه رښتوني دي | او دا کتاب [خلقو ته] د غالب او دتعريفو لائق الله ﷻ لار ښائي | او کافرانو

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ يُّنَبِّئُكُمْ

هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې | آيا مونږه او ښايو تاسو ته | يو داسې سړې | چې خبردر کوي تاسو ته

[يوبل ته] او وئيل | چې راشئ چې داسې سړې درته اوښايو | چې هغه درته دا خبردر کوي

اِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ ۙ اِنَّكُمْ لَفِيْ خَلْقٍ

کله چې | -ذرې ذرې کړې شئ تاسو | په کامل ذره کيدو سره | نو بيشکه تاسو به | خامخا په پيداوښت

چې په څه وخت کښې به تاسو ريزه ريزه شئ | نو بيا به تاسو دوباره راپيدا کولې شئ |

جَدِيْدٍ ۝ اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَمْ بِهٖ

نوې کښې [بيا راپيدا شئ] | معلومه نه ده چې آيا ترې | په الله پورې | دروغ | يا په ده

..............آيا دهٔ په الله ﷻ باندې دروغ جوړ کړې دی | او که ليونې شوې دې

جِنَّةٌ ۭ بَلِ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ فِي الْعَذَابِ

ليونتوب دې | نهٔ بلکه هغه کسان | چې ايمان نه راوړي | په آخرت باندې | په عذاب کښې به وي

[په دې کښې يو هم] نه ده | بلکه کوم خلق چې په آخرت يقين نه ساتي | هغوئ په عذاب کښې او په

وَالضَّلٰلِ الْبَعِيْدِ ۝ اَفَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ

او په گمراهئ | لرې کښې دی | آيا نه گوري دوئ | هغې ته | چې مخکښې ددوئ دې

او ډېره گمراهئ کښې پراته دی | آيا دوئ آسمان او زمکې ته نه دی کتلی

وَمَا خَلْفَهُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ۭ اِنْ نَّشَاْ نَخْسِفْ

او هغې ته | چې روستو ددوئ دې | دآسمان نه | او دزمکې نه | که مونږه اوغواړو | نو ډوب به کړو

چې ددوئ نه وړاندې او روستو خواره شوی دی | که چرې مونږ اوغواړو نو دوئ به

بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ ۭ

دوئ | په زمکه | يا به راواغورزوو | په دوئ باندې | يوه ټوټه | دآسمان نه

په زمکه کښې ښخ کړو | يا به په دوئ د آسمان نه ټکره راواغورزوو |

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيْبٍ ۝

بيشکه | په دې کښې | خامخانښه ده | دپاره | دهر بنده | رجوع کونکی |

بيشکه په دې کښې دهغه بنده دپاره دعبرت نښه ده چې الله ﷻ طرفته رجوع کوی |

Scanned with CamScanner

## آسان ترجمه قرآن

او کومو خلقو چه کفر اختیار کړي دي، هغوی وائی چه: په مونږ به قیامت نه راځی . اووایه : ولې به نه راځي؟ زما په عالم الغیب پروردګار بااندې قسم! هغه به په تاسو باندې ضرور راځي، د ذرې هومره څيز د هغه د نظر نه لرې نه دې نه په آسمانونو کښې . نه په زمکه کښې او نه ددې نه وړوکې څيز داسې شته. نه لوئې، چه په ښکاره کتاب (يعنی لوح محفوظ) کښې ليکلې شوې نه وی، (او قيامت به ځکه راځي) چه کومو خلقو ايمان راوړې دې، او هغوی نيک عملونه کړې دی، الله تعالى هغوی ته انعام ورکړی د داسې خلقو دپاره مغفرت دې، او عزت مند رزق دې، او کومو خلقوچه زمونږ د آيتونو بابره کښې دا کوشش کړې دې چه هغې لره ناكامه جوړ کړی، دهغوی دپاره ډير سخت دردناک عذاب دې. او (اے پيغمبره) کومو خلقو ته چه علم ورکړې شوې دې، هغوی ښه پوهيږی، چه په تاباندې ستا د رب د طرف نه څه نازل کړې شوې دی،هغه حق دی او د هغه (الله) لاره ښائی، چه د اقتدار مالک هم دې، او د هر تعريف مستحق هم دې.او دا کافران خلق يو بل ته وائی آيا مونږ تاسو ته د داسې سړی پته اوښايو، چه تاسو ته دا خبر درکوی، چه کله تاسو (مړه شئ او) بالکل ريزه ريزه شئ په هغه وخت به تاسو يو نوې پيدائش سره راځئ.پته نه لګی، دغه سړی په الله تعالى باندې دروغ تړلې دی، يا هغه باندې ليونتوب راغلې دې؟نه! بلکه حقيقت دادې، چه کوم خلق په آخرت باندې ايمان نه لری هغوی خپله په عذاب کښې او ډيره زياته ګمراهئ کښې مبتلا دی آيا دغې خلقو آسمان او زمکې لره ليدلې نه دی، چه ددوی نه مخکښې هم موجود دی او ددوی نه روستو هم، که مونږ اوغواړو، نو دوی لره په زمکه کښې ورننباسو، يا د آسمان څه ټکړې په دوی باندې راوغورزو، حقيقت دادې، چه په دې کښې د هر هغه بنده دپاره يوه نښه ده، چه الله تعالى طرف ته رجوع کولکې وی.

## خلاصه تفسير

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ﴾[او دا کافران وائی چه په مونږ به قيامت نه راځی ﴿قُلْ بَلَىٰ﴾ ته ووايه چه ولې نه] راځی به ﴿وَرَبِّي لَتَأْتِيَنَّكُمْ عَالِمِ الْغَيْبِ﴾[قسم دې په خپل پروردګار عالم الغيب چه هغه به خامخا په تاسو راځی] دهغه علم داسې وسيع او محيط دې چه ﴿لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ﴾[دده] دعلم [نه يوه ذره قدرې هم غائب نه ده نه په اسمانونو کښې اونه په مزکه کښې [بلکه ټول دده په علم کښې حاضر دی] ﴿وَلَا أَصْغَرُ مِنْ ذَٰلِكَ﴾[اونه څه شې ددې] مقدارذکر شوی [نه وړوکې دې﴿وَلَا أَكْبَرُ﴾ اونه څه شې] ددې نه [لوئ دې﴿إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ﴾ مګر داټول] په وجه داحاطې دعلم الهی [په کتاب واضح] يعنی په لوح محفوظ [کښې] ليک [دی] دقيامت متعلق دکفارو ډير شبهات وو يو دا چه که قيامت راتلونکې وی نو وخت ئې وښايئ لکه چه الله تعالى فرمائی [ايان مرسها](۱) دويم داچه کوم اجزا چه جمع کولې او په هغې کښې ژوند پيدا کول ښودلې شی دهغې خو به چرته نښه هم پاتې نه شی نو جمع به څنګه کړی شی دعلم غيب د دې مضمون په اثبات سره د اولې شبهې جواب وشو چه ددې علم په وجه دحکمت مختص دې دباری تعالى سره که نبی ته ددې معين وخت معلوم نه وی نو دانه لازميږی چه

---

(۱) د دے واقع کيدل به کله وی؟

Scanned with Ca

قیامت به قائم نه شي لکه چه الله تعالی فرمائي [قل اِنَّمَا عِلۡمُهَا عِنۡدَ اللّٰهِ](١) او دعلم محیط داثبات په مضمون سره ددویمي شبهې جواب شوې دې چه ددې تولو اجزاؤ په مزکه کښې دګډ ود کیدو او په هوا کښې دخوریدو باوجود هغه به زمونږ دعلم نه خارج نه شي مونږ چه کله وغواړو جمع به يې کړو لکه چه الله تعالی فرمائي [افلم یروْا الخ] اوس دقیامت غایت ښائي چه دا قیامت به ځکه راځي ﴿لِّيَجۡزِيَ الَّذِيۡنَ﴾[چه هغو خلقو ته] نیکه [صله ورکړی کومو چه ﴿اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ ایمان راوړې وو او هغوی نیك کارونه کړی وو] پس ﴿اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ مَّغۡفِرَةٌ﴾[ دداسې خلقو دپاره مغفرت او] په جنت کښې ﴿وَرِزۡقٌ كَرِيۡمٌ﴾دعزت رزق دې ﴿وَالَّذِيۡنَ سَعَوۡ فِيۡۤ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيۡنَ﴾ اوکومو خلقو چه زمونږ دایتونو متعلق] ددوی د باطلولو[کوشش کړې وو] دنبي [دعاجزه کولو دپاره] اګر چه په دې کوشش کښې ناکام پاتې شول ﴿اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ مِّنۡ رِّجۡزٍ اَلِيۡمٌ﴾[دداسې خلقو دپاره به دسختۍ دردناك عذاب وی او] دقرآن دایتونو په دروغژن کولو داسې سزاپکار ده اول خو قرآن فی نفسه امر حق منزل من الله دې او دداسې امر حق تکذیب په خپله دالله تعالی تکذیب دې په دې وجه چه هرڅومره سزاوی په ځائ ده دویم قرآن دنیغې لارې تعلیم او هدایت کوی اوکوم سړې چه دانه مني هغه به دنیغې لارې نه قصدا لرې وسیړی نه به ورته دحقو عقیدو پته ولګي نه دنیکو عملونو او دا طریقه وه دنجات پس دنجات دطریقې نه قصدا په لرې پاتې کیدو سره دا سزا کیدل بې ځائ نه دی او دقرآن حق والی او هادی کیدل داسې واضح دی چه د دې نه علاوه په نورو دلائلو سره ثابت دی یوه اسانه طریقه ددې دثبوت داده چه ﴿وَيَرَى الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡعِلۡمَ الَّذِيۡۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ مِنۡ رَّبِّكَ﴾[کومو خلقو ته] داسماني کتابونو[علم ورکړې شوې دې ﴿هُوَ الۡحَقَّ﴾ هغوی دې قرآن لره کوم چه ستا درب دطرف نه تاته رالیږلې شوې دې داسې ګڼړی چه هغه حق دې ﴿وَيَهۡدِيۡۤ اِلٰى صِرَاطِ الۡعَزِيۡزِ الۡحَمِيۡدِ﴾ او هغه دخدائ غالب ستائیلې] درضا [لاربنائي] ددې استدلال تقریرد سوره شعراء داخری رکوع په شروع کښې تیرشوې دې او منجمله دټولو کارونو واجبوونکودایمان نه د قرآن دحقیت دبیان اهتمام ئ ځکه وفرمائیلو چه دا په هغه امور واجبة الایمان باند مشتمل دی خصوصا په خبر دقیامت په کوم کښې چه په دې مقام کښې خبره ده پس په دې بناء لنډه دا شوه چه دقیامت په ورځ به ددې قیامت په دروغژن کولو هم سزا وی [او] ورانديې بیا دقیامت اثبات دې یعنی ﴿وَقَالَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا﴾[دا کافران] په خپل مینځ کښې [وائی ﴿هَلۡ نَدُلُّكُمۡ عَلٰى رَجُلٍ يُّنَبِّئُكُمۡ﴾ چه ایا مونږ تاسو ته داسې سړې وښایو کوم چه تاسوته دا] عجیبه [خبردرکوی ﴿اِذَا مُزِّقۡتُمۡ كُلَّ مُمَزَّقٍ﴾ چه هرکله تاسو بالکل ذره ذره شئ نو] ددې نه پس په قیامت کښې ﴿اِنَّكُمۡ لَفِيۡ خَلۡقٍ جَدِيۡدٍ﴾[تاسو به خامخا په یونوی ژوند کښې راشئ ﴿اَفۡتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ معلومه نه ده چه دې سړی په خدائ باند] قصدا [دروغ جوړ کړی دی ﴿اَمۡ بِهٖ جِنَّةٌ﴾یاده ته په څه شان سره لیونتوب دې] چه بې ارادې دروغ وائی ځکه چه دا کار خومحال دې نو ددې د واقع کیدو خبر خامخا غلط دې خواه که په قصد سره وی او یاکه په فساد دتخیل سره وی الله تعالی ددې دواړو شقونو رد فرمائي چه زمونږ نبی خو دروغ جوړونکې اومجنون هیڅ هم نه دې ﴿بَلِ الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡاٰخِرَةِ فِى الۡعَذَابِ وَالضَّلٰلِ الۡبَعِيۡدِ﴾[بلکه کوم خلق چه په اخرت یقین نه لری] هم هغوی [په عذاب او ډیره لرې

(١) ترجمه: تاسو اوفرمائیے : چه ددے علم صرف زما رب سره دے

ګمراهۍ کښې] اخته [دی] ددې ګمراهۍ فوری اثر دادې چه رښتونی ورته هم درغژن اومجنونان په نظر راځی او انجامی اثرئ دادې چه عذاب به تیروی او داجاهلان کوم چه دې جمع کیدو او ژوندی کوی داجزاؤ خورو شوو جماد یوڅره محال او دقدرت نه لرې ګنړی ﴿أَفَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾[نوایا دوی] دالله تعالی دقدرت په لویو دلیلونو کښې [اسمان اومزکې ته نه دی کتلی کوم چه ددوی په مخ کښې] هم [او د دوی شاته هم [موجود دی] چه کوم خوا ګوری هغه په نظر راځی پس ددې عظیمواجرامو اول پیداکوونکې ایا د وروجسمونو په دوباره پیدا کولو قادر نه دې؟ لکه چه الله تعالی فرمائی [لخلق السموات والارض اكبرمن خلق الناس الخ](١) او سره دحقودلیلونو د واضحه کیدو نه بیا هم د انکار او عنادکولو په وجه خواوس دوی ددې قابل دی چه اوس ورله سزا ورکړې شی او سزا هم داسې چه دا دلیلونه دقدرت داسمان اومزکې کوم چه د دوی دپاره عظیم نعمتونه هم دی دا د دوی دپاره دعذاب اله جوړه کړې شی چه دکوم نعمت کفران کیدې شی هغه نعمت په عذاب جوړولو سره سخت حسرت کیدې شی اومونږ په دې سزا هم قادریو چنانچه ﴿إِن نَّشَأْ نَخْسِفْ بِهِمُ الْأَرْضَ﴾[که مونږ وغواړو نو دوی لره به په مزکه کښې دننه کړو ﴿أَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَاءِ﴾ یا] که وغواړونو [په دوی به د اسمان نه ټکړې راوغورزوو] لیکن حکمت مقتضی دې دتاخیر په دې وجه مهلت ورکړې شوې دې غرض دې خلقو له دوهم دفع کولو دپاره مزکې اسمان ته نظر کول پکار وو ځکه چه ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً﴾[په دې] دلیل مذکور [کښې] دالله تعالی دقدرت [پوره دلیل دې] مګر ﴿لِّكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيبٍ﴾[دهغې بنده دپاره کوم چه] الله تعالی طرف ته [متوجه] هم [وی] او دحق طلب کوی یعنی دلیل خوکافی دې مګرد دوی دطرف نه طلب نشته په دې وجه محروم دی.

## معارف او مسائل

﴿عَالِمِ الْغَيْبِ﴾ دا صفت د رب دې چې اوس ئې قسم خوړلې شو بېدې او دلته د الله ﷻ د صفتونو څخه خاص دعلم غیب او دعلم محیط صفت ځکه راؤړې شو چې دا کلام د قیامت دمنکرانو په معامله کښې دې هغوئ به د قیامت راتلونه ځکه انکار کولو چې د الله ﷻ علم او قدرت به ئې پخپل علم او قدرت قیاس کولو او وئیل به ئې چې کله ټول انسانان د مرګ څخه روستو ښاؤرې شی ددې ذرې به په دنیا کښې خورې ورې شی نو دغه ذرې راجمع کول بیا دیو انسان ذرې دبل انسان نه جدا کول او دهر وخت یو ذرات به دهغه بدن پورې پیوتس کول به څنګه کولې شی ؟ ځکه الله ﷻ اوخودل چې د الله ﷻ علم د ټول مخلوق څخه داسې راچاپیره دې چې دآسمانونو او زمکې هر یو څیز ورته معلوم دې. داهم ورته معلوم دی چې هغه په څه حالت کښې چرته موجود دې ،یعنی یوه ذره هم دهغه د علم څخه بهر نه ده داسې علم الله ﷻ سره خاص دې ،بل هیڅ یو مخلوق داسې علم نه لری خواه هغه فرشته وی یا پیغمبر ،نو ددغسې علم او قدرت خاوند الله ﷻ دپاره دغه ټولې ذرې راغونډول او بیا ترې خپل خپل هم هغه بدنونه او جسمونه جوړول هیڅ ګران نه دی.

---

(١) یقیناً د آسمان او د زمکے پیدا کول دانسانو دپیدا کولو په نسبت ډیر غټ کار دے.

Scanned with Ca

﴿لِيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ دا جمله ددې څخه وړاندې جملې ﴿لَتَأْتِيَنَّكُمْ﴾ سره تعلق لري ، يعنې قيامت به ضرور راشي ، او دقيامت راتلو مقصد دادې چې د ايمان خاوندانو ته به جزاء او زيات غوره رزق د جنت ورکولې شي . او بل طرفته ﴿وَالَّذِينَ سَعَوْا فِي آيَاتِنَا﴾ هغه خلق دي چې زمونږ په آيتونو ئې اعتراض کړې دې او خلق ئې ددې منلو ته نه پريخودل .

﴿مُعَاجِزِينَ﴾ يعنې د دوئ داکارل کول ګويا کښې دې دپاره وو چې مونږ به د دوئ د ګرفت نه بې وسه کړي او د قيامت د حاضرئ څخه به مو خلاص شي .

﴿أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مِنْ رِجْزٍ أَلِيمٌ﴾ يعنې داسې خلقو له به د رجز عظيم عذاب وي چې معنى ئې سخت او دردناك عذاب ده .

﴿وَيَرَى الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ﴾ داد قيامت د منکرينو په مقابله کښې دهغې مؤمنانو بيان دې چې په قيامت ئې ايمان راوړې وو او دهغې علم څخه ئې فائده حاصله کړه کوم چې د الله ﷻ د طرفنه په نبى اکرم ﷺ نازل شوې وو .

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ﴾ دا وينا د قيامت د منکرانو کافرانو نقل کړې شوې ده چې د سپکاوى او ټوقو په انداز کښې داسې وئيل چې : راشئ مونږ درته دداسې يو عجيبه بنده پته درکړو کوم چې وائى چې تاسو ښه ذره ذره شئ بيا به تاسودنوى سره پيدا کولې شئ اوشکلونه به مو بيخى ړومبى وى .

ظاهره داده چې ددې څخه مراد نبى اکرم ﷺ دې چې د قيامت خبر به ئې ورکولو او دا به ئې فرمائيل چې په قيامت کښې به ټول خلق دوباره ژوندى کولې شي او تاکيد به ئې کولو چې په دې باندې ايمان راوړئى ، او ټولو خلقو نبى اکرم ﷺ په ښه شان پيژندلو ، خو اندازئې داسې ځکه اختيار کړو چې ګويا ددې څخه سوا مونږ نبى اکرم ﷺ لره په هيڅ حيثيت نه پيژنو ، مطلب ئې د نبى اکرم ﷺ سپکاوې کول او نبى اکرم ﷺ پورې ټوقې کول وو .

﴿مُزِّقْتُمْ﴾ دمزق څخه مشتق دې ، چې معنى ئې څيرل او ذره ذره کول دى . ﴿كُلَّ مُمَزَّقٍ﴾ نه مراد د انسان بدن ذره ذره کيدلو سره او جدا کيدل دى ، وروسې د نبى اکرم ﷺ دقول مبارك اود قيامت د بيان په باره کښې خپل خيال داسې ښکاره کوى چې :

﴿أَفْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَمْ بِهِ جِنَّةٌ﴾ مطلب دا دې چې د جسم ذرې ذرې جوړيدو څخه روستو دهغې راجمع کول او په ړومبى شکل باندې ترې هم هغه شان جوړيدل خو عقل هيچرې نه منى ، يا خو نبى اکرم ﷺ په قصد په الله ﷻ باندې دروغ تړى يا ددې ويونکې ليونې دې چې صحيح خبره ئې د خلې څخه نه اوځى .

﴿أَفَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ دخلاصې دتفسيرڅخه معلوم شوچې په دې آيت مبارك کښې د قيامت د قائميدو د ليلونه هم شته چې د آسمان او زمکې په مخلوقاتو کښې او د الله ﷻ د کامل قدرت په ليدو سر هغه رکاوټ ختميږى کوم چې د قيامت منکرانو ته راولاړ شوې وو . دې سره سره دغې خلقو ته د سزا درکه ورکول هم په دې شان دى چې دې آسمانونو اوزمکې ته ګورئى چې تاسو دپاره لوئې نعمتونه دى که بيا هم تاسو په انکار ضد کلك ولاړ يئ نو الله ﷻ دا قدرت هم لرى چې هم دا نعمتونه تاسو دپاره عذاب جوړ کړى ، زمکه مولولاړ تير کړى يا آسمان ټوټې ټوټې شي او په تاسو راؤغورزيږى .

Scanned with Ca

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا

|او په تحقيق ورکړي وو مونږه

| او بيشکه مونږ داؤد

دَاوٗدَ مِنَّا فَضْلًا ۭ يٰجِبَالُ اَوِّبِيْ مَعَهٗ وَالطَّيْرَ ۚ

داود له |دطرفه خپل نه | فضل | اے غرونو |يو کړئ آواز |دهغه سره |اومرغانو ته هم دا حکم دې

ته خپل نعمتونه ورکړی وو | [او حکم مو کړي وو چې]اني غرونو داؤد ﷺ سره تسبيح لولئ

وَاَلَنَّا لَهُ الْحَدِيْدَ ۙ اَنِ اعْمَلْ سٰبِغٰتٍ وَّقَدِّرْ

او نرمه کړه مونږه | دپاره دهغه | وسپنه | چې جوړوه | زغرې | او اندازه کوه |

او مارغانو ته هم داحکم وو | اومونږ دهغه دپاره اوسپنه نرمه کړې وه | [او حکم مو اوکړو] پوره پوره

فِي السَّرْدِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ۭ اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ

په اوودلو کښې| او عمل کوئ | نيك | بيشکه زهٔ | په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو

زغرې جوړوه |اود کړو جوړولو اندازه مقرر کړئ |اوښه عملونه کوئ | بيشکه زه ستاسو عملونه

بَصِيْرٌ ۝ وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ

ليدونکې يم | او دپاره دسليمان | تابع کړه مونږه هوا |دصبامزل دهغې هوا |ديوې مياشتې هومره وو

وينم ګورم |اومونږ هوا د سليمان ﷺ تابع کړې وه| چې سحر به ئې هم دمياشتې هومره

وَّرَوَاحُهَا شَهْرٌ ۚ وَاَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ

او دماښام مزل دهغې هوا | دمياشتې دلارې هومره وو | اواوبيوله مونږه |دپاره دهغه | چينه

مزل کولو | اودماښام به ئې هم دمياشتې هومره مزل کولو|اومونږ د هغه دپاره دويلې شوې تانبې چينه

الْقِطْرِ ۭ وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ

دويلې کړې شوې تانبې | او تابع کړل مونږه دهغه دپاره دپيريانو نه | هغه څوك | چې کار به ئې کوؤ

جارې کړې وه| او بعضې پيريان داسې وو چې د هغه په وړاندې به ئې داللّٰه ﷻ په حکم کار خدمت کولو

بَيْنَ يَدَيْهِ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ۭ وَمَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ عَنْ اَمْرِنَا

په مخکښې دهغه | په حکم درب خپل سره | او چاچې به مخ واړوؤ | دهغوئ نه | دحکم زمونږ نه

اوکه چرې په هغوی کښې به چا زمونږ دحکم [يعنی اطاعت دسليمان] نه کوږ شو [نافرمانی اوکړه]

نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ ۝ يَعْمَلُوْنَ لَهٗ

نو څکوؤ به مونږ هغه ته | خوند دعذاب اوور | جوړول به هغوئ | دپاره دهغه

نومونږ به هغه ته دجهنم د عذاب مزه اوڅکوؤ | دې پيريانو بهٔ حضرت سليمان ﷺ دپاره ددهٔ

مَا يَشَآءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ وَجِفَانٍ

هغه څيزونه چې غوښتل به هغه | دنګ دنګ محلونه | او تصويرونه | او لوئ لوښی |

دمرضئ څيزونه جوړول |لکه دنګ دنګ ځايونه | اوتصويرونه |او دتالاب غوندې لوئې لوئې خانکونه

Scanned with Ca

كَالْجَوَابِ وَقُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ ط اِعْمَلُوْٓا اٰلَ دَاوٗدَ شُكْرًا ط

پشان د تالاب | او دیگونه په یو ځائې پراته درانه | عمل کوئ | اے آل داود | د شکر |

اولوئې لوئې دیگونه | چې [هم په یو ځائې به] پراته وو | اے د داؤد ﷺ کورنئ [د الله ﷻ] شکر اوباسئ

وَقَلِيْلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ ﴿۱۳﴾ فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ

او لږ دي | د بندګانو زمانه | شکر ایستونکي | پس هر کله چې | حکم اوکړو مونږ | په هغه باندې |

او زما په بندګانو کښې شکر کونکي ډیر کم دي | نو څه وخت چې مونږ په هغه د مرګ

الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلٰى مَوْتِهٖٓ اِلَّا دَآبَّةُ الْاَرْضِ

د مرګ | نو خبر نه کړل هغه پیریانو لره | په مرګ د هغه باندې | مګر | وینه د زمکې |

حکم جاري کړو | نو هغوئ ته بل چانه خوبیو وینه [چینجي] د مرګ پته ورکړه

تَاْكُلُ مِنْسَاَتَهٗ ج فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ

چې خوړله ئې | همسا د هغه | پس هر کله چې | راپریوتو هغه | نو پوهه شول | پیریان |

چې د هغه همسا ئې خوړله | نو څه وخت چې هغوئ راپریوتلو | نو پیریانو ته ښکاره شوه

اَنْ لَّوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوْا فِي الْعَذَابِ

که چرې وې هغوئ | چې پوهیدلې | په غیبو باندې | نو وخت به نه وو تیر کړې هغوئ | په عذاب

که چرې مونږ د غیبو په کارونو خبر وې | نو په دې ذلیل عذاب کښې به [دومره موده]

الْمُهِيْنِ ﴿۱۴﴾

سپکونکې کښې |

نه تیروله

## آسان ترجمه قرآن

او واقعه داده. چه مونږ داؤد علیه السلام ته خاص د خپل طرف نه فضل ورکړې وو. اے غرونو! تاسو هم په تسبیح کښې هغه سره اواز یو ځائې کړئ. او اے مارغانو تاسو هم او مونږ د هغه دپاره اوسپنه نرمه کړې وه. چه: پوره پوره زغرې جوړې کړه او په کړئ یو ځائې کولو کښې د توازن نه کار اخله او تاسو ټول خلق نیک عمل کوئ. تاسو چه کوم عمل کوئ. زه هغې لره وینم او سلیمان علیه السلام دپاره مونږ هوا تابع کړې وه. د هغه د سحر سفر هم د یوې میاشتې د مسافت (برابر) وو. او د ماښام سفر هم د یوې میاشتې د مسافت (برابر) وو او مونږ د هغه دپاره د تانبې چینه بهیولې وه. او په پیریانو کښې څه هغه وو چه د خپل پروردګار په حکم سره ئې د هغه مخکښې کار کولو (او مونږ په هغوی باندې دا خبره واضحه کړې وه چه) په هغوی کښې چا زمونږ د حکم نه خلاف کړه لار اختیار کړه. نو په هغه باندې به مونږ د سوزولکې اور مزه اوڅکوو. هغه پیریانو به سلیمان علیه السلام دپاره چه څه هغه غوختل. جوړول. اوچت اوچت عمارتونه تصویرونه د تالاب پشان لوئې لوئې خانکونه. او په زمکه کښې ښخ دیګونه. اے د داؤد علیه السلام خاندان والو! تاسو داسې عمل کوئ. چه د هغې نه شکر ظاهریږي. او زما په بندګانو کښې کم

خلق دی، چه شکر گذار دی. بیا چه کله مونږ د سلیمان علیه السلام د مرگ فیصله اوکړه، نو هغې جناتو ته دهغه د مرگ خبر هیڅ ورنکړو، بلکه د زمکې چینجي ورکړو چه دهغوی امسا ئې خوړله. پس چه کله هغه راپریوتلو، نو جناتو ته معلومه شوه، چه که هغوی د غیبو علم بالدې پوهیدې نو دې ذلت والا تکلیف کښې به مبتلا نه اوسیدل.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ مِنَّا فَضْلًا﴾ [او مونږ داود] ؑ [ته دخپل طرف نه لوئ نعمت ورکړې وو] چنانچه مونږ غرونوته حکم کړې وو چه ﴿يٰجِبَالُ اَوِّبِيْ مَعَهٗ﴾ [اے غرونو د داود] ؑ [سره باربار تسبیح کوئ] یعنی کله چه دې په ذکر کښې مشغول وی تاسو هم ددهٔ سره ملگری کیږی [او] دغه شان ﴿وَالطَّيْرَ﴾ [د هوا مارغانوته هم حکم وکړو] چه ددهٔ سره تسبیح کوئ لکه چه الله تعالی فرمائی [اِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهٗ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْاِشْرَاقِ ۝ وَالطَّيْرَ مَحْشُوْرَةً الخ] ([1]) شاید په دې کښې یوحکمت داوی چه ده ته به په ذکر کولو خوشحالی راتلی او داهم حکمت وی چه ددهٔ یوه معجزه به ظاهریږی او غالبا داتسبیح به داسې وی چه اوریدونکې پرې هم پوهیږی ورنه نه اوریدونکې تسبیح خوعامه ده په دې کښې د داود ؑ سره دملگری کیدو څه تخصیص دې لکه چه الله تعالی فرمائی [وان من شئ الا یسبح بحمده ولکن لا تفقهون تسبیحهم] ([2]) [او] یو نعمت مو دا ورکړو چه ﴿وَاَلَنَّا لَهُ الْحَدِيْدَ ۝﴾ مونږ ددهٔ دپاره او سپنې لره] په مثل د مومو [نرمه کړه] او داحکم موورکړو ﴿اَنِ اعْمَلْ سٰبِغٰتٍ وَّقَدِّرْ فِي السَّرْدِ﴾ [چه ته] ددې اوسپنې نه بنې [پوره زغرې جوړوه او] دکړوپه [جوړ راوستوکښې] مناسبه [اندازه ساته او] لکه چه مونږ تاته نعمتونه درکړی دی دهغوی په شکر کښې ﴿وَاعْمَلُوْا صَالِحًا﴾ [تاسوټول] یعنی داود ؑ او ددهٔ متعلقین [نیک کارکوئ ﴿اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝﴾ بیشکه زهٔ ستاسو ټولو عملونو لره وینم] په دې وجه درعایت د حدودو پوره اهتمام کوئ ﴿وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّرَوَاحُهَا شَهْرٌ﴾ [او سلیمان] ؑ [دپاره مونږ هوا مسخره کړه چه ددې] هوا [دصبا تلل دپوره میاشتې په مزل باند وو او] دغه شان [ددې دماښام تلل دپوره میاشتې په مزل وو] یعنی دغې هوابه سلیمان ؑ لره دومره لرې لرې بوتلو لکه چه الله تعالی فرمائیلی دی [وسخرناله الریح تجری بامره] ([3]) [او] یو نعمت موده ته دا ورکړو چه ﴿وَاَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ﴾ [مونږ ددهٔ دپاره دتانبې چینه وبهیوله] یعنی تانبه مود دې په کان کښې نرمه بهیدونکې کړه چه ددې نه په الاتو جوړولو کښې بغیر دسامان په کښې اسانی وی بیابه دغه جم کیده داهم یوه معجزه ده [او] یو نعمت م داپرې کړې وو چه مونږ پیریان د دهٔ تابع کړی وو چنانچه ﴿وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِاِذْنِ رَبِّهٖ﴾ [په پیریانو کښې ځنې هغه وو چه ددهٔ په وړاند به ئې] قسم قسم [کارونه کول او د دوی د رب د حکم] تسخیری [سره] یعنی چونکه پروردگار مسخر کړی وو [او] دتسخیری حکم سره تشریعی حکم هم سره د وعید دا ورکړې شوې وو ﴿وَمَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ

---

[1]) ترجمه: مونږه غرونو ته حکم کړے وو چه دوی سره سحراو ماښام تسبیح وایې او کوم پرندے چه راجع شوے وی هغه ته هم.

[2]) او کوم یو څیز هم داسے نه دے چه دهغې ذات پاک نه بیانو لیکن تاسو خلق د هغوی پاک بیانولو باندے نه پوهیږی.

[3]) پس مونږ هوا هغه تابع کړه او هغه د دوی حکم سره چرته چه اوغوښتل په نرمی سره چلیدله.

Scanned with Ca

عَنْ اَمْرِنَا﴾[چه په دوی کښې کوم سرې زمونږد] دي [حکم نه] چه دسليمان ﷺ اطاعت کوي [مخ واړوي] يعنى په تسليم او انقياد سره کار نه کوی اگر چه په وجه دتسخيرسليمان ﷺ د دوی نه جبرا په کار اخستوقادر وی لکه چه دبيگاريانونه کار اخستې شي نو ﴿نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ﴾[مونږ به هغه ته] په اخرت کښې [د دزوخ عذاب وڅکوو] ددې نه داهم معلومه شوه چه څوك په تسليم او انقياد سره کاروکړي او پوره انقياد دادې چه ايمان هم اختيار کړې ځکه چه هرنبی خپلو محکومينوته ددې امرکوی نو بغيرددې انقياد نشته پس نچوړ داشو چه کوم پيرې ايمان او اطاعت اختيار کړی هغه به د دوزخ دعذاب نه محفوظ وی لکه چه مقتضا دايمان ده اوس وړاند هغه کارونه ښائي په کومو چه پيريان ماموره وو ﴿يَعْمَلُوْنَ لَهٗ مَا يَشَآءُ﴾[يعنی هغه پيريانويه د دهٔ دپاره هغه هغه څيزونه جوړول کوم چه به دوی ته] جوړول [منظور وو﴿مِنْ مَّحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ﴾ لوئ لوئ ابادئ او تصويرونه او خانکونه] داسې لوئ [لکه حوض ﴿وَقُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ﴾ او] لوئ لوئ [ديگونه چه په يوځائ به پراته وو ښوزولې نه] شو اومونږ دوی ته دا حکم ورکړو چه څنگه مونږ تاسوته نعمتونه هم درکړی دی ﴿اِعْمَلُوْٓا اٰلَ دَاوٗدَ شُكْرًا﴾[اے د داؤد ﷺ [خاندان والو] يعنى سليمان ﷺ او د دهٔ متعلقين [تاسوټول] ددې نعمتونو [په شکريه کښې نيك کارکوئ ﴿وَقَلِيْلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ﴾ او زما په بندگانوکښې شکرگذارکم وی] په دې وجه په دې شکرگذارئ کولو سره چه مقصودی طريقه ئ نيك عمل دې تاسوته به په ديروخلقو امتياز حاصل شي پس په دې جمله کښې تحريض شو په شکر اونيك عمل باند لکه چه داؤد ﷺ ته هم د[اعملوصالحا] حکم شوې وو او دغه شان هلته تسخير دغرونو اومرغانو وو او دلته تسخيرد هوا او پيريانو ذکر شو او هلته اوسپنې لره نرمول وو او دلته تانبې لره غرض په ټول ژوند کښې د سليمان ﷺ په وړاند د پيريانو معامله وه ﴿فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ﴾[بيا چه هرکله مونږ په دهٔ] سليمان ﷺ [باند دمرگ حکم جاری کړو] يعنى انتقال ئ وفرمائيلو [نو] په داسې طورئ مرگ واقع شو چه پيريان ترې نه خبر نه شول هغه داسې چه سليمان ﷺ مرگ ته نزدې همساپه دواړو لاسونو کښې ونيوه د زنې لاندې ولگوله په تخت کښيناستو او په دې حالت کښې ئ روح قبض شواو دغه شان ترټول کال پورې ناست وو پيريانو به دې ناست ليدو او ژوندې به ئ گنړلو دهيڅيا مجال نه وو چه خواله ئ ورشی يا ښه په غورسره ورته وگوری خاصکر چه څه وجه دشبهې نه وی او ژوندې ئ گنړلو بدستورئ کارکولواو﴿مَا دَلَّهُمْ عَلٰى مَوْتِهٖٓ﴾[څه شی دوئ ته ددهٔ د مرگ پته ورنکړه ﴿اِلَّا دَآبَّةُ الْاَرْضِ تَاْكُلُ مِنْسَاَتَهٗ﴾ مگر دمزکې چينجې چه هغه دسليمان] ﷺ [همسا لره خوړله] تردې چه يوه حصه دهمسائ اوخوړه نو هغه همسا راوغورزيده ددې دپريوتو سره سليمان ﷺ هم راپريوتلو ﴿فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ﴾[پس هرکله چه هغه راپريوتو] او دچنجی دخوړلو په اندازه سره معلومه شوه چه د دهٔ د وفات خويوکال وشو [پس پيريانو ته] دخپلې دعوې د غيب دانئ [حقيقت معلوم شو] هغه دا چه﴿اَنْ لَّوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ الْغَيْبَ﴾ [که هغوی په غيبو پوهيدې نو] ترټول کاله پورې [به ﴿مَا لَبِثُوْا فِي الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ﴾ ددې ذلت په مصيبت کښې نه وو پاتې شوی] مراد ترې نه سخت کارونه دی په کومو کښې چه په وجه دمحکوميت ذلت هم وو او دمشقت په وجه مصيبت هم.

Scanned with Ca

## معارف او مسائل

دې نه مخکښې هغه خلقو ته خطاب وو کوم چې د قيامت نه منکر وو. او هغوئ به دا خبره د عقل نه خلاف ګڼړله او انکار به ئې ترې کولو چې دمړ بنده ذره ذره شوې جسم به ګنې بيا راغونډولې شی او په هغې کښې به ژوند پيدا کړې شي. اوس په دې آيت مبارك کښې الله ﷻ ددغې خبرې لرې ګڼړلو لرې کولو دپاره دداسې کار څرګندونه اوکړه چې هغه لره دې خلقو هم محال ګڼړل مثلاً هوا لره د هغوئ د داؤد ﷺ او سليمان ﷺ قيصې ئې په دې وجه بيان کړې چې الله ﷻ دهغوئ ﷺ د لاسونو نه داسې کارونه ئې دحکم تابع جوړول او تانبا لکه د بهيدونکو اوبو جوړول وغيره ، فرمائي چې:

﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُودَ مِنَّا فَضْلًا﴾ [مونږ داؤد ﷺ ته خپل فضل ورکړې وو] دفضل لفظي معنی ده زياتوالې. دې نه مراد هغه خاص صفتونه دی چې هغوئ ته دنورو په نسبت ورکړې شوی وو. الله ﷻ هر نبی ﷺ او پيغمبر ﷺ ته ځينې خاص او جدا صفتونه ورکړی دی کوم چې د هغوئ ﷺ خاص فضيلتونه ګڼړلې شی. د داؤد ﷺ خاص فضيلتونه دا وو چې هغه په يو وخت پيغمبر هم وو او د ټولې دنيا بادشاه هم وو. او الله تعالی ورته داسې ښکلې آواز ورکړې وو چې کله به ئې د الله ﷻ ذکر د زبور تلاوت کولو نو دهوا مارغان به دهغې د آوريدو دپاره راتلل. دغه شان نورې خاص معجزې ئې هم ورکړې وی چې د هغې بيان راروان دې.

﴿يَا جِبَالُ أَوِّبِي﴾ ، ﴿أَوِّبِي﴾ د تاويب نه مشتق دې چې معنی ئې سر دوباره کول او واپس کول دی، مراد دادې چې الله ﷻ غرونو ته حکم ورکړې وو چې داؤد ﷺ کله د الله ﷻ ذکر او تسبيح کوی نو تاسو هم ورسره دغه کلمات وائې. او ابن عباس رضي الله عنهما د ﴿أَوِّبِي﴾ تفسير په ﴿سَبِّحِي﴾ سره کړې دې [وابن کثير] [1].

دغرونو دغه تسبيح هغه نه وو کوم چې ټول مخلوقات په عام طور سره کوی او چې هر چرته په هره زمانه او هروخت کښې جاری وی لکه قرآن عظيم الشان فرمائی چې: ﴿وَإِنْ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَكِنْ لَا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ﴾ [په دنيا کښې داسې هيڅ يو څيز نشته چې د الله ﷻ حمدوثناء تسبيح به نه وائی خو تاسو د هغوئ په تسبيح باندې نه پوهيږئ] دلته د هغې تسبيح بيان دې کوم چې د داؤد ﷺ د معجزې شان لرلو ، نو ښکاره خبره ده چې عام آوريدونکی به پرې هم پوهيدل اودا به ئې آوريدل ګنې دا به معجزه نه وه.

دې نه دا هم معلومه شوه چې د داؤد ﷺ سره د غرونو آواز ملاوول او تسبيح راګرځول د آواز بازګشت يعنی راګرځيدلونکی د آواز په شان ځکه نه وو چې دا خو د کافر او ځناور آواز سره هم کيدې شی. هر کله چې قرآن عظيم الشان دې ته په داؤد ﷺ باندې خپل فضل او انعام اوفرمائيلو نو دا د ګنبت ، کوهی ، اوکمر نقلی آواز نه وو بلکه د غرونو خپل آواز وو.

﴿وَالطَّيْرَ﴾ دا منصوب ځکه دې چې د ﴿سَخَّرْنَا﴾ محذوف مفعول دې [روح] [2] ، معنی ئې داده چې زمونږ مارغان د داؤد ﷺ دپاره مسخر کړی وو ، مراد دادې چې مارغان به هم د داؤد ﷺ په آوريدو په هوا کښې جمع کيدل او ورسره به ئې لکه د غرونو پشان تسبيح هم کولو لکه په يو

---

[1] تفسير ابن کثير ج ٦، ص ٤٩٧

[2] تفسير القرطبي ج ١٦، ص ٢٦٥

Scanned with Ca

بل آیت مبارك كښې راغلي دي چې: ﴿إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ ۝ وَالطَّيْرَ مَحْشُورَةً﴾ [مونږ غرونه داؤد عليه السلام تابع كرځولي وو چې صبا بيګاه به هغوئ سره په تسبيح وئيلو كښې شامليدل او مارغان مو هم تابع كړي وو]

﴿وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ ۝ أَنِ اعْمَلْ سَابِغَاتٍ وَقَدِّرْ فِي السَّرْدِ﴾ دا د دويمې معجزې بيان دې چې مونږ هغوئ دپاره اوسپنه نرمه كړې وه، حسن بصرى رحمه الله، قتاده رحمه الله، اعمش وغيره د تفسر امامانو فرمائيلي دي چې الله ﷻ د معجزې په طور هغوئ دپاره اوسپنه لكه د مومو نرمه كړې وه دهغې د نرمولو دپاره به ورته د اور ضرورت نه پيښيدو او نه به ئې د ټكولو دپاره د ستك او سندان وغيره ضرورت وو. د اوسپنې نرمول ئې ددوئ عليه السلام دپاره څكه كړې وو چې هغوئ عليه السلام ترې په آسانه زغرې جوړې كړې شي او په يو بل آيت مبارك كښې دا هم ذكر شوى دي چې الله ﷻ د زغرو جوړولو كاريګرى هغوئ عليه السلام ته پخپله زده كړې وه لكه فرمائى چې: ﴿وَعَلَّمْنَاهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ﴾ [يعني مونږ هغوئ عليه السلام ته د زغرو جوړولو كاريګرى زده كړې وه] دې آيت مبارك كښې د ﴿قَدِّرْ فِي السَّرْدِ﴾ فرمائيلو مطلب ددغې كاريګرئ د زده كولو مكمل كول دي نو ﴿قَدِّرْ﴾ د تقدير نه مشتق دې چې معنى ئې په يوه اندازه جوړول دي، د ﴿السَّرْدِ﴾ لغوى معنى بونړل [ودل] دي، مطلب دادې چې د زغرې په جوړولو كښې ددې كړئ په سمون او اندازې سره جوړوى داسې دې نه وى چې څه كړئ لوئې او غټې او څه وړې او نرئ نه وى پداشان به مضبوطې هم جوړيږى او ښكلې به هم ښكارى، دا تفسير د عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه منقول دې [ابن كثير] (۱).

**فائده ①**: دې نه دا هم معلومه شوه چې په كاريګرئ كښې د ظاهرى خوشحالئ رعايت ساتل هم غوره څيز دې كوم دپاره چې الله ﷻ خاص هدايت اوفرمائيلو.

**فائده ②**: ځينې حضراتو د ﴿قَدِّرْ فِي السَّرْدِ﴾ تفسير په داسې شان كړې دې چې دلته د ﴿قَدِّرْ﴾ نه مراد اندازه كول دي، يعني وى فرمائيل چې ددې كار دپاره يو معين وخت اندازه كول پكار دي تول اوقات نه دې مصروف كول پكار هسې نه د بادشاهئ او د عبادت په كارونو كښې دې خلل رانشي، ددې تفسير په بنا معلوموه شوه چې كاريګرو او كارندو له هم پكار دي چې هر وخت هم په دغې كار كښې نه اختـه كيږى بلكه څه وخت دې عبادت كولو او معلوماتو حاصلولو دپاره هم اوباسى او په وختونو كښې دې باقاعدګى پيدا كوى [روح المعانى] (۲).

**د كاريګرئ او كاروبار لوئې فضيلت**: دې آيت مبارك نه ثابت شو چې د ضرورى څيزونو ايجاد كول او كاريګرى كول داسې يو ضرورى څيز دې چې الله ﷻ ئې پخپله د تعليم وركولو بندوبست اوفرمائيلو او دائې عظيم الشان پيغمبرانو عليهم السلام ته ورا زده كړل لكه دلته فرمائى چې داؤد عليه السلام ته ئې د زغرو جوړلو كار وراوښودلو او د ﴿وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا﴾ نه ثابت دى چې نوح عليه السلام ته ئې د كشتئ جوړولو كاريګرى اوخودله چې [زمونږ په نګرانئ كښې كشتئ جوړه كړه] مطلب ئې دا دې چې مونږ درته څنګه ښايو هم هغسې جوړه كړه، دغه شان نوور پيغمبرانو عليهم السلام ته هم ځينې كاريګرى خودل د ځينې روايتونو نه ثابت دى د الطب النبوى په نوم سره دحديث امام حافظ شمس الدين ذهبى رحمه الله ته منسوب يو كتاب چاپ شوې دې په هغې كښې يو روايت دا هم نقل

(۱) تفسير ابن كثير: ج ۶، ص ۲۹۷، ۲۹۸، وتفسير روح المعانى: ج ۱۶، ص ۲۶۶
(۲) تفسير روح المعانى (بالاختصار): ج ۱۶، ص ۲۶۶، ۲۶۷

Scanned with Ca

دې چې دانساني ژوند دپاره چې څومره اهم او ضروري کاريګرئ دي لکه مکان جوړول ، کپړه اودل ، وني او درختې اېښودل او نال کول ، د خوراك څيزونه تيارول ، دسورلئ او مال اوړلو راوړلو دپاره د پايو ګاډې جوړول او چلول وغيره دا ټولې ضروري کاريګرئ الله ﷻ د وحی په ذريعه خپلو پيغمبرانو ﷺ ته خودلې وې .

**کاريګرو خلقو ته سپک کتل ګناه ده**: عربو کښې به مختلفو خلقو مختلفې کاريګرئی کولې ، هغې کښې بۀ هيڅ کاريګری هم بده نه شوه ګڼړلې . صرف د کاريګرئی په بنياد به څوك بنده لوئی بنکته نه ګڼړلې . برادرئ به هم ددې په بنياد نه جوړيدلې ، دا رواج خو اوس هندوانو راپيدا کړې دې . نو دوئ سره د ژوند تيرولو په وجه په مسلمانانو هم ددې اثر شوې دې .

**داؤد ﷺ ته د زغرو جوړولو د زده کولو حکمت**: تفسير ابن کثير کښې د حديث دامام حافظ ابن عساکر ﷫ په روايت سره نقل کړې شوی دی چې داؤد ﷺ بۀ د خپل خلافت او خپلې بادشاهئ په زمانه کښې جامې بدلې کړې او په بازارونو وغيره کښې به ګرځيدو او هر قسم خلقو نه به ئې تپوس کولو چې داؤد ﷺ څنګه سړې دې ؟ نو هر چا به هم دا جواب ورکولو چې ډير ښه سړې دې . همدرد او انصاف کوؤنکې بادشاه دې ، ولې چې د دوئ ﷺ په بادشاهئ کښې په هيچا ظلم نه وو ، انصاف عام وو او ټولو خلقو د آرام او مزو ژوند تيرولو د حکومت نه هيچا ته شکايت نه وو .

الله ﷻ ددوئ د خودنې دپاره ذ انسان په شکل کښې يوه فرښته راؤليږله ، کله چې داؤد ﷺ ددغه کار دپاره روان شو نو دغه فرښته هم ورسره ملاؤ شوه . د خپل عادت مطابق ئې د هغې نه هم تپوس اوکړو ، فرښتې ئې ډير تعريف اوکړو تر دې چې وې ئيل چې هغوئ ﷺ د ټولو خلقو نه خپل ځان او خپل امت او رعيت دپاره هم بهتر دی . خو که يو عادت په کښې نه وې نو زيات به کامل وو . داؤد ﷺ ترې ددغې عادت باره کښې تپوس اوکړو چې هغه کوم يو عادت دې ؟ فرښتې ورته اوفرمائيل چې هغه خپل خوراك څکاك او د خپل اهل و عال خرچ ګذاره د مسلمانانو د مال يعنې بيت المال نه اخلی .

ددې په آؤريدو سره داؤد ﷺ د الله ﷻ نه سوال اوکړو چې ما دپاره داسې څه کار زده کړه چې د خپل لاس په مزدورئ سره خپل اودخپل بال بچ ضروريات پوره کوم ، او د مسلمانانو د خدمت او د بادشاهئ په ټولو کارونو باندې څه بدله نه اخلم ، الله ﷻ ددوئ ﷺ دعا قبوله کړه ، دوئ ﷺ ته ئې د زغرو جوړولو کاريګری ور زده کړه . او د پيغمبرئ عزت ئې ورته دا ورکړو چې اوسپنه ئې ددوئ دپاره دمومو پشان نرمه کړه چې دغه کاريګری ورته ډيره آسانه شی چې په دغه کاريګرئ ئې لږ وخت لګی او زيات وخت د الله ﷻ په عبادت او دبادشاهئ په کارونو کښې لګوی[1] .

**مسئله**: کوم د وخت خليفه يا بادشاه چې خپل ټول وخت د بادشاهئ په کارونو کښې تيروی نو د شريعت ترمخه هغه لره د بيت المال نه د ګذارې ضروريات پوره کول جائز دی . ليکن دګذارې بل صورت که پخپله پيدا کولې شی نو هغه ډير بهتر دې ، داؤد ﷺ ته الله ﷻ د ټولې دنيا خزانې ښکاره کړې وې . زر ، جواهرات ، او د ضرورت ټول څيزونه ورسره ډير زيات وو . او د

[1]) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٤٩٨، وتاريخ دمشق لابن عساکر: ج ١٧، ص ٩١

Scanned with Ca

الله ﷻ د طرفه ورته د بیت المال نه پخپلې مرضئ باندې د مال اخستلو اجازت هم ورکړې شوې وو. لکه الله ﷻ پخپله فرمائی چې: ﴿فَامْنُنْ أَوْ أَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ په دې سره ورته الله ﷻ د دوئ ﷺ په خوښه د خرچ کولو اختیار ورکړې وو چې حساب به ئې هم نه وی، مګر د پیغمبرانو ﷺ د اوچت مقام د تقاضا مطابق دا واقعه راپیښه شوه چې دې نه پس به ئې خپلې مزدورئ نه خپل ضرورتونه پوره کول، او په هغې به ئې ګذاره کوله حالانکه هغوئ د ډیر لوئې سلطنت مالکان وو.

کوم علماء کرام چې د تعلیم او تبلیغ خدمت بغیر د څه بدلې نه کوی او هغه قاضیان او مفتیان چې د خلقو په کارونو کښې خپل وخت تیروی دهغوئ هم دا حکم دې چې بیت المال نه خپل خرچ اخستې شی که د ګذارې څه بل داسې صورت راؤباسی چې په دینی خدمت کښې رکاوټ نه جوړیږی نو دا به ډیره غوره وی.

**فائده**: د داؤد ﷺ ددې عمل نه دا ثابته شوه چې د خپلو عملونو او عادتونو باره کښې د نور خلقو رائې په آزادئ او بې تکلفئ سره معلومه کړې شی ولې چې انسان ته خپل عیبونه پخپله نه معلومیږی ځکه د نورو نه یې تحقیق کول پکار دی، امام مالک رحمه الله به هم ددې اهتمام کولو چې دا معلوم کړی چې نور خلق دده په حقله څه رائې ساتی؟

﴿وَلِسُلَيْمَانَ الرِّيحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَرَوَاحُهَا شَهْرٌ﴾ د داؤد ﷺ د خصوصی فضیلتونو او انعامونو بیانولو نه پس د سلیمان ﷺ بیان داسې کیږی چې څنګه الله ﷻ داؤد ﷺ دپاره غرونه او مارغان تابع کړی وو، دغه شان د سلیمان ﷺ دپاره ئې هوا تابع کړځولې وه، هوا به د سلیمان ﷺ هغه تخت پورته کړو په کوم به چې ډیر شمیر کښې درباریان ناست وو او هم د هغوئ په خوښه به ئې د هغوئ ﷺ په حکم څه ځائې ته اوړلو.

حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل چې د هوا د تابع ګرځولو دا معجزه ورته الله ﷻ د هغې عمل بدله کښې ورکړې وه چې یوه ورځ د آسونو په معائنه کښې داسې مصروف وو چې د مازیګر مونځ هم ترې قضا شو، هر کله چې ددې سبب دغه آسونه وو ځکه د غفلت دغه سبب ئې په دې شان ختم کړو چې دهغې قربانئ ئې د ټولو ورکړه [ځکه چې د سلیمان ﷺ په شریعت د غوئی اوښ پشان د آس قربانی هم جائز وه] هر کله چې دا آسونه د سلیمان خپل ځانی ملکیت کښې وو ځکه دبیت المال د نقصان کولو سوال نه پیدا کیږی، او دا اشکال هم نه ولاړیږی چې د څاروؤ قربانی ورکول خپل مال ضائع کول دی، ددې پوره تفصیل به په سورة صاد کښې راځی، مطلب دا چې هر کله سلیمان ﷺ د خپلې سورلئ څاروی قربان کړل الله ﷻ ورته د هغې نه زیاته غوره سورلی ورکړه [قرطبی][1].

حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل چې سلیمان ﷺ به د صبا په وخت د بیت المقدس نه روانیدو د غرمې به په اصطخر کښې ایسار شو، دغرمې روټئ به یې اوخوړه، بیا به د ماسپخین نه پس دغه ځائې نه روان شو نو شپې ته به کابل ته اورسیدو، دبیت المقدس نه تر اصطخر پورې او د اصطخر نه تر کابل پورې دومره مزل دې چې په تیزه سورلئ باندې سور ئې په یو میاشت کښې کولې شی [ابن کثیر][2].

---

[1] تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ١٤، ص ٢١٩

[2] تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٤٩٩

Scanned with Ca

﴿وَأَسَلْنَالَهُ عَيْنَ الْقِطْرِ﴾ [يعنى مونږ د سليمان ﷺ دپاره د تانبې چينه جارى كړه] مطلب دا دې چې الله ﷻ ددوئ دپاره تانبه لكه د اوبو پشان بهيدونكې جوړه كړه چې ګرمه به هم نه وه، مطلب دا چې هغوئ ﷺ به ترې په آسانه لوښى او نور ضروريات جوړول.

دابن عباس رضي الله عنه د روايت مطابق دغه چينه دومره لرې پورې تلې وو چې دا به د درې شوارروزو په مزل جارى وه، دا د يمن زمكه وه. او د مجاهد رحمه الله د روايت مطابق دغه چينه د صنعاء نه شروع شوه او د درې شوارروزو په مزل د اوبو د چينې پشان جارى پاتې شوه، نو د خليل نحوى دفرمائيلو مطابق په آيت مبارك كښې د قطر د لفظ نه مراد ويلې شوې تانبه دهع [قرطبى] ([1]).

﴿وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ دا جمله هم د ﴿سَخَّرْنَا﴾ محذوف سره متعلق ده، معنى ئې داده چې مونږ په پيريانو كښې سليمان ﷺ لره داسې خلق تابع اوګرځول چې دهغوئ په وړاندې د هغوئ كارونه د خپل رب د حكم موافق سرته رسوى.

د ﴿بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ يعنى ددهٔ په وړاندې .لفظ نه دا مطلب راولاړيږى چې صرف دهغوئ په حكم د نوكرانو پشان به د هغوئ په كار كښې اخته وو، داسې تابع كول ترې مراد نه دى څنګه چې د قرآن عظيم الشان مطابق نمر، سپوږمۍ دانسان تابع دى چې هم ددوئ په كار كښې اخته څو دى ليكن د دوئ دحكم لاندې نه چليږى.

**د پيريانو د تابع ګرځولو مسئله** :: دپيريانو د تابع كيدو مطلب دادې چې دا خالص د الله ﷻ په حكم د هغوئ ﷺ تابع ګرځيدلى وو، په څينې روايتونو كښې چې راغلى دى چې پيريان د څينې صحابه كرامو رضي الله عنهم تابع وو، دهغه مطلب هم دادې چې د الله ﷻ په حكم ئې تابع ګرځولى وو او دا دهغوئ رضي الله عنهم كرامت بللې شى په دې كښې د څه بل عمل او وظيفې دخل نه وو څنګه چې علامه شربينى په سراج المنير تفسير كښې ددې آيت مبارك د لاندې د ابى هريره رضي الله عنه، ابى بن كعب رضي الله عنه، معاذ بن جبل رضي الله عنه، عمر بن الخطاب رضي الله عنه، ابى ايوب انصارى رضي الله عنه او زيد بن ثابت رضي الله عنه وغيره ګنړ داسې واقعات ليكلى دى چې دهغې نه دا ثابتيږى چې دغه پيريان خالص د الله ﷻ په حكم د هغوئ تابع ګرځيدلى وو او دهغوئ خدمت به ئې كولو چې خالص د الله ﷻ د فضل او كرم ننداره وه([2]). څنګه چې د سليمان ﷺ هم خالص د الله ﷻ په حكم سره تابع ګرځيدلى وو. عاملان چې په عملياتو سره كوم تسخير كوى د شريعت تر مخه په هغې كښې څه خبره شته چې شرعا ددې څه حكم دې؟، قاضى بدر الدين شبلى حنفى چې د اتمې صدۍ په علماء كرامو كښې دى هغوئ د پيريانو په احكامو باندې يو مستقل كتاب ليكلې دى چې نوم ئې آكام المرجان فى احكام الجان دې، په دې كښې هغوئ ليكلى دى چې د ټولو نه اول د پيريانو نه خدمت سليمان ﷺ اخستې دې چې دا دهغوئ معجزه وه، او اهل فارس جمشيدبن اونجهان ته منسوب كوى چې هغوئ د جناتو نه خدمت اخستې دې، هم د اشان آصف برخيا وغيره دكوم تعلق چې د سليمان ﷺ سره پاتې شوې دې، د هغوئ په باره كښې هم د پيريانو نه د خدمت اخستو واقعات مشهور دى او په مسلمانانو كښې د ټولو نه زيات

---

[1] ) تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ٢٧٠

[2] ) تفسير السراج المنير تحت هذه الآية: ج ١، ص ٣٤٥٢

مشهور ابو نصر احمد بن هلال البکیل او هلال بن وصیف دي دکوم په باره کښې چې د پیریانو نه د خدمت اخستو عجیبه عجیبه واقعات چې بیان شوی دی. هلال بن وصیف په یو مستقل کتاب کښې د پیریانو هغه خبرې راجمع کړې دی کومې ئې چې سلیمان ﷺ ته پیش کړې وې، او د پیریانو هغه لوظونه، قولونه ئې هم په کښې راجمع کړی دی کوم چې سلیمان ﷺ تر اخستی وو.

قاضی بدرالدین په دغې کتاب کښې لیکلی دی چې کوم خلق چې د پیریانو د مسخر کولو عملونه کوی، هغوئ عموما کفریه او شیطانی کلمې استعمالوی او د سحر نه کار اخلی، هغې کفریه شرکیه اعمالو باندې کافران پیریان او شیطانان خوشحالیږی او د رشوت په طور د دغې عاملانو کارونه هم کوی، او هغوئ دغه عملونه اکثر په دې شان کوی چې په پلیتئ یا وینې وغیره سره قرآن عظیم الشان لیکی چې هغې سره دغه کافر جنات او شیاطین خوشحالیږی او ددوئ کار کوی [العیاذبالله]

البته د یو کس ابن الامام په باره کښې لیکلی دی چې دې د خلیفه معتضدبالله په زمانه کښې وو، دغې کس د الله ﷻ د نومونو په ذریعه پیریان تابع کړی وو چې په کښې د شریعت خلاف څه خبره نه وه [آکام المرجان: ۲۰۰].

خلاصه دا شوه چې کله د پیریانو تابع کول بې مقصده او بې عمله خالص د الله ﷻ د طرفه د چا دپاره اوشی لکه چې د سلیمان ﷺ او ځینې صحابه کرامو ﷺ دپاره شوی وو نو هغه معجزه او کرامت کښې داخل دی او د عملیاتو په ذریعه تابع کول که د کفری کلماتو یا عملونو په ذریعه وی نو دغه شان کول کفر دې. او که صرف په ګناه باندې مشتمل وی نو ګناه کبیره ده او په دې کښې د هغې الفاظو استعمالول هم فقهاء کرامو ﷺ په دې وجه ناجائز بللی دی، چې په دې کښې کفری، شرکی یا دګناه کلمات وی، قاضی بدرالدین په آکام المرجان کښې هم ددغې قسمه کلماتو استعمالول ناجائز لیکلی دی. که د پیریاتو تابع کول د الله ﷻ د نومونو یا قرآنی آیتونو په ذریعه وی او په کښې د پلیتئ وغیره د استعمالولو په شان ګناه نه وی نو دا هم په دې شرط جائز دی چې د پیریانو د ضرر نه د ځان یا نور مسلمانان بچ کول او ساتل وی او که پیریانو نه څه فائده اخستل ترې مقصود وی نو هغه ځکه نه رواکیږی چې آزاد بنده غلام جوړول او بې د شرعی حق نه کار ترې اخستل دی چې د شریعت تر مخه حرام دی [والله اعلم].

﴿وَمَنْ يَزِغْ مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيرِ﴾ [مونږ چې پیریانو ته د سلیمان ﷺ د تابعدارئ اوخدمت کولو کوم حکم ورکړې دې که په هغوئ کښې کوم یو کس د هغې نه پښاشی نو ورته به د اور عذاب ورکولې شي] اکثرو مفسرینو دې نه د آخرت عذاب د جهنم مراد اخستې دې اوځینې حضرات فرمائي چې الله ﷻ په دنیا کښې هم په هغوئ باندې یوه فرشته مقرر کړې ده چې کوم پیری به د سلیمان ﷺ په تابعدارئ کښې څه کوتاهی کوله نو هغه به ئې د اور په کروړه وهلو او تابعدارئ ته به ئې مجبورولو [قرطبی][1].

په دې باندې دا شبه کیدې شي چې کله پیریان د اور نه پیدا دی نو په دوئ به د اور د کروړې یا دعذاب څه اثر کیدې شي؟ جواب ئې دادې چې څنګه انسان خلور څیزونو نه پیدا کړې

[1]) تفسیر القرطبی: ج ١٤، ص ٢٧١

شوې دې او غالب ځيز په کښې بناؤره ده خو بيا هم چې د لوټې ياکانړي ګذار پرې اوکړې شي نو د هغې تکليف ورته رسي دغه شان د پيريانو غالب عنصر هم اور دې ، د اور عذاب په هغوئ هم اثر کولې شي بلکه په تيز اور سوځي هم.

﴿يَعْمَلُونَ لَهُ مَا يَشَاءُ مِن مَّحَارِيبَ وَتَمَاثِيلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُورٍ رَّاسِيَاتٍ﴾ په دې آيت مبارك کښې دهغې کارونو تفصيل دې چې سليمان ﷺ به د پيريانو نه اخستل ، محاريب ، دمحراب جمع ده . دا دمکان زياتې او غورې او اعلى حصې ته وئيلې شي ، بادشاهان او غټان خلق چې خپل ځان دپاره دحکومت کمره جوړه کړي هغې ته هم محراب وئيلې شي .او لفظ د محراب د حرب په معنى جنګ نه مشتق دې کوم کس چې خپل ځان دپاره حکومت کمره جوړه کړي هغې ته هم محراب وئيلې شي. دنورو د رسائى نه يې محفوظ ساتلې شي ځوك چې په کښې دخل کوي نو دهغه خلاف جنګ کولې شي. په د ې مناسبت سره د مکان مخصوص حصې ته محراب وئيلې شي . په مساجدو کښې خاص د امام د اودريدو ځائې ته هم په دې بنا محراب وئيلې شي. پخپله مساجدو دپاره هم دمحراب لفظ استعمالولې شي لکه په پخوانئ زمانه کښې محاريب بنى اسرائيل او په اسلام کښې محاريب صحابه کرامو ﷺ نه ددوئ مساجد مراد اخستې شي .

**مسجدونو کښې د محراب دپاره د يو مستقل مکان جوړولو حکم** :: د رسول کريم ﷺ او د خلفاء راشدينو په زمانه کښې امام دپاره په مسجد کښې د ځان له اودريدو ځائې جوړولو رواج نه وو ، هغې نه پس بادشاهانو د خپل ځان دحفاظت دپاره دې ته رواج ورکړو ، بيا په مسلمانانو کښې ددې رواج عام شو ځکه چې امام به ځان له اودريدو نو د يو صف ځائې به ئې بندولو چرته به چې مسجدونه ډير تنګ وو نو د قبلې طرف ديوال کښې دننه ځائې د امام د اودريدو دپاره ځکه جوړول رواج شو چې په مسجد کښې د يوصف زياتې اوشى ، هر کله چې دا رواج په اول زمانه کښې نه وو ځکه ورته ځينو علماء کرامو بدعت وئيلې دى ، شيخ جلال الدين سيوطى ﷫ پدې مسئله باندې د اعلام الارانيب في بدعة المحاريب نوم سره يوه مستقله رساله ليکلې ده خو د تحقيق او صحيح خبره داده چې دغه شان محرابونه د مونځ ګذارو د آسانئ او د مسجدونو د خير دپاره جوړولې شى ، او ددې مقصد سنت ګرځول نه وى چې خلاف کول ئې بد ګڼړلې شى البته که دې سره سنت مقصوده اوګرځولې شى او ددې په خلاف کوونکى باندې ددې بدى وئيل شروع شى نو ددې غلو په وجه بيا محراب جوړول په بدعت کښې داخليږى .

**مسئله** :: چرته چې امام په محراب امامتى ورکوى نو پکار دى چې قدمونه ئې د محراب بهر شا طرفته وى چې دامام او مقتديانو ځائې يو حساب شى ، ګنى دا صورت مکروه او ناجائز دى چې امام صرف په دغه ځان له ځائې کښې ولاړ وى او مقتديان ئې بهر په ځان له ځائې کښې ولاړ وى . ځينې مساجدو کښې دومره فراخ او لوئې محراب جوړولې شى چې د مقتديانو يو لنډ صف هم په کښې ورسره راتلې شى که په هغې کښې امام سره دغه شان يو وړوکې صف هم اودريږى نو څه بديت نشته، چې امام ټول سراسر په محراب کښې ولاړ وى او دغه وړوکې صف هم ورپسې په محراب کښې ولاړ وى ، او نور مقتديان ئې بهر د محراب نه په مسجد کښې ولاړوى نو چونکه د امام او مقتديانو ځائې شريك شونو ځکه په کښې بديت او کراهت نشته.

﴿تَمَاثِيلَ﴾ د تمثال جمع ده ، قاموس كښې ليكلي دي چې د تاء په زير سره تمثال د تصوير معنی وركوي او د تاء په زور سره تمثال مصدر دي ، [1] ابن عربي رحمه الله احكام القرآن كښې فرمائيلي دي چې دتمثال دوه قسمونه دي يو د سادارو ځيزونو تصويرونو اوبل د بې ساه ځيزونو تصويرونه ، دبې ساه ځيزونو تصويرونه هم په دوه قسمه دي ، يو هغه چې غټيږي او لوئيږي لكه ونې ، بوټي وغيره ، او بل هغه چې نه غټيږي او نه لوئيږي ، پيريانو به سليمان عليه السلام دپاره دا ټول قسمونه جوړول ، د تاريخي روايتونو تر مخه دسليمان عليه السلام په تخت باندې د مارغانو تصويرونه هم موجود وو. [2]

**په اسلامي شريعت كښې د سادار ځيزونو تصويرونه جوړول او استعمالول منع دي :** ددې آيت مبارك نه معلوم شو چې د سليمان عليه السلام په شريعت كښې د سادارو ځيزونو تصويرونه جوړول او استعمالول حرام نه وو مگر چونكه پخوانو امتونو كښې دا مشاهده اوشوه چې خلقو به د نيكانو خلقو تصويرونه په خپلو عبادتخانو كښې په دې غرض ايخودل چې دوئ ته په كتو سره د دوئ د عبادت نقشه ئې مخې ته راځي او دهغې په شوق كښې دوئ هم عبادت كوي ، خو څه موده پس خلقو هم ددغې تصويرونو عبادت شروع كړو او بت پرستئ ترې شروع شوه .

خلاصه دا شوه چې په پخوانو امتونو كښې د سادار ځيزونو تصويرونه د بت پرستئ ذريعه جوړ شو ، هر كله چې اسلامي شريعت ، قيامت پورې باقي او جاري لرل الله ﷻ ته منظور دي ، په دې وجه په اسلامي شريعت كښې ددې خاص لحاظ ساتلې شوې دې څنگه چې اصل حرام اود گناه ځيزونه چې حرام او منع گرځولې شوي دي ، دغه شان دغه ذريعې او نزدې اسباب هم د اصل گناهونو پشان اوگرځولې شو او حرام كړې شو . اصل لوئې جرم شرك او بت پرستي ده څكه دا منع كړې شو خو په كومو لارو چې بت پرستي راتلې شوه په هغې باندې هم شرعي پهره كيخودلې شوه او د بت پرستئ ذريعې او نزدې اسباب هم حرام اوگرځولې شو ، دسادار ځيزونو تصويرونه جوړول او نزدې اسباب هم حرام اوگرځولې شو ، د سادار ځيزونو تصويرونه جوړول او استعمالول هم ددې اصولو په بنا باندې حرام اوگرځولې شو نو د رسول كريم ﷺ د صحيحو اومتواترو احاديثو نه ددې حراموالې ثابت دې [3]

دغه شان شراب چې حرام اوگرځولې شو نو د هغې اخستل او خرڅول ددې د اوړلو راوړلو مزدوري دهغې جوړول ټول حرام اوگرځولې شو چې دا دشرابو څكلو ذريعې دي ، غلا كول حرام اوگرځولې شو ، نو د چا په ماك كښې بې اجازته داخليدل بلكه په هغې كښې دننه كتل هم منع دي ، زنا حرامه اوگرځولې شوه نو نامحرمې ته په قصد سره نظر كول هم حرام اوگرځولې شو ، دغه شان نور بې شميره مثالونه هم په اسلامي شريعت كښې موجود دي .

**د تصوير په حراموالي باندې يوه عامه شبه اودهغې جواب :** داوئيلي شي چې د رسول كريم ﷺ په زمانه مباركه كښې په كوم حيثيت سره تصويرونه استعمالولې شو هغه د بت پرستئ ذريعه جوړيدې شوه ، ليكن نن صبا د تصويرونو نه چې څنگه كار اخستې شي ، لكه د ملزمانو

---

[1] ) القاموس المحيط، باب اللام، فصل الميم: ج ۳، ص ١٦٤
[2] ) أحكام القرآن لابن العربي، سورة سبا: ج ٦، ص ٤٥٧
[3] ) د احاديثو تفصيل دپاره: صحيح البخاری، كتاب البيوع، باب بيع التصاوير التی ليست فيها روح-الخ: ج ۱، ص ۲۹٦، وصحيح البخاری، كتاب اللباس، باب التصاوير: ج ۲، ص ۸۸۰

Scanned with Ca

پیژندګلو چې ورته کولې شي ، د تجارتونو خاص مارك پرې کولې شي ، دوستانو ، عزیزانو سره ملاقات ددې په ذريعه کولې شي ، د واقعاتو او حالاتو په تحقيق کښې دې سره مدد وغيره حاصلولې شي ، ځکه د ژوند په ضرورتونو کښې داخل کړې شوی دی . په دې کښې د بت پرستئ او عبادت څه تصور تر لرې لرې پورې نشته هر کله چې دا خطره پاتې نشو نو د منع هم څه ضرورت پاتې کیدل نه دی پکار

جواب ئې دادې چې اول خو دا وئيل هم صحيح نه دی چې نن صبا تصوير د بت پرستئ ذريعه پاتې نشوه ولې چې نن صباهم ډيرې فرقې د خپلو پيشوايانو اومشرانو د تصويرونو عبادت کوی ، اوکوم حکم چې په يو علت باندې بنا وی ،، دا ضروری نه دی چې په هر يو کښې دې هغه موجود وی . دې نه سوا د تصوير د منع کولو هم دا يوسبب نه دې چې دا د بت پرستئ ذريعه ده بلکه په صحيح احاديثو کښې ددې نور وجوهات بيان کړې شوی دی ، لکه دا چې تصويرونه جوړول د الله ﷻ د خاص صفت نقل کول دی .

مصور ، د الله ﷻ يو مبارك نوم دې چې د صورت جوړول صرف او صرف هم دهغه لوئې ذات سره ښائی او هم د هغه په قدرت کښې دی ، چې دمخلوقاتو په زرګونو جنسونه او قسمونه دی او د هر نوعې په کروړونو غړی دی ، په هغې کښې د يو شکل بالکل دبل شان نه وی ، انسان ته اوګورئی د نر او ښځې شکلونه خو پريږده چې خپل مينځ کښې سره بالکل نه ملاويږی . بلکه په زناناؤ کښې کروړونه کسان د يو بل پشان نه وی ، د دوئ په مينځ کښې داسې ښکاره بيلتونونه وی چې ليدونکو ته د څه غور فکر کولو نه بغير بيلتوون ښکاريږی ، داسې صورت او شکل جوړول د بل چا په قدرت کښې کيدې شی ؟ کوم انسان چې د يو سادار يا تصوير يا نقشه يا په رنګ سره ددې تصوير جوړوی هغه ګويا کښې په عملی طور سره ددې دعويدار دې چې هغه هم شکل جوړولې شی ، ځکه د صحيح بخاری وغيره په احاديثو کښې دی چې دقيامت په ورځ به تصوير جوړونکی ته اووئيلې شي چې هر کله تاسو په د نيا کښې زما نقل کولو نو هغه مکمل کړئی که وس مو وی ، ولې چې مونږ يوازې ستاسو شکل نه دې جوړ کړې ، په دې کښې مو روح هم ا چولې دې ، او که ستاسو دداسې پيدا کولو دعوی ده نو په خپل جوړ کړی تصوير کښې روح هم واچوئی کنه[1] ؟

د تصوير د منع کولو يو دبله وجه په صحيح احاديثو کښې داهم راغلې ده چې د الله ﷻ فرښتې تصوير او سپی نه کرکه کوی ، په کوم کور کښې چې دا خيزونه وی په هغې کښې د رحمت فرښتې نه داخليږی[2] چې د هغې په سبب ددغې کور برکت او نورانيت ختميږی ، ددغې کور خلقو ته د عبادت او تابعدارئ توفيق کم ورکولې شي او دلته دا مقوله هم غلطه نه ده چې خانه خالی راديومي ګيرد په خالی کور باندې پيريان قبضه کوی ، کله چې يو کور د رحمت د فرښتو نه خالی وی نو شيطان په هغې قبضه کوی او دهغې د اوسيدونکو په زړونو کښې وسوسې اچوی او بيا په کښې د ګناهونو ارادې راولاړيږی .

خينې روايتونو دحديث پاك کښې يو سبب دا هم راغلې دې چې تصويرونه په دنيا کښې د ضرورت نه زيات زينت وی ، په دې زمانه کښې څنګه چې دتصويرنو نه ګڼړې فائدې

[1] ) صحيح البخاری، کتاب اللباس، باب عذاب المصورين---الخ: ج ۲،ص ۸۸۱
[2] ) صحيح البخاری، کتاب اللباس، باب لا يدخل الملائکة بيتا فيه صورة: ج ۲، ص ۸۸۱

Scanned with Ca

حاصلولې شی دغه شان ترې زرګونه جرمونه اوبې حیاییٔ هم راولاړیږی ، غرض دا چې اسلامي شریعت صرف د یوې وجې نه نه بلکه په ډیرو وجوهاتو سره تصویرونه جوړول او استعمالول حرام ګرځولی دی اوس په یو خاص صورت کښې فرض کړئی چې دغه اسباب اتفاقی طور سره موجود نه وی نو صرف په دغې اتفاقی واقعې سره شرعی قانون نشی بدلیدې.

صحیح بخاری او مسلم شریف کښې د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿اشدالناس عذابا یوم القیامة المصورون﴾ د قیامت په ورځ به د ټولو نه په سخت عذاب کښې تصویر جوړونکی وی[1].

دحدیث مبارك د ځینې روایتونو تر مخه رسول کریم ﷺ په تصویر جوړونکو باندې لعنت وئیلې دې او په صحیحینو کښې د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل: ﴿کل مصورفی النار[الحدیث]﴾ هر تصویر جوړونکې به په اوردجهنم کښې وی[2].

ددې مسئلې باره کښې د احادیثو روایتونه اود پخوانو بزرګانو د عملی ژوند ثبوتونه احقر په تفصیل سره په خپلې رساله التصویر لاحکام التصویر کښې راجمع کړی دی او د خلقو د شبهو جوابونه هم په دې کښې په تفصیل سره موجود دی که ضرورت وی نو کتلې شئ.

**د فوټو تصویر هم تصویر دې** :: د ځنیې خلقو دا وئیل بالکل غلط دی چې فوټو تصویر نه دې ځکه چې هغه خو سیورې او عکس دې کوم چې لکه په شیشه او په اوبو کښې ښکاری هغې ته چې کتل جائز شو نو خپل فوټو تصویر ته هم جائز شو ، جواب واضح دې چې عکس او سیورې تر هغې عکس دې تر څو چې هغه په څه طریقه مستقل ولاړ نه وی ، د فوټو تفصیلی بحث په رسالهٔ [التصویر] کښې لیکلې شوې دې

﴿جِفَانٍ﴾ د جنفة جمع ده داوبو لوئې لوښی وغیر ته وئیلې شی . ﴿كَالْجَوَابِ﴾ د جابیة جمع ده ، وړوکی تالاؤ ته وئیلې شی . مراد دادې چې دومره لوئې لوښی به جوړول چې د وړوکی تالاؤ هومره اوبه به په کښې ځائې کیدې . ﴿قُدُورٍ﴾ د قدر جمع ده معنی ئې کټوئی ده .

﴿رَّاسِيَاتٍ﴾[پخپل ځائې ولاړ پراته] مراد دادې چې دومره درانه او لوئې دیګونه به جوړول چې چا به د ځائې نه نه شو خوزولې ، کیدې شی چې دغه کټوئې د کاڼړی نه جوړې شوی هم په کاڼړی کښې ښخې کړې شوې وی او د ځائې نه چا نه شوی خوزولې د تفسیر امام ضحاك رحمه الله د ﴿قُدُورٍ رَّاسِيَاتٍ﴾ هم دا تفسیر کړې دې[3].

﴿اعْمَلُوا آلَ دَاوُدَ شُكْرًا ۚ وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ﴾ هرکله چې داؤد علیه السلام باندې الله جل جلاله د خپل خاص فضل او انعاماتو بارانونه کړی وو نو د هغې د بیانولو نه پس ئې په دې آیت مبارك کښې د شکر کولو حکم ورکړې دې .

**د شکر حقیقت او د هغې احکام** قرطبی رحمه الله فرمائی چې دشکرحقیقت دادې چې ددې اقرار اوکړی چې دانعمت فلانی انعام کوونکی راکړې دې او بیا بیې د هغه په فرمانبردارئ او

[1] صحیح البخاری، کتاب اللباس، باب عذاب المصورین یوم القیامة: ج ۲، ص۸۸۱، وصحیح البخاری، کتاب اللباس، باب لا تدخل الملائکة بیتا الخ: ج ۲، ص ۲۰۲

[2] صحیح مسلم، کتاب اللباس، باب لا تدخل الملائکة--الخ: ج ۲، ص ۲۰۲

[3] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٥٠٠، وتفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ١٤، ص ٢٧٦

Scanned with Ca

تابعدارئ کښې استعمال کړی ، کنی ددې خلاف استعمالول ئې ناشکری او کفران نعمت بللې شی(¹) د دې نه معلومه شوه چې شکر څنګه په ژبه ادا کولې شی دغه شان په عمل سره هم ادا کولې شی چې دانعام کوؤنکی په تابعدارئ کښې د هغه د مرضئ موافق استعمال کړې شئ ، ابو عبدالرحمان اسلمی رحمه الله فرمائیلی دی چې مونځ شکر دې، روژه شکر دې،او هر نیک کار شکر دې،محمدبن کعب قرظی رحمه الله فرمائی چې شکردتقوی او نیك عمل نوم دې [ابن کثیر رحمه الله](²)

آیت مبارك کښې د ﴿اشکرونی﴾ په ځائې ﴿اِعۡمَلُوۡۤا اٰلَ دَاوٗدَ شُكۡرًا﴾ فرمائیل شاید دې ته اشاره وی چې آل داؤد نه عملی شکر غوښتلې شوې وو ،چنانچه ددغې حکم عملی کولو دپاره د اؤد علیه السلام او سلیمان علیه السلام او دددوئ خاندان په قول او عمل دواړو سره دا صورت اختیار کړې وو چې د دوئ علیه السلام کور به هیڅ وخت د څه عبادت نه خالی نه وو ، وختونه ئې تقسیم کړی وو هر وخت به څوك نه څوك د الله جل جلاله په عبادت کښې اخته وو ، په دې شان د داؤد علیه السلام مصلا به هیڅ وخت د یو مونځ ګذار نه خالی نه پاتې کیدو [ابن کثیر](³).

بخاری او مسلم کښې یو حدیث نقل کړې شوی دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې په مونځونو کښې الله جل جلاله ته ډیر زیات خوښ مونځ د داؤد علیه السلام مونځ دې ، هغوئ علیه السلام به نیمه شپه خوب کولو او بیا به دریمه حصه د شپې په عبادت کښې ولاړ وو ، بیا په آخری شپږمه حصه د شپې کښې اوده کیدل ، او په ټولو روژو کښې الله جل جلاله ته د داؤد علیه السلام روژې زیاتې خوښې دی ، داؤد علیه السلام به ټول کال یوه ورځ روژه او یوه ورځ کوژه وو. [ابن کثیر](⁴).

فضیل رحمه الله نه منقول دی چې کله په داؤد علیه السلام باندې د شکر حکم نازل شو نو هغوئ علیه السلام الله جل جلاله ته عرض او کړو چې ائې زما پروردګاره ! ستا شکر څنګه پوره کولې شم ؟زه که په خوله شکر کوم اوکه په عمل سره نو هغه هم ستا راکړې نعمت دې چې په هغې هم مستقل شکر واجب دې . الله جل جلاله اوفرمائیل چې ﴿الان شکرتنی یاداود﴾ ائې داؤد علیه السلام ! اوس دې زما شکر ادا کړو. ولې چې خپل ځان دې زما دشکر اداکولونه عاجزه اوګڼلو اوددې اقراردې اوکړو.(⁵)

د حکیم ترمذی رحمه الله او امام ابی بکر جصاص رحمه الله په حواله عطاء بن یسار رضی الله عنه روایت اوکړو چې کله دا آیت مبارك نازل شو:

﴿اِعۡمَلُوۡۤا اٰلَ دَاوٗدَ شُكۡرًا﴾ نو رسول کریم صلی الله علیه وسلم منبر ته تشریف راوړو او دا آیت مبارك ئې تلاوت کړو او وې فرمائیل چې کومو دریو کارونو کولو سره د داؤد علیه السلام آل ته فضیلت ورکړې شوې وو ، هغه چې نور څوك اختیار کړی نو ورته به هم دغه فضیلتونه حاصل شی ، د صحابه کرامو رضی الله عنهم په تپوس رسول کریم صلی الله علیه وسلم ورته هغه درې کارونه اوخودل . ① یو داچې درضا و غضب په

---

(¹) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٤، ص ٢٧٦

(²) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٠٠

(³) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٠٠

(⁴) صحیح البخاری، کتاب الانبیاء، باب احب الصلاة الی الله صلاة داود...الخ: ج ١،ص ٤٨٦، وصحیح مسلم، کتاب الصیام، باب النهی عن صوم الدهر...الخ: ج ١،ص ٣٦٦

(⁵) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٠١

Scanned with Ca

دوارو حالتونو کښې په انصاف باندې قائم پاتې شي. ② دویم داچې دشته والي او نیستۍ په حالت کښې درمیانه خرچ او ګذران کول اختیار کړي. ③ دریم دا چې په پټه او ښکاره دوارو حالتونو کښې د الله ﷻ نه ویریږي [قرطبی احکام القرآن ا، جصاص ﷺ][1]

﴿وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ﴾ دشکر دحکم او تاکید نه پس یې ددې واقعې اظهار اوکړو چې زما په بندګانو کښې به شکرګذار بندګان کم وي، په دې سره مؤمن ته خبرداري او شوق ورکول دي چې شکر کولو کښې دې سستي نه کوي.

﴿فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ﴾ دلته په آیت مبارک کښې د ﴿مِنسَأَتَهُ﴾ لفظ د همسا معنی ورکوي، ځینې حضرات فرمائي چې دا د حبشو د ژبې لفظ دې، او ځینې فرمائي چې دا عربي ده، ولې چې نساء د لرې کولو او روستو کولو معنی ورکوي ځکه همسا ته ﴿مِنسَأَتَهُ﴾ وئیلې شي، چې دې سره مضر ځیزونه لرې کولې شي، په آیت مبارک کښې د سلیمان ﷺ د وفات عجیبه واقعه چې بیان شوه، دې کښې ډیر عبرتونه او هدایتونه دي.

**دسلیمان ﷺ د مرګ عجیبه واقعه:** په دې واقعه کښې ډیر هدایات دي. مثلا دا چې سلیمان ﷺ ته داسې بې مثله حکومت او سلطنت حاصل وو چې صرف په ټوله دنیا باندې نه وو بلکه په جناتو او مارغانو او هوا باندې هم د هغوئ ﷺ حکومت وو. خو سره ددې هم هغوئ ﷺ ته د مرګ نه خلاصي نه وو، او دا مرګ خو په مقرر وخت راتلونکې وو، دبیت المقدس تعمیر چې داؤد ﷺ شروع کړې وو، بیا سلیمان ﷺ دا مکمل کړو. په دې کښې څه تعمیري کار پاتې وو اودا تعمیري کار جناتو ته حواله شوې وو. او د هغوئ په طبیعت کښې سرکشي غالبه وه. دسلیمان ﷺ د ویرې بۀ یې کار کولو. که چرې د سلیمان ﷺ د وفات علم دوئ ته اوشي نو زر به کار پریږدي او تعمیر به پاتې شي. ځکه سلیمان ﷺ د الله ﷻ په حکم سره داسې انتظام اوکړو چې کله یې د مرګ وخت رانزدې شو نو د مرګ تیاري یې اوکړه او په خپل محراب کښې داخل شو او دا د صفا شیشې څخه جوړ شوې وؤ. د بهر څخه به ورته د دننه ټول هر څه ښکاریدل او دخپل معمول مطابق یې یوه همسا واخستله او عبادت دپاره اودریدل اوتیک لګولو دپاره ئې یوه همسا خان سره اودروله چې په وفات کیدوې سره هم همسا په خپل ځائې باندې ولاړه وي. د سلیمان ﷺ روح په مقرر وخت باندې قبض کړې شو. خو دخپلې همسا په ادانړه پخپل ځائې باندې داسې په نظر راتلو چې په عبادت کښې مشغول دۀ، پیریان د ویرې نه نزدې ورتلې نشو، سلیمان ﷺ یې ژوندې ګڼړلو او په کار کښې اخته وو. تر دې چې یو کال تیر شو او د بیت المقدس د تعمیر باقي کار مکمل شو. الله ﷻ په دغې همسا وینه اولګول، قرآن کریم دې ته دابة الارض وئیلی دی. دا د سلیمان ﷺ په همسا باندې مسلط کړې شو، وینو دا لرګې اوخوړو او کمزور یې کړو، کله چې د همسا سهارا ختمه شوه نو سلیمان ﷺ غوزار شو. نو دغه وخت پرې جنات خبر شو چې وفات شوې دې.

جناتو ته الله ﷻ د لرې لرې فاصلو په ډیر لږ وخت کښې د کولو قوت ورکړې دې، هغوئ به دداسې ډیرو حالاتو او واقعاتو څخه خبریدل کوم چې به انسان ته معلوم نه وو. کله چې به

---

[1] تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ٤٧٦، وأحكام القرآن للجصاص: ج ٨، ص ٣٤٤، وكنز العمال، رقم الحديث: ٤٣٢٢٤

Scanned with CamScanner

هغوئ انسانانو ته ددې واقعاتو خبر ورکولو نو انسان به دا گنړل چې دا دغیب خبر دې او پیریانو ته هم علم غیب حاصل دې که دا دعوی پخپله د جناتو وی نو هم څه لرې خبره نه ده.
څکه د مرګ دغه عجیبه واقعې سره پته اولګیده او پخپله پیرانو ته هم دا معلومات اوشوا وټولو انسانانو ته هم چې پیریان هم علم غیب نه لری. څکه که دوئ ته علم غیب وې نو یو کال مخکښې به د سلیمان ﷺ په وفات کیدو خبر شوی وو اودا یو کال محنت اومشقت چې یې اوکړو او دوئ ﷺ ئې ژوندی ګنړل نو ددې څخه به بچ شوی وو د آیت مبارك په آخره جمله کښې هم ددې بیان دې
﴿فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ أَنْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوا فِي الْعَذَابِ الْمُهِينِ ﴾ دلته د عذاب مهین څخه مراد دبیت المقدس دتعمیر کولو محنت او مشقت وو چې سلیمان ﷺ ورته حواله کړې وو. د مرګ دا عجیبه واقعه خو پخپله قرآن عظیم الشان په دې آیت مبارك کښې بیان کړه ، پاتې تفصیل د تفسیر د امامانو ابن عباس رضی الله عنه وغیره څخه منقول دې چې په تفسیر ابن کثیر رحمه الله کښې بیان شوې دې.[1]
ددې عجیبهٔ واقعې څخه دا عبرت هم حاصل شو چې مرګ څخه هیچا لره هم خلاصې نشته دې ، او دا ترې هم ثابته شوه چې الله ﷻ یو کار سرته رسول غواړی نو هغې دپاره انتظام هم کولې شی ددنیا ټول اسباب او آلې تر هغه وخته پورې کار کولې شی تر کومې چې الله ﷻ ئې غواړی کله چې نه غواړی نو کار پرېږدی ، د همسا ټیك د وینو په ذریعه ختم کړې شو او په دې سره ئې داهم ختم کړل او دا هم د سلیمان ﷺ د وفات نه پس خطره وه چې هسې نه خلق د جناتو دا حیرت انګیز عملونه او کارنامې او په ظاهره د غیب د څیزونو څخه خبریدل وغیره چې اوګوری نو پیریان خپل معبودان جوړ نه کړی .دا خطره هم دې واقعې سره ختمه شوه. هر چاته د جناتو بې بسی او بې خبری معلومه شوه.
ددې تقریر څخه معلومه شوه چې سلیمان ﷺ د خپل وفات په وخت دغه خاص طریقه د دوؤ وجو اختیار کړې وه. اول دا چې د بیت المقدس د تعمیر نیمګړې کار سر ته اورسوی دویم دا چې دې خلقو ته د پیرانو بې خبری او بې وسی واضح شی. چې د عبادت کولو خطره ئې ورکه شی [قرطبی].[2]
امام نسائی په صحیح اسناد سره د عبدالله بن عمرو رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل : کله چې سلیمان ﷺ د بیت المقدس د آبادولو نه فارغ شو نو الله ﷻ نه یې څو دعا ګانې اوغوښتلې چې قبولې شوې ، په هغې کښې ئې یوه دعا دا کړې وه چې څوك دې مسجد ته خالص د مونځ په نیت داخل شی نو د وتلو نه مخکښې مخکښې هغه د ټولو ګناهونو نه داسې پاك کړه لکه څنګه چې د مور نه د پیدا کیدو په وخت چې د ګناه نه پاك وو.[3]

[1] ) تفسير ابن كثير: ج ٦، ص ٥٠٢، وتفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٤، ص ٢٧٨، ٢٧٩
[2] ) تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ٢٧٨
[3] ) سنن النسائي، كتاب المساجد، باب فضل المسجد الاقصى والصلاة فيه: ج ١، ص ١١٢، ١١٣

Scanned with Ca

اود سدي رحمه الله په روايت کښې دا هم شته دې چې کله سليمان عليه السلام د بيت المقدس د تعمير نه فارغه شو نو د شکرانې په طور ئې دولس زره غوا ګانې او غوئې او شل زره چيلئ ، چيلې ئې خيرات کړل . او خلقو ته ئې د خوراك عام دعوت ورکړو . په دغه ورځ ئې خوشحالي اوکړه په صخره بيت المقدس باندې اودريدل او دا دعاګانې ئې اوغوښتې چې :

ائې الله ﷻ ! هم تا طاقت راکړو او ما د بيت المقدس تعمير سرته او رسولو . اوماته توفيق راکړې چې ددغې نعمت شکر ادا کړم . او بيا مې په خپل دين باندې وفات کړې . دهدايت نه پس زما زړهٔ بالکل صحيح سلامت په نيغه لار باندې لرې ، اودا عرض ئې اوکړو چې څوك دې مسجد ته خالص د مونځ دپاره داخل شي نوهغه دپاره د الله ﷻ نه پنځه څيزونه غوارم .

① چې څوك د توبې په خيال ورته داخل شوې وی نو توبه ئې قبوله کړې او ګناهونه ئې معاف کړې . ② دويم دا چې څوك د څه ويرې نه دې ته ورداخل شی نو د خطرو نه ورته امن او خلاصې ورکړې . ③ دريم دا چې دې ته داخليدونکی رنځور ته شفا ورکړې .

④ څلورم دا چې دې ته ورداخليدونکې نيستمن ، شتمن کړې .

⑤ پنځم دا چې دې کښې ورداخليدونکې ته هغې پورې خپل نظر د رحمت اومهربانئ کښې لرې ترڅوچې په کښې وی ، سوادهغه چاته چې دبې دينئ ياظلم په کارکښې مشغول وی [قرطبی] ([1])

دې حديث پاك نه معلوميږی چې د بيت المقدس د تعمير کار د سليمان عليه السلام په ژوند کښې مکمل شوې وو ، د روميی بيان نه معلوميده چې د دوئ د وفات په وخت هم دتعمير لا څه کار پاتې وو ، خو دا ورسره بې سمونه څکه نه دی چې لويولويو تعميرونو کښې دکار مکمل کيدو نه پس هم څه نا څه پاتې وی چې دهغې د مکمل کولو دپاره به سليمان عليه السلام دغه تدابير اختيار کړې وی .

د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چې د وفات نه پس سليمان عليه السلام د همسا په ټيك بيا هم يو کال ولاړ وو [قرطبی] ([2]) ، او څينې روايتونو کښې راغلی دی چې کله جناتو ته دامعلومه شوه چې د سليمان عليه السلام د مرګ ډير وخت شوې دې خو مونږ بې خبره وو نو ددې معلومولو دپاره يې دا تدبير اختيار کړو چې په يو لرګی باندې وينئ پريخودل دهغې د يو شواروز دخوراك نه ئې دا اندازه اولګوله چې په عصا ئې سليمانی باندې يې يو کال تير شوې دې .

**فائده:** بغوی رحمه الله د تاريخ د علماء په حواله ليکی چې سليمان عليه السلام عمر درې پنځوس کاله وو ، د ديارلسو کالو په عمر کښې يې د سلطنت او حکومت کولو کار شروع کړو ، د بيت المقدس تعمير ئې د سلطنت په څلورم کال شروع کړې وو [مظهری و قرطبی] ([3])

| لَقَدْ كَانَ | لِسَبَاٍ | فِىْ مَسْكَنِهِمْ | اٰيَةٌ |
|---|---|---|---|
| په تحقيق سره وه | دپاره دسبا قوم | په کورونو دهغوئ کښی | نښنه |
| ............ بيشکه دسبا دقوم دپاره ددوئ په آبادئ کښې [دالله ﷻ] نښې وې | | | چې |

[1] تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ٢٨١، ٢٨٢

[2] تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ٢٨١، ٢٨٦

[3] تفسير المظهري: ج ٨، ص ١٨، وتفسير البغوى تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٣٩٢

Scanned with Ca

جَنَّتٰنِ عَنْ يَّمِيْنٍ وَّشِمَالٍ ۬ كُلُوْا مِنْ رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوْا

دوه باغونه | ښي طرفته | او ګس طرفته | خورئ | درزق | درب خپل نه | او شکر اوباسئ

دي ښي او ګس طرفته دوه باغونه اخواره او و [اجازت ووچي] ادرکړي رزق خورئ [ او دهغه شکر اوباسئ

لَهٗ ؕ بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَّرَبٌّ غَفُوْرٌ ﴿۱۵﴾ فَاَعْرَضُوْا فَاَرْسَلْنَا

دهغه | وطن دي | پاک | او رب دي | ښښونکي | پس مخ واړوو هغوئ | پس اوليږو مونږه

دا [استاسو ښار] پاکيزه ښار دي [او استاسو رب] ښښونکي رب دي انو هغوئ زمونږ دحکم نه مخ واړولو نو مونږه په

عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ وَبَدَّلْنٰهُمْ بِجَنَّتَيْهِمْ

په هغوئ باندي | سيلاب دبند | او بدل ورکړو مونږه هغوئ ته | دووه باغونو دهغوئ سره |

هغوي باندي دزور سيلاب راپريښودو [ او دواړو اړخونو دا ګورو ] باغونو په بدل کښي مو ورته داسي باغونه

جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَيْ اُكُلٍ خَمْطٍ وَّاَثْلٍ وَّشَيْءٍ مِّنْ سِدْرٍ

دوه باغونه نور | خاوندان | دميوي | بي مزي [ترخي] | او دجاوکي وني | او څه قدرله | دبيري نه |

ورکړل | چي بي خونده ميوي او غزونه اولږي غونډي د بيرو جاري په کښي

قَلِيْلٍ ﴿۱۶﴾ ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِمَا كَفَرُوْا ؕ

لږ | دا عذاب | بدله ورکړه مونږه هغوئ له | په سبب دهغي | چي کفر ئي اوکړو

ولاړي وي | دا مو وررته د ناشکرئ بدله ورکړه | اومونږ داسي سزاګاني صرف

وَهَلْ نُجٰزِيْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ ﴿۱۷﴾ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ

او جزا نه ورکوو مونږه | مګر | ناشکره ته | او اباد کړي وو مونږه | په منځ دهغوئ کښي |

ناشکره خلقو ته ورکوو | او مونږ دهغوئ د ملک او د هغو کلو

وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا قُرًى ظَاهِرَةً

او په منځ دکلو کښي | هغه کلو کښي | چي برکت کيښودي وو مونږه | په هغي کښي | کلي ښکاره

ترمينځه چي برکتونه مو په کښي اچولي وو نور ډير کلي اباد کړي وو | چي ښکاره پراته وو

وَّقَدَّرْنَا فِيْهَا السَّيْرَ ؕ سِيْرُوْا فِيْهَا لَيَالِيَ وَاَيَّامًا

او په اندازه کړي وو مونږ | په هغي کښي | مزل | خي راځئ | په دي کښي | دشپې | او دورځي

اوپه هغي کښي مو دتګ راتګ [ اسمې پخې ] اندازې مقرر کړي وي | چي بي غمه په کښي شپه او ورځ

اٰمِنِيْنَ ﴿۱۸﴾ فَقَالُوْا رَبَّنَا بٰعِدْ بَيْنَ اَسْفَارِنَا

په امن سره | نو او وئيل هغوئ | اے ربه زمونږه | لري والي پيدا کړه | په منځ | دسفرونو زمونږ کښي

تګ راتګ کوئ | نو هغوئ او وئيل چي اے زمونږه ربه ! زمونږ دا سفري لږي اوږدي کړه

وَظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ وَمَزَّقْنٰهُمْ

اوظلم اوکړو هغوئ | په ځانونو خپلو باندي | پس جوړ کړل مونږه هغوئ | قيصي | او خوارا کړل مونږه هغوئ

اوپه خپل ځان ئي زياتي اوکړو | نو مونږ تري نه قيصئ جوړي کړي | اوخواره واره موکړل

Scanned with Ca

| كُلَّ مُمَزَّقٍ ؕ | اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ | لَاٰیٰتٍ | لِّكُلِّ صَبَّارٍ | شَكُوْرٍ ⑲ |
|---|---|---|---|---|
| په پوره خورولو سره | بیشکه په دې کښې | نخښې دي | دپاره دهر صبر کونکي | شکر ایستونکي |

| په دې واقعه کښې هر صبر کونکي او شکر ګذار انسان دپاره [دعبرت] نخښې دي |
|---|

**آسان ترجمه قرآن**

حقیقت دادې، چه د قوم سبا دپاره خپله په هغه ځائې کښې یوه لنښه موجود وه، کوم ځائې چه هغوی اوسیدل ښې او کس دواړو طرفونو ته د باغونو دوه سلسلې وې، د خپل پروردګار درکړې شوې رزق خورئ، او دهغه شکر ادا کوئ یو خو ښهر بهترین دې، او دویم پروردګار بخونکې دې. بیا هم هغوی (د هدایت نه) مخ واړولو، نو مونږ په هغوی باندې بند والا سیلاب راپریخودو، او دهغوی دواړو طرفونو ته باغونه مو داسې دوه باغونو سره بدل کړل، چه په ـبـے خوندہ میوؤ، د غزانو په اونو او په لږو شان بیرو باندې مشتمل وو. دا سزا مونږ هغوی ته ددې دپاره ورکړه چه هغوی د ناشکرئ طریقه اختیار کړې وه، او داسې سزا مونږ بل چاته نه، بلکه لوئې لوئې ناشکرو ته ورکوؤ. او مونږ ددوی په مینځ کښې او د هغې کلو په مینځ کښې، په کومو باندې چه مونږ برکتونه نازل کړې دی داسې کلی اوسولې وو چه د لرې نه به په نظر راتلل، او دهغوی سفر مو په مختلفو مرحلو کښې تقسیم کړې وو (او وئیلې مو وو چه) دغې (کلو) کښې شپه وی او که ورځ، امن او امان سره سفر کوئ. په دې باندې هغوی اووئیل چه: اے زمونږ پروردګاره! زمونږ د سفر د منزلونو په مینځ کښې لرې لرې فاصلې پیدا کړه، او هم دغسې هغوی په خپلو ځانونو باندې ظلم اوکړو چه دهغې په نتیجه کښې مونږ هغوی قصې جوړې کړې، او هغوی مو ټکړې ټکړې کړل، په دانه وانه کولو سره یقیناً په دې واقعه کښې د هر هغه سړی دپاره لوئې لنښې دی، چه ډیر صبر کونکې او ډیر شکر کونکې وی.

**خلاصه تفسیر**

﴿لَقَدْ كَانَ لِسَبَاٍ فِیْ مَسْكَنِهِمْ اٰیَةٌ ۚ﴾[دسبا] دخلقو[دپاره] په خپله [د دوی دوطن په] مجموعی [حالت کښې] دالله تعالی داطاعت دواجبیدو [نښې موجودې وې] د دغونه یوه نښه ﴿جَنَّتٰنِ عَنْ یَّمِیْنٍ وَّشِمَالٍ ۬ؕ﴾[دوه قطارونه وو دباغونو] د دوی دسړك [ښی او کس ته] یعنی د دوی په ټوله علاقه دوه طرف ته متصل باغونه تلی وو چه امدنی په کښې هم زیاته میوه هم دومره قدرچه په ختمولو نه ختمیدله سورې هم رونق هم مونږ د انبیاؤ اودنصیحت کوونکو په ذریعه دوی ته حکم ورکړوچه ﴿كُلُوْا مِنْ رِّزْقِ رَبِّكُمْ﴾[دخپل رب] درکړې [ارزق خورئ او] چه وخورئ نو﴿وَاشْكُرُوْا لَهٗ ؕ﴾ [دهغه شکراداکوئ] یعنی اطاعت کوئ چه دوه قسمه نعمتونه مقتضی د اطاعت دی یو دنیوی چه داوسیدو دپاره﴿بَلْدَةٌ طَیِّبَةٌ وَّرَبٌّ غَفُوْرٌ ⑮﴾ [ښکلې ښاراو] یو اخروی چه په صورت داطاعت کښې چه که څه کوتاهی وشی نو دګناه بخښلو دپاره [بخښنې والاپروردګار دې] پس په داسې مقتضی دمقتضا ترتب ضرور پکاردې [پس] په دې هم ﴿فَاَعْرَضُوْا﴾[هغوی] ددې حکم نه مخ واړولو] شاید داخلق نمر پرست هم وولکه چه دځنو په نسبت په سوره نمل کښې دی [وجدتها وقومها یسجدون للشمس] (١) ﴿فَاَرْسَلْنَا عَلَیْهِمْ سَیْلَ الْعَرِمِ﴾[نو مونږه] په هغوی خپل

١) ترجمه: ما هغه او د هغې قوم اولیدو چې نمر ته ې سجده کوله.

Scanned with Ca

قهر [داسې نازل کړو چه په دوی مو دبند سیلاب راپرېښودو] یعنې کوم سیلاب چه په بندسره منع شوې وو بندمات شو ددغه سیلاب اوبه راخلاصې شوې چه په دې سره د دوی دواړه طرف ته باغونه تباه برباد شول ﴿وَبَدَّلْنٰهُمْ بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَيْ اُكُلٍ خَمْطٍ وَّاَثْلٍ وَّشَيْءٍ مِّنْ سِدْرٍ قَلِيْلٍ۝﴾ [اومونږ دوی ته د دواړه طرفه باغونو په بدله کښې نور دوه باغونه ورکړل چه په هغې کښې داڅیزونه پاتې شول بدمزه میوه او غزونه او لږې قدرې بېرې او هغه هم کلې والې نه ځنګلیانې دځانه شوې چه ازغی په کښې ډیر او په میوه کښې ئ مزه نه وه ﴿ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِمَا كَفَرُوْا ؕ﴾ [دوی ته مونږ داسزا د دوی د ناشکرئ په سبب ورکړه ﴿وَهَلْ نُجٰزِيْۤ اِلَّا الْكَفُوْرَ۝﴾ اومونږ داسې سزا لویو ناشکرو ته ورکوو] ورنه په معمولی خطاګانوخومونږه درګذر کوو او ظاهره ده چه دکفرنه زیاته به بله څه ناشکری وی په کومه کښې چه دوی مبتلا وو [او] ددې ذکر شوی عام نعمت دپاره دکلو نه علاوه یو بل خاص نعمت د سفر متعلق وو هغه دا چه ﴿وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا﴾ [مونږ د دوی او دهغوکلو په مینځ کښې کوم ځائ چه مونږه] په اعتبار دپیداوار وغیره [برکت اېښودې دې ﴿قُرًى ظَاهِرَةً﴾ ډیر کلی اباد کړی وو کوم چه دسړك نه [په نظر راتلل] چه مسافرته په سفر کښې ویره هم نه وی اوکه یو ځائ پاتې کیږی نو چه په تلوکښې هغه ځائ ته ورته تکلیف او تردد هم نه وی ﴿وَقَدَّرْنَا فِيْهَا السَّيْرَ ؕ سِيْرُوْا فِيْهَا لَيَالِيَ وَاَيَّامًا اٰمِنِيْنَ۝﴾ اومونږ ددې کلوپه مینځ کښې د دوی دتللو یوه خاصه اندازه مقرر کړې وه] یعنې دیو کلی نه تربل کلی پورې دتګ په حساب سره داسې مناسب فاصله مو اېښودې وه چه په دوران دسفر کښې دعادت مطابق ارام کوی اوبه وخت باندورته څه ناڅه کلي مخې ته راځی خوراك او ارام په کښې کولې شی [چه بې خوف وخطرپه دې کښې] که غواړئ نو [په شپو او] که وغواړئ نو [په ورځو سفر کوئ] یعنې نه خطره دلارو شوکوونکو وه چه نزدې نزدې کلی وو اونه خطره د اوبو روټئ او توښې دنه موندو چه هرځائ هرسامان ملاویدو [پس] ددې نعمتونو دوی اصل شکرګذاری یعنې دالله تعالی اطاعت ونه کړو او هم داسې ظاهری شکرګذاری یعنې دالله تعالی نعمتونه غنیمت ګنړل او ددې قدر کول دی هغه ئ هم ونه کړو چنانچه ﴿فَقَالُوْا رَبَّنَا﴾ [هغوی ووئیل اے زمونږ پروردګاره] داسې دکلو په نزدې نزدې واقع کیدو سره دسفر مزه مونږ ته نه راځی مزه خو په دې کښې ده چه چرته توښه دلارې ختمه شی چرته تنده راشی او اوبه نه وی شوق دې انتظاردې چرته دغلو ویره ده نوکر پهره ورکوی وسله ئ راخستې وی لکه چه بنی اسرائیلو دمن سلوی نه ستړی شوی وو او دترکاریانو وغیره درخواست ئ کړې وو دارنګ په دې موجوده حالت کښې مونږته دخپل امارت د اظهارموقع هم نه ملاویږی امیر غریب ټول یوشان سفرکوی په دې وجه ئ داسې غوښتل چه ﴿بٰعِدْ بَيْنَ اَسْفَارِنَا﴾ [زمونږ په سفرونو کښې اوږد والې] اوفاصله [جوړ کړې] یعنې دمینځ کلی وران کړې چه په منزلونو کښې فاصله راشی [او] علاوه ددې ناشکرئ نه ﴿وَظَلَمُوْۤا اَنْفُسَهُمْ﴾ [هغوی] نورې نافرمانئ هم وکړې [په خپلوځانونوئې ظلم وکړو ﴿فَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ﴾ پس مونږ دوی لره قصه جوړه کړه ﴿وَمَزَّقْنٰهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ ؕ﴾ او دوی مونږ بالکل دړې وړې کړل] یاخوداسې چه څنولره موهلاك کړل چه دهغوی قصې پاتې شوې اوځنولره مو پریشانه کړل او یاپه حیثیت ددې حالت دنعمتونو هغه ټول افسانه جوړشول یعنې هغه دنعمتونو سامان ترې نه ټول لاړو او یاپه دې معنی چه د دوی حالت عبرت جوړ کړې شو

Scanned with Ca

[اي جعلنهم ذات حكايات يعتبربها] [1] غرض په خپله ددوی کورونه او باغونه هم او د دوی هغه پرله پسې کلي هم ټول وران شول ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ﴾ [بیشکه په دې] قصه [کښې د هرصبر کوونکی شکر کوونکی] یعنی مؤمن [د پاره لوئ لوئ عبرتونه دی].

## معارف او مسائل

﴿لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسْكَنِهِمْ آيَةٌ﴾ د نبوت او رسالت او د قیامت منکران د الله ﷻ په کامل قدرت باندې د خبر ورکولو او د پخوانو پیغمبرانو ﷺ څه د قیاس څخه بهر حیراونکو واقعاتو او معجزو د صادریدو په سلسله کښې رومبې ئې د داؤد ﷺ او سلیمان ﷺ واقعات ذکر کړل. اوس هم په دغه سلسله کښې قوم سبا باندې د الله ﷻ د بې حسابه انعاماتو او بیا د هغوئ د ناشکرئ په وجه پرې د عذاب راتلو بیان شوې دې.

**قوم سبا او په هغوئ باندې د الله تعالی خاص انعامات:** ابن کثیر رحمه الله فرمائیلی دی چې سبا د یمن بادشاهانو او د دغې ملك د استوګنو لقب دې، تبابعه چې د دغې ملك مقتدا او پیشوایان وو هغه هم د دغې قوم سبا خلق وو. ملکهٔ بلقیس چې د هغې واقعه د سلیمان ﷺ سره سورة نمل کښې تیره شوې ده هم ددې قوم سره تعلق لرلو. په دغې قوم باندې الله ﷻ د خپل رزق دروازې خلاصې کړې وې او د هغوئ په ښار کښې ئې د آرام او عیش ټول اسباب ورته برابر کړی وو. د خپلو پیغمبرانو ﷺ په ذریعه ورته د الله ﷻ د توحید او د هغه د احکامو د تابعدارئ په ذریعه د نعمتونو د شکر حکم ورکړې شوې وو، تر څه مودې پورې دغه خلق په مزو کښې پاتې شو او هر قسم آرام او سهولت ورته حاصل وو، په عیش عشرت کښې چې بوښت شو نو الله ﷻ څخه غافله شو بلکه د هغه څخه منکر شو. الله ﷻ د دوئ خبردارئ د پاره دیارلس پیغمبران ﷺ راؤلیږل. هغوئ د دوئ د پوهولو او د دوئ په سمه لار د راوستلو د پاره ډیر کوششونه اوکړل. خو دا خلق د خپلې مستئ او د خپل غفلت څخه منع نشو. الله ﷻ پرې د سیلاب عذاب راوستو چې ښارونه او باغونه وغیره ئې تباه وبرباد شو. [محمد بن اسحاق روایت کړو قرطبي] [2].

امام احمد رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنه څخه دا روایت نقل کوی چې یو کس نبی اکرم ﷺ څخه تپوس اوکړو چې د کوم سبا بیان چې په قرآن عظیم الشان کښې راغلې دې، دا سړی، ښځې یا دزمکې د یو حصې نوم دې؟ نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې دا د یو سړی نوم وو، د دهٔ په اولاد کښې لس هلکان وو، په هغوئ کښې شپږ په یمن کښې آباد شو او څلور شام ته لاړل.

په یمن کښې د پاتې کیدونکو نومونه دادی. ① مدجج ② کنده ③ ازد ④ اشعری ⑤ انمار ⑥ حمیر. ددې هلکانو څخه شپږ قبیلې جوړې شوې چې هم د دوئ په نومونو باندې مشهورې دی. شام کښې د پاتې کیدونکو نومونه دادی. ① لخم ② جذام ③ عامله ④ غسان، ددې قبیلو نومونه هم د دوئ په نومونو باندې مشهورې دی [3]، دا روایت حافظ ابن عبدالبرهم په خپل کتاب القصد والامم بمعرفة انساب العرب والعجم کښې نقل کړې دې.

---

[1]) ترجمه: یعنی مونږ هغوی نه قصے جوړے کړی چه عبرت ترے واغستلے شي۔
[2]) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٠٤
[3]) مسند أحمد، من مسند فروة بن مسیک، رقم الحدیث: ٢٨٤٣٤

د ابن کثیر تحقیق د نسب د علماء په حواله دادې چې دغه لس هلکان دسبا اصلي اوبې واسطه خامن نه وو. په دویم، دریم یا څلورم نسل کښې ئې وو. بیا ئې قبیلې په شام اویمن کښې خورې شوې او هم په دغې نومونو مشهورې شوې، د سبا اصل نوم عبد شمس وو. سبا عبد شمس بن یشحب بن یعرب بن قحطان څخه ددوئ نسب نامه واضحه کیږي.

او تاریخ دانانو لیکلي دي چې سبا عبد شمس پخپله زمانه کښې د نبی اکرم ﷺ زیرې آؤرولې وو، کیدېشي چې ده ته دا علم دپخوانو کتابونو تورات او انجیل څخه حاصل شوې وی یا د نجومیانو او کاهنانو په ذریعه ورته حاصل شوې وی، نو ده د نبی اکرم ﷺ په شان کښې یو څو عربی شعرونه هم لیکلي وو، په هغې کښې د نبی اکرم ﷺ د پیغمبر کیدو بیان کړې دې او دا خواهش ئې کړې دې چې کاش زه د نبی اکرم ﷺ په زمانه کښې وې چې د نبی اکرم ﷺ مدد مې کړې وې، دغه شان خپل قوم ته پرې د ایمان راوړو اوورسره د مددکولو خودنه کوی.

کوم حدیث پاك کښې چې دا بیان تیر شو چې د سبا د لسو هلکانو څینې شپږ په یمن کښې آباد شو، اوڅلور شام ته لاړل نو دا دهغه زمانې واقعه ده چې په قوم سبا باندې د عذاب د راتلو څخه روستو وه، په دغه وجه دغه خلق په مختلفو ملکونو طرفونو ښارونو کښې خواره شو.[ابن کثیر][1].

قرطبی په حواله د قشیری د قوم سبا زمانه د نبی اکرم ﷺ دپیغمبر کیدو څخه وړاندې د عیسی ﷺ څخه روستو د فترت زمانه نقل کړې ده[2].

**سیل عرم او سد مآب:** ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ سَيْلَ﴾ د عربی لغت په اعتبار سره د عرم لفظ ګنړې معنې مشهورې دی، او د تفسیر عالمانو د هرې معنې په اعتبار سره ددې آیت مبارك تفسیر کړې دې خو د قرآن عظیم الشان دروانئ مناسب هغه معنی ده چې په قاموس اوصحاح جوهری وغیره د لغت په کتابونو کښې ده. دوئ د عرم معنی سد یعنی بند کړې ده چې د اوبو د ایسارولو دپاره جوړولې شی[3] او نن صبا ورته ډیم وئیلې شی ابن عباس رضی الله عنهما هم دعرم معنی سد یعنی بند کړې ده [قرطبی][4] واقعه داسې ده چې د یمن ملك د دارالحکومت صنعاء څخه د دریو پړاؤنو په فاصله یو ښار وو چې مآرب نوم ئې وو، په هغې کښې قوم سبا آباد وو. دغه ښار د دؤ غرونو په مینځ کښې وو، د غرونو د مینځ او ددې دپاسه د باران د اوبو څخه به سلاب جوړ شو چې دغې ښار ته به ئې سخت نقصان ورکولو. دیو ښار بادشاهانو د دواړو غرونو تر مینځه یو بند یعنی ډیم جوړ کړو، په دغې بادشاهانو کښې د بلقیس ملکې نوم په خصوصیت سره ذکر کولې شی. دغه بند دومره مضبوط جوړې کړې شوې وو چې اوبو پرې اثر نشو کولې. د غرونو د مینځ سیلابونه به ئې را ایسارول. او ددې څخه به یو عظیم الشانه ذخیره جوړه شوه. دغې بند کښې درې دروازې درجه په درجه لګیدلې وې چې د ابو ذخیره په انتظام سره د ښار د خلقو په کار راشی، فصلونه اوباغونه ترې په

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٠٥، ٥٠٦
[2] ) تفسیر القرطبی: ج ١٤، ص ٢٨٥
[3] ) القاموس المحیط: ج ٣، ص ٢٥٨، والصحاح: ج ١، ص ٤٦٥
[4] ) تفسیر القرطبی: ج ١٤، ص ٢٨٥

Scanned with Ca

بندوبست سره خړوبولې شي ، رومبې به برنۍ دروازه خلاصه کړې شوه چې ددغې حد اوبه به خلاصې شوې نو دهغې څخه لاندې دويمه دروازه به پرې پرانيستې شوه اوبيا دريمه دروازه به پرانيستې شوه چې دغه شان ټولې اوبه به لا ختمې شوې نه وې نو د بارانونو موسم به راغلو او دغه اوبه به بيا پورته سر پورې اورسيدې . او دغه ډيم به پوره ډك شو ، د بند څخه ښکته يو لوئې تالاؤ جوړ کړې شوې و هغې څخه داوبو دولس نهرونه دښار مختلفو طرفونو ته رسولې شوي وو اوپه ټولونهرونو کښې به اوبه په يو انداز سره روانې وې او د ښار ضرورتونه به پرې پوره کولې شو .[مظهري]([1]).

دښار د ښي او کس اړخ دواړو غرونو خواؤ ته باغونه لګولې شوې وو ،دغه نهرونه به په هغې کښې بهيدل باغونه يو بل سره پيوست دواړو طرفونو باندې په مخه لګيدلې وو ، دا اګر چې په شمير کښې ګڼې وو خو د پيوستوالي په وجه ئې د ښي طرف ته يو او ګس طرف ته بل باغ اوفرمائيلو . په دې باغونو کښې به ميوې دومره ډيرې پيداکيدې چې د پخوانو امامانو قتاده رحمه الله وغيره دبيان مطابق يوې ښځې به په سر خالي ټوکرۍ کيخوده اوددغې باغونو د ونو[درختو] لاندې به تلله نو پخپله به هغه ټوکرۍ ډکه شوه د لاس وراوړلو ضرورت به ورته نه وو . [ابن کثير]([2]).

﴿كُلُوا مِن رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوا لَهُ ۚ بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَرَبٌّ غَفُورٌ﴾ الله ﷻ د خپلو پيغمبرانو ﷺ په ذريعه دوئ ته دا حکم ورکړې وو چې تاسو ته چې الله ﷻ کوم رزق درکړې دې هغه ښه په فراخه استعمالوئ او ددې شکر په دې شان اداکوئ چې نيك عملونه کوئ ، د الله ﷻ تابعداري کوئ ولې چې الله ﷻ دابنار بلدة طيبة جوړ کړې دې . دغه ځائې کښې يخنې او ګرمي هم په اعتدال سره ده . او ددې ځائې آب وهوا هم ښکلې ده ، صفا ده ، چې ددوئ په ټول ښار کښې ماشې ، مچان ، ورګې[کيکې] ، ماران ، لړمانان غوندې ضررې حيوانات دسره نه وو بلکه دبهرنې مسافرو په جامو کښې به که چرې سپږې وغيره موذي قسم څه حيوانات وو هغه به پخپله دغه ځائې کښې مړه شو . [ابن کثير]([3]).

﴿بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ﴾ سره ئې ﴿وَرَبٌّ غَفُورٌ﴾ فرمائيلو سره خپل نعمت داسې مکمل کړو چې دا عيش او راحت صرف د دنيا ژوندد نه دې بلکه که تاسو شکر ادا کړو نو په آخرت کښې ددې څخه د لوئې او دائمي نعمتونو هم وعده ده ، ولې چې ددې ټولو نعمتونو خالق او مالك اوستاسو پالونکې غفور دې . که په بې اختيارئ کښې مو شکر کم اوکړلو يا مو په کښې د غفلت او کوتاهئ نه کار واخستو نو هغه به الله ﷻ معاف کړي .

﴿فَأَعْرَضُوا فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ﴾ يعنې د الله ﷻ دداسې وسيع نعمتونو اود پيغمبرانو ﷺ دخبرداريانو ورکولو باوجود کله چې سبا قوم د الله ﷻ داحکامو نه سرکشي او روګرداني اوکړه نو مونږ پرې سيل عرم راپريخودو . د عرم معنى تيره شوه چې بند ده ، دغه سيلاب ئې عرم ته څکه منسوب کړو چې کوم عرم د دوئ د حفاظت او خوشحالئ ذريعه وه . هم هغه

---

[1]) تفسير المظهري: ج ۸، ص ۲۰

[2]) تفسير ابن کثير: ج ۶، ص ۵۰۷

[3]) تفسير ابن کثير: ج ۶، ص ۵۰۷

Scanned with Ca

الله ﷻ دوئ دپاره مصیبت جوړ کړو. دا واقعه ابن عباس رضی الله عنهما ، وهب بن منبه رحمه الله ، قتاده رحمه الله او ضحاك وغیره داسې بیان کړې ده چې کله الله ﷻ ددغې بند د ماتولو او هغې ځخه پرې دسیلاب راوستو اراده اوکړه نو په دغه بند ئې ړندې مږې مسلط کړې هغې ددې بنیادونه ډېر یعنې کمزوری کړل ، کله چې د باران اوسیلاب وخت راغلو ، دغه کمزوری بنیادونه ړنګ کړل او هغه جمع اوبه په ټولې وادئ د سیلاب په صورت کښې راماتې شوې ، په هغې کښې د واقع مآرب ښار ټول مکانونه ړنګ او ونې [درختې] تباه کړې دغرونو د دوه اړخیز باغونو اوبه هم ختمې شوې.

د وهب بن منبه د روایت مطابق ددغې خلقو په کتابونو کښې دالیکل په مخه راروان وو چې ددغې بند خرابی او تباهی به دمږو په ذریعه وی ، کله چې خلقو ددغې بند په خوا کښې مږې اولیدې نو خطره ئې پیدا شوه د هغې دمخ نیولو دپاره ئې دغلته ډېرې پیشوګانې په دې غرض اوساتلې چې مږې بندته نزدې راپرې نه ږدی ، خو د الله ﷻ په قدرت هغه مږې په پیشوګانو غالبې راغلې او د بند په بنیادونو کښې ورننوتې .[ابن کثیر]([1]).

او تاریخی روایتونو کښې داهم دی چې هوښیارانو خلقو د مږ په لیدو ددغې ځائې د پریخودو اراده اوکړه. درجه په درجه بندوبست ئې اوکړو اودغه ځائې ځخه اووتل ، پاتې خلق هم دغلته وو کله چې سیلاب راغلو نو هغوئ هم دغه ځائې نه ګډه په سر شو او ډېر په کښې سیلاب تباه هم کړل ، دغه ځائې ځخه چې څه خلق نورو ځایونو ته تلی وو ، دهغې څه تفصیل په مسند احمد کښې راغلې دې چې بیان ئې تیر شو دهغوئ شپږ قبیلې په یمن کښې او ځلور په شام کښې خورې شوې د مدینې منورې آبادی هم ددغې قبیلو د ځینو خلقو ځخه شروع شوه چې تفصیل ئې د تاریخ په کتابونو کښې موجود دې ، ددغه ځائې د تباه شوؤ ښکلو باغونو حال داسې بیانیږی.

﴿وَبَدَّلْنٰهُمْ بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَيْ اُكُلٍ خَمْطٍ وَّاَثْلٍ وَّشَيْءٍ مِّنْ سِدْرٍ قَلِيْلٍ۝﴾ الله ﷻ ددې قیمتی میوؤ د ونو په ځائې داسې ونې راؤتوکولې یعنی راشنی کړې چې میوې ئې بدمزه او خرابې وې، دخمط معنی اکثرو مفسرینو د کیکر ونې کړې ده ، او جوهری([2]) لیکلی دی چې ځینې کیکر څه داسې میوه هم کوی چې خلق ئې خوری خو ددغې ونو میوې هم بدمزه وې. او ابو عبیده فرمائیلی دی چې خمط داسې ونې ته وائی چې ازغنې او ترخې وی او د جمهورو مفسرینو په نزد اثل یو قسم د طرفاء ونه ده چې په پښتو کښې ورته غزوئیلې شی ، د دې څه میوه نه وی چې خوك ئې اوخوری ، او ځینې حضرات د اثل معنی کیکر کوی چې ازغنه او پانړې ئې په چیلو [بزو] خوړولې شی .

د سدر معنی بیره ده ، ددې دوه قسمونه دی چې یو قسم ئې هغه دې چې باغونه ئې کرلې شی دهغې میوه خوږه خوندناکه وی ، ددې په ونه کښې ازغی کم او میوه زیاته وی. اوبل قسم ئې ځنګلی دې چې پخپله راټوکیږی ازغی په کښې زیات او میوه په کښې کمه وی چې تروه او بې مزې وی .

[1] ) تفسیر ابن کثیر: ج ۶، ص ۵۰۷

[2] ) الصحاح للجوهری، باب الطاء فصل الخاء: ج ۳، ص ۱۱۲۵

Scanned with Ca

﴿سِدْرٍ﴾ سره ﴿قَلِيْلٍ﴾ لفظ لګولو سره غالبا اشاره دې ته ده چې دغې پخپله ټوکيدونکو بيرو کښې ميوه لږه او تروه وه. [والله اعلم].

﴿ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِمَا كَفَرُوْا﴾ دا سزا موورته څکه ورکړه چې هغوئ کفر کړې وو ، کفر د ناشکرئ په معنی هم رازی ، او دين حق څخه د انکار کولو په معنی هم رازی. دلته دواړه معنې کيدې شی څکه چې هغوئ ناشکری هم کړې وه ، او کوم ديارلس پيغمبران ﷺ چې هغوئ ته ورغلی وو ، هغوئ ته ئې د دروغو نسبت هم کړې وو.

**فائده**: دې واقعه کښې دا هم راغلی دی چې سباته الله ﷻ خپل ديارلس پيغمبران ﷺ ليږلی وو. نو دا به څنګه کيدې شی چې کله دا واقعه د سيل العرم د فترت په هغه زمانه کښې راپيښه شوې وه چې د عيسى ﷺ د زمانې نه پس د رسول کريم ﷺ دزمانې نه مخکښې وه ، نو دغه زمانه کښې د ديارلسو پيغمبرانو ﷺ راتلل څنګه کيدې شو؟ حالانکه د جمهورو علماء کرامو ﷺ په نزد په دغه زمانه کښې څوك پيغمبر نه وی راغلې هم په دې وجه دغه زمانې ته دفترت زمانه وئيلې شی.

روح المعانی کښې ددې جواب دا ورکړې شوې دې چې د سيل العرم واقعه اګر چې د فترت په زمانه کښې شوې ده کومه چې د پيغمبر ﷺ نه خالی وی خو هغې نه دا نه لازميږی چې دغه پيغمبران ﷺ به هم دغه زمانه کښې راغلی وی ، کيدې شی چې دغه پيغمبران ﷺ هم دغې قوم ته د فترت د زمانې نه مخکښې راغلی وی او دهغوئ سرکشی او کفر د فترت په زمانه کښې زيات شوی وی څکه پرې د فترت په زمانه کښې سيل العرم راغلې وی[1] [والله اعلم].

﴿وَهَلْ نُجٰزِيْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ﴾ ، ﴿كَفُوْرَ﴾ د کفر د مبالغې صيغه ده چې معنی ئې ډير کفر کوونکې ده ، د آيت مبارك معنی دا شوه چې مونږ د ډير کفر کوونکی نه سوا چاته سزا نه ورکوو. دا په ظاهره دهغې قرآنی آيتونو او صحيح حديثو نه خلاف معلوميږی د کومو نه چې دا ثابتيږی چې ګناهګارو مسلمانانو ته به هم د هغوئ دګناه په وجه د جهنم سزا ورکولې شی. اګر چې آخر به دجهنم نه اوځی او جنت کښې به داخليږی ، ددې اشکال په جواب کښې څينې حضراتو ﷺ دا فرمائيلی دی چې دلته مطلق عذاب مراد نه دې بلکه داسې عام عذاب ترې مراد دې څنګه چې په قوم سبا باندې اوليږلې شو ، او دا کافرانو سره خاص دې ، په مسلمانانو ګناهګارانو داسې عذاب نه رازی [روح][2].

ددې تائيد د يو صحابی ابن خيره ﷺ دقول نه هم کيږی چې هغوئ اوفرمائيل : ﴿جزاء المعصية الوهن في العبادة والضيق في المعيشة والتعسر في اللذة قال لايصادف لذة حلالا الاجاءه من ينغصه﴾ [د معصيت سزاداده چې په عبادت کښې سستی پيدا شی ، په معيشت کښې تنګی پيدا شی او په لذت کښې تعسر پيدا شی] ددې مطلب ابن خيره ﷺ دا بيان کړې دې چې کله ورته حلال لذت نصيب شی نو څه نا څه داسې سبب پيدا شی چې دغې لذت کښې ښاوره واچوی. [ابن کثير][3].

---

[1] ) تفسير روح المعانی: ج ۱۶، ص ۲۸۶
[2] ) تفسير روح المعانی: ج ۱۶، ص ۲۸۶ (بالاختصار)
[3] ) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٥٠٨

Scanned with Ca

معلومه شوه چې د مؤمن گناهگار سزا گاني په دنيا کښې دا قسم وی ، په دۀ باندې د آسمان يا زمکې نه څه پرانيستې او ښکاره عذاب نه راځی . دا کفارو سره خاص دې .

حسن بصری رحمه الله اوفرمائيل چې ﴿صدق الله العظيم لايعاقب بمثل فعله الاالکفور﴾ [الله ﷻ رښتيا فرمائی چې د خراب عمل سزا دهغې برابر سوا د کفور نه بل چا ته نشی ورکولې] ابن کثير[1].

ځکه چې دغير کفور يعنی د مؤمن په څه گناهونو پښېمانه او مهلت ورکولې شی .

او په روح المعانی کښې د کشف په حواله ددې آيت مبارك مفهوم دا توجيه شوې ده چې کلام په خپل حقيقت باندې دې چې سزا ، د سزا په ډول صرف کافر ته ورکولې شی ، او گناهگار مؤمن ته د اور وغيره تکليف ورکول اگر چې د سزا په صورت کښې ښکاری خو په حقيقت کښې ئې د گناه نه پاکول دی[2] ، لکه چې د سرو زرو خيرې لرې کولو دپاره چې په اور ويلې کولې شی ، مطلب دا چې د مسلمان په جهنم کښې د اچولو نه مقصود داوی چې هغه حصې دبدن ئې اوسوزی کوم چې د حرامو نه جوړې شوې وې او دد ې نه پس بيا جنت ته بوتلې شی .

﴿وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا قُرًى ظَاهِرَةً وَقَدَّرْنَا فِيهَا السَّيْرَ﴾ دې آيت مبارك کښې په اهل سبا باندې د يو بل نعمت کولو بيان دې چې هغوئ ئې ناشکری اوکړه ، او د نادانئ نه ئې کار واخستو چې ددې په بدل کښې ئې سختی او تکليف اوغوښتو .

﴿الْقُرَى الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا﴾ : ددې نه مراد په ظاهر د شام دملك کلی دی ، ځکه چې په ډيرو آيتونو مبارکو کښې د الله ﷻ د رحمت نازليدل شام ملك باندې راغلی دی . د آيت مبارك مطلب دادې چې کومې آبادئ الله ﷻ برکتی جوړې کړې وی او دغې خلقو به اکثر د خپل تجارت وغيره په غرض شام ملك ته سفرونه کول ، ددنيا د عامو حالاتو مطابق د مآرب ښار نه شام ته اوږد مزل دې ، لارې ئې هوارې نه دی ، الله ﷻ په سبا قوم باندې دا انعام اوفرمائيلو چې دهغوئ د مآرب ښار نه تر شام پورې لږ لږ مزل پس آبادئ د سړك په غاړه باندې وې ځکه ئې ﴿قُرًى ظَاهِرَةً﴾ اوفرمائيل . په دغه اندازه د آبادئ فائده داوه چې يو مسافر به د ورځې دسره که په مزل روان شو نو د غرمې د آرام کولو او ډوډئ خوړلو ضرورت به ئې يوې نه يوې آبادئ ته په رسيدو په آسانه پوره کولې شو . دغسې به ماسپخين نه پس که روان شو نو د ماښام کيدو نه وړاندې به بلې آبادئ ته رسيدلې شو . چې هلته په آرام شپه تيره کړی او دمه شی .

﴿سِيرُوا فِيهَا لَيَالِيَ وَأَيَّامًا آمِنِينَ﴾ دا د دريم نعمت بيان دې چې الله ﷻ په قوم سبا باندې کړې وو . هغه داسې چې دغه آبادئ په داسې مناسب اندازې وې چې په مزل کولو کښې به کمی بيشی نه کيدله او دغه مزلونه به ئې ښه په امن وو ، د غل ډاکو ويره ئې نه وه .

﴿فَقَالُوا رَبَّنَا بَاعِدْ بَيْنَ أَسْفَارِنَا وَظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ فَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ وَمَزَّقْنَاهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ﴾ يعنی دغې ظالمانو ددې امن او د سفر ناقدری او ناشکری اوکړه او پخپله ئې دا دعا اوغوښتله چې زمونږ دسفر مزلونه اوږده کړې ، د سفر آبادئ دې زمونږ نزدې نه وی ، په مينځ مينځ کښې دې ځنگلونه او صحراگانې وی چې څه تکليف اوسختی په کښې وی . دوئ هم د بنی اسرائيلو په شان د بې محنته اوخوندناك نعمت من او سلوی په بدل کښې د محنت او مشقت بې خونده خيزونه

---

[1] ) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٥٠٨
[2] ) تفسير روح المعانی: ج ١٦، ص ٢٨٦

غوښتل ، الله ﷻ ددې په سزا کښې سیل العرم پرې راواستولو چې دهغې په نتیجه کښې ئې داسې تباه کړل چې په دنیا کښې ددوئ د عیش ، عشرت دولت او نعمت بس قیصې پاتې شوې او داخلق افسانه جوړ شو.

﴿مَزَّقْنٰهُمْ﴾ تمزیق نه مشتق دې چې ذره ذره کول دی ، مطلب دا چې د مآرب څه خلق خو په سیلاب تباه شو او څه په نورو ملکونو باندې دانه وانه شو ، عربو کښې د قوم سبا تباهی او خواره وارۀ کیدل یو متل جوړ شو . په داسې موقعو باندې د عربو دامحاوره ده چې ﴿تفرقوا ایادی سبا﴾ داخلق داسې خواره وارۀ شو لکه د قوم سبا د نازولو پشان.

ابن کثیر دلته د یو کاهن اوږده قیصه نقل کړې ده ، دغه کاهن ته د سیلاب د راتلو نه مخکښې څه علم شوې وو. هغه په یو عجیبه تدبیر سره ړومبې خپل جائیداد زمکه اوکور خرڅ کړل ، کله چې د هغې رقم ئې تر لاسه کړو نو هغې نه پس ئې خپل قوم به د سیلات راتلو خبر ورکړو او وې وئیل چې که څوك د ځان سلامتې غواړی نو زر زر دې ددې ځائې نه اوځی ، هغه خلقو ته داهم اووئیل چې څوك لرې ملك ته تلل غواړی نوهغوئ دې عمان ته لاړ شی ، څوك چې دشرابو او خمبیره روټئ او میوؤ وغیره شوقیان وی هغوئ دې د شام ملك د بصری مقام ته لاړ شی ، او څوك چې داسې سورلئ غواړی چې ختمو کښې هم کلکې [ثابت قدمی] وی د قحط په زمانه کښې پکار راځی . د تیزئ د سفر ضرورت ئې پوره کوی نو هغوئ دې یثرب یعنی مدینې منورې ته لاړ شی چې په کښې کهجورې ښه ډیرې دی . قوم د هغه مشوره اومنله ، ازد قبیله عمان ته لاړه ، غسان قبیله د شام دملك بصری مقام ته اورسیده ، اوس خزرج ، بنو عثمان ، یثرب ذالنخل ته روان شو. بطن مر ته په رسیدو بنو عثمان خو هم دغه ځائې کښې پړاؤ واچولو ، او هم ددې انقطاع د وجې د بنو عثمان لقب خزاعه شو.دې په بطن مره کښې مکې مکرمې سره نزدې پاتې شو. اوس او خزرج مدینې منورې ته اورسیدل او هلته ئې پړاؤ واچولو. ابن کثیر ددې اوږدې قیصې نه پس د خلقو د دانه وانه کیدو دا تفصیل په سند د سعید رحمه الله ، د قتاده رحمه الله ، د شعبی رحمه الله نه نقل کړو او وې فرمائیل چې په دې شان قوم سبا خواره واره شو چې په دې باره کښې دلته دا فرمان دې چې : ﴿وَمَزَّقْنٰهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ﴾ [1]

﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ﴾ یعنی د قوم سبا په عروج او زوال او ددوئ په انقلابی حالاتو کښې لویه نخښه او عبرت دې و دهغې چا دپاره چې صبر کوؤنکې او ډیر شکر کوؤنکې وی. یعنی چې په مصیبت صبر کوی او په نعمت شکر اداکوی ، په دې شان به هغه دژوند په هر حال کښې سراسر نفع حاصلوی لکه د صحیحینو په حواله د ابی هریره رضی الله عنه په روایت رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د مؤمن شان داسې عجیبه دې چې د هغه باره کښې د الله ﷻ هر تقدیری حکم هغه دپاره ټول په ټوله خیر او نفع وی ، هغه د نعمت راحت او خوشحالئ په موقعه د الله ﷻ شکر ادا کوی ، چې آخرت دپاره ئې فائده جوړیږی ، په مصیبت باندې صبر کوی ورته ئې لوئې ثواب ملاویږی ، په دې شان دا مصیبت هم هغه دپاره خیر اوفائده مند جوړیږی [ابن کثیر] [2]

---

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٥٠٩، ٥١٠

[2]) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥١٢، وصحیح مسلم، کتاب الزهد، باب فی احادیث متفرقة: ج ٢، ص ٤١٣

Scanned with Ca

خيني مفسرينو حضراتو د صبار لفظ د صبر په عامي معنى اخستې دې. چې په کښې په عبادتونو باندې کلك پاتې کيدل او د ګناهونو نه پرهيز کول هم داخل دی ، ددې تفسير مطابق مؤمن په هرحال صبراو شکر کوونکې وی او هرصبر شکردې اوهر شکرصبرهم دادې [والله اعلم

| وَلَقَدْ | صَدَّقَ | عَلَيْهِمْ | اِبْلِيْسُ | ظَنَّهٗ |
|---|---|---|---|---|
| او په تحقيق سره | ربښتيا اوموندو | په معامله دهغوئ کښې | ابليس | ګمان خپل |

او شيطان دهغوئ په حق کښې خپل [دګمراهئ] ګمان صحيح بيا موندو (۱)

| فَاتَّبَعُوْهُ | اِلَّا | فَرِيْقًا | مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ۝ | وَمَا كَانَ | لَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس پيروی اوکړه هغوئ دهغه | مګر نه | يوې ډلې | دمومنانو نه | اونه وو | شيطان لره |

نو دايماندارو ديو ټولی نه بغير نور ټول خلق دهغه په لار روان شول| اود شيطان په هغوئ

| عَلَيْهِمْ | مِّنْ سُلْطٰنٍ | اِلَّا | لِنَعْلَمَ | مَنْ يُّؤْمِنُ |
|---|---|---|---|---|
| په هغوئ باندې | څه اقتدار [تسلط] | مګر | دپاره ددې چې معلوم کړومونږ | هغه څوك چې ايمان راوړی |

باندې نور هيڅ وس نه رسيدو | مګر ددې [امتحان] دپاره چې مونږ هغه خلق کوم چې

| بِالْاٰخِرَةِ | مِمَّنْ | هُوَ | مِنْهَا | فِيْ شَكٍّ ط | وَرَبُّكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په آخرت باندې | دهغه چانه | چې هغه | دآخرت نه | په شك کښې وی | او رب ستا |

په آخرت يقين لری دهغه خلقو نه جدا ښکاره کړو | څوك چې په دې کښې شك کوی |او ستارب

---

(۱) **دَ شيطان دهوکه:-** دَسباد قصې دَ بيان نه پس دَشيطان دَ نورومريدانو په عام توګه بيان کولې شی چه هغوی دَهدايت په ځای ضلالت اودَښيګړې په ځای بدی اخلي. ابليس چه دَالله تعالى دَ دربار نه شړلې اورټلې شونو هغه ونيلې ووچه زه به دَ حضرت آدم ﷺ اولاد دَهرقسم نه تباه کولوکوشش کوم اودَ يوې لږې شان ډلې نه بغيربه باقی ټول ستا دَ نيغې لارې نه اړوم. هغه دا اوکړه او وئې خودل اوبنيادم ئی په خپله پنجه کښې اونيولو. کله چه حضرت آدم ﷺ دَ خپلې خطاپه وجه دَ جنت نه راکوز کړې شو اوابليس لعين هم هغه سره راکوز کړې شو هغه وخت هغه ډير خوشحاله وو او په زړه کښې فخر کولوچه دا مې دهوکه کړو اودَ ده اولاددهوکه کول خو زما دَ ګس لاس کار دی. دَ دې خبيث وينا وه چه زه به بنيادم ته شنه باغونه ښايم په غفلت کښې به ئی ساتم اوقسم قسم دهوکې به ورکوم او په خپل جالونوکښې به ئی راګيرساتم. دَ کوم په جواب کښې چه الله رب العزت فرمائيلې وو زما دې هم په خپل عزت قسم وی چه دَ مرګ دَ زنکدن نه وړاندې هغه کله هم توبه اوکړی زه به ئی قبلوم هغه چه کله هم ماته آواز کوی زه به دَ هغه طرف ته متوجه کيږم. ماته چه کله هم هغه توبه اوکړی زه به ئی زر قبلوم. مانه چه کله هم هغه څه غواړی زه به ئی ورکوم. اومانه چه کله هم هغه بښنه غواړی زه به ئی بخښم. (الدرالمنثور:۶/۶۹۵)

دَ هغه هيڅ غلبه حجت زبردستی وهل ټکول په انسان باندې نه وو صرف دهوکه مکر اوفريب وو په کوم کښې چه دا ټول اونختل. په دې کښې دَالله تعالى حکمت دا وو چه دَ مؤمن اوکافر فرق معلوم شی اودَ الله تعالى حجت ختم شی. آخرت منونکی به دَشيطان نه منی. دَ دې منکر به دَ رحمان تابعداری نه کوی. الله تعالى په هرڅيز باندې ساتندونکې دې. دَ مؤمنانو ډله دَ هغه دَ حفاظت امداد اخلي. په دې وجه ابليس دَ هغوی هيڅ هم نه شی کولې. اودَ کافرانو ډله خو پخپله الله تعالى پرېږدی په دې وجه دَ هغوی نه دَ الله تعالى ساتل اخواکيږی اودَ شيطان دَهريوفريب ښکارجوړيږی.

Scanned with Ca

| عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | حَفِيْظٌ ﴿۲۱﴾ |
|---|---|
| په هر څيز باندي | ساتونكي نگران دي |
| دهر څيز نگران دي | |

## آسان ترجمه قرآن

او واقعي دهغې خلقو باره كښې ابليس خپل خيال درست بياموندلو، لو دوى هغه پس روان شول، سوا دهغې ډلې نه چه مومنان وو او ابليس ته په هغوى باندې هيڅ غلبه نه وه، البته مونږ (هغه ته د خپولو دا صلاحيت ځكه وركړي وو چه) مونږ دا كتل غوختل چه څوك دى، چه په آخرت باندې ايمان لرى، او څوك دى، چه ددې باره كښې په شك كښې پروت دې او ستا پروردگار په هر څيز باندې نگران دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ اِبْلِيْسُ ظَنَّهٗ﴾ [واقعى ابليس خپل گمان دهغې خلقو په باره كښې] يعنى بنيادم په باره كښې [صحيح وموندو] يعنى دده چه كوم دا گمان وو چه زه به د ادم ﷺ اكثر اولاد لره گمراه كوم ځكه چه دوى دخاوړې نه او زه داورنه پيداشوې يم [درمنثور] (۱) دده گمان صحيح وختلو ﴿فَاتَّبَعُوْهُ﴾ [چه داټول دده په لاره روان شول ﴿اِلَّا فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ مگر د ايماندارو ډله] چه په دوى كښې كامل ايماندار خو بالكل محفوظ پاتې شول اوكمزورى ايمان والا اگرچه په گناهونو كښې اخته شول مگر دشرك او دكفرنه هغه هم محفوظ شول ﴿وَمَا كَانَ لَهٗ عَلَيْهِمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ اِلَّا﴾ [او دابليس په دې خلقو] چه كوم [تسلط] په طور دغولولو دې هغه [بغير ددې نه په بله هيڅ وجه نه دې ﴿لِنَعْلَمَ مَنْ يُّؤْمِنُ بِالْاٰخِرَةِ﴾ چه مونږ] په ظاهرى طور [هغو خلقو لره كوم چه په اخرت ايمان لرى ﴿مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِيْ شَكٍّ﴾ دهغو خلقو نه] جدا [معلوم كړو كوم چه ددې نه په شك كښې دى] يعنى مقصود امتحان دې چه په مؤمن اوكافركښې امتياز وشى چه په مقتضا دعدل اوحكمت دثواب او عذاب احكام جارى شى [او] چونكه ﴿وَرَبُّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ حَفِيْظٌ﴾ [ستا رب دهرشى نگران دې] چه په دې كښې د خلقو ايمان اوكفر هم داخل دى په دې وجه به هر يو ته مناسب جزا او سزا ملاويږى

| قُلِ ادْعُوا | | الَّذِيْنَ | | |
|---|---|---|---|---|
| اووايه [اے نبى ﷺ] چى رااوبلئ | | هغه كسان | | |
| [ائې پيغمبره] ته ورته اووايه چې تاسو دالله ﷻ نه بغير | | | | |
| زَعَمْتُمْ | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ | لَا يَمْلِكُوْنَ | مِثْقَالَ | ذَرَّةٍ |
| چى تاسو گنړلى دى معبودان | غير دالله نه | چى مالكان نۀ دى هغوئ | په مقدار | ديوې ذرې |
| په بل چا د الله ﷻ گمانونه كوئ | هغوئ ټول راوبلئ | هغوئ خو په آسمانونو او زمكه كښې د ذرې | | |

| فِى السَّمٰوٰتِ | وَلَا فِى الْاَرْضِ | وَمَا لَهُمْ | فِيْهِمَا | مِنْ شِرْكٍ |
|---|---|---|---|---|
| په اسمانونو كښې | اونۀ په زمكه كښې | او نشته هغوئ لره | په دې دواړو كښې | څه شركت |
| برابر اختيار هم نه لرى | اونه دهغوئ په دې كښې څه حصه شته | اونه په هغوئ كښې | | |

(۱) الدرالمنثور تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۲۳۷

Scanned with CamScanner

وَمَا لَهٗ | مِنْهُمْ | مِّنْ ظَهِيْرٍ | وَلَا تَنْفَعُ | الشَّفَاعَةُ
او نشته دپاره دالله | دهغوئ نه | څوك مددګار | اونهٔ ورکوی فائيده | سفارش
څوک دالله ﷻ په مقابله کښې امداد کولې شی|او دالله په دربار کښې سفارشونه هيڅ فائده نه ورکوی

عِنْدَهٗ | اِلَّا | لِمَنْ | اَذِنَ | لَهٗ | حَتّٰى
په دربار دهغه کښې | مګر | دپاره دهغه چا | چې اجازت ورکړې وی الله | دپاره دهغه | تر هغې پورې
خود چا په حقله چې هغه اجازت ورکړې | ...........تردې چې څه وخت

اِذَا | فُزِّعَ | عَنْ قُلُوْبِهِمْ | قَالُوْا | مَاذَا | قَالَ
چې کله | لرې کړې شی يره | دزړونو دهغوئ نه | نو هغوئ به اووائی | چې څه | اوونيل |
دهغوئ دزړونو نه هيبت کم شی| نو ديو بل نه تپوسونه کوی | چې ستاسو رب څه حکم

رَبُّكُمْ | قَالُوا الْحَقَّ | وَهُوَ | الْعَلِيُّ
رب ستاسو | نو اويهٔ وائی [سفارش کونکی] | چې حق ئې اوونيل | او هغه | ډير اوچت
راليږلې دې | ..........هغوئ وائی چې حقې خبرې دی| او دې ډير اوچت دټولو نه لوئې دې |

الْكَبِيْرُ | قُلْ | مَنْ يَّرْزُقُكُمْ | مِّنَ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ
او ډير لوئ دې | ورته اووايه | چې څوك رزق درکوی تاسو ته | دآسمانونونه | او دزمکې نه
[اې پيغمبره] ته تپوس اوکړه چې تاسو ته د آسمان او زمکې نه څوک روزی درکوی |

قُلِ | اللّٰهُ | وَاِنَّآ | اَوْ اِيَّاكُمْ | لَعَلٰى هُدًى | اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ
ورته | اووايه چې الله | او موږه | يا تاسو | ضرور په هدايت باندې يو | يا په ګمراهئ
ورته اووايه چې الله [روزی درکوی] |او بيشکه موږ يا تاسو يا خو په سمه لاره روان يو| يا بهٔ ښکاره

مُّبِيْنٍ | قُلْ | لَّا تُسْئَلُوْنَ | عَمَّآ
ښکاره کښې يو | ورته اووايه | تپوس به نشی کيدې ستاسو نه | په باره دهغې
ګمراهئ کښې پراته يو| ته ورته اووايه چې تاسو نه به زموږ دجرمونو په باره کښې تپوس نه کيږی

اَجْرَمْنَا | وَلَا نُسْئَلُ | عَمَّا
جرمونو کښې چې کړې وی موږه | او تپوس به نشی کيدې زموږ نه | په باره دهغه کارونو کښې
..........اونه به موږ نه ستاسو دعملونو [په باره کښې] تپوس کيږی

تَعْمَلُوْنَ | قُلْ | يَجْمَعُ | بَيْنَنَا | رَبُّنَا | ثُمَّ يَفْتَحُ
چې تاسو ئې کوې | اووايه | جمع به اوکړی | په منځ زموږ کښې | رب زموږه | بيا به فيصله اوکړی
ته ورته اووايه چې زموږ رب به ټول راجمع کړی | نو بيا به زموږ په مينځ کښې سمه روغه

بَيْنَنَا | بِالْحَقِّ | وَهُوَ | الْفَتَّاحُ | الْعَلِيْمُ | قُلْ
په منځ زموږ کښې | په حقه سره | او هغه | ښهٔ فيصله کونکې دې | ښهٔ عالم دې | اووايه
فيصله اوکړی | اوهغه په فيصله کولو کښې ډير ښه په هرڅه پوهه دې | ته ورته اووايه

Scanned with Ca

| بَلْ | كَلَّا | شُرَكَاءَ | بِهٖ | الْحَقْتُمْ | الَّذِيْنَ | اَرُوْنِيَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بلکه | هرگز نه | شریکان | دهغه سره | چي پیوست کړي دي تاسو | هغه معبودان | رااوښايئ ماته |

چې ماته خو لږ هغه شريکان اوښائي | چې تاسو دالله ﷻ سره يوځاني کړي دي | ، هيڅري نه ،

| الْحَكِيْمُ | الْعَزِيْزُ | هُوَاللّٰهُ |
|---|---|---|
| حکيم دې | چې غالب دې | هم دغه الله دې |

بلکه الله ﷻ صرف يو دې | چې ډير زبردست او دحکمت خاوند دې |

## آسان ترجمه قرآن

(اے پیغمبر ! دغې کافرانو ته) اووایه چه: راؤښايئ هغه کسانو لره، کوم چه تاسو د الله نه ماسوا خدايان گنړلې دی، هغوی په آسمانونو او زمکه کښې د ذرې برابر څه څيز مالکان هم نه دی، اونه هغوی لره د آسمان او زمکې په معاملاتو کښې (الله تعالى سره) څه شرکت حاصل دې، او نه په هغوی کښې څوک د الله تعالى مددگار دی او د الله تعالی مخکښې هيڅ سفارش نفع ورکونکې نه دې،سوا دهغه چا نه،چه هغه ته خپله الله تعالى (د سفارش) اجازت ورکړې وی تردې پورې چه کله د هغوی زړونو نه ويره لرې کړې شی،نوهغوی وائی چه: ستاسو رب څه اوفرمائيل؟ هغوی جواب ورکوی چه: حق خبره ئې اوفرمائيله. او هم هغه دې چه لوئې اوچت شان والا دې اووايه چه: څوک دې چه تاسو ته د آسمانونو او زمکې نه رزق درکوی؟ اووايه، هغه الله تعالى دې، او مونږ يا تاسو، يا خو په هدايت بانديې يو، يا په ښکاره گمراهئ کښې مبتلا يو. مونږ چه کوم جرم کړې دې، دهغې باره کښې به تاسو نه پوښتنه نشې کولې، او تاسو چه کوم عمل کوئ، دهغې باره کښې به مونږ نه سوال نه کيږی.اووايه چه: زمونږ پروردگار به مونږ ټولو لره جمع کړی، بيا به زمونږ په مينځ کښې په حقه سره فيصله اوکړی، او هم هغه دې، چه بهتر فيصله کونکې، د مکمل علم مالک دې.اووايه چه: اوښايئ ماته، هغه کسان چه تاسو د الله تعالى سره يو ځائې کړې شريکان دی هرگز نه! (د هغه هيڅوک شريک نشته دې) بلکه هغه الله دې، چه دهغه اقتدار هم کامل دې،او دهغه حکمت هم کامل دې.

## خلاصه تفسير

﴿قُلْ﴾[ته] دې خلقو ته [وفرمايه ﴿ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾چه کومو]معبودانو [لره تاسو دخداي نه سوا] په خدايئ کښې دخل کوونکی [گنړئ هغولره] دخپلو حاجتونو دپاره [راوبلئ] ﴿لَا يَمْلِكُوْنَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْاَرْضِ﴾هغوی يوه ذره قدرې] دڅه شي [اختيار نه لری نه په اسمانونو] کائناتو [کښې اونه مزکې] کائناتو [کښې ﴿وَمَا لَهُمْ فِيْهِمَا مِنْ شِرْكٍ﴾ اونه د هغوی ددې دواړو] په پيدائش [کښې څه شرکت شته ﴿وَمَا لَهٗ مِنْهُمْ مِّنْ ظَهِيْرٍ﴾اونه په هغوی کښې څوك دالله تعالى] څه کارکښې [مددگار شته ﴿وَلَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ عِنْدَهٗ﴾او دالله تعالى په وړاندې] دچا [سفارش دچادپاره په کارنه راځی] بلکه سفارش کيدې نه شی ﴿اِلَّا لِمَنْ اَذِنَ لَهٗ﴾ [مگرد هغه چادپاره دچاپه نسبت چه هغه] چاسفارش کوونکی ته [اجازت ورکړی] په کفارو اومشرکانو کښې ځنې جاهلان داسې وو چه دکتو نه به ئې په خپله تراش کړو بتانو لره حاجت روا اوکار فرما او په خدايئ کښې شريکان گنړل ددغو د رد دپاره خو دايت اولنئ جملې راغلې

[لايملكون مثقال ذرة، وما لهم فيهما من شرك] او خنوخلقوخو به دومره قادر نه گنړل مگر دا عقيده به يې ساتله چه دابتان دالله تعالى په كارونو كښې د هغه مددگاران دى دهغو درد دپاره يې وفرمائيل [وماله منهم من ظهير] اوخنې داسي پوهه وو چه دي بې جانه بتانولره يې دڅه شي پيداكوونكى ياد خالق مددگاران خونه منل مگر دا عقيده به يې لرله چه دالله تعالى په نزد ورته څه مقبول دى چه دچاسفارش وكړى دهغه كاركيږى لكه چه هغوى به وئيل [هؤلاء شفعاؤنا عندالله(¹)] د دوى درد دپاره يې وفرمائيل [ولاتنفع الشفاعة عنده] ددې مطلب دادې چه په دې بتانو كښې دڅه قابليت خوتاسو هم قائل نه يئ مگرتاسويه دې دوكه كښې يئ چه دوى ته دالله تعالى په نزد ورته څه مقبوليت حاصل دې دامحض ستاسو بې بنياده خيال دې نه په دوى كښې څه قابليت شته اونه دالله تعالى په نزد مقبوليت وړاندې ارشادفرمائى چه په دوى كښې خو نه څه قابليت شته اونه مقبوليت په كوموكښې چه قابليت هم موجود وى او مقبوليت هم لكه دالله تعالى فرښتې هغه هم دچاپه سفارش كولو كښې په خپله مختار نه دى بلكه د دوى دپاره دشفاعت قانون دادې چه دچا دپار دسفارش كولو اجازت دالله تعالى دطرف نه ملاؤشى صرف د هغه سفارش كولې شى او هغه هم په ډيره مشكله سره ځكه چه هغوى په خپله دالله تعالى دهيبت او جلال نه مغلوب دى هركله چه دوى ته څه عام حكم وركړې شى يا دچا دپاره دسفارش حكم ملاؤشى نو دوى دحكم اوريدو په وخت كښې دهيبت نه مدهوش شى هركله چه ددې هيبت كيفيت رفع شى نو هغه وخت په حكم غوركوى او په خپل مينځ كښې ديوبل نه تپوس اوتحقيق كوى چه مونږ. كوم حكم اوريدلى دې هغه څه دې ددې تحقيق نه پس هغه دحكم تعميل كوى چه په دې كښې دچاد سفارش حكم هم داخل دې

لنډه داچه هركله دالله تعالى فرښتې كومې چه قابليت هم لرى او مقبوليت دالله تعالى په نزد هم هغه هم دچا سفارش دخانه بغيرد اجازت نه نه شى كولې اوهركله چه دچادپاره اجازت ورته ملاؤ هم شى نو په خپله دهيبت نه مدهوش شان شى ددې نه پس چه يې هركله هوش برابر شى نو سفارش كوى نو دا دګټونه په خپله تراش كړى بتان چه نه په كښې څه قسم قابليت شته نه مقبوليت دوى به څنګه د چاسفارش وكړې شى د فرښتو دمدهوشه كيدو وغيره ذكر په وړاندې ايت كښې داسې راغلې دې چه ﴿حَتّٰٓى اِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ﴾ [تردې چه هركله د دوى دزړونو نه ويره] كومه چه دحكم اوريدو په وخت كښې طارى شوې وى [لرې شى ﴿قَالُوْا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ﴾ نو ديوبل نه تپوس كوى چه ستاسو پروردگار څه حكم وفرمائيلو ﴿قَالُوا الْحَقَّ﴾ هغوى وائى چه [فلانى] حقې خبرې حكم يې وفرمائيلو [لكه طالب علم چه دسبق لوستونه پس د استاد دتقرير صحيح كولو او يادولو دپاره ديوبل سره ددې تكرار او اعاده كوى دا فرښتې هم دخپل اوريدلى حكم ديوبل سره تحقيق او تصديق كوى د دې نه پس دحكم تعميل كوى [او] دده په وړاند دفرښتو داسې حال كيدل څه بعيده ده ﴿وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ﴾ [هغه عاليشان دټولونه لوئې دې ﴿قُلْ﴾ او ته] د دوى نه دتوحيد دتحقيق دپاره داهم [تپوس وكړه چه تاسوته داسمان اومزكې نه] په اوبو ورولو او بوټو راويستلو ﴿مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [څوك رزق دركوى؟] چونكه ددې جواب د دوى په نزد متعين دې په دې وجه ﴿قُلِ اللّٰهُ﴾ ته ووايه چه الله تعالى] رزق

---

¹) ترجمه: دوى الله تعالى ته زمونږه سفارش كونكى دى

Scanned with CamScanner

درکوی [او] داهم ووایه چه په دې مسئله دتوحید کښې ﴿وَإِنَّآ أَوْ إِيَّاكُمْ لَعَلَىٰ هُدًى﴾ [بيشکه مونږ يا تاسو خامخا په نيغه لاره يو ﴿أَوْ فِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ﴾ يا په ښکاره ګمراهۍ کښې يعنې دا خوکيدې نه شي چه دوه متضاد څيزونه توحيد اوشرك دواړه صحيح او حق وي او د دواړه قسمه عقيدو لرونکي دحق خاوندان وي بلکه ضروري ده چه په دې دواړو عقيدو کښې به يوه صحيح او بله غلطه وي دصحيح عقيدې لرونکي به په هدايت او دغلطې عقيدې لرونکي به په ګمراهۍ وي اوس تاسو غور وکړئ چه په دوی کښې کومه عقيده صحيح ده او څوك په حق او هدايت دي څوك په ګمراهۍ دی؟ ﴿قُلْ﴾ [ته] دوی ته په دې بحث اومناظره کښې داهم [وفرمايه] چه مونږ په دا که حق او باطل په وضاحت سره بيان کړې دې اوس تاسواومونږ هريو دخپل عمل ذمه وار دې ﴿لَّا تُسْـَٔلُونَ عَمَّآ أَجْرَمْنَا﴾ [تاسونه به زمونږ دګناهونو تپوس نه وي ﴿وَلَا نُسْـَٔلُ عَمَّا تَعْمَلُونَ﴾ او زمونږ نه به ستاسو دګناهونو تپوس نه وي او] ته دوی ته داهم ﴿قُلْ﴾ [ووايه چه] يو وخت خامخا راتلونکې دې په کوم کښې چه به ﴿يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا﴾ [زمونږ رب ټولو لره] يوځای [جمع کړي ﴿ثُمَّ يَفْتَحُ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ﴾ بيا به زمونږ په مينځ کښې] په عملي طور سره [ټيك ټيك فيصله وکړي ﴿وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيمُ﴾ او هغه لوئ فيصله کوونکې او] دټولو حال [پيژندونکې دې ته] داهم ﴿قُلْ﴾ [ووايه چه] تاسود الله تعالى دعالي شان اوکامل قدرت دليلونه واؤريدل او دخپلو بتانو بې وسی مو هم وليده ﴿أَرُونِيَ الَّذِينَ أَلْحَقْتُم بِهِۦ شُرَكَآءَ﴾ [ماته لږ خو هغه وښايئ کوم لره چه تاسو شريکان جوړکړي دي] په استحقاق دعبادت کښې [دخدای سره ملاؤ کړي دي ﴿كَلَّا﴾ هرګز] د هغه څوك شريك [نشته ﴿بَلْ﴾ بلکه] په واقع کښې ﴿هُوَ اللَّهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ [هم هغه دې الله تعالى] يعنې معبود برحق [زبردست حکمت والا دې]

## معارف او مسائل

﴿قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ﴾ مذکوره آيتونو مبارکو کښې اوفرمائيلې شو چې د الله ﷻ د يو حکم د نازليدو په وخت فرښتې بې خوده شي اوبيا چې په خود کښې راشي نو يوه بلې څخه تپوس کوي. دابيان په صحيح بخاري کښې دابي هريره رضي الله عنه په روايت داشان راغلې دې ، کله چې الله ﷻ په آسمان کښې څه حکم جاري کړي نو ټولې فرښتې د عاجزۍ او خاکسارۍ په وجه خپل وزرونه خوزوي کله چې د دوئ څخه د هيبت اوجلال د غه اثر لاړ شي نو وائي چې ستاسو رب څه اوفرمائيل ، نورې ورته وائی چې فلانې حق حکم ئې صادر کړې دې ، الحديث[۱].

اوصحيح مسلم دی چې ابن عباس رضي الله عنه د يو صحابي رضي الله عنه څخه دا روايت کوی چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائيل چې زمونږ رب کله چې څه حکم ورکوی نو د عرش پورته کوؤنکې فرښتې تسبيح کوی ، دهغې په آؤريدو سره د نزدې آسمان فرښتې تسبيح وئيل شروع کړي. بيا چې کله ددوئ تسبيح واؤري نو ددوئ څخه لاندې والا د آسمان فرښتې تسبيح کوی. تر دې پورې چې دا سلسله آسمانی دنيا ته راؤرسی. [او بيا ټولې فرښتې په تسبيح کولو کښې مشغولې شی] بيا هغه فرښتې د عرش حاملو فرښتو ته نزدې وی د هغوئ څخه تپوس کوی چې ستا

[۱] صحيح البخاري، كتاب التفسير، سورة سباء، باب فزع عن قلوبهم الآية: ج ۲، ص ۷۰۸

Scanned with Ca

رب څه اوفرمائیل، هغوئ ورته اووائی. بیا داشان د لاندې آسمان والا فرښتې د پورته آسمان والو څخه تپوس کوی. تر دې پورې چې د سوال او جواب دا سلسله لاندې آسمان ته راورسی الحدیث [مظهری] ([1]).

**په بحث او مناظره کښې د مخاطب د نفسیاتو خیال ساتل او راپاره کولو څخه ډډه کول** :: ﴿وَإِنَّآ أَوۡ إِيَّاكُمۡ لَعَلَىٰ هُدًى أَوۡ فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ﴾ دا خطاب مشرکانو او کافرانو سره دې ، په ښکاره دلیلونو سره دا واضح کړې شو چې الله ﷻ خالق ، مالك او قادر مطلق دې. د بتانو او غیر الله بې وسی او کمزوری ورته ښکاره کړې شوه ، ددې ټولو څخه روستو کافرانو او مشرکانو ته ددې وئیلو زمینه برابره شوې وه چې ورته ئې وئیلې وې چې تاسو ګمراهان او جاهلان یئ چې الله ﷻ پرېږدئی او د بتانو او شیطانانو عبادت کوئی ، خو دلته قرآن عظیم الشان داسې یو حکیمانه انداز اختیار کړو چې اهل باطل سره دبحث او مناظرې کوؤنکو دپاره یوه مهمه هدایت نامه داسې ده چې ورته ئې د کافرو او ګمراه وئیلو په ځائې دا انداز اختیار کړو چې ددې ښکاره دلیلونو په رڼا کښې هیڅ هوښیار بنده داسې نشی وئیلې چې توحید او شرك دواړه خبرې حق دی او مؤحدان او مشرکان دواړه حق پرست دی. بلکه یقیناً چې په دوئ کښې یوه ډله په حقه او بله ګمراه ده. اوس تاسو پخپله سوچ اوکړئی چې مونږ په حق یو او که تاسو ؟مخاطب به راپاره کیدو که ورته کافر وئیلې شوې وې ځکه داسې اونه فرمائیلې شو او د شفقت داسې انداز یې اختیار کړ و چې د سخت زړه خاوند هم په غور کولو مجبوره کیږی. [قرطبی و بیان القرآن] ([2]). دا د پیغمبری بلنه او نصیحت او ﴿مُجَادَلَه بِالَّتِي هِيَ أَحۡسَنُ﴾ طریقه چې هر وخت د علماؤ دپاره پکاره ده چې شاته اوغورځولې شی نو دعوت تبلیغ او بحث و مناظرې بې اثره بلکه مضره جوړیږی ، مخالفین په ضد کیږی او په ګمراهئ کښې نور هم سختیږی.

| | |
|---|---|
| إِلَّا كَآفَّةٗ لِّلنَّاسِ | وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ |
| مګر ټولو خلقو ته | اونۀ ئې لیږلې مونږ تۀ |
| او ائې نبی ﷺ مونږ ته ټولو خلقو | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا يَعۡلَمُونَ | أَكۡثَرَ ٱلنَّاسِ | وَلَٰكِنَّ | وَنَذِيرٗا | بَشِيرٗا |
| نۀ پوهیږی | زیات دخلقو نه | ولیکن | او یرونکې | زیرې ورکونکې |

دپاره [دجنت] زیرې ورکونکې او [دعذاب] نه ویرونکې جوړ کړې لیږلې یې | خو زیات خلق په دې نه پوهیږی

**آسان ترجمه قرآن**

**او (اے پیغمبره) مونږ تۀ د ټولو انسانانو دپاره داسې رسول جوړ کړې لیږلې ئې، چه زیرې هم ورکړې او خبردار ئې هم کړې لیکن اکثر خلق نه پوهیږی.**

---

[1]) صحیح مسلم، کتاب السلام، باب تحریم الکهانة واتیان الکهانة: ج۲، ص۲۳۲، وتفسیر المظهری: ج ۸، ص۲۸

[2]) تفسیر القرطبی بالاختصار: ج ۱۴، ص ۲۹۸، ۲۹۹، وتفسیر بیان القرآن: ج ۹، ص ۸۰، ۸۱

Scanned with Ca

## خلاصه تفسیر

﴿وَمَآ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ﴾ [او مونږ څو تاله دټولو خلقو دپاره] خواه پیریان وی یا انسانان عرب وی یا عجم موجود وی یا راتلونکی وی دټولو دپاره [پیغمبرجوړکړې لیږلې ئې] په ایمان راوړو دوی ته زمونږ درضا او ثواب ﴿بَشِيۡرًا وَّنَذِيۡرًا﴾ [خوشخبری اوړونکې او] په ایمان نه راوړو دوی ته زمونږ دعذاب او غضب نه [ویرونکې ﴿وَّلٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَعۡلَمُوۡنَ﴾ لیکن اکثر خلق نه پوهیږی] دجهالت یاعناد په وجه سره په انکار او تکذیب کښې لګیدلی وی.

## معارف او مسائل

﴿وَمَآ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا كَآفَّةً﴾ تیرو شوؤ آیتونو کښې دابیان وو چې الله ﷻ هیڅ شریك نه لری او قادر مطلق دې، اوس په دې آیت مبارك کښې د پیغمبرئ او خصوصا زمونږ د پیغمبر ﷺ د ټولې دنیا خلقو دپاره چې موجود دی او که روستو به رازی ، پیغمبر کیدل بیان شوی دی.

﴿كَآفَّةً لِّلنَّاسِ﴾ عربی محاوره کښې ﴿كَآفَّةً﴾ لفظ دې دپاره استعمالیږی چې یو څیز لره ټولو طرفونو او خلقو شامل شوی او د څیز هیڅ اړخ او هیڅ غړې ترې بهر نه وی او هم په دې غرض: ﴿كَآفَّةً لِّلنَّاسِ﴾ اوفرمائیلې شو حالانکه ﴿لِّلنَّاسِ كَآفَّةً﴾ وئیل پکار وو ، ولې چې د قواعد عربی په لحاظ ﴿كَآفَّةً﴾ د ﴿لِّلنَّاسِ﴾ دپاره حال دې او حال د ذی الحال څخه روستو ذکر کیږی.

پخوانی ټول پیغمبران ﷺ به یو خاص علاقې او خاص قوم دپاره رالیږلې شو خو نبی اکرم ﷺ ته دا خاص فضیلت حاصل شو چې د نبی اکرم ﷺ پیغمبری ټولې دنیا دپاره عامه کړې شوه چې انسانانو سره جنات هم په کښې شامل وی . او صرف دموجوده خلقو دپاره هم نه بلکه تر قیامته پورې راتلونکی ټول خلق هم په کښې شامل دی ، په دې بنا یقینی خبره ده چې د نبی اکرم ﷺ پیغمبری به تر قیامته پورې جاری او باقی وی ، ولې چې نبی اکرم ﷺ خاتم النبین دی ، او بل څوك پیغمبر کیدونکې د نبی اکرم ﷺ څخه روستو نشته. الله ﷻ د نبی اکرم ﷺ د شریعت او د خپل کتاب قرآن عظیم الشان د حفاظت ذمه داری تر قیامته پورې پخپله اخستې ده ، څکه به تر قیامته پورې پخپل اصلی حالت باندې پاتې کیږی او دبل چا د پیغمبر کیدو هیڅ ضرورت به نه وی.

صحیح بخاری او صحیح مسلم کښې د جابر ﷺ څخه روایت دې چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې ما ته داسې پنځه څیزونه راکړې شوی دی چې زما څخه وړاندې بل هیڅ یو پیغمبر ته نه دی ورکړې شوی . یو دا چې زما مدد په داسې رعب راکولو سره الله ﷻ اوفرمائیلو چې د یوې میاشتې په مزل هغه رعب په خلقو باندې خوریږی . دویم دا چې زما دپاره ئې ټوله زمکه دمونځ کولو ځائې او پاکوؤنکې ګرځولې شوې ده . دریم دا چې هم زما دپاره دغنیمت مال حلال ګرځولې شوې دې ، زما څخه وړاندې هیڅ یو امت دپاره دغه مال حلال نه وو. څلورم داچې ما ته د شفاعت کبری مقام راکړې شوې دې . پنځم دا چې زما څخه وړاندې هر یو پیغمبر ﷺ به خپل خاص قوم ته لیږلې شو خو زۀ ددنیا ټولو قومونو ته دپیغمبر ﷺ په حیث لیږلې شوې یم . [ابن کثیر] [1]

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥١٨، وصحیح البخاری، کتاب الصلاة، باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: جعلت لی الارض مسجداً… الخ: ج ١، ص ٦٢، وصحیح مسلم، کتاب مساجد ومواضع الصلاة: ج ١، ص ١٩٩

| قُلْ | صٰدِقِيْنَ﴿٢٩﴾ | اِنْ كُنْتُمْ | هٰذَا الْوَعْدُ | مَتٰى | وَيَقُوْلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ورته اووایه | ربنتيني (۱) | که يئ تاسو | دا وعده [قيامت] | کله به وی | او وائي دوئ |

اودوئ رائی چې دا [دقيامت وعده] به کله پوره کيږی | که چرې تاسو رينتوني يئ | ته ورته

| عَنْهُ | لَّا تَسْتَأْخِرُوْنَ | مِّيْعَادُ يَوْمٍ | لَكُمْ |
|---|---|---|---|
| دراتلو دهغې نه | چې تاسو روستو والې نشئ کولې | نيټه ديوې ورځې | مقرره ده ستاسو دپاره |

اووايه چې تاسو سره ديوې داسې ورځې وعده ده | چې نه به ترې يو ساعت روستو

| كَفَرُوْا | وَقَالَ الَّذِيْنَ | وَّلَا تَسْتَقْدِمُوْنَ﴿٣٠﴾ | سَاعَةً |
|---|---|---|---|
| چې کافران دي | اووائی هغه کسان | اونه ئې مخکښې راوستلې شئ [يو ساعت] | يو ساعت |

کيديشی اونه به ترې مخکښې کيديشی | اودا کافران وائی (۲) چې

[1] بيا دَ کافرانو دَ قيامت محال کيدل بيانوی. تپوس کوی چه قيامت به کله راځی؟ لکه چه بل ځائ ارشاددې بې ايمانه دَ دې دَ پاره تندی (تلوار) کوی اوايماندار دَ دې دَ ويرې نه رچيږی. اودا حق ګنړی. الخ. جواب ورکوی چه ستاسو دَ پاره دَ وعدې ورځ مقرره شوې ده. په کوم کښې چه وړانديوالې روستووالې کمې زياتې ناممکن دې. لکه ﴿اِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ اِذَا جَآءَ لَا يُؤَخَّرُ لَوْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ﴾ (۷۱/نوح:٤) نورئې اوفرمائيل ﴿وَمَا نُؤَخِّرُهٗٓ اِلَّا لِاَجَلٍ مَّعْدُوْدٍ﴾ (۱۱/هود:۱۱٤) يعنی هغه مقررشوې وخت روستوکيږی نه. تاسو ته دَ دغه مقرر وخت پورې وخت دې کله چه هغه ورځ راغله بيابه څوك شونډې هم اونه خوزولې شی. په هغه ورځ به بعضې نيك بخت وی اوبعضې بدبخت.

[2] **دَ کافرانو نه منل اوسرکشی:-** دَ کافرانودَ سرکشئی اودَ باطل دَ ضد بيان کولې شی چه هغوی فيصله کړې ده که دَ قرآن پاك دَ حقانيت په زرګونودليلونه اووينی خومنی به ئې نه. بلکه دَ دې نه په وړاندې کتاب هم ايمان نه راوړی. دوی له به دَ خپلې وينا مزه هغه وخت راشی چه کله دَ الله تعالی په وړاندې دَ دوزخ په غاړه په ولاړه ولاړه مشران کشرانوته اوکشران مشرانو ته الزامونه ورکوی اوهريويه بل قصوروار ګنړی. تابعداران به خپلوسردارانوته وائی که تاسومونږ نه رامنع کولو نومونږ به خامخا ايمان راوړلې وو. دَ هغوی مشران به هغوی له جواب ورکوی چه آيا مونږ تاسو رامنع کړې وئی؟ مونږ يوه خبره اوکړه تاسو ته پته وه چه دابې دليله خبره ده.
بل طرف ته دَ دليلونوباران په تاسو راوريدو اوستاسو دَ سترګو په وړاندې وو بيا تاسو دَ هغه تابعداری پريخوده زمونږه مو ولې منل؟ ستاسو خپله بې عقلی وه اوستاسو پخپله شهوت خوښ وو. ستاسو خپل زړونه دَ الله تعالی دخبرونه تختيدل. دَ رسولانوتابعداری پخپله ستاسو په ځانونو اوطبيعتونو باندې ګرانه اوسخته تيريده. ټول قصور هم ستاسو خپل وو مونږ ته ولې الزام راکوئی؟دا بې دليله دَ خپلو بزرګانو منونکی به بيا جواب ورکړی چه شپه ورځ ستاسو دهوکه بازی جعل سازی مکر فريب مونږ ته تسلی راکړه چه زمونږ افعال اوعقيدې ټيك دی. مونږ ته باربار کفراوشرك نه پريخودل زوړدين نه بدلول دپلارانونيکونو په زړو طريقو قايم اودريدل اوزمونږ ملا تپول هم دغه سبب شو زمونږدَ ايمان نه دَ بنديدلوهم تاسو به راتلئی اودَ دروغو عقلی خبرې به مو راته کولې اودَ اسلام نه به مو مونږ اړولو. دواړه الزامونه به هم ورکوی اوصفائی به هم کوی خوپه زړه کښې په خپلو کړو باندې پښيمانه وو. دَ دې ټولولاسونه به سټ سره په طوق اوزنځير سره اوتړلې شی. اوس به هريوته دَ هغه دَ اعمالو مطابق بدله ورکولې شی. ګمراه کونکوته هم اوګمراه کړې شووته هم.هريوته...

[باقی حاشيه په راروانه صفحه..

لَنْ نُّؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَلَا بِالَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ ۭ وَلَوْ تَرٰٓى

هرگز مونږ نه منو | دا قرآن | اونه هغه کتاب |چی مخکښی ددې نه دې|اوکاش چی ته اووینې

مونږ به هیڅکله په دې قرآن باندې ایمان نه راوړو|اونه په هغه کتاب چې ددې نه وړاندې نازل شوی وو

اِذِ الظّٰلِمُوْنَ مَوْقُوْفُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ښ يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ

کله چی داظالمان خلق |اودرولې شوی وی| په دربار درب خپل کښی | واپس کوی به | ځینی دهغوئ

اوکه ته هغه وخت اوګورې چې څه وخت دا ظالمان به خپل رب ته مخامخ اودرولې شی |په یو بل باندې

اِلٰى بَعْضِ الْقَوْلَ ۚ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا لِلَّذِيْنَ

ځینی نوروته|خبره [داسې چې] | وائی به | هغه کسان | چی کمزوری ګڼړلې شوی وو| هغه کسانوته

به الزامونه لګوی | .........کمزوری خلق به غټانو خلقو ته دا وائی چې

اسْتَكْبَرُوْا لَوْلَآ اَنْتُمْ لَكُنَّا مُؤْمِنِيْنَ ۝ قَالَ

چی ځان ئې غټ ګڼړلې وو | که چرې نه وې تاسو | نو خامخا وو به مونږ | مومنان | اوبه وائی

که تاسو موجود نه وئ | نومونږ به ایمان راوړې وې | نو غټان به کمزورو

الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْٓا اَنَحْنُ

هغه کسان | چی ځان ئې غټ ګڼړلې وو | هغه کسانوته | چی کمزوری ګڼړلې شوی وو | آیا مونږه

ته جواب ورکړی | چې آیا تاسو مونږ دهدایت قبلولو نه منع کړی وئ | څه وخت چې هدایت

صَدَدْنٰكُمْ عَنِ الْهُدٰى بَعْدَ اِذْ جَآءَكُمْ بَلْ كُنْتُمْ

منع کړی وئ تاسو | دهدایت نه | روستو دهغې نه | چی راغلې وو تاسو ته | بلکه وئ تاسو

تاسو ته راغلې وو ؟ | بلکه تاسو په خپله قصور کړې وو

مُّجْرِمِيْنَ ۝ وَقَالَ الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا لِلَّذِيْنَ

مجرمان | اواوبه وائی هغه کسان | چی کمزوری ګڼړلې شوی وو | هغه کسانوته

او کمزوری خلق به دغه غټانو ته اووائی چې [داخو] ستاسو

---

....باقي پاتې د ترمغ].. به پوره پوره عذاب ورکولې شي. رسول الله ﷺ فرمائی چه کله دوزخیان دَ دوزخ دَ رسولودَ پاره اوشړلې شي نودَ دوزخ دَ یوې لمبې په وجه به دَهغوی دَ بدن ټوله غوښه اوسوزی او پښو کښې به ئې راپریوځی. ابن ابی حاتم کښې حسن بن یحیی نعشی رحمة الله علیه فرمائی چه دَ دوزخ په هره یوه قیدخانه کښې هریوغر اوهریوزنځیر په هریوقیدباندې به دَ دوزخی نوم لیکلې وی. کله چه دَ سلیمان دارانی رحمة الله علیه په وړاندې دا بیان کړې شو نو هغوی ډیر خفه شو او وئې فرمائیل هائې هائې بیابه څنګه حال وی په هغه باندې چه دا ټول عذابونه پرې اچولې شوی وی. په پښوکښې بیړنې وی په لاسونوکښې هتکړنې په سټ کښې طوق وی بیا دَ دوزخ غارته ورډیکه کړې شي. الله تعالی دې مونږ بچ کړی اومونږ دې الله سلامت اوساتی.اللهم سلم

اسْتُكْبِرُوْا | بَلْ مَكْرُ الَّيْلِ | وَالنَّهَارِ | اِذْ تَاْمُرُوْنَنَآ

چې خان ئې غټ ګنړلي وؤ | بلکه مکرونه دشپې وؤ | او دورځې وؤ | چې تاسو به حکم کوؤ مونږ ته

دسبا بیګاه مکرونو مونږ منع کړی وو | چې تاسو به راته هروخت ویناګانې کولې

اَنْ نَّكْفُرَ | بِاللّٰهِ | وَنَجْعَلَ | لَهٗٓ | اَنْدَادًا ؕ | وَاَسَرُّوا

چې مونږه کفر اوکړو | دالله سره | او جوړ کړو | هغه لره | شریك | او پټه به کړی دوی

چې مونږ دالله ﷻ نه انکار اوکړو | اوهغه دا چې هغه لره شریکان جوړ کړو | او

النَّدَامَةَ | لَمَّا | رَاَوُا | الْعَذَابَ ؕ | وَجَعَلْنَا | الْاَغْلٰلَ | فِيْٓ اَعْنَاقِ

بښیمانتیا | هر کله چې | اووینی دوئ | عذاب | اووابه چوؤ مونږه | پټئ | په ځټونو کښې

چې عذاب اووینی نو خپله پښیمانی به پټوی |............اومونږ به دهغوخلقو په غاړه کښې طوقونه

الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا ؕ | هَلْ يُجْزَوْنَ | اِلَّا مَا | كَانُوْا

دهغه کسانو | چې کفر ئې کړې دي | نهٔ به ورکړې کیږی بدله | مګر دهغه عمل | چې وؤ دوئ

واچوؤ کومو چې کفر کړې دې | دوئ ته بهٔ هم دهغه عملونوسزا ملاویږی | کوم چې ئې کړې

يَعْمَلُوْنَ ۝

چې کوؤ به ئې |

وو |

## آسان ترجمه قرآن

او (تاسوته) دوی وائی چه: که تاسو رشتونې یئ نو دا (د قیامت) وعده به کله پوره کیږی؟ اووایه چه ستاسودپاره دیو داسې ورځې نیټه مقرره چه دهغې نه تاسو نهٔ یو ساعت روستې کیدې شئ، او نهٔ مخکښې کیدې شئ او کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې، هغوی وائی چه: مونږ نه خو په دې قرآن مجید باندې چرې ایمان راوړو، او نه په هغه (آسمانی کتابونو) باندې، چه ددې نه مخکښې تیر شوې دی، او که ته د هغه وخت منظر اووینې، چه کله دا ظالمان خلق دخپل پروردګار مخکښې اودرولې شی،نو دوی به په یو بل باندې خبره اچوی، کومو خلقو لره چه (په دنیا کښې) کمزورې ګنړلې شوې وو، هغوی به هغې خلقوته اووائی، کوم چه مشران جوړ شوې وو چه که تاسونه وې،نومونږبه ضرور مومنان وو. اوکوم خلق چه مشران جوړ شوې وو،هغوی ته به اووائی کوم چه کمزورې ګنړلې شوې وو چه: آیامونږ تاسود هدایت نه منع کړې وئ،هرکله چه هغه تاسو ته راغلې وو؟ اصل خبره داده، چه تاسو خپله مجرمان وئ.او کومو لره چه کمزورې ګنړلې شوې وو، هغوی به هغې خلقو ته اووائی چه مشران جوړ شوې وو چه: نه، دا ستاسو د شپې او ورځې مکاری وه (چه مونږ ئې منع کړو) کله چه تاسو مونږته تاکید کولو چه مونږ د الله تعالی سره د کفر معامله اوکړو، اودهغهٔ سره (نورخلق) شریک اومنو، او دوی ټول چه کله عذاب لره اووینی نوخپله پښیمانی به پټوی او کومو کومو خلقو چه کفر اختیار کړې وو،مونږبه دهغوی ټولو په ځټونوکښې طوقونه واچوؤ هغوی ته به دبلې څه خبرې نه،بلکه دهغې عملونو بدله ورکولې شی،کوم چه هغوی کول.

Scanned with CamScanner

## خلاصه تفسير

﴿وَيَقُولُونَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِينَ﴾[او داخلق] دقيامت متعلق مضامين [بجمع بيننا ربنا ثم يفتح الخ] واوړي نو وائي چه دا وعده به کله واقع کيږي که تاسو [يعني نبي او دهغوئ متبعين] ريښتوني ئې؟ ﴿قُلْ لَكُمْ مِيعَادُ يَوْمٍ﴾ نو اووائي [ته ووايه چه ستاسو دپاره ديوې خاص ورځې وعده] مقرر[ده ﴿لَا تَسْتَأْخِرُونَ عَنْهُ سَاعَةً وَلَا تَسْتَقْدِمُونَ﴾ د هغې نه نه يوه ګړئ وروستوکيدې شئ اونه وړاند کيدې شئ] يعني اګر چه مونږ وخت نه ښايو دکوم چه تاسو تپوس کوئ مګر راځي به دکومې نه چه په دې تپوس کولو ستاسو مقصود انکار کول دي﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [او داکفار] په دنياکښې خوشې خبرې جوړوي او[وائي ﴿لَنْ نُؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْآنِ﴾ چه مونږ هرګز نه په دې قرآن ايمان راوړو﴿وَلَا بِالَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ او نه ددې په وړاند کتابونو او] په قيامت کښې به دا ټولې لنډې اوږدې خبرې ختمې شي چنانچه ﴿وَلَوْ تَرٰى إِذِ الظّٰلِمُونَ مَوْقُوفُونَ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾ [که ته د دوی د [هغه وخت حالت ووينې] نو يوهولناك منظر به درته په نظر راشي [هرکله چه داظالمان دخپل رب په وړاند ودرولې شي﴿يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ إِلٰى بَعْضِ الْقَوْلَ﴾ په يوبل به خبره ورغورزوي] لکه چه ديوکارد وړاندې کيدو په وخت کښې عادت وی چنانچه ﴿يَقُولُ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا لَوْلَا أَنْتُمْ لَكُنَّا مُؤْمِنِينَ﴾ [د ادنی درجې خلق] يعني متبعين [به لويو خلقو ته] يعني خپلو مقتداؤ ته [وائي چه] مونږ خو ستاسو په سبب برباد شو [که تاسونه وې نو مونږ به خامخا ايمان راوړې وې] ﴿قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا﴾ په دې به دا [لوئ خلق ووائي د هغه ادنی درجې خلقو ته چه﴿أَنَحْنُ صَدَدْنٰكُمْ عَنِ الْهُدٰى بَعْدَ إِذْ جَاءَكُمْ بَلْ كُنْتُمْ مُجْرِمِينَ﴾ ايا مونږ تاسو لره] په عمل کولو[دهدايت نه] په زبردستئ [منع کړې وئ پس ددې نه چه هغه هدايت [تاسوته رسيدلې وو داسې نه ده بلکه تاسو قصور وارېئ] چه دحق ظاهريدونه پس موهم قبول نه کړو اوس ئې زمونږ په سر راتپئ [او] ددې په جواب کښې به ﴿وَقَالَ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا﴾[د داکمې درجې خلق ووائی لويو خلقو ته چه] مونږ دانه وايو چه تاسو زبردستی کړې وه ﴿بَلْ مَكْرُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ﴾[داسې نه ده بلکه ستاسو دشپې ورځې تدبيرونو منع کړې وو ﴿إِذْ تَأْمُرُونَنَا أَنْ نَكْفُرَ بِاللّٰهِ وَنَجْعَلَ لَهُ أَنْدَادًا﴾ هرکله چه به تاسو مونږ ته وئيل چه مونږ دې په الله تعالی باند کفر وکړو او هغه لره شريك مقرر کړو] دتدبيرونو نه مراد ترغيب او ترهيب دې يعنی دشپه ورځ ددغو تعليماتو او د دوی دتدبيرونو اثر وشو او تباه برباد شو بس مونږه خوتاسو خراب کړو [او] په دې خبرواترو کښې خو به هرسړې په بل الزام لګوی مګر په زړه کښې به په خپل خپل قصور هم پوهيږی ګمراه کوونکی به پوه شی چه مونږ خو واقعی چه داسې کړې وو اوګمراهان به پوه شي چه اګرکه دوی مونږ ته غلطه لار ښودلې وه ليکن مونږه خو هم اخر په خپله نفع نقصان پوهيدو خامخا زمونږ هم بلکه زيات قصور زمونږ دې ليکن ﴿وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ﴾[هغه خلق به] خپلې دې [پښيمانئ لره] د يوبل نه [پټه ساتی هرکله چه] په خپل خپل عمل [عذاب] کيدونکې [ووينی] ددې دپاره چه پنګې دنقصان د سره دګاونډی خوشحالی نه وی ليکن په اخرکښې به دسخت عذاب په وجه دغه تحمل هم ختم شی [او] دې ټولو ته به په شريکه دا عذاب ورکړې شی چه ﴿وَجَعَلْنَا الْأَغْلٰلَ فِي أَعْنَاقِ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾[مونږ به د کافرانو په څټونو کښې طوقونه واچوو] او په لاسو پښو کښې زنځيرونه بيا به

ئ په كنبي كلك كړو جهنم ته به وروغورزولې شي ﴿هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّامَا كَانُوْايَعْمَلُوْنَ۝﴾[څه چه ئې كول هغه ئې بيا موندل]

وَمَآ اَرْسَلْنَا　فِيْ قَرْيَةٍ　مِّنْ نَّذِيْرٍ　اِلَّا　قَالَ

| اونهٔ دې ليږلي مونږه | په يوكلي كښي | څوك يرونكې | مكر | اووئيل

| اومونږ چې كوم كلي ته هم يو پيغمبر ليږلي دې | نود هغې كلي

مُتْرَفُوْهَآ ۙ　اِنَّا　بِمَآ　اُرْسِلْتُمْ

مالدارو خلقو دهغه كلي | بيشكه مونږه | په هغه پيغام سره | چې راليږلي شوى يئ تاسو

مالدارو به وئيل | ............ چې تاسو كوم حكمونو راوړى دى مونږ د هغې نه

بِهٖ　كٰفِرُوْنَ۝　وَقَالُوْا　نَحْنُ　اَكْثَرُ　اَمْوَالًا

په هغې سره | نهٔ منونكي يو | اواووئيل هغوئ | مونږه | زيات يو | په لحاظ دمال سره

انكار كوو | ........... اوهغوئ دا هم وئيلي دى | چې مونږ د مال او اولاد په لحاظ سره ستاسو

وَّاَوْلَادًا ۙ　وَّمَا نَحْنُ　بِمُعَذَّبِيْنَ۝　قُلْ　اِنَّ رَبِّيْ　يَبْسُطُ

اواولاد سره | اونهٔ يو مونږه | عذابيدونكي | ورته اووايه | بيشكه رب زما | فراښه كوي

نهٔ ډير زيات يو | اومونږ ته به هيڅ عذاب نشي راكولي | ته ورته اووايه چې زما رب

الرِّزْقَ　لِمَنْ　يَّشَآءُ　وَيَقْدِرُ　وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ　النَّاسِ

رزق | دپاره دهغه چا | چې غواړى هغه | او په اندازه كوى رزق | وليكن | زيات دخلقو نه

دچا باره كښې اوغواړى | نو روزى ورته فراخه كړى | يا [روزى] ورته تنګه كړى | خوزيات خلق په دې

لَا يَعْلَمُوْنَ۝ ع　وَمَآ اَمْوَالُكُمْ　وَلَآ اَوْلَادُكُمْ　بِالَّتِيْ

نهٔ پوهيږى په حقيقت | اونهٔ دى مالونه ستاسو | اونهٔ اولاد ستاسو | داسې څيز |

خبره نه پوهيږى | او ستاسو دا مالونه او اولاد تاسو زمونږ په دربار كښې

تُقَرِّبُكُمْ　عِنْدَنَا　زُلْفٰىٓ　اِلَّا　مَنْ　اٰمَنَ

چې نزدې كوى تاسوا | مونږ ته | په نزديكت سره | ماسوا | دهغه چانه | چې ايمان ئې راوړو

نزدې كولې نشى | .............البته هغه خلق چې ايمان راوړى | او هغوئ نيک

وَعَمِلَ صَالِحًا ۙ　فَاُولٰٓئِكَ　لَهُمْ　جَزَآءُ　الضِّعْفِ

او عمل ئې اوكړو نيك | پس دا خلق دې | چې ده دپاره ددوئ | بدله | ددوچندوالى |

عمل هم اوكړى | نو هغوئ ته بهٔ دخپل عمل دوچنده بدله وركولې شى

بِمَا　عَمِلُوْا　وَهُمْ　فِي الْغُرُفٰتِ　اٰمِنُوْنَ۝

په سبب دهغې عملونو | چې كړى دى دوئ | او دوئ به | په دنګو ماڼو كښى | په امن سره وسى

اوهغوئ به د جنت په بالاخانو كښې په امن سره اوسيږى|

Scanned with Ca

| وَالَّذِيْنَ | يَسْعَوْنَ | فِيْٓ اٰيٰتِنَا | مُعٰجِزِيْنَ |
|---|---|---|---|
| او هغه کسان | چې کوشش کوي | په آیتونو زمونږ کښې | دپاره دعاجزه کولو [دآيتونو زمونږ] |

او کوم خلق چې زمونږ دآیاتونو د ناکامه کولو کوشش کوي

| اُولٰٓئِكَ | فِي الْعَذَابِ | مُحْضَرُوْنَ۝ |
|---|---|---|
| دا کسان به | په عذاب کښې | حاضر کړې شوي وي |

نو هغوی به عذاب ته ورمخامخ کړې شي |

## آسان ترجمه قرآن

اوکوم يو کلي ته چه مونږ خبردار کونکې پيغمبر اوليږلو، نو دهغې (کلي) مالدارو خلقو هم دا اووئيل چه: په کوم پيغام سره چه تاسو راليږلې شوی يئ، مونږ دهغې د منلو نه انکار کوو او وائي چه: مونږ په مال او اولاد کښې ستاسو نه زيات يو، او مونږ باندې عذاب راتلونکې نه دې. اووايه چه: زما پرورد گار چا دپاره چه اوغواړي، رزق فراخوي، او (د چا دپاره چه اوغواړي) رزق تنګوي. ليکن اکثر خلق دې خبرې باندې نه پوهيږي او نه ستاسو مالونه تاسو ته د الله تعالیٰ قرب درکوي، او نه ستاسو اولاد، خو. مګر کومو خلقو چه ايمان راوړو، او نيک عمل ئې (اختيار) کړو، نو داسې خلقو ته به دهغوی د عمل دوچند ثواب ملاويږي او هغوی به (د جنت) په بالاخانو کښې آرام کوي، او کوم خلق چه زمونږ د آيتونو باره کښې دا کوشش کوي، چه هغې لره ناکامه کړې شي، نو هغوی به په عذاب کښې حاضر کړې شي.

## خلاصه تفسير

[او] اے پيغمبر صلی الله عليه وسلم ددې خلقو په ګمراهانه او جاهلانه خبرو مه غمژن کيږې خکه چه دامعامله نااشنا ستاسره نه ده شوې بلکه ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّذِيْرٍ﴾ [مونږ يو کلی ته يو ويرونکې] پيغمبر [نه دې ليږلې ﴿اِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَآ﴾ مګر دهغه ځای خوشحاله خلقو] ددې زمانې دکفارو په شان [دا ووئيل ﴿اِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ۝﴾ چه مونږ خو دهغو احکامونه منکر يو په کومو چه تاسو راليږلی شوی يئ: ﴿وَقَالُوْا نَحْنُ اَكْثَرُ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا﴾ او هغوی داهم ووئيل چه مونږ په مال او په اولاد کښې تاسو نه زيات يو] لکه چه وئيلې شوی دی په سوره کهف کښې [انا اکثر منك مالا واعز نفرا(۱)] [او] دادليل دې زمونږ دعزتمند اومقبول عندالله کيدو پس ﴿وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ۝﴾ [مونږ ته به چرې عذاب نه شي] او داخبره به دمکې کفارو کوله لکه چه الله تعالیٰ فرمائي [قال الذين کفروا للذين امنوا اي الفريقين خير مقاما(۲)] پس غم مه کوه البته د دوی دخبرې رد وکړه او ددوی ته داسې ﴿قُلْ﴾ [ووايه چه] درزق دفراخئ مدار په قبوليت عندالله نه دې بلکه محض په مشيت سره دې چنانچه ﴿اِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ﴾ [زما پرورد ګار چالره چه غواړي زيات رزق ورکوي او چالره چه غواړی کم رزق ورکوي] او په دې کښې حکمتونه وی ﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ۝﴾ [ليکن اکثر خلق] ددې نه [خبر نه دی] چه مدار ددې په نورو مصلحتونو باندې په قبوليت عندالله نه دې [او] اے کفارو داهم واورئ چه لکه څنګه ستاسو

۱) ترجمه: زه ستانه په مال کښې هم زيات يم او زما مجمع (خلق) هم زيات دی.
۲) ترجمه: دا کافران مسلمانانو ته وايي چه په دواړو ډلو کښې کور د چاه خه دے او محفل د چاه خه دے.

مالونه اواولاد دليل اونبنه دقرب عندالله نه ده دغه شان ﴿وَمَآ أَمْوَالُكُمْ وَلَآ أَوْلَادُكُم بِالَّتِي تُقَرِّبُكُمْ عِندَنَا زُلْفَىٰ﴾ [ستاسو مالونه اواولاد داسې څیزونه نه دی کوم چه تاسولره په درجه کښې مونږ ته نزدې جوړ کړی] يعني موثر او علت دقرب هم نه دی پس نه مالونه او اولاد په قبوليت مرتب دی اونه په مالونو او اولاد باندقبوليت مرتب دې ﴿إِلَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا﴾ البته مگرڅوك چه ايمان راوړی اونيك كارونه وكړی] دا دواړه څیزونه البته سبب دقرب دی ﴿فَأُولَٰئِكَ لَهُمْ جَزَاءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا﴾ [پس دداسې خلقو دپاره د دوی د] نيك [عمل دوچند صله ده] يعني دعمل نه زيات خواه د دوچندنه هم زيات وی لكه داقول دالله تعالى دی [من جاء بالحسنة فله عشر امثالها()] ﴿وَهُمْ فِي الْغُرُفَاتِ آمِنُونَ﴾ او دوی [به] دجنت [په بالاخانو كښې په آرام سره] ناست [وی ﴿وَالَّذِينَ يَسْعَوْنَ فِي آيَاتِنَا مُعَاجِزِينَ﴾ اوكوم خلق چه] د دوی خلاف محض په مالونو اوپه اولاد باند مغرور دی او ايمان اونيك عمل نه اختيار وی بلكه هغوی [زمونږ دايتونو متعلق] ددې دباطلولو[كوشش كوی] دنبی [دكمزوری كولودپاره ﴿أُولَٰئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُونَ﴾ داسې خلق به په عذاب كښې گیرراوستلې شی] .

## معارف او مسائل

**دنيوی دولت او عزت د الله تعالى په نزد د مقبوليت دليل جوړول زوړ شيطانی تيروتل دی ::** ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَا﴾ ددنيا دشروع څخه دنيوی دولت او عيش باندې مست خلقو هميشه دپاره دحق آواز مخالفت او انبياء كرامو ؑ صالحانو سره د دښمنۍ طريقه اختيار كړې ده . الاما شاء الله. عجيبه خبره داده چې هغوئ د اهل حق په مقابله كښې پخپل موجوده حالت باندې مست وی او پخپلو مطمئن كيدو باندې دادليل هم وړاندې كوی چې كه زمونږ عملونه اوعادتونه د الله ﷻ خوښ نه وې نو مونږ ته به ئې ددنيا دولت او عزت او حكومت ولې راكولو. قرآن عظيم الشان ددې جواب ګڼړو آيتونو مباركو كښې په مختلفو عنوانو سره وركړې دې ، ددې آيتونو مباركو نازليدل هم داشان يوې واقعې سره تعلق لری او ددې بې هوده دليل جواب دې .

د يو حديث پاك مطابق د جاهليت په زمانه كښې دوه كسان په كاروبار كښې شريك وو. دې دواړو كښې يو كس دغه خائې پريخودو او ساحلی علاقې ته لاړو. كله چې رسول كريم ﷺ مبعوث شو او د نبی اكرم ﷺ د پيغمبرئ او رسالت ښه شهرت شو نو ساحلی ملګری دمكې مكرمې ملګری ته خط اوليكلو چې تاسو د نبی اكرم ﷺ دپيغمبرئی د دعوې څخه څه اثر واخستو. مكی ملګری ورته اووئيل چې په قريشو كښې خو څوك هم د نبی اكرم ﷺ ملګری نه دی. يوازې داسې خلق نبی اكرم ﷺ پسې روان دی چې هغوئ غريبانان ، مسكينان او بې حيثيته دی. ساحلی ملګری هلته د تجارت كاروبار پريخودو او مكې مكرمې ته راغلو او خپل ملګری ته ئې اووئيل چې ماته د نبی اكرم ﷺ څه معلومات راكړه. دغه ساحلی ملګری به د تورات او انجيل وغيره څه مطالعه كوله. د نبی اكرم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او تپوس ئې اوكړو چې تاسو د څه څیز طرفته بلنه وركوئی ؟ نبی اكرم ﷺ ورته د اسلامی بلنې مهمې حصې بيان كړې. دهغې په آوريدو هغه سمدستی اووئيل چې ﴿اشهد انك رسول الله﴾ [از

[1] ترجمه: كوم سړے چه څه كار اوكړی نو هغې ته به (د هغې نيك كار) لس حصے ملاوېږی.

Scanned with Ca

ګواهي ورکوم چې ته د الله ﷻ پیغمبر یې] نبی اکرم ﷺ تري تپوس اوکړو چې تاته دا څنګه معلوم شو؟ هغه عرض اوکړو چې هر څومره پیغمبران ﷺ راغلی دی په اول اول کښې د هغوئ ﷺ ملګری دقوم فقیران ، غریبانان او دنیا کښې د کم حیثیت خاوندان وو، په دغې موقعه دا آیت نازل شو ﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَا فِي قَرۡيَةٖ مِّن نَّذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتۡرَفُوهَآ﴾ [ابن کثیر ومظهری](۱).

مترف د ترف څخه مشتق دې ،ددې معنی د ناز ، نعمت او مزو ، چرچو زیاتوالي دې ، مراد ترې غنیان ، مالداران ، شتمن اودقوم سرداران دی ، قرآن عظیم الشان ددې آیتونو ځینې په رومبی آیت کښې فرمائی چې کله مونږ څوك رسول لیږلي دې نو د مال ودولت په نشه کښې مست او په مزو کښې ډوب خلقو د هغه مقابله په کفر او انکار سره کړې ده .

دویم آیت مبارك کښې د دوئ دا قول نقل کوی چې ﴿نَحۡنُ أَكۡثَرُ أَمۡوَٰلٗا وَأَوۡلَٰدٗا وَمَا نَحۡنُ بِمُعَذَّبِينَ﴾ [مونږ تاسوځخه په مال او دولت او اولاد کښې زیات یوځکه به مونږ ته عذاب نشی راکولې]په ظاهر ددوئ دوینا مطلب داووچې که د الله ﷻ مونږ ته عذاب راکول پیرزو وې نو مونږ ته به ئې دومره دولت او عزت او اولاد ولې راکولو؟ قرآن عظیم الشان په دریم او څلورم آیت مبارك کښې ددې جواب ورکړې دې چې : ﴿قُلۡ إِنَّ رَبِّي يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقۡدِرُ﴾ او ﴿وَمَآ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُم﴾ الاية .

خلاصه د جواب داده چې په دنیا کښې د مال ، دولت یا عزت او مرتبې کمې زیاتې د الله ﷻ په نزد دمقبول یا دمردود کیدو دلیل نه دې بلکه د تکوینی ښیګړو تر مخه په دنیا کښې خو الله ﷻ چاته چې غواړی ښه زیات مال ، دولت ورکوی ، چاته چې غواړی کم ورکوی ، چې تکوینی حکمت ئې هم الله ﷻ پیژنی ، خو دمال اولاد ډیر والي د الله ﷻ په نزد دمقبولیت دلیل ګڼړل جهالت دې ، ځکه چې دهغه په نزد مقبولیت صرف په ایمان او نیك عمل باندې اړه لری. که دا نه وی او مال او اولاد هر څومره ډیر شی په هغې سره د الله ﷻ په نزد مقبول جوړیدل نشی کیدې. نو دا مضمون د قرآن عظیم الشان په ګڼړو آیتونو کښې بیان شوې دې ، یوځاې فرمائی چې : ﴿أَيَحۡسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم بِهِۦ مِن مَّالٖ وَبَنِينَ ۝ نُسَارِعُ لَهُمۡ فِي ٱلۡخَيۡرَٰتِۚ بَل لَّا يَشۡعُرُونَ﴾ [آیا خلق دا ګڼړی چې مونږ د مال او اولاد په ګڼړوالی سره د دوئ مدد کوؤ دا به دوئ دپاره د انجام اوآخرت په اعتبار سره څه خیر وی بلکه دا خلق د حقیقت څخه بې خبره دی] چې مال او اولاد انسان دپاره وبال دې چې دهٔ لره د الله ﷻ څخه غافله کوی .

یو بل آیت مبارك کښې فرمائی چې : ﴿فَلَا تُعۡجِبۡكَ أَمۡوَٰلُهُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُهُمۡۚ إِنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيُعَذِّبَهُم بِهَا فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا وَتَزۡهَقَ أَنفُسُهُمۡ وَهُمۡ كَٰفِرُونَ﴾ [یعنی ددې کافرانو د مال او اولاد نه تاسو تعجب مه کوئی ، ځکه چې د الله ﷻ اراده داده چې دوئ لره هم ددغې مال ، اولاد په ذریعه ددنیا په عذاب کښې راګیر کړی او بالاخر د دوئ ساه دکفر په حالت کښې اوخیژی. چې نتیجه به ئې د آخرت دائمی عذاب وی ، د مال اولاد په ذریعه د عذاب ورکولو مطلب دادې چې دوئ به په دنیا کښې د مال او اولاد په مینه کښې داسې ورننوځی چې خپل انجام او د الله ﷻ او آخرت طرفته به ئې هډو څه خیال نه ورځی چې انجام ئې دائمی عذاب دې ، او په دنیا کښې د مال او لاد ډیر خاوندان

(۱) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٢١، وتفسیر المظهری: ج ٨، ص ٣٢

Scanned with Ca

داسې دی چې هم ددې په خاطر بلکه هم ددې په ذریعه په زرګونو مصیبتونه او تکلیفونه تیروی ، نو ددې سزا او عذاب خو هم ددې دنیا نه شروع کیږی .

ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دې چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ ستاسو صورتونه او مالونوته نه ګوری هغه ستاسو زړونه او عملونه ګوری .[په حواله د ابن کثیر احمد روایت کړو]([1]).

﴿فَأُولَٰئِكَ لَهُمْ جَزَاءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا وَهُمْ فِي الْغُرُفَاتِ آمِنُونَ﴾ دا د ایمان والو او نیك عملو خلقو حال خودلې شوې دې چې هم دوئ د الله ﷻ په نزد مقبول دی ، په دنیا کښې څوك د دوئ قدر پیژنی او که نه پیژنی ، په آخرت کښې به ورته څو څو چنده جزا ملاویږی . ضعف بکسر الضاد مصدر دې ، معنی ئې د یو څیز مثل یا ګڼړ مثالونه دی ، مطلب دادې چې څنګه په دنیا کښې مالدار خلق ددنیا دولت په زیاتولو کښې اخته وی الله ﷻ به د نیك عملو مؤمنانو جزا کم نا کم په یو لس چنده یا داخلاص مطابق ددې څخه بې حسابه زیاته په آخرت کښې ورکوی ، نو دصحیح احادیثو څخه په اوه سوه چنده زیاته بدله ورکول هم ثابت دی([2]) . او داخلق به د جنت په بالاخانو کښې په امن او همیشه دپاره د هر رنځ او غم څخه محفوظ پاتې کیږی ، غرفات د غرفة جمع ده، معنی ئې دمکان هغه پورته حصه چې دنورو حصو څخه ځائله او اعلی ګڼړلې شی.[مظهری]([3])

| قُلْ | اِنَّ رَبِّيْ | يَبْسُطُ الرِّزْقَ |
|---|---|---|
| اورته اووایه | بیشکه رب زما | فراخه کوی رزق |
| ورته اووایه چې زما رب په خپلو بندګانو کښې | | |

| لِمَنْ | يَّشَآءُ | مِنْ عِبَادِهٖ | وَيَقْدِرُ | لَهٗ | وَمَآ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دهغه چا | چې غواړی | دبندګانو خپلو نه | او په اندازه کوی رزق | دپاره دهغه | او هغه |
| چې دچا دپاره او غواړی روزی فراخه کوی | اوچا دپاره چې او غواړی نو روزی تنګوی | او څه چې | | | |

| اَنْفَقْتُمْ | مِّنْ شَيْءٍ | فَهُوَ | يُخْلِفُهٗ | وَهُوَ | خَيْرُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې خرچ کوئ تاسو | څه څیز | پس هغه | دهغې په ځائې نور ورکوی | او هغه | بهتره |
| دالله ﷻ په لار کښې خرچ کوئ | نو هغه به دهغې بدله ورکوی | او هغه ډیر ښه روزی | | | |

| الرّٰزِقِيْنَ |
|---|
| رزق ورکونکي دې |
| ورکونکي دې |

[1]) صحيح مسلم، كتاب البر والصلة، باب تحريم ظلم المسلم---الخ: ج ۲، ص ۳۱۷، ومسند أحمد، مسند أبي هريرة رضي الله عنه، رقم الحديث: ۸۰٤٦

[2]) المعجم الاوسط، رقم الحديث: ۲۷۷۵، والمعجم الصغير، رقم الحديث: ۵۰۲

[3]) تفسير المظهري: ج ۸، ص ۳٤، ۳۵

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

اووايه چه: زما پروردګار په خپلو بندګانو کښې دچا دپاره چه اوغواړي، رزق فراخه کوي، او (د چا دپاره چه اوغواړي) تنګوي، او تاسو چه کوم څیز هم خرچ کوئ هغه دهغې په ځائې بل څیز درکوي، او هم هغه دټولو نه بهترين رزق ورکونکې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿قُلۡ اِنَّ رَبِّیۡ یَبۡسُطُ الرِّزۡقَ لِمَنۡ یَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِہٖ وَ یَقۡدِرُ لَهٗ﴾ [ته] مؤمنانوته [دا ووايه چه زما رب په خپلوبندګانو کښې چالره چه غواړي فراخه رزق ورکوي او چالره چه وغواړي تنګ رزق ورکوي او] په خرڅ کښې په امساك اوبخل سره رزق نه زياتيږي او دشريعت مطابق په خرڅ کولو سره کميږي نه په دې وجه تاسو په مال پورې زړه مه تړئ بلکه کوم کوم ځائ چه دالله تعالى حقونه او دخپل عيال حقونه او په فقيرانو مسکينانو وغيره باند دخرڅ کولوحکم دې بې دريغه خرڅ کوئ چه په دې باند په رزق مقسوم اومقدرکښې خود هيڅ کمی ضرر به نه وی اوپه اخرت کښې به ددې نه نفع [حاصله شی ﴿وَمَآ اَنۡفَقۡتُمۡ مِّنۡ شَیۡءٍ فَهُوَ یُخۡلِفُهٗ﴾ خکه چه کوم شې تاسو] دخدائ دحکم په موقعوکښې [خرڅ کوئ نو الله تعالى به ددې] په اخرت کښې خو خامخا اواکثرپه دنياکښې هم [بدله درکړي ﴿وَهُوَ خَیۡرُ الرّٰزِقِیۡنَ﴾ او هغه دټولو نه غوره رزق ورکوونکې دې].

## معارف او مسائل

داآيت مبارك تقريبا هم دې الفاظو سره پورته تير شوی دی چې ﴿قُلۡ اِنَّ رَبِّیۡ یَبۡسُطُ الرِّزۡقَ لِمَنۡ یَّشَآءُ وَ یَقۡدِرُ﴾، په ظاهره خو دا مضمون دوباره معلوميږي، مګر فرق په کښې شته دې.، دلته د﴿مَنۡ یَّشَآءُ﴾ نه پس ﴿مِنۡ عِبَادِہٖ﴾ او د﴿یَقۡدِرُ﴾ نه پس ﴿لَهٗ﴾ لفظ زيات راوړلې شوې دې، د﴿مِنۡ عِبَادِہٖ﴾ لفظ نه دا په پوهه کښې راځی چې دا لفظ د خاص د خپلو بندګانو دپاره فرمائيلې شوې دې. مقصود ترې دادې چې مؤمنان دې د مال په مينه کښې داسې نه لګی چې د الله ﷻ دخودلی حقونو او موقعو په ځايونو کښې په مال لګولو زړه تنګوی، دې نه مخکښې ددې مضمون کوم آيت چې تير شوې دې هغې کښې کافرانو او مشرکانو ته خطاب وو چې د دنيا په مال بڼه ئې فخر کولو او هغه به ئې د خپل آخرت د کاميابئ اوخلاصی دليل خودلو، په دې بنا د مخاطب او دکلام د مقصود په اعتبار سره دمضمون دوباره کيدل نه شو، نو د تفسير په خلاصه کښې دلته د ړومبی آيت په تفسير کښې چې د مؤمنين لفظ زيات کړې شوې دې هغه دې مضمون ته اشاره ده.

اوخينې حضراتو ددې دواړو آيتونو ترمينځه دا فرق بيان کړې دې چې په ړومبی آيت مبارك کښې دمختلفو انسانانو ترمينځه د روزئ د ويش بيان وو چې الله ﷻ د خپل حکمت او د تولو خلقو دنبيګړې په جوړ په دوئ کښې چا ته مال زيات او چا ته کم ورکوی او په دې آيت مبارك کښې هم د يو کس مختلف حالات بيان شوی دی چې هم دغه بنده ته کله فراخه مال وغيره ورکولې شی او کله پرې تنګی او تنګدستی راځی، په ﴿لَهٗ﴾ کښې دې ته اشاره موندې شی چې د ﴿یَقۡدِرُ﴾ نه پس راغلې دې، ددې تقرير په جوړ هم تکرار د مضمون رانغلو، بلکه ړومبې آيت مبارك د مختلفو کسانوباره کښې او دا آيت مبارك هم د يو کس په باره کښې راغلې دې چې په مختلفو وختونو کښې د هغه مختلف حالات بيانوی.

Scanned with Ca

﴿وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهٗ﴾ ددې آيت لفظي معنی داده چې کوم څيز هم چې تاسو خرچ کوئی الله ﷻ تاسو ته د خپلې خزانې د غيبو نه د هغې بدل درکوی کله چې په دنيا او کله په آخرت کښې او کله په دواړو کښې ، د ټول جهان په کائناتو کښې ددې ليدل کيدې شی آسمان نه اوبۀ نازليږی ، انسانان او څناور ئې په خلاص مټ استعمالوی ، ونې [درختې] او پټی وغيره پرې خړوب کوی ، او هغه اوبه ختم شوې نه وی چې نورې پرې رانازلې کړې شی ، دغه شان دکوهی نه چې څومره اوبه راويستې شی دقدرت د طرفه په هغې کښې نورې اوبه راجمع کيږی ، په ظاهره دا معلوميږی چې د انسان په خوړلو سره د خوراك دغه څيز ختم شو مګر الله ﷻ دهغې په ځائې نوره خوراکه برابر وی ، د بدن په نقل و حرکت او محنت سره چې کومې حصې ئې تحليل شی د هغې په بدل کښې نور اجزاء جوړ شی ، غرض دا چې الله ﷻ د خپل عادت مطابق د هغې څيز په ځائې نور څيز ورکوی کوم لره چې انسان خرچ کوی ، کله د يو تکوينی مصلحت په بنا په بدل کښې بل څيز ورنکړې شی چې دغې خداوندی ضابطې سره بې سمونې نه ده .

دصحيح مسلم په حواله ابی هريره ﵁ نه روايت دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې هره ورځ کله چې خلق په صبا کښې داخل شی نو دوه فرښتې د آسمان نه راکوزې شی او دا دعا کوی چې : ﴿اللهم اعط منفقا خلفا واعط ممسکا تلفا﴾ ائې الله ﷻ ! خرڅ کوونکی ته دهغې بدل ورکړې او د شوم [بخيل] بنده مال تباه کړې[1].

او په يو بل حديث پاك کښې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ ماته فرمائيلی دی چې تاسو په خلقو مال لګوئی زه به په تاسو لګوم.[2]

**کوم خرچ چې د شريعت مطابق وی د هغې د بدل وعده نشته دې** :: جابر ﵁ نه روايت دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې نيك کار صدقه ده کوم بنده چې پخپل ځان يا پخپل آل اولاد باندې خرچ کوی هغه هم د صدقې په حکم کښې دې چې ثواب به يقينی طور سره مومی او څوك چې د خپل ننګ ناموس د حفاظت دپاره مال لګوی نو هغه هم صدقه ده ، او څوك چې د الله ﷻ د حکم مطابق مال خرچ کوی نو الله ﷻ پخپله ذمه اخستی دی چې دهغې بدل به ورکوی خو کوم خرچ چې فضول د ضرورت نه زيات په تعمير کښې يا دګناه په څه کار کښې اولګوی نو دهغې د بدل وعده نشته دې .

د جابر ﵁ شاګرد ابن المنذر ﵀ چې دا حديث پاك واؤريدو نو تپوس ئې اوکړو چې د عزت اوننګ ناموس د بچ کولو خرچ کول څه مطلب لری ؟ هغوئ ﵁ ورته اوفرمائيل چې دچا په باره کښې دا خيال وی چې که ده ته ورنکړم نو عيبونه به مې لټوی او بد به مې بيانوی ، نو دې نه د ځان ساتلو په غرض ورته څه ورکول د عزت ساتلو دپاره ورکول دی [دار قطنی بحواله قرطبی][3].

**د کوم څيز چې کم خرچ کولې شی دهغې پيداوار هم کميږی** :: ددې آيت مبارك د اشارې نه دا هم معلوم شو چې الله ﷻ د انسانانو او حيواناتو د استعمال دپاره کوم څيزونه چې پيدا کړی دی ،

---

[1]) صحيح مسلم، كتاب الزكاة، باب فى مثل المنفق والبخيل: ج ۱، ص ۳۲۸
[2]) صحيح البخاری، كتاب النفقات، باب فضل النفقة على الاهل: ج ۲، ص ۸۰۵
[3]) تفسير القرطبي: ج ۱۴، ص ۳۰۸، وسنن الدارقطني، رقم الحديث: ۲۹۳۴، وسنن البيهقي، رقم الحديث: ۲۱۶۶۲

تر څو چې هغه خرچ کولې شي د هغې بدل د الله ﷻ د طرفنه په مخه راپيدا کيږي د کوم ځيز چې خرچ زيات کيږي دهغې پيداوار هم زياتوي.

خاروؤ کښې د ټولو نه زيات استعمال د چيلو او غواګانو دې، دا ډير ذبح کولې شي او ددې غوښه خورلې شي، او شرعي قربانيانو او جنايتونو کښې هم ذبح کولې شي، څومره چې دا زيات پکار راوستې شي الله ﷻ هغه هومره پيداوار زياتوي، چې هر ځائې ليدلې شي، هر وخت د چړې لاندې راتلونکې چيلئ [بزې] وغيره په دنيا کښې زياتې دی. خود پيشوګانو او سپو تعداد دومره زيات نه دی. حالانکه دوئ نسل بظاهر زياتيدل پکار دی ځکه چې دا په يو ځل پنځه شپږ بچي راوړی او چيلئ، غوا په يو ځل زيات زيات دوه بچي راوړی، غواګانې اوچيلئ هر وخت ذبح کولې شي او سپو پيشوګانو سره دغه عمل څوك غواړی هم نه، دغه شان د د کله نه چې هندوستان کښې د غوا په ذبح کولو باندې پابندی اولګولې شوه دهغې وخت نه دغه ځائې کښې دغواګانو پيداوار کم شوې دې، ګنې پکار دا وو چې دهندوستان کور، کور او هر کلې د غواګانو ښه ډك وې، چې ذبح کولې نشي او محفوظ پاتې کيږي.

کله چې عربو د اوښانو دسورلئ اوپيټې اوړلو اخستل کم کړل، هلته د اوښانو پيداوار هم کم شوې دې، دې سره دهغه بې دينئ شبه ختمه شوه چې د قربانئ د احکامو په مقابله کښې د اقتصادي او معاشي تنګئ انديښنه ښکاره کولو سره راپورته کولې شي.

| ثُمَّ | جَمِيعًا | يَحْشُرُهُمْ | وَيَوْمَ |
|---|---|---|---|
| بيا | ټول | چې به راجمع کړی هغه دا انسانان | او په کومه ورځ |
| ......نود | (۱) | او په کومه ورځ چې الله ﷻ دوئ ټول راجمع کړی | ............ |

(۱) دَ فرښتونه دَ الله تعالى سوال:- مشرکان شرمنده کولو بې جوابه کولو اوبې عذره کولودَ پاره به دَ فرښتونه سوال کولې شي دَ کوموچه دَځان نه دوی شکلونه جوړکړې وو اودې مشرکانوبه په دنياکښې دَ هغوی عبادت کولو چه هغوی به دوی الله تعالى سره ملاوکړی. سوال به کولې شي چه آيا تاسو دوی ته دَ خپل عبادت کولو وئيلې وو؟

لکه چه په سورت فرقان کښې دی ﴿ءَأَنتُمْ أَضْلَلْتُمْ عِبَادِي هَٰؤُلَاءِ أَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِيلَ﴾ (۲۵/الفرقان:۱۷) يعني آيا تاسودوی ګمراه کړې وو؟ که دوی پخپله دهوکه شوې وو؟ دَحضرت عيسى عليه السلام نه به سوال کولې شي چه آيا تا دې خلقو ته وئيلی وو راغلې وې چه الله تعالى پريږدئ زما اوزما دَ مور عبادت کوئ. هغه به جواب ورکړی اې الله ستا ذات پاك دی ماته چه دَ کوم ځيز وينا کول ضروری نه وو مابه څنګه وئيل. دغه شان به فرښتې هم خپل ځان خلاص کړی وائی به ته خو دَ دې نه ډير اوچت او لوئ ئی چه ستادې څوك شريك وی مونږ خو پخپله ستا بنديګان يو. مونږ دَ دوی نه ويزاره وو اواوس هم دوی نه جدا يو. دوی به دَ شيطانانوعبادت کولو. هم شيطانانودَ دوی دَ پاره د بتانوعبادت ښائسته کړې وو او دوی ئی ګمراه کړې وو. په دوی کښې دَ اکثرو عقيده هم په شيطان باندې وه.

لکه څنګه چه دَ الله تعالى ارشاد دې ﴿إِن يَدْعُونَ مِن دُونِهِ إِلَّا إِنَاثًا وَإِن يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَانًا مَّرِيدًا ۝ لَّعَنَهُ اللَّهُ ۘ وَقَالَ لَأَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا﴾ (۴/النساء:۱۱۷-۱۱۸) يعني دې خلقوالله تعالى پريخې دې اودَ ښځوعبادت کوی او دَ سرکش شيطان عبادت کوی. په کوم چه دَ الله تعالى غصه ده. نوچه کومو کومو سره اې مشرکانو تاسو مينه ساتلې وه په هغوی کښې يوهم تاسوته څه نفع دراونه رسولې شوه. دَ دې سختئ او عذاب په وخت کښې به داټول دَ دروغومعبودان تاسو نه يودم لرې شي. ....[باقی په راروانه صفحه...

Scanned with Ca

يَقُولُ لِلْمَلٰٓئِكَةِ أَهٰٓؤُلَآءِ إِيَّاكُمْ كَانُوا يَعْبُدُونَ ۝

به اووائي | فرښتو ته | آيا دا خلق وو | چې تاسو لره به ئې | عبادت کولو |

فرښتو نه به تپوس اوکړي | چې آيا دې خلقو به ستاسو عبادت کولو

قَالُوا سُبْحٰنَكَ أَنْتَ وَلِيُّنَا مِنْ دُونِهِمْ ۚ بَلْ كَانُوا

اوبه وائي فرښتې | پاکي ده تالره | ته مولي ئې زمونږ | بې ددوئ نه | بلکه وو دوئ

هغوئ به اووائي چې [ائې زمونږ ربه] ته پاک يئ | زمونږ تعلق خو تاسره دې | دوئ سره نه دې

يَعْبُدُونَ الْجِنَّ ۚ أَكْثَرُهُمْ بِهِمْ

چې عبادت به ئې کوو | دپيريانو شيطانانو | زيات خلق ددوئ | په دې پيريانو شيطانانو باندې

حقيقت دادې | چې دوئ خو به د پيرانو عبادت کولو | په دوئ کښې زياتو خلقو په پيريانو

مُؤْمِنُونَ ۝ فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ

ايمان راوړونکي وو | [اوبه فرمائي الله] پس نن ورځ به | اختيار نه لرې | ځيني ستاسو

ايمان لرلو | .................نو نن تاسو کښې څوک يو بل ته دنفع يا

لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَّلَا ضَرًّا ۭ وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا

دپاره دځينو | دنفعې رسولو | اونه دضرر رسولو | اوابه وايو مونږه | هغه کسانوته | چې ظلم ئې کړې وې

نقصان رسولو قدرت نه لرې | .............او مونږ به ظالمانو ته اووايو | چې

ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّتِي كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُونَ ۝

اوڅکئ | عذاب دوور | هغه | چې وئ تاسو | په هغې | چې دروغ به مو ګڼړلو |

ددې اور دعذاب مزه اوڅکئ | کوم چې به تاسو دروغ ګڼړلو

## آسان ترجمه قرآن

او هغه ورځ مه هېروه، چه کله به الله تعالیٰ دغې ټولو لره راجمع کړي، بيا به فرښتو ته اووائي چه: آيا دې خلقو واقعي ستاسو عبادت کولو؟ هغوی به اووائي چه: مونږ خو ستا د ذات پاکي بيانوو، زمونږ تعلق ستا سره دې، دې خلقو سره نه دې، په اصل کښې دوی خو د پېريانو عبادت کولو ، په دوی کښې اکثر خلق دهغوی معتقد وو، لهٰذا نن په تاسو کښې هيڅوک بل ته د فائدې رسولو اختيار لري، او نه د نقصان رسولو، او کومو خلقوچه د ظلم طريقه اختيار کړې ده، هغوی ته به مونږ اووايو چه: دهغې اور مزه اوڅکئ، کوم چه تاسو دروغ ګڼړلو.

## خلاصه تفسير

[او] هغه ورځ قابل ذکر ده ﴿وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا﴾ [په کومه ورځ چه الله دې ټولو لره] په ميدان دقيامت کښې [جمع کړي ﴿ثُمَّ يَقُولُ لِلْمَلٰٓئِكَةِ أَهٰٓؤُلَآءِ إِيَّاكُمْ كَانُوا يَعْبُدُونَ ۝﴾ بيابه فرښتوته ارشاد

...باقي دتيرمخ].. څکه چه دهغوی چاته دَ څه څيز دَ نفع ورکولو هيڅ اختياردَ سره وونه. نن به مونږ پخپله مشرکانوته وايو چه واخلئی کوم دَ دوزخ عذاب چه مو دروغ ګڼړلو نن دَ هغې مزه اوڅکئ.

Scanned with CamScanner

وفرمائی چه ایادي خلقو ستاسو عبادت کولو] دملائکونه دا سوال دمشرکانو دلاجوابه کولودپاره به وی کوم چه دملائکو اوغیرملائکوعبادت به يې په دې خيال سره کولو چه دوی راضي شي زمونږ شفاعت به کوی لکه په یو ایت کښې دغه شان سوال دحضرت عیسی ﷺ نه شوې دې [ءَاَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ()] مطلب دسوال دادې چه ایا ستاسو په رضا دوی ستاسو عبادت کولو او دا رنگ په جواب کښې هم ددې قید قرینه ده لکه دجواب دترجمې نه به معلومه شي ﴿قَالُوْا﴾ [هغوی] به اول دحق تعالی دشریك نه دبالاترکیدو اوپاکیدو ظاهرولو دپاره [عرض وکړی چه ﴿سُبْحٰنَكَ﴾ ته] دشریك نه [پاك یې] دائې دجواب نه وړاند خکه ووئیل چه د دوی طرف ته کوم نسبت دشرك کولو حکایت کړې شوې وو دهغې نه وویریدې اول يې داجملې عرض کړې بیا وړاندبه ددې سوال جواب داسې ورکړی چه ﴿اَنْتَ وَلِيُّنَا مِنْ دُوْنِهِمْ ۚ﴾ [زمونږ خو] محض [تاسره تعلق دې نه چه د دوی سره] ددې نه درضاو امر دواړو نفی وشوه یعنی نه مونږ دوی ته وئیلي دی اونه مونږ د دوی په دې کار راضي یو مونږ ستاتابعداریوکوم شې چه ستانا خوښه دې لکه شرك وغیره په دې مونږ هم خوشحاله نه یو هرکله چه په دې شرك کښې نه زمونږ امر شته نه رضا نو په واقع کښې دوی زمونږ عبادت نه کولو ﴿بَلْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ الْجِنَّ ۚ﴾ [بلکه دې خلقو دشیطانانو عبادت کولو] ځکه چه شیطانانو به ورته ددې ترغیب هم ورکولو او په دې راضي هم وو=== په دې وجه هغوی د دوی معبودان شول ځکه چه عبادت مستلزم دې اطاعت مطلقه لره چه ددۀ په وړاند دچابل اطاعت ونه کړی دغه شان داسې اطاعت مطلقه مستلزم دې عبادت لره پس هرکله چه زمونږ دطرف نه امراو رضا متحققه نه ده نو زمونږ اطاعت ونه شو اوهرکله چه دشیطانانو اطاعت مطلقه يې وکړو نو عبادت په حقیقت کښې هم د هغوی وشو اگر چه داخلق ورله نوم هرڅه کيږ دی که دملائکوعبادت ورته وائی که دبتانو عبادت مگر په واقع کښې داعبادت دشیطانانو دې اولکه ځنگه چه د ذکرشوی تقریر نه ددغو خلقو عابدان شیطانان کیدل لازم شول دغه شان ﴿اَكْثَرُهُمْ بِهِمْ مُّؤْمِنُوْنَ ۝﴾ په دغوکښې اکثرخلق التزاما [هم ددغو] شیطانانو [معتقد وو] یعنی قصدا به هم ډیرو دهغوی عبادت کولولکه چه دسوره جن په ایت کښې دی [وانه كان رجال من الانس يعودون برجال من الجن(٢)] او داسې نور ایتونه [پس] کافرانو ته به ووئیلې شي چه دکومونه تاسو امیدونه ساتل ﴿فَالْيَوْمَ﴾ [پس نن] په خپله دهغوی ددې ویزاری نه هم او دهغوی دعجز او بې وسۍ نه هم ستاسو دگمان خلاف دا حالت ظاهرشو چه [تاسو] ټول عابدان او معبودان ﴿لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَّلَا ضَرًّا ۭ﴾ [نه څوك چاته دنفع رسولواختیار لرئ

اونه دنقصان رسولو] مطلب خو دادې چه دامعبودان تاسوته نفع نه شی رسولې مگر دمبالغې دپاره يې په [بعضکم لبعض] سره تعبیر وفرمائیلوچه ددې ابهام نه د دواړو برابری په دې کار کښې ثابته شي چه لکه ځنگه تاسو عاجزه يې هغه هم عاجزه دی او د ضرر ذکر د عجز دعاموالی دپاره دې په دې سره کلام نور هم مؤکدشو [او] هغه وخت ﴿وَنَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ذُوْقُوْا عَذَابَ النَّارِ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ۝﴾ [مونږ به ظالمانو ته] یعنی کافرانو ته [ووایو چه دکوم دوزخ عذاب تاسو دروغژن کولو] اوس [دهغې مزه وڅکئ].

---

[1] ترجمه: ایا تا دے خلقو ته ویلي وو.

[2] ترجمه: او ډیر خلق په انسانانو کښې داسے وو چه هغوی جناتو کښې د بعض خلقونه پناه اغستله.

وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالُوْا مَا هٰذَآ

او كله چې لوستلې كيږى | په دې خلقو باندې | آيتونه زمونږ | صفا واضحه | نو وائى دوئ | نه دې دا

او هر كله چې بۀ دوئ ته زمونږ ښكاره آيتونه بيانولى شو | نو دوئ به وئيل چې دا [پيغمبر]

اِلَّا رَجُلٌ يُّرِيْدُ اَنْ يَّصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ

مگر | يو سړي دې | چې غواړى | چې منع كړي تاسو | دهغه معبودانو نه | چې عبادت به ئې كولو

خو يو داسې سړې دې | چې تاسو دهغه بتانو نه منع كوى | دكومو چې بۀ ستاسو پلار نيكه

اٰبَآؤُكُمْ وَقَالُوْا مَا هٰذَآ اِلَّآ اِفْكٌ مُّفْتَرًى ۚ وَقَالَ

پلارانو ستاسو | اووائى دوئ | نه دې [داقرآن] | مگر | دروغ دى | دخانه نه جوړ كړې شوى | اووائى

عبادت كولو | او دوى وائى چې داقرآن خو جوړ شوې دروغ دى | اوځه وخت چې كافرانو ته

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ اِنْ هٰذَآ اِلَّا

هغه كسان | چې كافران شوى دى | حق ته | هر كله چې راغې دوئ ته | چې نه دې دا | مگر

حق راغلو | ............زنوهغوى اووئيل چې دا خو ښكاره

سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ وَمَآ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ كُتُبٍ يَّدْرُسُوْنَهَا

جادو دې | ښكاره | اونۀ دې وركړى مونږ دوئ له | څه كتابونه | چې ګنى لولى هغه

جادو دې | او مونږ دوئ ته داسې [آسمانى الهامى] كتابونه نه وو وركړى | چې ګنى دوئ بۀ لوستل

وَمَآ اَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِنْ نَّذِيْرٍ ۝ وَكَذَّبَ الَّذِيْنَ

اونۀ وو ليږلي مونږ | دوئ ته | مخكښې ستانه | څوك يرونكې | او دروغ ګڼرلي وو | هغه كسانو

او مونږ ستاسونه وړاندې دوئ ته هيڅ ويرونكې نه وو ليږلي | او [دغسې] ددوئ نه مخكښو خلقو

مِنْ قَبْلِهِمْ وَمَا بَلَغُوْا مِعْشَارَ مَآ اٰتَيْنٰهُمْ

چې مخكښې ددوئ نه وو | اونۀ دى رسيدلى دوئ | لسمې برخې ته | دهغې | چې وركړى وو مونږ هغوئ ته

هم [پيغمبران] دروغژن ګڼرلي وو | او مونږ چې هغوئ ته څه وركړى وو | دوى دهغې لسمه برخه

فَكَذَّبُوْا رُسُلِىْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ۝ قُلْ

پس دروغ اوګڼرل هغوئ | رسولان زما | پس څه رنګې | وۀ | عذاب زما | ورته اووايه

هم نه دى | خو هغوئ زما پيغمبران دروغ اوګڼرل | نو زما دطرفنه پرې څنګه عذاب راغلو | [اے پيغمبره!]

اِنَّمَآ اَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ اَنْ تَقُوْمُوْا

بيشكه همدا خبره ده | چې زۀ نصيحت كوم تاسو ته | په يوې خبرې سره | چې ودريږئ تاسو

اووايه چې زۀ درته د يوې خبرې نصيحت كوم | هغه دا چې تاسو خاص دالله ﷻ دپاره دوه دوه

لِلّٰهِ مَثْنٰى وَفُرَادٰى ثُمَّ تَتَفَكَّرُوْا مَا بِصَاحِبِكُمْ

خاص دپاره دالله | دوه دوه | او يو يو | بيا فكر اوكړئ | نشته په ملګرى ستاسو باندې

او يو يو اودريږئ | بيا فكر اوكړئ ستاسو دا ملګرې [پيغمبر يقيناً] ليونې نه دې

Scanned with Ca

مِّنْ جِنَّةٍ ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ لَّكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ

څه ليونتوب | نه دی هغه | مگر | خبردارونکي | تاسو لره | مخکښې [دراتلو] | دعذاب

دی خو ستاسو دپاره دسخت عذاب راتلو نه وړاندې ويرونکي دي

شَدِيْدٍ ۝ قُلْ مَا سَاَلْتُكُمْ مِّنْ اَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ ؕ

سخت نه | ورته اووايه | هغه چې ماغوښتلي وی ستاسو نه | څه اجر | پس هغه دې ستاسو وی

ته ورته اووايه چې که ما ستاسو نه څه معاوضه غوښتې وی | نو هغه ستاسو شوه

اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ۝ قُلْ

نه دی اجر زما | مگر | په الله باندې دی | او هغه | په هر څيز باندې | گواه دې | ورته اووايه

زما اجر خو بس صرف دالله ﷻ سره دی | او هغه په هر څه باندې پوره خبر دی

اِنَّ رَبِّيْ يَقْذِفُ بِالْحَقِّ ۚ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ۝

بيشکه رب زما | را اچوی په زړه کښې ماته | حق | هغه ښه عالم دی | په پټو حقيقتونو باندې

ته ورته اووايه چې زما رب هميشه حق ته غلبه ورکوی | دغيبو په خبرو ډير ښه عالم دی

قُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيْدُ ۝

ورته اووايه | چې راغې | حق | اونه دنوی سره پيدا کولې شی څه څيز | باطل | اونه ئې دوباره پيدا کولې شی

ورته اووايه چې اوس حق راورسيدو | او باطل نه وړاندې څه څيزوو | اونه اوس څه حيثيت لری

قُلْ اِنْ ضَلَلْتُ فَاِنَّمَآ اَضِلُّ عَلٰى نَفْسِيْ ۚ

ورته اووايه | که زه بې لارې شوې يم | نو پس بيشکه | وبال دبې لارې کيدو زما | په ځان زما دی

ورته اووايه چې که زه گمراه يم | نو د هغې وبال به صرف په ما باندې واقع کيږی

وَاِنِ اهْتَدَيْتُ فَبِمَا يُوْحِيْٓ اِلَيَّ رَبِّيْ ؕ اِنَّهٗ

او که زه په سمه لار يم نو دا به وی | په سبب دهغې | چې وحی کوی | ماته | رب زما | بيشکه هغه

اوکه زه په نيغه لار روان يم | نو دادهغه وحی په وجه روان يم | اکومه چې ما ته زما رب کړې ده | هغه

سَمِيْعٌ قَرِيْبٌ ۝

هر څه اوريدونکي | نزدې دی |

هرڅه اوری ډير نزدې دی |

## آسان ترجمه قرآن

او کله چه زمونږ آيتونه چه مکمل واضحه دی، هغوی باندې لوستلې شی، نو دوی (زمونږ د پيغمبر باره کښې) وائی چه: هيڅ نه دا سړې بس دا غواړی، چه تاسو خلق د هغې معبودانو نه واړوی، چه د هغې عبادت به ستاسو پلار نيکه کولو. او دا وائی چه دا (قرآن) هيڅ نه دې، د ځان نه جوړ کړې شوې دروغ دی. او کله چه دغې کافرانو ته د حق پيغام راؤرسيدو، نو دوی دهغې باره کښې اووئيل چه: دا خو د يو ښکاره جادو نه ماسوا هيڅ نه دی. حالانکه مونږ هغوی ته (ددې نه پخوا) نهٔ داسې کتابونه ورکړې ووچه

دوی به لوستل. او نهٔ (اے پیغمبره) ستا نه مخکښې مونږ دوی ته څه ویرونکې (نبی) لیږلې وو او ددوی نه مخکښنو خلقو هم (پیغمبرانو لره) دروغژن کړي وو. او دا (د عربو مشرکان) خو دهغوی د ساز او سامان لسمې حصې ته هم نه دی رسیدلي. چه مونږ هغوی (مخکښنو خلقو) ته ورکړي وو. بیا هم دوی زما پیغمبران دروغژن کړل. نو (اوګوره چه) زما ورکړې شوې سزا څرنګه (سخته) وه. (اے پیغمبره) دوی ته اووایه چه: زه تاسو ته د یوې خبرې نصیحت کوم. او هغه دا چه تاسو (که غواړئ) نو دوه دوه یو ځائې شئ یا یو یو د الله تعالیٰ دپاره اودریږئ بیا (انصاف سره) سوچ اوکړئ. (نو سمدستی به ستاسو په پوهه کښې راشی) چه ستاسو په دې ملګری (یعنی محمد (صلی الله علیه وسلم) کښې د لیونتوب هیڅ خبره نشته. هغه خو د یو سخت عذاب راتلو نه مخکښې تاسو خبردار کوی اووایه ما که ستاسو نه په دې خبره باندې څه اجرت غوختلې وی. نو هغه ستاسو دې. زما اجر خو د الله تعالیٰ نه ماسوا د هیچا په ذمه نه دې. او هغه د هر څیز مشاهده کونکې دې. اووایه چه: زما پروردګار حق لره د بره نه رالیږی. هغه د غیب ټولو خبرو باندې پوهیدونکې دې. اووایه چه: حق راغلې دې. او په باطل کښې نهٔ د شروع کولو طاقت شته او نهٔ د دوباره کولو. اووایه چه: که زه د لارې نه بے لارې شوې یم. نو زما د بے لارې کیدلو نقصان به په ما باندې وی او که ما نیغه لاره موندلې ده. نو دا دهغې وحی د وجې نه ده. چه زما رب په ما باندې نازلوی. هغه یقیناً هر څه اوریدونکې او دَهر یو نه نزدې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ﴾ [او هر کله چه ددې خلقو په وړاندې زمونږ ایتونه کوم چه] دحق او هدایت کیدو په صفت کښې [صفا صفا دی لوستلې شي نو داخلق] دلوستونکی یعنی نبی کریم ﷺ په نسبت ﴿قَالُوْا﴾ وائی چه] نعوذ بالله ﴿مَا هٰذَآ اِلَّا رَجُلٌ يُّرِيْدُ اَنْ يَّصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُكُمْ﴾ [دا محض یو داسې سړې دې کوم چه داسې غواړی چه تاسو لره دهغو څیزونو] دعبادت [نه منع کړی د کومو چه] دپخوانه [ستاسو مشرانو عبادت کولو] او دهغونه مومنع کوی او خپل تابعداران مو جوړوی مطلب ددې کم بختانو داوو چه دا نبی نه دې او ددوی دعوت د الله تعالیٰ دجانب نه نه دې بلکه په دې کښې په خپله دده ذاتی غرض دخپل ریاست دې [او] دقرآن په نسبت ﴿وَقَالُوْا﴾ [وائی چه] نعوذ بالله ﴿مَا هٰذَآ اِلَّآ اِفْكٌ مُّفْتَرًى﴾ [دا محض یو جوړشوی دروغ دی] یعنی د الله تعالیٰ طرف ته ددې نسبت کول محض دځانه جوړه کړې شوې خبره ده ﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ﴾ [او داکافران ددې حق امر] یعنی قرآن [په نسبت هر کله چه دوی ته راورسیدو] ددې اعتراض دجواب دپاره چه که دا د ځانه جوړ شوی دروغ دی نو بیا ډیر هوښیاران ددې تابعداری ولې کوی او دا داسې اثر کوونکې ولې دې [داسې وائی ﴿اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ﴾ چه دا محض یو صریح جادو دې] بس ددې په اوریدو خلق مغلوب العقل او عاشقان کیږی [او] دوی له خو دقرآن او نبی لوئ قدر کول پکار وو ځکه چه د دوی دپاره خو دا محض غیر مترقبه نعمتونه وو په دې سبب سره چه ﴿وَمَآ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ كُتُبٍ يَّدْرُسُوْنَهَا﴾ [مونږه] ددې قرآن نه وړاند [دوی ته] چرته اسمانی [کتابونه نه وو ورکړی چه دغو لره ئې لوستل لولول] لکه دبنی اسرائیلو سره چه کتابونه وو نو د دوی په حق کښې خو قرآن بالکل یو نوې شې وو په دې وجه دوی له ئې قدر کول پکار وو [او] دغه شان ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِنْ نَّذِيْرٍ﴾ [مونږ تانه وړاند دوی ته څوک

ویرونکي] یعنی پیغمبر [نه وولیږلی] نو د دوی په حق کښې نبی هم یونوې دولت وو په دې وجه دده هم قدرکول پکاروو خاصکر هرکله چه علاوه دنوی نعمت کیدونه په خپله د دوی خواهش هم ووتمنابه یې کوله چه مونږته څوك نبی راشی نو مونږ به یې اتباع کوولکه چه په دې ایت کښې دی [وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَیْمَانِهِمْ لَىِٕنْ جَآءَهُمْ نَذِیْرٌ لَّیَكُوْنُنَّ اَهْدٰی مِنْ اِحْدَی الْاُمَمِ (١)] مګردی خلقوې بیاهم قدر ونه کړو لکه چه الله تعالی فرمائی [فلما جاءهم نذیر ما زادهم الا نفورا] بلکه تکذیب یې وکړو [او] داخلق دې په تکذیب کولوبې فکره نه کښینی خکه چه دتکذیب وبال ډیرسخت دې چنانچه ﴿وَكَذَّبَ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ [د دوی نه وړاندچه کوم] کافران [خلق وانی هغوی] هم دانبیاؤ او وحی [تکذیب کړې وو اودا] مشرکان دعرب ﴿وَمَا بَلَغُوْا مِعْشَارَ مَاۤ اٰتَیْنٰهُمْ﴾ [خودهغې سامان کوم چه مونږ هغوی ته ورکړې وو لسمې حصې ته هم نه دی رسیدلی] یعنی دهغوی په شان قوت دهغوی په شان عمرونه دهغوی په شان مالداری دوی ته نه ده ملاؤکومه چه سرمایه دغرور او سبب دافتخار وی لکه چه الله تعالی فرمائی [کانوا اشد منکم قوة واکثر اموالا واولادا (٢)] ﴿فَكَذَّبُوْا رُسُلِیْ﴾ [غرض دوی زما د رسول تکذیب وکړو پس] وګوره ﴿فَكَیْفَ كَانَ نَكِیْرِ﴾ [زما] په دوی [څنګه عذاب وشو] پس دابې چاره څه څیزونه دی چه د دوی سره خو دومره سامان هم نشته هرکله چه دومره ثروت او دولت په کاررانغې نو دوی په کومه دوکه کښې دی او دارنګ هرکله چه د دوی سره سامان کم دې کوم چه سبب دغرور وی نو ددوی جرم هم سخت دې بیا به دوی څنګه بچ شی تردې پورې یې په انکار دنبوت باند کفارو ته تهدید وفرمائیلو وړاند دوی ته دتصدیق دنبوت یوه طریقه بنانی چه اے محمد ﷺ ﴿قُلْ﴾ [ته] دوی ته [دا ووایه ﴿اِنَّمَاۤ اَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ﴾ چه زه تاسوته صرف یوه خبره] لنډه [وایم] په دې سره به وضاحت وشی بس داسې وکړئ ﴿اَنْ تَقُوْمُوْا لِلّٰهِ﴾ [هغه داچه تاسو] محض [دالله تعالی دپاره] چه په دې کښې نفسانیت او تعصب نه وی [ودریږئ] یعنی تیارشئ په یوه موقع ﴿مَثْنٰی﴾ [دوه دوه او] په څه موقع ﴿وَفُرَادٰی﴾ [یویو] یعنی چونکه مقصود غور اوفکردې لکه چه وړاندراخی او دفکرقاعده ده چه دخنو وختونو اوخنو طبیعتونو په اعتبارسره د دوو په ملاویدو سره دهرسړی فکرته په بل باندتفویت رسیږی او دخنووختونو او خنوطبیعتونو په اعتبار سره یوازې بنه فکرکیدې شی او په ډیره زیاته مجمع کښې اکثر فکر پریشانه کیږی په دې وجه په دې یې بس والئ اوفرمائیلو غرض داسې تیارشئ ﴿ثُمَّ تَتَفَكَّرُوْا﴾ [بیا] بنه [فکر وکړئ] چه څنګه زه دعوې کوم مثلا داچه دقرآن مسائل ممکن نه دې لکه په خومکی سورتونو کښې دامضمون دې داسې دعوې دوه سړی کولې شی یا خو هغه دکوم په دماغو کښې چه خلل وی چه انجام نه خبرنه وی او یا هغه چه نبی وی دکوم چه پوره اعتماد ددې دعوې په صدق او دالله تعالی دطرف نه دکیدو وی ورنه که نبی نه وی او عاقل هم وی نو هغه دداسې دعوې په وخت کښې به درسوایئ نه ویره کوی چه که دې مسائل جوړکړې راوړې شی نو په ما کښې به څه پاتې شی ددې تردید حاصرجامع نه پس زما په مجموعی حالاتو غوروکړئ او داسوچ وکړئ چه ایاپه ما جنون شته یا نه پس دا امربه په

---

(١) ترجمه: او دی کافرانو به په الله تعالی باندې ډیر سخت قسمونه خوړل، که چرته دوی ته څوک ویرونکی راغلو نو مونږ به دبل هر یو امت نه زیات په هدایت شو نو څه وخت چې ورته ویرونکی راغلو نو دی سره ددوی نفرت نور هم زیات شو.

(٢) ترجمه: مضبوط قوت او مال زیات والی او په اولاد کښې ستاسونه ډیر وو.

مشاهده سره معلوم شی ﴿مَا بِصَاحِبِكُم مِّن جِنَّةٍ﴾ [چه ستاسو په دې ملګرې] چه هروخت ستاسو په وړاندې دې اود کوم چه ټول حالات تاسو وینئ یعنی ماته [جنون] خو [نشته] هرکله چه د حصر د دوه شقونونه یو شق باطل شو نو دویم شق متعین شو چه [دغه] ستاسوملګرپیغمبردې اوپه حیثیت دپیغمبرۍ ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ﴾ [تاسولره دیوسخت عذاب دراتلونه وړاند ویرونکې دې] پس په دې طریقه سره دنبوت او ددې تصدیق ډیراسان دې اوپل ځای هم دې ته قریب قریب مضمون دې لکه فرمائی [امرلم يعرفوا رسولهم الخ()] اوس وړاند دنبوت داثبات نه پس دکفارو ددې شبهې جواب دې چه دارسول نه دې بلکه دخپل ریاست او اقتدار طالب دې فرمائی اے محمد ﷺ ﴿قُلْ﴾ [ته] داهم [ووایه] ﴿مَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ﴾ چه زه [تاسونه] په دې تبلیغ [که معاوضه غوارم نو هغه ستاسوشوه] یعنی تاسوئ دخان سره کیږدئ دامحاوره ده دنفی د طلب داجر په طریقه دمبالغې ﴿إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ﴾ [زمامعاوضه خوبس موافق دوعدې دفضل [دالله په ذمه ده ﴿وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ او هغه په هرڅه خبرلرونکې دې] پس هغه به په خپله زمادحال لائق ماته اجر راکړی په معاوضه کښې مال مرتبه یعنی ریاست ټول راغلل ځکه چه په اعیانواو اعراضو ټولو کښې داجر جوړیدو صلاحیت دې مطلب دادې چه زه تاسونه دڅه غرض طالب نه یم چه شبهه دریاست پرې وشی او پاتې شوه دا معامله چه زه دخلقودمعاملو او حالاتواصلاح کوم مجرم ته سزا ورکوم په خپل مینځ کښې دجګړو فیصله کوم نو دا موجب دشبهې ځکه نه شی کیدې چه په دې کښې زما څه غرض نشته چنانچه د دوی ﷺ دطرز معاشرت اومعیشت نه صفا ظاهره ده چه ددې څیزونو نه دوی ﷺ څه ذاتی منفعت حاصل نه کړو بلکه په خپله دقوم نفع وه چه ددوی جان مال او ابرویه محفوظ وو پلار چه کوم دخپلو ورو بچوحفاظت او ددوی تادیب محض په خیرخواهئ سره کوی د هغه د خود غرضئ او طلب ریاست سره هیڅ تعلق نه شی کیدې هرکله چه نبوت هم ثابت شو او شبهه مقامیه هم دفعه شوه وړاندې ددې دنقیض ابطال لره د دې په اثبات باند متفرع فرمائی چه اے محمد ﷺ ﴿قُلْ إِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ بِالْحَقِّ﴾ [ته ووایه چه زما رب حقې خبرې لرې] یعنی ایمان اوثبوت دایمانیاتو لره په باطل یعنی کفر او انکاردایمانیاتو باند [غالب کوی] په مناظره او خبرواترو سره هم چنانچه اوس ولیدې شوه مقاتلې اود مقابلې هم سامان کوونکې دې غرض په هرقسم سره حق غالب دې او ﴿عَلَّامُ الْغُيُوبِ﴾ [هغه علام الغیوب دې] دا ته دوړاند نه معلومه وه چه حق به غالب وی نورو ته خو اوس دوقوع نه پس معلومه شوه او دغه شان هغه ته معلومه ده چه اننده به غلبه زیاتیږی چنانچه د مکې په فتح کښې د نبی کریم ﷺ راتلونکې ایت لوستل کمارواه ابن کثیر عن الشیخین وغیرهما(۲) قرینه ده چه په دې مضمون کښې چه دکومې غلبې خبر ورکړې شوې دې په دې کښې غلبه بالسیف هم داخله ده وړاندې ددې مضمون دزیات وضاحت دپاره ارشاد دې اے محمد ﷺ ﴿قُلْ جَاءَ الْحَقُّ﴾ [ته ووایه چه] دین [حق راغې ﴿وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ﴾ او باطل] دین [نه د کولو پاتې ﴿وَمَا يُعِيدُ﴾ اونه د راګرځیدو] یعنی محض بې کاره پاتې شو ددې دامطلب نه دې چه اهل باطل ته به چرې شوکت او قوت حاصل نه شی بلکه

(۱) ترجمه: یا دا خلق د خپل رسول نه واقف نه وو.

(۲) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، سورة بنی اسرائیل باب قل جاء الحق الآیة: ج ۲، ص ۶۸۶، وصحیح مسلم، کتاب الجهاد، باب فتح مکة: ج ۲، ص ۱۰۴

Scanned with Ca

مطلب دا دي چه څنګه ددې دين حق راتلونه وړاندې چرته په باطل باندشبهه دحق کيدو کولې شوه اوس باطل ددې صفت دحيثيت نه بالکل نيست ونابود شو يعنى بطلان يې ښه ظاهر شو او هميشه به ترقرب قيامته پورې به دغسې ظاهروى وړاند دحقې خبرې دثابت او واضح کيدونه پس دنجات ددې په تابعدارئ کښې منحصرکيدل بيان فرمائى چه اے محمد ﷺ ﴿قُلْ﴾[ته] داهم [ووايه چه] هرکله ددې دين حقوالې ثابت شونو ددې نه داهم لازمه شوه چه ﴿إِنْ ضَلَلْتُ﴾[که چرې] بالفرض [زه] داحق پريږدم [بې لارې شم ﴿فَإِنَّمَآ أَضِلُّ عَلَىٰ نَفْسِىۖ﴾ نوزما دبې لارې کيدو وبال به په ماوى] دنورو څه نقصان دې ﴿وَإِنِ اهْتَدَيْتُ﴾[اوکه زه] ددې حق تابعدارى وکړم [په] نيغه [لاره شم نو ﴿فَبِمَا يُوحِىٓ إِلَىَّ رَبِّىٓۚ﴾ دابه په وجه ددې قرآن] اودين [وى کوم چه زما رب ماته راليږلې دې] اصل مقصود مخاطب ته اوږول دى چه سره د وضاحت نه که تاسو دحق تابعدارى ونه کړه نو وبال به يې په تاسووى زما به څه وران شي اوکه په لارې شوئ نو داپه لاره کيدل به ددې حق دين دتابعدرئ په دولت وى پس تاسوله پکاردى چه په نيغه لاره دکيدو دپاره دا دين اختيارکړئ او په لاره کيدل دچا يابې لارې کيدل د چابه هسې نه څې چه دبې فکره کيدو ګنجانش په کښې وى بلکه دهريوحال الله تعالى ته معلوم دې ځکه چه ﴿إِنَّهُۥ سَمِيعٌ قَرِيبٌ﴾[هغه هرڅه اوري] او[ډيرنزدې دې] هغه به هريو ته دهغه مناسب جزا ورکړي.

## معارف او مسائل

﴿وَمَا بَلَغُوا۟ مِعْشَارَ مَآ ءَاتَيْنَٰهُمْ﴾ ځينې حضرات دمعشار معنى عشر يعنى لسمه حصه کړې ده ، ځينو عشر العشر يعنى سلمه حصه ،ځينو عشر العشير يعنى زرمه حصه اخستې ده. ښکاره خبره ده چې د عشر په نسبت په معشار کښې مبالغه زياته ده ، د آيت مبارك معنى به داوى چې پخوانو امتونو ته چې کوم دنيا ، دولت ، اوږده عمرونه ، روغتيا او طاقتونه وغيره ورکړې شوى وو ، اهل مکه ته په لسمه حصه څه چې زرمه حصه هم نه دې ورکړې شوې ، ځکه پکار دى چې دوئ د هغوئ دخراب انجام څخه عبرت واخلى ، چې دغه خلق د پيغمبرانو ﷺ د دروغژنو بللو په وجه د الله ﷻ په عذاب کښې اخته شو. کله چې پرې هغه عذاب راغلو نو دهغوئ طاقت ، بهادرى ، او مال دولت محفوظې قلاګانې هيڅ پکار رانغلې.

**دحق ځانګړو ته بلنه:** ﴿إِنَّمَآ أَعِظُكُم بِوَٰحِدَةٍۖ﴾ په دې کښې په اهل مکه باندې دحجت تمامولو په غرض د تحقيق حق يو لنډه لار خودلې شوې ده چې الله ﷻ دپاره راپورته شئ. ددې مطلب صرف راپورته کيدل نه بلکه ددې د کولو دپاره پوره مدد کوونکى شئ. د لِلَّهِ لفظ په زياتولو سره واضحه شوه چې دا دې خالص د الله ﷻ درضا دپاره کول وى ، چې رومبى خيالات د ذهن څخه اوباسى او د حق په لټون کښې اوس لګيا شى ، چې رومبنى خيالات او عملونه د حقې لارې په قبلولو کښې خنډ جوړ نشى. اوپه دوؤ دوؤ يا يويو کښې خاص شمير مقصود نه دې بلکه مطلب دادې چې دغوروفکر کولو دوه طريقې وى ، يو ځان له فکر کول دى ، بل دا چې دوستانو اومشرانو سره پرې مشوره او بحث اوکړى او څه نتيجې ته اورسى ، نو دې دواړو طريقو کښې دې دپاره يوه خوښه کړى.

﴿ثُمَّ تَتَفَكَّرُوا۟ۚ﴾ ددې جملې عطف په ﴿أَن تَقُومُوا۟﴾ باندې دې ، مطلب دا چې پخوانى خيالات پريږدئ خالص د الله ﷻ دپاره دې کار ته تيار شئ چې د محمد ﷺ په دعوت کښې د غور

Scanned with Ca

وفکر څخه کار واخلئ چې حق دې او که نه دې. خواه دا غوروفکر ځانله کوئ یا په شریکه دنورو په مشوره او صلاح سره کوئی.
دې پسې ددې غوروفکر یوه واضحه لار اوخودلې شوه هغه دا چې داسې یواځې کس یعنی محمد ﷺ د ټول قوم بلکه د ټولې دنیا پخلاف دداسې عقیدې اعلان څنګه کولې شی چې د صدو څخه پرې دوئ کلك شوی راروان دی ، او ټول پرې اتفاق لری ، حالانکه دغه کس یعنی محمد ﷺ نه څه زور وره ډله لرې او نه زیات مال اودولت .
داسې اعلان صرف په دوؤ صورتونو کښې کیدېشی. یو دا چې ویونکې بالکل پاګل وی چې پخپل ګټه تاوان نه پوهیږی ، ټول قوم د ځان دښمن کړی او مصیبتونو ته بلنه ورکړی ، دویم دا چې خبره ئې ربښتینی وی ، د الله ﷻ د طرفنه رالیږلې شوی پیغمبر وی چې د الله ﷻ په حکم باندې عمل کولو کښې د هیڅ پروا نه ساتی .
اوس تاسو په اوزګار او خالی ذهن غور اوکړئی چې دې دواړو خبرو کښې کومه واقعی ده چې داسې مو اوکړل نو معلومه به شی چې نبی اکرم ﷺ پاګل نه دې ، دمکې مکرمې ټول خلق اوقریش خبر دی د نبی اکرم ﷺ دعقل او هوښیارتیا او کردار او عمل د عمر څلوېښت اولنی کالونه دخپل قوم په وړاندې تیر شو یدی . د دوړکتوب څخه تر ځوانئ پورې هر څه ئې خلقوته ښکاره دی. هیڅ هم د نبی اکرم ﷺ څه قول ، فعل دعقل ودانش ، هوښیارتیا او شرافت څخه خلاف بیا نه مونده ، صرف د نبی اکرم ﷺ یوه کلمه لا اله الا الله به څنګه د عقل و دانش څخه خلاف شی کومې ته چې نبی اکرم ﷺ بلنه ورکوی. په دې بنا نبی اکرم ﷺ هیچرې لیونې او پاګل نشی کیدې نو ورپسې فرمائی چې: ﴿مَا بِصَاحِبِكُمْ مِّنْ جِنَّةٍ﴾ د ﴿صَاحِبِكُمْ﴾ لفظ نه دې طرفته اشاره اوشوه چې نبی اکرم ﷺ هسې اجنبی مسافر راغلې بنده نه دې بلکه ستاسو د خپل کور کلی بنده دې ، تاسو څخه ئې هیڅ حالت او کړۀ وړۀ پټ نه دی او ددې څخه وړاندې هم د نبی اکرم ﷺ په باره کښې ستاسو څه شبه نه وه راولاړه شوې کله چې داخبره بالکل نشته نو دویمه خبره یقینا ټاکلې شوې ده څکه ورپسې فرمائی چې ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ﴾ [یعنی د هغوئ ﷺ حال ددې څخه سوا بل څه نه دې چې د قیامت د راتلونکې سخت عذاب څخه خلق ویروی چې ځان ترې اوساتی.]
﴿إِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَّامُ الْغُيُوبِ﴾ [یعنی زما پروردګار علام الغیوب دې هغه حق لره په باطلو باندې ور ولی] چې دهغې په نتیجه کښې باطل دړې وړې کیږدی کما قال تعالی [فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ] (١) ، د قذف دلفظ لغوی معنی د ورویشتلو ده خو دلته د باطل په مقابله کښې حق پیش کول مراد دی ، او د یقذف راوړل شاید دا حکمت لری چې په باطلو باندې د حق دګذار اثر خودل مقصود دی ، دا یو تمثیل دې چې څنګه یو مضبوط او دروند څیز په یو سپك او نازك څیز باندې ور اوغورزولې شی نو هغه څیز ذره ذره شی ، دغه شان د حق په مقابله کښې باطل هم ذره ذره کیږی ، څکه ورپسې فرمائی چې: ﴿وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ﴾ [یعنی د حق په مقابله کښې باطل داسې ذلیل او بې کاره شی چې هغه نه د څه څیزد ابتداء کولو جوګه پاتې کیږی او نه د دوباره راګرځولو].

---

(١) ترجمہ: پس هغه ایک دم روانیږی۔

Scanned with Ca

وَلَوْ تَرٰىٓ إِذْ فَزِعُوْا فَلَا فَوْتَ

| او کاش چې اووينې ته | کله چې | اوبريږي دوئ | اونه به وی لار د بچ کيدو

| او که ته دوی هغه وخت اووينې چې دوئ به ويريدلی وی | نو خلاصيدې به نشی

وَاُخِذُوْا مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ ۙ وَّقَالُوْٓا اٰمَنَّا

او نيولې کيږی به | دځائې نزدې نه | او او به وائی په هغه وخت کښې اچې ايمان راوړو مونږ

او د نزدې نه به رانيولې شی | ............... او دا به وائی چې [بس] مونږ په دې دين

بِهٖ ۚ وَاَنّٰى لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيْدٍ ۚ

په دې باندې | او څرنګ به وی | دوی لره | نيول | دځائې لرې نه |

ايمان راوړو | خو اوس د دومره لرې ځائې نه د دوئ لاس چرته وررسيدې شی؟

وَقَدْ كَفَرُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلُ ۚ وَيَقْذِفُوْنَ بِالْغَيْبِ

او کفر کړې وو دوئ | په دې سره | مخکښې د دې نه | او ويشتل به کول دوئ | په غيبو سره |

حال دا دې چې دوئ ترې د وړاندې نه انکار کولو | ............... او دوئ د لرې نه بې ليدو

مِنْ مَّكَانٍ بَعِيْدٍ ۝ وَحِيْلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا

دځائې لرې نه | او پرده به واچولې شی | په منځ د دوئ کښې | او په منځ | د هغه څيز کښې

خيالی غشی ويشتل | او د دوئ او د دوئ د خواهشاتو په مينځ کښې به يو ديوال او دروليې شی

يَشْتَهُوْنَ كَمَا فُعِلَ بِاَشْيَاعِهِمْ مِّنْ قَبْلُ ؕ

چې آرزوئې کوی دوئ | لکه څنګه چې | شوې وو [داکار] | د ملګرو د دوئ سره | مخکښې د دې نه

لکه څنګه چې د دې نه وړاندې د دوئ غوندې خلقو سره شوې وو | او هغوئ هم

اِنَّهُمْ كَانُوْا فِيْ شَكٍّ مُّرِيْبٍ ۝

بيشکه دوئ | وو | په داسې شک کښې | چې پريشانه کونکی وو

د دوئ پشان ښکاره شک کښې پراته وو

## آسان ترجمه قرآن

(اے پیغمبره! کاشکې ته به د دوی حالت عجيبه ښکاره شی) که ته هغه منظر اووينې، چه کله دوی په ويره کړای، او د تښتيدلو هيڅ لاره به نه وی، او دوی لره به د نزدې نه راؤنيولې شی. او (هغه وخت به) دوی دا وائی چه: مونږ په دې باندې ايمان راوړې دې، حالانکه د دومره لرې نه څه څيز دوی ته په لاس څرنګه راتلې شی؟ هرکله چه دوی د مخکښې نه د دې نه انکار کړې وو، او د لرې نه ئې اټکل سره غشی ويشتلې وو. او په هغه وخت کښې چه دوی د کوم (ايمان) آرزو کوی، د هغې او د دوی په مينځ کښې به يو حائل راوستلې شی لکه چه د دوی نه مخکښې کوم خلق وو، هغوی سره به هم د غسې معامله کيږی، حقيقت دا دې، چه دا ټول په داسې شک کښې پراته وو، چه هغې دوی لره په دهوکه کښې اچولې وو.

Scanned with Ca

## خلاصه تفسير

[او] اے محمد ﷺ ﴿وَلَوْ تَرٰٓى﴾ [كه ته هغه وخت وګورې] نو ته به حيران شې ﴿اِذْ فَزِعُوْا﴾ [هر كله چه داكفار] د قيامت دويرې او هيبت نه [وارخطاشى ﴿فَلَا فَوْتَ﴾ بيابه دتيښتې څه صورت نه وى ﴿وَاُخِذُوْا مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ﴾ او دنزدې نزدې نه] يعنى فورا [به اونيولې شى او] هغه وخت ﴿وَّقَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖ﴾ [وبه وائى دوئ چه مونږ په دې حق ايمان راوړو] او څومره كارونه چه په دې كښې ښودلې شوى دى ټول موومنل په دې وجه زمونږ توبه قبوله كړئ خواه دوباره دنياته مونږ ليږئ اوكه بغيردليږلو وى ﴿وَاَنّٰى لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيْدٍ﴾ [او ددومره لرې ځائ نه] د ايمان [ددوى په لاس ورتلل چرته ممكن دى] يعنى دايمان راوړو ځائ په وجه د دارالعمل كيدو دنياوه كومه چه ډيره لرې پاتې شوه اوس عالم اخرت دې چه دارالعمل نه دې دارالجزاء دې په دې كښې ايمان مقبول نه دې ځكه چه اوس كوم ايمان وى هغه به ايمان بالغيب نه وى بلكه د مشاهدې نه پس دې دمشاهدې نه پس دڅه شى اقراركول خو طبعى امردې په دې كښې د اطاعت حكم هيڅ اړخ نشته حال دادې ﴿وَقَدْ كَفَرُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلُ﴾ چه دوړاندې نه په دنياكښې دې خلقو ددې [حق نه انكار كولواو] ددوى انكارهم داسې چه څه صحيح منشاء ئې نه وه بلكه ﴿وَيَقْذِفُوْنَ بِالْغَيْبِ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيْدٍ﴾ [بې تحقيقه خبرې ئې دلرې لرې نه ويشتلې] دلرې مطلب دادې چه ددې دتحقيق نه لرې وو يعنى په دنيا كښې خو ئې كفر كولو اوس ئې دايمان سوچ راغې او ددې دقبليدو ارزوئ ده [او] چونكه اخرت دارالعمل نه دې په دې وجه ﴿وَحِيْلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُوْنَ﴾ [په دوى كښې او ددوى] دقبليدو دايمان [په ارزوكښې به يو خنډوكړې شى] يعنى ددوى ارزو به پوره نه شى ﴿كَمَا فُعِلَ بِاَشْيَاعِهِمْ مِّنْ قَبْلُ﴾ [لكه چه ددوى دهم مشربوسره] هم [دا] سلوك [به وكړې شى كوم چه ددوى نه وړاند] كفرئ كړې [وو ﴿اِنَّهُمْ كَانُوْا فِيْ شَكٍّ مُّرِيْبٍ﴾ داټول په لوئ شك كښې وو كوم چه دوى لره په تردد كښې غورزولى وو]

## معارف او مسائل

﴿وَاُخِذُوْا مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ﴾ داكثرو مفسرينو په نزد دا حال د محشر د ورځې دې چې كافران او بدكاران به د ويرې په وجه تښتيدل غواړى خو دغسې به نشى كولې لكه په د نيا كښې يو مجرم اوتښتى او دهغه لټول غواړى بلكه ټول به په يو ځائې كښې را ايسار كړې شى هيڅوك به د تښتيدلو توان نشى لرلې. ځينو حضراتو دا فرمائيلى دى چې دا به د ځنكدن په وخت كښې وى، كله به چې په دغه وخت په دوئ ويره راشى نو د فرښتو څخه به نشى خلاصيدې او هم په دغه ځائې به روح قبض كولو سره را ايسار كړې شى.

﴿وَّقَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖ ۚ وَاَنّٰى لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيْدٍ﴾ د تناوش معنى په لاس سره يو څيز راپورته كول دى، ښكاره خبره ده چې په لاس نيول او راپورته كول دهغه څيز كيدې شى چې نزدې وى او لاس ئې ورته رسيدې شى، مضمون د آيت مبارك دادې چې كفار او مشركان منكران به د قيامت په ورځ وائى كله چې به ورته حقيقت مخې ته راشى چې مونږ په قرآن عظيم الشان يا په رسول ايمان راوړلو، نو دوئ ته دا معلوم نه دى چې دايمان مقام ډير لرې شوې دې. د ايمان قبليدل ددنيا په ژوند كښې كيدې شو، آخرت د عمل كولو ځائې نه دې چې ګنى دغه وخت به هم ددوئ څخه ايمان راوړل قبول كړې شى بلكه د دوئ لاس به ايمان راوړلو ته نه

رسی، هغه وخت او موقعه په دنیا کښې تیره شوه ، هغې ته د دوئ لاس چرته رسیدې شی .
﴿وَقَدْ كَفَرُوا بِهِ مِنْ قَبْلُ ۚ وَيَقْذِفُونَ بِالْغَيْبِ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيدٍ﴾ دقذف معنی یو څیز ورویشتل دی ، نو دعربو د محاورې مطابق څوك چې بې دلیله خالص په خپل خیال سره خبرې کوی نو هغې ته رجم بالغیب او قذف بالغیب وائی گویا که داسې کس په تیرو کښې غشی اولی حالانکه هغه نخښه نه وینی ، دلته د ﴿مَّكَانٍ بَعِيدٍ﴾ الفاظو څخه مراد دادې چې د دوئ دا وینا د دوئ د زړونو څخه لرې ده یعنی ددې عقیده نه لری.

﴿وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ﴾ [یعنی د دوئ او ددوئ د خوښې د څیز ترمینځه به پرده راواچولې شی او محرومه به کړې شی دا حال د قیامت او د مرګ د وخت دواړو کیدې شی چې دوئ به د خلاصی او جنت خواهش مند وی خو په دواړو موقعو به ئې دا مقصد نشی حاصلیدې].

﴿كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِمْ﴾ اشیاع د شیعة جمع ده ، د چا تابع او د یو شان خیال کس ته دهغه شیعه وئیلې شی . یعنی د خپل محبوب او مطلوب څخه د محرومه کولو کوم عذاب چې دوئ ته ورکړې شو همدغسې عذاب د دوئ پشان کافرانو او منکرانو ته هم ورکړې شو. ځکه چې دا ټول خلق په شك کښې پراته وو یعنی د نبی اکرم ﷺ په نبوت او په قرآن عظیم الشان باندې ئې ایمان او یقین نه وو. والله سبحانه وتعالی اعلم.

تمت سورة سبا بحمد الله لاخر یوم من المحرم الحرام ۱۳۹۲ هجری

| اياتونه | سورة فاطر مكية وهي خمس واربعون اٰية وخمس ركوعات | ركوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ۴۵ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۵ |

الْحَمْدُ لِلّٰهِ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ جَاعِلِ

ټوله ثنا | خاص الله لره ده | چې پیدا کونکې دې | دآسمانونو | او دزمکې | مقررونکې دې |

ټول تعریفونه صرف یو الله ﷻ دپاره دی| ..........چې د آسمانونو او زمکې پیدا کونکې دې

الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا أُولِيٓ أَجْنِحَةٍ مَّثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ۚ يَزِيدُ

دفرښتو | پیغام رسونکی | خاوندانې | دوزرو | دوه | دریو | او څلورو دی | زیاتوالې کوی

او فرښتې ئې خپلې پیغام رسونکې جوړ کړې اچې دوه دوه او درې درې او څلور څلور وزرې ئې دی| د چا

فِي الْخَلْقِ مَا يَشَآءُ ۚ إِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ①

په پیداوښت دمخلوق کښې | هغه چې خوښه ئې شی | بیشکه الله | په هر څیز باندې | قادر دې |

په پیدائش کښې چې اوغواړی نور زیاتوی|..............بیشکه الله ﷻ په هر څه قادر دې

مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ۚ

هغه چې پرانیزی | الله | دپاره دخلقو | درحمت نه | پس نه وی بندونکې هیڅوک | هغې لره |

الله ﷻ چې خلقو ته د رحمت [دروازه] پرانیزی | نو څوک ئې بندولې نشی | او کوم

Scanned with CS

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَا يُمۡسِكۡ | فَلَا مُرۡسِلَ | لَهٗ | مِنۢ بَعۡدِهٖ |
| او هغه چې بند کړي | پس نه وي لیږونکي | هغه څیزلره هیڅوك | روستو :بندولو دهغه نه |

څیز چې هغه بند کړي نو څوك ئې د بندولو نه پس جاري کولې نشي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَهُوَ الۡعَزِيۡزُ | الۡحَكِيۡمُ | يٰۤاَيُّهَا | النَّاسُ | اذۡكُرُوۡا | نِعۡمَتَ اللّٰهِ |
| اوهغه غالب دي | حکمت والا دي | اے | خلقو | یاد کړئ | احسان دالله |

اوهغه غالب صاحب د حکمت دي | ..........ائي خلقو په تاسوچې دالله ﷻ کوم نعمتونه دی

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلَيۡكُمۡ | هَلۡ مِنۡ خَالِقٍ | غَيۡرُ اللّٰهِ | يَرۡزُقُكُمۡ |
| چې دي په تاسو باندي | آیا شته څوك پیداکونکي | بغیر دالله نه | چې رزق درکوی تاسو ته |

هغه یاد ساتئ | آیا دالله ﷻ نه بغیر بل څوک خالق شته | چې تاسوته دآسمان

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنَ السَّمَآءِ | وَالۡاَرۡضِ | لَاۤ | اِلٰهَ | اِلَّا هُوَ | فَاَنّٰى |
| دآسمان | او دزمکې نه | نشته | دي لائق دعبادت | مگر هم هغه دي | آخر دکوم ځائې نه |

اود زمکې نه روزي در رسوی ؟ | د هغه نه سوا بل څوک معبود نشته | نو دا تاسو کوم طرفته اړولی

| |
|---|
| تُؤۡفَكُوۡنَ |
| تاسو دوکه خورئ |

شئ |

## آسان ترجمه قرآن

ټول تعریفونه الله تعالی دپاره دی. چه د آسمانونو او زمکې پیدا کونکې دې. الله تعالی هغې فرشتو لره پیغام اوړلو دپاره مقرر کړې دی. چه دوه دوه، دریو دریو، او څلورو څلورو وزرو والا دی. هغه په پیدائش کښې چه څومره غواړي، اضافه کوی بې شکه الله تعالی په هر څیز قدرت لرونکې دې. کوم رحمت چه الله تعالی خلقو دپاره پرانیزی، هیڅوک نشته چه هغې لره بند کړی، او کوم لره چه بند کړی، نوهیڅوک نشته، چه دهغه نه پس هغې لره پرانیزی او هم هغه دې، چه د اقتدار مالک هم دې، د حکمت مالک هم دې. اے خلقو! یاد کړئ هغه نعمتونه چه الله تعالی په تاسو باندې نازل کړې دی، آیا د الله تعالی نه ماسوا بل خالق شته، چه تاسو ته د آسمان او زمکې نه رزق درکوی؟ دهغه نه سوا هیڅ معبود نشته، بیا تاسو کوم طرف ته اوړئ،

## خلاصه تفسیر

﴿اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ﴾ [ټول حمد] اوثناهغې [الله تعالی لره لایق دي ﴿فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ﴾ کوم چه داسمانونو اومزکې پیداکوونکې دې ﴿جَاعِلِ الۡمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا﴾ کوم چه فرښتولره پیغام رسوونکې جوړونکې دې ﴿اُولِيۡۤ اَجۡنِحَةٍ مَّثۡنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ﴾ دکومو چه دوه دوه او درې درې او څلور څلورځانګونه یعنی وزران دی] دپیغام نه مراد انبیاء ﷺ ته وحی راوړل دی خواه هغه د احکامو دشرائعو سره متعلق وی یا محض دبشارت وغیره سره او دځانګونو[وزرانو] مقدار څه په څلورو باند منحصر نه دې بلکه ﴿يَزِيۡدُ فِي الۡخَلۡقِ مَا يَشَآءُ﴾[هغه په پیدائش کښې چه څه غواړي زیاتوی]

Scanned with Ca

تردې چه دځنو فرښتوې شپږ سوه ځانګونه پیداکړی دی لکه چه په حدیث کښې دحضرت جبرائیل ﷺ متعلق راغلی دی(۱) ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ [بیشکه الله تعالی په هرڅه قادر دې] او قادر هم داسې چه څوك مزاحم ئې نشته ﴿مَا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحْمَةٍ﴾ چه هغه [الله تعالی کوم رحمت دخلقو دپاره خلاص کړی] مثلا باران شنه بوټی اونور عام رزق ﴿فَلَا مُمْسِكَ لَهَا﴾ [نو ددې څوك بندونکې نشته] ﴿وَمَا يُمْسِكْ﴾ اوکوم لره چه بندکړی نو ﴿فَلَا مُرْسِلَ لَهُ مِن بَعْدِهِ﴾ دهغې] بندولو [نه پس دهغې څوك جاری کوونکې نشته] البته هغه ئې په خپله بندولې پرانستلې شی ﴿وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ [اوهغه غالب] یعنی قادر او [حکمت والا دې] یعنی په سپردو او بندولو قادر هم دې او بندول او خلاصول همیشه په حکمت سره کیږی ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ﴾ [اے خلقو] لکه څنګه چه ددهٔ قدرت کامل دې دغه شان ددهٔ نعمت هم کامل دې ددهٔ دنعمتونو هیڅ شمیر نشته په دې وجه ﴿اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾ [په تاسو چه کوم دالله تعالی احسانات دی هغه یاد کړئ﴾ او دهغه شکر اداکړئ او هغه شکردادې چه توحیداختیار کړئ اوشرك پریږدئ کم نه کم په دې دوه لویو نعمتونو کښې غور وکړی کوم چه دمخلوقات ایجاد او بیاد دوی باقی او قائم پاتې کول دی ﴿هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللَّهِ﴾ [ایاد الله تعالی نه سوا څوك خالق شته ﴿يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾ کوم چه تاسو ته داسمان اومزکې نه رزق رسوی] یعنی دهغه نه سوا څوك نه تخلیق او ایجاد کولې شی اونه څه ایجاد کړی لره د باقی اوقائم ساتلودپاره درزق رسولو کارکولې شی د دې نه معلومه شوه چه هغه په هرشان کامل دې نو یقینا ﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ [ددهٔ نه سوا څوك لائق دعبادت] هم [نشته نو] هرکله چه معبود کیدل دهغه حق دې نو ﴿فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ﴾ [تاسو] په شرك کولو سره [کوم طرف ته اولته کرځئ]

## معارف او مسائل

﴿جَاعِلِ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا﴾ فرښتو لره پیغام او حکمونه رسوؤنکې جوړول ښکاره مطلب دالرې چې دوئ پیغمبرانو ﷺ ته د ربیبارانو او قاصدانو په حیث لیږلې شی چې ورته د الله ﷻ د طرفه پیغامونه او وحی رارسوی. او دا هم کیدې شی چې دې څخه مراد واسطه وی، د الله ﷻ او دعام مخلوق ترمینځه چې په کښې پیغمبران ﷺ د ټولو څخه زیات غوره او اعلی دی. ددوئ ﷺ او د الله ﷻ ترمینځه هم د وحی واسطې جوړیږی او عام مخلوق ته د الله ﷻ د رحمت یا د عذاب رارسولو واسطې هم جوړیږی.

﴿أُولِي أَجْنِحَةٍ مَّثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ﴾ [او فرښتې ئې خپلې پیغام رسونکې جوړ کړې چې دوه دوه او درې درې اوڅلور څلور وزرې ئې دی] یعنی الله ﷻ فرښتو ته وزر ورکړی دی چې ورسره الوتې شی حکمت ئې دادې چې د آسمان څخه تر زمکې پورې مزل په آسانه زرکولې شی.

﴿مَّثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ﴾ په ښکاره د ﴿أَجْنِحَةٍ﴾ صفت دې چې مختلفې فرښتې په مختلف شمیر کښې وزرونه لری، خو ددې مطلب دا نه دې چې ګنې د څلورو څخه زیات وزرونه څوك فرښته نه لری. د صحیح مسلم په یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې د جبرائیل ﷺ شپږ سوه وزرونه دی(۲).

---

(۱) صحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب الاسرا برسول الله صلی الله علیه وسلم: ج ۱، ص ۹۷

(۲) صحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب الاسرا برسول الله علیه وسلم: ج ۱، ص ۹۷

Scanned with Ca

د تمثیل په ډول تر څلورو پورې ذکر کړې شوې دې [قرطبی و ابن کثیر] (۱).
داهم کیدې شی چې ﴿مَثْنٰى الخ﴾ د ﴿رُسُلًا﴾ صفت وی ، یعنی هغه فرښتې چې د الله ﷻ د طرفه رالیږلې شوی ځیزونه اوپیغامونه دنیا ته رسوی ، هغوئ کله د دوؤ په شمیر کښې رازی او کله د دریو او څلورو وغیره په شمیر کښې هم رازی خو د لته هم ترې یوازې څلورو پورې فرښتې راتلل مراد نه دی بلکه ددې څخه زیات شمیر کښې د فرښتو نازلیدل پخپله د قرآن عظیم الشان څخه ثابت دی . [ابو حیان په بحر محیط کښې] (۲).
﴿يَزِيدُ فِي الْخَلْقِ مَا يَشَاءُ﴾ [د چا په پیدائش کښې چې اوغواړی نور زیاتوی] ددې تعلق خو په ظاهره ﴿أَجْنِحَةٍ﴾ سره څکه دې چې د فرښتو وزرونه او متې یوازې څلور نشی کیدې که الله ﷻ اوغواړی نو ددې څخه زیات ډیر زیات هم کیدې شی ، د اکثرو مفسرینو هم داقول دې او زهری رحمه الله او قتاده رحمه الله وغیره دتفسیر امامانو فرمائیلی دی چې دلته د زیادت فی الخلق څخه مراد عامه معنی ده چې په کښې د فرښتو د وزرونو او متو زیاتوالې هم شامل دې . او دمختلفو انسانانو په تخلیق کښې د خاصو خاصو صفتونو زیاتوالې هم چې په کښې حسن سیرت ، حسن صورت ، او حسن صوت وغیره ټول داخل دی ، ابو حیان په بحر محیط کښې دې لره اختیار کړې دې او فرمائیلی ئې دی چې د زیات فی الخلق څخه مراد حسن خلق ، حسن صوت ، حسن خط ، حسن صورت ، دعقل ، علم کمال ، شیرین کلامی وغیره ټول دی (۳).
ددې دویم تفسیر څخه دا ثابته شوه چې انسان ته حاصل شوی ټول حسنونه او کمالونه د الله ﷻ ورکړه او نعمت دې په دې د الله ﷻ شکر ادا کول پکار دی .
﴿مَا يَفْتَحِ اللهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا﴾ دلته لفظ درحمة عام دې، په دې کښې ددین اودنیا اوآخرت ټول نعمتونه داخل دی،لکه ایمان،علم،نیك عمل ،پیغمبری ، دغسې روزی ، اسباب د آرام اوراحت صحت او تندرستی او مال،عزت وغیره. دآیت مبارك معنی ظاهری داسې ده چې الله ﷻ چاته دخپل رحمت پرانیستل غواړی هغه څوك ایسارولې او بندولې نشی .
بله جمله :﴿وَمَا يُمْسِكْ﴾ هم عامه ده چې د الله ﷻ ایسار کړې څیز څوك آزادولې نشی ، په دې کښې ددنیا مصیبتونه او غمونه هم داخل دی یعنی هر کله چې الله ﷻ چاته مصیبت او غم رسول نه غواړی نو څوك ئې ورته نشی رسولې ، په دې کښې رحمت هم داخل دې ، مطلب ئې دادې چې که چالره الله ﷻ دخپل رحمت څخه محرومه کول غواړی نو بل هیڅوك ئې نشی ورکولې . [ابوحیان] (۴).
د آیت مبارك ددې مضمون باره کښې یو حدیث پاك داشان راغلې دې . معاویه رضی الله عنه خپل عامل دکوفې گورنر مغیره بن شعبه رضی الله عنه ته خط اولیکلو چې ماته داسې څه حدیث راؤلیږه چې نبی اکرم ﷺ څخه دې آورېدلې وی ، مغیره رضی الله عنه خپل لوئې منشی رواد راؤبللو او هغه ته ئې ددې د لیکلو حکم اوکړو چې هر کله نبی اکرم ﷺ دمونځ کولو څخه فارغ شو نو هغه وخت

۱) تفسیر القرطبی:ج ۱٤، ص ۳۱۹، ۳۲۰
۲) تفسیر البحر المحیط تحت هذه الآیة: ج ۹، ص ۲۲۸
۳) تفسیر البحر المحیط: ج ۹، ص ۲۲۹
۴) تفسیر البحر المحیط: ج ۹، ص ۲۲۹

Scanned with Ca

تري ما دا كلمات واوريدل چي : ﴿اللهم لا مانع لما اعطيت ولا معطى لما منعت ولا ينفع ذا الجد منك الجد﴾ [يعنى اى الله ﷻ ا كوم څيز چې ته چا ته وركړې دهغې ايسارووكي نشته او كوم څيز چې ته ايسار كړې دهغې څوك آزادونكې نشته ستا د ارادې خلاف د چا كوشش كوونكي كوشش هيڅ كار نشي وركولې]. [ابن كثير د مسند احمد څخه][۱].

او په صحيح مسلم كښې ابى سعيد خدرى ﷺ څخه روايت دې چې هم دغه بيان شوي كلمې رسول كريم ﷺ هغه وخت وئيلې وې چې سر مبارك ئې د ركوع څخه راپورته كړو خو په اول كښې ئې داكلمې زياتې كړې : ﴿احق ما قال العبد وكلنا لك﴾[۲] [يعنى دا كلمه په دې ټولو كلماتو كښې چې څوك بنده وئيلې شى د ټولو څخه زياته حقداره او پورته ده].

**په الله تعالى باندې توكل او اعتماد دټولو مصيبتونو څخه نجات دې:** دې آيت مبارك چې انسان ته كوم سبق وركړې دې هغه دا چې د غير الله څخه دې د نفع او ضرر اميد اوويره نه لرى ، دا هر څه كښې دې صرف الله ﷻ ته نظر كوى داد دين دنيا د سمون او د دائمى راحت اكسيره نسخه ده او انسانانو لره د زړګونو غمونو او فكرونو څخه خلاصي وركوونكې دې .[روح][۳].

عامر بن عبد قيس ﷺ اوفرمائيل چې زه د صبا په وخت كښې د قرآن عظيم الشان څلور آيتونه اولولم نو دا فكر راسره نه وى چې صبا له به څه راپيښيږى او بيګاله به څه كيږى .هغه آيتونه دادى : ﴿مَا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ۖ وَمَا يُمْسِكْ فَلَا مُرْسِلَ لَهُ مِن بَعْدِهِ﴾[۴] دويم آيت مبارك دادې : ﴿وَإِن يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ ۖ وَإِن يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَادَّ لِفَضْلِهِ﴾[۵] دريم آيت مبارك دادې : ﴿سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا﴾[۶] څلورم آيت مبارك دادې : ﴿وَمَا مِن دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا﴾[۷] [اخرجه ابن المنذر ، روح][۸].

كله به چې ابوهريره ﷺ باران وريدل ليدل نو فرمائيله به ئې چې : ﴿مطرنا بنوء الفتح﴾ اوبيا دغه آيت :﴿مَا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ﴾ الخ ، به ئې ورپسې پوره لوستو ، په دې سره د عربو د باطلو خيالاتو ترديد كول وو چې د باران نسبت به ئې خاص خاص ستورو ته كولو او وئيل ئې چې مونږ باندې دا باران د فلانى ستورى په وجه وريږى . ددې مقابله كښې ابوهريره ﷺ فرمائيل چې په مونږ باندې دا باران د آيت فتح په بركت وريږى . كوم به چې ورپسې بيا داسې لوستلو چې :﴿مَا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ﴾ الخ ، [رواه مالك فى الموطا][۹].

---

۱) مسند أحمد، حديث المغيرة بن شعبة رضى الله عنه، رقم الحديث: ۱۸۶۲۹

۲) صحيح المسلم: كتاب الصلاة، باب ما يقول اذا رفع راسه من الركوع: ج ۱، ص ۱۹۰

۳) تفسير روح المعاني: ج ۱۶، ص ۳۴۵

۴) ترجمه: الله تعالى چه كم رحمت د خلقو دپاره كهلاو كړى نو هغه څوك هم نشى بندولى او كوم (رحمت) چه بند كړى نو څوك هم كهلاولو والا نشته.

۵) ترجمه: او كه الله تعالى درته تكليف ورسوى، نو بے دهغه نه بل څوك ئے لرے كولے نه شى، او كه هغه درته خير رسول غواړى نو دهغه فضل هيڅوك رد كولے نه شى.

۶) ترجمه: الله تعالى به د تنګى نه ورستو زر راحت راولى.

۷) اويو زنده سر هم دزمكے په سر داسے نشته چى دهغے روزى (رزق) د الله تعالى په زمه نه وى.

۸) تفسير روح المعاني: ج ۱۶، ص ۳۴۵، وشعب الإيمان للبيهقي، رقم الحديث:۱۳۲۶ (باختصار)

۹) مؤطا مالك، كتاب الاستسقاء ، باب الاستمطار بالنجوم، رقم الحديث:۴۵۷

وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ ؕ

اوكه دوئ دروغ گنړي تالره | نو دروغ گنړلي شوي دي | رسولان | مخکښي ستانه

اوكه دوئ تادروغژن اوگنړي | نو تانه وړاندې هم پيغمبران دروغژن گنړلي شوي وو

وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ۝ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ

او خاص الله ته | واپس كيږي | ټول معاملات | اے خلقو | بيشكه وعده دالله | حقه ده |

اوآخر ټولي مقدمي به الله ﷻ ته پيش كيږي | ائي خلقو دالله ﷻ وعده بالكل رښتوني ده

فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ٚ وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ

پس په دوكه كښې وانچوي تاسو | ژوند ددنيا | اونۀ دوكه كړي تاسو | په باره دالله كښې |

نوددنيا دا لړ ژوند مو خطا نه كړي | ..............او دالله په باره كښې مو دهوكه باز [شيطان]

الْغَرُوْرُ ۝ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا ؕ

هغه غټ دوكه باز | بيشكه چې شيطان | ستاسو دپاره | دشمن دې | نواونيسى هغه لره | دشمن |

دوكه نكړي | بيشكه شيطان ستاسو ښكاره دښمن دې | نوتاسوئې هميشه په دشمنئ سره اونيسئ

اِنَّمَا يَدْعُوْا حِزْبَهٗ لِيَكُوْنُوْا مِنْ اَصْحٰبِ السَّعِيْرِ ۝ؕ

بيشكه هغه رابلي | ډله خپله | دپاره ددې چې شي هغوئ | دملگرو ددوزخ نه |

هغه خو [لگيادې] خپله ډله ............ پدې مقصد راغواړي | چې دوزخيان شي

اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ؕ۬ وَالَّذِيْنَ

هغه كسان | چې كافران شوي دي | دهغوئ دپاره | عذاب سخت دې | او هغه كسان |

هغه خلق كومو چې كفر اختيار كړو | د هغوئ دپاره سخت عذاب مقرر دې | اوچا چې

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ ۝ ع

چې ايمان ئې راوړې وي | او عملونه كوي نيك | دهغوئ دپاره | ښښنه ده | او اجر لوئ دې |

ايمان راوړې دې | اودنيكئ كارونه كوي | نو هغوئ دپاره ښښنه او ډير لوئې اجرمقرر دې

اَفَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ فَرَاٰهُ

آيا پس هغه څوك | چې ښائيسته كړې شوې وي | هغه ته | بدعمل دهغه | پس اووينى دې هغه |

اياچا ته چې خپل بدعمل ښائسته ښكاره شوې وي | او هغه پرې دنيک عمل گمان كوي | [نو هغه دنيكانو

حَسَنًا ؕ فَاِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ

نيك | پس بې شكه الله | گمراهه كوي | هغه څوك چې غواړي | او نيغه لارښانى | هغه چاته

برابر كيدشي] الله ﷻ چې څوك گمراه كول غواړي گمراه ئې كړي | اوچې چاته هدايت كول غواړي

يَّشَآءُ ۡ فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرٰتٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

چې غواړي | پس نه دې [نه دې خفه كيږي] زړۀ ستا | په دوئ باندې | دوجې دافسوس غم نه | بيشكه الله

نوهدايت ورته وكړي | نو ته په دوئ باندې د غم كولو په وجه ځان مه هلاكوه | بيشكه الله ﷻ

| عَلِيمٌ | بِمَا | يَصْنَعُونَ ۞ |
|---|---|---|
| ښه عالم دې | په هغې | چې دوئ ئې کوي |
| ددوئ په کارونو ښه خبر دې | | |

## آسان ترجمه قرآن

او(اے پیغمبره) که دا خلق تاته دروغژن وائي، نوستا نه مخکښ پیغمبرانو ته هم دروغژن وئیلي شوي وو، او ټول معاملات په آخر کښ الله تعالی طرف ته واپس کولې شي اے خلقو! یقین اوکړئ، چه د الله تعالی وعده رشتونې ده، لهٰذا تاسو لره دې دا ژوند د دنیا په دهوکه کښ وانه چوي او نه دالله تعالی په معامله کښ دې تاسو لره هغه (شیطان) په دهوکه کښ واچوي، چه لوئې دهوکه باز دې. یقین اوکړئ چه شیطان ستاسو دشمن دې، ددې وجې نه هغه لره دشمن گنړئ، هغه چه خپلو منونکو ته کوم دعوت ورکوي، هغه ددې دپاره ورکوي چه هغوی دوزخ والا جوړ شي. کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې، دهغوی دپاره سخت عذاب دې، او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې، او نیک عمل ئې کړې دې، دهغوی دپاره مغفرت دې، او لوئې اجر دې. آیا پس هغه څوک چه دهغه بدعملي دهغه په نظر کښ خائسته کړې شوې وي، چه دهغې د وجې نه هغه خپله بدعملي ښه گنړي، (هغه د نیک سړي برابر څنګه کیدې شي؟) څکه چه دالله تعالی چا باره کښ خوښه شي، د لارې نه ئې واړوي، او دچا باره کښ چه اوغواړي نو برابرې لارې ته ئې رسوي لهٰذا (اے پیغمبره) داسې دې نه وي، چه په دغې (کافرانو) باندې د افسوس د وجې نه ستا ساه اوځي، یقین اوکړه، چه څه دوی کوي، الله تعالی په هغې باندې ښه پوهیږي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ﴾[او] اے پیغمبر ﷺ [که داخلق] د توحید اورسالت وغیره په باره کښې [تالره درغژن کوي نو] ته غم مه کوه څکه چه ﴿فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ﴾[تانه وړاند هم ډیرپیغمبران دروغژن کړې شوي دي] یو خوبه دې سره تسلي حاصله کړه [او] دویمه خبره داده چه ﴿وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ﴾[ټول کارونه به دالله تعالی په وړاند پیش کولې شي] هغه به په خپله دټولوسره پوه شي ته ولې فکرکوې وړاندې عاموخلقو ته خطاب دې چه ﴿يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ﴾[اے خلقو] [الی الله ترجع الامور] چه په کښې دقیامت خبردې چه دا واوړئ نو تعجب مه کوئ او لرې ئې هم مه گنړئ ﴿اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ﴾[دالله تعالی] دا [وعده ضرور رښتوني ده﴿فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا﴾ پس هسې نه چه ددنیا داژوند تاسو لره په دوکه کښې واچوي] چه په دې کښې مشغول شئ او ددې وعده شوې ورځې نه غافله شئ ﴿وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ﴾[اوداسې ونه شي چه تاسولره دوکه بازشیطان دالله تعالی نه په دوکه کښې وغورزوي] چه تاسو دده په لمسه کښې رانه شئ چه الله تعالی تاسولره په عذاب کښې چرته وانه چوي لکه چه دوی به وئیل [ولئن رجعت الی ربی ان لی عنده للحسنی(۱)] او﴿اِنَّ الشَّيْطٰنَ﴾[داشیطان] دکوم د دوکې چه بره ذکر دې ﴿لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا﴾ [بیشکه ستاسو دښمن دې پس تاسوده لره] خپل [دښمن وګنړئ ﴿اِنَّمَا يَدْعُوْا حِزْبَهٗ﴾ هغه خو خپلې ډلې

۱) ترجمه: او که زه خپل رب ته اورسولې شم نو زما دپاره د هغې سره هم بهتري ده.

Scanned with Ca

لر] يعنی خپلو تابعدارانو لره [محض ددې دپاره] باطل طرف ته [رابلي ﴿لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحَٰبِ السَّعِيرِ﴾ چه هغه خلق د دوزخيانونه شي] پس ﴿الَّذِينَ كَفَرُوا﴾[کوم خلق چه کافران شول] او دده په دعوت او غرور کښې ونښتل ﴿لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ﴾[دهغوی دپاره سخت عذاب دي ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ اوکوم خلق چه ايمان راوړی اونيك كارونه كوی] او دده په دعوت او غرور کښې ونه نښلي ﴿لَهُم مَّغْفِرَةٌ﴾[دهغوی دپاره] دګناهونو[بخښنه او] په ايمان اونيك عمل ﴿وَأَجْرٌ كَبِيرٌ﴾ [لوئ اجردې] اوهرکله چه د كافرانو انجام سخت او دمؤمنانو انجام مغفرت او لوئ اجردې ﴿أَفَمَن زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ﴾[نو ايا] دواړه برابريدې شي يعنی [داسې سړې چاته چه دده بدعمل ښه ښكاره كړې شو ﴿فَرَآهُ حَسَنًا﴾ بياهغه دې لره ښه ګنړی] او داسې سړې كوم چه بدلره بدګنړی چرته برابريدې شي داولنی سړی نه مراد كافردې كوم چه دشيطان په لمسه سره باطل لره حق مضر لره نافع ګنړی او ددويم نه مراد مؤمن دې كوم چه په اتباع دانبياؤ ﷺ او مخالفت دشيطان سره باطل لره باطل حق لره حق مضرلره مضرنافع لره نافع ګنړی يعنی دواړه كله برابر شول بلكه يو جهنمي او بل جنتی دې پس دشيطان په دوكه كښې راتلونكې او دده لره په دښمن ګنړونكو كښې داتفاوت دې په دې وجه مونږ وايو [لايغرنكم اوان الشيطن لكم عدو] اوكه په دې تعجب كوئ چه عاقل سړې بدو لره څنګه نيك ګنړی [پس] ددې وجه داده چه ﴿فَإِنَّ اللَّهَ يُضِلُّ مَن يَشَاءُ﴾[الله تعالى چالره چه غواړی ګمراه كوی] دده عقل التيه شي ﴿وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ﴾ [اوچالره چه غواړی هدايت كوی] دده ادراك صحيح وی بيا هركله چه دهدايت اوګمراهئ اصل مدار مشيت دې ﴿فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرَاتٍ﴾ [نوپه دوی په افسوس كولو سره چرته ستاخان لاړ نه شي] يعنی چرې افسوس مه كوه صبركوه ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا يَصْنَعُونَ﴾[الله تعالى ددوی دكارونونه خبردې] په وخت به ددوی سره پوه شي.

## معارف او مسائل

﴿وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ﴾ غرور دمبالغې صيغه ده چې معنی ئې ډير تيرويستونكې[خطا ويستونكی] ده او دې څخه مراد شيطان دې چې دده كار خلقو لره تيرويستل [خطا ويستل] اوپه كفراو نافرمانئ كښې ئې اخته كول دی.د ﴿وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ﴾ مطلب دادې چې داسې دې نه وی چې شيطان درته بدكارونه ښه ښكاره كړی او تاسوپه دغې بدو كارونوكښې اخته كړی ، او سره ددې تاسو دا ګنړئی چې د الله ﷻ مقبول بندګان يو چې مونږ ته به عذاب نه راكوی.[قرطبی][1] ﴿فَإِنَّ اللَّهَ يُضِلُّ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ﴾ امام بغوی رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنه څخه نقل كړی دی چې دا آيت مبارك هم هغه وخت نازل شوې دې چې كله نبی اكرم ﷺ دادعا كړې وه: يا الله ﷻ ! اسلام ته عزت او قوت وركړه د عمر بن الخطاب رضی الله عنه يا د ابی جهل په ذريعه. الله ﷻ دادعا د عمربن الخطاب په حق كښې قبوله كړه ، هغوئ رضی الله عنه ښه د زړه څخه پخپله اسلام قبول كړو ،الله ﷻ د اسلام عزت او قوت سبب جوړ كړو او ابوجهل پخپله ګمراهئ كښې په مخه اخته پاتې شو . [مظهری][2].

---

[1] ) تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ٣٢٣

[2] ) تفسير المظهري: ج ٨، ص ٤٥، والدرالمنثور: ج ٨، ص ٢٦٣

Scanned with Ca

وَاللّٰهُ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ

| اوالله | هغه ذات دي | چې راليږي | هواګانې |

|.................. الله ﷻ هغه ذات دي چې بادونه راليږي

فَتُثِيْرُ سَحَابًا فَسُقْنٰهُ اِلٰى بَلَدٍ مَّيِّتٍ فَاَحْيَيْنَا

پس پورته کوي | وريځې | پس ليږو مونږه هغه | زمکې مړې ته | پس ژوندۍ کوو مونږه |

نو هغه وريځې خورې کړي | نو مونږ ئې مړې [اوچې] زمکې ته وراوليږو | انو زمکه پرې دمرګ

بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ كَذٰلِكَ النُّشُوْرُ ⑨

په هغې سره زمکه | روستو دمرګ دهغې نه | دارنګې به وي | راپورته کيدل ددوباره ژوند |

نه پس بيا ژوندۍ کړو | ................ هم دغسې به [ستاسو] دوباره ژوندون وي

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعِزَّةَ فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِيْعًا ۭ اِلَيْهِ يَصْعَدُ

هغه څوک | چې غواړي | عزت | پس الله لره دي | عزت | ټول | خاص هغه ته | خيژي

څوک چې د عزت اراده لري | نو ټول عزت صرف د الله دي | هغه [الله] طرفه ته ښه خبره [کلمه طيبه]

الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهٗ ۭ وَالَّذِيْنَ

کلمې [خبرې] پاکې | او عمل | نيک | پورته کوي هغه | او هغه کسان

پورته خيژي | او ښه کارونه هغه [آسمان طرفته] پورته کوي |................ او څوک چې

يَمْكُرُوْنَ السَّيِّاٰتِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۭ وَمَكْرُ اُولٰۗىِٕكَ

چې جوړوي سازشونه ناکاره | هغوئ لره دي | عذاب سخت | او سازش | ددې خلقو چې دي |

بد سازشونه جوړوي | هغوئ دپاره سخت عذاب مقرر دي | ............... او ددې خلقو ټول تدبيرونه

هُوَ يَبُوْرُ ⑩ وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ

هغه | تباه کيدونکې دي | او الله | پيدا کړئ تاسو | دخاورې نه | بيا د نطفې نه |

ناکام دي | ............... او الله ﷻ هغه ذات دي | چا چې تاسو د خاورې نه ، بيا ئې د نطفې نه پيدا کړئ

ثُمَّ جَعَلَكُمْ اَزْوَاجًا ۭ وَمَا تَحْمِلُ مِنْ اُنْثٰى وَلَا تَضَعُ اِلَّا

بيا يې کړئ تاسو | جوړې جوړې | اونه قبلوي حمل | يوه ښځه | اونه ږدي حمل | مګر

بيا ئې جوړې جوړې اوګرځولئ | او هيڅ يوه زنانه چه کله [په خپل رحم کښې] حمل بار کوي | يا ئې زيږون کيږي

بِعِلْمِهٖ ۭ وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُّعَمَّرٍ وَّلَا يُنْقَصُ

په علم دهغه کښې وي | او عمر نه ملاويږي | يو عمر ملاويدونکي ته | اونه څه کمې کيږي |

نو په ټولو هغه پوهيږي | اونه د چا عمر زياتيږي اونه د چا په عمر کښې کمې کيږي

Scanned with Ca

مِنْ عُمُرِهٖٓ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ ۭ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ۝

دعمر دهغه نه | مګر [هغه] | په کتاب کښې وی | بيشکه | دا کار | په الله باندې | آسان دې |

مګر داهر څه په لوح محفوظ کښې ليکلی موجود دی | او دا ټول کارونه الله تعالی ته ډير آسان دی

وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرٰنِ ڰ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَآئِغٌ

اونه دی برابر | دواړه دريابونه | دا خوږ دې | تنده ماتونکې دې | تيريدونکې دی [مزې دارې دې]

او دوه قسمه دريابونه يو قسم خوږ، تنده ماتونکې دې | او څکل ئې مزيدار دی

شَرَابُهٗ وَهٰذَا مِلْحٌ اُجَاجٌ ۭ وَمِنْ كُلٍّ تَاْكُلُوْنَ لَحْمًا

اوبه ددې | او دا [بل] | مالګين دې | حلق غوڅونکې دې | او د هر يو نه | خورئ تاسو | غوښې |

او نوی برابر [دويم قسم] مالګين ، ترېخ دی | او د هر يو نه تاسو تازه غوښه [د کبانو وغيره] خورئ

طَرِيًّا وَّتَسْتَخْرِجُوْنَ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا ۚ وَتَرَى الْفُلْكَ

تازه | او راوباسئ ترې تاسو | د ښائيست سامان | چې تاسو اغوندئ هغه | او وينې ته کشتئ |

او کالی [موتی وغيره] راوباسی | چې تاسوئې اغوندئ | او ته په کښې بيړئ [او جهازونه]

فِيْهِ مَوَاخِرَ لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ

په دې کښې | څيرونکې اوبو لره | دپاره ددې چې تاسو تلاش کړئ | د فضل دهغه نه |

وينې | چې داوبو سينه شلوی | او ورانده ځی | دا دې دپاره چې تاسو دهغه پيدا کړې روزی اولټوئ

وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ

او دپاره ددې چې تاسو | شکر اوباسئ | ننباسی هغه | شپه | په ورځ کښې | او ننباسی | ورځ |

او دا ددې دپاره چې تاسو دهغه شکر اوباسئ | هغه شپه په ورځ کښې او ورځ په شپه کښې

فِي الَّيْلِ ۙ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ڮ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ

په شپه کښې | او تابع کړی دی هغه | نمر | او سپوږمئ | هر يو چليږی | ديوې نيټې |

داخلوی | او نمر او سپوږمئ ئې په کار لګولی دی | هر يو خپلې مقررې نيټې پورې روان دی

مُّسَمًّى ۭ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۭ وَالَّذِيْنَ

مقررې پورې | هم دغه الله | رب ستاسو دې | هغه لره بادشاهی ده | او هغه کسان |

هم دغه الله ﷻ ستاسو رب دې | بادشاهی هم د هغه ده | ..................... او دهغه نه بغير چې تاسو

تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ مَا يَمْلِكُوْنَ مِنْ قِطْمِيْرٍ ۝

چې رابلئ ئې تاسو | بې دالله نه | نه دی مالکان هغوئ | دپردې دزړی دخرما |

څوک رابلئ | نو هغوئ د کهجورې د هډوکی د پاسه پروت نرم پوستکی هم اختيار نه لری

اِنْ تَدْعُوْهُمْ لَا يَسْمَعُوْا دُعَآءَكُمْ ۚ وَلَوْ سَمِعُوْا مَا اسْتَجَابُوْا

که تاسو راوبلئ هغوئ | نو نه اوری هغوئ | بلنه ستاسو | او که واني ورې | نو جواب نشي درکولې

که تاسو ئې اوبلئ نو هغوئ ستاسو بلنه هم نه اوری | او فرض کړه که دوئ ئې واوری | نو دوئ تاسو ته

| لَكُمْ | وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ | يَكْفُرُوْنَ | بِشِرْكِكُمْ | وَلَا يُنَبِّئُكَ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| تاسو لره | او په ورځ دقيامت به | انکار کوی هغوئ | دشرك ستاسو نه | اونشی خبر درکولی تاله هیڅوك |
| جواب نشی درکولی | اود قیامت په ورځ به ستاسو د شرک نه انکار اوکړی | اود سم خبردار [الله ﷻ] | | |

| مِثْلُ | خَبِيْرٍ ؈ |
| --- | --- |
| په مثل | دخبردار [الله] |
| پشان بل هیڅوک خبردار نکړی شی | |

## آسان ترجمه قرآن

او هم الله تعالی دې چه هواګانې رالیږی، بیا هغه وریځو لره پورته کوی بیا مونږ هغه شړو، او داسې ښار طرف ته ئې اوړو، چه (د قحط د وجې نه) مړ شوې وی، بیا مونږ د دغې باران په ذریعې مړې زمکې ته نوې ژوند ورکوو، بس دغه شان د انسانانو به دوباره ژوند وی. څوک چه عزت حاصلول غواړی، نو ټول عزت د الله تعالی په قبضه کښې دې، پاکیزه کلمه هغه طرف ته بره خیژی، اونیک عمل هغې لره بره پورته کوی او کوم خلق چه بد مکرونه کوی، هغوی ته به سخت عذاب وی، او دهغوی مکاری به تباه شی.او الله تعالی تاسو د خاورې نه پیدا کړئ، بیا د نطفې نه، بیا ئې تاسو جوړه جوړه جوړ کړئ، او مادې ته چه کوم حمل کیږی، او څه چه هغه زیږوی، هغه ټول د الله تعالی په علم کښې وی او یو ډیر عمر والا ته چه څومره عمر ورکولې شی،او دهغه په عمر کښې چه کوم کمې کیږی، هغه ټول په یو کتاب کښې لیکلی دی حقیقت دادې، چه دا ټول د الله تعالی دپاره ډیر آسان دی، او دوه دریابونه برابر نه وی، یو داسې خوږ دې، چه هغې سره تنده ماتیږی، چه په څښلو کښې مزیدار دې، او دویم تریخ او مالګین، او د هر یو نه تاسو (دمهیانو) تازه غوښه خورئ اوهغه کالی ترې راوباسئ، چه ستاسو داچولو په کار راځی، او تاسو کشتو لره وینئ، چه هغه په دې (دریاب) کښې اوبه شلوی، او روانې وی، دې دپاره چه تاسو د الله تعالی فضل تلاش کړئ او دې دپاره چه شکر ګذار جوړ شئ. هغه شپې لره په ورځ کښې داخلوی، او ورځ لره په شپه کښې داخلوی، او هغه لمر او سپوږمئ په کار لګولې دی، (په دوی کښې) هر یو مقرر وخت دپاره چلیږی، دا دې الله تعالی چه ستاسو پروردګار دې، ټوله بادشاهی دهغه ده. او هغه نه علاوه کومو (خدایانو لره) چه تاسو رابلئ، هغه د کهجورې د هډوکې د پوستکی برابر هم څه اختیار نه لری، که تاسو هغوی لره رابلئ نو هغوی ستاسو بلنه بالکل اوریدې نشی، او که واورې هم، نو تاسو ته هیڅ جواب درکولې نشی او د قیامت په ورځ به هغوی خپله ستاسو د شرک تردید کوی، او کوم ذات ته چه د ټولو خبرو مکمل علم دې، دهغه برابر به تا ته هیڅوک صحیح خبره اونه وائی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاللّٰهُ الَّذِیْۤ اَرْسَلَ الرِّیٰحَ﴾ [او الله تعالی داسې] قادر [دې کوم چه] دباران نه وړاند [هواګانو لره] رالیږی ﴿فَتُثِیْرُ سَحَابًا﴾ بیا دا] هواګانې [وریځولره پورته کوی] چه کیفیت ئې په سوره روم پنځمه رکوع د ایت [الله الذی ارسل الریح[1]] په تفسیر کښې تیرشوې دې ﴿فَسُقْنٰهُ اِلٰی بَلَدٍ مَّیِّتٍ﴾ [بیا مونږ دې

[1] ترجمه: الله تعالی داسے ذات دے چې هغه (بادونه) هواګانی رالیږی.

Scanned with Ca

وریخې لره دمزکې اوچې تکړې طرف ته شړو] چه هلته ترې نه باران کیږی ﴿فَأَحْيَيْنَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا﴾ [بیا مونږ ددې په ذریعه سره] یعنی ددې وریخې داوبو په ذریعه [مزکې لره] په بوټوسره [ژوندئ کوو ددې دوچیدونه پس] اولکه څنګه چه دمزکې په مناسب دې ته ژوند ورکړې شو ﴿كَذَٰلِكَ النُّشُورُ﴾ [دغه شان] په قیامت کښې دبنیادمو [ژوندی پورته کیدل دی] چه ددوی مناسب ژوند به دوی ته ورکړې شي وجه دتشبیه ظاهره ده چه په دواړو کښې دیو زائل شوی صفت پیداکول او اعاده ده اګر چه په مزکه کښې صرف یو عرضی امر یعنی دنشوونما تعلق شوې دې او په اندامونو کښې دامر جوهری یعنی دروح دامضمون دحشر نشر ددلیلونو دتوحیدپه ضمن کښې تبعاراغلې دې بیا ددې بیا پورته کیدو په مناسبت سره یو بل مضمون دې هغه داچه هرکله په قیامت کښې ژوندی کیدل دی نو دهغه ځایئ دذلت او خواریئ نه دبچ کیدو فکرکول ضروری دی په دې باره کښې مشرکانو خپل خودساخته معبودان دشیطان په فریب کښې په راتلو سره دعزت حاصلولو ذریعه مقرر کړې وه هغوی به وئیل [هؤلاء شفعاؤنا عندالله] (¹) یعنی دا زمونږ علی الاطلاق شفیعان دی په دنیوی حاجتونو کښې هم اوکه دقیامت څه شې وی نو داخرت دنجات دپاره هم لکه چه حق تعالی په سوره مریم کښې ارشاد فرمائیلې دې [وَاتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لِّيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا (²)] ددې متعلق ارشاد دې چه ﴿مَن كَانَ يُرِيدُ الْعِزَّةَ﴾ [کوم سړې] په اخرت کښې [عزت حاصلول غواړی] او داحاصلول ضروری هم څکه دی چه د اخرت واقع کیدل یقینی امر دې [نو] ده له پکاردی چه دالله تعالی عزت حاصل کړی څکه چه ﴿فَلِلَّهِ الْعِزَّةُ جَمِيعًا﴾ ټول عزت] بالذات [دالله تعالی دپاره دې] او نوروته چه کله وی نو بالعرض به وی اومابالعرض همیشه دمابالذات محتاج وی پس په دې کښې ټول دالله تعالی محتاجه شول او دالله تعالی نه ددې دحاصلولو طریقه داده چه قولا اوعملا دده اطاعت اوانقیاد اختیارکړی چه دالله تعالی په نزد داشې پسندیده دې چنانچه ﴿إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ﴾ [ښه خبره هغه ته رسیږی] یعنی هغه يې قبلوی ﴿وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ﴾ [اوښه کارونه هغه ته رسولې شی] په ښه خبره کښې دتوحید کلمه اوټول ذکرونه دالله تعالی اوپه ښه کارکښې د زړه تصدیق اوټول نیک عملونه ظاهری او باطنی داخل دی نو معنی داشوه چه دتوحید دکلمې اوټولو ذکرونو دمقبول جوړیدو ذریعه نیک عمل دې او مقبولیت عام دې اصل قبولیت اومکمل قبولیت دواړو لره شامل دی او دې اجمال لره نورو دلیلونو داسې مفصل کړو چه دزړه تصدیق خو دټولو پاکوکلمودپاره دنفس قبول شرط دې ددې نه بغیر هیڅ ذکر مقبول نه دې اونور نیک عملونه دټولوپاکوکلمودپاره دمکمل قبولیت شرط دی نه چه نفس دقبول څکه چه دفاسق نه که دکلمې طیبې صدور وی نو هم قبلیږی مګر مکمل قبولیت نه وی پس هرکله چه داخیزونه دالله تعالی په نزد پسندیده دی نوکوم سړی چه دا اختیار کړی هغه به معزز وی ﴿وَالَّذِينَ يَمْكُرُونَ السَّيِّئَاتِ﴾ [اوکوم خلق چه] ددې خلاف طریقه اختیار کړی ستامخالفت کوی چه دا د الله تعالی مخالفت دې او تاسره [بد بد تد بیرونه کوی ﴿لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ﴾ هغوی لره به سخت عذاب وی] کوم چه به موجب دهغوی دذلت وی او دهغوی خود ساخته معبودان به

---

¹) ترجمہ: دوی الله تعالٰی ته زمونږه سفارش کونکی دی
²) ترجمہ: او هغه خلقو خدای پریخودلو او نور معبودان يې خان دپاره منتخب کړی دی، دے دپاره چه هغوی ددوی دپاره باعث دعزت جوړی شی.

Scanned with Ca

هغوی له هیڅ عزت ورنه کړې شي بلکه بالعکس به هغوی په خپله ددوی خلاف شي لکه چه الله تعالی په سوره مریم کښې فرمائیلی دی [سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا]([1]) داخو د دوی خسران به په اخرت کښې وی [او] په دنیا کښې به هم دوی ته داخسران وی چه ﴿وَمَكْرُ أُولَٰئِكَ هُوَ يَبُورُ﴾[ددې خلقو دامکر به نیست ونابود شي] یعنی په دې تدبیرونو کښې به دوی کامیاب نه شي چنانچه داسې وشوه چه دوی اسلام ختمول غوښتل په خپله ختم شول دا مضمون په طور دمعترضې جملې تمام شو وړاندې بیا واپسی ده دتوحید مضمون طرف ته یعنی دالله تعالی دقدرت مظهریو هغه وو کوم چه بره په [الله الذي ارسل الخ] کښې بیان کړې شو [او] دویم مظهر کوم چه په توحیدباندې دلالت کوی دادې چه ﴿وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ﴾[الله تعالی تاسو لره] ضمنا په پیدائش د ادم کښې [دخاورې نه پیدا کړل ﴿ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ﴾ بیا] استقلالا [دنطفې نه پیدا کړل﴿ثُمَّ جَعَلَكُمْ أَزْوَاجًا﴾ بیا ئې تاسوجوړه جوړه جوړ کړئ] یعنی ځنې سړی او ځنې ئې ښځې جوړې کړې داخو دهغه قدرت دې [او] علم دهغه داسې دې چه ﴿وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنْثَىٰ﴾[یوه ښځه نه حامله کیږی﴿وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ﴾ اونه بچې راوړی مګر د ټولونه هغه خبر وی] یعنی هغه ته د وړاند نه دهرڅه خبر وی [او] دغه شان ﴿وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُعَمَّرٍ﴾[نه دچا عمرزیات] مقرر[کولې شی﴿وَلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهِ﴾ اونه دچاعمرکم] مقرر [کولې شی ﴿إِلَّا فِي كِتَابٍ﴾مګر داټول په لوح محفوظ کښې] لیکلی شوی[وی] کومولره چه الله تعالی دخپل قدیم علم موافق په دې کښې لیکلی دی اواګرچه معلومات بې شمیره او بې انتهادی مګر دا تعجب مه کوئ چه دوقوع نه وړاندې ټول وقعات ئې څنګه مقدر اومقرر وفرمائیل ځکه چه ﴿إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ﴾[داټول الله تعالی ته اسان دی] ځکه چه ددهٔ علم ذاتی دې ددهٔ په نسبت ټول معلومات وړاندې دوقوع او پس دوقوع نه یوشان دی [او] وړاند دقدرت نور دلیلونه واورئ چه سره ددې چه اوبه یوه ماده ده مګر سره دوحدت د قابل نه ئې په دې کښې په اختلاف دانفعالوسره دوه مختلف قسمونه پیدا کړل ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرَانِ﴾ [دواړه دریابونه برابرنه دی] بلکه ﴿هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَائِغٌ شَرَابُهُ﴾[یوخو خوږ تنده مړه کوونکې چه اوبه ئې هم] په وجه د قبلولو دطبیعت [په څښلو کښې اسانې دی ﴿وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ﴾ اویوتریوتریخ دې] نو دا کار هم دعجائباتو دقدرت نه دې [او] دویم دلیلونه دقدرت هم دی کوم چه دلالت علی القدرت سره دال علی النعمة هم دی ځنې خو ددې دریابو متعلق دی مثلا داچه ﴿وَمِنْ كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا﴾[تاسودهریو] دریاب [نه] مهی راوباسئ د دوی [تازه غوښه خورئ او] دارنګ ﴿وَتَسْتَخْرِجُونَ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا﴾[کالی] یعنی ملغلرې [ترې نه راوباسئ کومولره چه تاسو اوغوندئ او] اومخاطبه ﴿وَتَرَى الْفُلْكَ فِيهِ مَوَاخِرَ﴾[ته کشتولره په دې کښې وینې چه اوبه څیروی روانې وی﴿لِتَبْتَغُوا مِنْ فَضْلِهِ﴾ چه تاسو] ددې په ذریعه سفروکړئ [دهغه رزق تلاش کړئ او چه] رزق حاصل کړئ ﴿وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾[تاسو] د الله تعالی [شکر اداکړی او ځنې نور نعمتونه دی مثلا داچه ﴿يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ﴾[هغه] د[شپې] اجزاؤ [لره] د[ورځې] په اجزاؤ [کښې داخلوی ﴿وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ﴾ او] د [ورځې] اجزاؤ [لره] د[شپې] په اجزوٴ [کښې داخلوی] چه په دې سره د ورځې او شپې دکمیدو او

---

[1]) ترجمه: دوی به ډیر زر ددوی دعبادت نه انکار وکړی او ددوی مخالف به شي۔

زياتيد ومتعلق نفعې حاصليږي [او] مثلا داچه ﴿وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ﴾ [هغه نمر او سپوږمۍ لره په کار کښې لګولي دي] په دوى کښې ﴿كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُسَمًّى﴾ [هريو تر وخت مقرر] يعني دقيامت تر ورځې [پورې] دغه شان [چليږي ﴿ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ﴾ دا الله تعالى] چه شان ئې دا دې [ستاسو پروردګار دې ﴿لَهُ الْمُلْكُ﴾ دهغه حکومت دې ﴿وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ﴾ او دهغه نه سوا چالره چه بلئ ﴿مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ﴾ نو هغه دکجورې دهډوکي دپوستکي په قدر هم اختيار نه لري] چنانچه په جماداتوکښې ظاهره ده او په ذوات الارواح کښې په دې معنى چه بالذات اختيار نه لري او ددغو داحالت دې چه ﴿إِن تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ﴾ [که تاسوئې بلئ هم نو هغه] اول خو [اوږي نه] جمادات خو په دې وجه چه په دوى کښې داوريدو صلاحيت نشته او ذوات الارواح په دې معنى چه مرګ نه پس ددوى اوريدل لازمي او دائمي نه دى کله چه الله تعالى غواړي اوروى ورته کله چه نه غواړي نه اوروى ﴿وَلَوْ سَمِعُوا مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ﴾ [او که بالفرض [اوري هم نوستاسو جواب نه شي درکولې ﴿وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ﴾ او دقيامت په ورځ به هغوى] په خپله [ستاسو دشرك کولو مخالفت کوى] لکه داقول دالله تعالى دې [ماكانوا اياناً يعبدون] ([1]) وَغَيْرُ ذَٰلِكَ مِنَ الْآيَاتِ [او] مونږه چه څه فرمائيلي دى دهغې په صدق کښې ذره شك او شبهه نشته ځکه چه مونږ دکارونو په حقيقت پوره خبرلرو او اے مخاطبه ﴿وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ﴾ [تاته به دخبرلرونکي په شان هيڅوك خبردرنه کړى] بس زمونږ داښودنه د ټولو نه زياته صحيح ده.

## معارف او مسائل

﴿إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ﴾ ددې نه په مخکښې آيت مبارك کښې دا خودلي شوى دى چې څوك د عزت او قوت طلبګار وى نو هغه له دا ګنړل پکار دى چې عزت د الله ﷻ نه سوا دبل چا په وس کښې نه دى. کوم څيزونه چې دوئ معبودان جوړ کړى دى يا په دې اميد ورسره دوستى کوى چې عزت به ورکړى نو دا چا ته عزت نشى ورکولې، په دې آيت مبارك کښې د الله ﷻ نه دعزت او قوت حاصلولو طريقه خودلې شوېده دهغې دوه حصې دى، يوه کلمه طيبه يعنى دتوحيد کلمه او د الله ﷻ د ذات او صفاتو علم، او بل نيك عمل، يعنى دزړه د اخلاصه ايمان راوړل او بيا ددې د تقاضا مطابق د شريعت په جوړ عمل کول، شاه عبدالقادر په موضح القرآن کښې فرمائيلي دى چې د عزت دحاصلولو دا نسخه بالکل صحيح او مجربه ده خو شرط دادې چې د الله ﷻ ذکر او نيك عمل جارى اولرلې شى دغه هميشوالې چې مقرر حد ته اورسيږى نو الله ﷻ ددې کوونکى ته ډير زيات عزت په دنيا او آخرت ورکوى چې هيڅ مثال ئې نشته دې.

دې آيت مبارك کښې ددې دواړو حصو تعبير په دې الفاظو سره کړې شوې دې چې ښه کلام الله ﷻ ته خيژى او رسيږى او نيك عمل دې لره پورته کوى رسوى، فرمائى چې ﴿وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ﴾، ددې جملې په ترکيب نحوى کښې څو احتمالات دى، د هر احتمال په اعتبار سره د جملې معنى جدا جدا کيږى، د تفسير امامانو ددغې احتمالونو مطابق د خپل خپل صوابديد په جوړ تفسير کړې دې. رومبې احتمال هغه دې چې په خلاصه تفسير کښې داسې بيان شوې

[1] ) دى خلقو به زمونږ عبادت نه کولو.

Scanned with Ca

دي چې ﴿يَرْفَعُهٗ﴾ کښې ضمير د فاعل نيك عمل ته او ضمير دمفعول کلمه طيبه ته راجع دي ، معنى ئې په دې بنا داشوه چې کلمه طيبه الله ﷻ ته رسيږي خو هغې لره نيك عمل خيژوي ، دا تفسير د ابن عباس ﷢ ، حسن بصرى ﷫ ، ابن جبير ﷢ ، مجاهد ﷫ ، ضحاك ﷫ او شهر بن حوشب ﷫ وغيره اختيار کړې دي . الله ﷻ ته د ختلو مطلب د الله ﷻ په نزد قبليدل دي . څکه به خلاصه ددې جملې داوی چې کلمه طيبه خواه د توحيد کلمه وی يا نور ذکرونه تسبيح او تحميد وغيره وی په دې کښې هيڅ يو څيز د نيك عمل نه بغير الله ﷻ ته مقبول نه دې ، په دې کښې د نيك عمل اهمه حصه د زړه تصديق دي ، يعنی د زړه داخلاصه په الله ﷻ اودهغه په توحيد باندې ايمان راؤړل دا خو مطلقا د عملونو د قبليدو لازم شرط دې ، ددې نه بغير نه خو کلمه د لااله الا الله مقبوله ده او نه بل څه ذکر.

د نيك عمل نورې حصې مونځ ، روژه ، وغيره نيك عملونه دی ، او د حرامو او مکروهو نه بچ کيدل دی ، دا اګر چې مطلقا د قبليدو شرط نه دې خو د مکمل قبليدو شرط دا عملونه هم دی ، مطلب دا شو چې څوك په زړه کښې تسبيح بالکل ايمان او تصديق نه لری نو هغه چې څومره په ژبه کلمهٔ توحيد اووائی او تحميد کوی ، د الله ﷻ په نزد هيچرې دا قبوله نه وی ، او که سره د ايمان او تصديق نه نور صالح عملونه نه کوی ، يا په کښې کوتاهی کوی نو دده ذکر الهی او د توحيد کلمه خوبه بالکل نه ضائع کيږی ، صرف دومره به اوشی چې د هميشه عذاب د آخرت نه به ئې خلاص کړی . او مکمل مقبوليت به ورته حاصل نه وی . خلاصه دا چې د کوتاهئ او تقصير په اندازه بهٔ عذاب او سزا تيرولو نه پس جنت ته ځی اول د سره به نه ځی.

يو حديث پاك کښې د رسول کريم ﷺ ارشاد دې چې الله ﷻ څه قول بې دعمل نه او څه قول و عمل بغير دنيت نه او څه قول ، عمل ، او نيت بغير د مطابقت دسنت نه نه قبلوی ، [قرطبی][1]

دې نه معلومه شوه چې دمکمل مقبوليت شرط د سنت مطابق کيدل دی ، که قول ، عمل او نيت هم ټول په ټوله درست هم وی مګرد عمل طريقه دسنت مطابق نه وی نو مکمل قبوليت به ورته نه حاصليږی

او څينې مفسرينو ددې جملې نحوی ترکيب دا ګرځولې دې چې يرفعه کښې ضمير د فاعل کلمه طيبه ته او ضمير د مفعول نيك عمل ته راجع دې ، مطلب به ئې د هغې خلاف داسې راؤځی چې ذکر الهی نيك عمل لره پورته کوی او دقبليدو جوګه بهٔ ئې جوړوی ، حاصل ئې دا شو چې څوك نيك عمل سره د الله ﷻ ذکر هم ډير کوی نو د الله ﷻ دا ذکر دهغهٔ عمل لره ښکلې او د قبليدو جوګه جوړوی ، څنګه چې حقيقت هم دادې چې نيك عمل بغير د کلمهٔ توحيد ، تسبيحاتو ، او د الله ﷻ د ذکر نه بې رونقه پاتې کيږی.

﴿وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُّعَمَّرٍ وَّلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهٖٓ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ﴾ د جمهورو مفسرينو په نزد ددې آيت مبارك مطلب دادې چې الله ﷻ چاته اوږدو عمر ورکوی هغه د ړومبې نه په لوح محفوظ کښې ليکلې شوې وی . دغه شان دا هم په لوح محفوظ کښې د ړومبې نه ليکلې شوی دی چې د چا عمر کم اينبودې شوې وی ، ددې مطلب دادې چې د يو کس په باره کښې د عمر د کم يازيات ورکولو خبره نه ده ، بلکه د ټول نوع انسانی باره کښې خبره داسې ده چې په دوئ کښې چاته کم او

[1] تفسير القرطبي: ج ١٤، ص ٣٣٠، وتفسير روح المعاني، لكن مع التحقيق: ج ١٦، ص ٣٦٢

Scanned with Ca

چاته زيات عمر ورکولي شي. دا تفسير د ابن عباس رضي الله عنه نه نقل کړې شوې دې[1].
جصاص رحمه الله، دحسن بصري رحمه الله او ضحاك رحمه الله نه هم دا نقل کړې دې[2]. خکه ابن جرير رحمه الله، ابن کثير رحمه الله، روح المعاني وغيره عامو تفسيرونو کښې دې ته د جمهورو تفسير وئيلې دې. او څينې حضراتو فرمائيلي دي که د عمر کمې، زياتې د يو کس په باره کښې اووئيلې شي نو په عمر کښې د کمې کولو دا مطلب دې چې د هر چا کوم عمر چې الله ﷻ ليکلې دې هغه يقيني دې او کومه ورځ چې تيريږي نو ددغه مقرر عمر نه يوه ورځ کميږي. دوه ورځې چې تيرې شي نو دوه کميږي. دغه شان هره ورځ بلکه هره ساه دهغه عمر کموي. دا تفسير د شعبي رحمه الله، ابن جبير رحمه الله، ابي مالك رحمه الله، ابن عطيه رحمه الله او سدي رحمه الله نه منقول دې [روح المعاني][3].
د امضمون په دې شعر کښې هم ادا کړې شوې دې:

حياتك انفاس تعد فکلما مضى نفس منها انتقصت به جزءا

[يعني ستا ژوند د شمير څو ساګانې اخستل دي، په دې شان په هره ساه اخستلو سره ستا عمر په مخه کميږي].
امام نسائي رحمه الله ددې آيت مبارك تفسير کښې د انس بن مالك رضي الله عنه نه د روايت نقل کړې دې چې هغوئ رضي الله عنه د رسول کريم ﷺ نه واوريدل چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې: ﴿من سره ان يبسط له في رزقه وينسأ في اثره فليصل رحمه﴾
[څوك چې خپلې روزئ کښې فراخي او په عمر کښې زياتوالي غواړي نو پکار دې چې هغه دې خپلوي پالي خپلوانو سره دې ښه سلوك کوي] بخاري او مسلم او ابوداؤد هم دا حديث پاك د يونس بن يزيد ايلي په روايت سره نقل کړې دې[4]. په ظاهره دې نه دا معلوميږي چې خپلوئ پاللو سر عمر زياتيږي خو ددې مطلب يو بل حديث پاك په دې شان واضح کړې دې.
ابن ابي حاتم رحمه الله د ابي الدرداء رضي الله عنه نه روايت کړې دې چې هغوئ فرمائيل چې مونږ ددې مضمون يادګيرنه د رسول کريم ﷺ په مخکښې اوکړه نو رسول کريم ﷺ اوفرمائيل کله چې دغه تقديري عمر ئې ختم شي نو لږ شان مهلت هم نور نشي ورکولې، بلکه د عمر د زياتيدو مطلب دا دې چې الله ﷻ ورته نيك اولاد ورکړي چې هغوئ ددهٔ دپاره دعاګانې کوي، دا کس اګر چې ژوندې نه وي خو په قبر او برزخ کښې ورته د هغوئ دعاګانې رسيږي[5]،
خلاصه داده چې په عملونو سره د عمر زياتيدل چې چرته په احاديثو سره راغلي دي نو دهغې مطلب د عمر برکت زياتيدل دي.
﴿وَمِن كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا وَتَسْتَخْرِجُونَ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا﴾ [يعني دخوږ او تريخ درياب دواړونه تاسو ته دخوراك دپاره تازه غوښه په لاس درځي] مراد تري کب دې، دلته ئې چې کب ته غوښه

[1]) تفسير ابن کثير: ج ٦، ص ٥٣٨
[2]) أحکام القرآن للجصاص: ج ٨، ص ٣٤٩
[3]) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ١٦، ص ٣٦٧
[4]) صحيح البخاري، کتاب البيوع، باب من احب البسط في الرزق: ج ١، ص ٢٧٧، وصحيح مسلم، کتاب البر والصلة، باب صلة الرحم وتحريم قطعيتها: ج ٢، ص ٣١٥
[5]) تفسير ابن کثير: ج ٦، ص ٥٣٩

Scanned with Ca

اوفرمائيله نو صفا اشاره دې ته اوموندې شوه چې كب داسې تياره غوښه ده چې ذبح كولو ته ئې هم ضرورت نشته ، حالانكه د اوچې ښاروی تر څو چې بسم الله سره نه وی ذبح شوی نو خوراك دپاره نه حلاليږي . د حلية معنى ګالی چې مراد ترې ملغلرې دی .

مشهوره داسې ده چې ملغلرې صرف په تريو اوتريخ درياب كښې موندې شی خو آيت مبارك نه معلوميږی چې دا په دواړو كښې موندې شی ، البته په تريو ، تريخ درياب كښې زياتې اوپه خوږو دريابونو كښې كمې موندې شی . ﴿تَلْبَسُوْنَهَا﴾ د مذكر صيغه استعمال دا ښائی چې د ملغلرې استعمالول نارينه دپار جائز دی پخلاف د سرو او سپينو زرو چې نارينؤ دپاره دسرو ،سپينو استعمال جائز نه دې ، [روح](۱).

﴿اِنْ تَدْعُوْهُمْ لَا يَسْمَعُوْا دُعَآءَكُمْ ۚ وَلَوْ سَمِعُوْا مَا اسْتَجَابُوْا لَكُمْ ؕ﴾ [كه دا بتان يا څينې پيغمبران ﷺ يا فرښتې چې خدايان ئې بولئ عبادت ئې كوئ كه هغوئ لره د مصيبت په وخت كښې راوبلئ نو اول خو به دوئ ستاسو خبره واؤ نه ريديشی] ولې چې بتان د آوړېدلو بالكل جوګه نه دی. په انبياء كراموا و فرښتو كښې اګر چې صلاحيت شته مګر نه هغوئ هر چرته موجود وی او هره يوه خبره آوريدې شی.

وريسې فرمائی چې فرض كه دوئ واوری هم نو ستاسو خواست پوره كولې نشی څكه چې دا قدرت نه لری او د الله ﷻ د اجازت نه بغير الله تعالى ته د چا سفارش نشی كولې .

د سماع موتى مسئله مخكښې تيره شوې ده ، دې آيت مبارك نه دا نه ثابتيږی او ترې نفی كيږی ، ددې بحث دليلونه نور دی چې بيان ئې په سورۀ روم كښې په تفصيل سره راغلې دی .

| يَآيُّهَا النَّاسُ | اَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ | اِلَى اللّٰهِ | وَاللّٰهُ |
|---|---|---|---|
| اے خلقو | تاسو محتاج يئ | الله ته | او الله چې دې |
| پشان بل هيڅوک خبر نکړې شی | اې خلقو! تاسو ټول د الله ﷻ محتاج يئ | او الله ﷻ | |

| هُوَ الْغَنِيُّ | الْحَمِيْدُ | اِنْ يَّشَاْ | يُذْهِبْكُمْ | وَيَاْتِ |
|---|---|---|---|---|
| هم هغه بې حاجته دې | ستائيلي شوې دې | كه هغه اوغواړي | نو لرې به كړي تاسو | او رابه ولي |
| بې پرواه او ستائيلي شوې دې | .........كه هغه اوغواړي نو تاسو به ختم كړي | او نور نوې | | |

| بِخَلْقٍ | جَدِيْدٍ | وَمَا ذٰلِكَ | عَلَى اللّٰهِ | بِعَزِيْزٍ | وَلَا تَزِرُ |
|---|---|---|---|---|---|
| مخلوق | نوې | اونه دې دا كار | په الله باندې | څه ګران | اونه به اوچتوی |
| مخلوق به پيدا كړی | او دا كار الله ﷻ ته هيڅ ګران نه دې | .........او هيڅوك به د بل چا | | | |

| وَازِرَةٌ | وِّزْرَ | اُخْرٰى | وَاِنْ تَدْعُ | مُثْقَلَةٌ | اِلٰى حِمْلِهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| يو بوج اوچتونكې | بوج | دبل كس | اوكه راوبلی | يو بوج والا سړې | اوچتولو دبوج خپل ته |
| بار اوچت نكړې شی | او [فرض كړه] كه باراوړونكې دخپل بار اوچتولو دپاره څوك راوبلی | نو يو پوټې | | | |

(۱) تفسير روح المعانی تحت هذه الآية: ج ۱۶، ص ۳۶۹

Scanned with Ca

لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ وَّلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ؕ اِنَّمَا

نه اوچت به نه کړې شي | دهغه [دبار] نه | هيڅ څيز | اګر که وي هغه | نزدې خپلوان | بيشکه

به ترې هم اوچت نکړې شي | اګر که نزدې خپلوان ئې وي | [ائې پيغمبره ﷺ!] ته خو بس

تُنْذِرُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ

د ويرې خبره آوروې | هغه خلقو | چې يرېږي هغوئ | درب خپل نه | بې ليدو | او قائموي مونځ |

داسې خلق ويرولې شې | چې دخپل رب نه بې ليدو ويرېږي | او مونځونه پابندې سره کوي

وَمَنْ تَزَكّٰى فَاِنَّمَا يَتَزَكّٰى لِنَفْسِهٖ ؕ وَاِلَى اللّٰهِ

او هغه چاچې خان پاک کړو | پس بې شکه | هغه خان پاکوي | دپاره دخان خپل | او خاص الله ته |

او څوک چې پاک شو | نو دخپل ځان دپاره پاک شو | او الله ﷻ ته دهر څيز واپس کيدل دي

الْمَصِيْرُ ﴿۱۸﴾ وَمَا يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ﴿۱۹﴾ وَلَا الظُّلُمٰتُ

واپس تلل دي دټولو | اونه برابرېږي | ړوند | او نظر والا | اونه تيارې

او ړوند اوليدونکې [دواړه] برابر يدې نشي | اونه تيارې

وَلَا النُّوْرُ ﴿۲۰﴾ وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُوْرُ ﴿۲۱﴾ وَمَا يَسْتَوِي الْاَحْيَآءُ

اونه رڼا | اونه سورې | اونه دنمر ګرمي | اونه برابرېږي | ژوندي

اورڼا يو شان کيديشى | اونه يخ سيورئ اونه دنمرتو يو شان کيديشي | اونه ژوندي

وَلَا الْاَمْوَاتُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُسْمِعُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَمَآ اَنْتَ

اونه | مړي | بيشکه الله | اوروي | هغه چاته | چې خوښه ئې شي | اونه ئې ته

او مړي برابريدې شي | الله ﷻ چې چا ته اوغواړي نو خبره ورته آوروي | او ته په قبرونو

بِمُسْمِعٍ مَّنْ فِي الْقُبُوْرِ ﴿۲۲﴾ اِنْ اَنْتَ اِلَّا نَذِيْرٌ ﴿۲۳﴾

اوروونکې | هغه چاته | چې په قبرونو کښې دي | نه ئې ته | مګر | يرونکې |

کښې پرتو [مړو] ته خپل اواز اورولې نشې | ..................ته خو بس صرف ويرونکې ئې

اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا ؕ وَاِنْ مِّنْ اُمَّةٍ

بيشکه چې ليږلې ئې مونږ ته | دحق سره | زيرې ورکونکې | اوويرونکې | اونه وو | يو امت |

مونږ ته په حق سره پيغمبر راليږلې يې | او داسې يو امت نشته | چې هغې ته [دالله ﷻ دنافرمانۍ] نه

اِلَّا خَلَا فِيْهَا نَذِيْرٌ ﴿۲۴﴾ وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كَذَّبَ

مګر | تير شوې دې | په هغې کښې | خبردارونکې | او که دوئ دروغ اوګڼري تا | نو دروغ ګڼړلې دي

ويرونکې نه وي راغلې | اوکه چرې داخلق تا دروغژن کوي | نو کوم خلق چې د دوی نه

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

هغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وو | راغلې وو هغوئ ته | رسولان دهغوئ | دواضحه دليلونو سره

وړاندې تير شوې دی | هغه هم دغه شان دروغژن ګڼړلې شوې وو | هغوئ ته رسولانو

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَبِالزُّبُرِ | وَبِالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ ﴿٢٥﴾ | ثُمَّ اَخَذْتُ | الَّذِيْنَ |
| او د صحيفو سره \| او د كتاب روښانه سره \| بيا را اونيول ما \| هغه كسان \| | | | |
| ښكاره معجزې، صحيفې اوروښانه كتابونه راوړي وو \| بيا كومو خلقو چې انكار اوكړو | | | |
| كَفَرُوْا | فَكَيْفَ كَانَ | نَكِيْرِ ﴿٢٦﴾ | |
| چې وې نه منل هغه \| پس څرنګې وه \| سزا زما \| | | | |
| نو هغوئ مې راونيول \| نو اوګوره چې زما عذاب څنګه وو \| | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اے خلقو! تاسو ټول د الله تعالىٰ محتاج يئ. او الله تعالىٰ بے نياز دې، د هر تعريف په خپله مستحق دې كه هغه اوغواړي، نو تاسو ټول به فنا كړي، او يو نوې مخلوق به په وجود كښې راولي. او دا كار د الله تعالىٰ دپاره هيڅ مشكل نه دې، او هيڅ يو بار پورته كونكې به د بل (سړي) بار پورته نه كړي، او په چا باندې چه لوئې بوج بار كړې شوې وي، كه بل چاته د هغې د پورته كولو دعوت وركړي نو په هغې كښې به (ورسره) هيڅ پورته نه كړي، اګر كه هغه (چاته چه د بوج پورته كولو دعوت وركړې شوې وي) نزدې رشته دار ولې نه وي. (اے پيغمبره!) ته هغه خلقو لره خبردار كولې شې، چه د خپل پروردګار نه بغير د ليدو نه ويريږي، او چا چه مونځ قائم كړې وي او كوم سړې چه پاک وي، هغه د خپلې فائدې دپاره پاک دې، په آخر كښې ټولو لره الله تعالىٰ طرف ته واپس كيدل دي. او ړوند او بينا برابر كيدې نشي. او نهٔ تيارهٔ او رڼرا. او نه سورې او نه ګرمي. او نه ژوندي خلق او نه مړي برابر كيدې شي. او الله تعالىٰ چه چاته اوغواړي، خبره اوروي. او ته هغې خلقو ته نشې اورولې، چه په قبرونو كښې پراته دي ته خو بس يو خبردار كونكې ئې. مونږ ته حقې خبرې سره داسې ليږلې ئې، چه ته زيرې وركړه، او خبردار كړه، او هيڅ يو امت داسې نشته، چه هغوي ته څوک خبردار كونكې نه وي راغلې. او كه دا خلق تاته دروغژن وائي، لو كوم (كافران) چه ددوي نه مخكښې وو، هغوي هم (رسولانو ته) دروغژن وئيلې وو، د هغوي پيغمبرانو هغوي ته ښكاره نخښې صحيفې او رڼرا خورونكې كتابونه راوړې وو. بيا چه كومو خلقو د انكار طريقه اختيار كړې وه. ما هغه په ګرفت كښې واخستل اوس اوګوره، چه زما سزا څنګه (هيبت ناكه) وه.

## خلاصه تفسير

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ اِلَى اللّٰهِ﴾ [اے خلقو تاسو خدائ ته محتاجه يئ؛ ﴿وَاللّٰهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ﴾ او الله تعالى] خو [بې نيازه] او په خپله ټولو [تعريفونو والادې] پس ستاسو داحتياج ترمخه تاسوته دتوحيد وغيره تعليم شوې دې كه تاسوو نه منئ نو خپل نقصان به وكړئ باقى الله تعالى ته خو په وجه د ذاتى غنا او ذاتى كمال ستاسو ياستاسو دعمل هيڅ حاجت نشته چه ګوند دهغه د نقصان احتمال وي او په كفر چه كوم ضرر كيدونكې دې الله تعالى د هغې فى الحال په واقع كولو هم قادر دې چنانچه ﴿اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ﴾ [كه هغه غواړي نو] ستاسو دكفر په سزا كښې [تاسولره به فنا كړي ﴿وَيَاْتِ بِخَلْقٍ جَدِيْدٍ﴾ اويونوې مخلوق به پيدا كړي] كوم چه ستاسو په شان كفراوانكاربه نه كوي ﴿وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيْزٍ﴾ [او داخبره الله تعالى ته څه مشكله نه ده] ليكن دمصلحت په وجه مهلت دركوى غرض دلته خو دا ضرر محض محتمل الوقوع

Scanned with Ca

دي ليكن په قيامت كښې به دغه ضرور واقع شي [او] هغه وخت به داحالت وي چه ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى﴾[څوك به دبل بوج] دګناه [نه شي پورته كولې او] په خپله به څوك دچاخه رعايت وكړي حالت به داوي چه ﴿وَاِنْ تَدْعُ مُثْقَلَةٌ اِلٰى حِمْلِهَا﴾[كه يو دروند بوج والا] يعنى څوك ګناهګار [چالره دخپل بوج پورته كولو دپاره راوبلي ﴿لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ وَّلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى﴾ نود هغه دبوج نه به هيڅ هم پورته نه كړې شي اګر چه هغه سړې] كوم چه ده رابللې وى دده [خپلوان] ولې نه [وي] پس دغه وخت به پورته ضرر ددې كفر او بدعملئ په خپله برداشت كول وى دا خو دمنكرانو ويرول شول وراندنبي كريم ﷺ ته تسلى ده چه اے محمد ﷺ ته ددوى په انكار چه سزا به ئې دوى يوه ورځ ضرور برداشت كوى دومره غم او افسوس ولې كوې ﴿اِنَّمَا تُنْذِرُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ﴾[ته خوداسې ويرونكې يې چه نفع پرې مرتب وى [صرف داسې خلقو لره ويرولې شي كوم چه بې ليدو دخپل رب نه ويريږي ﴿وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ﴾ اودمونځ پابندى كوى] مراد ددې [اَلَّذِيْنَ] نه مؤمنان دى يعنى ستاپه ويرولو سره صرف مؤمنان نفع مندكيدې شى فى الحال وى يا په اعتبار دانده او امر مشترك په دوارو كښې طلب دحق دې مطلب دادې چه دحق طالب نفع مند كيدې شى داخلق دسره دحق طالبان نه دى ددوى نه اميدمه ساته [او] ته ددوى په ايمان نه راوړو سره دومره فكر ولې كوې ﴿وَمَنْ تَزَكّٰى فَاِنَّمَا يَتَزَكّٰى لِنَفْسِهٖ﴾[كوم سړې چه ايمان راوړى دكفر اوشرك نه [پاك شي هغه دخپل خان د] نفع د[پاره پاكيږى او] اوڅوك چه ايمان رانه ورى هلته به ورسره وكتې شى څكه چه ټولولره ﴿وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ﴾[دالله تعالى طرف ته واپس كيدل او تلل دى] پس كه نفع ده نو ددوى ده ته ولې غم كوې [او] ددې خلقونه به څه توقع ولرلې شى چه ددوى علم او ادراك په مثل د ادراك دمؤمنانووى او دمؤمنانو په شان دوى هم حق لره قبول كړى او دحق دقبلولو په دينى فائدو كښې هم داخلق شريك شى څكه چه دمؤمنانو مثال په حق بينئ كښې دبينا بنده په شان او ددوى مثال په عدم ادراك دحق كښې دړوندبنده په شان دې اودغه مؤمنانو دحق د ادراك په ذريعه چه څنګه دهدايت طريقه اختيار كړې ده دغه شان دحق دطريقې مثال دنور دې او كافرچه دعدم ادراك دحق سره كومه طريقه اختياركړې ده دهغې مثال دتيارې په شان دې لكه چه الله تعالى فرمائى [وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا يَّمْشِيْ بِهٖ فِي النَّاسِ كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا] ([1]) اودغه شان چه كومه ثمره دجنت وغيره به په دې طريقه مرتبه وى د هغې مثال ديخ سورى په شان دې اوكومه ثمره دجهنم وغيره چه په باطله طريقه به مرتبه وى دهغې مثال دسروغرمو په شان دې لكه چه الله تعالى فرمائى [ظل ممدود] تردې قوله پورې [فى سموم] ([2]) اوظاهره ده چه ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ۝ وَلَا الظُّلُمٰتُ وَلَا النُّوْرُ ۝ وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُوْرُ ۝﴾ [ړوند اوبينا برابرنه دى اونه تيارهٔ او رنړا او نه سورې او غرمه] پس نه ددوى اومؤمنانو علم او ادراك برابريديشى اونه ددوى طريقه اونه ثمره ددې طريقې [او] په مؤمن اوكافر كښې چه كوم

---

[1]) ترجمه: او مونږ هغه داسے نور ورکړو چه ددے په مدد سره هغه دخلقو په مينځ كښے ژوند تيروى دهغه چا په شان كيدے شى چه په تيارو كښے پروت وى او بهر ترے نه وتلے نه شى، دغسے كافرانو ته د هغوى خراب عملونه ښائسته ښكاره شوى دى۔

[2]) ترجمه: او اوږده اوږده سورى به وى، او بهيدونكے اوبه به وى، او ډيرے ميوے به وى، نه به خلاصيږى او نه به پرے باندے څه بنديزوى او اوچت اوچت فرشونه به وى۔ الخ

تفاوت د بينا اونابينا په شان وئيلې شوې دې نو ددې نه مقصود نفي د کمی ده نه چه دزياتی ځکه په دوی کښې تفاوت دمړ او دژوندی په شان دې پس د دوی دبرابرئ دنفی دپاره داسې وئيل هم صحيح دی چه ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْأَحْيَاءُ وَلَا الْأَمْوَاتُ﴾ [ژوندې اومړې نه شی برابريدې] او هرکله چې دوی مړهٔ دی نو دمړو ژوندی کول خودالله تعالى په قدرت کښې دی دبنده په قدرت کښې نه دی پس که الله تعالى دوی ته هدايت وکړی نو بله خبره ده ځکه چه ﴿إِنَّ اللَّهَ يُسْمِعُ مَنْ يَشَاءُ﴾ [الله تعالى چالره چه غوارې ور اور وی] باقی ستاپه کوشش سره به دا خلق حق قبول نه کړی ځکه چه ددوی مثال دمړو تا واوريدو ﴿وَمَا أَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَنْ فِي الْقُبُورِ﴾ [او ته هغو خلقو ته نه شې اورولې کوم چه په قبرونو کښې] [دفن] دی [ليکن که دوی ونه منی نو ته غم مه کوه ځکه چه ﴿إِنْ أَنْتَ إِلَّا نَذِيرٌ﴾ [ته خو] دکافرانوپه حق کښې [صرف ويرونکې يې] ستاپه ذمه دانه دی چه دغه کافران وويريږی او ومنی هم او دا ويرول ستاد خپل طرف نه نه يې لکه دنبوت منکرانو چه به وئيل بلکه زمونږ دطرف نه دی ځکه چه ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا﴾ [مونږ تالره حق] دين [درکړی دې] مسلمانانوته خوشخبری اوړونکې او] کافرانو ته [ويره اوړونکې جوړکړې ليږلې دې او] داليږل څه نوې خبره نه ده لکه چه کافرانو به وئيل بلکه ﴿وَإِنْ مِنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ﴾ [داسې يو امت نه دې تير شوې په کوم کښې چه څوك ويرونکې] يعنی پيغمبر [نه وی تيرشوې ﴿وَإِنْ يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ اوکه داخلق تالره دروغژن کړی] نو ته ددغوتيرو پيغمبرانو دکومو چه اوس اجمالا ذکر شوې دې او تفصيلا ئې په نورو ايتونو کښې ذکر شوې دې دکافرانو سره معامله د رياده کړه او خپل ځان پوهه کړه ځکه چه [کوم خلق ددوی نه وړاند تير شوی دی هغوی هم] دخپل وخت پيغمبرانو لره [دروغژن کړی وو] او ﴿جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ وَبِالزُّبُرِ وَبِالْكِتَابِ الْمُنِيرِ﴾ [هغوی ته هم دهغوی [پيغمبرانو معجزې او صحيفې او روښانه کتابونه راوړی وو] يعنی څنوصحيفې او څنو کتابونه او څنو صرف معجزې دنبوت دتصديق دپاره او احکام دتيرو انبياؤ ﷺ راوړی وو ﴿ثُمَّ﴾ [بيا] کله چه هغوی دروغژن کړل نو ﴿أَخَذْتُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [ماهغه کافرانو لره ونيول پس] وګوره ﴿فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ﴾ [زما څنګه عذاب شو؟] دغه شان به د دوی په وخت دوی له سزا ورکړم

## معارف او مسائل

﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ يعنی د قيامت په ورځ به څوك بنده د بل بنده دګناهونو بوج نشی پورته کولې . هر يو کس به خپل بوج پخپله پورته کوی اوپه سورة عنکبوت کښې راغلی دی چې : ﴿وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ وَأَثْقَالًا مَعَ أَثْقَالِهِمْ﴾ [چې ګمراه کوونکی خلق به دخپلې ګناه د بوج څخه علاوه نور پيټی هم پورته کوی] دهغې مطلب دادې چې ګمراه کوونکی بهٔ دګناه دوه بوجونه په خپل سر اخلی يو د خپل ګمراه کيدو اوبل د بل د ګمراه کولو ، دوه بوجونه بهٔ اخلی . ددې مطلب دا نه دې چې د دوئ په وجه ګمراه کيدونکی خلق به ګنی دخپلې ګناه بوج څخه فارغ يا سپك کړی ، بلکه د هغوئ د ګمراه کيدو ګناه به هم دهغوئ په سروی ، نو په دې دواړو آيتونو کښې څه تعارض نشته .[روح][1].

[1] ) تفسير روح المعانی تحت هذه الآية: ج ١٦، ص ٣٧٩

Scanned with Ca

او عکرمه رحمه الله ددې آیت مبارك په تفسیر کښې اوفرمائیل چې په دغه ورځ به یو پلار خپل ځوئې ته وائی چې ته خو پوهه ئې چې زه ستا څنګه مشفق او مهربان پلار اوم ، هغه به اقرار اوکړی چې بیشکه ستا احسانات بې شمیره دی او څما دپاره دې په دنیا کښې ډیر تکلیفونه تیر کړی دی . اوس به پلار وائی چې ځویه ! نن خو زما تاته حاجت دې دخپلو نیکیانو څخه یو څو نیکیانې راکړه چې ماته هم نجات او خلاصې ملاؤ شی . ځوئې به ورته اووائی چې پلاره ! تا خو ډیر لږ څیز رانه اوغوښتو خو زه څه اوکړم که زه درته هغه درکړم نو زما به هم دغه حال شی ، څکه مجبور یم ، بیا به هغه خپلې ښځې ته دغسې اووائی چې ما خو دربانديې په دنیا کښې هر څه قربان کړی وو . نن مې ستا لږو نیکیانو ته ضرورت دې هغه راته راکړه . خو ښځه به ئې هم هغسې جواب ورکړی . څنګه ئې چې ځوئې ورکړې وو .

عکرمه رحمه الله اوفرمائیل چې هم دغه مراد دې ددې آیت چې : ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ او وې وئیل چې د قرآن کریم په ګڼرو آیتونو کښې دا مضمون راغلې دې لکه فرمائی چې : ﴿لَّا يَجْزِي وَالِدٌ عَن وَلَدِهِ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَن وَالِدِهِ شَيْئًا﴾ [په دغه ورځ نه پلار خپل ځوې لره او نه ځوئې پلار لره دعذاب څخه خلاصولې شی] مطلب ئې هم دا راؤځی چې یو کس بهٔ د بل دګناه بوج بیخی نشی پورته کولې چې هغه به ګنی خلاص کړی د شفاعت معامله ددې څخه علاوه ده داشان په بل آیت مبارك کښې فرمائی چې : ﴿يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ ۝ وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ ۝ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ ۝﴾ [په دغه ورځ به بنده د خپل رور ، مور ، پلار ، ښځې ، او ځامنو څخه تښتی] د تښتیدو مطلب دادې چې ویریږی بهٔ هسې نه چې دا خپلوان راباندې د خپلو ګناهونو بوج راوانه چوی یا زما څخه دنیکۍ غوښتو څه فرمائش اونه کړی . [ابن کثیر][1]

﴿وَمَا أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِي الْقُبُورِ﴾ ددې آیت مبارك په شروع کښې د کافرانو مثال د مړو او د مؤمنانو مثال د ژوندو ورکړې شوې دې . په دغې لحاظ د ﴿مَّن فِي الْقُبُورِ﴾ څخه دلته مراد کافران دی ، مطلب دادې چې څنګه تاسو مړو ته نشئ آؤرولې ، دغسې ژوندې کافرانو ته هم نشی آؤرولې .

دې آیت مبارك پخپله دا خبره واضحه کړه چې دلته د آؤرولو څخه مراد هغه آؤرول دی چې اثر ناك او فائده مند پریوزی ګنی هسې آؤرول خو کافرانو ته همیشه کیږی . او لیدلې کتلې بهٔ شو چې هغوئ ته به ئې تبلیغ کولو او هغوئ بهٔ آؤریدلو ، څکه مراد ددې آیت مبارك دادې چې څنګه تاسو مړو ته حق خبره آؤرولې نشئ چې حقې لارې ته ئې راولئ ولې چې هغوئ ددنیا دارالعمل څخه د آخرت دارالجزاء ته منتقل شوی دی . هلته که هغوئ د ایمان اقرار هم اوکړی نو بې سوده دی ، دغسې د کفارو حال دې ، دې څخه ثابته شوه چې مړو ته د آؤرولو نفی چې شویده دهغې مطلب سود مند آؤرول دی چې دهغې په آؤریدو سره آؤریدونکې باطل پریږدی او حق ته راشی . دا مسئله پخپل ځائې مستقله ده چې آیا مړی د ژوندو کلام آؤری او که نه ؟ ددې تفصیلی تحقیق په سورة روم او سورة نمل کښې تیر شوې دې .

---

[1] تفسیر ابن کثیر: ج ۱٦، ص ۵٤۱، ۵٤۲

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ

آیا نه گوري ته | چي بیشکه الله | نازلي کړي |

آیا تا نه دي لیدلي چي الله ﷻ |

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ ثَمَرٰتٍ مُّخْتَلِفًا

دآسمان نه | اوبه | پس راوویستلي مونږه | په هغې سره | میوې | چي مختلف دي |

د پورته نه اوبه راوروی | ....بیا دهغې په ذریعه مونږ رنگ رنگ میوې راټوکولې

اَلْوَانُهَا ۭ وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌۢ بِيْضٌ وَّحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهَا

رنگونه دهغې | او دغرونونه | توټې دي | سپینې | او سرې | چي مختلف دي | رنگونه دهغې |

اودغه شان غرونو کښې هم نګ رنګ غرونه دي | څه سپین او څه سرۀ دي | چي دهغې هم قسم قسم رنگونه دي

وَغَرَابِيْبُ سُوْدٌ ۞ وَمِنَ النَّاسِ وَالدَّوَآبِّ وَالْاَنْعَامِ

او ځینی تك توروی | او دخلقو نه | او دګرزیدونکو زنده سرو نه | او دڅاروو نه |

او څه تک تور دي | او دغه شان په انسانانو اوپه ځناورو اوپه څاروؤ کښې هم

مُخْتَلِفٌ اَلْوَانُهٗ كَذٰلِكَ ۭ اِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ

چي مختلف دي | رنگونه دهغې | همدغه رنگې | بیشکه یریږی دالله نه | دبندګانو دهغه نه |

بعضې داسې دي | چي رنگونه ئې بدل بدل دي | دالله ﷻ نه خو بس د هغه په بندګانو کښې عالمان

الْعُلَمٰۗؤُا ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ غَفُوْرٌ ۞

عالمان خلق | بیشکه الله | غالب دي | بخښونکي دي |

ویریږي | ........بیشکه الله ﷻ په هر چا غالب اوبخښونکي دي |

**آسان ترجمه قرآن**

آیا تا نه دی لیدلي، چه الله تعالی د آسمان نه اوبه راۇ ورولې، بیا مونږ دهغې په ذریعې سره رنګارنګ میوې رزغولې کړې؟ او په غرونو کښې هم داسې ټکړې دی، چه رنګ په رنګ سپینې او سرې دی، او تک تور هم دی. او په انسانانو، ځناورو او چارپایانو کښې هم داسې دی، چه رنګونه ئې مختلف دی، د الله تعالی نه دهغه په بندګانو کښې هغه ویریږی، چه علم لرونکې دی یقیناً الله تعالی صاحب اقتدار هم دې، او ډیر زیات بخونکې هم.

**خلاصه تفسیر**

اے مخاطبه ﴿اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ﴾ ایا تادې خبرې ته نه دی کتلی چه الله تعالی داسمان نه اوبه نازلې کړې ﴿فَاَخْرَجْنَا بِهٖ ثَمَرٰتٍ مُّخْتَلِفًا اَلْوَانُهَا ۭ﴾ بیا مونږ ددې] اوبو [په ذریعه دمختلفو رنګونو میوې پیداکړې] خواه داسې چه قسمونه او نوع ئې جدا جدا وی یا دیو قسم اوبو او یو نوع میوې دمختلفو رنګونو وی [او] دغه شان ﴿وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌۢ بِيْضٌ﴾ [دغرونو هم مختلفې حصې دی] ځنې [سپین او] ځنې [سره] چه بیا پخپله ﴿وَّحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهَا﴾ [په دغو]

Scanned with Ca

سپينو، سرو [کښې هم رنګونه مختلف دی] ځنې ډير سپين او ډير سره ځنې لږ سپين اولږ سره [او] ځنې نه سپين اونه سره بلکه ﴿وَغَرَابِيبُ سُودٌ﴾ [ډيرتك تور ﴿وَمِنَ النَّاسِ وَالدَّوَابِّ وَالْأَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ كَذَٰلِكَ﴾ او دغه شان په بنيادمو او ځناورو او څارووکښې هم ځنې داسې دی چه دهغوی رنګونه مختلف دی] ځنې وختونه داختلاف داقسامو او اصنافو سره دا اختلاف درنګ وی او ځنې وختونه په يو قسم کښې مختلف رنګونه وی نو کوم خلق چه په دليلونو دقدرت کښې غور کوی هغوی ته د الله تعالى دعظمت علم وی او ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ [دالله تعالى نه ددۀ هغه بندګان ويريږی کوم چه] ددۀ دعظمت [علم لری] که دعظمت علم ئې محض اعتقادی او عقلی دې نو دا ويره به هم اعتقادی عقلی وی اوکه علم عظمت درجې دحال ته رسيدلې وی نو ويره به هم ددرجې دحال وی چه ددې دخلاف نه به طبعی نفرت او تکليف کيدې شی ﴿إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ غَفُورٌ﴾ [واقعی الله تعالى] نه ويره فی نفسه هم ضروری ده ځکه چه هغه [زبردست دې] چه هرڅه کولې شی او دخپل مطلب دپاره هم ضروری ده ځکه چه هغه دويريدونکو ګناهونو لره [لوئ بخښونې والا دې]

## معارف او مسائل

**د آيتونو ربط:** دځينې حضراتو په نزد په دې آيتونو کښې د توحيد مضمون طرفته واپس راګرځيدل دی چې د قدرت په دليلونو سره مدلل کړې شوېدې، او ځينو فرمائيلی دی چې په رومبو آيتونو کښې د حالاتو مختلف کيدل او ددې تمثيلات بيان کړې شوی دی. ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ ۝ وَلَا الظُّلُمَاتُ وَلَا النُّورُ ۝ وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُورُ﴾. دا هم ددې زيات بيان او وضاحت کول دی چې د الله ﷻ په مخلوقاتو کښې بيلتون او فرق يو پيدائشی اوطبعی خبره ده تر دی چې دا فرق په نباتاتو او جماداتو کښې هم موجود دې او دا اختلاف صرف په صورت او رنګ کښې نه دې بلکه په طبيعتونو کښې هم دې.

﴿ثَمَرَاتٍ مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهَا﴾ دلته د نحوی ترکيب په اعتبار سره ﴿مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهَا﴾ بنا برحال منصوب ذکر کړې شوې دې او وروستو د رنګونو دا اختلاف په انسانانو څارووو او غرونو وغيره کښې په صورت د منصب بيان کړې شوې دې ځکه هلته مختلفٌ مرفوع راوړې شو. په دې کښې اشاره دا کيدې شی چې د ميوو اختلاف د رنګونو په يو حال نه پاتې کيږی بلکه لږ وخت پس بدليږی، البته د انسانانو څارووو او غرونو رنګونو عموما نه بدليږی اوقائم پاتې کيږی.

اوغرونو کښې ئې ﴿جُدَدٌ﴾ اوفرمائيل داد جدة جمع ده، ددې مشهوره معنی نرئ لاره ده چې جاده هم ورته وئيلې شی، ځينود جدة معنی ټوټه اوحصه کړې ده. په دواړو صورتونو کښې مطلب د غرونو د رنګونو اختلاف ښکاره کول دی، په دې کښې د ټولو نه اول سپين اود ټولو نه آخر تور بيان شو، په مينځ کښې د سور بيان سره ﴿مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ﴾ ئې اوفرمائيل په دې کښې اشاره دې خبرې ته راوځی چې پدنيا کښې اصل رنګونه دوه دی، سپين او تور، او نور رنګونه ددغې سپينوالی او تور والی نه په يو ځائې کيدو سره د مختلفو درجو رنګونه جوړيږی.

﴿كَذَٰلِكَ إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ دلته د ﴿كَذَٰلِكَ﴾ په لفظ باندې د جمهورو په نزد وقف دې، ددې مطلب دا راوځی چې دا لفظ رومبی مضمون سره تعلق لری، يعنی مخلوقاتولره په مختلفو قسمونو اومختلف رنګونو کښې په لوئې حکمت سره جوړول دا د الله ﷻ د قدرت او

حکمت خاص نښه ده .
او دخینې روایاتو نه دا ښکاری چې ددې تعلق ورپسې جملې سره دې یعنی څنګه چې میوې، غرونه، حیوانات، او انسانان په مختلفو رنګونو کښې تقسیم دی دغه شان الله ﷻ نه په ویریدو کښې هم دخلقو درجې مختلفې دی څوك په اعلی درجه کښې ویریدونکی دی او څوك په کمه درجه کښې ، دا په علم باندې اړه لری د علم د درجې مطابق خشیت او ویره هم وی [روح](۱).
تیرو شوؤ آیتونو کښې ارشاد وو چې : ﴿إِنَّمَا تُنذِرُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِالْغَيْبِ﴾ چې په کښې رسول کریم ﷺ ته تسلی ورکول وو چې ستاسو د انداز او تبلیغ نه هغه څوك فائده اخستې شی چې غائبانه د الله ﷻ ویره په زړه کښې لری ، په دې مناسبت سره په ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ کښې د هغه خلقو بیان دې څوك چې د الله ﷻ نه ویره په زړه کښې لری او څنګه چې وړاندې د کافرانو او منکرانو او ددوئ د حالاتو بیان راغلې دې په دې کښې خاص د اولیاء الله بیان دې، لفظ د ﴿إِنَّمَا﴾ عربی ژبه کښې د حصر دپاره استعمالولې شی په دې بنا ددې جملې معنی په ښکاره دا شوه چې صرف عالمان د الله ﷻ نه ویریږی مګر ابن عطیه رحمه الله وغیره د تفسیر امامانو فرمائیلی دی چې د ﴿إِنَّمَا﴾ لفظ څنګه چې حصر دپاره راځی داسې د خصوصیت بیانولو دپاره هم رازی . په دې بنا به ئې دلته مراد دا شی چې علماء کرام په خصوصیت سره د الله ﷻ نه لازما ویریږی . دا ضروری نه ده چې غیر عالم کښې دې د الله تعالی ویره نه وی [بحر محیط ، ابو حیان](۲).
دې آیت مبارك کښې د علماء لفظ نه مرا د هغه خلق دی چې د الله ﷻ د ذات او صفات کما حقه علم لری او ددنیا په مخلوقاتو کښې د هغه په تصرفاتو او دهغه په احساناتو او انعاماتو باندې نظر لری د قرآن عظیم الشان په اصطلاح کښې صرف هغه چاته عالم نشی وئیلې چې په عربی ژبه پوهیږی ، دصرف ، نحو او بلاغت علم لری ، تر څو چې د الله ﷻ معرفت ورته په بیان شوې طریقه حاصل نه وی.
حسن بصری رحمه الله ددې آیت مبارك په تفسیر کښې فرمائیلی دی چې عالم هغه څوك دې چې په خلوت او جلوت کښې د الله تعالی نه ویریږی . او الله ﷻ چې کوم څیز سره د مینې کولو فرمائیلی دی هغې سره مینه کوی ، او الله ﷻ چې کوم څیزونه ناکاره او ناخوښه ګرځولی دی دهغې نه نفرت او کرکه کوی . او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی چې :
﴿ليس العلم بكثرة الحديث ولكن العلم عن كثرة الخشية﴾(۳)
[ډیر احادیث یادول یا ډیرې خبرې کول څه علم نه دې بلکه علم هغه دې چې ورسره د الله ﷻ ویره وی]
غرض دا چې په څومره اندازه کښې څوك د الله ﷻ ویره لری هغه د هغې درجې عالم دې او احمد بن صالح مصری رحمه الله او فرمائیل چې د الله ﷻ ویره د روایتونو او معلوماتو د ډیروالی نه نشی پیژندې ،بلکه دا د کتاب او سنت د تابعداری نه پیژندلې شی ، [ابن کثیر](۴).

---

۱) تفسير روح المعاني: ج ١٦، ص ٣٩٣
۲) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ٩، ص ٢٤٦
۳) تفسير ابن كثير: ج ٦، ص ٥٤٥
۴) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٥٤٥

Scanned with

شیخ شهاب الدین سهروردی رحمه الله فرمائی چې دې آیت مبارك كښې دا اشاره بیا موندې شی چې چا كښې د الله تعالى ویره نه وی هغه عالم نه دې. [مظهری]([1]) ددې تصدیق د پخوانو بزرګانو نه هم کیږی ، ربیع بن انس رضی الله عنه فرمائی چې:

﴿من لم یخش فلیس بعالم﴾[د الله ﷻ نه نه ویریدونکې عالم نه دې]

او مجاهد رحمه الله فرمائی چې:

﴿انما العالم من خشی الله﴾[عالم یوازې هغه دې چې د الله ﷻ نه ویریږی]

سعد بن ابراهیم رحمه الله نه چا تپوس اوکړو چې په مدینه منوره کښې د ټولو نه زیات فقیه څوك دې ، نو وې فرمائیل چې ﴿اتقهم لربه﴾ څوك چې د رب کریم نه زیات ویریدونکې وی.

او علی رضی الله عنه د فقیه تعریف داسې کړې دې چې:

ان الفقیه حق الفقیه من لم یقنط الناس من رحمة الله ومن لم یرخص لهم فی معاصی الله تعالى ولم یؤمنهم من عذاب الله تعالى ولم یدع القران رغبة عنه الى غیره انه لا خیر فی عبادة لا علم فیها ولا علم لا فقه فیه ولا قراءة لا تدبر فیه [قرطبی]([2])

فقیه مکمل فقیه هغه دې چې خلقو لره د الله ﷻ د رحمت نه مایوس هم نه کړی او هغوئ ته د ګناهونو کولو اجازت هم ورنکړی . او د الله ﷻ د عذاب نه ئې بې فکره او بې غمه نه کړی . او د قرآن عظیم الشان په پریښودو سره بل څیز ته مخه نه کوی ، په هغې عبادت کښې هیڅ خیر نشته دې چې بې علمه وی او په هغه علم کښې هیڅ خیر نشته دې چې بې فقهې وی یعنی د پوهې اوزیرکتیا نه بغیر وی او په هغه قرات کښې هیڅ خیر نشته دې چې بې دغور کولو وی

دې ښکاره خبرو او تصریحاتو سره دا شبه هم پورته شوه چې ډیر عالمان داسې لیدلې شوی دی چې په کښې د الله ﷻ ویره بالکل نه وی . ولې چې دغې نه معلومه شوه چې صرف هغه عالم نه دې چې په عربی ژبه او ددې په قواعدو باندې پوهیږی بلکه عالم هغه دې چې سره ددې دالله تعالى ویره په کښې وی . البته د الله ﷻ ویره کله صرف اعتقادی وی او کله عقلی وی چې دهغې په وجه په تکلف سره انسان د شرعی احکامو پابند وی او کله دغه دالله تعالى ویرې دحال او ملکې په درجه کښې مضبوط وی چې دهغې په وجه د شریعت تابعداری کول طبعی تقاضا جوړیږی د الله تعالى ویره ړومبۍ درجه داسې ده چې دهغې حکم شوې دې او عالم دپاره ضروری ده ، دویمه درجه زیاته غوره او زیاته پورته ده خو ضروری نه ده [ بیان القرآن]([3]).

| | | |
|---|---|---|
| | یَتْلُوْنَ | اِنَّ الَّذِیْنَ |
| | چی وائی | بیشکه هغه کسان |
| | | بیشکه هغه کسان چې |

| رَزَقْنٰهُمْ | مِمَّا | وَاَنْفَقُوْا | وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ | كِتٰبَ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|
| چی ورکړی دی مونږ هغوئ له | دهغې نه | او خرچ کوی | او قائیموی مونځ | کتاب دالله |
| ...........او زمونږدورکړی رزق نه | | | او د مونځ پابندی کوی | څوک دالله ﷻ دکتاب تلاوت کوی |

[1]) تفسیر المظهری: ج ۸، ص ٥٣

[2]) تفسیر القرطبی: ج ١٤، ص ٣٤٤

[3]) تفسیر بیان القرآن (بالاختصار) ج ۹، ص ۹۸

Scanned with Ca

| لَّنْ تَبُوْرَ | تِجَارَةً | يَّرْجُوْنَ | وَّعَلَانِيَةً | سِرًّا |
|---|---|---|---|---|
| چي هرگز به نقصان نه کوي | دداسې تجارت | امید لري هغوئ | او په ښکاره | په پټه |

په پټه او په ښکاره خیراتونه کوي | هغوئ دداسې تجارت امید لري | چې هیچرې تاوان نه کوي

| مِّنْ فَضْلِهٖ | وَيَزِيْدَهُمْ | اُجُوْرَهُمْ | لِيُوَفِّيَهُمْ |
|---|---|---|---|
| دفضل خپل نه | اوزیات ورکړي هغوئ له | اجرونه دهغوئ | دپاره ددې چې الله پوره ورکړي هغوئ له |

دا خکه چې الله ﷻ هغوئ ته [دخپل عمل] پوره پوره اجرونه ورکړي [او پخپل فضل ئې نور زیات کړي

| اِلَيْكَ | اَوْحَيْنَآ | وَالَّذِيْٓ | شَكُوْرٌ | غَفُوْرٌ | اِنَّهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| تاته | چې وحی کړې دې مونږه | او هغه | قدردان دې | ښبونکې دې | بیشکه هغه |

بیشکه هغه بخښونکې قدردان دې او مونږ چې تاته داکتاب د وحی په ذریعه رالیږلې دې

| بَيْنَ يَدَيْهِ | لِّمَا | مُصَدِّقًا | هُوَالْحَقُّ | مِنَ الْكِتٰبِ |
|---|---|---|---|---|
| چې مخکښې ددې نه وو | دهغه کتابونو | تصدیق کونکې دې | هغه حق دې | دکتاب نه |

دا بالکل حق [کتاب]دې| او ددې نه وړاندې چې کوم کتابونه نازل شوی دی|دهغې تصدیق کونکی دی

| ثُمَّ | بَصِيْرٌ | لَخَبِيْرٌ | بِعِبَادِهٖ | اِنَّ اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|
| بیا | نظر ساتونکې دې په هر څیز | خامخا خبردار دې | په بندګانو خپلو باندې | بیشکه الله |

بیشکه الله ﷻ دخپلو بندګانو په حال ښه خبر دې | ..........هرڅۀ وینې ګوري | ..............بیا

| مِنْ عِبَادِنَا | اصْطَفَيْنَا | الَّذِيْنَ | الْكِتٰبَ | اَوْرَثْنَا |
|---|---|---|---|---|
| دبندګانو خپلو نه | چې غوره کړل مونږه | هغه کسان | ددې کتاب | وارثان کړل مونږه |

داکتاب مونږه هغه بندګانو ته په میراث کښې ورکړو | چې مونږ په نورو بندګانو کښې غوره کړي وو

| مُّقْتَصِدٌ | وَمِنْهُمْ | لِّنَفْسِهٖ | ظَالِمٌ | فَمِنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| میانه حال دی | او ځینې د هغوئ نه | په ځان خپل | ظلم کونکې دی | پس ځینې دهغوئ نه |

نواوس په کښې څوک په خپل ځان زیاتې کوي | اوڅوک په کښې میانه حال دی

| هُوَ | ذٰلِكَ | بِاِذْنِ اللّٰهِ | بِالْخَيْرٰتِ | سَابِقٌ | وَمِنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه | دا | په حکم دالله | دنیکیو سره | مخکښې کیدونکی دی | او ځینې دهغوئ نه |

اوڅوک په کښې دالله ﷻ په فضل په نیکئ کښې مخ په وړاندې روان دی | ..........هم دا

| يَّدْخُلُوْنَهَا | جَنّٰتُ عَدْنٍ | الْكَبِيْرُ | الْفَضْلُ |
|---|---|---|---|
| چې ننوزئ به دا خلق هغې ته | جنتونه دی دهمیشه اوسیدو | لوئ دې | فضل |

دیر لوئې فضل دې | دوئ دپاره د همیشه اوسیدو باغونه دی | چې دوئ به ورته داخلیږي

| وَّلُؤْلُؤًا | مِنْ اَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ | فِيْهَا | يُحَلَّوْنَ |
|---|---|---|---|
| او په ملغلرو سره | په بنګړو دسرو زرو سره | په هغې کښې | ښائیسته کولې به شي |

هلته به ورته .........................د سرو زرو بنګړی او ملغلرې اچولې شي

وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ۝ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِيٓ

او جامې دهغوئ به | په هغې کښې | دریښمو وي | او وائي به | ثناده | الله لره | هغه [الله] |

او هلته به دهغوی جامې د ریښمو وي | اودا به وائي چې ټول تعریفونه الله ﷻ دپاره دي | کوم

اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ ؕ اِنَّ رَبَّنَا لَغَفُوْرٌ شَكُوْرُ ۝

چې لرې ئې کړو | زمونږ نه | خفګان | بیشکه رب زمونږه | خامخا ښښونکې دې | قدرکونکې دې

چې زمونږ نه غم لرې کړو | ............زمونږ رب یقینا ښښونکې اوقدردان دې

الَّذِيٓ اَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ لَا يَمَسُّنَا

هغه ذات | چې دیره ئې کړومونږه | په کوردا ستوګنې کښې | په فضل خپل سره | او س] نه رسیږی مونږ ته

هغه ذات چې مونږ ئې په خپل فضل سره دهمیشه اوسیدو ځائې ته راوستو | چې نه به په کښې

فِيهَا نَصَبٌ وَّلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ ۝ وَالَّذِيْنَ

په دې کښې | مشقت [سختی] | اونه رسیږی مونږ ته | په دې کښې | ستړې والې | او هغه کسان

راته څه تکلیف رارسی | اونه به چرې ستړې کیږو | اوکومو کسانو چې کفر کړې دې

كَفَرُوْا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ ۚ لَا يُقْضٰى عَلَيْهِمْ

چې کفر ئې کړې دې | هغوئ لره دې | وور ددوزخ | حکم به نه کیږی | په هغوئ باندې

..........هغوئ دپاره د دوزخ اور تیار دې | نه به د هغوی په حق کښې د مرګ فیصله کیږی

فَيَمُوْتُوْا وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ مِّنْ عَذَابِهَا ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِيْ

چې مړه شی | اونه به سپك کړې شی | دهغوئ نه | دعذاب ددغه دوزخ نه | دارنګې | ابدله ورکوؤ مونږه

چې مړه شی | [او بې غمه شی] اونه به ترې د دوزخ عذاب کمولې شی | مونږ هر يو کافرته هم دغه شان

كُلَّ كَفُوْرٍ ۝ وَهُمْ يَصْطَرِخُوْنَ فِيهَا ۚ رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا

هر کفر کونکی ته | او هغوئ به فریاد کوی | په هغې کښې | اے ربه زمونږه | او باسې مونږه

سزا ورکوو | او دوئ به په کښې دننه چغې وهی | چې ائې زمونږ ربه مونږ ددې اور نه بهرته اوباسه

نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ؕ اَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ

چې عمل اوکړو | نیك | مختلف دهغې نه | چې وومونږه | چې کوونه مونږ | آیاعمر نه ووؤ درکړې مونږتاسو نه

چې د نیکئ کارونه اوکړو | دهغې نه خلاف چې پخوا به مو کول | [الله تعالی به اوفرمائی] چې آیا مونږ تاسو

مَّا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَنْ تَذَكَّرَ

هغه قدرله | چې نصیحت اخلی | په هغې کښې | هغه څوك | چې نصیحت اغستل غواړی

ته دومره عمر نه وو درکړې | که چا په کښې نصیحت قبلول غوښتې نو قبلولې ئې شو | اوولې تاسو ته

وَجَآءَكُمُ النَّذِيْرُ ؕ فَذُوْقُوْا فَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ ۝

او راغلې ووؤ تاسو ته | خبردارونکې | پس اوڅکئ مزه | پس نشته دې ظالمانولره | څوك مددګار

ویرونکې نه وو راغلې ؟ نو اوس د عذاب خوند اوڅکئ | د ظالمانو د پاره به څوك مددګار نه وي

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

کوم خلق چه د الله تعالیٰ د کتاب تلاوت کوي، او کوم چه د مونځ پابندي کوي، او مونږ چه هغوی ته کوم رزق ورکړي دي، دهغې نه هغوی (په نیکو کارونو کښې) په پټه او ښکاره خرچ کوي، هغوی د داسې تجارت امیدوار دی، چه چرې به هم نقصان نه اوچتوی. دې دپاره چه الله تعالیٰ پوره اجر هغوی ته ورکړي او په خپل فضل سره نور هم زیات ورکړي. یقیناً هغه ډیر زیات بخونکې او لوئې قدردان دې. او (اے پیغمبره) مونږ تاته د وحې په ذریعې کوم کتاب رالیږلې دې، هغه رښتونې دې، چه د خپل ځان نه مخکښې کتابونو تصدیق کولو سره راغلې دې، یقیناً الله تعالیٰ د خپلو بندګانو نه پوره خبردار، اوهرڅیز له لیدونکې دې، بیا مونږ ددې کتاب وارثان په خپلو بندګانو کښې هغې خلقو له جوړ کړل، کومو له چه مونږ منتخب کړې وو بیا په هغوی کښې بعضې خو هغه دی، چه په خپلو ځانونو باندې ظلم کونکې دی او په هغوی کښې بعضې داسې دی، چه د درمیانه درجې والا دی، او څه هغه دی، چه د الله تعالیٰ په توفیق سره نیکو کښې وړاندې کیدونکې دی، او دا (د الله تعالیٰ) لوئې فضل دې. همیشه د اوسیدلو دپاره باغونه دی، چه په هغې کښې به دا خلق داخلیږي، هلته کښې به دوی د سرو زرو بنګړو او ملغرو سره ځآئسته کولې شي، او ددوی لباس به هلته کښې د ریښمو وي، او هغوی به وائي چه: ټول تعریفونه الله تعالیٰ دپاره دی چه هغه مونږ نه هر غم لرې کړو، بے شکه زمونږ پروردګار ډیر زیات بخونکې، او لوئې قدردان دې. چه هغه په خپل فضل سره مونږ د همیشه اوسیدلو ځائې ته راوستلو، چه په دې کښې به نه مونږ ته څه تکلیف وي، او نه به چرې ستړې کیږو. او کومو خلقو چه د کفر طریقه اختیار کړې ده، د هغوی دپاره د دوزخ اور دې، نه خو به دهغوی کار خلاصولې شي، چه مړه شي، او نه به د هغوی نه د دوزخ عذاب سپکولې شي، هر ناشکر کافر ته مونږ داسې سزا ورکوؤ. او هغوی به په دوزخ کښې چغې سورې وهي چه: اے زمونږ پروردګاره! مونږ بهر اوباسه، دې دپاره چه مونږ کوم کارونه مخکښې کول، هغه پرېږدو، اونیک عمل اوکړو (ددې په جواب کښې به اوویلې شي چه) آیا مونږ تاسو ته دومره عمر نه وو ورکړې، چه څوک په هغې کښې پوهه حاصلوله، نو پوهه ئې حاصلولې شوه؟ او تاسو ته خبردار کونکې هم راغلې وو او س مزه اوڅکئ، ځکه چه هیڅوک نشته، چه د داسې ظالمانو مددګار شي.

### خلاصه تفسیر

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَٰبَ اللَّهِ﴾ [او کوم خلق چه د الله تعالیٰ د کتاب] یعنی قرآن [تلاوت] سره د عمل [کوی او] په خصوصیت او اهتمام سره ﴿وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ﴾ د مانځه پابندی ساتی ﴿وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ او څه چه مونږ دوی ته ورکړی دی دهغې نه په پټه او په ښکاره] ځنګه چه موقع وی [خرڅ کوی هغوی] په وجه دوعدې د الله تعالی ﴿يَرْجُونَ تِجَٰرَةً لَّن تَبُورَ﴾ د داسې] دائم النفع [تجارت امید وار دی کوم چه چرې کوټه کیږی نه] ځکه چه ددې سودا خریدار په مخلوقاتو کښې څوك نه دې چه کله دسودا قدر کوی اوکله نه کوی بلکه ددې خریدار به په خپله الله تعالی وی کوم چه به خامخا دوعدې مطابق د خپل غرض په وجه نه بلکه محض دوی ته دنفع رسولو دپاره به ددې قدر کوی ﴿لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُورَهُمْ﴾ [ددې دپاره چه دوی ته ددوی] دعملونو [اجرتونه] هم [پوره] پوره [ورکړی] چه بیان به ئې وړاندې راشی [جَنَّٰتُ عَدْنٍ..الخ] [او] علاوه د

اجرت نه به ﴿وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ﴾ [دوی ته دخپل فضل نه نور زیات] هم [ورکړي] مثلا داچه دیوې نیکۍ ثواب به دلسو برابر ورکړي لکه چه الله تعالی فرمائی [مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا] (۱) ﴿إِنَّهُ غَفُورٌ شَكُورٌ﴾ [بیشکه هغه لوئ بخښنې والا لوئ قدردان دې] پس که ددوی په عملونو کښې څه کوتاهي پاتې شوه بیاهم داسې قدرئ ورله وکړو چه اجرت نه علاوه انعام ئې هم ورکړو [او] په قرآن مجید باند دعمل کولو په برکت سره کوم چه دوی ته اجر او فضل ملاؤ شو پس واقعی قرآن مجید داسې څیزدې څکه چه ﴿وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ مِنَ الْكِتَابِ﴾ [داکتاب کوم چه مونږ تاته دوحی په ذریعه درلیږلې دې ﴿هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ دا بالکل ټیک دې کوم چه دخان نه دوړاند کتابونو هم] په دې معنی [تصدیق کوی] چه دوی لره داصل په اعتبار سره منزل من الله ښائی اګر چه وروستو محرف شوی وی غرض داکتاب په هرشان کامل دې او چونکه ﴿إِنَّ اللَّهَ بِعِبَادِهِ لَخَبِيرٌ بَصِيرٌ﴾ [یقینا الله تعالی د خپلو بندګانو] د حالت [پوره خبرلرونکې او ددوی مصلحتونو لره [ښه لیدونکې دې] په دې وجه دا وخت داسې کامل کتاب نازلول قرین حکمت هم وو او د کامل کتاب عمل کوونکې مستحق دکاملې جزا وی کوم چه مجموعه ده داصل اجر اوزیات فضل پس ددې اجر او فضل د افاضې دپاره داکتاب مونږ په تانازل کړو او ﴿ثُمَّ أَوْرَثْنَا الْكِتَابَ الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا﴾ [بیا داکتاب مونږه دهغو خلقو لاسونه ته ورسولو کومو لره چه مونږ په خپلو] دټولې دنیاجهان [په بندګانو کښې] په اعتبار دایمان [غوره کړلا] مراد ددې نه اهل اسلام دی کوم چه په دې حیثیت دایمان سره دټولې دنیا په خلقو کښې مقبول عندالله دی اګر چه په دوی کښې څوك په بله وجه په مثل دبدعملۍ موجب دملامت هم وی مطلب دادې چه د مسلمانانولاسونوته ئې دغه کتاب ورسولو [بیا] ددې منتخب او غوره شوو خلقو درې قسمو نه دی چه ﴿فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ﴾ [ځنې خو په دوی کښې] څه ګناه کوی [په خپلو ځانونو ظلم کوونکې دی ﴿وَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ﴾ او ځنې په دوی کښې] کوم چه نه ګناه کوی اونه په طاعاتو کښې دضروریاتو نه تجاوزکوی [د درمیانه درجې دی ﴿وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ او ځنې په دوی کښې هغه دی کوم چه دالله تعالی په توفیق سره په نیکیو کښې ترقی کوی روان دی] چه دګناهونو نه هم ځانونه ساتی او دفرائضو سره د غیرفرائضو هم همت کوی غرض مونږ د درې قسمه مسلمانانو لاسونو ته دغه کتاب وورسولو ﴿ذَٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيرُ﴾ او[دا] یعنی دداسې کامل کتاب رسول د الله تعالی [لوې فضل دې] څکه چه په دې دعمل کولو په وجه به دخومره اجر او ثواب مستحق شی وړاندې ددې اجراو فضل چه بره ئې بیان ذکر شوې دې بیان دې چه [هغه] اجراو فضل ﴿جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا﴾ [باغونه دی دهمیشه اوسیدو کوموته چه به داخلق] چه ذکرئ په ایت [ان الذین یتلون الخ] کښې شوې دې [داخلیږی] او ﴿يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا﴾ [دوی ته به دسروزرو بنګړی اوملغلرې اغوستولې شی ﴿وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ﴾ او جامې به هلته ددوی دریښمو وی او] هلته چه داخل شی ﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي﴾ [وبه وائی چه دالله تعالی لاك لاك شکردې ﴿أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ﴾ کوم چه زمونږ نه] دهمیشه دپاره رنج او[غم لرې کړو ﴿إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٌ شَكُورٌ﴾ بیشکه زمونږ پروردګار لوئ بخښنې والا لوئ قدردان دې ﴿الَّذِي أَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِن فَضْلِهِ﴾ کوم چه مونږ لره په خپل

---

۱) ترجمه: کوم سړے چه ښه کار اوکړی نو هغے ته به (د هغے نیک کار ) لس حصے ملاویږی.

Scanned with Ca

فضل سره دهمیشه اوسیدومقام ته راوستو ﴿لَا يَمَسُّنَا فِيهَا نَصَبٌ وَلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ﴾ کوم ځای چه مونږ ته به نه څه تکلیف رسیږی اونه به مونږ ته څه ستومانی رارسیږی] دا خو دعاملانو دکتاب الله او احکامو حال شو ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [او کوم خلق چه] د دوی برخلاف [کافر دی ﴿لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ﴾ دهغوی دپاره د دوزخ اور دې ﴿لَا يُقْضَىٰ عَلَيْهِمْ﴾ نه به هغوی ته مرګ راځی ﴿فَيَمُوتُوا﴾ چه مړه شی] او په مرګ سره خلاص شی ﴿وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ مِنْ عَذَابِهَا﴾ [اونه به ددزوخ عذاب د دوی نه سپك کړې شی ﴿كَذَٰلِكَ نَجْزِي كُلَّ كَفُورٍ﴾ مونږ هرکافرته داسې سزا ورکوو ﴿وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا﴾ او هغه خلق به په دې] دوزخ [کښې] پراته وی چغې به [وهی ﴿رَبَّنَا أَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا﴾ چه اے زمونږ پروردګاره مونږ لره] ددې ځای نه [اوباسې مونږ به اوس ښه [نیك] نیك [کارونه کوو ﴿غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ ۚ أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَنْ تَذَكَّرَ﴾ بر خلاف د هغو کارونو کوم چه مونږ مخکښې کول [ارشاد بهٔ اوشی] چې ولې مونږ تاسو ته دومره عمر نه وؤ درکړی چه که چاپوهیدل غوښتلې نو پوه شوی به وو په کښې او] صرف په عمر درکولو مو بس نه وو کړې بلکه ﴿وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ﴾ [تاسوته] زمونږ دطرف نه [ویرونکې] یعنی پیغمبر [هم رسیدلې وو] خواه په واسطه یا بې واسطې مګر تاسو یوه وانه اوړیده پس] اوس دهغې نه منلو ﴿فَذُوقُوا﴾ [مزه وڅکئ ﴿فَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ نَصِيرٍ﴾ چه دداسې ظالمانو] دلته [څوك مددګار نشته] مونږ به ئې په وجه دناراضتیا مدد ونه کړو او نور خلق به ئې په وجه دعدم قدرت.

### معارف او مسائل

ددې آیتونو نه مخکښې آیت مبارك کښې دعارف بالله علماء حق یو داسې صفت بیان شوې وو چې تعلق ئې زړه سره دې ، اوهغه د الله ﷻ نه ویره کول دی ، اوس ددې آیتونو مبارکو څېنې په رومبی آیت مبارك کښې هم ددغې اولیاء الله د څو داسې صفتونو بیان دې چې په اندامونو او جوارحو سره ادا کولې شی په هغې کښې رومبې صفت تلاوت د قرآن عظیم الشان دې اومراد ترې نه هغه خلق دی چې د الله ﷻ کتاب همیشه لولی د ﴿يَتْلُونَ﴾ صیغه د مضارع دې ته اشاره کوی اوځینې حضراتو دلته د ﴿يَتْلُونَ﴾ صیغه په لغوی معنی سره اخستې ده ، یعنی په عمل سره تابعداری کوی د قرآن عظیم الشان خو اولنې تقریر غوره دې اګر چې د سیاق او سباق نه دا هم تاکلې شوی دی چې تلاوت هغه معتبر دې چې ورسره په قرآن عظیم الشان عمل هم وی ، خو د تلاوت لفظ پخپلې مشهورې معنی کښې دې ، دغه شان مطرف بن عبد الله بن شخیر رحمه الله فرمائی چې : ﴿هذه اية القراء﴾ دا آیت مبارك د قاریانو دپاره دې[1] ، چې د قرآن عظیم الشان تلاوت ئې د خپل ژوند شغل جوړ کړې وې .

د دوئ دویم صفت ﴿أَقَامُوا الصَّلَاةَ﴾ او دریم د الله ﷻ په لار کښې مال خرچ کول دی . دې سره ئې چې ﴿سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ یو ځائې کړل نو دې طرفته اشاره اوکړې شوه چې په اکثرو عبادتونو کښې د ریاء نه د ځان ساتلو په غرض هغه په پټه کول بهتر دی خو کله کله د ځینې دینی ښیګړو په خاطر دې په ښکاره کول پکار دی . لکه د جمع مونځ چې په منارو کښې ددې دپاره اذان کولې شی . اودا حکم ئې دې چې په زیات شمیر کښې جمع ادا کړې شی . دغه شان د الله تعالی

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٥٤٥

Scanned with CS

په لار کښې خپل مال خرچ کول هم دنورو دشوق پیدا کولو دپاره ضروری وی . فقهاء کرامو په مونځ او د الله ﷻ په لار کښې د خرچ کولو دواړو په باره کښې دا تفصیل فرمائیلي دي چې د فرضو ، واجبو یا سنتو مؤکدو په ښکاره کول بهتر دی . دې نه سوا نفلی مونځ په پټه ادا کول بهتر دی . دغه شان چرته چې مال خرچ کول یا فرض یا واجب وی لکه عشر ، زکوة ، یا صدقه فطر یا قربانی په ښکاره کول بهتر دی او په باقی نفلی صدقو کښې په پټه خرچ کول زیات غوره دی .

څوك چې دا درې صفتونه لری یعنی همیشه دپاره د قرآن عظیم الشان تلاوت کوی داشان په مونځ قائم لرلو کښې همیشګی کوی د ښه زړه نه د الله ﷻ په لار کښې مال خرچ کوی. یوازې په فرض او واجب ځایونو کښې نه خرچ کوی بلکه نفلی صدقې هم ورکوی . ورپسې ددوئ یو بل صفت دا بیانوی چې ﴿يَرْجُوْنَ تِجَارَةً لَّنْ تَبُوْرَ﴾.

﴿تَبُوْرَ﴾ د بوار نه مشتق دې چې معنی ئې ضائع کول دی ، د آیت مبارك معنی داده چې د بیان شوؤ صفاتو پابند مؤمنان د یو داسې تجارت امیدوار دې چې په کښې چرې هم نقصان نه وی ، د امید واره کیدو د لفظ نه دې طرفته اشاره ملاویږی چې مؤمن ته په دنیا کښې پخپل هیڅ یو نیك عمل کښې د یقین کولو ګنجائش نشته چې ګنی مونږ به په دې سره ضروری بخښلې کیدې شو. او ددې اجر او ثواب به یقینی طور سره مونږ ته حاصلیږی . ولې چې مکمل بخښنه او مغفرت یوازې دغه په نیك عمل باندې نشی حاصلیدې ځکه انسان که هر څومره هم نیك عمل اوکړی مګر هغه د الله ﷻ د لوئې او د عبادت حق پوره نشی ادا کولې . ځکه د ټولو بخښنه د الله ﷻ د فضل نه بغیر نشی کیدې . لکه یو حدیث پاك کښې هم ددې مضمون تشریح شویده[1] ، دې نه علاوه هر نیك عمل سره انسان لره ددې خطرې نه بې پروا کیدل پکار نه دی ، ځکه چې په ډیرو نیکو عملونو کښې څه پټ شیطانی یا نفسانی تیرویستل[خطا ویستل] شاملیږی چې دهغې په وجه هغه نه قبلیږی یا په ځینې وختونو کښې داسې یو خراب عمل ترې اوشی چې د نیك عمل په قبلیدو کښې ئې رکاوټ جوړ شی ، ځکه په آیت مبارك کښې لفظ د ﴿يَرْجُوْنَ﴾ راوړلو سره دې ته اشاره اوکړه چې د ټولو عملونو د پابندئ نه پس هم چا لره د خپل تجارت او د لوړو درجو یقین کولو حق نشته زیات زیات صرف امید کیدې شی [روح][2].

**دنیکو عملونو مثال په تجارت سره** : په دې آیت مبارك کښې دنیکو عملونو تشبیه او مثال یو تجارت سره ورکړې شو لکه چې په یو بل آیت مبارك کښې چې ایمان او جهاد فی سبیل الله ته هم تجارت داسې فرمائیلي شوې دې چې : ﴿هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰى تِجَارَةٍ تُنْجِيْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ﴾[3]

تجارت سره ئې تشبیه او مثال ځکه ورکړې شو چې تاجر خپله پنګه او وخت په یو کار کښې هغه وخت لګوی چې ورسره ئې پنګه ترقی کوی او فائده ور رسی خو د دنیا په تجارت کښې

---

[1] ) صحیح البخاری، کتاب الرقاق، باب القصد والمداومة علی العمل: ج ۲،ص ۹۵۷

[2] ) تفسیر روح المعانی (بالاختصار): ج ۱۶، ص ۳۹۵

[3] ) ترجمه: آیا څه تا سو ته داسې تجارت وښایم چه د دردناک عذاب نه مو بچ کړی، هغه دا چه په خدائے او دهغه په پیغمبر ایمان راوړی، او د الله تعالیٰ په لاره کښې دځان او دمال جهاد کوئ.

فائدي سره نقصان هم ترلې دي څکه په ﴿لَّن تَبُورَ﴾ سره ئي دي ته اشاره او فرمائيله چې په آخرت كښې ددې تجارت د هيڅ نقصان احتمال نشته او د الله ﷻ نيك بندګان چې په نيكو عملونو كښې مشقتونه او محنتونه پورته كوي هغوئ د عامو تجارتونو پشان تجارت نه كوي ، بلكه د يو داسې تجارت اميدوار دي چې په كښې هيڅ خساره نه وي او ددوئ د اميد وار كيدو بيان كول دې طرفته پټه اشاره جوړيږي چې الله ﷻ كريم الكرماء دې هغه به د اميدوار اميد نه بې فائدې كوي بلكه پوره يې كوي ، بلكه په ورپسې جمله كښې ئې دا هم اوفرمائيل چې ددوئ اميد خو به تر دې حده پورې ويچې د خپل نيك عمل پوره بدله به ورته وركړې شي ، خو الله ﷻ به پخپل فضل او مهربانئ سره ددوئ د اميدونو نه زيات وركړي لكه فرمائي چې :
﴿لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُورَهُمْ وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ﴾ د ﴿لِيُوَفِّيَهُمْ﴾ تعلق ﴿لَّن تَبُورَ﴾ سره دې ، يعنى د دوئ تجارت كښې د خسارې ګنجائش نشته دې بلكه اجروثواب به ورته پوره پوره وركولې شي ، بلكه الله ﷻ به ورته پخپل فضل او كرم سره ددوئ د ګمان او اندازې نه زيات ثواب وركړي .
دا فضل او زياتوالې د الله ﷻ په دې وعده باندې منحصر دې چې الله ﷻ مؤمن ته د نيك عمل ثواب په څو څو چنده زيات وركوي چې ادنى او كمتره درجه ئې يو په لس چنده ده او زيات اووۀ سوه چنده بلكه ددې نه هم بې حسابه وركوي . لكه فرمائى چې :﴿وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَن يَشَاءُ﴾ دغه شان د نورو ګناهګارو په باره كښې د دوئ سفارش قبلول هم د الله ﷻ په فضل كښې شامل دى ، لكه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د يو روايت مطابق چې رسول كريم ﷺ ددې فضل په تفسير كښې دا فرمائيلى دى چې پدې خلقو باندې په دنيا كښې چا چې احسان كړې دې دوئ به دهغوئ سفارش كوى ، هغوئ به د جهنم د سزا حقدار وى خو ددوئ په سفارش به بالكل خلاص شى ،[تفسير مظهرى بحواله ابن ابى حاتم][1].
دا ښكاره خبره ده چې شفاعت به يوازې د اهل ايمان دپاره كيدې شى ، د كافر د شفاعت به چا ته هم اجازت نه وى دغه شان په جنت كښې د الله ﷻ ديدار هم ددې فضل يوه لويه حصه ده .
﴿ثُمَّ أَوْرَثْنَا الْكِتَابَ الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا﴾ د ﴿ثُمَّ﴾ حرف عطف دپاره راځى خو دا په دې دلالت كوى چې ددې نه مخكښې او روستو دواړه څيزونه په اصل وصف كښې اګر چې شريك دى خو خپل مينځ كښې وړاندې والې او روستو والې لرى يعنى رومبې اول او ورپسې روستې دې . ددې وړاندې والى او روستو والى هم قسمونه دى ، كله د زمانې ، كله د مرتبې او درجې په اعتبار سره وى ، پدې آيت مبارك كښې ﴿ثُمَّ﴾ نه پس ﴿أَوْرَثْنَا﴾ عطف دې ، ددې نه د وړاندې آيت مبارك په لفظ ﴿أَوْحَيْنَا﴾ باندې ، معنى ئې دا جوړيږى چې مونږ دا كتاب يعنى قرآن عظيم الشان چې خالص حق دې او دټولو پخوانو كتابونو تصديق كوى ، رومبې مو د وحى په طور تاسوته دراوليږلو ، دې نه پس مونږ ددې كتاب وارثان هغه خلق جوړ كړل چې مونږ چونړ كړى او غوره كړى دى دخپلو بندګانو څېنې دلته دا روستوالې او وړاندې والې د درجې په اعتبار سره داسې ښكاره خبره ده چې اول دا قرآن عظيم الشان رسول كريم ﷺ ته په ذريعه د وحى ليږل په رتبه او درجه كښې مقدم دې . او امت محمديه ﷺ ته ئې وركول مؤخر دى . او كه امت لره د قرآن عظيم الشان وارثانو جوړلو مطلب دا واخستې شى چې نبى كريم ﷺ څان

[1] تفسير المظهرى: ج ٨، ص ٥٤، ٥٥، والمعجم الكبير، رقم الحديث: ١٠٤٦٢

څخه وروستو د خپل امت دپاره د سرو زرو او زمکې وراثت په ځائې د الله ﷻ کتاب د وراثت په طور پرېښودو نو هم صحيح ده لکه څنګه چې د رسول کريم ﷺ نه په يو حديث پاک کښې دې شهادت موجود د چې پيغمبران ﷺ په ميراث کښې روپۍ ، اشرفۍ نه پرېږدی(۱) هغوئ ﷺ په ميراث کښې علم پرېږدی ، او په يو بل حديث پاک کښې ئې فرمائيلی دی چې علماء کرام د پيغمبرانو وارثان دی(۲) ، په دې وجه دا تقديم او تاخير زمانی هم کيدې شی چې مونږ دا کتاب تاته درکړې دې او تاسو دا خپل امت دپاره په طور د وراثت پرېښودو. د وارث جوړلو څخه مراد ورکول دی. دې لره په لفظ ميراث سره تعبير کولو کښې دې ته اشاره ده چې لکه څنګه يو وراث ته د ميراث حصه بغير د څه مشقت او کوشش څخه ملاويږی ، دقرآن پاک دا دولت هم دې منتخب بندګانو ته داشان بغير د څه محنت او کوشش ورکړې شوې

**د امت محمديه خصوصا ددې د عالمانو يو مهم فضيلت او خصوصيت:** ﴿الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا﴾ [يعنی چالره چې مونږ چوڼ کړی او غوره کړی دی د خپلو بندګانو څخه]. د جمهورو مفسرينو په نزد ددې څخه مراد امت محمديه دې .چې ددې علماء بې واسطه او نور خلق ئې په واسطه د علماء[؟]. علی ابن ابی طالب رضی الله عنه د ابن عباس رضی الله عنهما څخه ددې آيت مبارک په تفسير کښې نقل کړی دی چې د ﴿الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا﴾ څخه مراد امت محمديه دې ، الله ﷻ دوئ لره دهر هغه کتاب وارثان جوړ کړی دی کوم چې هغه نازل کړی دی [يعنی قرآن عظيم الشان د ټولو سابقه کتابونو تصديق کوونکې او حفاظت کوونکې کتاب حيثيت سره. بيا ئې اوفرمائيل چې: ﴿فظالمهم يغفرله ومقتصدهم يحاسب حسابا يسيرا وسابقهم يدخل الجنة بغير حساب﴾ يعنی ددې امت ظالم به هم بخښلې شی ميانه روی کوونکې نه بهٔ آسان حساب اخستې شی او سابق به د بې حسابه جنت کښې داخلولې شی ،[ابن کثير](۳).

دې آيت مبارک کښې د ﴿اصْطَفَيْنَا﴾ لفظ نه د امت محمديه د ټولو نه لوئې فضيلت ظاهر شو ، ولې چې په قرآن عظيم الشان کښې د اصطفاء لفظ اکثر د پيغمبرانو ﷺ دپاره راغلې دې لکه فرمائی چې: ﴿اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا وَمِنَ النَّاسِ﴾(۴) او په يو آيت مبارک کښې راغلی دی ﴿إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰ آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ عِمْرَانَ عَلَى الْعَالَمِينَ﴾(۵) دلته په رومبی آيت مبارک کښې الله ﷻ په اصطفاء کښې پيغمبرانو ﷺ او فرښتو سره امت محمديه هم شريک کړو اګر چې ددې درجې دی په اوله درجه کښې انبياء ﷺ اوفرښتی دی او په وروستې درجه کښې امت محمديه رازی .

**د امت محمديه درې قسمونه:** ﴿فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِنَفْسِهِ وَمِنْهُمْ مُقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ﴾ دا جمله د رومبئ جملې تفسير او وضاحت دې ، يعنی مونږ چې کوم بندګان چوڼ کړی او غوره کړی دی او د قرآن عظيم الشان وارثان موجوړ کړی دی د هغوئ درې قسمونه دی ① ظالم ② مقتصد ③ سابق

---

(۱) صحيح مسلم، كتاب الوصية باب ترک الوصية لمن ليس له شئ:ج ۲، ص ۴۲، وجامع الترمذی، كتاب العلم، باب ما جاء فی فضل الفقه علی العبادة: ج ۲، ص ۹۷

(۲) صحيح البخاری، كتاب العلم، باب العلم قبل القول والعمل: ج ۱، ص ۱۶، وجامع الترمذی، كتاب العلم، باب ما جا فی فضل الفقه علی العبادة: ج ۲، ص ۹۷

(۳) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۶، ص ۵۴۷، والمعجم الكبير، رقم الحديث: ۱۱۴۵۴

(۴) الله تعالی منتخب کوی أحكام رسولو دپاره فرشتے او انسانان.

(۵) بے شک الله تعالی غوره کړی دی آدم او نوح او دابراهيم اولاد او دعمران اولاد ټول جهان دپاندے.

Scanned with Ca

ابن کثیر رحمه الله ددې درې وارو قسمونو تفسیر داشان بیان کړې دې چې ظالم نه مراد هغه کس دې چې په ځینې واجباتو کښې کوتاهي کوی او ځینې حرام کول تر هم واضح کیږی. مقتصد هغه څوك دی چې ټول شرعی واجبات ادا کوی او ټولو حرامو نه ځان ساتي مګر کله ځینې مستحبات پریږدی او په ځینې مکروهاتو کښې هم اخته کیږی. او ﴿سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ﴾ هغه څوك دې چې ټول واجبات او مستحبات ادا کوی، ټولو حرامو او مکروهاتو ن ځان ساتی او ځینې مباحات په دې وجه پریږدی چې دهغې نه په عبادت کولو کښې مشغول شی یا د حراموالی شبهه ئې په کښې راشی.

دا خو د ابن کثیر بیان دې نورو مفسرینو ددې درې وارو قسمونو په تفسیر کښې مختلف قولونه نقل کړی دی، روح المعانی کښې د تحریر په حواله درې څلویښت اقوال ذکر کړې شوی دی[1] خو که غور اوکړې شی نو په کښې د اکثرو حاصل دا راوځی کوم چې په حواله د ابن کثیر اوس بیان کړې شو.

**یوه شبه او دهغې جواب**: د بیان شوی تفسیر نه دا ثابت شو چې ﴿الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا﴾ نه مراد امت محمدیه دې او دهغې دا درې قسمونه دی، ددې نه معلومه شوه چې رومبې قسم یعنی ظالم هم په ﴿الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا﴾ کښې شامل دی اګر چې ځینې خلقو په ظاهره دا لرې خبره ګنړلې ده او دوئ ئې د امت محمدیه او ﴿اصْطَفَيْنَا﴾ نه خارج ګرځولی دی خو د ډیرو معتبرو صحیحو احادیثو تر مخه دا درې واړه قسمه د امت محمدیه دی او د ﴿اصْطَفَيْنَا﴾ د صفت نه خارج نه دی دا د امت محمدیه د مؤمن بندګانو انتهائی خصوصیت او بهتر الې دې چې د دوئ د عمل د مخې ناقص خلق هم په دې شرف کښې داخل دی. حافظ ابن کثیر رحمه الله دلته دا ټول روایتونه دحدیث جمع کړی دی په هغې کښې ځنې دا دی:

د ابی سعید رضي الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ د آیت ﴿الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا﴾ د درې دواړو قسمونو باره کښې اوفرمائیل چې دا ټول په یو مرتبه کښې په دې شان دې چې ټول به جنت ته ځی. [احمد بحواله ابن کثیر رحمه الله][2] په یوه مرتبه کښې د ټولو کیدل دا مطلب دې چې مغفرت به ئې اوشی او ټول به جنت ته ځی دا مطلب ندی چې درجاتو کښې به یې فرق وی.

او د ابی الدرداء رضي الله عنه نه په ډیرو سندونو سره یو حدیث پاك نقل کړې شوې دې، ابن کثیر هغه ټول نقل کړی دی په دې کښې یو هغه دې چې ابن جریر رحمه الله د ابی ثابت نه نقل کړې دې هغه داسې چې یوه ورځ هغه مسجد ته لاړو، هلته ابوالدراء د اول نه ناست وو ابو ثابت هم د هغوئ رضي الله عنه سره کیناستو او دا دعا ئې کول شروع کړل چې ﴿اللهم انس وحشتي وارحم غربتي ويسرلي جليسا صالحا﴾ ائې الله ﷻ ! زما د زړه پریشانی ختمه کړی او په ما باندې رحم اوکړې او ماته د ناستې پاستې یو نیك ملګرې راکړې [دلته دا خبره قابل یاداشت ده چې په سلف صالحینو کښې د جلیس صالح طلب او تلاش درجه څه وه چې دا یې اهم منصب او د ټولو

---

[1] ) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱۶، ص ٤٠١

[2] ) مسند أحمد، مسند ابی سعید الخدری رضی الله عنه، رقم الحدیث: ۳۵۳۲، وجامع الترمذی، أبواب التفسیر، باب سورة فاطر (الملائکة) ج ۲، ص ۱۵۸

Scanned with Ca

پريشانو علاج اوکړلو او د الله ﷻ څخه يې ددې دعاگانې کولې] ابوالدرداء رضي الله عنه چې دا دعا واؤريدله نو وې فرمائيل چې که ته په دې خپله دعا غوښتلو کښې رېښتونې يې نو زه په دې باره کښې ستا نه زيات خوش قسمته يم [مطلب دا چې ما ته الله ﷻ ستاسو په شان جليس صالح بې غوښتلو راکړو] او وې فرمائيل چې زه تاته يو حديث پاك آؤرم کوم چې ما د رسول کريم ﷺ نه آؤريدلې دې ، خو کله چې مې آؤريدلې دې تر اوسه پورې راته دهغې د آؤرولو موقعه نه ده ملاؤ شوې . هغه دادې چې هغوئ ﷺ ﴿ثُمَّ أَوْرَثْنَا الْكِتَابَ الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا﴾ تلاوت کړو او وې فرمائيل چې په دريو قسمونو کښې سابق بالخيرات خلق به بې حسابه جنت ته داخليږي ، مقتصد نه به آسان حساب واخستې شي اوظالم کوم چې کوتاهي کوؤنکې وی گناهونو کښې اخته پاتې شوې وی تول په دغې موقعه سخت غمژن او خفه شي . بيا به هغوئ ته هم جنت کښې د داخلې حکم اوشي اوټول غم خفگان به ئې لرې شي ، ددې بيان په راتلونکې آيت مبارك کښې داسې راغلې دې چې :﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ﴾[د الله ﷻ شکر دې چې زمونږ غم خفگان ئې لرې کړو](١)

او طبراني د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت کړې دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې ﴿وكلهم من هذه الامة﴾ [دا درې واړه قسمونه خلق به پدې امت محمديه ﷺ کښې وی](٢) او ابوطيالسی د عقبه بن صهبا هنائئ نه روايت کړې دې چې هغوئ د عائشه صديقه رضي الله عنها نه ددې آيت تفسير باره کښې تپوس اوکړو نو هغوئ ورته اوفرمائيل چې ځويه ، دا درې واړه قسمونه جنتيان دی ، ددوئ څخنې سابق بالخيرات خو هغه خلق دی چې د رسول کريم ﷺ په زمانه کښې تير شو . دکومو د جنتې کيدو گواهي چې پخپله رسول کريم ﷺ ورکړې ده . او مقتصد هغه خلق دی چې د دوئ په نقش قدم باندې روان دی ،او د سابقينو په اقتداء باندې کلك پاتې کيدل تر دې چې هغوئ سره يو ځائې شو ، پاتې شو ظالم لنفسه نو هغه زما اوستا پشان خلق دی(٣).

دا د عائشه صديقه رضي الله عنها خاکساری او تواضع وه چې خپل ځان ئې په دريمه درجه کښې حساب کړې سره ددې چې هغوئ رضي الله عنها د ښکاره صحيح احاديثو تر مخه په سابقين اولين کښې حسابيږي .

اوابن جرير رحمه الله د محمد بن حنفيه رحمه الله نه نقل کوی چې هغوئ رحمه الله اوفرمائيل چې داامت امت مرحومه دې ، ددې امت ظالم به هم بخښلې کيږي ، مقتصد به هم جنت کښې وی ، او سابق بالخيرات د الله ﷻ په نزد په لوړو درجو کښې دی(٤).

اومحمد بن علي باقر رحمه الله د ظالم لنفسه په تفسر کښې فرمائي چې ﴿الذي خلط عملا صالحا وآخر سيئا﴾ [يعنې چا چې ښه اوناښه دواړه عملونه يو ځائې کړی وی](٥)

---

١) مجمع الزوائد، رقم الحديث: ١١٣٩٠

٢) المعجم الكبير، رقم الحديث: ٤١٠

٣) المستدرک للحاکم، رقم الحديث: ٣٥٩٣، تفسير سورة الملائكة (فاطر)

٤) تفسير الطبري تحت هذه الآية: ج ٢٠، ص ٤٦٧

٥) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٥٥٠

Scanned with Ca

**د امت محمديه د علماء كرامو عظيم الشان فضيلت:** په دې كښې آيت مبارك كښې الله ﷻ فرمائي چې مونږ د خپل كتاب وارثا هغه خلق جوړ كړل چې زمونږ په بندګانو كښې چونړ كړي او غوره دي او دا هم ښكاره دي چې د كتاب الله او د نبوت د علمونو بې واسطې وارثان علماء كرام دي لكه په يو حديث پاك كښې راغلي دي چې ﴿العلماء ورثة الانبياء﴾[1] حاصل دا شو چې كومو خلقو ته الله ﷻ د قرآن او سنت د علومو مشغله په اخلاص سره نصيب كړه ، دا ددې نخښه ده چې دوئ د الله ﷻ غوره كړي اولياء دي لكه چې ثعلبه بن الحكم روايت كړې دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ به د قيامت په ورځ د امت علماؤ ته په خطاب كولو اوفرمائي چې ما ستاسو په سينو كښې خپل علم او حكمت صرف ځكه ايښودې وو چې زما اراده داوه چې ستاسو مغفرت بخښنه اوكړم عمل مو چې هر څنګه وي[2] . [دا پورته معلوم شو چې په كوم عالم كښې د الله تعالى ويره نه وي نو هغه د عالمانو د فهرست نه خارج دې . خو دا خطاب به هغې خلقوته وي چې د الله ﷻ په ويره كښې رنګ شوي وي ، هغوئ داسې كولې نشي چې په بې پروايئ سره په ګناهونو كښې اخته وي البته د بشرى طبيعت په تقاضا سره كله كله دهغوئ نه هم لغزش كيدې شي داسې خلقو دپاره په دې حديث پاك كښې اوفرمائيلې شو چې د دوئ كه هر څنګه عمل وي دوئ دپاره مغفرت مقدر دې .

دا ټول روايات د تفسير ابن كثير نه اخستې شوي دي او طبرانى هم روايت كړې دې چې د سند رجال ئې ټول ثقه دي [تفسير مظهرى][3].

او تفسير مظهرى كښې د ابن عساكر په حواله ددې حديث پاك هم دا مضمون د ابى عمر صنعانى نه هم روايت كړې شوې دې او دغه شان د ابى موسى اشعرى رضي الله عنه په روايت دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې په محشر كښې به الله ﷻ ټول بندګان راجمع كړي ، بيا به علماء په يو امتيازى ځائې كښې راجمع كړي او بيا به اوفرمائي:

﴿انى لم اضع علمى فيكم الا لعلمى بكم ولم اضع علمى فيكم لاعذبكم انطلقوا قد غفرت لكم [مظهرى]﴾

يعنى ما خپل علم ستاسو په زړونو كښې دې دپاره ايښې وو چې زه تاسو نه واقف اوم [چې تاسو به ددې امانت د علم حق ادا كوئى] ما خپل علم ستاسو په سينو كښې دې دپاره نه وو ايښې چې عذاب دركړم ځئ اومې بخښلئ][4].

**فائده:** دې آيت مبارك كښې ظالم د ټولو نه اول ، مقتصد ورپسې او په آخر كښې سابق بالخيرات بيان شو ، دا ترتيب شايد د شمير د ډيروالى په جوړ وركړې شوولې چې ټولو نه زيات ظالم لنفسه دي ورپسې مقتصد او ټولو نه كم سابق بالخيرات دي نو د كوم تعداد چې زيات وو هغه يې مقدم كړل.

﴿ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ ۝ جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا يُحَلَّوْنَ فِيْهَا مِنْ اَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَّلُؤْلُؤًا ۚ وَلِبَاسُهُمْ فِيْهَا حَرِيْرٌ ۝﴾

په شروع كښې الله ﷻ د خپلو چونړ كړو غوره بندګانو درې قسمونه خودلې دي بيا فرمائي چې

---

[1] جامع الترمذى، أبواب العلم، باب ما جاء فى فضل الفقه على العبادة: ج ۲، س ۹۷

[2] المعجم الكبير، رقم الحديث: ۱۳۸۱، ومجمع الزوائد، رقم الحديث: ۵۲۷

[3] تفسير المظهرى: ج ۸، ص ۵۷

[4] تفسير المظهرى: ج ۸، ص ۵۸، والمعجم الصغير، رقم الحديث: ۵۹۱

Scanned with Ca

﴿ذَٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيرُ﴾ يعني دا درې واړه بندګان پخپلو غوره بندګانو کښې حسابول د الله ﷻ لوئې فضل دې ، وروستو د دوئ د جزاء داسې بيان دې چې دوئ به جنت ته ځى ، دوئ ته به د سرو زرو بنګړې او د ملغلرو کالى اچولې شى او جامې به ئې د ريښمو وى .

په دنيا کښې نارينو دپاره د سرو زرو کالى[زيورات] اچول هم حرام دى ، او د ريښمو کپړې اچول هم حرام دى . ددې په عوض کښې به دوئ ته د جنت دا ټول څيزونه ورکولې شى او په دې باندې دې څوك د شبهه نه کوى چې کالى اچول خو د زنانو کار دې ، نارينو سره دا نه ښائى ، ولې چې د جنت او آخرت حالات د دنيا په حالاتو باندې قياس کول بې عقلى ده .

ابى سعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې د جنتيانو د سرونو په تاج کښې به ملغلرې لګيدلې وى ، ددې د ټولې نه د کمې ملغلرې رڼرا به دومره وى چې د مشرق نه تر مغربه پورې ټوله دنيا به روښانه کړى [ترمذى ، حاکم ، بيهقى ، حاکم دې ته صحيح اووئيل ، ، مظهرى] (1).

د امام قرطبى رحمه الله په حواله مفسرينو فرمائيلى دى چې د هر جنتى په لاس کښې به بنګړى اچولې شى ، يو به د سرو زرو او بل د سپينو زرو او دريم د ملغلرو ، په يو آيت مبارك کښې د جنتى دبنګړو متعلق فرمائى چې جنتى بنګړى به يو د سرو او بل د سپينو زرو وى ، په دې تفسير سره د دواړو آيتونو مينځ کښې تطبيق هم راغلو (2).

**څوك چې په دنيا کښې د سرو زرو لوښى او ريښمى لباس اچوى نو هغه ته به جنت کښې دا څيزونه نه ملاويږى**

حذيفه رضي الله عنه فرمائيلى دى چې مونږ د رسول کريم ﷺ نه واوريدل ، وې فرمائيل چې ريښمى کپړې مه اچوى او دسرو زرو په لوښو کښې اوبه مه څکئ او مه په دې کښې خوراك کوئى ولې چې دا څيزونه په دنيا کښې کافرانو دپاره دى او تاسو دپاره په آخرت کښې [بخارى ومسلم] (3).

او عمر رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې کوم نارينه چې په دنيا کښې ريښمى کپړا واچوله هغه به ئې په آخرت کښې نشى اچولې [بخارى ومسلم] (4) او د ابى سعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دې چې کوم نارينه په دنيا کښې ريښمى کپړا واچوله نو هغه به په آخرت کښې ددې نه بې نصيبه وى اګر چې جنت ته لاړ هم شى [مظهرى] (5).

﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ﴾ [يعنى اهل جنت به جنت کښې د داخليدو په وخت وائى چې شکر دې الله تعالى لره ، چا چې زمونږ غم لرې کړو] د مفسرينو امامانو په دې کښې اختلاف دې چې دې غم نه څه مراد دې ؟ خو صحيح داده چې ټول غمونه ترې مراد دى ، ولې چې په دنيا کښې هيڅوك هم د غم ،فکرنه خالى نه دى . که هغه بادشاه دې او که نبى او که ولى.

(1) تفسير المظهرى: ج ۸، ص ۵۹، وجامع الترمذى، أبواب صفة الجنة، باب ما جاء ما لادنى اهل الجنة من الكرامة: ج ۲، ص ۸۳، والمستدرک للحاکم، رقم الحديث: ۳۵۹۴، باب تفسير سورة الملائكة (فاطر)

(2) تفسير القرطبى: ج ۱۲، ص ۲۸، تفسير سورة الحج آيت نمبر: ۲۲، ۲۳

(3) صحيح البخارى، کتاب الأطعمه، باب الأكل فى اناء مفضض: ج ۲، ص ۸۱۶، وصحيح مسلم، کتاب اللباس، باب تحريم استعمال انا الذهب والفضة على الرجال والنساء: ج ۲، ص ۱۸۹

(4) صحيح البخارى، کتاب اللباس، باب لبس الحرير- الخ: ج ۲، ص ۸۶۷

(5) تفسير المظهرى: ج ۸، ص ۵۹، والمستدرک للحاکم، رقم الحديث: ۷۵۱۰

Scanned with Ca

درین دنیا کسی بے غم نباشد اگر باشد بنی آدم نباشد([1])

په دې دنیا کښې نیك یا بد هیڅوا د غمونو او فکرونو څخه نجات نشته په دې وجه هوښیاران ورته دارالاحزان وائي ، په دې آیت مبارك کښې چې د کوم غم د لرې کېدو ذکر دې په هغې ددنیا ټول غمونه هم داخل دي ، بل غم د قیامت او حشر دې ، دریم د حساب کتاب غم دې ، څلورم د جهنم د عذاب غم دې ، الله ﷻ به جنتیانو نه دا ټول غمونه لرې کړي .

عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د لا اله الا الله کلمه ویونکي به د مرګ په وخت هم پریشانه نه وي ، په قبر او محشر کښې به هم پریشانه نه وي ، ګویا که زه ګورم چې کله دا خلق به د قبرونو نه پورته کیږي نو داسې به وائي چې : ﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ﴾ [طبراني بحواله مظهري] ([2]).

او د ابی الدرداء رضي الله عنه د پورتني روایت مطابق دا فرمائیل چې دا به هغه خلق وائي کوم چې ظالمان لنفسه وي ، ولې چې په محشر کښې به دوئ ته په شروع کښې سخت غم ، خفګان او پریشاني راپیښیږي ، په آخر کښې هم چې ورته جنت دداخلیدو حکم ورکړې شي نو دغه غمونه فکرونه به ئې ختم کړې شي . هغه ددې حدیث د ابن عمر رضي الله عنه سره بې سمونه نه دې ځکه چې ظالم لنفسه ته به د نورو غمونو زیات یوغم په محشر کښې راپیښیږي ، چې د جنت ته د داخلیدو په وخت به لرې شي ، خلاصه داده چې دا وینا خو به ټول اهل جنت کوي ، خواه سابقین وي ، مقتصدین یا ظالم لنفسه وي ، لیکن د هر یو د غمونو فهرست جدا جدا کیدل څه لرې خبره نه ده .

امام جصاص رحمه الله فرمائي چې د مؤمن شان دادې چې دنیا کښې به هیڅکله بې غمه کیږي نه([3]) ، رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې دنیا مؤمن دپاره قید خانه ده([4]) ، هم دغه وجه ده چې د رسول کریم ﷺ او د لویو صحابه کرامو رضي الله عنهم په حالاتو کښې راغلي دي چې دا حضرات به اکثر غمژن او خفه ښکاریدل .

﴿الَّذِيْٓ اَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ لَا يَمَسُّنَا فِيْهَا نَصَبٌ وَّلَا يَمَسُّنَا فِيْهَا لُغُوْبٌ﴾ په دې آیت مبارك کښې د جنت څو خصوصیات بیان کړې شوي دي ، اول دا چې دا به دارالمقامه وي ، ددې د زوال او د هغه ځائې نه د اوښکلو به هیڅ وخت خطره نه وي ، دویم دا چې هلته به څه غم نه راپیښیږي ، دریم دا چې هلته به څوك ستوماني نه محسوسوي څنګه چې په دنیا کښې محسوسوي ، چې د کار په پریښودو سره د خوب ضرورت محسوسوي جنت به ددې نه پاك وي ، د حدیث پاك په څینې روایتونو کښې هم دا مضمون هم بیان شوې دې [مظهري] ([5]).

﴿اَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَّا يَتَذَكَّرُ فِيْهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَجَآءَكُمُ النَّذِيْرُ﴾ یعنی کله به چې جهنم کښې دا فریاد کوي چې ائې زمونږ پروردګاره مونږ لره ددې عذاب نه اوباسې اوس به مونږ نیك عمل کوؤ او کړې بدعملئ به

---

[1] ) په دے دنیا کښې څوک هم بے غمه نشته او که څوک بے غمه دے نو هغه بنی آدم (انسان) نه دے.

[2] ) المعجم الاوسط للطبراني، رقم الحديث: ۹۴۷۸

[3] ) أحكام القرآن للجصاص تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۳۴۷، ۳۴۸

[4] ) صحيح مسلم، كباب الزهد، فصل الدنيا سجن المؤمن وجنة الكافر: ج ۲، ص ۴۰۷

[5] ) تفسير المظهري: ج ۸، ص ۶۰

Scanned with Ca

پرېږدو دغه وخت به دا جواب ورکولې شي چې ایا موثر تاسو ته د دومره عمر مهلت نه وو درکړې چې په کښې غور کولو سره په صحیح لار غور کوؤنکې راتلې شو. علي بن حسین رحمه الله، زین العابدین رضي الله عنه اوفرمائیل چې دې نه مراد د اوولسو کالو عمر دې. او قتاده رحمه الله د اتلسو کالو عمر خودلې دې چې مراد ترې دبلوغ عمر دې. او د اوولسو اتلسو فرق په بلوغ کښې داسې کیدې شي چې څوك په اوولسو کالو او څوك په اتلسو کالو کښې بلوغ ته رسي([1]). د بلوغ عمر په شریعت کښې ړومبې حد دې چې هغې کښې داخلیدو سره انسان تـه د الله ﷻ د طرفه دومره عقل ورکولې شي چې خپل ښه او بد په کښې پیژندې شي ځکه به دا خطاب عامو کافرانو ته وي ، خواه د ډیر عمر خاوندان وي یا د کم عمر خاوندان وي البته هغه څوك د زیاتې ملامتیا حقدار دي چې ډیر عمر ورکړې شوې وي او بیا ئې هم عقل ځائې ته نه وي راغلې ، د قدرت د دلیلونو په لیدو سره او د پیغمبرانو ﷺ دخبرو په آوریدو سره ئې حق نه وي پیژندلې.

خلاصه داده چې کوم کس ته صرف د بلوغ عمر ورکړې شو نو هغه ته هم قدرت دومره سامان ورکړو چې د حق او د باطل تر مینځه بیلتون کولې شي ، کله ئې چې اونکړو نو هغه هم د ملامتیا او عذاب مستحق دي لیکن چا ته چې زیات اوږد عمر ورکړې شو په هغه باندې د الله ﷻ نور زیات حجت پوره شو ، که هغه بیا هم دخپل کفر او نافرمانۍ نه منع نشو نو د زیات عذاب او زیاتې ملامتیا حقدار دې.

علي رضي الله عنه اوفرمائیل چې په کوم عمر باندې چې الله ﷻ گناهگارو بندگانو ته پیغور وراوړولې دي هغه شپیته کاله دي او ابن عباس رضي الله عنه په یو روایت کښې د څلویښتو او په بل کښې دشپیتو کالو باره کښې فرمائیلي دي چې دا هغه عمر دې چې په کښې انسان باندې د الله ﷻ حجت تمامیږي. او انسان ته د هیڅ عذر کولو څه ځائې نه پاتې کیږي ، ابن کثیر رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنه دې دویم حدیث ته ترجیح ورکړې ده([2]).

د بیان شوي تقریر نه واضح شویدي چې د اوولسو ، اتلسو کالو او شپیتو کالو په روایتونو کښې هیڅ تعارض او ټکر نشته دې اګر چې انسان د اوولسو اتلسو کالو په عمر کښې ددې قابل جوړیږي چې په غور ، فکر کولو سره په حق او باطل کښې بیلتون اوکړي ، ځکه ددې عمر نه ده لره د شرعي احکامو مکلف ګرځولې شوې دې ، خو شپیتو کالو عمر دومره اوږد دې چې که په دې کښې هم چا حق او نه پیژندلو نو دهیڅ عذر ګنجائش نشته دې ، په ده باندې د الله ﷻ حجت په پوره طور سره تمام شو ، هم په دې وجه ددې امت عام عمرونه تراویاؤ کالو پورې مقرر دي ، لکه په یو حدیث پاك کښې راغلي دي چې :

﴿اعمار امتي ما بين الستين الى السبعين واقلهم من يجوز ذالك﴾ [یعنې زما د امت عمرونه به د شپیتو نه تر اویاؤ کالو پورې وي کم خلق به ددې نه زیات عمر بیا مومي]. [ترمذي ، ابن ماجه بحواله ابن کثیر]([3])

---

[1]) تفسير الألوسي: ج ١٦، ص ٤٠٩

[2]) تفسير ابن كثير: ج ٦، ص ٥٥٣، دی باب کښې یو مرفوع روایت موجود دے صحيح البخاري، كتاب الرقاق، باب من بلغ ستين سنة---الخ: ج ٢، ص ٩٥٠

[3]) تفسير ابن كثير: ج ٦، ص ٥٥٥، وجامع الترمذي، أبواب الدعوات، باب قبيل احاديث شتى من أبواب الدعوات، ج ٢، ص ١٩٥، وابن ماجة، كتاب الزهد، باب الأمل والأجل: ج ٢، ص ٣١٢

Scanned with Ca

په آخر د آیت مبارك کښې فرمائی چې ﴿وَجَآءَكُمُ النَّذِيْرُ ؕ﴾ دې کښې اشاره ده چې انسان ته د بلوغ د عمر په وخت دومره عقل او تمیز د الله ﷻ د طرفه ورکړې شی چې کم نه کم خپل خالق او مالك اوپیژنی او دهغه رضا لټول د خپل ژوند مقصد جوړ کړی ، دومره کار دپاره صرف انسانی عقل هم کافی وو خو الله ﷻ صرف دې لره کافی اونه ګرځولوبلکه ددې عقل د مدد دپاره یې نذیر هم اولیږل ، نذیر ویرونکی ته وائی ، په حقیقت کښې نذیر هغه څوك دې چې د خپل رحمت اوشفقت په سبب خپلو خلقو ته داسې څیزونو نه د ځان ساتلو هدایت کوی چې یا خو ئې هلاکوی یا ورته زیان رسوی او ددې څیزونو نه ئې ویروی مراد ددې نه د معلومې او مشهورې معنی په اعتبار سره پیغمبران ﷺ او ددوئ نائبان علماء دی حاصل د آیت مبارك دادې چې مونږ د حق او باطل پیژندلو دپاره عقل هم ورکړو ، دې سره مو خپل پیغمبران ﷺ هم اولیږل چې حق ته هدایت کوی او باطلو نه خلق اړوی .

او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما او امام جعفر باقر رحمه الله نه منقول دی چې د نذیر نه مراد د بوډا توب سپین ویښته دی[1] چې کله د ښکاره شی نو انسان ته ددې خبرې هدایت کوی چې اوس د رخصت وخت قریب راغلې دې ، دا قول هم روښی قول سره بې سمونه نه دې چې سپین ویښته دې هم د الله ﷻ د طرفه نذیر وی او انبیاء ﷺ او عالمان هم.

او حقیقت دادې چې انسانته د بلوغ نه پس چې څومره حالات ورته راپیښیږی د هغه چې خپل وجود او چاپیرچل کښې چې کوم تبدیلئ او انقلابات راځی هغه ټول د الله ﷻ د طرفه نذیر او د انسان خبرداره کوؤنکي دې .

| اِنَّ اللّٰهَ | عٰلِمُ | غَيْبِ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ؕ | اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ | بِذَاتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه الله | عالم دې | په پټو څیزونو دآسمانونو | او دزمکي | بیشکه هغه پوهیږی | په پټو رازونو |
| بیشکه الله تعالی ته د آسمانونو او زمکي ټولي پټي خبرې معلوم دی | اوهغه ته د زړونو | | | | |
| الصُّدُوْرِ ۝ | هُوَ الَّذِيْ | جَعَلَكُمْ | خَلٰٓئِفَ | فِي الْاَرْضِ ؕ | |
| دسینو باندې | هغه هغه ذات دې | چی جوړنې کړئ تاسو | خلیفګان | په زمکه کښې | |
| پټ رازونه معلوم دی | هغه داسې ذات دې چې تاسو ئې په زمکه باندې آباد کړئ | | | | |
| فَمَنْ | كَفَرَ | فَعَلَيْهِ | كُفْرُهٗ ؕ | وَلَا يَزِيْدُ الْكٰفِرِيْنَ | |
| پس هغه چا | چی کفر اوکړو | نو په هغه باندې ده | سزا دکفر دهغه | اونه زیاتوی کافرانو لره | |
| نوچا چې کفر غوره کړو | نو دهغه دکفر سزا به هم هغه ته ملاویږی | اود کافرانو کفر هغوی دپاره د الله په نیز | | | |
| كُفْرُهُمْ | عِنْدَ رَبِّهِمْ | اِلَّا | مَقْتًا ۚ | وَلَا يَزِيْدُ | الْكٰفِرِيْنَ |
| کفر دهغوئ | په نز درب دهغوئ | مګر | غضب [دالله] | اونه زیاتوی | کافرانو لره |
| د زیاتي غصې سبب ګرځی | اود کافرانو کفر هم د هغوی د تاوان سبب ګرځی | | | | |

[1] السنن الكبرى للبيهقي، رقم الحديث:٦٣١٣، وتفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٤، ص ٣٥٣، ٣٥٤

Scanned with Ca

كُفْرُهُمْ إِلَّا خَسَارًا ۝ قُلْ أَرَءَيْتُمْ شُرَكَاءَكُمُ الَّذِينَ

كفر دهغوئ | مگر | خساره [زيا نكارئ] | ورته اووايه | آيا ويني تاسو | شريكان ستاسو | هغه

......... [اني محبوبه] تپوس اوكړه چي آيا تاسو ته خپل هغه

تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ ۖ أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا مِنَ الْأَرْضِ

چي تاسو رابلئ هغوئ | بي دالله نه | اوښايئ ماته | څه څيز پيدا كړي دي هغوئ | دزمكي نه

شريكان معلوم دي چي تاسو ئي د الله تعالى نه سوا رابلئ راته اوښائي چي هغوئ په زمكه كښي

أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمَاوَاتِ ۚ أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا

يا دي هغوئ لره | شراكت | په آسمانونو كښي | يا وركړي دي مونږ دوئ له | څه ليكلي خط

څه پيدا كړي دي | يا په آسمانونو كښي د هغوئ څه شركت شته | يا [مونږ هغوئ ته څه كتاب

فَهُمْ عَلَىٰ بَيِّنَتٍ مِنْهُ ۚ بَلْ إِنْ يَعِدُ الظَّالِمُونَ بَعْضُهُمْ

چي دوي | په ښكاره دليل دي | دهغي نه | بلكه | نه كوي وعده | دا ظالمان | خيني ددوئ

وركړي دي | چي هغوئ دكتاب په دليل تينگ ولاړ دي | [داسي يو خبره هم] نه ده بلكه دا ظالمان يوبل

بَعْضًا إِلَّا غُرُورًا ۝ إِنَّ اللَّهَ يُمْسِكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ

دخينو سره | مگر ددوكي | بيشكه الله | ساتي په قرار | آسمانونه | او زمكه

سره د دروغو وعدې كوي | يقينا الله تعالى آسمانونه او زمكه دواړه د راپريوتو نه راتينگ كړي دي |

أَنْ تَزُولَا ۚ وَلَئِنْ زَالَتَا إِنْ أَمْسَكَهُمَا مِنْ أَحَدٍ

چي بي خايه [نه] شي | او كه بي خايه شو دواړه | نو اوبه نه ساتي دا دواړه په قرار | بل هيڅوك

.........او كه دوئ دخائي نه بي خايه شي [نو دالله تعالى نه سوا بل هيڅوك ئي نشي راتينگولي

مِنْ بَعْدِهِ ۚ إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا ۝

روستو دالله نه | بيشكه هغه | دي | صبر ناك | بښونكي |

.........الله تعالى ډير بردبار او بښونكي دي |

## آسان ترجمه قرآن

بے شكه الله تعالى د آسمانونو او زمكي د پټو څيزونو علم لري، بے شكه هغه په سينه كښ پټي كړي شوي خبره باندې ښه پوهيږي هم هغه دې، چه تاسو ئې په زمكه كښ (د پخوانو خلقو) خليفه گان جوړ كړئ، اوس چه كوم سړې كفر كوي، نو دهغه د كفر وبال به په هغه باندې وي، او د كافرانو دپاره دهغوي كفر د هغوي د پروردگار په نزد د غضب نه سوا هيڅ څيز نه زياتوي، او كافرانو ته دهغوي د كفر نه سوا د نقصان نه هيڅ څيز كښ ترقي نه حاصليږي، (اے پيغمبره) دوی ته اووايه چه: خبر را كړئ ماته، چه تاسو د الله تعالى نه سوا د كومو شريكانو عبادت كوئ، لږ ماته اوښايئ، چه هغوی د زمكي كومه حصه پيدا كړې ده؟ يا د آسمانونو (په پيدائش) كښ دهغوی څه شركت دې؟ يا بيا مونږ دوی ته څه

کتاب ورکړې دې، چه دهغې په واضحه هدایت باندې دا خلق قائم دی؟ نه. بلکه دا ظالمان خلق د یو بل سره صرف د دهوکې وعدې کوی، حقیقت دادې، چه الله تعالیٰ آسمانونو او زمکې لره راتهینګ کړې دی، چه هغه د خپل ځائې نه اونه خوزی، او که هغه اوخوزی، نو د هغه نه ماسوا هیڅوک نشته. چه هغې لره راتهینګ کړی. یقیناً الله تعالیٰ ډیر زیات بُردبار، او ډیر بخونکې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿اِنَّ اللّٰهَ عٰلِمُ غَيْبِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ بیشکه الله تعالیٰ] دې [پوهیدونکې داسمانونو اومزکې په پټو څیزونو ﴿اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ﴾ بیشکه هغه پوه دې دزړه په خبرو] پس علمی کمال خو دهغه داسې دې اوکمال عملی کوم چه په قدرت اونعمت دواړو دلالت کوی دادې چه ﴿هُوَ الَّذِيْ جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ فِي الْاَرْضِ﴾ [هغه داسې دې چاچه تاسولره په مزکه کښې اباد کړل] اوداحساناتو ددې دلیلو نو مقتضا دا وه چه استدلالاً او شکراً توحید او اطاعت اختیارکړې وې مګر خنې ددې خلاف په کفر او عداوت اصرا کوؤنکی دی [پس] دبل چا به څه وران کړی بلکه ﴿فَمَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهٗ﴾ کوم سړې چه کفر کوی دهغه دکفر وبال به په هغه پریوځی او] ددې وبال تفصیل دادې چه ﴿وَلَا يَزِيْدُ الْكٰفِرِيْنَ كُفْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ اِلَّا مَقْتًا﴾ دکافرانو دپاره دهغوی کفر د هغوی دپروردګار په نزد بس دناراضتیا زیاتولو باعث وی] کوم چه په دنیاکښې متحقق کیږی ﴿وَلَا يَزِيْدُ الْكٰفِرِيْنَ كُفْرُهُمْ اِلَّا خَسَارًا﴾ او] دارنګ [دکافرانو دپاره دهغوی کفر] په اخرت کښې [به دخسارې زیاتیدو باعث وی] چه هغه حرمان دې دجنت نه او قیدی جوړیدل دی دجهنم او دوی چه کوم په کفر اوشرك مصردی [ته] دوی ته لږ شان داخو ﴿قُلْ اَرَءَيْتُمْ شُرَكَآءَكُمُ الَّذِيْنَ﴾ [اووایه چه تاسودخپلو مقرر کړو شریکانو حال خو وښایئ: ﴿تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ دکومو چه تاسودالله تعالی نه سوا عبادت کوئ رابلی یئ یعنی ﴿اَرُوْنِيْ مَاذَا خَلَقُوْا مِنَ الْاَرْضِ﴾ ماته داوښایئ چه دوی دمزکې کومه حصه جوړه کړې ده ﴿اَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمٰوٰتِ﴾ یا ددوی په اسمان] جوړولو [کښې څه شرکت شته؟] چه په عقلی دلیل سره ددوی دعبادت استحقاق ثابت شی ﴿اَمْ اٰتَيْنٰهُمْ كِتٰبًا﴾ [یا مونږدوی] کافرانو [لره څه کتاب ورکړې دې] چه په هغې کښې دشرك اعتقاد درست لیکلې وی ﴿فَهُمْ عَلٰى بَيِّنَتٍ مِّنْهُ﴾ [چه دوی دهغې په دلیل قائم وی] او په دې نقل دلیل سره خپله دعوی ثابته کړی اصل دادې چه نه عقلی دلیل شته اونه نقلی دلیل شته ﴿بَلْ اِنْ يَّعِدُ الظّٰلِمُوْنَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا اِلَّا غُرُوْرًا﴾ [بلکه دا ظالمان دیوبل سره محض ددوکې دوعدوکولو عادت لری] چه د دوی مشرانو دوی ته بې سنده غلطه خبره ښودلې ده چه [هٰٓؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ] ([1]) حال دادې چه په واقع کښې هغه محض بې اختیاره دی پس هغوی مستحق دعبادت نه شی کیدې البته مختار مطلق الله تعالی دې نو هغه قابل دعبادت دې چنانچه دالله تعالی دمختار والی او دنورو دغیر مختار والی ددلیلونو نه دنمونې په طور یوه لنډه شان خبره بیانوی چه وګورئ ﴿اِنَّ اللّٰهَ يُمْسِكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ داخو [یقینی خبره ده چه الله تعالی اسمانونو اومزکې لره] په خپل قدرت سره [تهینګ کړی دی ﴿اَنْ تَزُوْلَا﴾ چه دا موجوده حالت پرې نه ږدی ﴿وَلَئِنْ﴾ اوکه] بالفرض ﴿زَالَتَآ اِنْ اَمْسَكَهُمَا مِنْ اَحَدٍ مِّنْۢ بَعْدِهٖ﴾ [دغه موجوده لره پریږدی هم نو بیا د الله تعالی نه سوا بل څوک

[1] ترجمه: دوی الله تعالیٰ ته زمونږه سفارش کونکی دی.

به دي لره تينګک هم نه کړي شي] هر کله چه ددوی نه دپيداشوی عالم حفاظت هم نه شی کيدي نو عالم لره په وجود کښې دراوړو او ايجاد کولو ددوی نه څه توقع کيدې شي نو بيا مستحق والي د عبادت څنګه او سره دبطلان دشرك كولو مقتضى دا وه چه دوی ته اوس سزا ورکړې شي مګر چونکه ﴿إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا﴾ [هغه حليم] دې په دې وجه مهلت ئې ورکړې دې اوکه په دې مهلت کښې داخلق حق طرف ته راشي نو چونکه هغه ﴿غَفُورًا﴾ [غفور] هم [دې] په دې وجه ټول تير شرارتونه به د دوی معاف کړې شي.

## معارف او مسائل

﴿هُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ فِي الْأَرْضِ﴾ خلائف د خليفة جمع ده ، معنى ئې نائب او قائمقام ده ، مراد دادې چې مونږ انسانان يو دبل پسې دزمکې مکان ، او جائيداد وغيره مالکان جوړ کړي دي. يو دبل په ځائې راځی ، په دې کښې الله ﷻ ته د رجوع کولو لوئې عبرت دې ، او دامعنى هم کيدې شی چې دا خطاب امت محمديه ته وی ، چې مونږ دپخوانو امتونو څخه روستو تاسو دخليفه په حيث مالکان او تصرف کوونکي جوړ کړی يئ ، نو ستاسو فرض دی چې خپل ځان دپاره د وړاندې تير شوؤ امتونو د حالاتو څخه عبرت حاصل کړئی د عمر قيمتى کړئ په غفلت کښې مه تيروئی.

﴿إِنَّ اللَّهَ يُمْسِكُ السَّمَاوَاتِ﴾ د آسمانونو د کلك لرلو دا مطلب نه دې چې ددې حرکت مو بند کړو بلکه مطلب دادې چې په خپلو ځايونو مو کلك ساتلی دی. څنګه چې د لفظ ﴿أَنْ تَزُولَا﴾ څخه ثابتيږی څکه په دې کښې د آسمان د حرکت کولو يا نه کولو يو طرف باندې هم دليل نشته.

وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ

[اوقسمونه به خوړل دوئ په الله باندې

| اودې کافرانو به په الله تعالى

جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ لَئِنْ جَآءَهُمْ نَذِيْرٌ لَّيَكُوْنُنَّ

په سختو قسمونو خپلو سره | که راغلې وې دوئ ته | يو خبردارونکې | نو خامخا به وې دوئ |

باندې ډير سخت قسمونه خوړل| که چرته دوی ته څوک ويرونکي راغلو| نو مونږ

اَهْدٰى مِنْ اِحْدَى الْاُمَمِ ۚ فَلَمَّا جَآءَهُمْ نَذِيْرٌ

زيات په صحيح لار | ديو دپخوانو امتونو نه | پس هر كله چې | راغې دوئ ته | خبردارونکې |

به د بل هر امت نه زيات په هدايت شو| ............خو څه وخت چې ورته ويرونکي راغلو

مَّا زَادَهُمْ اِلَّا نُفُوْرَا ۙ اِسْتِكْبَارًا فِى الْاَرْضِ

نو زيات ئې نه کړو دوئ لره | مګر په نفرت کښې | په سبب دتکبر کولو | په زمکه کښې |

نودې سره ددوئ نفرت نور هم زيات شو|........ چې په دنيا کښې ئې خپل ځان غټ او ګڼرلو او

وَمَكْرَ السَّيِّئِ ۗ وَلَا يَحِيْقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ اِلَّا بِاَهْلِهٖ ۗ

او په سبب دتدبير خراب | اونه چاپيريږي | تدبير خراب | مګر | په اهل خپل |

خراب خراب سازشونه ئې جوړ کړل | اود خرابو سازشونو نقصان پخپله سازشګرو ته رسيږی

فَهَلْ يَنظُرُونَ | إِلَّا | سُنَّتَ الْأَوَّلِينَ ۚ | فَلَن تَجِدَ

پس نه کوی انتظار دوی | مگر | دطریقې دړومبنو خلقو | پس هر گز به ته بیا نه مومی |

نوآیا دا خلق د مخکنو خلقو د انجام انتظار کوی؟ | نو ته به دالله تعالی په قانون کښې څه بدلی

لِسُنَّتِ اللَّهِ | تَبْدِيلًا ۖ | وَلَن تَجِدَ | لِسُنَّتِ اللَّهِ | تَحْوِيلًا

طریقې دالله لره | څه تبدیلی | او بیا به نه مومې ته | طریقې دالله لره | اوړیدل دلارې مقررې نه |

بیا نه مومی | او د الله تعالی قانون به هیڅکله اوړیدونکې بیا نه مومې

أَوَلَمْ يَسِيرُوا | فِي الْأَرْضِ | فَيَنظُرُوا | كَيْفَ كَانَ | عَاقِبَةُ | الَّذِينَ

آیا نه گرځی دوی | په زمکه کښې | چې اوگوری | څرنگې وو | انجام | دهغه کسانو |

آیا دوی د زمکې په مخ تگ راتگ نه کوی | چې دا اوگوری چې دپخوانو خلقو

مِن قَبْلِهِمْ | وَكَانُوا | أَشَدَّ | مِنْهُمْ | قُوَّةً ۚ | وَمَا كَانَ

چې مخکښې وو ددوی نه | او وو هغوی | زیات سخت | ددوی نه | په قوت کښې | اونه دې

انجام څه شو | ..........حال دا چې هغوی ددې خلقو نه زیات زرآور وو | او داسې څوک نشته

اللَّهُ | لِيُعْجِزَهُ | مِن شَيْءٍ | فِي السَّمَاوَاتِ | وَلَا فِي الْأَرْضِ ۚ | إِنَّهُ كَانَ

الله | چې عاجزه کړی هغه لره | هیڅ څیز | په آسمانونو کښې | اونه په زمکه کښې | بیشکه هغه دې

چې هغې دې الله لره عاجزه کړې شی | نه په اسمانونو کښې او نه په زمکه کښې | هغه

عَلِيمًا | قَدِيرًا | وَلَوْ | يُؤَاخِذُ اللَّهُ | النَّاسَ | بِمَا | كَسَبُوا

په هر څه عالم | قادر | او که چرې | نیولې الله | خلق | په سبب دهغې | چې دوی نې کوی

په هر څه پوهه او صاحب د قدرت دې | او که چرته الله تعالی د [گناهونو

مَا تَرَكَ | عَلَىٰ ظَهْرِهَا | مِن دَابَّةٍ | وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمْ

نه به وه پرېښودې هغه | په شا دهغې | څه زنده سرې | ولیکن روستو کوی دوی |

په سبب خلق نیول | ............ نو د زمکې په مخ به هیڅ ساه لرونکې باقی پاتې شوې نه وو | خو

إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ۖ | فَإِذَا | جَاءَ | أَجَلُهُمْ | فَإِنَّ اللَّهَ | كَانَ

نیتې | مقررې ته | پس هر کله چې | راشی | نیته ددوی | پس بیشکه الله | دې

الله تعالی ورته تریو نیتې پورې مهلت ورکوی | نو څه وخت چې تاکلې وخت راشی | نو الله تعالی

بِعِبَادِهِ | بَصِيرًا

په بندگانو خپلو باندې | لیدونکې |

دبندگانو عملونه وینی گوری [بدله به ورکړی]

## آسان ترجمه قرآن

او دوئ مخکښې قسمونه خوړلې وو، په الله تعالی باندې سخت قسمونه، چه که دوئ ته څوک ویرونکې (پیغمبر) راغلو نو دوئ به د هر یو امت نه زیات هدایت قبلونکې وی لیکن کله چه دوی ته یو ویرونکې

Scanned with

راغلو، نو دهغه په راتلو د دوی په حالت کښې هیڅ ترقي ونه شوه، سوا ددې نه چه دوی (د حقې لارې نه) نور هم زیات په تیښته شو ځکه چه دوی ته په زمکه باندې د خپلې لویئ غرور وو، او دوئ (د حق په مخالفت کښې) لوئې لوئې چلونه شروع کړل حالانکه بد چالونه بل چاته نه، خپله چلونکو لره کیږي. اوس دا خلق د هغې دستور نه سوا د څه خبرې انتظار کوي چه په هغې باندې مخکښنو خلقو سره عمل کړې شوې وو؟ (که دا خبره ده) نو تاسو به د الله تعالیٰ مقرر شوي دستور کښې هیڅ تبدیلي اونه مومئ، او نه به اوموم‌ئ تاسو د الله تعالیٰ مقرر شوي دستور لره چرته واپس کیدل. او آیا دې خلقو په زمکه کښې چرته سفر نه دې کړې، چه دوی لیدلې وې، چه کوم خلق ددوی نه مخکښې تیر شوې دی، دهغوی انجام څرنګه شو، حالانکه هغوی په طاقت کښې ددوی نه ډیر زیات مضبوط وو؟ او الله تعالیٰ داسې نه دې، چه په اسمانونو یا زمکه کښې څه څیز هغه لره عاجز کړی، بے شکه هغه د علم هم مالک دې، او د قدرت مالک هم دې. او که الله تعالیٰ د خلقو په هره ګناه باندې هغوی رانیولې، نو د زمکې په شا باندې به ئې هیڅ یو ګرځیدونکې نه وو پریخې لیکن هغه یو مقرر مدت پورې دوی ته مهلت ورکوی. بیا چه کله ددوی مقرر وخت راشی، نو الله تعالیٰ خپلو بندګانو لره لیدونکې دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ﴾ [او دي کافرانو] قریشو وړاندې دبعثت دنبی کریم ﷺ نه [لوئ زور دار قسمونه خوړلی وو﴿لَئِن جَاءَهُمْ نَذِيرٌ﴾ چه که دوی ته] یعنی مونږ ته [څوك ويرونكې] یعنی پیغمبر ﷺ [راغې ﴿لَيَكُونُنَّ أَهْدَىٰ مِنْ إِحْدَى الْأُمَمِ﴾نو هغه ] یعنی مونږ به [د هر امت نه زیات هدایت لره قبلوونکی شو] یعنی دیهودو نصاراؤ وغیره په شان به مونږ تکذیب نه کوو پس اول خو به ئې داسې قسمونه خوړل ﴿فَلَمَّا جَاءَهُمْ نَذِيرٌ﴾[بیا چه کله دوی ته یو پیغمبر] یعنی رسول الله ﷺ [راغې ﴿مَّا زَادَهُمْ إِلَّا نُفُورًا﴾ نو بس د دوی نفرت نور زیات شو﴿اسْتِكْبَارًا فِي الْأَرْضِ﴾ په دنیا کښې دخان لوئ ګڼړلو په وجه سره او] صرف په نفرت صبر نه شو بلکه ﴿وَمَكْرَ السَّيِّئِ﴾[د دوی ناکاره تد بیرونولره] هم ترقی وشوه یعنی دتکبر په وجه د دوی ﷺ دتابعداری نه خو به ورله عار ورتلو مګر داسې ئې هم ونه کړل چه نه ئې تابعداری کولې اونه ئې ورته ازار رسولې بلکه دوی ﷺ ته دازار رسولو په فکر کښې شول چنانچه هروخت دهغوی په دې کښې لګیدل معلوم او مشهور دی [او] دوی چه کوم زمونږ درسول الله ﷺ دپاره ناکاره تد بیرونه کوی په خپله خپل نقصان کوی ځکه چه ﴿وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ﴾[دبدو تد بیرونو] حقیقی [وبال په دغو تد بیر کوونکو پریوځی] اګر چه په ظاهره چرې دغه سړی ته هم ضرر ورسیږی کوم ته چه ضرر رسول غواړی لیکن هغه ضرر دنیوی دی پخلاف د ظالم ضرر رسان نه چه په هغه به اخروی ضرر او وبال پریوځی او دنیوی ضرر د اوخروی ضرر په وړاند هیڅ شې نه دې پس ددې حقیقی ضرر په اعتبار سره حصر بالکل واقعی دې [پس] دا چه ستاپه دښمنئ او ضررسانئ باندې مصر دی نو﴿فَهَلْ﴾[ایادا] دخپل خان سرهٔ هم دالله تعالی ﴿يَنظُرُونَ إِلَّا سُنَّتَ الْأَوَّلِينَ﴾ [د هغه دستور منتظردی کوم چه د وړاندې] کافرانو [خلقو سره شوې دې] یعنی عذاب او هلاکت [پس] واقعی ددوی دپاره هم داسې کیدل دی ځکه چه ﴿فَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَبْدِيلًا﴾ [ته به دالله تعالیٰ] دې [دستور لره چرې بدلیدونکې ونه مومې] چه په دوی دعذاب په

Scanned with Ca

خای عنایت وکړې شی [او] دغه شان ﴿وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَحْوِيْلًا﴾ [ته به د الله تعالى] دې [دستور لره چرې منتقل شوې ونه مومې] چه د دوی په ځای به نورو ته چه د دوی په شان نه وی عذاب وشی مطلب دادې چه دالله تعالى وعده ده چه کافرانو لره به عذاب وی خواه په دنيا کښې هم خواه صرف په اخرت کښې او د الله تعالى وعده همیشه رښتونې وی پس نه دا احتمال شته چه دوی لره به عذاب نه وی او نه دا احتمال شته چه نوربې ګناه به په عذاب شی مقصود ددې تکرار نه تاکید دې دواقع کیدو دعذاب [او] دوی چه کوم دا ګنړی چه کفر موجب دعذاب نه دې نو ددوی لویه غلطی ده ﴿اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ﴾ [ایا داخلق په مزکه کښې] مثلا دشام اویمن په سفرونو کښې دعاد او ثمود اوقوم دلوط عليه السلام په کلوکښې [ګرځيدلی نه دی ﴿فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ چه ليدلی کتلی ئې وی چه کوم] منکران [خلق د دوی نه وړاند تيرشوی دی دهغوی] اخری [انجام] ددې تکذيب په سبب [څنګه شو] چه په عذاب شول ﴿] وَكَانُوْا اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً﴾ [حال دادې چه هغوی په قوت کښې د دوی نه زيات وو او] په چاکښې چه خواه هرڅومره قوت وی ليکن ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعْجِزَهٗ مِنْ شَىْءٍ فِى السَّمٰوٰتِ وَلَا فِى الْاَرْضِ﴾ [خدای داسې نه دی چه څه شې قوت والا [دۀ لره عاجزه کړی نه په اسمان کښې او نه په مزکه کښې] ځکه چه ﴿اِنَّهٗ كَانَ عَلِيْمًا قَدِيْرًا﴾ [هغه لوئ علم والا] او [لوئ قدرت والا دی] پس په علم سره دخپلې هرې ارادې د نافذکولو طريقه پيژنی او په خپل قدرت سره دا نافذ کولې شی او بل څوك داسې شته نه پس ده لره کوم شې عاجزه کولې شی ؟ [او] که دوی په دې دوکه کښې وی چه که مونږ له عذاب وې نو شوې به وو او ددې نه په خپل کفر او شرك دښه والی دليل ګڼی نو داهم د دوی غلطی ده ځکه چه په مقتضا دحکمت د دوی دپاره فوری عذاب تجويز نه کړې شو ورنه ﴿وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوْا﴾ [که الله تعالى] په دې [خلقو د دوی د] کفريه [عملونو په سبب] فورا [نيولې ﴿مَا تَرَكَ عَلٰى ظَهْرِهَا مِنْ دَآبَّةٍ﴾ نو په مخ دمزکې به يو دنفس خاوند پاتې نه وو] ځکه چه کفار خو به دکفر په سبب هلاکيدل او ايماندار به په وجه دکموالی په دنيا کښې نه شوپاتې کولې ځکه چه نظام عالم په مقتضاء دحکمت دمجموعې سره وابسته دې او داضروری نه ده چه هغوی په دې عذاب سره هلاك شوی وې اونور مخلوقات په دې وجه چه مقصود دهغوی دتخليق نه انتفاع دبنيادم ده هرکله چه دوی نه وو نو هغه به هم نه وو ﴿وَلٰكِنْ يُّؤَخِّرُهُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ [ليکن الله تعالى دوی لره ديو معين ميعاد] يعنی قيامت پورې مهلت ورکوی ﴿فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ﴾ پس هرکله چه د دوی هغه ميعاد راشی] نو هغه وخت به ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِعِبَادِهٖ بَصِيْرًا﴾ [الله تعالى خپلو بندګانو لره په خپله وګوری] يعنی په دوی کښې چه کوم کفار وی هغوی له به سزا ورکړی

## معارف او مسائل

﴿وَلَا يَحِيْقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ اِلَّا بِاَهْلِهٖ﴾ د ﴿لَا يَحِيْقُ﴾ معنی ﴿لا يحيط﴾ يا ﴿لايصيب﴾ ده ، حاصل ئې دا دې چې د خراب چل وبال په بل چا نه پريوزی بلکه هم په دغه کوونکی پريوزی . يعنی د بل چا خرابی غوښتونکې هم پخپله خرابيږی .

په دې باندې دا شبه کيږی چې اکثر د خراب چل کوونکو خلقو چل کار اوکړی ، چا ته چې زيان رسول وی ، هغوئ ته پرې زيان رسيږی . نو ددې يو جواب د تفسير په خلاصه کښې داسې

تیر شو چې ددهٔ د لاس رسیدلې زیان ددنیا دې چې دهغې په بدل کښې ده ته رسیدونکې زیان بهٔ د آخرت وی چې سخت به هم وی او همیشه دپاره هم ، ځکه ددې په مقابله کښې دغه ددهٔ رسولې زیان ددنیا د نیشت برابر شو.

ددې بل جواب ځینې نور حضراتو دا هم ورکړې دې چې د یو بیگناه خلاف چل کوونکی او پرې دظلم کوونکی وبال په ظالم باندې اکثر په دنیا کښې پریوزی. محمد بن کعب قرظی رحمه الله فرمائیلی دی چې درې کارونه داسې دی چې په دنیا کښې هم دهغې کوونکی د عذاب او وبال څخه نشی بچ کیدې. یو د بیگناه باره کښې خراب چل کول او ورته زیان رسول دویم عام ، ظلم ، دریم وعده ماتول .[ابن کثیر](١)

خصوصا چې په چا داسې کس اوکړې شی چې بې اسرې اوبې وسه وی ، دبدل اخستو وس ئې نه رسی یا سره دوسه په هغې صبر اوکړی اوبدل وانخلی ، نو په دهٔ باندې ظلم کوونکې څوک ئې ددې د وبال څخه بچ کیدونکې نه دې لیدلې شوې.

بس تجربه کردیم درین دیر مکافات     با درد کشان هر که درافتاد برافتاد

[ډیره تجربه مې اوکړه چې په دې دنیا کښې چې چا په یو بې اسرې اوبې وسه بنده باندې زور زیاتې اوکړو نو هغه پخپله خراب شوې دې] حاصل ئې دا شو چې په دې آیت مبارک کښې دا حصر د اکثری قاعدې په لحاظ سره شوې دی کلی نه دې . [والله اعلم]

تمت سورة الفاطر بحمد الله

فی تاسع صفر ۱۳۹۲ هجری یوم السبت

.....................

١) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٦، ص ٥٥٩، وتفسير الدر المنثور: ج ٨، ص م٢٨٧

Scanned with Ca

| اٰیاتونه | سورة یٰس مکیة وهي ثلاث وثمانون اٰیة وخمس رکوعات | رکوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ي ناشر | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکي دي | ۵ |

يٰسٓ ۚ ﴿۱﴾ وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِيْمِ ﴿۲﴾ اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۳﴾

یاسین | قسم دي په قرآن حکیم باندي | بیشکه ته | خامخا د رسولانو نه ئي |

یاسین په قران پاك باندې قسم دی | چې د حکمتونو نه ډک دی | ته پیغمبرانو کښې یو [پیغمبر] یې

عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۴﴾ تَنْزِيْلَ الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ ﴿۵﴾ لِتُنْذِرَ

په لاره نیغه باندې ئي | نازل شوی دی | دغالب او رحیم دطرفنه | دپاره د دې چې ته اویروې

[دهدایت] په نیغه لار ولاړ یې | [داقران] دغالب او مهربان [الله تعالی] طرفنه نازل شوی دی | چې

قَوْمًا مَّآ اُنْذِرَ اٰبَآؤُهُمْ فَهُمْ غٰفِلُوْنَ ﴿۶﴾

یو داسې قوم | چې نه دی یرولی شوی | پلاران ددوئ | پس دوئ | ناخبره دی |

ته پرې هغه خلق [دعذاب نه] اوویروې | چې د هغوئ پلار نیکه چرې ویرولی شوی نه وو انو خکه بې خبره پاتې

لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلٰٓى اَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۷﴾

په تحقیق ثابته شوی ده خبره د عذاب | په زیاتو خلقو ددوئ باندې | پس دوئ | ایمان نه راوړی |

دی | په دوئ کښې په زیاتو خلقو [دتقدیر] وینا ثابته شوې ده | نو اوس دوئ ایمان نه راوړی

اِنَّا جَعَلْنَا فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ اَغْلٰلًا فَهِيَ اِلَى الْاَذْقَانِ فَهُمْ

بیشکه اچولی دی مونږه | په ځتونو ددوئ کښی | پټۍ | پس هغه | دزنو پورې [رسیدلی دی] | پس دوئ

مونږ ددوئ ځتونو ته داسې طوقونه اچولی دی | چې تر زنو پورې ئې راختلی دی | په دې

مُّقْمَحُوْنَ ﴿۸﴾ وَجَعَلْنَا مِنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ سَدًّا وَّمِنْ خَلْفِهِمْ

اوچت کړې شوی دی | او جوړ کړې دې مونږه | مخکښی ددوئ نه | دیوال | او روستو ددوئ نه

وجه ددوئ سرونه پورته طرفته اوچت پاتې شوی دی | او مونږ یو دیوال ددوئ مخې طرفته اودرولې دې

سَدًّا فَاَغْشَيْنٰهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ ﴿۹﴾ وَسَوَآءٌ عَلَيْهِمْ

دیوال | پس پټ کړی دی مونږه دوئ | پس دوئ | هیڅ نه وینی | او یو شان ده | په حق ددوئ کښی

او بل دیوال ددوئ شا طرف ته دې | بیا د پورته نه مو پټ کړی دی | نو اوړاندې روستو | هیڅ نه وینی | او ددوئ پحقله

ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰﴾ اِنَّمَا تُنْذِرُ مَنِ

که یروې ته دوئ | او که نه یروې ته دوئ | دوئ ایمان نه راوړی | بیشکه ته یرولې شې | هغه څوك

دواړه خبرې برابر دی | که ته ئې ویروې او که نه ئې ویروې | خو دوئ ایمان نه راوړی | [ائې نبی] ته خو بس

Scanned with Ca

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اتَّبَعَ | الذِّكْرَ | وَخَشِيَ | الرَّحْمٰنَ | بِالْغَيْبِ ۚ | فَبَشِّرْهُ |
| چې پیروي کوي | دنصیحت | او ویریږي | درحمان نه | بې لیدو | پس زیرې ورکړه هغه ته |
| هغه څوک ویروې | چې نصیحت پسې روانیږي | او درحم کوونکي الله تعالی نه بې لیدو کتو ویره کوي | | | |
| بِمَغْفِرَةٍ | وَّاَجْرٍ كَرِيْمٍ ⑪ | اِنَّا نَحْنُ | نُحْيِ الْمَوْتٰى | وَنَكْتُبُ | |
| په ښښنې سره | او په اجر عزتمند سره | بیشکه مونږه | ژوندي کوو مړي | او لیکو مونږه | |
| نوداسې سړو ته د بخښنې او ښه اجر زیرې ورکړه | مونږ به ټول مړي بیاراژوندي کوو | اوهغه ټول عملونه | | | |
| مَا قَدَّمُوْا | وَاٰثَارَهُمْ ط | وَكُلَّ شَيْءٍ | اَحْصَيْنٰهُ | | |
| هغه چې مخکښې لیږلي دي دوئ | اوروستو عملونه ددوئ | او هر څيز | شمارلي یعنی درج کړي دي مونږه | | |
| لیکو | کوم چې دوئ دخان نه وړاندې لیږي | او کوم چې روستو شاته پاتې کیږي | او مونږ هر یو څيز په | | |
| فِيْٓ اِمَامٍ مُّبِيْنٍ ⑫ ع | | | | | |
| په کتاب واضحه کښې | | | | | |
| ښکاره کتاب کښې محفوظ ساتلي دي | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

یٰس. د حکمت نه ډک قرآن باندې قسم. ته یقیناً د پیغمبرانو نه ئې. بالکل په نیغې لارې باندې. دا قرآن د هغې ذات د طرف نه نازلولې شی. چه دهغه اقتدار هم کامل دې. او دهغه رحمت هم کامل دې. دې دپاره چه ته هغه خلقو لره خبردار کړې، چه دهغوی پلار نیکه لره پخوا خبردار کړې شوې نه وو ددې وجې نه هغوی په غفلت کښې پراته دی حقیقت دادې، چه په دوی کښې اکثرو خلقو باره کښې فیصله پوره شوې ده چه هغوی ایمان نه راوړی یقیناً مونږ. دهغوی په څټونو کښې طوقونه اچولې دی، چه زنو پورې رارسیدلې دی، او ددې وجې نه دهغوی سرونه پورته پاتې شوې دی او مونږ یو دیوال ددوی مخکښې اودرولې دې، او یو دیوال مو ددوی شاته اودرولې دې او دغه شان مو دوی د هر طرف نه راګیر کړې دی، چه دهغې د وجې نه ددوی په پوهه کښې هیڅ نه راځی، او د دوی دپاره دواړه خبرې برابر دی. که ته دوی لره خبردار وې، یا نه خبردار وې، دوئ ایمان نه راوړی. ته خو صرف هغه سړی لره خبردار کولې شې، چه په نصیحت باندې عمل کوی، او بغیر د لیدلو نه د رحمٰن نه ویریږی نو داسې سړی ته د مغفرت او عزت مند اجر زیرې واوروه. یقیناً هم مونږ به مړو لره ژوندی کوو، او کوم عملونه چه هغوی مخکښې لیږلې دی، مونږ هغې لره هم لیکو، او د هغوی د عملونو چه کوم اثرات دی. هغې لره هم او مونږ په یو واضحه کتاب کښې هر هر څیز راګیر کړې دې.

## خلاصه تفسیر [1]

﴿یٰسٓ﴾[یسٓ] ددې مراد الله تعالى ته معلوم دې ﴿وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِيْمِ﴾[قسم دې په قرآن حكمت والاچه ﴿اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ﴾بيشكه ته دپيغمبرانونه يې] او ﴿عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾[په نيغه لاره يې] چه په دې كښې څوك ستا پيروي وكړي الله تعالى ته به ورسيږي نه لكه چه كفار وائي [لست مرسلا] يعني ته رسول نه يې ياچه وئيل به ئې [بل افتره] يعني دهٔ په خپله جوړكړې دې چه ددې دپاره ګمراه كيدل لازم دي او قرآن دهدايت دعاموالي سره ستا درسالت او نبوت دليل هم دې څكه چه ﴿تَنْزِيْلَ الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ﴾[داقرآن دالله تعالى زبردست مهربان دطرف نه نازل كړې شوې دې] او ته پيغمبر څكه جوړ شوې يې ﴿لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اُنْذِرَ اٰبَآؤُهُمْ﴾ [چه ته] اولا[داسې خلقو لره] دا خدائ د عذاب نه [وويروې دكومو چه پلار نيكه] نزدې دچا رسول په ذريعه سره [نه دي ويرولې شوى﴿فَهُمْ غٰفِلُوْنَ﴾ پس ددې نه دوى بې خبره دى] څكه چه اګر چه په عربو كښې څينې مضامين دتيرو رسولانو دشريعتونو نه نقل هم وو لكه چه په دې ايت كښې دى؟ [امرجاءهم مالم يات اباءهم الاولين] يعني ايا قرآن دوى ته څه داسې شې راوړې دې كوم چه د دوى پلارانوته نه وو راغلې يعني دتوحيد دعوت څه نوې شې نه دې دا هميشه د دوى پلارانو نيكونو كښې هم جاري پاتې شوې دې مګر بيا هم دنبي په راتلو سره چه څومره كيدې شي محض ددې څنې احكام او اخبار نقل كولو اورسيدو سره هر كله چه دغه ناتمام او متغير شوى هم وى داسې خبرداري نه شي كيدې او اولا د دوى ﷺ ويرول قريشولره ووپه دې وجه ئې دلته د دوى ذكر وفرمائيلوبيا عاموخلقوته هم دوى ﷺ دعوت اوفرمائيلوڅكه چه د نبي كريم ﷺ بعثت عام دې او سره ستا درسالت دصحيحوالي او دصدق دقرآن داخلق چه نه مني ته ددې غم مه كوه څكه چه ﴿لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلٰٓى اَكْثَرِهِمْ﴾ [په دوى كښې په اكثرو خلقو] تقديرى [بس داخبره ثابته شوې ده] هغه خبره داده چه دوى به هدايت نه مومى ﴿فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾[بس داخلق به هركز ايمان رانه وړى] داحال ددوى داكثرو وو او دځنوپه قسمت كښې ايمان هم وو هغوى ايمان هم راوړو او ددې خلقو مثال دايمان نه په لرې والى كښې داسې شو چه ګويا ﴿اِنَّا جَعَلْنَا فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ اَغْلٰلًا﴾[مونږ دوى په څټونو كښې] درانه درانه [طوقونه اچولي دى﴿فَهِيَ اِلَى الْاَذْقَانِ﴾ بياد دوى زنوته] ارم شوى [دى ﴿فَهُمْ مُّقْمَحُوْنَ﴾ چه په دې سره ددوى سرونه بره نبتي دى] يعني پورته پاتې شوى دى ښكته كيدې نه شي خواه په دې وجه چه په طوق كښې دزنې لاندې كوم ځاې دې په هغې كښې څه ميخ وغيره داسې وى چه زنې ته ارم شوې وى يادطوق كړې داسې وى چه زنې ته ارمې وى په هرحال په دواړه شانه دوى دلاړې ليدونه محرومه وى [او] دا رنګ ددوى مثال دايمان نه په لرې والى كښې داسې شوې دې چه ګويا ﴿وَجَعَلْنَا مِنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ سَدًّا﴾[مونږ يو ديوال دوى ته مخې ته وهلې دې ﴿وَّمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا﴾اويوديوال دوى ته شاته ﴿فَاَغْشَيْنٰهُمْ﴾چه په

[1] نن چې څه دسورة ياسين تفسيرشروع كوم دصفردمياشتې نهم تاريخ دې، دصفردمياشتې هم په دې تاريخ بانديې زما والد محترم مولانا محمد ياسين صاحب رحمه الله وفات شوې وو. ددې سورة مبارك نوم سره دهغه د نوم يوشان والې او د وفات تاريخ سره ماته د هغوئ ياد راتازه كوى. څوك چې ددې تفسير مطالعه كوى هغوئ دې احقر او زما مور پلار دپاره د مغفرت دعاګانې اوكړى ، اوكه څوك زيات همت اوكړى نو سورة ياسين دې اووائى او د هغوئ ته دې ددې ثوابونه اوبخښى. نو سبحان لله منه

Scanned with Ca

دي سره مونږ] دهرطرف نه [دوی لره] په پردو كښې اگير كړل ﴿فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ﴾ پس هغوی ددې حجاباتو د احاطې په وجه څه نشې ليدلې] او د دواړو مثالونو مطلب دادې چه [ددوی په حق كښې ﴿وَسَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ﴾ ستا دوی لره ويرول يا نه ويرول دواړه برابر دی ﴿لَا يُؤْمِنُونَ﴾ دوی] په هيڅ حالت كښې هم [ايمان نه راوړی] په دې وجه ته د دوی نه مايوسه شه راحت حاصل كړه ﴿إِنَّمَا تُنذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ﴾ [پس ته خو] داسې ويرول په كومو چه نفع مرتب وی [داسې خلقو لره ويرولې شې كوم چه په نصيحت روان وی ﴿وَخَشِيَ الرَّحْمَٰنَ بِالْغَيْبِ﴾ او د الله تعالى نه بې ليدو ويريږی] چه په ويره سره دحق طلب كيدې شی او په طلب سره وصول او دوی دسره ويريږی نه [پس] څوك چه داسې سړې وې ﴿فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَأَجْرٍ كَرِيمٍ﴾ [ته ده لره دګناهونو [مغفرت او] په طاعت [د عمده عوض خوشخبری واوروه] او ددې نه په دې هم دلالت وشو چه څوك په ګمراهئ اومخ اړولو كښې اخته وی هغه دمغفرت او اجر نه محروم اومستحق دعذاب دې اواګر چه په دنياكښې ددې جزا او سزا ظهور لازم نه دې ليكن ﴿إِنَّا نَحْنُ﴾ [بيشكه مونږ به] يوه ورځ ﴿نُحْيِ الْمَوْتَىٰ﴾ [مړو لره ژوندی كړو] دغه وخت به ددې ټولو ظهور وشی [او] په كومو عملونو چه جزا او سزا وی ﴿وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا وَآثَارَهُمْ﴾ [مونږ] هغولره برابر [ليكو هغو عملونو لره هم كوم چه خلق وړاند ليږی او دهغوی هغه عملونه هم كوم چه وروستو پاتې كوی] د ماقدموا نه مراد كوم كارچه په خپلو لاسونو سره وكړی او داثارهم نه مراد هغه اثركوم چه ددې كار په سبب پيداشو او پس دمرګ نه هم باقی پاتې شو مثلا چاڅه نيك كار وكړو او هغه سبب شو دنورو د هدايت هم يا چا څه بدكار وكړو او هغه سبب شو دنورو دګمراهئ هم غرض دا ټول ليكلې شی او هلته به په دې ټولو جزا او سزا مرتب وی [او] زمونږ علم خو داسې وسيع دې چه مونږ دې ليكلوته محتاج نه يو كوم چه دوقوع نه پس شوی دی څكه چه ﴿وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ فِي إِمَامٍ مُّبِينٍ﴾ [مونږه] خو [هرهغه شی لره] كوم چه ترقيامته پورې كيږی د واقع كيدو نه وړاند [په يو واضح كتاب كښې] يعنی لوح محفوظ كښې [ضبط كړی دی] محض په خنو حكمتونو سره دعملونو كتابت كيږی پس هركله چه وړاند دوقوع نه مونږ ته دټولو څيزونو علم دې نو پس دوقوع نه به ولې نه وی په دې وجه دڅه عمل نه دمنكريدو يا دپټ ساتلو هيڅ ګنجائش نشته خامخا به سزاوی او لوح محفوظ ته واضح په اعتبار د تفصيل د اشياؤ وئيلې شوې دې

## معارف او مسائل

**دسورة ياسين فضيلتونه:** د معقل بن يسار ﷺ په روايت سورة ياسين ته رسول الله ﷺ قلب القرآن يعنی د قرآن پاك زړه وئيلې دې ، او ددې حديث په څينې الفاظو كښې راغلی دی چې څوك سورة ياسين لره خاص د الله ﷻ او د آخرت دپاره لولی د هغه بخښنه كيږی . دا خپلو مړو ته لولئ [احمد ، ابوداؤد ، نسائی ، ابن حبان ، حاكم وغيرهم په حواله د روح ا و مظهری] [1].

---

[1] مسند أحمد، حديث معقل بن يسار رضي الله عنه، رقم الحديث: ٢٠٨٣٦، وسنن ابي داود، كتاب الجنائز، باب القراءة عند الميت (باختصار) ج ٢، ص ٨٩، والسنن الكبرىٰ للنسائي، رقم الحديث: ١٠٩١٤، وتفسير روح المعاني، تفسير سورة البقرة: ج ١، ص ٨١، وتفسير المظهري: ج ٨، ص ١٠٣

Scanned with Ca

امام غزالی فرمائی چې سورهٔ یاسین ته د قرآن پاک زړه ځکه اوفرمائیلې شو چې په دې کښې د قیامت ا وحشر نشر مضمونونه په خاص تفصیل سره او بلاغت سره راغلی دی . او د ایمان په اصولو کښې د آخرت عقیده هغه څیز دې چې د ا نسان د عملونو صحیحوالئ پرې اړه لری . د آخرت ویره انسان لره دنیک عمل دپاره تیاروی او هم هغه د ناجائزو خواهشاتو او حرامو نه ایساروی . نو څنګه چې د بدن روغتیا د زړ ه په روغتیا اړه لری دغه شان دا یمان روغتیا هم د آ خرت په فکر اړه لری . [روح][1] ددې سورت مشهور نوم سورهٔ یاسین دې خو په یو حدیث پاک کښې ددې نوم عظیمه هم راغلې دې . [اخرجه ابونصر السجزی عن عائشه رضی الله عنها][2]
او د یو حدیث پاک تر مخه ددې سورت نوم په تورات کښې معمه هم راغلې دې چې دخپل لوستونکی دپاره ددنیا ا و آخرت نیکئ او برکتونه عام کوی ا و ددې د لوستونکی نوم شریف راغلې دې او فرمائیلی ئې دې چې د قیا مت په ورځ به ددې شفاعت د ربیعه قبیلې د خلقو نه زیاتو دپاره قبلیږی. [سعید بن منصور، بیهقی، دحسان بن عطیه رضی الله عنه نه روایت کړو][3]. او یو روایت کښې ددې نوم مدافعه هم راغلې دې . چې خپلو لوستونکو نه بلا ګانې او مصیبتونه لرې کوی.اوپه ځینو کښې ددې نوم قاضیه هم راغلې دې.یعنی حاجتونه پوره کوونکې[روح المعانی][4]
او د ابی ذر رضی الله عنه په روایت کښې راغلی دی چې د کوم مړ کیدونکی خواته سورة یاسین لوستې شی نو د مرګ وخت پرې آسانیږی . [دیلمی ، ابن حبان په حواله د مظهری][5].
او عبدالله بن زبیر رضی الله عنه او فرمائیل چې څوک سورهٔ یاسین د خپل حاجت دپاره وړاندې کړی نو حاجت ئې پوره کیږی . [محاملی په ا مالیه کښې په حواله د مظهری][6].
او یحیی بن کثیر فرمائی چې څوک د صبا په وخت کښې سورة یاسین تلاوت کوی نو هغه به تر ماښامه پورې په خوشحالئ او آرام کښې وی او څوک ئې چې ماښام لولی نو هغه به تر صبا پورې په خوشحالئ او آرم کښې به وی . او وې فرمائیل چې دا خبر ه ماته هغه چا کړې ده چې کوم پرې پخپله تجربه کړې ده . [اخرجه ابن الفریس ، مظهری][7].
یس لفظ د حرفونو مقطعاتو ځینې دې ، دې باره کښې مشهورقول هغه دې چې په خلاصه کښې راښتې شوې دې . هغه دا چې ددې علم خالص الله ﷻ ته دې . ددې علم عامو بندګانو ته نشته د ې . او ابن عربی په احکام القرآن کښې فرمائیلې دی چې امام مالک فرمائیلی دی چې دا دالله ﷻ د نومونو ځینې یو نوم دې . او ابن عباس رضی الله عنه نه روایت هم دغسې دې . ا و په یو روایت کښې راغلی دی چې دا د حبشی ژبې لفظ دې او ددې معنی ده ائې انسانه ، او دلته

1) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۲۲، ص ۲۰۸، ۲۰۹
2) کنزالعمال رقم الحدیث: ۲۳۶۲
3) الجامع الکبیر، حرف القاف:ج ۱، ص ۱۵۰۷۲
4) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۲۲، ص ۲۰۹
5) تفسیر المظهری: ج ۸، ص ۱۰٤، وکنز العمال، رقم الحدیث: ٤٢١٨٦، وجامع الاحادیث للسیوطی، رقم الحدیث: ۲۰۷۸٦
6) تفسیر المظهری فی آخر سورة یٰس: ج ۸، ص ۱۰٤
7) تفسیر المظهری: ج ۸، ص ۱۰٤، وتفسیر القرطبی: ج ۱۵، ص ۲

Scanned with CamScanner

د انسان نه مراد رسول الله ﷺ دي او ابن جبير رضي الله عنه د كلام نه دا مطلب راخيژي چې يس د رسول الله ﷺ يو نوم دې[1]، روح المعاني كښې راغلي دي چې د رسول الله ﷺ نوم مبارک کښې دا دواړه لفظونه يا او سين راوستل دي کښې لوئې رازونه دي[2].

**د چا نوم ياسين ايخودل څنګه دي** :: امام مالک رحمه الله دا څكه نه دى خوښ كړى چې دا دالله ﷻ د نومونو څينې يو نوم دې. او ددې صحيح معنى نه ده معلومه څکه کيديشي چې ددې معنى څه داسې وى چې الله ﷻ سره خاص وى لکه خالق، رازق، وغيره البته چې ددې رسم خط ياسين وى نو بيا دا نوم ايخودل د يو بنده روا دى. ولې چې په قرآن پاک کښې هم داسې راغلى دي چې ﴿سَلٰمٌ عَلٰٓى اِلْ يَاسِيْنَ﴾ [ابن عربى][3] ددې لفظ مشهور قرآت الياسين دې، خو په څينې قرآتونو کښې ال ياسين هم دې.

﴿لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اُنْذِرَ اٰبَآؤُهُمْ﴾ مراد ددې نه عرب دى، معنى ئې داده چې د دوئ په پلرونو او نيکونو کښې څوک نذير يعنى پيغمبر د ډير زمانې راسې نه دې راغلي. او د پلرونو او نيکونو نه مراد نزدې پلاران نيکونه دى، ولې چې د دوئ د ډير پخوانو نيکونو ابراهيم عليه السلام، اسماعيل عليه السلام نه پس بل څوک پيغمبر دوئ ته نه وو راغلي. اګر چې د بلنې، تبليغ، زيرى وركولو سلسله په مخه جارى وه چې ذكر ئې د قرآن پاک په آيت کښې هم دې او د تفسير په خلاصه کښې ئې ذکر اوشو. نو د آيت ﴿وَاِنْ مِّنْ اُمَّةٍ اِلَّا خَلَا فِيْهَا نَذِيْرٌ﴾ تقاضاهم داده چې الله تعالى هيڅ يو قوم او ملت لره د بلنې او ويرولو نه په هيڅ زمانه ا و هيڅ علاقه کښې بې نصيبه نه وى پاتې كړى. البته ښكاره خبره ده چې د پيغمبرانو عليهم السلام تعليمات د هغوئ د نائبانو په ذريعه رسيدل هغه اثر نه لرى كوم چې پخپله د نبى يا د پيغمبر د بلنې او تعليم وى. په دې بنا په دې بيان شوى آيت مبارک کښې د عربو په باره کښې دا اوفرمائيلي شو چې په دوئ کښې څوک نه دې راغلي، ددې اثر دا وو چې په عربو کښې په عام ډول د لوستو او تعليم څۀ مضبوط نظام نه وو، په دې وجه د دوئ لقب اميين شو.

﴿لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلٰٓى اَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ اِنَّا جَعَلْنَا فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ اَغْلٰلًا﴾ مراد دادې چې الله ﷻ د كفر او ايمان او جنت او دوزخ دواړه لارې د انسان په وړاندې كړې او د ايمان دبلنې دپاره يې پيغمبران عليهم السلام اوكتابونه هم اوليږل بيا ئې انسان ته دومره اختيار وركړو چې هغه خپل ښه او بد اوپيژنى او څه لار اختيار کړى. كوم بد نصيبه انسان چې نه د خپل غور وفكر نه كار اخلى او نه د قدرت په دليلونو كښې څه غور كوى، نه د پيغمبرانو عليهم السلام په بلنې باندې څه غور كړوى نه دالله ﷻ په كتاب كښې څه غور كوى. نو الله ﷻ ورته د هغه د اختيار كړې لارې سامان برابروى، څوک چې په كفر كولو سر شى نو هغه دپاره د كفر زياتولو سامان برابرولې شى هم ددې تعبير ئې داسې اوفرمائيلو چې ﴿لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلٰٓى اَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ﴾ يعنى د دوئ په ا كثرو خلقو داقول حق څکه جارى شويدې چې بده لار ئې پخپله خوښه اختيار كړې ده هغه قول حق دادې چې دوئ به ايمان نه راوړى.

[1] أحكام القرآن لابن العربي: ج ٦،ص ٤٦٩، تفسير سورة يٰس.
[2] تفسير روح المعاني: ج ١٦، ص ٤٢٢
[3] أحكام القرآن لابن العربي: ج ٦، ص ٤٦٩

Scanned with Ca

دې نه پس ددوئ حال د يو مثال بيانوى اوفرمائي چې دچا په ګردن كښې چې داسې ګردنئ [طوق] اچولې شوى وى چې مخ سترګې هم پورته اړخ ته پاتې شى لاندې او كوز د سره نشى كتلې ، ظاهره خبره ده چې داسې كس به كنده يا كوهى كښې دپريوتو نه ځان نشى بچ كولې.
بل مثال ئې دا وركړو چې د چا نه ګير چاپيره يو ديوال جوړ كړې شوې وى او هغه په دې كښې بند او دبهر نه هيڅ خبر نه وى ، دغه شان ددغه كافرانو نه هم د جهالت ، ضد ديوال راتاؤ شوى دى چې د بهر حق خبرې ګويا كى. دوئ ته نه رسى.
امام رازى رحمه الله فرمائيلى دى چې نظر ايسارونكى دوه قسمه دى . يو داسې چې خپل ځان هم نشى ليدې او بل داسې چې د خپل چاپير چل ځيزونه هم نشى ليدې . دې كافرانو لره د حق د دواړه قسمه بنديزونه موجود وو. ځكه ړومبې مثال د ړومبى بنديز دې چې د هغې مضبوط ګردنئ په وجه ښكته نشى كتې . لار څه چې خپل ځان هم نشى ليدې او دويم مثال ددې دې چې د خپل چاپير چل ځيزونه نشى ليدلې [روح][1].
جمهور مفسرينو دغه آيت مبارك د كفر او عناد مثال ګرځولې دې او ځينو مفسرينو دې لره د ځينو روايتونو په بنا د يوې واقعې بيان ګرځولې دې . هغه داسې چې ابو جهل او څه نورو خلقو د نبى كريم ﷺ د شهيد كولو تكل اوكړو او په نبى كريم ﷺ باندې ور وړاندې شو، نو الله ﷻ ددوئ په سترګو باندې پردې راوستې ، چې بې وسه شو نو واپس راغلل ، دغه شان نور ګڼ واقعات د تفسير په كتابونو ، ابن كثير ، روح المعانى ، قرطبى ، مظهرى وغيره كښې منقول دى[2] خو هغه زيات روايتونه كمزورى دى په هغې باندې ددې آيت تفسير نشى اړ يعنى بناء كولې .
﴿وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا وَآثَارَهُمْ﴾ يعنى مونږ به ليكو هغه عملونه كوم چې دوئ وړاندې ليږلى دى ، په وړاندې ليږلو د عملونو سره ئې دا اوخودل چې ښه اوبد عملونه هم په دې دنيا كښې ختم نشو بلكه په قيامت كښې د جزا او سزا سامان جوړيږى . ددغې عملونو ليكل دا اصلى مقصد لرى چې دا مضبوط پاتې كړې شى . ليكل هم ددې يوه ذريعه ده چې د خطا هيرې اوكمى څه احتمال په كښې پاتې نشى .
**دعملونو پشان د عملونو اثرات هم ليكلې شى :** ﴿وَآثَارَهُمْ﴾ يعنى دعملونو په شان د دې آثار هم ليكلې شى ، دې نه مراد دعملونو نتيجې دى كومې چې وروسته ظاهرې پاتې كيږى . لكه چا د علم دين تعليم وركړو يا چا څه وقف كړل نو ددې دفائدو اثرات او نتيجې به دهغې جارى پاتې كيدو پورې په عمل نامه د عمل كوونكى كښې ليكلې شى . دغه حال به د بدو عملونو هم وى چې تر څو دهغې اثرات باقى وى هغه به د كوونكى په عمل نامه كښې ليكلې شى . لكه چا ظالمانه قوانين جارى كړل ، داسې ادارې ئې قائمې كړې چې د انسان عملونه ا و اخلاق خرابوى ، يا څوک ئې په غلطه يا خرابه لار واچول نوتر څو چې ددې مفاسد اثرات او نتيجې ښكاره كيږى ددغې كس په عمل نامه كښې به داليكلې كيږى لكه ددې آيت په تفسير كښې چې پخپله رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې جرير بن عبدالله بجلى رضي الله عنه ددې راوى دې چې :

[1] تفسير روح المعانى تحت هذه الآية: ج ١٦، ص ٤٣١. وتفسير الرازى تحت هذه الآية: ج ١٣، ص ٥
[2] تفسير ابن كثير: ج ٦، ص ٥٦٤، وتفسير القرطبى: ج ١٥، ص ٧

Scanned with Ca

من سن سنة حسنة فله اجرها واجر من عمل بها من بعده من غير ان ينقص من اجورهم شئ ومن سن سنة سيئة كان عليه وزرها ووزر من عمل بها من بعده لا ينقص من اوزارهم شيئا ثم تلا ونكتب ما قدموا واثارهم [ابن كثير د ابن ابی حاتم نه](١).

[یعنی چا چې یوه ښه طریقه جاری کړه نو هغه ته به ئې ثواب ورکولې شی او څومره خلق چې په هغې باندې عمل کوی د هغې ثواب به هم ورکولې شی بغير ددې نه چې په هغې باندې د عمل کوؤنکو په ثواب کښې څه کمې را شی او چا چې یوه خرابه طریقه روانه کړه نو هغه ته به د هغې هم گناه وی او څومره خلق به چې په دغې طریقه عمل کوی دهغوئ هومره گناه به علاوه دۀ ته وی بغير ددې نه چې په دې باندې د عمل کوؤنکو په گناه کښې بۀ څه کمې رازی بیا ئې دا آیت مبارک تلاوت کړو﴿وَنَكْتُبُ الخ﴾

آثار د قدمونو د نښې په معنی کښې هم راځی. حدیث پاک کښې راغلی دی چې کله انسان مسجد ته مونځ دپاره روان شی نو په هرقدم ئې نیکئ لیکلې شی(٢)، دحدیث پاک د ځینې روایتونو نه معلومیږی چې په دې آیت مبارک کښې د اثار نه مراد هم دغه د قدمونو نښې دی یعنی څنگه چې د مونځ کولو ثواب لیکلې شی دغه شان دده دپاره د قدمونو اخستو ثواب هم لیکلې شی. ابن کثیر دا روایتونه یو ځائې کړی دی په هغې کښې دا بیان هم راغلې دې چې په مدینه منوره کښې د کومو صحابه کرامو ﷺ کورونه د مسجد نه لرې وو هغوئ اوغوښتل چې خپل کورونه مسجد سره نزدې جوړ کړی. رسول الله ﷺ د دې نه منع کړل او وې فرمائیل چې هلته اوسیدل تاسو دپاره ښکه غوره دی چې تاسو کله مونځ ته راځئ نو په هر قدم به درته یو نیکی ملاویږی(٣)

دلته دا شبه راپیداکیږی چې د اسورت مکی دې اوکومه واقعه چه احادیثو کښې راغلې ده هغه دمدینې منورې ده نو ددې ربط څنگه راتلې شی ؟ ددې جواب دا کیدې شی چې آیت مبارک خو پخپله عامه معنی کښې وی چې دعملونو اثرات هم لیکلې شی او دا آیت مبارک هم په مکه مکرمه کښې نازل شوې وی او بیا دمدینې منورې دغې واقعې دپاره هغوئ دا آیت مبارک په دلیل کښې پیش کړې وی او د قدمونو چاپونه ئې په دې باقی پاتې کیدونکو نشاناتو کښې حساب کړی وی دکومو د لیکلو بیان چې د قرآن پاک په دې آیت مبارک کښې دې په دې شان ددې دواړو تفسیرونو ظاهری بې سمونی هم ختمیږی [ابن کثیر ددې تصریح کړې ده او دا ئې غوره کړې ده](٤).

| وَاضْرِبْ | لَهُمْ | مَّثَلًا | اَصْحٰبَ الْقَرْيَةِ | اِذْ |
|---|---|---|---|---|
| او بیان کړه | دوئ ته | یو مثال | دخلقو دکلی | کله چې |

[ائې پیغمبره] دوئ ته دیو کلی د خلقو قصه واوروه ،

(١) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٦٥، وصحیح مسلم، کتاب الزکاة، باب الحث علی الصدقة ولو بشق تمرة (بالاختصار) ج ١، ص ٣٢٦

(٢) صحیح مسلم، کتاب المساجد، باب فضل المکتوبة فی جماعة—الخ: ج ١، ص ٢٣٤

(٣) صحیح مسلم، کتاب المساجد، باب فضل المکتوبة فی جماعة—الخ: ج ١، ص ٢٣٥

(٤) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٦٦

Scanned with Ca

جَآءَهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿۱۳﴾ اِذْ اَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ

راغلل هغه کلي ته | رسولان | کله چې | اوليږل مونږه | هغوئ ته | دوه رسولان

کله چې هغه کلي ته پيغمبران ورغلل (کله چې مونږ هغوئ ته دوه کسان اوليږل

فَكَذَّبُوْهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوْٓا اِنَّآ

پس هغوئ دروغ اوګڼل دواړه | پس قوي کړل مونږه | په دريم سره | نو اووئيل هغوئ | بيشکه مونږه

نو هغوئ هغه دواړه دروغژن اوګڼل | نو مونږ ديو دريم کس په ذريعه دغه دواړه مضبوط کړل | نو دې

اِلَيْكُمْ مُّرْسَلُوْنَ ﴿۱۴﴾ قَالُوْا مَآ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ

تاسو ته | راليږلي شوي رسولان يو | اووئيل هغوئ | چې نه يئ تاسو | مګر | انسانان يئ

پيغمبرانو اووئيل | چې بيشکه مونږ ستاسو طرفته راليږلي شوي يو | هغه خلقو جواب ورکړو

مِّثْلُنَا ۙ وَمَآ اَنْزَلَ الرَّحْمٰنُ مِنْ شَيْءٍ ۙ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا تَكْذِبُوْنَ ﴿۱۵﴾

پشان زمونږه | اونه دې نازل کړي | رحمان | هيڅ څيز | نه يئ تاسو | مګر | دروغ وايئ

چې تاسو خو زمونږ په شان انسانان يئ | او الله ﷻ هيڅ نه دی نازل کړي | دا خو تاسو دروغ وائي

قَالُوْا رَبُّنَا يَعْلَمُ اِنَّآ اِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُوْنَ ﴿۱۶﴾

اووئيل رسولانو | رب زمونږه | پوهيږي | چې مونږه | تاسو ته | خامخا راليږلي شوي رسولان يو

هغه نبيانو اووئيل چې زمونږ رب ته معلومه ده | چې مونږ خاص هم تاسو ته را ليږلي شوي يو

وَمَا عَلَيْنَآ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۷﴾ قَالُوْٓا اِنَّا تَطَيَّرْنَا

او نشته په مونږ باندې | مګر رسونه ښکاره | اووئيل دکلي خلقو | بيشکه مونږه بدفالي نيسو

او زمونږ نوره ذمه واري نشته | خو [تاسو ته] ښکاره حکم رسول دی | هغه خلقو اووئيل چې مونږ خو

بِكُمْ ۚ لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهُوْا لَنَرْجُمَنَّكُمْ وَلَيَمَسَّنَّكُمْ

په تاسو | که چرې منع نه شوئ تاسو | نو خامخا به مونږ سنګسار کړو تاسو | او خامخا به اورسي تاسو ته

تاسو سپيره ګڼړو | که تاسو [ددې تبليغ نه] منع نه شوئ | نو مونږ بۀ مو سنګسار کړو تاسو | او زمونږ د

مِّنَّا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۸﴾ قَالُوْا طَآئِرُكُمْ مَّعَكُمْ ۭ

زمونږ نه | عذاب دردناک | اووئيل رسولانو | بدفالي ستاسو | خو ستاسو سره ده

طرفنه بۀ درته ډير دردناک عذاب دراورسي | پيغمبرانو اووئيل چې ستاسو سپيره توب پخپله تاسو پورې انښتې دې

اَئِنْ ذُكِّرْتُمْ ۭ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ ﴿۱۹﴾

آيا که نصيحت اوشي تاسو ته [نو دا بدفالي ده] | بلکه تاسو | قوم يئ دحدنه اوړيدونکي

آيا که تاسو ته نصيحت | وکړې شي | [نو دانحوست دې؟!] | نه بلکه تاسو د حد نه تير شوي خلق يئ.

وَجَآءَ مِنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ رَجُلٌ يَّسْعٰى قَالَ يٰقَوْمِ

او راغې | دلرې طرفه دهغه ښار نه | يو سړي | چې منډې ئې راوهلې | اووئيل هغه | اے قومه زما

او ددغه ښار د ليرې غاړې نه يو سړي په منډه منډه راغلو | او ورته ئې اووئيل چې اے زما قومه!

Scanned with Ca

| اتَّبِعُوا | الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۰﴾ | اتَّبِعُوا | مَنْ | لَّا يَسْـَٔلُكُمْ | اَجْرًا |
|---|---|---|---|---|---|
| پیروی اوکړی | درسولانو | پیروئ اوکړئ | دهغه چا | چی نهٔ غواړی ستاسو نه | څه بدله |

تاسو ددې پیغمبرانو تابعداری اوکړئ | دهغه چا په لار چې تاسو نه هیڅ بدله نه غواړی

| وَّهُمْ | مُّهْتَدُوْنَ ﴿۲۱﴾ |
|---|---|
| او هغوئ | په نیغه لار دی |

او په سمه لار قائم ولاړ دی

## آسان ترجمه قرآن

او (اے پیغمبره) ته دوی ته د یو کلی والو مثال پیش کړه چه کله هغوی ته رسولان راغلي وو چه کله مونږ هغوی ته (په شروع کښې) دوه رسولان اولیږل، نو هغوی دواړو ته دروغژن اوونیل بیا مونږ د دریم په ذریعې سره د هغوی تائید اوکړو. او دغې ټولو اوونیل چه یقین اوکړئ، مونږ تاسوته رسولان رالیږلي شوي یو هغوی اوونیل: ستاسو حقیقت ددې نه ماسوا هیڅ نه دې، چه تاسو زمونږ پشان سړی یئ، او الله تعالیٰ هیڅ یو څیز نازل کړې نه دې، او تاسوسراسر دروغ وایئ. هغوی (رسولانو) اوونیل: زمونږ پروردګار ښه پوهیږی، چه مونږ واقعی تاسو ته رسولان رالیږلي شوي یو. او زمونږ ذمه داری ددې نه زیاته نشته، چه صفا پیغام (تاسو ته) اورسؤو. کلي والو اوونیل: مونږ په تاسو کښې سپیره والې محسوس کړې دې، یقین اوکړئ، که تاسو منع نه شوئ، نو مونږ به تاسو په کانړو اولو. او زمونږ د لاسو نه به تاسو ته لویه دردناکه سزا ملاؤ شی. پیغمبرانو اوونیل: ستاسوسپیره والې خپله تاسو سره لګیدلې دې، آیا دا خبرې ددې وجې نه کوئ چه تاسو ته د نصیحت خبره درٙرسولې شوې ده؟ اصل خبره داده، چه تاسو خپله د حد نه تیریدونکې خلق یئ او د ښهر د لرې طرف نه یو سړې په منډه راغلو. هغه اوونیل: اے زما د قوم خلقو، ددې پیغمبرانو خبره اومنئ. دهغې خلقو خبره اومنئ، چه ستاسو نه هیڅ اجرت نه غواړی، او هغوی په صحیح لاره باندې دی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلًا اَصْحٰبَ الْقَرْيَةِ ﴾[اوته ددوی] کفارو [په وړاندې] په دې غرض سره چه درسالت تائید او دوی ته په انکار دتوحیداورسالت زورنه وی [یوه قصه یعنی دیوکلی دخلقو قصه د هغه وخت بیان کړه﴿اِذْ جَآءَهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴾ هرکله چه دغې کلی ته څو رسولان راغلل یعنی﴿اِذْ اَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوْهُمَا﴾ کله چه مونږ دوی ته] اول [دوه تنه ولیږل پس هغو خلقو اول دواړولره دروغژن کړل ﴿فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ﴾بیا په دریم] رسول [سره] مو ددې دواړو [تائید وکړو] یعنی دتائیددپاره بیا دریم ته مونږ هلته دتللو حکم وکړو ﴿فَقَالُوْٓا﴾[پس هغو درې واړو] ددغې کلی خلقو ته [ووئیل ﴿اِنَّآ اِلَيْكُمْ مُّرْسَلُوْنَ ﴾چه مونږ تاسو ته] دالله تعالی دطرف نه [رالیږلي شوی یو] چه تاسو ته هدایت وکړو چه توحید اختیار کړئ او بت پرستی پریږدئ ځکه چه دغه خلق بت پرست وو لکه چه دالله تعالی دا قول پرې دلالت کوی [ومالی لااعبدالذی فطرنی] او دا قول [ءاتخذ من دونه الهة الخ] ﴿قَالُوْا مَآ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا﴾ [هغو خلقو] یعنی کلی والو [ووئیل چه تاسو خو زمونږ په شان] محض [معمولی سړی یئ] تاسوته درسولانو کیدلو څه امتیاز حاصل نه دی

Scanned with Ca

[او] ستاسو څه تخصیص دې مسئله درسالت په خپله بې اصله ده او ﴿وَمَآ اَنۡزَلَ الرَّحۡمٰنُ مِنۡ شَیۡءٍ﴾ [الله رحمن] خو [هیڅ شې] دکتاب دقسم او داحکامونه چرته [نازل کړې نه دي ﴿اِنۡ اَنۡتُمۡ اِلَّا تَكۡذِبُوۡنَ﴾ تاسو محض دروغ وایئ ﴿قَالُوۡا رَبُّنَا یَعۡلَمُ اِنَّاۤ اِلَیۡكُمۡ لَمُرۡسَلُوۡنَ﴾هغو رسولانو ووئیل چه زمونږ پروردګارپوه دې چه بیشکه مونږ تاسوته] په طور درسولانو [رالیږلي شوی یو او] ددې قسم نه دامطلب نه دې چه په دې سره اثبات درسالت کوی بلکه پس دقائمولو ددلیل نه هم هرکله چه هغوی ونه منله پس داخری جواب په طور مجبورا ئې قسم وخوړلو لکه چه وړاند په خپله ددوی دارشاد نه معلومیږی چه ﴿وَمَا عَلَیۡنَاۤ اِلَّا الۡبَلٰغُ الۡمُبِیۡنُ﴾[زمونږ په ذمه خو صرف په واضح طور] دحکم [رسول دی] چونکه واضح والې په دې موقوف دې چه په واضحو دلیلونو سره دعوی ثابته کړې شی ددې نه معلومه شوه چه اول ئې دلیلونه قائم کړی وو په اخر کښې ئې قسم وخوړلو غرض داچه مونږ خپل کار وکړو که تاسو ئې نه منئ نو مونږ مجبوره یو ﴿قَالُوۡۤا اِنَّا تَطَیَّرۡنَا بِكُمۡ﴾[هغو خلقو ووئیل چه مونږ خو تاسو لره منحوس ګڼړو] داخوئ یا خکه ووئیل چه په دغو خلقو قحط راغلې وو لکه په معالم[1] کښې دی او یائ خکه ووئیل چه هرکله څه نوې خبره واوریدې شی اګر چه خلق ئې قبوله نه کړی مګر ددې چرچه خامخا کیږی او اکثر په عامو خلقو کښې ددې په وجه خبرې او په دې خبرو کښې اختلاف اوکله جګړې او نااتفاقی ته نوبت رسیږی پس مطلب به داوی چه تاسو په ټولو خلقو کښې یوه فتنه او جګړه وغورزوله چه ضرر ونه ترې نه رسیږی دا نحوست دې او ددې نحوست سبب تاسو یئ ﴿لَىِٕنۡ لَّمۡ تَنۡتَهُوۡا﴾[که تاسو] ددې دعوت او دعوې نه [واپس نه شوئ نو] یادساتئ ﴿لَنَرۡجُمَنَّكُمۡ﴾[مونږ به په ګټوستاسو کارختم کړو او] دسنګسارئ نه اول به هم ﴿وَلَیَمَسَّنَّكُمۡ مِّنَّا عَذَابٌ اَلِیۡمٌ﴾[تاسوته زمونږ دطرف نه سخت تکلیف ورسیږی] یعنی نوربه هم تاسو لره په قسم قسم سره ازار کړو که ونه منئ نو په اخره کښې به تاسو سنګسار کړو ﴿قَالُوۡا طَاۤىِٕرُكُمۡ مَّعَكُمۡ﴾[هغو رسولانو ووئیل چه ستاسو نحوست خو تاسو سره لګیدلې دې] یعنی کوم ته چه تاسو نحوست مضرت اومصیبت وایئ ددې سبب خو حق نه قبلول دی که په حق قبلولو باند متفق شوی وې نو نه به دا جګړې او فتنې وې اونه به دقحط په عذاب کښې اخته کیدئ پاتې شو اولنې اتفاق په بت پرستئ باندې نو داسې اتفاق چه په باطله باند وی په خپله فساد او وبال دې د کوم چه پریښودل لازم دی او په دغه زمانه کښې قحط نه راتلل هغه په طور داستدراج دالله تعالی دطرف نه مهلت درکړې شوې وو یا په دې وجه وو چه تردغه وخته پورې په هغه خلقو حق واضح شوې نه وو او دالله تعالی قانون دې چه د حق واضح کولو نه وړاندچاله عذاب نه ورکوی لکه چه ارشاد دې چه [حتی یبین لهم ما یتقون[2]] او دا مهلت یا دحق نشت والې هم ستاسو غفلت جهالت او شامت اعمال وو د دې نه معلومه شوه چه په هرحال کښې ددې نحوست سبب په خپله ستاسو فعل وو ﴿اَىِٕنۡ ذُكِّرۡتُمۡ﴾[ایا دانحوست ګڼئ چه تاسوته نصیحت کولې شی] کوم چه د بنیادم سعادت دې داخو په واقع کښې نحوست نه دې ﴿بَلۡ اَنۡتُمۡ قَوۡمٌ مُّسۡرِفُوۡنَ﴾[بلکه تاسو] په خپله [دحد] دعقل او شرع [نه وتونکی خلق یئ] پس دشرع په مخالفت سره په تاسو دانحوست راغې او په مخالفت د عقل

---

[1] معالم التنزیل تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٣٣٩

[2] ترجمه: کله پورې چه دا څیزونه صاف صاف اونه ښائی.

سره تاسو ددې سبب غلط وګڼړلو [او] ددې خبرو اترو خبر چه شائع شونو ﴿وَجَآءَ مِنْ أَقْصَا الْمَدِينَةِ رَجُلٌ يَسْعَىٰ قَالَ﴾[یوسړی] کوم چه مسلمان وو [ددې ښاردیولرې مقام نه] کوم چه ددې ځای نه لرې وو دا خبر واوړیدو نو دخپل قوم دخیر خواهئ دپاره چه ددې رسولانو وجود دقوم فلاح وه یادرسولانو دخیر خواهئ دپاره چه چرته داخلق دوی لره قتل نه کړی [په منډه] دلته [راغی] او هغو خلقو ته ئې ووئیل چه ﴿يَا قَوْمِ اتَّبِعُوا الْمُرْسَلِينَ﴾[اے زما قومه ددې رسولانو خبره ومنئ] خامخا ﴿اتَّبِعُوا مَن لَّا يَسْأَلُكُمْ أَجْرًا﴾[دداسې خلقو په وینا پسې لاړ شی کوم چه تاسو نه څه معاوضه نه غواړی﴿وَهُم مُّهْتَدُونَ﴾ او هغوی په خپله هم په نیغه لاره باندې دی] یعنی خود غرضی کومه چه مانع ده دتابعدارئ نه هغه هم نشته او راست بازی یعنی هدایت کیدل کومه چه مقتضی د تابعدارئ ده هغه موجوده ده بیا تابعداری ولې نه شی کولې

## معارف او مسائل

﴿وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا أَصْحَابَ الْقَرْيَةِ﴾ ضرب مثل دې ته وائی چې د یو معاملې ثابتولو دپاره چې هم د هغې پشان واقعه په مثال کښې راوړې شی ، پورته چې د نبوت او رسالت د منکرانو کافرانو بیان راغلې دې د هغوئ د خبرداره کولو دپاره قرآن پاک د مثال په ډول د پخوانئ زمانې یوه قصه بیانوی چې په یوه آبادئ کښې راپیښه شوې وه .

**هغه کومه یوه آبادی وه چې بیان ئې دې قصه کښې راغلې دې ؟** قرآن پاک کښې ددې نوم نه دې راغلې ، په تاریخی روایتونو کښې محمد بن اسحاق د ابن عباس رضی الله عنه او کعب الأحبار رحمه الله ، وهب بن منبه رحمه الله نه نقل کړی دی چې دغه آبادی انطاکیه وه . او جمهورو مفسرینو دې لره ا ختیار کړی دی . ابو حیان او ابن کثیر فرمائیلی دی چې په مفسرینو کښې ددې خلاف څه قول منقول نه شته دې[1] . د معجم البدان د تصریح مطابق انطاکیه د شام ملک یو عظیم الشان ښار دې چې مشهور خیرازه اوآباده او مستحکم ښار دې . ددې قلعه او چاردیواری یو مثالی خیز ګڼړلې شی . دې ښار کښې د نصرانیانو عبادت خانې او کنیسې بې شمیره دی د سرو زرو او سپینو زرو کار په کښې ښۀ ډیر شوې دې . او په دې کار سره ښار کښې ښائسته کړې شوی دی . د دریاب د غاړې ښار دې ، د اسلام په زمانه کښې دې لره د شام فتح کوؤنکی امین الامة ، ابو عبیده بن جراح رضی الله عنه فتح کړې دې . معجم البلد کښې یاقوت حموی دا هم لیکلی دی چې د حبیب نجار قبر هم په ا نطاکیه کښې مشهور دې . د لرې لرې نه خلق ددۀ د زیارت دپاره راځی[2] . د دوئ د تصریح نه هم دا معلومیږی چې د کوم کلی بیان په دې آیت مبارک کښې راغلې دې ، هغه هم دا دانطاکیه ښار دې .

ابن کثیر رحمه الله لیکلی دی چې انطاکیه د هغې څلورو ښارونو نه یو ښار دې چې د عیسائیت ددین او نصرانیت مرکزونه ګڼړلې شی . یعنی قدس ، رومیه ، اسکندریه ، او انطاکیه ، او فرمائیلی ئې دی چې انطاکیه ټولونه ړومبې ښار دې چا چې د عیسی علیه السلام دین قبول کړو. په دې بنا ابن کثیر رحمه الله په دې کښې تردد کړې دې چې د کومې آبادئ بیان چې په دې آیت کښې دې هغه مشهورښار انطاکیه دې ، ولې چې د قرآن پاک د صفا بیان مطابق دا آبادی د پیغمبرانو نه

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت الآیة رقم: ۲۸، ۲۹: ج ٦، ص ۵۷۳، وتفسیر البحر المحیط: ج ۹، ص ۲٦۱

[2] ) معجم البلدان: ج ۱، ص ۱۸٤

Scanned with Ca

دمنکرانو آبادي وه چې د تاریخي روایتونو مطابق دلته بت پرست مشرکان آباد وو. نو دا څنګه کیدیشي چې نصرانیت او مسیحیت به تولو نه اول دوئ قبول کړې وی[1].

دغه شان هم د قرآن پاک ددې بیان شوؤ آیتونو نه دا هم معلومیږی چې په دې واقعه کښې په دغه پوره آبادئ باندې داسې عذاب راغلو چې په کښې څوک ژوندې پاتې نشو. د انطاکیه ښار په باره کښې د تاریخ څه داسې واقعه منقول نه ده چې څه وخت ددې استوګن ټول د ځیرمې په یو ځائې او یو وخت مړه شوی وی. په دې وجه د ابن کثر په رائې کښې یا خو په دې آیت مبارک کښې دکوم کلي چې بیان شوې دې هغه د انطاکیه نه علاوه څه بل کلې دې. یا ددې مشهور انطاکیې نه علاوه بله انطاکیه ده.

صاحب د فتح المنان د ابن کثیر ددې اشکالونو جوابونه ورکړی دی، خو آسانه او بیشکه بې شبې خبره هغه ده چې کومه سیدی حکیم الامت رحمه الله په بیان القرآن کښې اختیار کړې ده. هغه داچې د قرآن په مضامینو باندې د پوهیدو د پاره ددغه آبادئ معلومات ضروری نه دی. او قرآن پاک دا مبهمه پریخودې ده نو دې معلوماتو باندې د دومره زور لګولو څه ضرورت دې ،پخوانو بزرګانو هم فرمائیلی دی چې [ابهموا ما ابهمه الله] یعنی کوم څیز چې الله تعالی مبهم پریخودی دی هغه شان ئې پریږدئې[2].

﴿إِذْ جَاءَهَا الْمُرْسَلُونَ ۝ إِذْ أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوا إِنَّا إِلَيْكُم مُّرْسَلُونَ ۝﴾ دغه آبادئې ته درې رسولان لیږلې شوی وو ، اول ئې د دوئ اجمالی بیان ﴿إِنَّا إِلَيْكُم مُّرْسَلُونَ ۝﴾ کښې اوفرمائیل ، وروسته ددې دا تفصیل ورکړې شوې دې چې اول کښې دوه رسولان لیږلې شوی وو ، د آبادئ خلقو نبیان درغژن اوګنړلو او د هغوئ خبره ئې اونه منله. نو الله تعالی ددوئ د تائید او مضبوطیا دپاره یو دریم کس اولیږلو ، بیا دې درې واړو رسولانو د آبادئې خاوندانو ته خطاب اوکړو ﴿إِنَّا إِلَيْكُم مُّرْسَلُونَ ۝﴾ یعنی مونږ ستاسو دهدایت دپاره رالیږلې شوی یو.

**دغه آبادئې ته د لیږلو شوؤ رسولانو نه څه مراد دې او هغه څوک حضرات وو؟** رسول ، او مرسل په قرآن کریم کښې د الله پیغمبر د پاره استعمال شوې دې ، په دې آیت مبارک کښې د دوئ لیږل الله ﷻ خپل ځان ته منسوب کړی دی. دا هم ددې خبرې نښه ده چې دې نه مراد پیغمبران او رسولان دی. ابن اسحاق د ابن عباس رضی الله عنه کعب بن احبار او وهب بن منبه روایت هم دا نقل کړې دې او په دغه روایت کښې ددوئ نومونه صادق ، صدوق او شلوم راغلی دی. او په یو روایت کښې د دریم نوم شمعون راغلې دې ، [ابن کثیر][3].

او د قتاده رحمه الله نه دا منقول دی چې دلته د مرسلون لفظ په دغه اصطلاحی معنی کښې نه دې استعمال شوې بلکه د قاصد او ریبار په معنی کښې استعمال شوې دې. نو فرمائې چې د غه بزرګان درې واړه پیغمبران نه وو بلکه د عیسی علیه السلام حواریین وو چې هم د عیسی علیه السلام په حکم ئې ددې آبادئې دهدایت دپاره رالیږلی وو [ابن کثیر][4] او چونکه ددوئ لیږونکی

[1] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٧٣
[2] ) تفسیر بیان القرآن: ج ٩، ص ١٠٨
[3] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ٦، ص ٥٦٨
[4] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٦٩

Scanned with Ca

عیسی ﷺ د الله ﷻ رسول وو نو ددې لیږل هم بالواسطه داسې اوګرځولې شو لکه الله ﷻ لیږلی وی ځکه په دې آیت مبارک کښې ددوئ لیږل الله ﷻ ته منسوب شوی دی. په مفسرینو کښې ابن کثیر رحمه الله وړمبې قول او قرطبی وغیره دویم قول اختیار کړې دې. ظاهر خو قرآن پاک نه هم داسې معلومیږی چې دا حضرات دالله ﷻ نبیان او پیغمبران وو ، والله اعلم.

﴿قَالُوٓا اِنَّا تَطَيَّرۡنَا بِكُمۡ﴾ د تطیر معنی بد فالی نیول او څوک سپیرهٔ ګڼړل دی ، مراد دادې چې ددغې ښار خلقو د الله ﷻ ددغې لیږلې شوؤ خبره اونه منله او دائې وئیل چې تاسو خلق سپیره یئ. په څینو روایتونو کښې راغلی دی چې د ددوئ ﷺ د نافرمانئ او درسولانو د خبرې نه منلو په وجه په د غه آبادئی قحط راغلې وو. په دغه وجه ئې ورته سپیرهٔ وئیل. یا به ورته څه بل تکلیف رسیدلې وی نو څنګه چې د کافرانو عام عادت هم دا دې چې چې څه مصیبت راشی نو هغه خلق ئې هغه چاته منسوب کوی چې څوک ددوئ د هدایت دپاره کوشش کوی. لکه پیغمبران یا نور نیکان خلق شو ، لکه د موسی ﷺ د قوم دغه شان خبره قرآن پاک کښې نقل ده چې: ﴿فَاِذَا جَآءَتۡهُمُ الۡحَسَنَةُ قَالُوۡا لَنَا هٰذِهٖ ۚ وَاِنۡ تُصِبۡهُمۡ سَیِّئَةٌ یَّطَّیَّرُوۡا بِمُوۡسٰی وَمَنۡ مَّعَهٗ﴾.

دغه شان د صالح ﷺ قوم هم ورته اووئیل چې ﴿اطَّیَّرۡنَا بِكَ وَبِمَنۡ مَّعَكَ﴾[1].

﴿قَالُوٓا اِنَّا تَطَيَّرۡنَا بِكُمۡ﴾ یعنی ستاسو سپیرتوب هم تاسو سره دې. مطلب دادې چې دا هم ستاسو د عملونو نتیجه ده. ﴿طائر﴾ په ا صل کښې بدفالئ ته وئیلې شی او کله د بدفالئ اثرد سپیرتوب په معنی کښې استعمالیږی. دلته ترې هم دا معنی مراد ده [ابن کثیر][2].

﴿وَجَآءَ مِنۡ اَقۡصَا الۡمَدِیۡنَةِ رَجُلٌ یَّسۡعٰی﴾ په وړمبی آیت مبارک کښې ددې واقعې ځائې ته قریه اوفرمائیلې شوه چې د مطلق آبادئی معنی ورکوی. که هغه وړوکې وی اوکه لویه. اوس د لته په دې آیت مبارک کښې ورلته المدینة اوفرمائیلې شوه چې صرف لوئې ښار دپاره استعمالیږی. دې نه معلومیږی چې دغه څه لوئې ښار وو. نو دې نه دهغه چا د خبرې تائید کیږی چې دغه ځائې د واقعې ئې انطاکیه خودلې دې.

د اقصی المدینة نه مراد د ښار د یو ګوټ نه راتلل دی. ﴿رَجُلٌ یَّسۡعٰی﴾ لفظ د یسعی نه مشتق دې چې په منډه منډه د راتلو معنی ورکوی. ځکه معنی دا شوه چې د ښار د لرې ګوټ نه یو سړې په منډه منډه راغلو او کله سعی دې معنې دپاره استعمالیږی چې په اهتمام سره تلل کوی اګرچې په منډه تلل نه وی ، څنګه چې په سورۀ جمعه کښې د ﴿فَاسۡعَوۡا اِلٰی ذِکۡرِ اللّٰهِ﴾[3] نه چې مراد دی.

**دښار د ګوټ یعنی ګوټ نه د راتلونکی سړی قیصه**. قرآن پاک دې لره هم مبهم ساتلې دې ، ددې کس نوم او حال ئې نه دې بیا ن کړې. په تاریخی روایتونو کښې ابن اسحاق د ابن عباس رضی الله عنهما او کعب بن ا حبار او وهب بن منبه په حواله سره دا نقل کړی دی چې ددغې سړی نوم حبیب وو، ددهٔ د پیشی او کار کسب باره کښې مختلف اقوال دی ، په دې کښې مشهور قول دادې چې نجار وو د لرګی کار به ئې کولو. [ا بن کثیر][4].

---

[1] ترجمه: مونږه تا او ستاسو ملګری منحوس ګنړو.
[2] تفسیر القرطبی: ج ۱۵، ص ۱٦
[3] ترجمه: تاسو دالله دیاد طرف ته ورشی.
[4] تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ۵۷۰

Scanned with CamScanner

مفسرینو چې کوم تاریخي روایتونه دلته نقل کړي دي د هغې نه معلومیږي چې دا سړي هم په شروع کښې بت پرست وو، دوه رسولان چې رومبې دې ښار ته راغلل ، د ده ملاقات هغوئ سره اوشو دهغوئ په تعلیم یا دهغوئ معجزو او کراماتو په لیدو سره ئې په زړه کښې ایمان پیدا شو ، د بت پرستئ نه ئې توبه ویستله او مسلمان شو . او چرته غار وغیره خانله خائې کښې په عبادت کښې مشغول شو. په دې چې خبر شو چې د ښار خلق ددغې رسولانو تعلیم او هدایت په دروغه بولي او هغوئ ته نقصان رسوي ، د وژلو دهمکئ ورکوي ، نو هغه دخپل قوم د خیرخواهئ او ددغې رسولانو د همدردئ په خاطر ډیر په تیزئ خپل قوم ته راغلو او خلقو ته ئې د رسولانو د تابعدارئ کولو هدایت اوکړو او دخپل مومن کیدو اعلان ئې اوکړو چې بیان ئې د درویشتمې پارې په اول کښې راروان دې.

[الحمد لله پاره نمبر ۲۲ ختمه شوه]

وَمَا لِيَ | لَآ اَعْبُدُ | الَّذِيْ | فَطَرَنِيْ | وَاِلَيْهِ
او څه شوي دي مالره | چي زهٔ بندګي اونهٔ کړم | دهغه الله | چي پیدا ئي کړم زهٔ | او خاص هغه ته |
او زه به ولې دهغه [رب] عبادت نه کوم | چې زه ئې پیدا کړې یم | اوتاسو ټول به هغه ته

تُرْجَعُوْنَ ۝ | ءَاَتَّخِذُ | مِنْ دُوْنِهٖٓ | اٰلِهَةً | اِنْ يُّرِدْنِ | الرَّحْمٰنُ | بِضُرٍّ
په تاسو واپس کیږئ | آیا زهٔ اونیسم | بې دالله نه | نور خدایان | که اراده اوکړي | رحمان | دضرر
واپس کیږئ| آیا زه د الله ﷻ نه سوا د نورو مبعودانو عبادت اوکړم | که رحمان [الله ﷻ] راته

لَّا تُغْنِ | عَنِّيْ | شَفَاعَتُهُمْ | شَيْـًٔا | وَّلَا يُنْقِذُوْنِ ۝ | اِنِّيْٓ
نو دفعه به نهٔ کړي | زمانه | سفارش دهغوئ | هیڅ څیز | اونهٔ به خلاص کړي مالره | بیشکه زهٔ به
څه ضرر راسول غواړي | نو د هغوئ سفارش راته هیڅ فائده نشي رسولې | اونه مې ترې خلاصولې شي

اِذًا | لَّفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝ | اِنِّيْٓ اٰمَنْتُ | بِرَبِّكُمْ
بیا په دغه وخت کښې | خامخا په ګمراهئ ښکاره کښې یم | بیشکه ما ایمان راوړو | په رب ستاسو
که زهٔ داسې اوکړم | نو په هغه وخت به په ښکاره ګمراهئ کښې شم| بیشکه ما ستاسو په رب ایمان راوړې دې

فَاسْمَعُوْنِ ۝ | قِيْلَ | ادْخُلِ الْجَنَّةَ | قَالَ | يٰلَيْتَ | قَوْمِيْ
پس واورئ زمانه | اوونیلې شو [هغه ته] | چي ننوزه جنت ته | اوونیل هغه | افسوس | چي قوم زما
نوزما خبره واورئ | هغه ته اوونیلې شو | چې ته جنت ته داخل شه | هغه اوونیل | ...... ائې افسوس چې

يَعْلَمُوْنَ ۝ | بِمَا | غَفَرَ لِيْ | رَبِّيْ | وَجَعَلَنِيْ | مِنَ الْمُكْرَمِيْنَ ۝
پوهیدلې | په هغه | چي اوبخښلم زهٔ | رب زما | اووې ګرزولم زهٔ | دعزتمند خلقو نه |
زماقوم ته دا خبره معلومه وې | چې زه خپل رب اوبښلم | او په عزتمندو خلقو کښې ئې شامل کړم

وَمَآ اَنْزَلْنَا | عَلٰى قَوْمِهٖ | مِنْ بَعْدِهٖ | مِنْ جُنْدٍ | مِّنَ السَّمَآءِ
او نازل نهٔ کړو مونږه | په قوم دهغه باندې | روستو دهغه نه | څه لښکر | دآسمان نه |
اومونږ دهغه نه پس دهغه په قوم باندې د [عذاب دپاره] دآسمان نه څه لښکرې نه وې رالیږلې

Scanned with Ca

وَمَا كُنَّا | مُنْزِلِيْنَ | إِنْ كَانَتْ | إِلَّا صَيْحَةً | وَّاحِدَةً | فَإِذَا

اونه وو مونږه | اليږونكي دلښكرو | نه وو [هغه عذاب] | مګر وه چغه | يوه | پس په هغه دم

اونه لښكر راكوزولو ته زمونږ حاجت وو | هغه [عذاب] خوبس يوه چغه وه | نو ټول

هُمْ | خٰمِدُوْنَ | يٰحَسْرَةً | عَلَى الْعِبَادِ | مَا يَأْتِيْهِمْ

وږ هغوی | يخ پخ پراته | اے افسوس دي | په حال دبندګانو باندي | نه دي راغلي دوی ته

په هم هغه وخت ساړه شول | افسوس دي د دغه بندګانو په حال چي كله ورته څوك پيغمبر

مِّنْ رَّسُوْلٍ | إِلَّا | كَانُوْا | بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ | أَلَمْ يَرَوْا

يو رسول | مګر | وږ دوی | چي په هغه پوري به ني توقي كولي | ايا نه ويني دوی

ورغلي وو | نو دوی به ورپوري توقي كولي | ........ ايا دوی دي خبري ته

كَمْ أَهْلَكْنَا | قَبْلَهُمْ | مِّنَ الْقُرُوْنِ | أَنَّهُمْ

چي څومره هلاك كړي دي مونږه | مخكښي ددوی نه | دقومونو نه | چي بيشكه هغوی

نه ګوري | چي ددوی نه وړاندي مونږ څومره قومونه تباه كړل | ........ كوم چي به دوی ته

إِلَيْهِمْ | لَا يَرْجِعُوْنَ | وَإِنْ كُلٌّ | لَّمَّا جَمِيْعٌ | لَّدَيْنَا | مُحْضَرُوْنَ

دوی ته | نه واپس كيږي | اونه دي دا ټول | مګر دا ټول به | مونږ ته | حاضر كړي كيږي

واپس رانشي | ........ او ټول به مونږ ته مخامخ پيش كړي شي

## آسان ترجمه قرآن

او زه دهغې ذات عبادت ولې اونه كړم، چه زه ئې پيدا كړي يم؟ او هم هغه طرف ته به تاسو ټول واپس كيږئ. آيا زه هغه لره پريږدم، او داسې (څيزونو) لره معبود اومنم، چه كه الله تعالى ماته د څه نقصان رسولو اراده اوكړي نو دهغوی سفارش زما هيڅ پكار نه راځي، او نه هغوی ما خلاصولې شي. كه زه داسې اوكړم، نو يقيناً زه به په ښكاره ګمراهئ كښې مبتلا شم، ما خو ستاسو په پروردګار باندې ايمان راوړې دې. اوس تاسو هم زما خبره اومنئ (آخركل والو هغه قتل كړو او د الله تعالى د طرف نه) هغه ته اوويلې شو چه: جنت ته داخل شه هغه (د جنت نعمتونه ليدلو نه پس) اوويل چه: كاش! زما قوم ته معلومه شي چه الله تعالى زما څرنګه بخښش اوكړو، او زه ئې په عزت مندو خلقو كښې شامل كړم او د هغه سړي نه پس مونږ د هغه په قوم د آسمان د طرف نه څه لښكر نازل نه كړو، او نه مونږ ته د نازلولو څه ضرورت وو هغه خو بس يوه چغه وه، چه هغې سره هغوی سمدستي ساړه پراته دي. افسوس دې د داسې بندګانو په حال باندې، دوی ته هيڅ يو رسول داسې نه دې راغلې، چه هغه پورې دوی توقې نه وی كړې آيا دوی نه دی ليدلې، چه ددوی نه مخكښې مونږ څومره قومونه دغه شان هلاک كړې دی، چه هغوی دوی ته واپس رانغلل؟ او دا چه څومره خلق دی، دې ټولو لره به راجمع كړې شي، او مونږ ته به حاضر كړې شي.

## خلاصه تفسير

﴿وَمَا لِيَ لَآ أَعْبُدُ الَّذِيْ فَطَرَنِيْ﴾ [او ماسره څه عذر دې چه زه دهغه] معبود [عبادت ونه كړم چاچه زه پيدا كړم] كوم چه د عبادت دمستحق والی ددليلونو نه يودليل دې [او] څان ته يې داسې څكه

ووئيل چه مخاطب مشتعل نه شي چه د تدبر نه مانع پيدانه شي او اصل مطلب دادي چه تاسو ته ديوالله تعالى دعبادت نه څه عذر دې ﴿وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ [تاسو تولولره هغه ته واپس تلل دی] په دې وجه د دانشمندئ تقاضا داده چه دهغه درسولانو تابعداری وكړئ تردې پورې خوئ دحق معبود د عبادت مستحق والې بيان كړو ورانند دباطلو معبودانو دعبادت دنه مستحق والى بيان دې يعنى ﴿ءَأَتَّخِذُ مِن دُونِهِ آلِهَةً﴾ [ايا زه خدائ پريږدم داسې داسې معبودان جوړ كړم] دكومو چه دبې وسئ داحال دې ﴿إِن يُرِدْنِ الرَّحْمَٰنُ بِضُرٍّ﴾ [چه كه خدائ رحمن ما ته څه تكليف رسول غواړي ﴿لَّا تُغْنِ عَنِّي شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا﴾ نو نه به دهغو معبودانو سفارش زما څه په كار راځي ﴿وَلَا يُنقِذُونِ﴾ اونه به هغوى مالره] په خپله د خپل قدرت او زور په ذريعه ددې تكليف نه [خلاص كړې شی] يعنى نه هغوى په‌خپله قادر دی اونه قادر ته د سفارش واسطه جوړيدې شي ځكه چه اول خو په جماداتو كښې دشفاعت اهليت نشته دويم شفاعت هغه كولې شي كومو ته چه دالله تعالى دطرف نه اجازت وی او ﴿إِنِّي إِذًا لَّفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾ [كه زه داسې وكړم نو په ښكاره ګمراهئ كښې پريوتم] دائ هم په خپل خان راوغورزوله هغو خلقو ته ئ اوږوی ﴿إِنِّي آمَنتُ بِرَبِّكُمْ﴾ [ماستاسو په پروردګار ايمان راوړو ﴿فَاسْمَعُونِ﴾ پس تاسو] هم [زماخبره واورئ] او ايمان راوړئ مګر په هغو خلقو هيڅ اثر ونه شو بلكه دې ئ په ګټو سره يا اور ته په غورزلو يا په مرئ خپه كولو لكه چه په درمنثور كښې دی شهيد كړو دشهيدكيدو سره ده ته دالله تعالى طرف نه ﴿قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ﴾ [ارشاد وشو چه ځه جنت ته داخل شه] دغه وخت دده سره هم دخپل قوم فكر شو ﴿قَالَ يَا لَيْتَ قَوْمِي يَعْلَمُونَ﴾ [وې وئيل چه كاش زما قوم ته داخبره معلومه شوې ﴿بِمَا غَفَرَ لِي رَبِّي﴾ چه زما پروردګار] د ايمان او تابعدارئ درسولانو په بركت سره [زه وبخښلم ﴿وَجَعَلَنِي مِنَ الْمُكْرَمِينَ﴾ او زه ئ په عزتمندو كښې شامل كړم] نو چه داحال ورته معلوميدې شوې نو دوی به هم ايمان راوړې وو او داسې به هغوى هم مغفور اومكرم شوی وو [او] هركله چه د دغې كلى خلقو درسولانو او درسولانو دتابعدارسره دامعامله وكړه نو مونږ تري نه بدل واخستو او دبدل اخستودپاره ﴿وَمَا أَنزَلْنَا عَلَىٰ قَوْمِهِ مِن بَعْدِهِ مِن جُندٍ مِّنَ السَّمَاءِ﴾ [مونږ دهغه] شهيد سړی [په قوم دهغه] دشهادت [نه پس څه لښكر] دفرښتو [اسمان نه نازل نه كړو ﴿وَمَا كُنَّا مُنزِلِينَ﴾ او نه مونږ ته دنازلولو ضرورت وو] ځكه چه دهغوى هلاكول په دې باند موقوف نه وو چه ددوی دپاره څه لوئ جمعيت راوستلې شي لكه دارنګ تفسير كړې دې ابن مسعود رضي الله عنه په هغې كښې چه نقل ئ كړی دی ابن كثير رحمه الله د ابو اسحاق نه ځنګه چې هغه وئيلی دی ماحيث قال ماكاثرناهم بالجموع فان الامركان ايسر علينامن ذٰلك بلكه ﴿إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً﴾ [هغه سزا يو سخت اواز وو] كوم چه جبرائيل عليه السلام وكړو لكه داسې په معالم كښې دی او يابلې فرښتې كړې وی يا دصيحه نه مطلق عذاب مراد وی چه تعين ئ نه دې شوې لكه چه دسوره مؤمنون په ايت [فاخذتهم الصيحة] په تفسير كښې تيرشوی دی ﴿فَإِذَا هُمْ خَامِدُونَ﴾ پس تول په دغه وخت [په دې سره] ساړه شوی [يعنى مړه شوی] پاتې شول وړاندې دقصې دانجام ښودلو دپاره د دروغژن كوونكو مذمت فرمائي چه ﴿يَا حَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ﴾ [افسوس دې د [داسې] بندګانو په حال چه چرې هغوى ته څوك رسول رانغلو كوم پورې چه هغوى خندانه وی كړی ﴿أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ الْقُرُونِ﴾ هغه خلقو دې ته ونه كتل چه مونږ د دوی نه وړاندې ډير امتونه]

Scanned with Ca

ددې دروغژن کولو او مسخرو په سبب [تباه کړل ﴿أَنَّهُمْ إِلَيْهِمْ لَا يَرْجِعُونَ﴾ چه هغه] بيا [دوی طرف ته] په دنيا کښې [واپس نه شول] که په دې کښې ئې غور فکر کړې وې نو د دروغژن کولو او مسخرو نه به منع شوی وو او داسزا خو دروغژن کوونکو ته په دنيا کښې ورکړې شوه [او] بيا په اخرت کښې ﴿وَإِن كُلٌّ لَّمَّا جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ﴾ [په دې ټولو کښې څوك داسې نشته چه په اجتماعی طور سره به مونږ ته مخامخ حاضر نه کړې شی] هلته به بيا سزا وی او هغه سزا به دائمی وی

## معارف او مسائل

هغه صاحب چې خپل قوم ته راغلو خلقو ته ئې د رسولانو د تابعدارئی کولو نصيحت اوکړو اود خپل مؤمن کيدو خبره يې ښکاره کړه او داسې ئې اووئيل چې ﴿إِنِّي آمَنتُ بِرَبِّكُمْ فَاسْمَعُونِ﴾ يعنی ما ستاسو په رب باندې ايمان راوړې دې تاسو دا واؤرئی. ددې مخاطب دده قوم هم کيدې شی او په دې کښې الله ﷻ ته رب وئيل د حقيقت ښکاره کولو دپاره وو اگر چې هغوئ الله ﷻ خپل رب نه منلو. اودا هم کيديشی چې دائې هغې رسولانو ته په دې غرض وئيلی وی چې تاسو زما د ايمان راؤړو په خبره گواه شئ.

﴿قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ ۖ قَالَ يَا لَيْتَ قَوْمِي يَعْلَمُونَ﴾ يعنی د ښار د يو گوټ[کونج] نه راتلونکی دغه سړی ته اووئيلې شو چې جنت ته داخل شه، داسې ښکاری چې دا خطاب ورته د فرښتې په ذريعه شوې وو. ددې نه مراد دجنت زيرې ورکول دی ځکه چې د داخليدو د جنت موقعه د حشر نه پس ده [قرطبی][1].

دا هم څه لرې نه ده چې دغه وخت ورته جنت ښکاره کړې شوې وی. ددې نه علاوه په برزخ کښې اهل جنت ته د جنت ميوې، گلونه اود آرام څيزونه ملاويږی. ځکه عالم برزخ ته ورتلل يو قسم په جنت کښې داخليدل دی.

د قرآن عظيم الشان ددې لفظ نه دا خبره واضحه ده چې دغه صاحب شهيد کړې شوې وو ځکه چې جنت ته داخليدل ياد جنت نظاره کول خو د مرگ نه پس وی.

تاريخی روايتونو کښې د ابن عباس رضي الله عنهما مقاتل، مجاهد د تفسير د امامانو نه نقل دی چې ددې صاحب نوم حبيب بن اسماعيل نجار وو. او دا په هغې خلقو کښې دې چې زمونږ په رسول کريم ﷺ باندې يې د رسول کريم ﷺ د پيغمبرئی نه شپږ سوه کاله آگاهو ايمان راؤړې وو. لکه څنگه چې د تُبع اکبر باره کښې رازی چې په رسول کريم ﷺ باندې يې د رسول کريم ﷺ نه وړاندې ايمان راؤړې وو. او هغه پخوانو کتابونو کښې د نبی کريم ﷺ د راتلو زيرې لوستلې وو. دريم داسې صاحب ورقه بن نوفل دې چې د نبی کريم ﷺ د پيغمبر کيدو نه اود بلنې نه يې وړاندې په رسول کريم ﷺ باندې ايمان راؤړې وو. او د ورقه بن نوفل حالات په صحيح بخاری کښې راغلی دی. اودا د بخاری شريف په هغه حديث مبارك کښې دی چې په کومه کښې د وحی د ابتداء بيان شوې دې. ددې دريو وارو واقعو په شان په بل پيغمبر عليه السلام باندې داسې مخکې ايمان راؤړلو والا بل څوك نشته دې.

---

[1] تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۱۹، ۲۰.

Scanned with Ca

دوهب بن منبه د روایت تر مخه دغه صاحب جذامي وو او د ښار آخري دروازې سره يې کور وو اويا کاله يې د خپلو باطلو معبودانو نه د خپل صحت دپاره دعا گانې کولې او دې نه رغيدو هرکله چې دغه رسولان په دروازه داخل شو نو اول ملاقات يې د ه سره اوشو ځکه چې دده مکان دښار دروازې سره نزدې وو هغه رسولانو ﷺ ورته د شرك او بت پرستئ پرېخودلو او د يو الله ﷻ دمنلو دعوت ورکړو. هغه ورته اووئيل چې تاسو سره دخپلې ددې دعوې څه پوخ دليل شته دې ؟ نبيانو ﷺ ورته اوفرمائيل چې آؤ شته دې هغه ترې دخپلې بيمارئى نه درغيدو پوښتنه اوکړه . نبيانو ﷺ ورته اوفرمائيل چې ددې دا صورت کيدیشي چې مونږ ستا دپار دالله ﷻ نه دعا اوکړو هغه سړى ډير په تعجب سره اووئيل چې ما خو اويا کاله ددې بتانونه سوالونه کول خو هغه دعا گانو ماته څه فائده رانکړه نو ستاسو رب څنگه سمدستي ماته صحت راکړى ؟ نبيانو ﷺ ورته اوفرمائيل چې زمونږ رب به په هر څيز باندې قادر دې او ستاسو معبودان د هيڅ کار نه دى. دوى چا ته هيڅ نفع نقصان نشى رسولې . دې خبرو سره هغه صاحب د ا سلام دائره کښې داخل شو . د غې بزرگانو ورته دعا اوکړه ا او په هغه سړى باندې د بيمارئى اثرات بالکل ختم شو اوسمدستي روغ جوړ شو . اوس دهغه ايمان مضبوط شو . هغه وعده اوکړه چې هره ورځ به نيم ساعت دالله ﷻ په لار کښې لگوى . کله چې په دغه رسولانو باندې د حملې کولو خبر ده ته راؤرسيدو نو دې په منډه منډه راغلو چې خپل قوم پوهه کړى او هغوئ ته يې دخپل ايمان اعلان هم اوکړو. ټول قوم دده دښمن جوړ شو او ټولو راگير کړو . د ابن مسعود ؓ د روايت تر مخه دې يې په لغتو او ديکو شهيد کړو . خينې روايتونو کښې نقل دى چې په کانړو ويشتو ويشتو يې شهيد کړو . خو ده په دغه سخت حال هم دا ووئيل چې ﴿رب اهد قومي﴾ يعنى ائې زما ربه زما قوم ته هدايت اوکړه .

بعضو روايتونو کښې راغلى دى چې هغه خلقو هغه درې واړه رسولان هم شهيدان کړل . خو په صحيح روايت کښې ددې څه بيان نشته دې چې هغوئ په څه حال کښې وو. ښکاره خبره داده چې هغوئ شهيدان شوى نه وو . [قرطبي] [1]

﴿قَالَ يٰلَيْتَ قَوْمِيْ يَعْلَمُوْنَ ۙ بِمَا غَفَرَ لِيْ رَبِّيْ وَجَعَلَنِيْ مِنَ الْمُكْرَمِيْنَ﴾ کله چې دوئ دا بزرگ دالله ﷻ په لار کښې شهيد کړو نو الله ﷻ ورته هم يو خاص قدر او عزت ورکړو او جنت ته د داخليدو حکم يې ورته اوکړو . هرکله چې هغه د جنت نعمتونه او عزتونه اوليدل نو خپل قوم ورته ياد شو او دا خواهش يې اوکړو چې کاش زما قوم ته زما دا عزت او قدر او دجنت دا نعمتونه معلوم شوى وې دا کوم چې ماته د هميشه دپاره راکړې شوى دى . که هغوئ دا ليدلې وې نو کيدیشي چې ايمان يې قبول کړې وې . ددې خواهش اظهار په مذکوره آيت مبارك کښې شوى دې .

**د پيغمبرانو ﷺ د بلنې او اصلاح طريقه د اسلام د مبلغينو دپاره يو اهم هدايت دې** : دغې ودانئى ته د ليږلې شوؤ رسولانو سره چې هغه مشرکانو او کافرانو کوم ناکاره او ناروا سلوك اوکړو او کومې سختې يې پرې تيرې کړې ، او ددې په جواب کښې ورته هغوئ ﷺ څنگه جواب ورکړو ، او دې سره سره که د هغه نجار نومې بزرگ په رويه باندې نظر واچولې شي نو په هغې کښې هغه خلقو د پاره لوئې سبقونه پراته دى چې کوم دخلقو د اصلاح دپاره کوششونه کوى .

[1] ) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۱۹

Scanned with Ca

ددې رسولانو ﷺ د عظیمو نصیحتونو په جواب کښې دې مشرکانو درې خبرې اوکړې:
① اوله دا چې مونږ ستاسو خبره څنګه اومنو حالانکه تاسو هم زمونږ په شان انسانان یئ.
② الله رب العزت په چا هم خپل کلام او کتاب نه دې رالیږلې. ③ تاسو بالکل دروغ وائې
تاسو دې ته فکر اوکړئ چې دا څومره دمینې او شفقت نه ډک نصیحتونه وو اوددې په جواب کښې هغوئ دې رسولانو ته څنګه رټلې جوابونه ورکول. خو هغه پیغمبرانو ﷺ ورته صرف دومره قدرې اووئیل چې ﴿رَبُّنَا يَعْلَمُ إِنَّا إِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُونَ﴾ یعنی زمونږ رب ﷻ ته علم دې چې مونږ ئې تاسو ته د پیغمبرانو په حیثیت رالیږلی یو. او ﴿وَمَا عَلَيْنَا إِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ﴾ مونږ خپله ذمه واری پوره کړه تاسو ته مو دالله ﷻ پیغام اورسولو. اوس ستاسو مرضی ته که دا منئ اوکه ددې نه انکار کوئ ؟
ددې په جواب کښې بیا هغه خلقو داسې داسې ګډې وډې د خلو نه اوویستلې چې تاسو خو سپیرهٔ خلق یئ او هم ستاسو په وجه مونږ ته نقصانونه رسی. اګر چې ددې جواب دا کیدو چې دې پیغمبرانو علیهم السلام ورته وئیلې وې چې هم تاسو سپیرهٔ یئ څکه چې ستاسو د بدعملئ په وجه تاسو ته نقصانونه رسی. خو ددې خبرو په جواب کښې یئ ورته داسې اووئیل چې: ﴿طٰٓئِرُكُمْ مَّعَكُمْ﴾ یعنی ستاسو سپیرهٔ توب هم ستاسو په وجه دې. او بیا ئې ورته په شفقت سره اوفرمائیل چې:
﴿أَئِنْ ذُكِّرْتُمْ﴾ یعنی تاسو فکر اوکړئ مونږ تاسو ته هیڅ نقصان نه دې رسولې. مونږ تاسو ته خیرخواهئ نه ډک نصیحت کوؤ. دې ټولو خبرو کښې یئ یوه درنه خبره دا اوفرمائیل چې ﴿بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ﴾ تاسو خلق دحدونو نه تیر شوی یئ. یعنی زمونږ خبره یوه وی او تاسو د هغې نه بله خبره جوړه کړئ.
دې نه پس د هغه نوی مسلمان په کردار لږ رڼړا واچوئ چې هغه خپل قوم ته دا دوه خبرې اوکړې چې:
① تاسو ددې رسولانو خبره اومنئ څکه چې دوئ تاسو ته د ډیر لرې نه د نصیحت کولو دپاره راغلی دی او دوئ په سفر کښې تکلیفونه اوچت کړی دی. دوئ تاسو نه څه نه غواړی. آخر تاسو انصاف اوکړئ او تاسو ددوئ په خبرو ولې غوږ نه نیسئ ؟
② دویمه دا چې دوئ ډیره سمه او عقل سره مناسب خبره کوی. او هغه خپل قوم ته د هغوئ ګمراهی ښکاره کړه، او ورته یئ اووئیل چې تاسو ولې یو الله ﷻ معبود برحق نه منئ، هغه قادر مطلق ذات مو پریخودې دې او د خپل لاس جوړ شوی بتانو نه خپل حاجتونه غواړی؟ ددې بتانو خو دا حال دی چې دوئ نه خو د خپل ځان نه کار کولې شی او نه الله ﷻ سره ددوئ څه مقام او عزت شته دې. او نه دوئ الله ﷻ ته ستاسو څه سفارش کولې شی.
خو حبیب نجار ددې ټولو خبرو نسبت هغوئ ته دکولو په ځائې یئ خپل ځان ته اوکړو. وې وئیل که چرې زه داسې اوکړم نو ګمراه به شم
﴿وَمَا لِيَ لَآ أَعْبُدُ الَّذِيْ فَطَرَنِيْ﴾ دا ټول هر څه یئ په دې غرض اوکړل چې مخالف خلق راپورته نشی، چې ښه په توجو سره په خبره غور اوکړی. خو هغوئ ددې نه هیڅ نصیحت قبول نه کړو. د هغه دشهید کولو دپاره په هغه ورپریوتل. خو بیا هم د هغه د خوله نه څه بدرد او نه وتل کله

چې ېي ساه ختله نو د اسې ېي اووئیل چې ﴿رب اهد قومی﴾ یعنی ائې ربه زما قوم ته هدایت اوکړه. ددې ځخه زياته د تعجب خبره داده چې د قوم د ظلم او بربریت ځخه شهید کوونکی ته چې کله دالله ﷻ د طرفه د انعاماتو او د جنت مشاهده اوشوه نو په هغه وخت کښې يې هم دا ظالم قوم رایاد شو. او ډیر په خیرخواهۍ او همدردۍ سره يې خواهش اوکړو چې کاش زما دا قوم ددې انعام او اکرام ځخه واقف وې نو شاید چې هغوئ هم ددې گمراهۍ ځخه منع شوی وې او په دې نعمتونو کښې به شریك شوی وو، سبحان الله د الله ﷻ د مخلوق خیرخواهي ځنگه ددې ظلمونو باوجود ددې حضراتو په رگ رگ کښې پیوست کیږي. هم دا هغه ځیز دې چې دې د قومونو حالات بدل کړل. د کفر او ضلالت مقام ځخه يې را اووېستل او هغه مقام يې ورته ورکړو چې فرښتو پرې هم رشك کولو. [۳۷۸]

موجوده مبلغینو او دینی اصلاح کوونکو دا طریقه ترك کړې ده او هم په دې وجه دهغوئ په تبلیغ او د عوت کښې ځه اثر نه وی. خپل تقریر او خطاب کښې غصې نه کار اخلی او په مخالفینو باندې ټکونه کول خپل کمال گنړي. او دې سره هغوئ نور هم ضد شروع کړي.

﴿اللهم اجعلنا متبعين لسنن انبياءك ووفقنا لما تحب وترضاه﴾

﴿وَمَآ اَنۡزَلۡنَا عَلٰى قَوۡمِهٖ مِنۡۢ بَعۡدِهٖ مِنۡ جُنۡدٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَمَا كُنَّا مُنۡزِلِيۡنَ ۞ اِنۡ كَانَتۡ اِلَّا صَيۡحَةً وَّاحِدَةً فَاِذَا هُمۡ خٰمِدُوۡنَ ۞﴾ دا په هغه قوم د آسمانی عذاب راتلو بیان دې. چا چې رسولان دروغژن گنړلي وو. او حبیب نجار يې په وهلو وهلو سره شهید کړې وو. او د عذاب په تمهید کښې يې دا اوفرمائیل چې مونږ ته دې دپاره د فرښتو د ډلو دنازلیدو ضرورت نه راپیښیدو او نه زمونږ دستور دادې. بلکه د الله ﷻ هره فرښته دومره غټه او طاقتوره ده چې په یو اځې ځان له يې قومونه تباه کړی دی. بیا يې په دوئ باندې د راتلونکی عذاب بیان اوکړو چې بس دومره عذاب اوشو چې فرښتې یو زور داره آواز اوکړو چې په هغې سره ټول ساړه او ټول مړهٔ پریوتل.

روایاتو کښې راځی چې حضرت جبرئیل ﷺ د ښار د دروازې دواړه طرفونه اونیول او یو سخته چغه يې پرې اووهله نو د هغې په وجه ټول مړهٔ شو[۱]. دې مړهٔ کیدو ته قرآن عظیم الشان ﴿فَاِذَا هُمۡ خٰمِدُوۡنَ ۞﴾ اوفرمائیل. خمود داور مړ کیدو ته وئیلې شي. هر کله چې د ساه دار ژوند په غریزی گرمۍ باندې اړه لری د کوم چې په ختمیدو سره چې مړ کیدل کیږي ځکه يې د مړ کیدو نه په ﴿خٰمِدُوۡنَ﴾ سره تعبیر اوکړو چې معنی ئې یخ شوې ده.

| وَاٰيَةٌ | لَّهُمُ | الۡاَرۡضُ | الۡمَيۡتَةُ ۖۚ | اَحۡيَيۡنٰهَا | وَاَخۡرَجۡنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| او نښه دتوحید ده | دپاره ددوئ | زمکه | مړه | ژوندئ کړه مونږه هغه | او رااووېستله مونږه |
| اودوئ دپاره یوه نښه مړه [اوچه] زمکه هم ده | | ......... چې مونږ هغه راژوندئ کړه | | | |

| مِنۡهَا | حَبًّا | فَمِنۡهُ | يَاۡكُلُوۡنَ ۞ | وَجَعَلۡنَا | فِيۡهَا | جَنّٰتٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دهغې نه | دانه [غله] | پس دهغې نه | خوری دوئ | او پیدا کړل مونږه | په هغې کښې | باغونه |
| اوغلې مو ترې نه رازرغون کړې | | ...... نو دوئ دهغې نه خوراکونه کوی | | اومونږ په دې کښې دکهجورو | | |

---

[۱] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۶، ص ۵۷۳

Scanned with

مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ وَّفَجَّرْنَا فِيْهَا مِنَ الْعُيُوْنِ ﴿۳۴﴾

دکجورو | او دانګورو | او جاري کړي مونږه | په هغې کښې | دچينونه |

او انګورو باغونه پيدا کړي دي | ...............او په دې کښې مو چينې جاري کړې دي

لِيَاْكُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖ وَمَا عَمِلَتْهُ اَيْدِيْهِمْ

دپاره ددې چې اوخوري دوئ | دميوې دهغې نه | اونه دې کړې دا پيدا وښت | لاسونو ددوئ |

ددې دپاره چې دوئ ددغې باغونو ميوې اوخوري | او دا څيزونه ددوئ لاسونو نه دي جوړ کړي

اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۳۵﴾ سُبْحٰنَ الَّذِيْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ كُلَّهَا

ايا پس دوئ شکر نه اوباسي | پاکي ده | هغه ذات لره | چې پيدا ئې کړل قسمونه | ټول |

نوبيا دوئ شکر ولې نه اوباسي | الله ﷻ هغه ذات دې چا چې ددې ټولو څيزونو جوړې پيدا کړې دي

مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ وَمِنْ اَنْفُسِهِمْ وَمِمَّا

دهغې نه | چې زرغونوي ئې | زمکه | او په خپله دنفسونو ددوئ نه | او دهغې نه |

هم د زمکې په زرغونه کښې | اودغه شان د دوی په نفسونو کښې هم | اوپه هغه څيزونو کښې

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۶﴾ وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الَّيْلُ ۚ نَسْلَخُ مِنْهُ

چې دوئ ئې نه پيژني | او نښه دتوحيد ده | دپاره ددوئ | شپه | چې رااوباسو مونږه | دهغې نه |

چې دوئ ته هډو معلوم نه دي | او د دوئ دپاره يو نښه شپه ده | چې مونږ ترې نه [رڼرا]

النَّهَارَ فَاِذَا هُمْ مُّظْلِمُوْنَ ﴿۳۷﴾ وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ

ورځ | پس يودم | هغوئ | په تياره کښې وي | اونمر دې | چې روان دې | ځائې دقرار ته

ورځ راکاږو | نودوئ په تيارهٔ کښې پاتې شي | اوبوه [نښه] نمر دې | چې په خپله مقرره لاره روان دې

لَّهَا ؕ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿۳۸﴾ وَالْقَمَرَ

چې مقرر دې هغه لره | دا | اندازه ده | دغالب | عالم الله | او سپوږمۍ ده |

دا د زبردست او پوهه الله ﷻ ترلې اندازه ده | ...................اومونږ د سپوږمۍ دپاره

قَدَّرْنٰهُ مَنَازِلَ حَتّٰى عَادَ

چې مقرر کړي دي مونږه هغې لره | منزلونه | تر دې پورې | چې واپس اوګرځي |

منزلونه مقرر کړي دي | اوريږي وريږي | تردې چې دکهجورې د زړې څانګې په شان

كَالْعُرْجُوْنِ الْقَدِيْمِ ﴿۳۹﴾ لَا الشَّمْسُ يَنْۢبَغِيْ لَهَاۤ اَنْ تُدْرِكَ

پشان دڅانګې دکجورو | پخوانۍ [وچې] | نه دې نمر | چې مناسب وي هغه لره | چې راګيره کړي

وره پاتې شي | ............ نه نمر دپاره دامکن ده | چې هغه اوراندې شي او | سپوږمۍ رالاندې کړي |

الْقَمَرَ وَلَا الَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ ؕ وَكُلٌّ فِيْ فَلَكٍ

سپوږمۍ | اونه شپه | مخکښې کيدونکې ده | دورځې نه | او ټول | په آسمان کښې |

اونه شپه دورځې نه مخکښې راتلې شي | اوهر يو پخپل خپل مدار کښې الګيا دي |

يَسْبَحُوْنَ ۝ وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ

لامبو وهی |او بله نښه | دپاره ددوئ [داده] | چی مونږه سواره کړل | اولاد ددوئ |

لامبو[چکرا] وهی | او ددوئ دپاره يوه نښه دا هم ده | ..........چې مونږ د دوئ بچي

فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ۝ وَخَلَقْنَا لَهُمْ مِّنْ مِّثْلِهٖ مَا

په کښتئ کښی| ډکه کړې شوی کښتی | او پيدا کړل مونږه | دپاره ددوئ | پشان ددې | هغه څيزونه

په ډکه بيړئ کښې سواره بوځو | ..........او مونږ د بيړئ غوندې د سورلئ نور څيزونه

يَرْكَبُوْنَ ۝ وَاِنْ نَّشَاْ نُغْرِقْهُمْ فَلَا صَرِيْخَ

چې دوئ پرسوريږی | او که اوغواړو مونږه | نو ډوب به کړو دوئ | پس نۀ به وی فرياد اوريدونکې |

هم پيدا کړې دې| او که مونږ اوغواړو نو دوئ به غرق کړو| بيا به نه څوک ددوئ فرياد اوريدو وی

لَهُمْ وَلَا هُمْ يُنْقَذُوْنَ ۝ اِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا

دوئ لره | اونۀ به دوئ بچ کړې شی | مګر | دا [تول] رحمت دې | دطرفه زمونږ نه |

او نه به دوی خلاصولې شی | ..........خودا تول زمونږ مهربانی ده

وَمَتَاعًا اِلٰى حِيْنٍ ۝

او ددوئ کار چلولو دپاره | ديو خاص وخته پورې |

اودوئ ته تر يوې مقررې نيتې پورې فائده ورکول دی |

## آسان ترجمه قرآن

او ددوی دپاره يوه نښه هغه زمکه ده چه مړه پرته وه، مونږ هغې ته ژوند ورکړو، او دهغې نه مو غله راوېستله، چه دهغې نه دا خلق خوراک کوی. او مونږ په دې زمکه کښې د کهجورو او انګورو باغونه پيدا کړل، او داسې انتظام مو اوکړو، چه دهغې نه داوبو چينې روانې شوې دې دپاره چه دوی د هغې د ميوې نه خوراک اوکړی. حالانکه هغې لره د دوی لاسونو نه دې جوړ کړې آيا بيا هم دوی شکر نه ادا کوی؟ پاک دې هغه ذات، کوم ذات چه د هر څيز جوړې پيدا کړې دی. دهغې پيداوار نه هم چه زمکه ئې زرغونوی، اوخپله په دې انسانانو کښې هم، او په هغې څيزونو کښې هم، چه هغې لره دا خلق (لا تراوسه پورې) پيژنی هم نه او ددوئ دپاره يوه بله نښه شپه ده، مونږ دهغې نه د ورځې پوستکې لرې کوو، نو دوی ناساپه په تياره کښې پاتې شی او نمر خپلې ټکانې طرف ته روان دې، دا ټول د هغه ذات مقرر کړې شوې نظام دې، چه دهغه اقتدار هم کامل دې، او دهغه علم هم کامل دې، او سپوږمۍ ده، چه مونږ ددې منزلونه ناپ تول سره مقرر کړې دی، ترددې پورې چه کله هغه (ددې منزلونو د دورې نه) واپس راځی، نو د کهجورې د زړې څانګې پشان (نرۍ) پاتې شی نه خو د نمر دا مجال دې چه هغه سپوږمۍ لره رالاندې کړی او نه شپه د ورځې نه مخکښې کيدې شی، او دا ټول په خپل خپل مدار کښې لامبو وهی او دوئ دپاره يوه نښه داده، چه مونږ ددوئ اولاد لره په ډکه کړې شوې کشتئ کښې سواره کړل او مونږ ددوئ دپاره دغسې نور څيزونه هم پيدا کړل، چه په هغې باندې دوی سورلی کوی او که مونږ اوغواړو، نو دوی لره به غرق کړو، چه دهغې نه پس نه څوک ددوی فرياد واؤری، او نۀ به دوی بچ کړې شی ليکن

Scanned with Ca

دا ټول زمونږ د طرف نه يو رحمت دي، او يو مقرر وخته پورې (د ژوند نه) مزه اخستلو يوه موقع ده (چه دوی ته ورکولې شي).

## خلاصه تفسير

[او] دقدرت نښې او عظيم الشانه نعمتونه کوم چه د توحيد دليلونه هم دي په هغې کښې ﴿وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الْاَرْضُ الْمَيْتَةُ ۖ اَحْيَيْنٰهَا﴾ [يوه نښه ددې خلقو د] استدلال دپاره [مړه مزکه ده] او په دې کښې دنښې خبره داده چه [مونږه دې لره] په باران سره [ژوندۍ کړه ﴿وَاَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا﴾ اومونږ ددې] مزکې [نه مختلفې [غلې راوويستلې ﴿فَمِنْهُ يَاْكُلُوْنَ ۝﴾ پس ددغې نه خلق خوري او] دارنګ ﴿وَجَعَلْنَا فِيْهَا جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ﴾[مونږ په دې] مزکه [کښې د کجورو اونګورو باغونه ولګول ﴿وَّفَجَّرْنَا فِيْهَا مِنَ الْعُيُوْنِ ۝﴾ او په دې کښې] د باغونو د اوبه کولو دپاره [چينې] اوولې [جاري کړې ﴿لِيَاْكُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖ ۙ﴾چه خلق] دغلې په شان [دباغونو دميوو نه] هم [خوري ﴿وَمَا عَمِلَتْهُ اَيْدِيْهِمْ ۭ﴾ او دې] ميوو او غلو [لره ددوی لاسونو نه دی جوړ کړې] اګرچه تخم کرل او اوبه کول په ظاهره ددوی په لاسونو شوی دی مګر دتخم نه اونه او داونې نه په ميوه پيداکولو کښې ددوی هيڅ دخل نشته خاص دالله تعالی کار دې [پس] دداسې دليلونو په ليدو ﴿اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ ۝﴾[بيا هم شکر نه کوی] چه اوله پورې ئې دالله تعالی وجود او دتوحيد اقرار دې دا استدلال خو دزمينې او افاقی د خاصو نښونه وو وړاند دزمينی او نفسياتی نښونه استدلال دې يعنی﴿سُبْحٰنَ الَّذِيْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ كُلَّهَا﴾ [هغه پاك ذات دې چاچه ټول قسمونو لره پيداکړل ﴿مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ﴾ د مزکې د نباتاتو دقسم نه هم] ﴿خواه مقابله دمماثلت وی لکه ديو نه غله او ديونه ميوه خواه مقابله دتضاد والی او مخالفت وی لکه غنم اووريشې او خوږه ميوه او تروه ميوه [او] په خپله ﴿وَمِنْ اَنْفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُوْنَ ۝﴾[ددې بنيادمونه هم] لکه سړې اوښځه [او په هغو څيزونو کښې هم کومو لره چه] عام [خلق نه پيژنی] دمقابلې دعام مفهوم په اعتبار سره په ټولو څيزونو کښې هم څه شې دمقابلې نه خالی نه دې او په دې سره دالله تعالی بې مقابل کيدل معلوم شول په دې سره دايت [ومن كل شئ خلقنا زوجين](1) هم وضاحت وشو [او] وړاندې اوس دځنې ايتونو افاقيه سماويه او ددوی دځنو اثارو نه استدلال دې يعنی ﴿وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الَّيْلُ ښ﴾[يوه نښه ددې خلقو دپاره دشپې] دوخت [ده چه] په وجه د اصل والی دظلمت ګويا اصل وخت دغه وو او دنمر نور عارضی وو ګويا دې تيارې لره ورځې پټه کړې وه لکه دبيزې غوښه چه ددې څرمن پټوی پس] مونږه] دې عارض لره لرې کړو ګويا ﴿نَسْلَخُ مِنْهُ النَّهَارَ﴾[ددې] شپې [نه ورځ وباسو﴿فَاِذَا هُمْ مُّظْلِمُوْنَ ۝﴾ پس يکدم] بيا شپه ښکاره شی او [دغه خلق په تياره کښې پاتې شی ﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا﴾ او] يوه نښه [نمر] دې چه هغه [خپلې تکانې طرف ته روان وی] دا عام دې هغې نقطې لره هم دکومې نه چه روان شی سالانه دوره پوره کړی بيا هغې نقطې ته ورسيږی او نقطه افقيه لره هم چه په روزانه حرکت کښې هلته رسيږی پريوځی ﴿ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ۝﴾[او دا اندازه تړلې شوې ده دهغه] خدائ کوم چه زبردست] يعنی قادردې او [علم والا دې] چه په علم سره په دې انتظاماتو کښې مصلحت او حکمت پيژنی او

---

(1) ترجمه: او مونږ د هر څيز دو قسمونه جوړ کړه۔

Scanned with Ca

په قدرت سره دي انتظاماتو لره نافذ کوی [او] یوه نښه ﴿وَالْقَمَرَ قَدَّرْنٰهُ مَنَازِلَ﴾ [سپوږمۍ] دهٔ چه دهغې درفتار [دپاره مونږ منزلونه مقرر کړي دی] چه هره ورځ یو منزل قطع کوی ﴿حَتّٰى عَادَ كَالْعُرْجُوْنِ الْقَدِيْمِ ۝﴾ [تردې چه] په خپله اخري دوره کښې نرئ نرئ کیږی [داسې شی لکه دکجورې پخوانی ښاخ] چه نرې اوکوږ وی اوممکنه ده چه درنړا دکمزورئ په وجه په زیړوالی کښې هم دمشابهت اعتبار وشی او دنمر سپوږمۍ چال او دشپې او ورځې تلل راتلل ئې په داسې انداز سره اېښودی دی او داسې انتظام ئې ورله کړې دې چه ﴿لَا الشَّمْسُ يَنْۢبَغِيْ لَهَآ اَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ﴾ [نه دنمر مجال شته چه سپوږمۍ لره] ددې د رنړا د ظهور په وخت کښې یعنی په شپه کښې کله چه دا روښانه وی [راونیسی] یعنی دوخت نه وړاند راوخیژی دې لره او ددې وخت شپې لره لرې کړی ورځ جوړه کړی لکه چه سپوږمۍ هم دغه شان نمر لره ددهٔ د رنړا دظهور په وخت کښې نه شی رانیولې چه ورځ لرې کړی شپه جوړه کړی او دسپوږمۍ رنړا په کښې ظاهره شی [او] دغه شان ﴿وَلَا الَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ﴾ [نه شپه د ورځې] مقرر وخت دختمیدو [نه وړاند راتلې شی] لکه چه ورځ هم د شپې مقرر وخت دختیمیدو نه وړاند نه شی راتلې ﴿وَكُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ۝﴾ [او] نمر او سپوږمۍ [دواړه په یوه یوه دائره کښې] په حساب سره داسې چلیږی چه گویا [لامبو وهی] او دحساب نه بهرکیدې نه شی چه دشپې او ورځې په حساب کښې خلل واقع شی [او] وړاند د ايات افاقيه ارضيه نه دیو خاص نښې دسفر او سورلئ وغیره متعلق ارشاد فرمائی یعنی ﴿وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ۝﴾ [یوه نښه د دوی دپاره داده چه مونږ ددوی اولاد لره په ډکه کشتۍ کښې سوارهٔ کړل] خپل اولاد لره به اکثرو خلقو دتجارت دپاره په سفر لیږل پس په دې تعبیر کښې ددرې نعمتونو طرف ته اشاره شوه اول ډکې کشتۍ ته چه د درونډ والی په وجه په اوبو کښې دغرقیدو خیزدې داوبو په سطح روانول دویم دې خلقو ته اولاد ورکول دریم رزق او سامان ورکول چه په خپله کور ناست وی او اولاد کار کوونکی جوړول لیږل [او] د وچې دسفردپاره ﴿وَخَلَقْنَا لَهُمْ مِّنْ مِّثْلِهٖ مَا يَرْكَبُوْنَ ۝﴾ مونږ د دوی دپاره دکشتو په شان داسې څیزونه پیداکړل په کومو چه داخلق سوریږی] مراد ددې نه اوښان وغیره دی او دکشتئ سره ئې تشبیه ددې خاص وصف په اعتبار سره ده چه په دې سورلی او باربرداری او مزل قطع کولې شی او ددې تشبیه حسن په دې سره زیات شو چه په عربو کښې اوښ ته سفينة البر یعنی د وچې دکشتئ وئیلو محاوره شائع وه وړاند دکشتئ د ذکر په مناسبت د عذاب یو وعید فرمائی چه ﴿وَاِنْ نَّشَاْ نُغْرِقْهُمْ فَلَا صَرِيْخَ لَهُمْ وَلَا هُمْ يُنْقَذُوْنَ ۝﴾ [اوکه مونږ وغواړو نو دوی لره به غرق کړو بیا به نه څوک] دکومو څیزونو چه دوی عبادت کولو د هغوی نه [د دوی څوک فریاد رس وی] چه دغرقیدو نه ئې بچ کړی [او نه دا چې غرقیدو نه پس د مرګ نه خلاصې ورکړې شی یعنی نه څوک ئې دمرګ نه خلاص کړی ﴿اِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا وَمَتَاعًا اِلٰى حِيْنٍ ۝﴾ [مګر دا زمونږ مهربانی ده او دوی لره تریو وخت معینه پورې] په دنیاوی ژوند سره [فائده ورکول] منظور [دی] په دې وجه ورله مهلت ورکړې شوې دې

## معارف او مسائل

﴿وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الْاَرْضُ الْمَيْتَةُ﴾ سورة یس کښې زیات مضامین داسې دی چې دقدرت دنخښو او دالله ﷻ په انعاماتو باندې او احساناتو باندې پرې دلیل نیولې شی او په آخرت ، حشر نشر باندې عقیده مضبوطولې شی. دلته په اولنو آیتونو کښې د الله ﷻ دقدرت داسې نخښې بیان کړې

Scanned with Ca

شوي دي چې يو طرفته دالله ﷻ د كامل قدرت ښكاره دليلونه دي او بل طرفته په انسان اوعام مخلوقاتو باندې دالله ﷻ خاص انعامونه او احسانات او په دې كښې د عجيبه حكمتونه ثابتول دي.

اولنۍ آيت مبارك كښې د زمكې مثال پيش كړې شوې دې چې دا هر وخت دانسان دسترګو مخكې دې ، او هغه دا چې په اوچه زمكه باندې د آسمان نه اوبه راوريږي نو په دې سره په زمكه كښې يو قسم له ژوند راپيدا كيږي . او د هغې ظاهريدل په دې شان سره وي چې د هغې نه زرغونه ، ونې او بوټي راټوكيږي . اوددې ونو ، بوټو وغيره ته د ودې او ترقۍ وركولو دپاره يې د زمكې دننه او دزمكې د مخ دپاسه د چينو او ولو جاري كول بيان كړل.

﴿لِيَأْكُلُوا مِنْ ثَمَرِهِ﴾ يعنى د هواګانو ، وريځو او زمكې په كار كښې دلګولو غرض دادې چې خلق ددې ميوې خوري ، داټول په سترګو سره د ليدلو څيزونه دي ، چې هر انسان ئې په ليدلو پوهيږي. دې نه پسې يې انسان په هغې څيزونو خبر كړو چې كومو دپاره دا ټوله كارخانه قائم كړې شوې ده.

**د ونو بوټو پيداوار كښې د انسان څه تعاون نشته دې** :: ﴿وَمَا عَمِلَتْهُ أَيْدِيهِمْ﴾ جمهورو مفسرينو په دې كښې ما صرف د نفى ګرځولې دې . ددې وجې ترجمه ئې داسې كړې ده چې او نه دې جوړ كړې دا ميوې ددې خلقو لاسونو ، دې جملې يو ناخبره انسان په دې خبر كړې دې چې لږ شان په خپل كار او محنت كښې غور كوه چې ستا كار په دې باغ و بهار كښې سوا ددې نه بل څه دې چې تا په زمكه كښې تخم واچولو ، هغې ته دې اوبه وركړې ، زمكه دې نرمه كړه چې د نازك تيغ په راټوكيدو كښې څه خنډ راولاړ نشي . خو ددغې تخم نه ونه راټوكول ، په ونه كښې څانګې ښاخونه غوړكې او پاڼې راوښكل ، بيا په كښې قسما قسم ميوې پيدا كول په دې ټولو كښې ستا څه دخل كيدې شي.

دا خو خالص د قادر مطلق او د حكيم او پوهه ذات كار كيديشي ، څكه ستافرض دادې چې دې څيزونو نه د فائدې اخستو په وخت ددې خالق او مالك هير نه كړې . ددې مثال د سورة واقعه دا آيت دې چې : ﴿أَفَرَأَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ۝ أَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُونَ ۝﴾ يعنى اوخو ګورئ چې كوم څيز چې تاسو كرئ هغې ته ترقى تاسو وركړه . اونه ترې تاسو جوړ كړه او كه مونږ؟ خلاصه ئې دا شوه چې اګر كه ددې ميوو په جوړولو كښې د انسان څۀ دخل نشته دې خو په خپل فضل سره مونږ پيدا كړل ، انسان مو ددې مالك جوړ كړو او هغه ته ئې ددې د خوړلو او ترې د فائدې اخستو اجكل هم اوخودلو.

**د انسان او د حيوان په خوراكه كښې خاص فرق** :: او ابن جرير رحمه الله او څينو مفسرينو په ﴿وَمَا عَمِلَتْهُ﴾ كښې ما لفظ نافيه نه بلكه اسم موصول په معنى د الذى ګرځولې دې . ترجمه ئې داسې كړې ده چې ، دا ټول څيزونه ئې څكه پيدا كړي دي چې خلق ددې ميوې اوخوري او هغه څيزونه هم اوخوري چې دغې ونو بوټو او ميوو نه انسان پخپل عمل او خپل لاس سره تياروي[1] لكه دميوو نه قسماقسم حلواګانې ، مربې ، اچارونه ، چټنيانې تياروي . څينې ميوو نه تيل وغيره راوباسي ، حاصل دا شو چې د قدرت پيدا كړې دا ميوې دانسان د كسب ، عمل او تصرف نه

---

[1]) تفسير الطبرى تحت هذه الآية: ج ۲۰،ص ۵۱۵

Scanned with Ca

بغیر هم د خوړلو جوګه الله ﷻ ګرځولی دی او الله ﷻ انسان په دې اټکل هم پوهه کړې دې چې یوې یوې میوې نه قسما قسم خوندناک او فائدې څیزونه تیار کړی دی.
دې صورت کښې د میوؤ پیداکول او انسان ته ددې طریقه خودل چې یوه میوه نورو څیزونو سره یو ځائې کړی او قسما قسم د خوراک خوندناک او فائده مند څیزونه ترې تیار کړی. دا بل نعمت دې. ابن کثیر رحمه الله د ابن جریر رحمه الله ددې تفسیر په نقل کولو سره فرمائیلی دی چې ددې تفسیر تائید د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د قراءت څخه هم کیږی. ولې چې د هغوئ رضي الله عنه په قراءت کښې د ما لفظ په ځائې مما راغلې دې یعنی [مِمَّا عَمِلَتْهُ أَيْدِيهِمْ] ددې تفصیل دادې چې ددنیا ټول حیوانات هم بوټی او میوې خوری، څه ځناور غوښې خوری، څه خاورې خوری خو ددې حیواناتو خوراکه یوڅیز وی یعنی مفردات، وابښه خوړونکی خالص وابښه خوری غوښه خوړونکی خالص غوښه خوری د اڅیزونه دنورو څیزونو سره مرکب کولو سره قسم قسم خوراکې تیارول لکه کټوئ کښې اصل څیز وی ورسره، مالګه، مرچې او مصالحې وغیره یو ځائې کوی هله ئې خوری داکار صرف دانسان دې او ددې مختلف څیزونو نه مرکب غذا تیارول، دا طریقه ورته الله ﷻ خودلې دې.
دقدرت ددې عظیم الشان نعمتونو بیانولو او په دې کښې د قدرت د کاریګرئی د بې مثاله آیتونو او نښو بیانولو څخه پس په آخر کښې یې اوفرمائیل چې[أَفَلَا يَشْكُرُونَ] یعنی آیا دا عقلمند خلق ددغې ټولو څیزونو د کټلو څخه پس شکر نه کوی.
وریسې د زمکې ددې پیداوار او د اوبو او هوا د بیان څخه پس انسانان او حیوانان ئې هم شامل کړل او دقدرت مطلقه د یوې بلې نښې څخه خبرولې شی :×سُبْحَانَ الَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا مِمَّا تُنْبِتُ الْأَرْضُ وَمِنْ أَنْفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُونَ) دلته د ازواج لفظ د زوج جمع ده چې د جوړې معنی ورکوی جوړه دوؤ متقابلو څیزونو ته وئیلې شی. په دې کښې هر یو د بل زوج وئیلې کیږی. لکه څنګه چې سړې او ښځه د. سړی ته د ښځې او ښځې ته دسړی زوج وئیلې کیږی. دا شان د حیوانات نر او ماده خپلو کښې زوج دی. دنباتاتو په ډیرو ونو کښې د نر او ماده ادراک کړې شوې دې. نو د کهجورې او په پپیته [یو خاص قسم ونه ده] کښې خو نر او ښځه کیدل مشهور دی او که په نورو کښې هم وی نو څه لرې خبره نه ده. لکه څنګه چې د نوی سائنسی تحقیقاتوپه رڼرا کښې په ټولو میوه دارو او ګلونو والا ونو کښې نر او ښځه وی. په دې کښې توالدوتناسل کیدل ښودلې شوی دی. همداشان که دا پته سلسله په جماداتو کښې او په نورو مخلوقاتو کښې هم وی نو څه لرې خبره نه ده چې په [وَمِمَّا لَا يَعْلَمُونَ) ورته اشاره شوې ده. او عام طور سره مفسرینو د ازواج معنی انواع او اقسام لیکلې ده. څکه څنګه چې نر اوماد دواړه ته خپلو کښې زوجین وئیلې کیږی داشان دوه متقابل څیزونو ته هم زوجین وئیلې کیږی لکه یخنی، ګرمی، خشکی، لمده، غم، خوشحالی، بیماری، تندرسی، بیاپه دې هر یو کښې داعلی او ادنی، متوسط اعتبار سره ډیر درجات او قسمونه جوړیږی. داشان په انسانانو او ځناورو کښې هم د رنګ او حالت ژبې او طرز معیشت لحاظ سره ډیر انواع اواقسام دی. لفظ د ازواج دې ټولو انواعو او اقسامو دپاره دې په دې مذکوره آیت مبارک اول کښې [مِمَّا تُنْبِتُ الْأَرْضُ] د نباتاتو د انواعو و اقسامو بیان دې، دې څخه پس [مِنْ أَنْفُسِهِمْ] یعنی پخپله په دې کښې دانسانی نفسوسو د انواعو اواقسامو ذکر دې. او دې څخه پس[وَمِمَّا لَا يَعْلَمُونَ) کښې

Scanned with Ca

دهغې زرګونه مخلوقاتو بيان دې چې تر ننه پورې ئې خلقو ته معلومات حاصل شوی نه دی ، الله ﷻ پوهيږی چې د زمکې ښه دننه ، په درياب‌ونو او غرونو کښې څومره قسمه حيوانات ، نباتات او جمادات دی .

﴿وَآيَةٌ لَّهُمُ اللَّيْلُ نَسْلَخُ مِنْهُ النَّهَارَ﴾ د زمکې په مخلوقاتو کښې د الله ﷻ د قدرت د نښو بيانولو څخه پس د آسمانی او آفاقی مخلوقاتو بيان دې . د سلخ معنی څرمن اوښکل دی کله چې د څاروی څرمن يا دڅه څيز برنې غلاف لرې کړې شی نو دننه څيز ښکاره شی ، الله ﷻ په دې مثال کښې اشاره فرمائيلې ده چې په دې دنيا کښې خو اصل تياره او ظلمت ده او رنړا عارضی ده چې د ستورو او سيارو په ذريعه په زمکه خوريږی په تقديری نظام کښې په ټاکلی وخت باندې دا رنړا چې د دنيا په تياره خوره شوی وی هغه د پورته نه راښکلې شی نو لاندې ترې تياره پاتې شی کومې ته چې په عرف کښې شپه وئيلې شی .

﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ﴾ د آيت مفهوم دادې چې نمر په مخه روان وی خپل مستقر طرفته او مستقر د قلارئ ځائې يا وخت ته وئيلې شی او مستقر زمانی هم کيدې شی او مستقر مکانی هم ، او لفظ مستقر کله انتها د سفر يعنی د ختميدو ځائې ته وئيلې شی . اګر چې دغلته د ايساريدو د سفر بله دوره سمدستی شروع کيږی [ابن کثير] (١).

څينې مفسرينو دلته د مستقر معنی د مستقر زمانی د ظرف زمان کړې ده . يعنی ددې د اوسيدو وخت کله به چې خپل ټاکلې وخت د سفر ختم کړی چې هغه د قيامت ورځ ده . ددې تفسير په بناء د آيت معنی به دا شی چې نمر د خپل ګردش په ځائې کښې داسې مضبوط او محکم نظام سره حرکت کوی چې په کښې يو منټ څه چې يو سيکنډ فرق هم نه راځی . په دې طريقه زرګونه کاله اوشو بيا به هم دا هميشه دپاره نه وی ، ددې د ايساريدو ځائې يو خاص وخت دې چې په هغې به ئې دا حرکت بيخې اودريږی چې دا به د قيامت په ورځ وی ، دا تفسير د قتاده رحمه الله نه منقول دې [ابن کثير رحمه الله] (٢).

او د قرآن کريم د سورة زمر د يو آيت نه هم ددې تائيد کيږی چې مستقر نه مطلب د ايساريدو وخت يعنی قيامت دې ، نو په دغه آيت کښې فرمائی چې : ﴿خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ يُكَوِّرُ اللَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُّسَمًّى أَلَا هُوَ الْعَزِيزُ الْغَفَّارُ﴾ .

دې کښې تقريبا هم هغه بيان دې چې کوم د سورة ياسين په دغې آيت مبارک کښې دې چې اول ئې د ليل او نهار انقلاب لره د عوامی نظر مطابق يو تمثيل سره بيان کړل چې الله ﷻ شپه په ورځ باندې تاؤ وی او ورځ په شپه باندې ګويا کښې شپه او ورځ ئې يو دبل دپاره غلاف اوګرځولو ، وروسې بيا فرمائی چې شمس او قمر دواړه دالله ﷻ په قبضه کښې د هغه د فرمان تابع دی ، دې کښې هر يو تر يو خاص نيټې پورې روان دې . د اجل مسمی نه ثابتيږی چې ددې ګردش به تر قيامته پورې وی څنګه چې د سورة ياسين دآيت نه معلوميږی ، دې تفسير کښې نه دآيت په مطلب او مراد کښې څه اشکال شته ، نه پرې د قواعد هيئت او علم رياضی څه اعتراض شته .

(١) تفسير ابن کثير: ج ٦، ص ٥٧٧
(٢) تفسير ابن کثير: ج ٦، ص ٥٧٧

Scanned with Ca

ځینې مفسرینو حضراتو تر مستقر مکانی مراد اخستې دی ځنګه چې د یو حدیث پاک نه ثابتیږی کوم چې په بخاری او مسلم وغیره کښې د ګڼړو صحابه کرامو رضي الله عنهم په ګڼړو سندونو سره منقول دی.

ابو ذر غفاری روایت کوی چې یو ورځ دې دنمر پریوتولو په وخت مسجد کښې رسول الله ﷺ سره حاضر وو ، نبی کریم ﷺ ابی ذر رضي الله عنه ته مخ کړو او وې فرمائیل چې ته پوهه یې چې نمر چرته ډوبیږی ؟ هغه رضي الله عنه عرض اوکړو چې الله اود هغه رسول ﷺ ښهٔ پوهیږی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې نمر په مخه روان وی کله چې د عرش لاندې ور اورسیږی نو سجده اوکړی ، بیا ئې اوفرمائیل چې په دې آیت کښې د مستقر نه هم دا مراد دې. ﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِیْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا﴾ اوهم د ابوذر رضي الله عنه په یو روایت کښې دا الفاظ دی چې ما د رسول کریم ﷺ ځخه د ﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِیْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا﴾ د تفسیر باره کښې تپوس اوکړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿مُسْتَقَرُّهَا تَحْتَ الْعَرْشِ﴾ بخاری ،یو دا روایت په ګڼړو ځایونو کښې نقل کړې دې. او د ابن ماجه نه علاوه په ټولو شپږو کتابونو کښې دا روایت موجود دې[1] ، دغسې مضمون د حدیث د عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه هم منقول دې. هغې کښې ځه زیات الفاظ هم شته ، دهغې مطلب دادې چې امروزه نمر د عرش لاندې وراورسی نو سجده کوی او د نوې دورې اجازت غواړی چې اجازت ورکړې شی نو نوې دوره شروع کړی ، تر هغې چې یوه ورځ به ورته دنوې دورې اجازت ورنکړې شی بلکه ورته به اووئیلې شی چې د کوم طرفنه راغلې ئې هغې اړخ ته بیا ورشه .یعنی هم ددې ځائې د زمکې لاندې نه واپس شه او هم د مغرب اړخ نه اوخیژه ، په کومه ورځ چې داسې اوشی دا بهٔ ددې نخښه وی چې قیامت بیخی نزدې دې ځکه به دغه وخت د توبې کولو او ایمان راوړلو دروازه بنده شی ، ځوک چې په کفر او شرک کښې دغه وخت اخته وی توبه به ئې قبوله نشی ، [ابن کثیر په حواله د عبد الرزاق][2].

**د عرش لاندې دنمر د سجدې کولو تحقیق** :: د دې روایتونو نه معلومیږی چې مستقر نه مراد مکانی مستقر دې چرته چې د نمر امروزه دوره پوره کیږی اوداهم معلومه شوه چې دغه ځائې د عرش لاندې دې ، په دغه صورت کښې بهٔ د آیت مطلب دا وی چې هره ورځ نمر یو خاص مستقر ته ورځی ، هلته په رسیدو الله ﷻ ته سجده کوی. د بلې دورې اجازت غواړی په اجازت موندو بله نوې امروزه دوره شروع کوی لیکن د واقعاتو او مشاهداتو او د هیئت او فلکیاتو دبیان کړو اصولو په بناء په دې کښې ځو قوی اشکالات دی.

① اول دا چې د قرآن پاک او سنت تر مخه دا معلومیږی چې عرش د ټولو آسمانونو او زمکو نه راچاپیره دې او ټول ددې لاندې راګیر دی. په دې بنا نمر په هیڅ حال کښې د عرش د لاندې نه بل خوا چرته تلې نشی نو د ډوبیدو نه پس عرش لاندې د ورتلو نه څهٔ مطلب دې ؟

② دویم دا چې په عام ډول لیدیشی چې نمر هر وخت چرته ډوب شی ، بل اړخ ته سمدستی راخیژی هیڅ آیساریدل او مهلت په کښې نه وی بیا د ډبیدو نه پس عرش لاندې د ورتلو او

[1] صحیح مسلم، کتاب الایمان، باب بیان الزمن الذی لا یقبل فیه الإیمان، ج ۱، ص ۸۸، وصحیح البخاری، کتاب التفسیر، سورة یٰس، باب والشمس تجری لمستقرلها: ج ۲، ص ۷۰۹

[2] تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ۵۷۷، ومصنف عبدالرزاق، باب اشراط الساعة، رقم الحدیث: ۲۰۸۱۰

Scanned with Ca

سجدې کولو څه معنی ده ؟

④ دریم دا چې د حدیث د ظاهر نه د امعلومیږي چې نمر خپل مستقر ته په رسیدو دې د پاره څه قدرې ایساریږي چې هلته الله ﷻ ته د سجدې کولو نه پس د نوې امروزه دورې اجازت غواړي. حالانکه هر څوک وینی چې د نمر په حرکت کښې هیڅ وخت څه بندیز نه راځی او دا هم لیدلې کتلې شی چې د نمر ډوبیدل او راختل هر وخت جاري وی ، خاص وخت یا خاص ځائې نشته ، نو په دې بنا که د ایساریدل ئې راشی نو مطلب ئې دا وی چې نمر به د سره څه حرکت نه کوی .

دا اشکالونه یواځې د ریاضی او فلکیاتو د فنونو نه دی بلکه واقعات اولیدل کتل هم دغسې دی چې تردید ئې نه کیږی . اود بطلیموس دا نظریه ده چې د نمر امروزه گردش او حرکت د عرش تابع دې او نمر په څلورم آسمان کښې صحیح مرکوز دې . ددې خلاف په اول کښې فیثا غورث کړې وو ، او د نن صبا نوی تحقیقاتو سره بطلیموسی نظریه غلطه او د فیثار غورث نظریه صحیح او یقینی معلومیږی . او موجوده خلائی سفرونو او سپوږمۍ ته د انسان د رسیدو واقعاتو خو دومره خبره یقینی کړې ده چې تولې سیارې د آسمان د لاندې په فضا کښې دی ، په آسمان کښې صحیح مرکوز نه دی دغسې د قرآن پاک د راتلونکی آیت ﴿وَكُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ﴾ نه هم ددې نظریئ تصدیق کیږی . دې نظریه کښې دا هم دی چې دا امروزه د نمر راختل او ډوبیدل د نمر په حرکت سره نه وی بلکه د زمکې په حرکت سره وی . ددې فنی نظریئ په اعتباره سره په دغې بیان شوی حدیث پاک کښې یو بل اشکال زیاتیږی . ددې په جواب باندې د خان پوهولو نه وړاندې دې ته کتل پکار دی چې ددغې آیت په تصریح باندې د بیان شوی شبهو او اشکالو څینې یو اشکال هم په قرآن پاک باندې نه کیږی . ددې مطلب خو صرف دومره دې چې نمر لره خو الله ﷻ په داسې یو منظم او مضبوط حرکت باندې لگولې دې چې هغه په مخه خپل مستقر ته په یو حالت باندې روان وی ، که د تفسیر د قتاده رحمه الله مطابق مستقر نه مراد مستقر زمانی واخستې شی چې هغه ورځ د قیامت ده ، نو ددې معنی به داوی چې د نمر دا حرکت د قیامت پورې دائمی په یو حال باندې چلیږی اوبیا هغه ورځ دابه ختم شی . او که مستقر مکانی تر مراد واخستې شی نو هم ددې مستقر د مدار شمسی هغه نقطې او تکی ته وئیلې شی چې د کومې نه چې د اول پیدائش په وخت د نمر حرکت شروع شوې وو . چرته په رسیدو ددې دشواروز یو گردش او مزل پوره کیږی ځکه چې هم دا ددې د سفر انتها هم ده او ددې نوې گردش هم شروع کیږی . اوس دغه عظیم الشانه نقطه چرته او کومه ده چرته نه چې د نمر گردش ددې د ابتداء د پیدائش نه شروع شوې دې؟ نو قرآن پاک پداسې فضول بحثونو کښې انسان لره نه راگیروی په کومو کښې چې ددهٔ څه دینی یا دنیاوی فائده نه وی . ځکه قرآن پاک دا بحث د سره پریخودو او اصل مقصد ته ئې مخ راواړولو چې هغه د الله ﷻ د قدرت اوحکمت کامله د خاصو نندارو بیان دې چې په دې دنیا کښې د تولو نه لویه او تولو نه زیاته روښانه غوندسکه د گول نمر ده ، هغه خونه پخپله جوړ شوې دی اونه پخپله ئې څه حرکت کیږی اونه باقی پاتې کیدیشی ، هغه په خپل امروزه حرکت کښې هر وخت د الله ﷻ په حکم اجازت او ارادې سره چلیږی .

Scanned with Ca

دغه تول بيان شوي اشكالونه وغيره داسې نه دي چې ددې آيت په بيان كښې څه ګواخ او كړې شي. البته دا ټول اشكالونه دهغه احاديثو سره متعلق دي په كومو كښې چې د امروزه ګردش په ختميدو او د نوي ګردش په شروع كيدو تر عرش لاندې د نمر د سجدې كولو بيان راغلې دې او ددې آيت مبارک په ذيل كښې دا بحث ځكه اوچيرلې شو چې د حديث په ځينې الفاظو كښې ددې آيت مبارک حواله وركړې شوې ده. نو ددې جوابونه محدثينو او مفسرينو مختلف وركړې دي. د ظاهري الفاظو په اعتبار سره چې داګنړلې شي د اسجده چې نمر امروزه د خپل ګردش په ختمولو د ډوبيدو نه پس صرف يو ځل كوي، نو كومو حضراتو چې ددې ظاهري مطلب اخستې دې هغوئ د ډوبيدو باره كښې درې احتمالونه بيان كړې دي. يو داچې هلته ئې ډوبيدل مراد وي چرته چې ددنيا لويه آبادئ باندې ډوبيږي، يا دخط استواء غروب مراد وي، يا د مدينې د افق ډوبيدل مراد وي، په دې شان دا اشكال نشي كيدې چې نمر خو هر وخت په ډوبيدو او راختو وي ولې چې په دې حديث پاک كښې د يو خاصې كنارې په ډوبيدو باندې كلام شوې دې. ليكن صفا او بې غباره جواب هغه معلوميږي چې كوم استاد علامه شبير احمد عثمانی رحمه الله په خپلې مقاله سجود الشمس كښې اختيار كړې دې او د تفسير د ګڼرو عالمانو د كلام نه ددې تائيد كيږي.

دې باندې د ځان پوهولو نه وړاندې د پيغمبرئ تعليماتو او تعبيرونو مطابق په دې اصولي خبره باندې ځان پوهول ضروري دي چې آسماني كتابونو او ددې راوړنكو پيغمبرانو ﷺ خلقو ته دزمكې او د آسمان مخلوقاتو كښې د غوروفكر او سوچ كولو په مخه بلنه وركړې ده. او ددې نه ئې دالله ﷻ په وجود توحيد، علم او قدرت باندې دليلونه نيولي دي خو په دې ځيزونو كښې تر دې حده پورې د غور كولو شرعي ضرورت دې تر كومې چې ورسره د انسان د نياوي او معاشرتي يا ديني او اخرويضرورت تړون لري. ددې نه زيات په خالص فلسفي باريكيانو او د ځيزونو د حقيقتونو د نغم لګولو په فكر كښې د الله ﷻ عام مخلوق نشي اچولې ولې چې اول خو د ځيزونو حقيقي مكمل علم پخپله حكيمان اوفلسفيان هم نه لري. حالانكه ټول عمرونه ئې په دې كښې تير كړي دي نو غريبانان عوام په څه شمير كښې دي. او كه حاصل هم شي د هغې نه ورته څه صحيح دنياوي يا ديني مقصد هم نه حاصليږي نو په دغه بې مطلبه او فضول بحث كښې دخل وركول د مال او د عمر ضائع كولو نه سوا بل څه په ګوتو راځي؟

قرآن كريم او پيغمبران ﷺ صرف هغه ځيزونه په دليل كښې پيش كوي چې هر څوک ترې په ليدلو كتلو او معمولي فكر او غور كولو سره مطلب اخستې شي، په داسې ځيزونو باندې د ليل نيول نه ښائي چې باريكئ په كښې وي او بغير د عالمانو، حكيمانو او فلسفيانو نه پرې بل څوک نه پوهيږي. ولې چې په الله ﷻ باندې ايمان راوړل او د هغه په پيغام باندې عمل كول د هر انسان فرض دې. عالم وي كه جاهل وي نر وي او كه ښځه وي، د كلي اوسيدونكئ وي او كه د ښار وي غر يا جزيره كښې اوسيږي يا په ترقي يافته ښاريه كښې، ځكه پيغمبري تعليمات د عوامو د نظر او ددوئ د عقل او پوهې مطابق وي چې په كښې د څه فني مهارت ضرورت نه وي.

دمونځونو وختونه پیژندل ،دقبلې رخ ټاکل ، په میاشتو ، کالونو او تاریخونو باندې پوهیدل دا دعلم ریاضی د حسابونو په ذریعه هم کیدیشی ، خو اسلامی شریعت ددې اړه د ریاضۍ په فنی تحقیقونو باندې نه ده لړلې .بلکه په عامه لیدنه کتنه باندې ئې لړلې ده ، دمیاشتو کالونو او نیټو حساب ئې په قمری حساب ایخودې او د میاشتې نوی کیدل ئې د میاشتې په لیدلوکتلو باندې بنا کړی دی.دغسې دمیاشتې د لوئیدو، کمیدو ، ښکاره کیدو او پټیدو راز ځینو خلقو معلومول د رسول الله ﷺ نه اوغوښتل نو د هغې جواب قرآن پاک داسې ورکړو.

﴿قُلْ هِيَ مَوَاقِيتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ﴾ یعنی تاسو اووایئ چې په دې کښې اصلی مقصد خلقو ته د دینی احکامو روژې وغیره نیټې ټاکل دی او د میاشتې ابتداء او انتها معلومول دی. دې جواب سره دا خبردارې ورکړې شو چې ستاسو په دغه شان سوال کول بې مطلبه او فضول دې ددې په حقیقت معلومولو باندې ستاسو ددین یا دنیا څه کار اړه نه لری. ځکه سوال د هغې څیز کوئ چې د هغې تعلق ستاسو دینی یا دنیاوی ضرورت سره وی.

ددې تمهید نه پس په اصل معامله باندې غور اوکړئ چې په دې آیتونو کښې الله ﷻ دخپل کامل قدرت اوبالغ حکمت څو نندارې بیان کړې او انسان ته ئې د الله ﷻ په توحید او علم او دهغه په قدرت کامله باندې د ایمان راوړو بلنه ورکړې ده . په دې کښې ئې د ټولو نه اول د زمکې بیان اوکړو چې هر وخت زمونږ په وړاندې ده فرمائی چې: ﴿وَآيَةٌ لَّهُمُ الْأَرْضُ﴾ بیا ئې پرې داوبو راورولو او په کښې ئې د ونو بوټو د رازرغونیدو بیان اوکړو چې هر انسان ئې وینی پیژنی اوفرمائی چې : ﴿أَحْيَيْنَاهَا﴾ وروسې ئې د آسمان او آسمانی فضا د څیزونو بیان شروع کړو اول ئې د لیل او نهار یعنی شپې او ورځې د بدلیدو بیان اوکړو ، وې فرمائیل :﴿وَآيَةٌ لَّهُمُ اللَّيْلُ﴾ وروسې ئې د نمر او سپوږمۍ بیان اوکړو په سیارو او ستورو کښې دټولو نه لوئې ستوری دی نو نمر باره کښې فرمائی چې :

﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ۚ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ﴾ دې باره کښې غور اوکړئ چې ددې مقصد دا خودل دی چې نمر پخپله پخپلې ارادې اوقدرت سره نه چلیږی بلکه دا دیو عزیز او علیم اوپیژندونکی دمقرر کړی نظام په مطابق چلیږی . د نمر د ډوبیدو په موقعه رسول الله ﷺ ابی ذر غفاری رضی الله عنه لره دیو سوال جواب په ذریعه په دې حقیقت باندې د خبرداره کولو هدایت ورکړو چې نمر د ډوبیدو نه پس ، عرش لاندې الله ﷻ ته سجده کوی ، او بیا د نوی سفر شروع کولو اجازت غواړی ، چې اجازت حاصل کړی هله حرکت شروع کړی او د دستور مطابق د صبا په وخت ختیز اړخ ته راخیژی ددې حاصل ددې نه زیات نه دې چې دنمر د راختو او پریوتو په وخت په دنیا کښې یو نوې انقلاب راځی چې په نمر باندې اړه لری. رسول الله ﷺ دا انقلابی وخت انسانی خبردارئ دپاره موزون اوګڼړلو او د خودلو نه ئې اوفرمائیله چې نمر لره خودمختاره او پخپله خوښه او قدرت سره چلیدونکې مه ګڼرئ ، دا صرف دالله ﷻ په حکم او ارادې سره روان دې. هروار راختل او ډوبیدل ئې دالله ﷻ په حکم سره وی ، دالله ﷻ دفرمان مطابق ددې حرکت کول ددې سجده اوګرځولې شوه ولې چې د هر څیز سجده کول دهغه د حال مناسب وی ، لکه قرآن پاک پخپله فرمائی چې ﴿كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهُ وَتَسْبِيحَهُ﴾ یعنی دالله ﷻ هر یو مخلوق د الله ﷻ په عبادت اوتسبیح کښې لګیا وی خو د هر یو د عبادت او تسبیح بیله بیله طریقه ده او هر یو مخلوق ته د هغه د عبادت او تسبیح طریقه خودلې شوې

Scanned with Ca

دا پوهیدل غلط دي چې د هر مخلوق عبادت کول لکه د انسان په شان په زمکه باندې تندي ایښودل دي.
دقرآن پاک او دحدیث پاک د ښکاره بیانونو مطابق عرش مجید د ټولو آسمانونو او سیارو او زمکې نه چاپیره دې، په دې بنا ښکاره خبره ده چې نمر هر وخت دعرش د لاندې وي، تجربه داده چې نمر چې په یو ځائې ډوبیږی نو په یو بل ځائې راخیژی نو ددې هیڅ وخت د ډوبیدو او راختلو نه خالي نه دې. نو عرش لاندې ددې پاتې کیدل هم همیشه دپاره دی او ډوبیدل او راختل ئې هم په هر حال کښې دي څکه د حدیث پاک د مضمون حاصل دا شو چې نمر دخپل گردش او سفر په هر سیکنډ کښې د عرش لاندې د الله ﷻ په وړاندې سجده کوی، مطلب دا چې حرکت ئې د الله ﷻ د ذات او فرمان تابع وی، او دا سلسله به دغه شان قیامت ته نزدې پورې روانه وی کله چې قیامت بیخی رانزدې شی نو ددې د نښې او علامې په ډول به نمر دختیز په ځائې د لوئیدیز اړخ ته راوخیژی. په دې سره به دتوبې دروازه بنده شی، د چا ایمان او توبه به دغه وخت قبوله نه وی.
خلاصه دا شوه چې نه خو د نمر ډوبیدو څه خاص وخت دې، هروخت ډوبیږی او راخیژی، نه په یو خاص وخت کښې تر عرش لاندې ورځی. او هلته سجده کوی. بلکه هر وخت ئې دغه حالت وی. دا د پیغمبری تعلیم مناسب بالکل عوامی نظریه اعتبار سره یو تمثیل دې، دې څخه دا نه لازمیږی چې لکه د انسان پشان په تندی لګولو سجده کوی، داسې هم نه ده چې په سجده کولو سره د نمر په حرکت کولو کښې څه وقفه راځی. او دا مراد هم نه دې چې ګنی په شواروز کښې صرف یو ځل په یو خاص ځائې کښې سجده کوی او نه خاص د ډوبیدو څخه پس د عرش لاندې ورځی. مګر په دې انقلابی وخت کښې کله چې ټول عوام دا اووینی چې نمر زمونږ نه غائبیږی په دغه وخت کښې په طور د تمثیل دوئ لره یې ددې حقیقت څخه خبرل کړل چې دا ټول هر څه په حقیقت کښې دا خودل دی چې نمر هر وخت د الله ﷻ د حکم مطابق د عرش لاندې په حرکت وی، نمر پخپله د هیڅ وس اختیار نه لری، نو څنګه چې د مدینې والو په دغه وخت کښې دا محسوسول چې اوس به نمر سجده اوکړی او بیا د بلې دورې اجازت واخلی داشان کوم کوم ځایې کښې چې دا غروب کیږی نو ټولو دپاره د سبق حاصلولو تلقین شو، او په حقیقت کښې معامله دا شوه چې نمر پخپل مدار کښې دحرکت دوران کښې هره لمحه کښې الله ﷻ ته هم سجده کوی او د مخکښې تللو اجازت هم اخلی. او ددغې سجدې او اجازت دپاره د څه وقفې او سکون ضرورت نه وی
په دې تقریر سره په ذکر شوی حدیث کښې نه د مشاهداتو په وجه څه شبه راځی اونه د ریاضئ او هئیت د قواعدو په وجه څه شبه راځی اوپه نظام شمسی ا و د سیارو په حرکت کښې که د بطلیموس تحقیق صحیح وی یا د فیثا غور تحقیق د کوم چې د نن سبا د نوی تحقیقاتو په ذریعه تائید شوې دې دواړو صورتونو کښې هیڅ اشکال او شبهه باقی نه پاتې کیږی.
پاتې شو دا سوال چې په مذکوره حدیث پاک کښې د نمر دسجدې کولو او د بلې دورې اجازت غوښتل مذکور دی نو داکار خود ژوند، عقل او علم سره تعلق لری، نمر او سپوږمی بې ساه او بې شعوره مخلوقات دی ددې څخه دا افعال څنګه صادرشو؟ نو ددې جواب د قرآن کریم

آیت مبارك ﴿وَاِنْ مِّنْ شَیْءٍ اِلَّا یُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰکِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِیْحَهُمْ﴾(¹) لاندې راغلې دې، چې موږ کوم څیزونه بې ساه او بې عقله ګڼړو هغوئ هم په حقیقت کښې د روح او ساه او عقل او شعور یوه حصه لري. البته ددوئ ژوند او عقل اوشعور د انسان او حیوان په مقابله کښې کم او دومره کم دی چې عام احساسات ددې ادراك نشي کولې. خو ددې په نفی باندې هم څه شرعی یا عقلی دلیل موجود نه دې. او قرآن کریم په مذکوره آیت مبارك کښې ددوئ ذی حیات او ذی شعور کیدل ثابت کړی دی. او نوؤ تحقیقاتو هم دا منلې دی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

**فائـده:** د قرآن وحدیث ددغې ښکاره بیان نه داخبره په ښکاره ډول ثابته شوه چې نمر او سپوږمۍ دواړه حرکت کوی چې یوې نیتې ته رسید و دپاره روان وی، دې نه دا نوې نظریه بالکل غلطهٔ ثابتیږی چې ګنی نمر حرکت نه کوی، او بیخی نوی تحقیق هم دا نظریه په غلطه ثابته کړیده.

﴿وَالْقَمَرَ قَدَّرْنٰهُ مَنَازِلَ حَتّٰی عَادَ کَالْعُرْجُوْنِ الْقَدِیْمِ﴾ ﴿عُرْجُوْنِ﴾ د کهجورې د ونې اوچې څانګې ته وئیلې شی چې لکه د کمان لیندې پشان راکږه شی.

**د سپوږمۍ پړاؤنـه:** منازل د منزل جمع ده، د راکوځیدو ځائې ته وئیلې شی، الله ﷻ دنمر اوسپوږمۍ دواړو د رفتار دپاره خاص حدونه مقرر کړی دی چې په کښې هر یو ته منزل وئیلې شی. د سپوږمۍ منزلونه په میاشت کښې دیرش یا یوکم دیرش وی ځکه چې هغه خپله دوره په دومره ورځو کښې پوره کوی. خو هر کله چې سپوږمۍ په هره میاشت کښې کم نا کم یوه ورځ غائبه پاتې کیږی ځکه ددې منزلونه اته ویشت وئیلې شی، د هیئت او ریاضی خاوندانو ددې منزلونو خاص خاص نومونه د هغه ستورو په مناسبت سره ایخودی دی کوم چې هغې سره نزدې دی، د عربو د جاهلیت په زمانه کښې هم پدغه نومونو سره د منزلونو تاکل کیدیشو. قرآن پاك ددغې اصطلاح نومونو نه زیات پورته دی، ددې مراد صرف هغه فاصلې دی چې سپوږمۍ ئې په خاص خاص ورځو کښې غوځوی[پریکوی].

په سورهٔ یونس کښې ددې تفصیل دمعارف القرآن په څلورم جلد کښې تیر شوې دې، هلته ئې اوګورئې هلته د نمر اوسپوږمۍ دواړو منزلونو بیان داسې راغلې دې.

﴿هُوَ الَّذِیْ جَعَلَ الشَّمْسَ ضِیَآءً وَّالْقَمَرَ نُوْرًا وَّقَدَّرَهٗ مَنَازِلَ﴾(²) فرق صرف دومره دې چې د سپوږمۍ منزلونه په لیدو کتلو سره پیژندې شی او د نمر منزلونه د ریاضی په حسابونو سره پیژندلې شی.

﴿حَتّٰی عَادَ کَالْعُرْجُوْنِ الْقَدِیْمِ﴾ سره د سپوږمۍ د آخروشپو حال بیان شوې دې ولې چې کله د سپوږمۍ ککورئ [ټکی] په څوارلسمه شپه سلامت یعنی پوره شی نو د هغې نه پس رو رو[کرار کرار] دا په کمیدو شی او په آخر کښې د لیندې شکل اختیار کړی. دعربو د چاپیرچل ماحول ددې مثال د کهجورې د اوچې څانګې سره ورکړې شوې دې چې د ړومبۍ شپې شکل اختیار کړی.

﴿وَکُلٌّ فِیْ فَلَكٍ یَّسْبَحُوْنَ﴾ یعنی نمر او سپوږمۍ دواړه د خپل خپل ګردش په ځایونو کښې لامبووهی. د فلك لفظی معنی آسمان نه ده بلکه ددې معنی هغه دائره ده چې یو سیاره په

---

¹) ترجمه: او کوم یو څیز هم داسې نشته چه دهغه ذات تعریف سره پاکی نه بیانوی

²) ترجمه: او الله هغه ذات دی چی نور ېی چمکدار او میاشت ېی نورانی جوړه کړی ده.

Scanned with Ca

کښې گردش کوی ، دا آیت مبارک په سورهٔ انبیاء کښې هم تیر شوې دې چې په کښې د اخودلې شوی دی چې ددې آیت مبارک نه د امعلومه شوه چې سپوږمئ په یو آسمان کښې فټ شوې نه ده څنګه چې په هیئت علم کښې بطلیموسی نظریه ده ، بلکه دا د آسمان د لاندې په یو خاص چاپیریال کښې حرکت کوی . او نن سبا نوؤ تحقیقینو اوسپوږمئ ته دانسان د رسائ واقعاتو دا بیخی یقینی جوړه کړې ده .

﴿وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ۝ وَخَلَقْنَا لَهُمْ مِّنْ مِّثْلِهٖ مَا يَرْكَبُوْنَ ۝﴾ ړومبې دزمکې د مخلوقاتو یا د آسمانی مخلوقاتو او په دې کښې د الله ﷻ دحکمت او قدرت د ننداري بیان راغلې دې . دې آیت کښې دریاب او دې سره تړلو څیزونو کښې د قدرت دننداري بیان دې چې الله ﷻ کشتیو لره پخپله سره ددې چې درنې وی او درانه پیټی پرې اینبودې شوی وی خو بیا هم په اوبو دپاسه د ګرځیدو جوګه ئې جوړه کړه اوبو کښې ئې د ډوبیدو او په ځائې ددې جوګه کړه چې درانه درانه پیټی لرې لرې ملکونه ته رسوی ، په آیت کښې ارشاد دې :؛مونږ د دوئ اولاد په کشتو کښې سوارهٔ کړل . حالانکه دوئ په کښې پخپله سوریدونکی وو . د اولاد ذکر ئې څکه اوفرمائیلو چې په انسان باندې ټولو نه زیات پیټې د هغه اولاد وی خصوصا هغه اولاد چې د ګرځیدو راګرځیدو جوګه لانه وی . او د ایت مطلب دادې چې یواځې تاسو نه بلکه ستاسو ماشومان او کمزوری خلق او ددوئ ټول سامانونه دا کشتئ یو ځائې نه بل ځائې ته اوړی . او د ﴿وَخَلَقْنَا لَهُمْ مِّنْ مِّثْلِهٖ مَا يَرْكَبُوْنَ ۝﴾ معنی دا ده چې د انسان د سورلئ اوپیټی اوړلو دپاره یواځې کشتئ نه بلکه نورې نورې سورلئ مو هم پیدا کړی دی . نو عربو خلقو دې نه د خپل عادت مطابق د اوښانو سورلئ مراد اخستې ده څکه چې اوښ په بار اوړو کښې د ټولو څناورو نه زیات دی لوې لوې بوجونه اوچتوی او د ملکونو سفرونه کوی څکه عرب اوښ ته سفینة البر وائی .

**قرآن پاک کښې د هوائی جهاز بیان** :: دا خو ښکاره خبره ده چې قرآن پاک دلته د څه خاصې سورلئ اوښ وغیره نوم نه دې اخستې بلکه مبهم ئې خبره پریښې ده څکه په کښې هر هغه سورلئ راځی چې د انسان د سوریدو یا د سامان دباړولو ئې جوګه وی ، ددې زمانې هوائی جهازونو دا واضحه کړه چې د مِن مثله د ټولو نه لوئې مصداق هوائی جهاز دې چې تقریبا د کشتئ پشان دې ، فرق صرف دومره دې چې هغه کشتئ په اوبو دپاسه ګرځی او په کښې ډوبیږی نه او دا یعنی هوائ جهاز په هوا دپاسه ګرځی او راغورزیږی نه ، او عجیبه نه ده چې قرآن پاک ﴿مِّنْ مِّثْلِهٖ مَا يَرْكَبُوْنَ ۝﴾ څکه مبهم پریخودې وې چې ترقیامته پورې ایجاد کیدونکې ټولې سورلئ په دې کښې شامل شی ، والله اعلم

| لَهُمْ | قِيْلَ | وَاِذَا |
|---|---|---|
| دوئ ته | اووئیلې شی | او کله چې |

او څه وخت چې دوئ ته اووئیلې شی

| اتَّقُوْا | مَا | بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ | وَمَا | خَلْفَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| چې خان اوساتئ | د هغه انجام نه | چې په مخکښې ستاسو دې | او هغه | اروستو یې تاسو پرېږدئ |

چې د هغه عذاب نه اوویریږئ | کوم چې ستاسو نه وړاندې دې | او کوم چې ستاسو نه روستو هم

Scanned with Ca

لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ۝ وَمَا تَاْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ مِّنْ اٰيٰتِ رَبِّهِمْ

دپاره ددې چې په تاسو رحم اوکړې شي | اونه راځي دوئ ته | يو آيت | دآيتونو | درب خپل نه

چې رحمت درباندې اوشي|انو دوئ هيڅ پرواه نه کوي|اودوئ ته ددوئ درب دطرفه داسې نخښه نه ده راغلې

اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ۝ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اَنْفِقُوْا

مګر وی دوئ | دهغې نه | مخ اړونکی | او کله چې | اوونيلې شی | دوئ ته | چې خرچ کړئ

چې دوئ ترې نه مخ نه وی اړولې | اوهرکله چې دوئ ته اوونيلې شی چې دهغې رزق نه خرچ کوئی

مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ ۙ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

دهغې رزق نه | چې درکړې دې تاسو ته | الله | نو وائی هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې

کوم چې تاسو ته الله ﷻ درکړې دې | ..................نو کافران مسلمانانو ته

لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنُطْعِمُ مَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ

هغه کسانو ته | چې ايمان ئې راوړې دې | آيا مونږه طعام ورکړو | هغه چاته | که غوښتلې الله

داسې وائی | چې آيا مونږ په هغه چا باندې خوراک اوکړو | که دالله ﷻ خوښه شوې وې

اَطْعَمَهٗٓ ۖ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ۝

نو طعام به ئې ورکړې وو هغه ته | نۀ يئ تاسو | مګر | په ګمراهئ ښکاره کښې |

نو رزق به ئې ورکړې وو | .....دا تاسوخو په ښکاره ګمراهئ کښې پراته يئ |

## آسان ترجمه قرآن

**او کله چه دوی ته وئیلې شی چه: بچ شئ دهغې (عذاب) نه چه ستاسو مخکښې دې، او چه ستاسو (د مرګ نه) پس به راځی، دې دپاره چه په تاسو باندې رحم اوکړې شی، (نو هغوی غوږ نه ایږدی) او دهغوی د پروردګار د نښو نه هیڅ یوه نښه داسې نه راځی چه دهغې نه دوی مخ نه اړوی. او چه کله دوی ته اووئیلې شی چه: الله تعالیٰ تاسو ته کوم رزق درکړې دې، دهغې نه (په غریبانانو باندې هم) خرچ کوئ، نو دا کافران خلق مسلمانانو ته وائی چه: آیا مونږ هغې خلقو ته خوراک ورکړو هغوی ته که الله تعالیٰ غوختلې، نو په خپله به ئې ورکړې وې؟ (مسلمانانوا) ستاسو حقیقت ددې نه سوا هیڅ هم نه دې چه تاسو په ښکاره ګمراهئ کښې پراته یئ.**

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِذَاقِيْلَ لَهُمْ﴾[اوکله چه دې خلقو ته] دليلونه دتوحيد او په دې د نه منلو په صورت کښې دعذاب وعيد واؤ روی [او وئيلې شی ورته ﴿اتَّقُوْامَابَيْنَ اَيْدِيْكُمْ﴾چه تاسوخلق د هغه عذاب نه وويرېږئ کوم چه ستاسو په وړاند دې] يعنی په دنياکښې راتلې شی لکه بره په ايت [وان نشا نغرقهم] کښې بيان شوه چه د کښتئ صحيح سالم منزل ته رسول دالله تعالی په قدرت او مشيت سره دی هغه که غواړی نو غرقولې شی غرض په دنيا کښې دغرقيدو عذاب هم راتلې شی او بل عذاب هم ﴿وَمَاخَلْفَكُمْ﴾[اوکوم چه تاسونه وروستو] يعنی دمرګ نه پس په اخرت کښې يقينی راتلونکې [دې] مطلب دادې چه دتوحيدنه دانکار په وجه سره چه کوم عذاب په تاسو راتلونکې دې خواه صرف په اخرت کښې يا په دنيا کښې هم تاسود عذاب نه وويرېږئ او ايمان

Scanned with Ca

راوړي ﴿لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾ [چه په تاسو رحمت وشي] نو هغوی د دې ترهیب او په عذاب سره ډیرولو يوه ذره پرواه نه کوی [او] ددې خبرې دنه منلو څه تخيص دې هغوی خو داسې سنګدله شوی دی چه ﴿وَمَا تَأْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ مِّنْ اٰيٰتِ رَبِّهِمْ اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ﴾ ددوی درب دایتونو نه څه ایت هم دوی ته داسې نه راځي چه دوی ترې نه مخ نه اړوی او] څنګه چه دعذاب په وعید سره ﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ﴾ [کله چه] دوی ته دالله تعالی نعمتونه وریادکړې شی [دوی ته ووئیلې شی ﴿اَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ﴾ چه الله تعالی تاسو ته څه درکړی دی دهغې نه] دالله تعالی په لاره کښې په فقیرانو مسکینانو [خرڅ کوئ نو] دشرارت اومسخرو په طور ﴿قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ [داکفار دې مسلمانانو ته] کومو چه دالله تعالی په لاره کښې دخرڅ کولو دپاره ورته وئیلی وو [داسې وائی ﴿اَنُطْعِمُ مَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ اَطْعَمَهٗ﴾ چه ایامونږ داسې خلقو ته خوراك ورکړو کومو لره کله چه الله تعالی غوښتلې نو] ډیر څه به يې [د خوراك دپاره ورکړی وو ﴿اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ﴾ تاسو په صريح غلطئ کښې] پریوتی [يئ]

## معارف او مسائل

﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّقُوْا مَا بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَمَا خَلْفَكُمْ﴾ مخکښې آیتونو کښې د الله ﷻ د قدرت او حکمت د نندارو زمکې آسمانونو بیان کولو سره دالله ﷻ دپيژندګلو او توحيد بلنه ورکړې شوې وه ، او ددې په قبلولو باندې دجنت د دائمي نعمتونو او راحتونو وعده وه او ددې په نه منلو باندې سخت عذاب او وعید وو. اوس په دې آیتونو او وروستې آیتونو کښې د مکې د کافرانو کوم چې نيغ په نيغه ددې مخاطب وو ، د هغوئ د کوږ تګ بیان دې، چې نه په هغوئ باندې د ثواب د شوق پیداکیدو څه اثر کیږی او نه د عذاب د ویریدو څه اثر پرې کیږی.

دې باره کښې کافرانو سره د مسلمانانو دوه قسمه خبرې اترې بیان کړې شوی دی. یوه دا چې کله ئې مسلمانان د الله ﷻ د هغې عذاب نه ویروی چې په دنیا کښې هم دوئ باندې د سترګو په رپ کښې راتلې شی او دمرګ نه پس هم په آخرت کښې خو به ئې یقینی طور سره وی ، نو دوئ بیا هم مخ ګرځوی. دلته خو ددوئ د مخ اړولو څه ښکاره ذکر نه دې شوې خو وروستې آیتونو کښې د مخ اړولو نه پخپله د لته هم مخ اړول ثابتیږی.

نود نحود قاعدې په بنا دلته د ﴿اِذَا قِيْلَ﴾ [شرط] جزاء [اعرضوا] محذوف ده څنګه چې وروستې آیت مبارک ددې داسې ګواه دې چې هغې کښې فرمائی چې د الله ﷻ دهر آیت نه مخ اړوی.

**څنو خلقو ته د الله ﷻ د بالواسطه روزئ ملاوېدو حکمت** : دويمه مکالمه کافرانو سره د مسلمانانو دا شوې وه چې کله به ئې ورته دا اووئیل چې خوار ، غریب ، مسکین ، فقیر او اوړو خلقو باندې خوراک کوئ دهغې نه چې تاسو ته الله ﷻ درکړی دی ، نو دې خلقو به د توقو په ډول اووئیل چې هم تاسو مسلمانان وایئ چې د هر چا روزی رسان الله ﷻ دې نو الله ﷻ ئې چې پخپله نه ورکوی ، مونږ ئې څنګه ورکړو مونږ ته تاسو دا نصیحت کوئ ، تاسو خو پخپله دې سره ګمراه شوئ چې روزی رسان مونږه ګرځوئ.

اګر چې دې کافرانو به هم الله ﷻ روزی رسان ګڼرلو لکه چې قرآن پاک کښې فرمائی چې ﴿وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ نَّزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ مَوْتِهَا لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ﴾ يعنى كه تاسو ترې تپوس اوکړئ چې آسمان نه چا اوبه نازلې کړی دی چې په زمکه کښې د زرغنې کولو طاقت پیدا شو او

Scanned with Ca

قسما قسم گلونه او میوې ترې پیدا شوې نو منی به چې دا اوبه هم الله ﷻ نازلې کړې دي.
دې څخه معلومه شوه چې دغې خلقو به هم رازق الله ﷻ منلو خو د مسلمانانو په جواب کښې به ئې د توقو نه وئیل چې هر کله تاسو د هر چا روزی رسان الله ﷻ بولئ نو پخپله دې هغوئ ته هم ورکوی څنګه چې ئې مونږ ته راکړې ده ، دې بیوقوفانو د الله ﷻ په لار کښې خرچ کول او خوار ، غریب ته ئې ورکړه کول دې سره بې سمونه ګنړل چې الله ﷻ روزی رسان دې ، په دې ئې ځان پوهه نه کړو چې الله ﷻ چا بنیادمو ته نیغ په نیغه روزی ورکوی څنګه چې حیواناتو کښې عام طور داشان چینجو او درندګانو او مارغانو ته بلا واسطه رزق ملاویږی.
په دوئ کښې څوك مالدار نشته دې او نه څوك غریب شته دې ، نه څوك چاته ورکوی تول په توله د قدرتی دسترخوان څخه خوراك کوی. خو په انسانانو کښې د معیشت نظام او خپلو کښې یو بل سره د تعاون او مدد جذبه پیدا کولو دپاره ځینو ته د ځینو په واسطه رزق ورکوی. چې خرچ کوؤنکی ته ثواب ملاؤ شی او چا ته چې ورکړې شی هغه ددې بل احسان مند وی. ځکه چې د انسانانو خپلو کښې تعاون او مدد چې په دې باندې د عالم تول نظام قائم دې دا هله باقی پاتې کیدیشی چې یو بل ته حاجت مند وی. غریب ته د مالدار د پیسو حاجت وی. او مالدار ته د غریب د خوارئی او محنت ضرورت وی په دوئ کښې هیڅوك د بل څخه ویزاره نه دی او که غور اوکړئ نو د یو په بل باندې احسان نشته دې ، هر سړې چې چاته څه ورکوی نو هغه دخپل مطلب دپاره ورکوی.
پاتې شو دا سوال چې مسلمانانو کافرانو ته د الله ﷻ په لار کښې د خرچ کولو حکم په کوم بنیاد ورکړو. ځکه چې ددوئ ایمان خو په الله ﷻ باندې نه دی. او د فقهاء کرامو د تشریح مطابق دوئ د احکام فرعیه مخاطب نه دی. نو ددې جواب واضح دې چې د مسلمانانو دا وئیل د څه شرعی حکم د تعمیل حیثیت سره نه بلکه د انسانی همدردئ او شرافت په وجه دی

| وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى | هٰذَا الْوَعْدُ | اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ | مَا يَنْظُرُوْنَ اِلَّا |
|---|---|---|---|
| اووائی دا خلق کله به وی | دا وعده | که یئ تاسو \| رښتینی | انتظار نهٔ کوی دا خلق \| مګر |

او دوی وائی چې [بنه نو] دا وعده بهٔ آخر کله پوره کیږی [چې قیامت به راځی] که تاسو رښتونی یئ[دا خلق خوبس دیوې

| صَيْحَةً وَّاحِدَةً | تَأْخُذُهُمْ | وَهُمْ يَخِصِّمُوْنَ ۝ |
|---|---|---|
| د یوې چغې | چې اوبه نیسی دوئ | او حال دا چې دوئ به جګړې کوی |

درنې چغې په انتظار کښې دی [چې راوبه ئې نیسی او دوئ به لا په خپلو جګړو کښې لګیا وی

| فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ | تَوْصِيَةً | وَّلَآ اِلٰٓى اَهْلِهِمْ | يَرْجِعُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| پس طاقت به نهٔ لری دوئ | دوصیت کولو | اونهٔ به اهل خپل ته | واپس لاړ شی دوئ |

نو نه به دوصیت کولو فرصت بیا اومومئ | اونه به دکور خلقو ته واپس لاړ شی

| وَنُفِخَ | فِي الصُّوْرِ | فَاِذَا هُمْ | مِّنَ الْاَجْدَاثِ | اِلٰى رَبِّهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| او پوکې به اووهلې شی | په صور کښی | پس یو دم به دوئ | دقبرونو نه | رب خپل ته |

اوشپیلئ به پوک وهلې شی | نو دوئ تول به دقبرونو نه دخپل رب طرفته په منډه روان شی

Scanned with Ca

يَنْسِلُوْنَ۝ قَالُوْا يٰوَيْلَنَا مَنْۢ بَعَثَنَا مِنْ مَّرْقَدِنَا

منډې وهي | اوبه وائي دوئ | اے افسوس دې مونږ لره | چا راپاخولو مونږه | دخائي دخوبونو زمونږ نه

دابه وائي چې هائې زمونږ بدنصيبه | دا مونږ چا د قبرونو نه راپاخولو ؟ | داهم هغه قيامت

هٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمٰنُ وَصَدَقَ الْمُرْسَلُوْنَ۝ اِنْ كَانَتْ

دا هغه څيز دې | چې وعده کړې وه رحمن ددې | او رښتيا وئيلي وؤ | رسولانو | نه به وي

دې | دکوم وعده چې الله ﷻ رحمان کړې وه | او پيغمبرانو واقعي رښتيا وئيلي وو | دا به نور څه نه وي

اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَاِذَا هُمْ جَمِيْعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُوْنَ۝

مگر | وي به چغه يوه | پس يودم به دوئ | ټول | مونږ ته | حاضر کړې شي |

بس يوه درنه چغه به وي | .........او زر تر زره به دوئ ټول زمونږ په مخامخ کړې شي

فَالْيَوْمَ لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْـًٔا وَّلَا تُجْزَوْنَ

پس نن ورځ به | ظلم نه شی کيدې | په يو نفس باندې | هيڅ قدرله |اوبدله به نه درکړې شي تاسو له

نو نن [دقيامت په] ورځ به په هيڅا هيڅ قسم ظلم نه کيږی | اوتاسو ته به بس دهغو عملونو

اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ۝ اِنَّ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ الْيَوْمَ

مگر دهغې | چې وئ تاسو | چې کول به مو | بيشکه | ملگری دجنت | نن ورځ |

بدله ملاويږی | کوم چې تاسو کول | بيشکه جنتيان به په دغه ورځ په خپلو مشغلو کښې

فِيْ شُغُلٍ فٰكِهُوْنَ۝ هُمْ وَاَزْوَاجُهُمْ فِيْ ظِلٰلٍ

په مشغولتيا کښی | مزې اغستونکی دی | هغوئ | او ښځې دهغوئ | په سورو کښی |

مشغول وی | ..............دوئ او ددوئ بيبيانې به د [ونود] سيورو لاندې وی

عَلَى الْاَرَآئِكِ مُتَّكِـُٔوْنَ۝ لَهُمْ فِيْهَا فَاكِهَةٌ وَّلَهُمْ

په تختونو باندې | تکيه وهونکی دی | دی دپاره دهغوئ | په هغې کښی | ميوې | اودی دپاره دهغوئ

په تختونو باندې تکيه لگولې ناست به وی | دوئ ته به ميوې ورکولې شي | او چې څه غواړی

مَّا يَدَّعُوْنَ۝ سَلٰمٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِيْمٍ۝

هغه څيزونه | چې هغوئ ئې غواړی | سلام دې | وينا | دطرفه درب | مهربان نه |

نوهغه به ورته ملاويږی | ..............دمهربانه رب دطرفنه به پرې سلامونه وئيلې شی

وَامْتَازُوا الْيَوْمَ اَيُّهَا الْمُجْرِمُوْنَ۝ اَلَمْ اَعْهَدْ اِلَيْكُمْ

او جدا شئ | نن ورځ | اے مجرمانو | آيا حکم نه وؤکړې ما | تاسو ته |

[اومجرمانو ته به وئيلې شی] چې انې مجرمانو، تاسو [ددوئ نه] جدا شئ | انې د آدم اولاده،

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ اَنْ لَّا تَعْبُدُوا الشَّيْطٰنَ ۚ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ

اے اولاد دآدم | چې بندگی مه کوئ | دشيطان | بيشکه هغه | ستاسو دپاره | دشمن

آيا ما تاسو نه ددې خبرې وعده نه وه اخستې | چې دشيطان عبادت مه کوئ ؟ | هغه ستاسو ښکاره

Scanned with Ca

مُّبِيْنٌ ۝٦٠ وَّاَنِ اعْبُدُوْنِيْ ۚ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ۝٦١ وَلَقَدْ اَضَلَّ

ښکاره دي | او چې بندگي کوئ زما | دا لاره نیغه ده | او په تحقیق بې لارې کړل هغه

دښمن دي | او دا چې صرف زما عبادت کوئی | هم دا نیغه لاره ده |..............او هغه په تاسو

مِنْكُمْ جِبِلًّا كَثِيْرًا ۭ اَفَلَمْ تَكُوْنُوْا تَعْقِلُوْنَ ۝٦٢ هٰذِهٖ جَهَنَّمُ

ستاسو نه | خلق ډیر | آیا نهٔ یئ تاسو | چې دعقل نه کار واخلئ | دا دوزخ دې

کښې ډیر خلق گمراه کړی دی | ....... نو آیا تاسو نه پوهیږئی | .............. داهغه دوزخ دې چې

الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ۝٦٣ اِصْلَوْهَا الْيَوْمَ

هغه | چې وئ تاسو | چې وعده به ئې درسره کولې شوه | ننوزئ دې ته | اوسوزئ | نن ورخ

تاسو سره به ئې وعده کولې شوه | دهغه کفر او انکار په بدله کښې چې تاسو په دنیا کښې کولو نن دې ته

بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ۝٦٤ اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ

په سبب دهغې | چې وئ تاسو | چې کفر به مو کولو | نن ورخ | مهر اوهو مونږه | په خلو ددوئ باندې

ورننوځئ | .............................نن به مونږ ددوئ په خلو باندې مهر اولگوو

وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ وَتَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ بِمَا

او خبرې به کوی زمونږ سره | لاسونه ددوئ | او گواهي به کوی | پښې ددوئ | په هغه کارونو

او ددوئ لاسونه به مونږ سره خبرې کوی | او ددوئ پښې به ددوئ په عملونو باندې

كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۝٦٥ وَلَوْ نَشَاۗءُ لَطَمَسْنَا

چې وو دوئ | چې کول به ئې | او که اوغواړو مونږه | نو خامخا بندې به کړو مونږه

گواهي ورکوی | ..........................او که چرې مونږ غوښتلې نو ددوئ سترگې به مو

عَلٰٓى اَعْيُنِهِمْ فَاسْتَبَقُوا الصِّرَاطَ فَاَنّٰى يُبْصِرُوْنَ ۝٦٦

سترگې ددوئ | بیا به دوئ راوړاند شی | لارې ته | پس څرنګې به | لیدل کوی دوئ |

ړندې کړې وې | نو لارې طرفته به ئې منډې وهلې | ............خو لیدل به ئې څنګه کولې شو

وَلَوْ نَشَاۗءُ لَمَسَخْنٰهُمْ عَلٰى مَكَانَتِهِمْ فَمَا اسْتَطَاعُوْا

او که اوغواړو مونږه | نو خامخا به مسخ کړو مونږ دوئ | په ځایونو ددوئ باندې | پس طاقت به نهٔ لری دوئ

او که مونږ غوښتلې | نو په دغه ځائې به مو ددوئ شکلونه مسخ کړی وو | نو بیا به نه

مُضِيًّا وَّلَا يَرْجِعُوْنَ ۝٦٧ وَمَنْ نُّعَمِّرْهُ

دوړاندې تلو | او نهٔ به واپس کیدې شی | او هغه څوك | چې اوږد عمر ورکوو مونږ هغه ته

وړاندې تلې شول | او نه به روستو راګرزیدې شول | او مونږ چې دچا عمر زیات کړو

نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ ۭ اَفَلَا يَعْقِلُوْنَ ۝٦٨

نو الټا کوو مونږ هغه لره | په جوړښت کښی | آیا پس دوئ نه کوی عقل |

نو [دعمر په لحاظ سره] راتیټ ئې کړو | نو آیا دوئ نه پوهیږی |

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

او دوی وائي چه: د قیامت دا وعده به کله پوره کیږي؟ (اے مسلمانانو) اوښایئ که تاسو رشتوني یئ. (دراصل) دا خلق بس د یوې چغې انتظار کوي، چه د دوی د بحث په مینځ کښې به دوی راونیسي بیا به دوی نه څه وصیت کولې شي، او نه به خپل کور والو ته واپس تللې شي. او پوک به وهلې شي په شپیلۍ کښې. نو ناساپه به دوی د قبرونو نه راوځي، او خپل پروردګار طرف ته به منډې وهي. وائي به چه هائے افسوس دې زمونږ په حال! مونږ لره چا زمونږ د قبرونو نه راپورته کړو؟ (جواب به ورته ملاؤ شي چه) دا هغه څیز دې، چه ددې الله تعالی وعده کړې وه او پیغمبرانو رشتیا خبره کړې وه. او هیڅ نه. بس یوه تیزه چغه به وی، چه دهغې نه پس به دا ټول په ټوله زمونږ مخکښې حاضر کړې شي. نو په دغه ورځ به هیچا باندې ظلم نه کیږي، او تاسو ته به د بل هیڅ څیز نه، بلکه دهغې کارونو بدله ملاویږي، چه تاسو کول جنت والا خلق به په دغه ورځ یقیناً په خپلو مشغلو کښې مصروف وي. هغوی او دهغوی بیبیانې به په سوروکښې په تختونو باندې تکیه لګولې وي. هلته به د هغوی دپاره میوې وي او هغوی ته به هر هغه څیز ملاویږي چه هغوی به ئې غواړي. د رحمت والا پروردګار د طرف نه به هغوی ته سلام وئیلې شي. (او کافرانو ته به وئیلې شي چه) اے مجرمانو! نن تاسو د (مومنانو نه) جدا شئ. اے د آدم ځامنو! آیا ما تاسو ته دا تاکید نه وو کړې، چه تاسو د شیطان عبادت مه کوئ. هغه ستاسو ښکاره دشمن دې. او دا چه تاسو خاص زما عبادت کوئ. هم دا نیغه لار ده. او حقیقت دا دې، چه شیطان په تاسو کښې یولوئې جماعت ګمراه کړې دې. نو آیا تاسو پوهیږئ نه؟ دا دې هغه جهنم، چه ددې نه به تاسو ویرولې شوئ. نن په دې کښې داخل شئ. ځکه چه تاسو به کفر کولو نن ورځ به مونږ دهغوی په خولو باندې مهر اولګوو. او دهغوی لاسونه به مونږ سره خبرې کوي، او د هغوی پښې به ګواهي ورکوي چه هغوی به څه کسب کولو او که مونږ اوغواړو نو (دلته په دنیا کښې به) د هغوی سترګې ورانې کړو [رانده به ئې کړو]. بیا به دوی د لارې (په تلاش کښې) منډې وهي. لیکن کوم ځائې به دوی لیدل کوي او که مونږ اوغواړو، نو بدل به کړو شکلونه د دوی. د دوی په ځایونو کښې. پس دوی به طاقت نه لري د مخکښې تللو او نه به واپس کیدې شي. او مونږ چه چاته ډیر عمر ورکړو، نو اپوته کړو هغه لره په اعتبار د پیدائش سره. آیا بیا هم دوی ته عقل نه راځي؟

### خلاصه تفسیر

﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾ [او دا] کافران [خلق] نبی کریم ﷺ او دده متبعینو ته په طور دانکار [وائی چه دا وعده] دقیامت کومه چه بره په ایت کښې ذکرده او هسې هم اکثر ددې خبر ورکوئ هغه [به کله وی که تاسو] په دې دعوی کښې [رښتوني یئ] نو وښایئ دالله تعالی ارشاد دې چه دوی کوم باربارتپوس کوی نو ګویا ﴿مَا يَنظُرُونَ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً﴾ [دا خلق بس دیوسخت اواز] یعنی اولې شپیلۍ [منتظر دی ﴿تَأْخُذُهُمْ﴾ کومه چه به دوی لره] یعنی مطلق کفارو لره [به ونیسی ﴿وَهُمْ يَخِصِّمُونَ﴾ او هغه وخت [دیو بل سره] هغه ټول به] دعام معمول مطابق په خپلو معاملاتو کښې [جګړې کوی پس] ددې اواز سره به په یوځل داسې فناشی چه ﴿فَلَا يَسْتَطِيعُونَ تَوْصِيَةً﴾ [نه به ورته دوصیت کولو فرصت وی ﴿وَلَا إِلَىٰ أَهْلِهِمْ يَرْجِعُونَ﴾ اونه به واپس

خپلو کورونو ته واپس کیدې شی] بلکه څوك چه به په کوم حال کښې وی مړ به پاتې شی [او] بیابه دوباره ﴿وَنُفِخَ فِي الصُّورِ﴾ [شپیلئ پوك وهلې شی ﴿فَإِذَا هُمْ مِنَ الْأَجْدَاثِ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يَنْسِلُونَ﴾ نو هغه ټول به یکدم دقبرونو نه] راوخی [دخپل رب طرف ته] یعنی کوم ځائ چه حساب وی [ژر زر به روان شی] او هلته به هیبت اوویره ووینی ﴿قَالُوا يَا وَيْلَنَا مَنْ بَعَثَنَا مِنْ مَرْقَدِنَا ۜ﴾ [وبه وائی چه هائی زمونږ کم بختئ مونږه زمونږ دقبرونونه چا راپورته کړو] چه ددې ځائ په نسبت خو هلته په راحت کښې وو فرښتې به جواب ورکړی چه ﴿هَٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ﴾ [دا هغه] قیامت [دې چه رحمن ئې وعده کړې وه ﴿وَصَدَقَ الْمُرْسَلُونَ﴾ او پیغمبرانو رښتیا وئیل] مگر تاسونه منله وړاند دالله تعالی ارشاد دې چه [دغه] شپیلئ دویمه ﴿إِنْ كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً﴾ [بس دزوریو اواز به وی] لکه چه اوله شپیلئ هم یوه چغه وه لکه چه الله تعالی فرمائی [ماينظرون الاصيحة واحدة] دغه شان به داهم یواواز وی ﴿فَإِذَا هُمْ جَمِيعٌ لَدَيْنَا مُحْضَرُونَ﴾ [چه په دې سره به ټول یکدم جمع شی مونږ ته به حاضر کړې شی] اول موقف طرف ته تلل ذکر وو او دلته رسیدل او داتلل او رسیدل جبرا او قهرا به وی څنګه چې دقرآن کریم الفاظو محضرون اوجاءت كل نفس معهاسائق () نه معلومیږی ﴿فَالْيَوْمَ لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا﴾ [بیابه په دغه ورځ په هیچا ذره ظلم نه وی ﴿وَلَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ او تاسو ته به بس د هغوکارونو بدله ملاویږی کوم چه تاسو]﴾ په دنیا کښې کفر وغیره [کولو] داخو د دوزخیانو حال شو او﴿إِنَّ أَصْحَابَ الْجَنَّةِ الْيَوْمَ﴾ [دجنتیانو] حال دادې چه هغوی [به بیشکه په دغه ورځ ﴿فِي شُغُلٍ فَاكِهُونَ﴾ په خپلو مشغلو کښې] خوش دله وی ﴿هُمْ وَأَزْوَاجُهُمْ فِي ظِلَالٍ عَلَى الْأَرَائِكِ مُتَّكِئُونَ﴾ هغوی او دهغوی بیبیانې به په سورو او په تختونو تکیه لګولی ناست وی] او ﴿لَهُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ﴾ [د هغوی دپاره به هلته] دهرقسم [میوې وی ﴿وَلَهُمْ مَا يَدَّعُونَ﴾ او څه چه به غواړی دوی ته به ملاویږی] او﴿سَلَامٌ قَوْلًا مِنْ رَبٍّ رَحِيمٍ﴾ [دوی ته به دپروردګار مهربان دطرف نه سلام فرمائیلې شی] یعنی حق تعالی به فرمائی [السلام عليكم يا اهل الجنة رواه ابن ماجه][2] [او] وړاند بیا تتمه ده دقصې دخاوندانو دجهنم چه دوئ ته به په موقف کښې حکم وشی چه ﴿وَامْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ﴾ [اے] کفرکوونکې [مجرمانو نن] دایماندارو نه [جداشئ] ځکه چه دهغو جنت ته رسیدل دی او ستاسو جهنم ته او هغه وخت به دوی ته دملامت کولو په طورد اوفرمائیلې شی چه﴿أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَا بَنِي آدَمَ﴾ [اے د ادم اولاده] او دغه شان به دجناتو سره هم خطاب وی چه دلالت پرې کوی دا قول دالله تعالی چې [يمعشر الجن والانس الخ][3] ایاماتا سوته تاکیدنه ووکړې﴿أَنْ لَا تَعْبُدُوا الشَّيْطَانَ﴾ چه تاسو دشیطان عبادت مه کوئ ﴿إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ﴾ هغه ستاسو ښکاره دښمن دې ﴿وَأَنِ اعْبُدُونِي ۚ هَٰذَا صِرَاطٌ مُسْتَقِيمٌ﴾ او دا چه] خاص [زما عبادت کوئ دا نیغه لار ده] مراد دعبادت نه اطاعت مطلقه دې او دا د الله ﷻ ددې قول پشان دې چې [لاتتبعوا خطوات الشيطن][4]........ولايفتننكم الشيطن][5] [او] دا رانګ تاسوته

---

[1]) ترجمه: او هر کس په داسی حال ک راځي چې هغه سره به یو بل کس وی او یو به ګواه وی.
[2]) ابن ماجة، المقدمة، فيما انكرت الجهمية، رقم الحديث: ١٨٠
[3]) ترجمه: اے د پیریانو او د انسانانو جماعت.
[4]) ترجمه: تاسو د شیطان په نقش قدم مه ځی.
[5]) شیطان تاسو لره په خرابی کښې وا نه چوی.

Scanned with Ca

دشيطان په نسبت دا خبره هم معلومه كړې شوې وه چه ﴿وَلَقَدْ أَضَلَّ مِنكُمْ جِبِلًّا كَثِيرًا﴾ [هغه په تاسو كښې] يعنى ستاسو په بنى نوع كښې [ډيرو خلقو لره گمراه كړل] دكومو دگمراهئ وبال چه هم دتيرو كافرو قومونو د عذاب د واقعاتو په سلسله كښې ښودلې شوې دى ﴿أَفَلَمْ تَكُونُوا تَعْقِلُونَ﴾ پس اياتاسو] دومره [نه پوهيدئ] چه كه مونږه ددوى په گمراه كولو سره گمراه شو نو مونږ به هم دغه شان مستحق دعذاب شو نو اوس ﴿هَٰذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ﴾ [داجهنم دې دكوم چه تاسوسره] په تقديرى كفر [وعده كولې شوه ﴿اصْلَوْهَا الْيَوْمَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ﴾ اوس دخپل كفر په بدله كښې دې ته داخل شى ﴿الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰ أَفْوَاهِهِمْ﴾ نن نه به مونږ د دوى په خلو باندې مهرولگوؤ] چه په دې سره به دوى د دروغو عذر پيش نه كړې شى لكه چه په اول كښې به وائى [والله ربنا ماكنا مشركين] ﴿وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيهِمْ﴾ [او د دوى لاسونه به زمونږ سره خبرې كوى ﴿وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ او د دوى پښې به گواهى وركوى دخه چه دې خلقو كول] دا عذاب خو به په اخرت كښې وى ﴿وَلَوْ نَشَاءُ﴾ [اوكه مونږ غوښتلې نو په دنيا كښې به د دوى دكفر په سزا كښې ﴿لَطَمَسْنَا عَلَىٰ أَعْيُنِهِمْ﴾ د دوى سترگې به مونږ ورانې كړې وې] خواه دسترگو نظرلره يا به خپله سترگولره ﴿فَاسْتَبَقُوا الصِّرَاطَ﴾ [بيا به دوى دلارې طرف ته] دتلو دپاره [منډې وهى ﴿فَأَنَّىٰ يُبْصِرُونَ﴾ پس دوى ته به چرته په نظر راشى] لكه چه په قوم لوط باند داسې عذاب راغلې وولكه چه الله تعالى فرمائى فطمسنا [او] ددې نه سوا ﴿وَلَوْ نَشَاءُ﴾ [كه مونږ غوښتلې نو] د دوى د كفر په سزا كښې به ﴿لَمَسَخْنَاهُمْ عَلَىٰ مَكَانَتِهِمْ﴾ [ضرور د دوى صورتونه مونږ بدل كړى وو] لكه د وړاند چه څنې خلق شادوگان او خنزيران شوى وو ﴿فَمَا اسْتَطَاعُوا مُضِيًّا﴾ [په داسې حالت سره چه دوى كوم ځائ وو هلته به پاتې شوى وو] يعنى دمسخ سره به دا هم شوې وه چه دوى به څناور جوړشوى وو او څناور هم شل كه چه دخپل ځائ نه به نه شو خوزيدې [چه په دې سره به نه وړاند تللې شى ﴿وَلَا يَرْجِعُونَ﴾ اونه وروستو كيدې شى او] په دې تعجب كول نه دى پكار چه دسترگو طمس او دصورتونو مسخ به څنگه وشى او گورئ چه ددې په يومثل او نظير باندې زمونږ قدرت شاهد دې چه ﴿وَمَن نُّعَمِّرْهُ﴾ [مونږ دچا عمرزيات كړو] يعنى ډيرئ بوډاكړو ﴿نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ﴾ [نو دهٔ لره په طبعى حالت كښې التيه كړو] دطبعى حالت نه مراد عقلى شعور او داوريدو ليدو وغيره قوتونه او قوت هاضمه ناميه وغيره او رنگ روغن او حسن وجمال دې او دالټاكولو نه مراددې د دوى انقلاب او تغير دحالاتو داعلى نه ادنى طرف ته دښه نه بدطرف ته پس طمس او مسخ هم يوقسم تغير دې دكامل نه ناقص طرف ته ﴿أَفَلَا يَعْقِلُونَ﴾ [پس ايا] ددې حالت په ليدو هم [هغه خلق نه پوهيږى] چه هركله په يو تغيرباندې قدرت شته نو په دويم ئې هم شته بلكه دقدرت نسبت خو د جمعې ممكناتو سره مساوى دې اگر چه په دغوكښې تناظر اوتماثل هم نه وى پس دې خلقو له دې ته كتل ويريدل او كفر پريښودل پكار دى

## معارف او مسائل

﴿مَا يَنظُرُونَ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً﴾ دا دهغې كافرانو جواب كښې فرمائى چې دانكار او د توقو په ډول به يې د مسلمانانو نه تپوس كولو چې قيامت به كله ، په كوم كال او كومه نيټه باندې وى ؟ ﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ﴾ د دوئ ددې خبرې مطلب تحقيق كول نه وو ، بلكه توقې ورپورې كول وو ، كه بالفرض تحقيق كول ئې هم مطلب وې نو عبث څكه وو چې د رب العالمين د حكمت

تقاضا داده چې د قيامت د کال او نيټې پوره يقيني علم هيچا ته نه ورکوی چې پيغمبران هم په کښې داخل دی. ځکه ددې په جواب کښې د نيټې خودلو په ځائې يې دغه خلق په دې خبره خبرداره کړل چې د يقيني راتلونکی څيز دپاره عقل مند خلق تياری کوی. د هغې د وخت او نيټې په تحقيق کولو باندې وخت نه ضائع کوی، دعقل تقاضا خو د اده چې د قيامت په خبر آوريدو سره ئې ايمان راوړې وې او هغه کارئې کولې چې دهغې جهان خلاصې او کاميابی ئې ورسره حاصله کړې وې خو دا خلق په غفلت کښې داسې پراته دی چې ګويا ددې انتظار کوی چې د قيامت په راتلو به څه سوچ اوکړی. ځکه ئې اوفرمائيل چې دوئ د قيامت په انتظار کښې دی او د قيامت حال به دا وی چې هغه به دشپيلئ يو تيز آواز وی چې ټول به ناڅاپه داسې راګير کړی چې خلق به خپل کاروبار، معاملو او جګړو کښې سره بوخت وی ټول بۀ هم په دغې حال کښې مړۀ پاتې شی.

يو حديث مبارک کښې راغلی دی چې دوه کسان به د جامو اخستو او خرڅولو کښې اخته وی، جامې به ورته مخې ته خورې ورې پرتې وی د هغې فيصله به ئې لا نه وی کړی چې مړۀ به شی. څوک سرې بۀ خپل تالاؤ په ختو سره ليووی چې هم په دغې حال کښې به مړ شی [ابو نعيم دابی هريره رضي الله عنه نه [قرطبی]] (۱). ﴿فَلَا يَسْتَطِيعُونَ تَوْصِيَةً وَلَا إِلَىٰ أَهْلِهِمْ يَرْجِعُونَ﴾ يعنی په دغه وخت کښې چې کوم خلق راجمع وی هغوئ به خپل مينځ کښې د څه کار د وصيت کولو مهلت او موقعه بيا نه مومی. او د کورونو نه بهر خلق به خپلو کورونو ته د راتلو موقعه بيا نه مومی دغلته به مړۀ پاتې شی. دا د قيامت د اولنئ شپيلئ د پوک وهلو بيان دې چې ورسره به ټول جهان زمکه او آسمان تباه شی ورپسې فرمائی چې:

﴿وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَإِذَا هُم مِّنَ الْأَجْدَاثِ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يَنسِلُونَ﴾ اجداث د جدث جمع ده، معنی ئې قبرده. او ينسلون د نسلان نه مشتق دې چې معنی ئې تيز تلل ده لکه په بل آيت مبارک کښې فرمائی چې ﴿يَوْمَ يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ سِرَاعًا﴾ يعنی دا خلق بۀ د خپلو قبرونو نه په تيزئی راوځی. او په يو بل آيت مبارک کښې چې فرمائی چې ﴿فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنظُرُونَ﴾ يعنی د حشر په موقعه بۀ داخلق د خپلو قبرونو نه راپاسيدلی ګوری. نودادې سره بې سمونه نه ده، ولې چې په اول کښې په حيرانی اودريدو سره به د کتلو واقعه وی او بيا به په تيزئ سره محشر ته منډې وهل وی، او څنګه چې د قرآن پاک د آيتونو نه ثابت دی چې فرښتې به دا ټول په آواز کولو سره ميدان حشر ته راولی. دې نه معلوميږی چې کافران بۀ ميدان حشر ته پخپله خوښه نه راځی. جبری طور باندې بۀ وی، د فرښتو د بللو په وجه به په منډه منډه راځی.

﴿قَالُوا يَا وَيْلَنَا مَن بَعَثَنَا مِن مَّرْقَدِنَا﴾ کافران اګر چې په قبرونو کښې هم په عذاب کښې وو، هلته به هم په آرام کښې نه وی. خو د قيامت د سخت عذاب په مقابله کښې به ورته هغه عذاب نيشت معلوميږی ځکه به آواز کوی چې دا چا مونږ د قبرونو نه راؤښکلو که هلته وې نو ډير به ښه وو، په دې بۀ فرښتې يا عام مؤمنان جواب ورکړی چې:

﴿هَٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ وَصَدَقَ الْمُرْسَلُونَ﴾ يعنی داهم هغه قيامت دې چې رحمان ئې وعده کړې وه او د هغه رسولانو عليهم السلام تاسو ته رښتينې خبر آورولې وو، تاسو توجه ورنکړه. په دې مقام د الله

---

(۱) صحيح مسلم، كتاب الفتن، باب قرب الساعة: ج ۲، ص ۴۰۶، وتفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۳۹

Scanned with Ca

ﷺ په صفتونو درحمان لفظ اختیارول دي ته اشاره لري چې هغه پاک ذات خو پخپل رحمت سره ددې عذاب نه ستاسو د ساتلو ډیر انتظام کړې وو او د وخت نه مخکښې ددې وعده کول اود پیغمبرانو ﷺ په ذریعه ددې خبر تاسو ته رسول هم درحمت د صفت تقاضا ده .

﴿إِنَّ أَصْحَٰبَ ٱلْجَنَّةِ ٱلْيَوْمَ فِى شُغُلٍ فَٰكِهُونَ﴾ د جهنمیانو د پریشانو بیانولو نه روستو ، قیامت کښې د جنتیانو حالت بیانوی چې هغوئ به په خپلو تفریحاتو کښې مشغوله وی. ﴿فَٰكِهُونَ﴾ د فاکه جمع ده . خوشدله او خوشحاله ته وئیلې شی . اودې نه مخکښې د ﴿فِى شُغُلٍ﴾ دامفهوم هم کیدیشی چې هغوئ یعنی جنتیان به دجهنمیانو پشان پریشانیانو نه بیخی ناخبره وی. لکه څنګه چې ځینې مفسرینو فرمائیلی دی .

او دا هم کیدیشی چې هرکله د چا زړهٔ کښې به دا راتلل چې په جنت کښې د عبادت ، فرض ، واجبو او د کار کسب کولو څه شغل به نه وی نو انسان خو تنګیږی ، نو ددې شبهې لرې کولو دپاره اوفرمائیلې شو چې دغلته به نورو تفریحاتو کښې دومره مصروف وی چې د زړه تنګیدو سوال به نه پیدا کیږی .

﴿هُمْ وَأَزْوَٰجُهُمْ﴾ په ازواج کښې د جنت حورې هم داخلې دی او ددنیا خپلې بیبیانې هم .

﴿وَلَهُم مَّا يَدَّعُونَ﴾ یدعون د عوت نه مشتق دې ، چې معنی ئې بلل او غوښتل دی ، یعنی جنتیانو ته به هغه څیز ملاویږی چې کوم غواړی . دلته قرآن پاک د یسئلون لفظ استعمال څکه نه کړو چې سوال کول هم یو قسم کمزوری ده او محنت مشقت دې چې جنت کښې به دا نه وی څکه هلته به د ضرورت هر یو څیز پخپله موجود وی .

﴿وَٱمْتَٰزُوا۟ ٱلْيَوْمَ أَيُّهَا ٱلْمُجْرِمُونَ﴾ په میدان حشر کښې به اول ټول خلق د قبرونو نه ګډ راپورته شی لکه قرآن پاک فرمائی چې ﴿كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنتَشِرٌ﴾ یعنی هغوئ دګډو وډو ملخانو په شان به وی. خو ددې نه پس به د عملونو په اعتبار سره به بیل بیل ټولی جوړ کړې شی . کافران یو ځائې کښې ، مؤمنان بل ځائې کښې ، فاجران فاسقان بل ځائې کښې بیل بیل به وی ، نیکان ، صالحان او مقبول بندګان بیل بیل ، لکه بل ځائې کښې فرمائی چې: ﴿وَإِذَا ٱلنُّفُوسُ زُوِّجَتْ﴾ یعنی کله چې نفوس یعنی خلق جوړه جوړه کړې شی . ذکر شوی آیت مبارك کښې هم ددې امتیاز بیان دې.

﴿أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَٰبَنِىٓ ءَادَمَ أَن لَّا تَعْبُدُوا۟ ٱلشَّيْطَٰنَ﴾ یعنی ټولو بنیادمو ته بلکه پیریانوته هم اوبهٔ وئیلې شی چې آیا ما درته په دنیا کښې هدایت نه وو کړې چې تاسو د شیطان عبادت مه کوئی. دلته سوال پیدا کیږی چې کافرانو خو به عموما د شیطان عبادت نه کولو د بتانو یا دنورو څیزونو عبادت به ئې کولو نو پدوئ باندې دشیطان د عبادت کولو الزام څنګه لګولې شی ؟ ددې جواب دادې چې دچا داسې تابعداری کول چې په هر حال کښې هم د هغه خبره منی ، دې ته عبادت وئیلې شی . هر کله چې دې خلقو د همیشه دپاره د شیطانی تعلیم تابعداری کړې ده څکه ورته دشیطان عبادت کوؤنکی اووئیلې شو څنګه چې په حدیث پاک کښې هم هغسې کس ته عبدالدرهم او عبدالزوجه فرمائیلې شوی دی چې کوم د مال او ښځې خوشحالیږی او مستی کوی. او دالله ﷻ د خفګان څه پرواه نه کوی[1] .

[1] جامع الترمذی،أبواب الزهد،باب(کنبز عبدالدرهم الفاظ موجوددی) بعد ماجاء فی اخذ المال:ج ۲، ص۶۲

Scanned with Ca

ځيني صوفياء کرام خپل نفس دپاره د بت پرستئ الفاظ هم په دې بنا استعمال کړي دي چې د خواهشاتو تابعداري پرې مرتب کيږي ، دې نه مراد شرک اوکفر نه دې لکه چې ځينو حضراتو وئيلي دي چې :

سوده گشت از سجده راه بتان پیشانم    چند برخود تهمت دین مسلمانی نهم

يعني که هر څومره زه دمسلمانئ دعوی لرم خوبيامې هم تندې د بتانوپه سجدو سوليدلې دې.

[اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ] محشر کښې حساب اوکتاب دپاره په پيشئ کښې اول خو به هرچاته آزادي وی چې څه عذر پيش کوی . نو مشرکان به هلته په قسمونو خوړلو سره خپل کفراو شرک کول نه منی لکه قرآن پاک کښې فرمائي چې[وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ](١) اوځينې به دا هم وائي چې فرښتو زمونږ په عمل نامو کښې څه ليکلي دي مونږ خو ددې څخه بري يو. نو په دې وخت کښې به الله ﷻ ددوی په خلو باندې مهر اولګوی اودوئ به خبرې نشی کولې . او ددې په مقابله کښې به ددوئ لاسونو او اندامونو لره سرکاری ګواهان جوړ کړې شي او دوئ ته به د وئيلو صلاحيت ورکړی او ددوئ د ټولو عملونو ګواهي به ورکوی. دې مذکوره آيت مبارك کښې خو د لاسونو او پښو د خبرو کولو ذکر دې ، بل آيت مبارك کښې د انسانانو د غوږونو ، سترګو او څرمنود ګواهئ ذکر راغلې دې . [شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ وَاَبْصَارُهُمْ وَجُلُوْدُهُمْ](٢) او بل ځائې کښې[تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ] راغلي دی. يعني په دوی باندې به پخپله ددوئ ژبې ګواهي ورکوی. دا ددې خلاف نه دی چې ددوددئ خلو باندې به مهر اولګولې شي. څکه چې د مهر لګول دا مطلب دادې چې دوئ به پخپل اختيار سره خبرې نشی کولې. د دوئ ژبې به ددوئ د مرضئ خلاف خبرې کوی او ګواهي به ورکوی .

اوس دا سوال کول چې دا اندامونه بهٔ خبرې څنګه کوی ، ددې جواب قرآن پاک پخپله داسې ورکوی چې : ﴿اَنْطَقَنَا اللّٰهُ الَّذِيْٓ اَنْطَقَ كُلَّ شَيْءٍ﴾ يعني دا اندامونه به وائی چې څنګه نور اندامونه الله ﷻ ګويا کړي دي هغسې ئې مونږ هم ګويا کړو .

﴿ وَمَنْ نُّعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ ۭ اَفَلَا يَعْقِلُوْنَ ﴾ ﴿نُعَمِّرْ﴾ د تعمير نه مشتق دې ، معنى ئې زيات عمر ورکول دی ، او ﴿نُنَكِّسْهُ﴾ د تنکيس نه مشتق دې ، چې معنى ئې پرمخې کول دی .

دې آيت مبارک کښې الله ﷻ دخپل کامل قدرت او د حکمت بالغه يوه بله ننداره داسې بيان کړې ده چې هر انسان او حيوان هر وخت د الله ﷻ په قبضه قدرت کښې دې ، د يوې ګنده بې ساه څاڅکی نه دده د بدن بنياد اولګيدو دمور په خيټه دننه په درې تيرو کښې د کائناتو ددې خلاصې او د عالم اصغر پيدا کول اوشو ، نازک نازک مشينونه دده په بدن کښې جوړ کړې شو ، روح په کښې واچولې شو اوپه هغې سره ژوندې کړې شو. عموما نهو مياشتو پورې د مور خيټه کښې دده پالنه اوکړې شوه

انسان ترې جوړ کړې شو او دې دنيا ته راغلو ، هر څه اندامونه وغيره ئې مکمل وو خو بيا هم کمزوری وو، الله ﷻ دده دپاره مناسبه غذا د خپلې مور په سينه کښې پيدا کړه په هغې سره ورته درجه په درجه طاقت ملاؤ شو. خوانئ ته چې اورسيدو نو ټول قوتونه ئې بيا مضبوط

(١) ترجمه: قسم په الله او په خپل پروردګار باندے چې مونږ مشرکان نه وو.
(٢) ترجمه: ددوی غوګونه، سترګې او څرمنې به په دوی باندې، دوی اعمالو ګواهي ورکوی.

Scanned with Ca

شوي وو. د قوت او رعب داب دعوې کول ئې شروع کړل ، هر مقابل ته د ماتې ورکولو مړانه ئې پیدا شوه.
بیا هرکله چې خالق او مالک ته منظوره شوه نو په دې طاقتونو کښې ئې کمزوري راتلل شروع شو. ډیرو حدونو نه ورتیر شو او د بوډا توب آخري حد ته اورسیدو نو په غور کولو سره معلومه شوه چې بیا د خپل ماشومتوب حد ته راؤرسیدو ، ټول عادتونه او خصلتونه ئې د هغې مطابق بدلیدل شروع شو. ډیر خوښ څیزونه ورته ناخوښه ښکاره شو. په کوم څیز سره به چې ورته آرام حاصلیدو په هغې سره ورته اوس تکلیف رسي دې حالت ته قرآن کریم ﴿تنکیس﴾ یعني پرمخې کول اوفرمائیل او یو صاحب ډیر ښه فرمائي چې ::

من عاش اخلقت الایام جدته :::: وخانه ثقتاه السمع والبصر

یعني څوک چې ژوندي پاتې شي نو زمانه دهغه تیزي او مضبوطتیا کمزوري کوي ، او ددهٔ دوه مضبوط دوستان د آؤریدو او لیدلو طاقتونه هم ددهٔ نه په بې وفایئ سره بیل شي.
دنیا کښې د انسان د ټولو نه اعتباري څیزونه دخپلو سترګو لیدل او د خپلو غوږونو آؤریدل دي ، په بوډاتوب کښې داهم بې اعتباره شي لکه متنبی هم وئیلي دي چې ::

ومن صحب الدنیا طویلا تقلبت :::: علی عینه حتی یری صدقها کذبا

یعني څوک چې په دنیا کښې زیات وخت تیر کړي نو دنیا ددهٔ د سترګو وړاندې اپوته شي تر دې چې ددې هغه وړاندیني رشتیا پیژندلي څیز ورته اوس دروغ ښکاري.
انساني بدن کښې د ابدلونونه راتلل د الله ﷻ عجیبه ننداره ضرور ده خو په دې کښې په انسان باندې یو لوئې احسان هم دې ، چې د کائناتو خالق څومره طاقتونه په انسان کښې امانت ایخودي دي دا په حقیقت کښې سرکاري مشینونه دي او دا ورته خودلې شي چې دا ستا ملکیت نه دې او نه به همیشه وي بلکه په آخر کښې به ستانه واپس اخستې شي ، ددې ظاهري تقاضا دا وه چې په ناکلې نیټه ټول طاقتونه په یو ځل بیرته اخستې شوې وې ، خو رب کریم ددې هم اوږده اوږده قسطونه کړي دي چې په دمه دمه ترې اخستې شي او په دې سره ورته داخبره حاصل شي چې د آخرت دسفر سامان او انتظام اوکړه ، والله اعلم.

| |
|---|
| وَمَا عَلَّمْنٰهُ |
| اونهٔ دي ښودلې مونږ ده ته |
| او مونږ دې پیغمبر ته نه شاعري خودلې ده |

| الشِّعْرَ | وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ | اِنْ هُوَ | اِلَّا | ذِكْرٌ | وَّقُرْاٰنٌ مُّبِيْنٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| شعر | اونه ښائي دهٔ لره | نه دې دا | مګر | یو نصیحت دې | او قرآن دې واضحه |

اونه ددهٔ شان سره مناسب ده | دا کلام خو ایوزبردست نصیحت او روښانه قران دې

| لِّيُنْذِرَ | مَنْ | كَانَ | حَيًّا | وَّيَحِقَّ | الْقَوْلُ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې اویروي | هغه څوک | چې وي | ژوندي | اوثابته شي | خبره [دعذاب] |

چې هغه کسان ویروي | دچا زړونه چې ژوندي دي | او چې په کافرانو باندې حجت

عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۝ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ

په کافرانو باندې | آیا نه وینی دا خلق | چې بیشکه پیدا کړل مونږه | دپاره ددوئ

پوره شي | .............. آیا دا خلق دې ته نه ګوری | چې مونږ ورله په خپل لاس باندې د جوړ کړو

مِّمَّا عَمِلَتْ أَيْدِيْنَا أَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مٰلِكُوْنَ ۝

دهغې نه | چه جوړ کړی دی | لاسونو زمونږ | څاوری | پس دوی | هغې لره | مالکان دی

څیزونو نه څاروی پیدا کړی دی | .............. نو دوئ دهغې مالکان شول

وَذَلَّلْنٰهَا لَهُمْ فَمِنْهَا رَكُوْبُهُمْ وَمِنْهَا

اوتابع کړی دی مونږ دغه څاروی | دپاره ددوئ | پس ځینې دهغې نه | سورلۍ ددوئ دی | اوځینې دهغې نه

او[بیا] مونږ دغه څاروی ددوئ دحکم تابع کړل | نو په بعضو باندې سورلی کوی | او د بعضو نه

يَأْكُلُوْنَ ۝ وَلَهُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ وَمَشَارِبُ ط أَفَلَا

خوری دوئ | او دپاره ددوئ | په هغې کښې | فائدې | آود څکلو څیزونه دی | نوآیا

خوراک کوی | او په دغه څارو کښې دوی دپاره نورې ډیرې فائدې دی | او د څکلو څیزونه دی | نو آیادوئ بیا هم

يَشْكُرُوْنَ ۝ وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً لَّعَلَّهُمْ

دوی شکر نه اوباسی | او نیولی دی دوی | ماسوا دالله نه | خدایان | دپاره ددې چه دوی سره

شکر نه اوباسی | او دوئ دالله نه بغیر ځانله معبودان په دې امید جوړ کړی دی | چې امداد بهٔ ورسره اوکړې

يُنْصَرُوْنَ ۝ ط لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَهُمْ لا وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ

امدادواوکړې شي | طاقت نه لری دوئ | دامداد ددوئ | بلکه داخلق | دپاره دهغوئ | لښکردي

شي | دغه معبودان ددوئ هیڅ مدد نشی کولې [بلکه] دغه څیزونه به ددې کافرانو په مقابله کښې

مُّحْضَرُوْنَ ۝

حاضر اوسیدونکې |

د لښکر[دشمن] په شان پیش کړې شي |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ (خپل) دې پیغمبر ته نه شاعری ښودلې ده، او نهٔ دا ددهٔ شان سره ښائی دا خوبس دیو نصیحت خبره ده،او یو داسې قرآن دې، چه حقیقت لره ښکاره بیانوی. دې دپاره چه هر هغه سړی لره خبردارکړی چه ژوندې وی او دې دپاره چه کفر کونکو باندې حجت پوره شی. او آیا دوی نه ګوری، چه مونږ په خپلو لاسونو باندې جوړ کړې شوې څیزونو نه ددوی دپاره څاروی پیدا کړې دی، اودوی دهغې مالکان جوړشوې دی؟ او مونږ هغه څاروی ددوی تابع کړې دی پس په هغوی کښې څه هغه دی، چه ددوی سورلی جوړه شوې ده، او څه هغه دی، چه هغې لره دوی خوری. او دوی ته دهغې څاروۀ نه نورې فائدې هم حاصلیږی، او د څکلو څیزونه ورته ملاویږی. آیا بیا هم دوی شکر نه اوباسی. او دوی دالله تعالٰی نه ماسوا نور معبودان په دې امید باندې جوړ کړې دی، چه دوی سره (دهغوی د طرف نه) امداد

Scanned with Ca

اوکړې شي (حالانکه) په هغوی کښې دا طاقت هم نشته چه ددوی سره مدد اوکړې شي، بلکه هغوی به دوی دپاره داسې (مخالف) لښکر جوړ شي چه هغوی لره به (قیامت کښې ددوی په مخکښې) حاضر کړې شي.

## خلاصه تفسیر

او داکفار کوم چه دنبوت دنفی کولو دپاره تاته شاعر وائی دامحض باطله ده ځکه چه ﴿وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ﴾ [مونږ ده لره دشاعرئ] یعنی خیالی مضامینوجوړولو [علم نه دې ورکړې ﴿وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ﴾ او هغه] شاعری [ددوئ ﷺ دشان مناسب هم نه ده هغه] یعنی تاته درکړې شوې علم کوم ته چه داخلق شاعری وائی ﴿اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ﴾ [هغه خو محض نصیحت] مضمون دنصیحت ﴿وَّقُرْاٰنٌ مُّبِيْنٌ﴾ [اوبو اسمانی کتاب دې ﴿لِّيُنْذِرَ مَنْ كَانَ حَيًّا﴾ کوم چه داحکامو ظاهرونکې دې چه] د احکامو دبیان په اثر سره [داسې سړی لره] په نفعمندو ویرولو سره] او ویروی کوم چه] دزړهٔ دژوند په اعتبارسره [ژوندې وي ﴿وَّيَحِقَّ الْقَوْلُ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ﴾ اوچه په کافرانو باند] دعذاب [حجت ثابت شی ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا﴾ ایا دې] مشرکانو [خلقو دې ته نه دی کتلی ﴿اَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ مِّمَّا عَمِلَتْ اَيْدِيْنَآ اَنْعَامًا﴾ چه مونږ ددوی د] نفع [دپاره دخپلو لاسو دجوړوشوو څیزو نونه څاوری پیداکړل او] زمونږ په مالك جوړولو سره ﴿فَهُمْ لَهَا مٰلِكُوْنَ﴾ [داخلق دهغې مالکان جوړېږی او] وړاند ددې نفعې څه تفصیل دې چه ﴿وَذَلَّلْنٰهَا لَهُمْ﴾ [مونږ هغو څاروو لره ددوی تابع جوړ کړل پس] هغه ددوی کار راوستوسره کار ورکوی چنانچه ﴿فَمِنْهَا رَكُوْبُهُمْ﴾ [دهغې نه څنې خو دهغوی سورلئ دی ﴿وَمِنْهَا يَاْكُلُوْنَ﴾ او څنولره هغوی خوری ﴿وَلَهُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ﴾ اوپه هغې کښې ددې خلقو دپاره نورې هم فائدې دی] لکه وېښته څرمن هډوکی وغیره په مختلفوطریقو سره په استعمال کښې راځی [او] په دې کښې ددې خلقو [﴿وَمَشَارِبُ﴾ د څښلو څیزونه هم دی]یعنی پئ ﴿اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ﴾ [پس ایا] په دې هم [داخلق شکر نه کوی] او دشکردتولونه وړومبئ او اهمه درجه په توحید باندایمان دې [او هغوی] په ځای دشکر او توحید کفر اوشرك اختیارکړې دې چنانچه ﴿وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً﴾ دخدایٔ نه سوا نور معبودان ئ مقرر کړی دی ﴿لَّعَلَّهُمْ يُنْصَرُوْنَ﴾ په دې امیدچه هغوی ته] ددې معبودانو دطرف نه [مدد ملاوشی]لیکن ﴿لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَهُمْ﴾ [هغه د دوی هیڅ مدد نه شی کولې او]مدد به په څه وکړی البته به ﴿وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ مُّحْضَرُوْنَ﴾ [هغه] معبودان [ددې خلقو په حق کښې یو] مخالف [فریق جوړشی کوم چه به] موقف د حساب ته په مجبورئ [حاضرکړې شی] او هلته به حاضرشی ددوی د مخالفت اظهاربه کوی لکه چه الله تعالی په سوره مریم کښې فرمائی [ویکونون علیهم ضدا](۱) او په سوره یونس کښې فرمائی [قال شرکاءهم ماکنتم ایانا تعبدون](۲) او داسې نور ایتونه]

## معارف او مسائل

﴿وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ﴾ هرکله چې د نبوت منکرانو به د قرآن کریم عجیبه تاثیرونه او په زړونو کښې ددې ځائې کیدل او اثر انداز کیدل پخپلو سترګو لیدل او انکار ئې ترې نه کولې نه شو . ځکه کله خو به ئې دا کلام الهی سحر بللو او کله به ئې رسول الله ﷺ ته شاعر وئیلو

(۱) ترجمه: او دهغوی مخالف به شی۔
(۲) ترجمه: او دهغوی شرکا به اورائی چه تاسو زمونږ عبادت نه کولو۔

سره دا ثابتول چې دا عجيبه تاثيرونه د جادو په وجه دی ، داسې نه ده چې ګنی دا دالله ﷻ کلام دې بلکه يا خو جادو دې يا شعر چې په عامو زړونو باندې اثر غورځوی .

الله ﷻ په دې آيت مبارک کښې فرمائی چې مونږ دې نبی ﷺ ته شعرو شاعری نه ده ښودلې اونه ئې دا د شان مناسب دی څکه ورته شاعر وئيل بالکل باطل او غلط دی .

دلته دا سوال پيدا کيږی چې هر کله اهل عرب پخپله فطری شاعران دی زنانه او ماشومان بې تکلفه شعر وائی چې دشعر دحقيقت نه ښه پوره واقف دی ، قرآن کريم د وزن شعر پابند نه دې ، نه چرته رديف او قافيه لری ، دې ته خو داسې کس هم شعروشاعری نشی وئيلې چې هغه ددې نه بيخی نابلده او ناواقف وی نو دغې عربو ماهرانو ورته څنګه شعر وئيلو ؟ ددې جواب دادې چې شعر په اصل کښې خيالی مضمونونو ته وئيلې شی ، که هغه نظم وی يا نثر په دې بنا هغوئ قرآن ته شعر وئيلو چې ددې مضمونونه خالص خيالی او د ځانه جوړ کړې افسانې دی،يا ئې په دې بنا نبی کريم ﷺ ته شاعر وئيلو چې د نظم او شعر په شان د نبی کريم ﷺ خبرې مبارکې هم اثر لری .

امام جصاص رحمه الله پخپل سند سره روايت کړې دې چې عائشه صديقه رضی الله عنها نه چا سوال اوکړو چې رسول الله ﷺ کله شعر لوستې وو؟ نو هغوئ رضی الله عنها اوفرمائيل چې هيچرې نه ؟ صرف دابن طرفه دا شعر ئې لوستې وو چې ::

ستبدی لك الايام ماکنت جاهلا :::: ويأتيك بالاخبار من لم تزود

يعنی زر ده چې ښکاره به کړی تاته ورځې هغه خبرې چې ترې ناخبره وی او راوړی به تاته خبرونه هغه څوك چې تا ورته څه توښهٔ راه هم نه وی ورکړی.

هر کله چې نبی کريم ددې وزن شعری بدل کړو او [من لم تزود بالاخبار] ئې اولوستو نو ابوبکرصديق رضی الله عنه عرض اوکړو چې يارسول الله ﷺ دا شعر داسې نه دې نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې زهٔ شاعر نه يم او نه ما دپاره شعر وشاعری مناسبه ده[۱] . دا روايت ابن کثير هم پخپل تفسير کښې نقل کړېدې[۲] ، دغسې ترمذی ، نسائی او امام احمد رحمه الله هم دا روايت کړې دې[۳] . دې نه معلومه شوه چې پخپله شعر جوړول خولا څه کوې چې د نورو شعرونو لوستل به ئې هم ځان دپاره مناسب نه ګنړل . او چرته چې د هغوئ نه څه شعری کلمات منقول دی هغه په قصد د شعر سره نه بلکه اتفاقی دی چې صرف په دغې بنا ورته شاعر وئيل نشی صحيح کيدې . خو هر کله چې د رسول الله ﷺ فطری حال په ډيرو حکمتونو باندې بنا وو. نو د هغې نه دا نه لازميږی چې ګنی مطلقا شعر وئيل څه بده خبره ده . څنګه چې په دې باره کښې تفصيل د سورهٔ شعراء په آخری رکوع کښې تير شوې دې . هلته دې اوکتلې شی. ○

﴿أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا خَلَقْنَا لَهُم مِّمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَا أَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مَالِكُونَ ۝﴾

دا آيت مبارک د ځاروؤ په پيدا کولو انسانی فائدې او په دې کښې د قدرت عجيبه کاريګری بيان شويده . اودالله ﷻ احسان خودلې شوې دې چې دا ځاروی خالص د قدرت لاس پخپله

[۱] ) أحكام القرآن للجصاص: ج ۸، ص ۳۵۷

[۲] ) تفسير ابن كثير: ج ٦، ص ۵۹۰

[۳] ) جامع الترمذي، أبواب الادب، باب ما جا فى انشاد الشعر: ج ۲، ص ۱۱۱، ومسند أحمد، حديث السيدة عائشة رضى الله عنها، رقم الحديث: ۲٦٦۱۳، والسنن الكبرىٰ للنسائى، رقم الحديث: ۱۰۸۳٤

Scanned with Ca

جوړ کړي دي . په دې کښې د انسان هیڅ دخل نشته دي . الله ﷻ یواځې دا اجازت نه دې ورکړې چې انسان ذې دې نه فائده واخلي بلکه د ځاروؤ مالکان ئې جوړ کړي دي چې هر قسم تصرف په کښې کولې شي . ددې د ذات نه هم فائده اخستې شي او داسې هم کولې شي چې خرڅ ئې کړي او د قیمت نه ئې فائده واخلي .

**د څیزونو د مالک کیدو اصل علت د الله ﷻ ورکړه ده نه پنګه اونه محنت** :: نن صبا په نوي نوي معاشي ازمونو او نظریو کښې دا بحثونه کیږي چې د څیزونو په پیدا کولو او ددې په مالک کیدو کښې پنګه او دولت اصل دې او که محنت ؟ ځوک چې د پنګې د سرمایه دارانه نظام معیشت اقراریان دي هغوئ په دې باره کښې دولت او پنګه اصل بولي . او سوشلزم او کمیونزم والا محنت د تخلیق او ملکیت اصل علت وائي خو د قرآن کریم دې فیصلې اوخودل چې د څیزونو پیدا کول او ددې په ملکیت کښې دې دواړو لره هیڅ دخل نشته او د څه څیز پیدا کول د چا انسان په قبضه کښې نه دي ، بلکه دا نیغ په نیغه دالله ﷻ کار دې او د عقل تقاضا داده چې هم پیدا کوونکې ددغې څیز مالک وي ، په دې بنا د ټولو څیزونو اصلي مالک الله ﷻ دې . انسان د پاره صرف الله ﷻ دیو څیز مالک جوړولې شي ، الله ﷻ د څیزونو د ملکیت ثابتولو او ددې د منتقل کولو قانون دخپلو پیغمبرانو ﷺ په ذریعه نازل کړې دې چې دهغې نه سوا په بل ډول هیڅوک د څه څیز مالک نشي جوړیدې .

﴿وَذَلَّلْنَٰهَا لَهُمْ﴾ دې کښې یو بل احسان او انعام طرفته اشاره اوفرمائیله چې اکثر ځاروي په طاقت کښې د انسان نه ډیر زیات دي . لکه اوښ ، هاتي [فیلان] او غوایان واخله . نو شان داسې دې چې د انسان په قابو کښې دانه شو راتلې ، خو الله ﷻ چې څنګه ددې ځاروؤ د پیدا کولو انعام چې انسان ته اوبخښلو ، په دې شان ئې دا هم فطرت جوړ کړو چې د غه مست ځاروي ئې د انسان مسخر او تابع کړل . یو هلک د یو مضبوط اس په خوله کښې واګې واچوي د هغې په شا سور شي او پخپله خوښه ئې د یو خوا نه بل خوا بوځي ، داهم د انسان کمال نه دې ، بلکه صرف د الله ﷻ ورکړه او بخشیش دې .

﴿وَهُمْ لَهُمْ جُندٌ مُّحْضَرُونَ﴾ ددې آیت مبارک یو مطلب د تفسیر په خلاصه کښې داسې بیان شو چې جند نه مطلب فریق مخالف یعنې ددوئ باطل معبودان دي چې د قیامت په ورځ به ددوئ خلاف ګواهي ورکوي .

اود حسن رحمه الله او قتاده رضي الله عنه نه ددې دا تفسیر منقول دې چې دې خلقو خو بتان ځکه خدایان جوړ کړي دي چې دوئ به ئې مدد کوي خو کیږي داسې هم چې دوئ د خپلو دغې بتانو خادمان او سپاهیان دي ، ددې حفاظت کوي ، ځوک که په دغې بتانو باندې مخالف شي نو دوئ ورسره ددې په سر جګړې کوي [قرطبي] [1] .

| فَلَا يَحْزُنكَ | قَوْلُهُمْ | إِنَّا نَعْلَمُ | مَا |
|---|---|---|---|
| پس غمژن دې نه کړي تا | خبرې ددوئ | بیشکه مونږ پوهیږو | په هغې |
| نو ته ددوئ په خبرو خفګان مه کوه | | مونږ ته هر څه معلوم دي | |

[1] ) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة: ج ۱۵، ص ۵۷

Scanned with Ca

يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۝ اَوَلَمْ يَرَ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ

چه دوی ئې پټوی | اوپه هغې | چه دوئ ئې ښکاره کوی | ایا نه ګوری انسان | چه بیشکه پیدا کړومونږ دی

کوم چې دوئ په زړونو کښې پټ ساتی | او کوم چې ښکاره کوی | آیا انسان دې ته نه ګوری چې مونږ

مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ۝ وَضَرَبَ لَنَا

د نطفې نه | پس اوس دادې هغه | جګړه کوونکې دې | ښکاره | او بیانوی هغه | دپاره زمونږ

دې دیو څاڅکی نه پیدا کړو | ابیا دې په ښکاره [دخپل رب په باره کښې] جګړه کوی | اودې زمونږ په باره کښې

مَثَلًا وَّنَسِيَ خَلْقَهٗ ؕ قَالَ مَنْ يُّحْيِ الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيْمٌ ۝

مثال | او هیروی | پیدائش خپل | وائی | څوک به ژوندې کوی | دا هډوکی | او حال دادې چه وراسته دی

مثالونه بیانوی | اوخپل حقیقت ئې هیر کړو | وائی چې څوک به هډوکی راژوندی کړی | څه وخت چې هغه به زاړه

قُلْ يُحْيِيْهَا الَّذِيْٓ اَنْشَاَهَآ اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ وَهُوَ

ورته اووایه | ژوندی کوی به دې لره | هغه ذات | چه پیدا کړی وو هغه | اول خل | حال دادې چه هغه

شوی وی ائې نبی ﷺ | ته جواب ورکړه | چې هغه ذات به ئې راژوندی کوی | چاچې په اول خل پیدا کړی دی

بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيْمُ ۝ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ

په هر پیدائش باندې | ښه پوهه دې | هغه ذات چه پیدائې کړو | ستاسو دپاره | د ونې | شنې نه |

او هغه په هر قسم پیدائش ښه پوهه دې | هغه داسې ذات دې چې تاسو دپاره ئې د شنو ونو نه اور پیدا کړې دې

نَارًا فَاِذَآ اَنْتُمْ مِّنْهُ تُوْقِدُوْنَ ۝ اَوَلَيْسَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ

اوور | پس اوس تاسو | دهغې نه | اوور بلوئ | ایا نه دې | هغه ذات | چه پیدائی کړل اسمانونه

[نو بیا دهغې نه تاسو نور اورونه بلوئی | ..........آیا هغه الله ﷻ چا چې آسمانونه اوزمکه پیدا کړی دی

وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ ؕ بَلٰى ۗ وَهُوَ الْخَلّٰقُ

اوزمکه | قدرت لرونکې | په دې چه پیدا کړی | مثل د دوی | اولې نه لری | او هغه خو پیدا کونکې دې

په دې کار قادر نه دې | چې هغه به د دوئ پشان نور خلق پیدا کړی | ولې نه | ............ هغه

الْعَلِيْمُ ۝ اِنَّمَآ اَمْرُهٗٓ اِذَآ اَرَادَ شَيْـًٔا اَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ

پوهه ماهر | بیشکه حکم دهغه چه دې | کله چه اراده اوکړی | دیو څیز | دادې چه اووائی | هغه څیز ته

پیدا کونکې اوپوهه دې | د هغه شان دادې چې څه وخت هغه د یو څیز اراده اوکړی | نو ورته وائی

كُنْ فَيَكُوْنُ ۝ فَسُبْحٰنَ الَّذِيْ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ

شه | نو هغه شی | پس پاکی ده هغه لره | چه په لاس دهغه کښې | بادشاهی |

چې موجود شه | نو هغه موجود شی | نو دالله ﷻ دپاره پاکی ده | دچا په لاس کښې چې دهر یو څیز

كُلِّ شَيْءٍ وَّاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝

دهیر څیز ده | او خاص هغه ته به واپس کیږئ تاسو

پوره پوره اختیار دې | او تاسو ټول به هغه ته واپس ورځئ

## آسان ترجمه قرآن

غرض (اے پیغمبره) ددوی خبرې دې تالره غمژن نه کړي یقین اوکړه. مونږ ته ټول معلوم دی، چه دوی څه پټوی، او څه ښکاره کوی. او آیا انسان دا نهٔ دی لیدلي، چه مونږ هغه لره د نطفې نه پیدا کړې دې؟ بیا هغه ناساپه ښکاره جګړ مار جوړ شو، زمونږ پاره کښې خو دې مثالونه پیش کوی او خپله ئې خپل پیدائش هېر کړې دې، وائي چه: دې هډوکو ته به څوک ژوند ورکړي، کله چه دا وراسته شوې دی، او وایه چه: دې لره به هغه ذات ژوند ورکړي، کوم چه دوی لره په اول ځل پیدا کړې دی، او هغه د پیدا کولو هر کار پیژنی هم هغه دې، چه هغه ستاسو د پاره د شنې اونې نه اور پیدا کړې دې نو په لږ وخت کښې تاسو د هغې نه اور بلوئ آیا کوم ذات چه آسمانونه او زمکه ئې پیدا کړې ده، هغه په دې خبره باندې قادر نه دې، چه ددوی پشان (دوباره) پیدا کړي؟ ولې نه؟ او هغه د هر څیز په پیدا کولو کښې ښه مهارت لري. یقیناً معامله د هغه خو داده، چه کله هغه د څه څیز اراده اوکړي نو صرف دومره ورته اووائی چه: اوشه، بس هغه اوشي، غرض دا چه پاک دې هغه ذات، چه د هغه په لاس کښې د هر څیز حکومت دې، او خاص هغه ته به تاسو ټول واپس کړې شئ.

## خلاصه تفسیر

هر کله چه دا خلق په داسې واضحو اوښکاره امورو کښې هم خلاف کوی ﴿فَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ﴾ [نو ددې خلقو خبرې] د توحید او رسالت نه د انکار په حقله [ستاسو د پاره باعث د خفګان کېدل نه دی پکار] ځکه چه خفګان کېدې شی په امید سره او امید کېږی د مخاطب په عقل او انصاف سره او په دې خلقو کښې نه عقل شته نه انصاف نو ددوی نه د سره د څه شی امید نه شی کېدې بیا غم ولې دې؟ وراند په بله طریقه سره د نبی کریم ﷺ تسلی ده ﴿إِنَّا نَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ﴾ [بیشکه مونږ ټول پیژنو څه چه دوی په زړهٔ کښې ساتی ﴿وَمَا يُعْلِنُونَ﴾ اوڅه چه] په ژبه [ظاهروی] په دې وجه به په مقرر وخت دوی ته ددوی د عمل سزا ملاو شی ﴿أَوَلَمْ يَرَ الْإِنْسَانُ﴾ ایا] دې [بنده ته] کوم چه د قیامت نه انکار کوی [دا معلومه نه ده ﴿أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِنْ نُطْفَةٍ﴾ چه مونږ دهٔ لره] د یوې حقیرې [نطفې نه پیدا کړو] ددې تقاضا دا وه چه خپله شرمیدلې وې چه د ګستاخئ جراءت ئې نه کولې بلکه د خپل حالت نه په دې استدلال نیولې وې چه د مرګ نه پس دوباره ژوندی کول دهٔ د قدرت څخه څه بعید دی [پس] دهٔ داسې ونه کړل بلکه د مذکوره اقتضاء نه خلاف ﴿فَإِذَا هُوَ خَصِيمٌ مُّبِينٌ﴾ [هغه په ښکاره اعتراض کوونکې شو او] هغه اعتراض دا چه ﴿وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا﴾ [دهٔ زمونږ په شان کښې یو عجیبه مضمون بیان کړو] عجیبه ځکه چه په دې سره د قدرت نه انکار لازمیږی ﴿وَنَسِيَ خَلْقَهُ﴾ [او خپل اصل ئې هیر کړو] چه مونږ دهٔ لره د یوې حقیرې نطفې نه یو کامل انسان جوړ کړو ﴿قَالَ مَنْ يُحْيِي الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيمٌ﴾ [وائی چه هډوکو لره هر کله چه هغه وراسته شی څوک به ئې ژوندی کړی؟ ﴿قُلْ يُحْيِيهَا الَّذِي أَنْشَأَهَا أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ ته جواب ورکړه چه دې لره به هغه ذات ژوندی کړی چا چه اول دې لره پیدا کړی دی] چه د اول تخلیق په وخت کښې ددې هډوکو د ژوند سره هیڅ تعلق نه وو او اوس خو یو ځل په دوی کښې حیات پیدا شوې دې یو قسم له تعلق ئې د حیات سره پیدا شوې دې اوس دوباره په دوی کښې حیات پیدا کول څه مشکل دی ﴿وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيمٌ﴾ [او هغه په هر قسم پیدا کولو باندې پوهه دې [یعنی په ابتداء

کښې یوشې پیدا] کول یا پیدا شوې څیز فنا کول دوباره پیداکول ﴿الَّذِیْ﴾ [هغه داسې] قادر مطلق [دې چه ﴿جَعَلَ لَکُمْ مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ نَارًا﴾ د] ځنو [شنو اونونه تاسو دپاره اور پیدا کوی ﴿فَاِذَاۤ اَنْتُمْ مِّنْهُ تُوْقِدُوْنَ﴾ بیا دهغې نه تاسو اوربلوئ] لکه چه په عربوکښې یوه اونه وه ،مرخ، بله ، عفار، ددې دواړو اونو] دملاویدو نه به اور پیدا کیدو، نوکوم قادر ذات چه دشنو اونو په اوبو کښې اور پیداکړې دې نو په نورو جماداتوکښې حیات پیداکول دهغه دپاره څه مشکل دی ﴿اَوَلَیْسَ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰۤی اَنْ یَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ﴾ [او چاچه اسمانونه او مزکه پیداکړې دی ایا هغه په دې قادر نه دې چه ددوی په شان بنیادمو لره] دوباره [پیداکړي ﴿بَلٰی وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِیْمُ﴾ خامخا قادردې او هغه لوئ پیداکوونکې ښه پوهیدونکې دې] او دهغه قدرت داسې دې چه ﴿اِنَّمَاۤ اَمْرُهٗۤ اِذَاۤ اَرَادَ شَیْئًا اَنْ یَّقُوْلَ لَهٗ کُنْ فَیَکُوْنُ﴾ [هر کله هغه دڅه شی] د پیداکولو [اراده کوی نوبس دهغه معمول خو دادې چه هغه شی ته ووائی چه وشه پس هغه وشی نو] ددې ټولو مقدماتونه ثابته شوه چه ﴿فَسُبْحٰنَ الَّذِیْ بِیَدِهٖ مَلَکُوْتُ کُلِّ شَیْءٍ﴾ [د هغه ذات دې چه په لاس کښې ئې دهرشي پوره اختیار دې او] داخبره دټولو شهباتونه سالمه پاتې شوه چه ﴿وَاِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ﴾ [تاسو ټولو لره هغه ته واپس کیدل دی] یعنی دقیامت په ورځ

## معارف او مسائل

﴿اَوَلَمْ یَرَ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ مِنْ نُّطْفَةٍ﴾ د سورة یاسین دا آخری پنځه آیتونه په یو خاص واقعه کښې نازل شوی دی. چې د ځینې روایتونو تر مخه ابی بن خلف ته منسوب شوېده او د ځینې روایتونو تر مخه عاص بن وائل ته منسوب شوی ده. د اهم څه لرې خبره نه ده چې دا واقعه د دواړو وی ، رومبې روایت بیهقی په شعب الایمان کښې او دویم روایت ابن ابی حاتم د ابن عباس ﷺ نه نقل کړې دې. هغه داسې چې عاص بن وائل د بطحاء نه یو روست هډوکې راپورته کړو او هغه ئې په خپل لاس کښې په مړلو ذرې ذرې کړو. بیا یې رسول الله ﷺ ته اووئیل چې آیا الله ﷻ به داسې هډوکی هم دوباره راژوندی کوی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې آؤ الله ﷻ به تاهم مړ کی بیا به دې ژوندې کړی ، او جهنم کښې به دې داخل کړی. [ابن کثیر] [1]

﴿هُوَ خَصِیْمٌ مُّبِیْنٌ﴾ یعنی د ذلیلې شوې او سپکې نطفې نه پیدا انسان څنګه په ښکاره مقابلې ته رامخکښې شو چې د الله ﷻ دقدرت نه انکاری کوی.

﴿وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا﴾ دلته د ضرب مثل نه مراد دا واقعه ده چې روست هډوکی ئې په لاس کښې ذره او میده کړو او ددې دوباره ژوندی کیدل ئې ناممکن یا ګران اوبلل ، دې پسې فرمائی چې :

﴿وَنَسِیَ خَلْقَهٗ﴾ یعنی ددې مثال د بیانولو په وخت هغه پخپله خپل پیدائش هیرکړوچې یو سپک اوناپاک بې ساه څاڅکی کښې ئې ساه واچوله دې ئې ترې پیدا کړو که ده خپل اصل نه وې هیر کړې نو دداسې مثالونو په پیش کولو سره به ئې دالله ﷻ د قدرتونو نه دانکار جرات نه کولې.

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر: ج ٦، ص ٥٩٣، والمستدرک للحاکم، تفسیر سورة یٰس رقم الحدیث: ٣٦٠٦

Scanned with Ca

﴿اَلَّذِیْ جَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ نَارًا﴾ عربو کښې د دوؤ مشهور اونو نه به لکه د مسواک دوه شنې لختې راپریکړې شوې یو به چې په بلې او مړلې شوه نو اور به تر پیدا شو ، نو په آیت کښې هم دې ته اشاره ده [قرطبی] [1] او که د ونو آخر انجام ته اوکتې شي نو هره ونه په شروع کښې شنه د اوبو ډکه وی بیا چې اوچه شی نو د اور بلولو ذریعه جوړه شی ، په دې بناء هره ونه ددې مصداق جوړیدې شی لکه د قرآن کریم پدې آیت مبارک کښې په ظاهره هم دا مراد دی :

﴿اَفَرَءَیْتُمُ النَّارَ الَّتِیْ تُوْرُوْنَ۝ءَاَنْتُمْ اَنْشَاْتُمْ شَجَرَتَهَآ اَمْ نَحْنُ الْمُنْشِئُوْنَ۝﴾ یعنی تاسو هغې اور ته نه گورئی چې تاسو بلوئ او خپل کارونه تر اخلئ،ایا په اور سره شغله جوړیدونکې ونه تاسو پیدا کړې ده که مونږ ؟

هرکله چې په آیت مبارک کښې شجره سره دا خضر صفت هم لگولې شوې دې ، نو ظاهره ده چې دلته تر هم هغه دوه خاص ونې مراد دی چې سره د شینوالی نه ترې اور پیدا کیږی .

﴿اِنَّمَآ اَمْرُهٗٓ اِذَآ اَرَادَ شَیْـًٔا اَنْ یَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَیَكُوْنُ۝﴾ د آیت مراد دادې چې هرکله الله ﷻ یو څیز پیدا کول غواړی نو د انسانی مصنوعاتو په شان ورته ددې ضرورت نه وی چې اول ورته بنیادی څیزونه مواد راغونډ کړی ، کاریگران ددې دپاره راوبلی هغې دپاره د آوزار او مشینرئ ضرورت وی ، څه موده پرې پیدا کولو نه پس هغه څیز تیار شی ، بلکه الله ﷻ څه وخت هم چې څه څیز چې پیدا کول غواړی نو صرف حکم ورته ورکوی ، چې پیدا شه نو هغه پیدا شی . دهر څیز پیدا کول سمدستی نه وی بلکه دالله ﷻ حکمت ئې چې څنګه غواړی په هغې شان سره پیدا کیږی خواه په ډیل یعنی تاخیر سره وی یا په یو ځل د پیدا کوونکی څیز دپاره ئې په هره مرحله د پیدا کیدو بیل بیل حکم وی ، یا په یو ځل حکم سره دې دپاره میعاد او نیټه مقرره شوې وی . والله سبحان و تعالی اعلم .

قد تمت سورة یٰس بحمد الله وعونه لثمانی وعشرین من شهر صفر ۱۳۹۲ هجری یوم الخمیس وبتمامه تم بحمد لله الجزء الخامس من الاحزاب السبعة القرانیة فالحمد لله اولا وآخرا وظاهرا وباطنا .

.......

[1] ) تفسیر القرطبي: ج ۱۵، ص ۵۹، ۶۰

Scanned with Ca

| اياتونه | سورة الصّافّات مكية وهي مائة واثنتان وثمانون اٰية وخمس ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۱۸۲ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دي | ۵ |

وَالصّٰٓفّٰتِ صَفًّا ۙ﴿۱﴾ فَالزّٰجِرٰتِ

قسم دي په صف جوړونكو فرښتو باندي | په صف جوړولو سره | بيا په زورنه وركونكو فرښتو باندي

قسم دي په هغه فرشتو چي په صفونو كښي په قطار ولاړ وي | او په هغه فرشتو چي

زَجْرًا ۙ﴿۲﴾ فَالتّٰلِيٰتِ ذِكْرًا ۙ﴿۳﴾ اِنَّ اِلٰهَكُمْ

په زورنه وركولوسره | بيا په لوستونكو فرښتو باندي | كلام دنصيحت لره | چي بيشكه حقيقي معبود ستاسو

[شيطانان] په كلكه رټي | او په هغه فرشتو چي دقران پاك تلاوت كوي | بيشكه ستاسو معبود

لَوَاحِدٌ ۭ﴿۴﴾ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا

خامخا يو دي | چي رب داسمانونو | او دزمكي دي | او دهغي چي په منځ ددي دواړو كښي دي

يو دي | هغه داسمانونو اوزمكي اوددي په مينځ كښي چي څه دي د ټولو څيزونو رب دي

وَرَبُّ الْمَشَارِقِ ۭ﴿۵﴾ اِنَّا زَيَّنَّا السَّمَاۗءَ الدُّنْيَا

او رب دټولو مشرقونو دي | بيشكه ښائيسته كړي دي مونږه | اسمان | ددنيا |

اود نمر راختلو دځايونو رب دي | دا مونږ يو چي د دنيا اسمان مو په يو عجيبه رونق يعني

بِزِيْنَةِ الْكَوَاكِبِ ۙ﴿۶﴾ وَحِفْظًا مِّنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ

په ښائيست دستورو سره | او محفوظ كړي دي [مونږه دا آسمان] | دهر شيطان

ستورو ښائسته كړي دي | اودهر يو سركش شيطان نه مو دهغي حفاظت كړي دي

مَّارِدٍ ۚ﴿۷﴾ لَا يَسَّمَّعُوْنَ اِلَى الْمَلَاِ الْاَعْلٰى وَيُقْذَفُوْنَ

سركش نه | دا شيطانان نشي اېښودي غوږ | ملاء اعلى ته [ټولى پورته ته] | اوويشتلي كيږي |

[شيطانان] [دفرښتو] د اوچت مجلس هيڅ خبره نشي آوريدلي | اودهر طرفنه ددوى دتښتولو دپاره

مِنْ كُلِّ جَانِبٍ ۖ﴿۸﴾ دُحُوْرًا وَّلَهُمْ عَذَابٌ وَّاصِبٌ ۙ﴿۹﴾ اِلَّا

دهر طرفنه | دپاره دشړلو | او دي دپاره ددوئ | عذاب سخت [مسلسل] | مگر |

په دوئ سكروټي غورزولي شي | اوددوئ دپاره د هميشوالي عذاب دي | ..............البته

مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ﴿۱۰﴾

هغه [شيطان] | چي وي تښتوله | يوه خبره | نو ورپسي شي په هغه پسي | يوه شغله | رڼا كونكي

كه چا په كښي چرته يو نيم خبر اوتښتولو | نو يو گرمه ځلنده شعله ورپسي ورروانه شي

**آسان ترجمه قرآن**

قسم دي په هغې چه صفونه جوړونكي دی، بيا په هغو چه شړونكي دی، په شړلو سره بيا په هغوی چه د ذكر تلاوت كوی ستاسو معبود يَو دې، چه د ټولو آسمانونو او زمكې او ددوی په مينځ كښ د هر څيز

Scanned with Ca

مالک دی، او دهغې ټولو مقاماتو مالک دی، د کوم ځائې نه چه ستوري راخیژي. یقیناً مونږ دی نزدې والا آسمان ته یوځائست ورکړې دې، په ستورو سره. او د هر شریر شیطان نه مو دحفاظت یوه ذریعه جوړه کړې ده. هغوی د بره جهان خبرې نشي اوریدلې، او د هر طرف نه هغوی ویشتلې شي هغوی ته ډیکې ورکولې شي، اوهغوی ته په (آخرت کښې) دائمي عذاب وی. البته چه څوک ټونګې اچولو سره اوتښتوي نو یوه روښانه شغله هغه پسې شي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَالصّٰٓفّٰتِ صَفًّا﴾ [قسم دې په هغه فرښتوکوم چه] په عبادت کښې یا د الله تعالی دحکم اوریدو په وخت کښې [صفونه وتړی اودریږی] لکه چه په سوره کښې وړاند راځی [وانالنحن الصافون()] ﴿فَالزّٰجِرٰتِ زَجْرًا﴾ بیاقسم دې [په هغو فرښتوکومې چه] دشهاب په ذریعه داسمان خبرونو راوړنه د شیطانانو [بندش کوونکودی] لکه چه په دې سوره کښې عنقریب راځی ﴿فَالتّٰلِيٰتِ ذِكْرًا﴾ [بیا] قسم دې [په هغو فرښتو کومې چه] دالله [ذکر] تسبیح او تقدیس [تلاوت کوونکی دی] لکه چه په دې سوره کښې به راشی [وانا لنحن المسبحون] ([2]) غرض داټول قسمونه خوری وائی ﴿اِنَّ اِلٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ﴾ [چه ستاسو معبود] برحق [یودې] او ددې توحید دلیل دادې چه ﴿رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا﴾ [هغه پروردګاردې داسمانونواو دمزکې او څه چه ددې په مینځ کښې دی] یعنی ددې مالک او متصرف دی ﴿وَرَبُّ الْمَشَارِقِ﴾ [او پروردګار دې] دټولوستورو [دختو د موقعو] او ﴿اِنَّا زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِزِيْنَةِ ﹰالْكَوَاكِبِ﴾ [هم مونږ رونق ورکړې دې ددې طرف والا اسمان ته یو عجیبه رونق یعنی په ستورو سره او] په دې ستورو سره ددې اسمان یعنی دده دخبرونو ﴿وَحِفْظًا مِّنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ مَّارِدٍ﴾ [حفاظت مو هم کړې دې دهر شریر شیطان نه] چه طریقه ئې وړاند بیان شوې ده او ددې حفاظت د انتظام په وجه سره ﴿لَا يَسَّمَّعُوْنَ اِلَى الْمَلَاِ الْاَعْلٰى﴾ [دغه شیطانان دعالم بالا] یعنی دملائکو خبرو [ته غوږونه هم نه شی اینښودې] یعنی اکثر خو دویشتو دویرې نه لرې لرې وسیږی [او] که چرې اتفاقا ددې کوشش وکړی هم نو ﴿وَيُقْذَفُوْنَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ﴾ [هغه دهرطرف نه] یعنی کوم طرف ته هم چه کوم شیطان ځی [په ویشتلو سره شړلې شی] ﴿دُحُوْرًا وَّلَهُمْ عَذَابٌ وَّاصِبٌ﴾ دا عذاب او ذلت خو دوی ته فی الحال ملاویږی [او] بیا په آخرت کښې [دهغوی دپاره] دجهنم [دائمی عذاب به وی] غرض دځه اسمانی خبر اوریدو نه وړاند دوی لره ویشتلې او زغلولې شی دوی د اوریدو په اراده راشی مګر ناکامه شی ﴿اِلَّا مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ﴾ [مګر کوم شیطان چه دڅه خبر اخستلوسره راتښتی ﴿فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ ثَاقِبٌ﴾ نو یوه بله شغله په ده پسې شی] چه دې وسوزوی ایره شی نو په دې وجه چه ده څه اوریدلی وی دهغې نورو ته په رسولو کښې ناکامه شی داټول انتظامات او تصرفات په توحید خداوندی باند دلالت کوی

## معارف او مسائل

**دسورت مضمونونه ::** ﴿وَالصّٰٓفّٰتِ صَفًّا﴾ دا سورت مکی دې او د نورو مکی سورتونو پشان ددې بنیادی تیره او موضوع هم ایمانیات دی او په دې کښې توحید ، رسالت او د آخرت په عقیدو

[1]) ترجمه: او مونږ صف در صف ادریږو.
[2]) ترجمه: او مونږ پاکی بیانلو کښی لګیایو.

Scanned with Ca

باندې مختلفو طريقو سره دليلونه قائم كړې شوي دي . په دې ضمن كښې د مشركانو د عقيدو ترديد هم دې او په آخرت كښې د جنت او دوزخ د حالاتو ننداره هم داؤكومې عقيدې چې دټولو انبياء ﷺ په بلنه كښې شاملې پاتې شوې دي . په هغې باندې دليل راؤړلو او د كافرانو د شبهو او اعتراضو لرې كولو نه پس د ايمان بيان كړې شوې دې چې په تيرو وختونو كښې كومو خلقو چې دا عقيدې اومنلې ، الله ﷻ هغوئ سره څه معامله اوكړه ؟ او چا چې كفر او شرك اختيار كړو نو دهغوئ انجام څه شو؟ نو په دې ترڅ كښې نوح ﷺ ، ابراهيم ﷺ او ددوئ د اولاد موسى ﷺ ، هارون ﷺ ، الياس ﷺ ، لوط ﷺ او يونس ﷺ واقعات كله په اجمال او كله په تفصيل سره بيان كړې شوې دې .

د مكې مشركانو به فرښتو ته د الله ﷻ لونړه وئيلې . په آخر كښې ددې عقيدې ترديد په تفصيل سره كړې دې . او د سورت د مجموعى طرز نه دا معلوميږى چې پدې سورت كښې دشرك دا خاص قسم په خاص ډول سره د نظر لاندې ستاسو شوې دې ، ځكه دا سورت په فرښتو باندې دقسم خوړلو اود دوئ د بندګئ د صفتونو ذكر كولو نه شروع كړې شو يدې . والله اعلم .

**رومبې مضمون د توحيد** :: د اسورت د توحيد د عقيدې د بيان نه شروع كړې شوې دې . او د رومبې څلورو آيتونو اصل مقصد دا بيانول دي چې ﴿إِنَّ إِلَٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ﴾ بيشكه ستاسو معبود هم يو دې . خو ددې خبرې بيانولو نه مخكښې درې قمسونه خوړلې شي ، ددې قسمونو سيدها لفظى ترجمه داده :

قسم دې د صف تړلو سره د اودريدونكو ، بيا قسم دې د بندش كوؤنكو ، بيا قسم دې ددې د ذكر تلاوت كوؤنكو ، دا درې قسمه صفت لرونكى څوک دى . د قرآن پاک الفاظو دا نه دى واضح كړى ځكه ددې په تفسر كښې مختلفې خبرې وئيلې شوې دى . ځينو حضراتو فرمائيلى دى چې دې نه مراد د الله ﷻ په لار كښې جهاد كوؤنكى غازيان دى چې صفونه جوړ كړى اودريږى ، دپاره ددې چې په باطلو قوتونو باندې بندشونه لګوى ، او دغه صف تړلى حالت كښې په ذكر تسبيح اود قرآن په تلاوت كښې هم مشغول پاتې كيږى .

ځينو فرمائيلى دى چې دې نه مراد هغه مونځ ګزار دى چې صفونه يې جوړ كړى دى او په شيطانى فكرونو او عملونو باندې بندش لګوى او خپله ټوله توجه ذكر او تلاوت ته لرې [تفسير كبير قرطبى][1] دې نه علاوه نور تفسيرونه هم بيان شوى دى . چې دقرآن پاک الفاظو سره زيات مناسبت نه لرى .

خود جمهورو مفسرينو زيات قبول كړې شوې تفسير دادې چې دې نه مراد فرښتې دى او د لته ئې درې صفتونه بيان شوى دى .

رومې صفت ﴿وَالصَّافَّاتِ صَفًّا﴾

دا لفظ د صف نه مشتق دې او ددې معنى يو جمعيت لره په يو كرښه باندې مضبوطول دى [قرطبى][2] نو ددې معنى صف تړلى اودريدونكى ده .

---

[1]) التفسير الكبير: ج ۱۳، ص ۱۰۰، وتفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۶۲

[2]) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۶۲

Scanned with Ca

دفرښتو دصف بندئ بيان په دې سورت کښې بيا هم راروان دې ،لکه فرښتې پخپله خپله باره کښې وائي چې :
﴿وَّاِنَّا لَنَحۡنُ الصَّآفُّوۡنَ﴾ يعنى بيشکه مونږ صف تړونکي اودريږو . د ا صف بندى کله وى ؟ ځينې مفسرينو حضراتو ابن عباس رضي الله عنه ، حسن بصرى رحمه الله ، قتاده رحمه الله فرمائيلى دى چې فرښتې هر وخت په فضا کښې صفت تړلې ولاړې وى . د الله ﷻ حکم ته ئې غوږ نيولې وى . چې کله ورته څه حکم ورکړې شى نو په هغې زر تر زره عمل کوى [مظهرى]([1]).
اوځينې حضراتو فرمائيلى دى چې دا حالت ئې دعبادت کولو په وخت کښې وى [تفسير کبير]([2]).

**دين کښې نظم وضبط مطلوب دې** :: دې آيت نه معلومه شوه چې په دين کښې د هر کار نظم و ضبط ترتيب او سليقه لرل مطلوب او د الله ﷻ خوښ دى هسې خو عبادت کول يا په حکمونو باندې عمل کول دواړه مقصدونه په دې شان هم حاصليدې شى . چې فرښتې د صف تړلو په ځائې بې ربطه او بې ضبطه رايوځائې شى خو ددې په ځائې ورته د نظم او ضبط قائم لرلو دپاره توفيق ورکړې شو . او په ښه صفتونو کښې دټولونه اول ښه صفت ئې دا اوخودلو چې الله ﷻ ته دا زياته خوښه ده .

**مونځونو کښې د صفونو صحيح کول او ددې اهميت** :: څکه خو انسانانو ته هم د عبادت په دوران کښې ددې صف تړلو شوق ورکړې شوې دې . نو د جابر بن سمره رضي الله عنه د روايت مطابق رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې تاسو مونځ کښې داسې صفت بندى ولې نه کوئ څنګه چې فرښتې د خپل پروردګار په حضور کښې کوى . صحابه کرامو رضي الله عنهم تپوس اوکړو چې فرښتې دالله تعالى په حضور کښې صف بندى څنګه کوى . نبى کريم ﷺ جواب کښې اوفرمائيلو چې هغوئ صفونه پوره کوى او په صفونو کښې يو بل سره جوخت اودريږى . چې په مينځ کښې خالى ځائې نه پريږدى . [مظهرى]([3]).
مونځ کښې د صفونو پوره کولو او نيغ برابر لرلو په تاکيد کښې دومره احاديث راغلى دى چې يو پوره رساله ترې جوړيدې شى.ابو مسعود بدرى رضي الله عنه فرمائى چې رسول الله ﷺ به په مونځ کښې زمونږ اوږو ته لاس وراوړلو سره فرمائيل چې :نيغ اوسئ ، وړاندې ، روستو مه کيږئى ګنې ستاسو په زړونو کښې بۀ اختلاف پيدا شى. [جمع الفوائد په حواله د مسلم او نسائى :۹۲/ج-۱]([4])
د فرښتو دويم صفت ﴿فَالزّٰجِرٰتِ زَجۡرًا﴾ بيان کړې شوې دې . دا لفظ د زجر څخه مشتق دې ، معنى ئې ايسارول ، رټل او شړل دى . تهانوى رحمه الله ددې ترجمه بندش کوؤنکى کړېده . کومه چې هر ممکن مطلب لره جمع کوى .فرښتې په کومو څيزونو باندې بندش لګوى ؟ د قرآن پاک دروائ او چلن له مخې اکثرو مفسرينو ددې جواب دا ورکړې دې چې شيطانانو لره عالم بالا ته د رسيدو نه بندوى ، چې هغه تفصيلى بيان دې پسې را روان دې .

---

[1] تفسير المظهرى: ج ۸، ص ۱۰۵
[2] التفسير الكبير: ج ۱۳، ص ۱۰۰
[3] تفسيرالمظهرى: ج ۸، ص۱۰۵، وصحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب الامربالسكون فى الصلاة: ج ۱، ص ۱۸۱
[4] صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب تسوية الصفوف واقامتها— الخ: ج ۱، ص ۱۸۱

Scanned with Ca

دریم صفت ﴿فَالتّٰلِيٰتِ ذِكْرًا﴾ دي یعنی فرښتې د ذکر تلاوت کوونکی دی. ذکر نه مراد د نصیحت خبره هم ده. او د الله ﷻ یاد هم په روښانه صورت کښې به مطلب دا وی چې الله ﷻ د آسمانی کتابونو په ذریعه د نصیحت کومې خبرې چې نازلې کړې دی د دوئ دهغې تلاوت کوونکی دی، دا تلاوت د برکت حاصلولو په غرض هم کیدیشی او د عبادت په ډول هم. او دا هم کیدیشی چې دې نه وحی راوړونکې فرښتې مراد وی. چې هغوئ د پیغمبر ﷺ په وړاندې د نصیحت ددې کتابونو تلاوت کوی او پیغمبر ﷺ ته دالله ﷻ پیغام رسوی او په کوم صورت کښې چې ذکر نه الله ﷻ یادول مراد واخستې شی نو مطلب به ئې پدې صورت کښې دا وی چې هغوئ یعنی فرښتې هر وخت د هغې کلمو په تلاوت کښې لګیا وی چې کومې د الله ﷻ په تسبیح او تقدس باندې دلالت کوی.

دلته قرآن پاک د فرښتو دا درې صفتونه بیان کړل چې د بندګئ ټول صفتونه په کښې راجمع دی، یعنی عبادت دپاره صفت تړلی کیدل، شیطانی طاقتونه دالله ﷻ د نافرمانئ نه بندول او دالله ﷻ حکمونه او وعظونه پخپله لوستل او نورو ته ئې رسول. او ښکاره خبره ده چې د بندګئ هیڅ عمل ددې درې شعبو نه نشی خالی کیدې. په دې بناء د څلورو واړو آیتونو مفهوم دا شو چې کومې فرښتې د بندګئ ټول صفتونه لری په هغوئ مې دې قسم وی چې ستاسو معبود برحق دې او یو دې.

**په فرښتو باندې ولې قسم اوخوړلې شو؟** :: په دې صورت کښې په خاص ډول د فرښتو د قسم خوړلو وجه دا معلومیږی چې څنګه روښانه بیان کړې شو. ددې سورت مرکزی موضوع د شرک هغه خاص قسم تردید دې د کوم د مخه به چې دمکې خلقو فرښتو ته دالله ﷻ لونړه وئیلې. نو د سورت په اول سر کښې په فرښتو باندې قسم خوړلو سره ددوئ هغه صفتونه بیان کړې شو چې د هغې نه مکمله بندګی څرګندیږی، ګویا مطلب ئې دا راوځی چې که تاسو د فرښتو په دې صفتونو باندې غور اوکړو نو دا به پخپله ستاسو په وړاندې ددې خبرې ګواهی شی چې الله ﷻ سره ددوئ تعلق د لوروئ او پلاروئ نه بلکه د بنده او آقا دی.

**دالله ﷻ قسم خوړل او ددې په باره کښې احکام او سوال او جواب** :: قرآن پاک کښې الله ﷻ د ایمان او عقیدو د ډیرو اصولی مسئلو د تاکید دپاره مختلف قسمه قسمونه خوړلی دی. کله پخپل ذات، کله دخپل مخلوقاتو څینې په خاص خاص قسمه څیزونو باندې، دې باره کښې ډیر سوالونه دی، څکه دقرآن پاک په تفسیر کښې دا یوه مستقله اصولی مسئله جوړشوې ده. حافظ ابن قیم ؒ دې باندې یو مستقل کتاب التبیان فی اقسام القرآن لیکلې دې. علامه سیوطی ؒ د خپل اصول تفسیر په کتاب الاتقان کښې د مباحثو اووهٔ شپیتم قسم دې لره ګرځولې دې. تفصیلی کلام ئې پرې کړې دې[1]. دلته څه ضروری برخې ئې لیکلې شی.

**رومبی سوال** :: د الله ﷻ د قسم خوړلو په باره کښې په فطری ډول دا سوال پیدا کیږی چې الله ﷻ د ټولو نه زیات بې حاجته ذات دې، الله ﷻ ته ضرورت څه دې چې د چا یقین پیدا کولو دپاره قسمونه خوری. په اتقان کښې د ابی القاسم قشیری څخه ددا سې سوال په جواب کښې بیان شوې دې چې الله ﷻ ته خود قسم خوړلو ضرورت نه وو خو هر کله چې په خپلو

---

[1] الاتقان فی علوم القرآن، النوع السابع والستون فی اقسام القرآن: ج ۱، ص ۳۸۹

Scanned with Ca

بندګانو باندې هغه ډېر زيات رحم کوونکې او شفقت کوونکې دې څکه الله ﷻ د دوئ د حق قبلولو په خاطر داسې اوکړل چې دوئ حق قبول کړي او د عذاب نه بچ شي. نو کله چې داآيت مبارک نازل شو چې ﴿وَفِي السَّمَاءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوعَدُونَ ۞ فَوَرَبِّ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ إِنَّهُ لَحَقٌّ مِثْلَ مَا أَنَّكُمْ تَنْطِقُونَ ۞﴾ (۱) نو يو بانډيچي اووئيل چې د الله ﷻ غوندې عظيم الشان هستي چا ناراضه کړې ده چې هغه ئې په قسم خوړلو باندې مجبوره کړو.

غرض دا چې الله ﷻ خلقو باندې د شفقت کولو په غرض هم ددوئ پشان طريقه اختيار کړه. هغه داسې چې دخلقو د جګړو غوڅولو [ختمولو] او د فيصلې کولو مشهوره طريقه داده چې په دعوى باندې ګواهي پيش کړې شي، ګواهي چې نه وي نو قسم خوړې شي، دغه طريقه الله ﷻ هم اختيار کړې ده، چرته خو د ګواهئ په الفاظو سره د مضمون تاکيد فرمائي چې ﴿شَهِدَ اللَّهُ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ (۲) او کله دقسم په الفاظوسره تاکيد فرمائي چې ﴿قُلْ إِي وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ﴾ (۳) وغيره.

دويم سوال دادې چې قسم دخپل ځان نه په لوئې څيز خوړې شي نو الله ﷻ په خپل مخلوق باندې قسم څنګه خوړى ولې چې په هر شان سره دا دالله ﷻ نه ډېر زيات کم دې؟

جواب دادې چې هرکله الله ﷻ نه بل هيڅ څه ذات او څه څيز چرې هم لوئې نشي کيدلې نو ښکاره خبره ده چې د الله ﷻ قسم د عام مخلوق د قسم پشان نشي کيدې. په دې وجه کله خو الله ﷻ په خپل ذات مبارک باندې قسم خوړلې دې لکه ﴿إِي وَرَبِّي﴾ ددې شان قسمونه په قرآن پاک کښې اووۀ ځايه راغلي دي، اوکله ئې پخپلو افعالو اوخپلو صفتونو او په قران پاک قسم خوړلې دې لکه ﴿وَالسَّمَاءِ وَمَا بَنَاهَا ۞ وَالْأَرْضِ وَمَا طَحَاهَا ۞ وَنَفْسٍ وَمَا سَوَّاهَا ۞﴾ (۴) وغيره. او زيات ترقسمونه ئې پخپل کړى شوى مخلوق باندې خوړلي دي چې دمعرفت ذريعې دي او په دې حيثيت دا دالله ﷻ ذات ته راجع کيږي. [کذا ذکره ابن قيم] (۵). چرته چې په مخلوقاتو قسمونه خوړلې شوي دي، کله خو په هغې سره ددغه مخلوق لوئې والې اوغوره والئ ښکاره کول مقصود دي لکه قرآن پاک کښې درسول الله ﷺ په عمر مبارک باندې داسې قسم خوړلې شوې دې چې: ﴿لَعَمْرُكَ إِنَّهُمْ لَفِي سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُونَ ۞﴾ (۶).

ابن مردويه د ابن عباس رضي الله عنهما دا قول نقل کړې دې چې الله تعالى هيڅ يو مخلوق او هيڅ يو څيز په دنيا کښې د رسول الله ﷺ د ذات ګرامى نه زيات عزتمند نه دې پيدا کړې، هم دغه وجه ده چې په ټول قرآن پاک کښې د رسول الله ﷺ د ذات مبارک نه بغير ئې د بل پيغمبر په ذات قسم نه دې خوړلې، دغسې د ﴿وَالطُّورِ ۞ وَكِتَابٍ مَسْطُورٍ ۞﴾ قسم هم د طور او کتاب د لوئې ښکاره کولو دپاره راغلې دې.

---

۱) ترجمه: او ستا رزق او کومه وعده چې تاسره کيږى ټول آسمان کښ دى نو قسم دوى آسمان او دزمکې په پروردګار باندى چې هغه برحق دى.

۲) ترجمه: ګواهى ورکړى ده الله چې هغه د ذات نه علاوه څوک هم د عبادت لائق نشته.

۳) اوو قسم زما په رب چې هغه واقعى امر دى.

۴) ترجمه: قسم دے په آسمان او په هغه الله چه جوړ کړے ئے دے دا آسمان او په زمکه اوپه هغه ذات چه خوره کړے ئے ده، او په نفس او په هغه الله چه برابرئے جوړ کړے دے دا نفس.

۵) التبيان فى اقسام القرآن الابن القيم، فصل القسم فى سورة الشمس: ج ۱، ص ۱۵

۶) ترجمه: ستا په عمر قسم دے چه هغوى په مستى کښ ډوب وو

او کله خو په مخلوق باندې قسم ځکه خوړلې شوې وی چې د هغې فائدې ډیرې وی لکه ﴿وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ﴾ او کله ئې په یو مخلوق باندې قسم دې د پاره الله ﷻ خوړلې دې چې دهغې پیدا کول د الله ﷻ دلوئې قدرت ننداره او ددنیا د کاریگر یعنی الله ﷻ د پیژندګلو ډیره مهمه ذریعه ده . او عموما په کوم ځیز چې قسم خوړلې شی هغې لره ددغې قیمت په ثبوت کښې څهٔ دخل ضرور وی کوم مضمون دپاره چې قسم خوړلې شوې وی چې هر چرته په غور کولو سره معلومیږی .

دریم سوال دادې چې د شریعت مشهور حکم عامو انسانانو دپاره دادې چې د الله ﷻ نه سوا بل هیڅ ځیز باندې ورله قسم خوړل جائز نه دی . نو هرکله چې الله ﷻ پخپله په غیر الله باندې قسمونه خوړلی دی ، دا ددې خبرې دلیل ولې نه جوړیږی چې خلقو دپاره دې هم په غیرالله باندې قسم خوړل جائز شی ؟ ددې جواب کښې حسن بصری رحمه الله فرمائیلی دی چې :

[ان الله يقسم بما شاء من خلقه وليس لاحد ان يقسم الا بالله [ابن ابی حاتم په حواله د مظهری]][1]

الله ﷻ لره اختیار دې چې هغه د خپلو مخلوقاتو ځینې په هر ځیز قسم خوړې شی مګر بل هیچا لره د الله ﷻ نه سوا په بل ځیز قسم خوړل جائز نه دی .

مطلب دادې چې خپل ځان په الله ﷻ باندې قیاس کول غلط دی او باطل دی کله چې په شریعت الهیه کښې د عامو انسانانو دپاره دغیر الله قسم منع اوګرځولې شو نو دالله ﷻ په خپل ذاتی فعل سره ددې په خلاف دلیل نیول باطل دی . اوس ددې آیتونو په تفسیر غور اوکړئی :-

په رومبی څلورو آیتونو کښې په فرښتو باندې قسم خوړلو سره دابیان کړې شوې دې چې ستاسو ټولو معبود برحق هم یو دې اګر چې د قسم په دوران کښې د فرښتو صفتونه هم هغه بیان کړی شوی دی چې په هغې باندې که لږ هم غور اوکړې شی نو هغه د توحید د عقیدې دلیلونه معلومیږی . لکه ورپسې شپږو آیتونو کښې د توحید دلیل په مستقله توګه بیان کړې شوې دې فرمائی چې : ﴿رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَرَبُّ الْمَشَارِقِ﴾ یعنی الله ﷻ پروردګار دې د آسمانونو او زمکې او دهغې مخلوقاتو چې ددې دواړو په مینځ کښې دی او پروردګار دې دمشرقونو . نو کوم ذات چې د دومره لویو مخلوقاتو پروردګار دې د عبادت حقدار هم هغه ذات دې اودا ټول کائنات د هغه دشته والی او وحدانیت دلیل دې ، دلته المشارق د مشرق جمع ده او هرکله چې د کال په هره ورځ کښې نمر بیل بیل ځائې نه راخیژی ، په دې بنا مشرقونه ئې جمع راوړل .

﴿اِنَّا زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِزِيْنَةِ الْكَوَاكِبِ﴾ دلته ﴿السَّمَآءَ الدُّنْيَا﴾ نه مراد زمکې ته د ټولونه زیات نزدې آسمان دې ، مطلب دادې چې مونږ دې نزدې آسمان ته د ستورو په ذریعه زینت ورکړې دې ، اوس دا څهٔ ضروری نه دی چې داستوری دې هم په آسمانونو کښې دننه وی ، بلکه سره د بهر والی نه هم که ورته کتلې شی نو په آسمان کښې ښکاری او هم ددې په وجه آسمان ځلیدونکې ښکاری . دلته صرف داخودل دی چې د ستورو ډک دا آسمان ددې خبرې دلیل دې چې داپخپله شته شوې نه دې بلکه یو پیدا کوؤنکې ذات هم شته دې . او کوم ذات چې دومره

[1] ) مصنف ابن ابی شیبة، رقم الحدیث:۱۲۲۸۸، کتاب الإیمان، باب الرجل یحلف بغیر الله او بابیه، وتفسیر المظهری: ج ۸، ص ۱۱۲

Scanned with Ca

عظیم الشان څیزونه پیدا کولې شي هغه د څه شریک یا سیال ضرورت نه لري ، دغه شان هر کله چې دا خبره مشرکان هم مني چې دا ټول آسماني جسمونه الله ﷻ پیدا کړي دي نو دا خو د ډیر ظلم خبره ده چې خالق اومالک دې هغه وي او عبادت دې دبل چا کولې شي ؟
د ابحث په سورۂ حجر کښې په تفصیل سره تیر شوې دې چې دا ستوري په آسمان کښې دننه دي یا بهر دي ، او دقرآن پاک دعلم هیئت سره څه تړون دې ؟
﴿وَحِفْظًا مِّن كُلِّ شَيْطَٰنٍ مَّارِدٍ﴾ تر ﴿فَأَتْبَعَهُۥ شِهَابٌ ثَاقِبٌ﴾ دې آیتونو کښې د ښکلا او ښائست نه علاوه د ستورو یو فائده داهم بیان کړې شوې ده چې ددې په ذریعه انکار کوؤنکۍ شیطان د عالم بالا د خبرو آؤریدو نه بندولې شي . دوئ د غیبي خبرونو آؤریدو وغیره دپاره آسمانوته نژدې ورځي خو ورته د فرښتو د خبرو آؤریدو موقعه نشي ورکولې . که څوک شیطان نمیګړې څه خبره راواخلي اوتښتي ، نوهغه په یو بلیدونکي شعلې ویشتلې شي چې هسې نه خپلو عقیدتمندو کاهنانو او جوګیانو ، نجومیانو ته دا اونه ښائي . دغسې شعلې ته شهاب ثاقب وئیلې شي .
د شهاب ثابت څه تفصیل په سورۂ حجر کښې تیر شوې دې . دلته دومره خبرداري ورکول ضروري دي چې پخواني یوناني فلسفیان ددې خبرې منونکي وؤ چې شهاب ثاقب په اصل کښې د زمکې یو ماده وي چې بخاراتو سره پورته لاړه شي کله چې د اور کرې ته اورسي نو اوسوځي . خو د قرآن پاک دې ظاهري الفاظو نه معلومیږي چې دا زمکنۍ څه ماده نه ده بلکه د عالم بالا یو پیداوار څیز دې . نو پخوانو مفسرینو په دې موقعه هم دا وئیلي دي چې دیوناني فلسفیانو داخیال خالص په قیاس تخمین او اټکل باندې اړه لري . ځکه قرآن پاک باندې دا څه اعتراض نشي جوړیدې اوکه د زمکې څه ماده په پورته شهاب ثاقب اوبللې شي نو دا هم قرآن کریم سره بې سمونه نه دي لیکن نوؤ سائنسي تحقیقاتو دا سوال د سره ختم داسې کړو چې د اوسني
سائنس پوهانو په خیال شهاب ثاقب په اصل کښې د بې شمیره ستورو وړې وړې ټوټې دي چې د غټو غټو خښتو برابر وي . اودغه ټوټې په فضا کښې پاتې کیږي . ددې یوه مجموعه اسدیه بللې شي . چې د هریرې په شکل کښې د نمر نه چاپیره ګردش کوي . ددې یوه دوره په درې دیرش [۳۳] کاله کښې پوره کیږي . په دې ټوټو کښې رنړا ځکه پیدا کیږي چې یو خو تیزي رواني وي او بل دا چې نور خلائي جسمونو سره ټکره خوري دغه ټوټې د ۱۰ اګست او ۲۷ نومبر په شپو کښې زیاتې راپریوزي . او د ۲۰ اپریل ، ۲۸ نومبر ، ۱۸ اکتوبر او ۲ ، ۹ ، او ۱۳ دسمبر په شپو کښې کمې شي [تفسیر الجواهر د طنطاوی ص/۱۵ ، ج/۸].
نو د نوې سائنسي دا تحقیق قرآني طرز بیان سره زیات سمون خوري خو کوم خلق چې د اخبره دقیاس نه لرې ګڼړي چې په شهاب ثاقب سره شیطانان ویشتلې شي نو په دې باره کښې طنطاوي مرحوم په الجواهر کښې ډیره ښه خبره لیکلې ده .
زمونږ پلرونو نیکونو او حکیمانو وغیره ته هم دا خبره ناآشنا معلومیده چې قرآن کریم ددوئ دزمانې د علم فلکیات نه خلاف څه خبره وائي . خو مفسرینو په دې خبره راضي نشو چې ددوئ فلسفي نظریات قبول کړي . او قرآن پاک پریږدي . ددې په ځائې هغوئ فلسفي نظریات پریخودل او قرآن سره ئې اتفاق اوکړو ، څه زمانه پس پخپله ثابته شوه چې دپخوانو

یوناني فلسفیانو خیال بیخي باطل او غلط وو. اوس اوښائي که مونږ دا اومنو چې دا ستوري شیطانانو لره سوځوي ، اولې ئې او تکلیف ورته ورکوي نو په دې کښې څه بندیز دې ،مونږ دقرآن پاک دا بیان منو او د آئنده په انتظار کښې یو چې سائنس به هم دا حقیقت اومني [جواهر ص/۱۴ ج/۸].

**اصلي مقصد**:: دلته د آسمانونو ، ستورو او شهاب ثاقب د یادګیرنې پو مقصد خو د توحید ثابتول دي چې کوم ذات یواځې ځانله زبردست آفاقي انتظامونه کړي دي هغه دې د عبادت جوګه هم دې ، دویم دا چې په دې دلیل سره دهغې خلقو دخیال تردید هم کړې شوې دې چې شیطانان معبودان بولي ، او دا ثابت کړې شوې ده چې دا خو یو رد کړې شوې اوشړلې شوې مخلوق دې ، الله ﷻ سره ددوئ څه تعلق کیدیشي ؟

ددې نه علاوه په دې مضمون کښې د هغې خلقو هم پوره تردید دې چې رسول الله ﷺ باندې نازلیدونکې وحي یعني قران پاک ته به ئې د جوګیانو جوګ وئیلو. نو پدې آیتونو کښې اشاره اوکړې شوه چې قرآن کریم خو د جوګیانو [کاهنانو] اوجوګ [خبرې دروغ] تردید کړي ولې چې د جوګ د ټولو معلوماتو ، دټولو نه لویه ذریعه شیطانان دي ، او قرآن پاک دا وائي چې د شیطانانانو عالم بالا ته رسیدل ممکن نه دي ، دوئ د غیبو رښتیا خبرونه نشي راوړې. هرکله چې د جوګ په باره کښې د قرآن پاک بیان کړې عقیده داده نو دا پخپله جوګ څنګه کیدیشي. داشان دې آیتونو کښې د توحید او رسالت دواړو مضمونو ته اشارې موجود دي او وروسې هم ددې آسماني مخلوقاتو په ذریعه دآخرت عقیده ثابته کړې شوې ده.

فَاسْتَفْتِهِمْ اَهُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمْ مَّنْ

پس تپوس اوکړه ته ددوئ نه | آیا دوئ | زیات سخت دي | په پیدا کولو کښي | یا هغه څیزونه |

نو ددوئ نه تپوس اوکړه | چې ددې خلقو پیدا کول ګران دې | یا دهغه ټولو څیزونو کوم چې

خَلَقْنَا ؕ اِنَّا خَلَقْنٰهُمْ مِّنْ طِیْنٍ لَّازِبٍ ﴿۱۱﴾ بَلْ

چې پیدا کړي دي مونږه | بیشکه پیدا کړي دي مونږ دوئ | دختې | سلیخناکې نه | بلکه

مونږ پیدا کړي دي | داخلق مونږ دیوې ځلیښناکې ختې نه پیدا کړي دي| ............ بلکه ته خو

عَجِبْتَ وَیَسْخَرُوْنَ ﴿۱۲﴾ وَاِذَا ذُکِّرُوْا لَا یَذْکُرُوْنَ ﴿۱۳﴾

تعجب کوې ته | او توقې کوي دوئ| او کله چې |نصیحت کیدې شي دوئ ته |نو نصیحت نهٔ قبلوي دوئ

[ددوئ په انکار تعجب کوې | اودوئ [په تاپورې] توقې کوي | او کله چې دوئ پوهولې شي | نو دوئ نه پوهیږي

وَاِذَا رَاَوْا اٰیَةً یَّسْتَسْخِرُوْنَ ﴿۱۴﴾ وَقَالُوْٓا اِنْ هٰذَآ

اوکله چې | اووینې دوئ | یوه نښه | نو ورپورې توقې کوي دوئ | اووائي دوئ | چې نهٔ دې دا |

اوکله چې دوئ یوهٔ معجزه اووینی | نو په هغې پورې توقې کوي | اودا وائي چې دا خو

اِلَّا سِحْرٌ مُّبِیْنٌ ﴿۱۵﴾ ءَاِذَا مِتْنَا وَکُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا

مګر | جادو دې | ښکاره | آیا کله چې | مړه شو مونږه | او شو | خاورې | او هډوکي |

ښکاره جادو دې |................ آیا کله چې مونږ مړه شو | او ښاورې او هډوکي شو

Scanned with Ca

| عَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ ۝ | اَوَ اٰبَآؤُنَا | الْاَوَّلُوْنَ ۝ | قُلْ نَعَمْ |
|---|---|---|---|
| آیا مونږه به ژوندی راپاسولې شو بیا \| آیا او پلاران زمونږه \| رومبنی [هم] \| ورته اووایه \| چې هو \| | | | |
| نو لا بیا به راژوندی کولی شو او آیا زمونږ پلار نیکه به هم راژوندی کولې شی \| ته اووایه چې آو | | | |
| وَاَنْتُمْ دَاخِرُوْنَ ۝ | | | |
| او تاسو به \| ذلیله [بې وسه] یئ \| | | | |
| تاسو به ذلیل او خوار یئ \| | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اوس لږ شان د دغې (کافرانو) نه تپوس اوکړه، چه ددوی تخلیق زیات مشکل دې یا زمونږ د پیدا کړې شوی نورو مخلوقاتو؟ دوی لره خو مونږ د سلیخاګې ختې نه پیدا کړې دی. (اے پیغمبره) حقیقت خو دادې، چه ته (ددوی په خبرو باندې) تعجب کوې، او دوی مسخرې کوی. اوچه کله دوی ته نصیحت کولې شی، نو نصیحت نه منی. او چه کله څه نښه اووینی نو مسخره ترې جوړه کړی. او وائی چه: دا د ښکاره جادو نه سوا هیڅ نه دی. آیا کله چه مړه شو مونږ او خاوړې او هډوکې شو، نو آیا مونږ لره به دوباره ژوندی کولې شی؟ او آیا زمونږ پخوانی پلاران هم؟ اووایه چه: آو! او تاسو به ذلیل یئ.

## خلاصه تفسیر

هر کله چه په دلیلونو د توحید سره دا معلومه شوه چه الله تعالی په دې عظیم الشان مخلوقات کښې په داسې داسې عظیم تصرفاتو باند قادر دې او دا ټول عظیم مخلوقات دده په قبضه د قدرت کښې دی ﴿فَاسْتَفْتِهِمْ اَهُمْ اَشَدُّ خَلْقًا﴾ [نوته دې] داخرت نه انکار کوونکو [نه تپوس وکړه چه داخلق په پیدائش کښې ډیر سخت دی ﴿اَمْ مَّنْ خَلَقْنَا﴾ یازمونږ پیدا کړې شوی څیزونه] دکومو چه اوس ذکر اوشو؟ حقیقت دادې چه دا څیزونه ډیر سخت دی ځکه چه ﴿اِنَّا خَلَقْنٰهُمْ مِّنْ طِيْنٍ لَّازِبٍ ۝﴾ [مونږ دې خلقولره] خو دادم دتخلیق په وخت کښې ددې معمولی [خمیرې ختې نه پیدا کړې دې] چه نه په کښې څه قوت شته نه سختی اوانسان کوم چه ددې نه جوړدې هغه هم زیات قوی اوسخت نه دې اوس دسوچ خبره داده چه هر کله مونږ دې قوی او سخت مخلوقات لره دعدم نه په وجود کښې په راوړو قادریو نو د انسان په شان ضعیف مخلوق لره دمرګ نه پس په ژوندی کولو به ولې قدرت نه لرو؟ مګر دداسې واضح دلیل باوجود داخلق داخرت دامکان قائل نه شول ﴿بَلْ﴾ [بلکه] ددې نه زیاته خبره داده چه ﴿عَجِبْتَ وَيَسْخَرُوْنَ ۝﴾ ته خو] ددوی په انکار سره] تعجب کوې او داخلق] د انکارنه سوا داخرت په عقیده پورې [مسخرې کوی ﴿وَاِذَا ذُكِّرُوْا لَا يَذْكُرُوْنَ ۝﴾ او کله چه هغوی لره] په عقلی دلیلونو سره [پوهولې شی نو دوی پوهیږی نه ﴿وَاِذَا رَاَوْا اٰيَةً﴾ او کله چه دوی څه معجزه وینی] کومه چه ستا دنبوت ثابتولو دپاره دوی ته ښودلې شی چه داخرت عقیده پرې ثابته کړې شی [نو] په خپله ﴿يَّسْتَسْخِرُوْنَ ۝﴾ [په هغې پورې خنداګانې کوی ﴿وَقَالُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝﴾ او وائی چه داخو صریح جادو دې] ځکه چه کله دا معجزه شی نو په دې سره به ستا نبوت ثابت شی او ستاسو دمنلونه پس به ستاسو ﷺ بیان کړې عقیده داخرت هم منل وی او حال دا دې چه مونږ داخرت عقیده نه شو منلې ځکه چه ﴿ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ ۝﴾ [آیا هر کله مونږه مړه شو او خاوړې او

Scanned with CamScanner

هډوکي شو نو ايا مونږ به] بيا [ژوندي کړې شو ﴿اَوَاٰبَآؤُنَا الْاَوَّلُوْنَ﴾ او ايا زمونږ ورومبني پلاران نيکونه به هم] ژوندي کړې شي ﴿قُلْ نَعَمْ وَاَنْتُمْ دَاخِرُوْنَ﴾ ته ﷺ ورته ووايه چه هو] ضرور به ژوندي کړې شي [اوتاسو به ذليل هم يئ]

## معارف او مسائل

د توحيد د عقيدې ثابتولو نه پس په دې آيتونو کښې د آخرت د عقيدې بيان دې او ددې باره کښې د مشرکانو د شبهو جواب ورکړې شوې دې ، د ټولو نه په ړومبی آيت کښې د انسانانو د دوباره راژوندي کيدو په امکان باندې عقلي دليل پيش کړې شوې دې . خلاصه ئې دا ده چې د کائناتو د کومو عظيم الجثه مخلوقاتو بيان چې په تيرو شوؤ آيتونو کښې کړې شوې دې ، انسان خو د هغې په مقابله کښې ډير کمزورې مخلوق دې ، کله چې تاسو د امنئ چې الله ﷻ فرښتې ، سپوږمۍ ، ستورې ، نمر او شهاب ثاقب غوندې مخلوقات په خپل قدرت سره پيدا کړي دي نو الله ﷻ دپاره انسان غوندې کمزورې مخلوقات لره مړ کولو نه پس بيا ژوندي کول څه ګران دي ؟ څنګه ئې چې تاسو د سريښناکې خټې نه جوړ کړئ او په تاسو کښې ئې روح پوک وهلې وو . دا شان چې تاسو کله مړه شئ او دوباره خاورې شئ دغه وخت به بيا الله ﷻ تاسو له ژوند در کړي .

د سريښناکې خټې نه د انسان د پيدا کولو مطلب يا دادې چې ددوئ نيکه آدم ﷺ د ښاورې نه پيدا کړې شوې دې . او بل مطلب ئې دا کيديشي چې هر انسان دا سې دې ، که په غور سره اوکتې شي نو د هر انسان بنياد اوبو سره د يو ځائې شوې ښاورې نه د اسې دی چې انسان د نطفې نه پيدا کيږي . دا دوينې نه جوړيږي . او وينه د غذا نه نه پيدا کيږي او د هر قسم غذا اصل بنياد بوټي دی کوم چې دښاورې او اوبو نه پيدا کيږي .

په هر شان سره ړومبې آيت دآخرت د عقيدې عقلي دليل دې چې په دې شان شروع کړې شوې دې چې دوئ نه تپوس کيږي . آيا تاسو سخت مخلوقات يئ يا دکوم مخلوقاتو بيان چې مونږ کړې دې هغه زيات سخت دې ؟ جواب ئې ښکاره وو چې هم دغه مخلوقات زيات سخت دی ، څکه چې ښکاره دبيانولو په ځائې ورته اشاره اوکړې شوه چې مونږ خودا د سريښناکې خټې نه پيدا کړې دې .

دې نه پس پنځو آيتونو کښې د هغې تمبيدلو [رد عمل] بيان دې کوم چې د آخرت د دليلونو په آوريدو سره مشرکان ښکاره کوی . د مشرکانو په وړاندې دآخرت کوم دليلونه چې بيانولې شو هغه دوه قسمه وو ، يو قسم عقلي دليلونه لکه په ړومبی آيت کښې چې بيان کړې شو ،دويم قسم نقلي دليلونه دی چې هغه د رسول الله ﷺ معجزې ښکاره کول دی ، په هغې سره ئې پيغمبرې ثابتول دی . او دا وئيل دی چې هر کله نبی کريم ﷺ د الله ﷻ پيغمبر دی او پيغمبر چرې دروغ نه وائي . نبی کريم ﷺ ته آسماني خبرونه ، راځی . کله چې نبی کريم ﷺ داخبر ورکوی چې قيامت به راځی . حشر ونشر به وی د انسانانو به حساب او کتاب اخستې شی نو دا خبر يقينا چې رښتيا دې ددې منل پکار دی ، په عقلي دليلونو باندې د مشرکانو د رد عمل چې کوم تعلق دې دهغه په باره کښې ارشاد دې .

﴿بَلْ عَجِبْتَ وَيَسْخَرُوْنَ ۝ وَاِذَا ذُكِّرُوْا لَا يَذْكُرُوْنَ﴾ يعنې تاسو خو په دې خلقو باندې تعجب کوئی چې سره ددې چې واضح دليلونه ورته راغلل اوبيا هم داخلق نه منی . خو دا خلق الټه ستاسو دليلونو

پورې خندا کوي او که دوئ هر څومره پوهه کړې شي بيا هم نه پوهيږي ، پاتې شو نقلي دليلونه نو ددې باره کښې ددوئ رد عمل دادې.

﴿وَإِذَا رَأَوْا آيَةً يَسْتَسْخِرُونَ﴾ يعنى کله چې دوئ داسې څيز معجزه اووينى چې ستاسو په پيغمبرئ اوبالآخر دآخرت په عقيده باندې دلالت کوى نو په دې پورې هم خنداګانې اوکړى او دا وائى چې دا خوښکاره جادو دې اوددې تولو توقو او خنداګانو دليل دوئ سره دادې چې: ﴿ءَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا ءَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ۝ أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ﴾ داخبره زمونږ په تصور کښې نه راځى چې مونږ يا زمونږ پلرونه اونيکونه د ښاورو او هډوکو کيدونه پس به دوباره څنګه ژوندى کولې شى؟ ځکه مونږ نه څه عقلى دليل منو او نه څه معجزه وغيره منو. الله ﷻ ددې په جواب کښې صرف يوه جمله په آخر کښې دا اوفرمائيله چې ﴿قُلْ نَعَمْ وَأَنتُمْ دَاخِرُونَ﴾ يعنى تاسو دا اوفرمائې چې آؤ تاسو به ضرور دوباره ژوندى کيږى چې ذليل او خوار به يئ.

هسې خودا يو حاکمانه جواب ښکارى څنګه چې ضديانو خلقو ته ورکولې شى، خو په لږ غور کولوسره دا يو پوره دليل هم دې چې امام رازى رحمه الله ددې تشريح په تفسير کبير کښې کړې ده.

او هغه داسې چې پورته د دوباره ژوندى کيدو د عقلى دليل نه دا ثابته شوه چې د مرګ نه پس د انسان ژوندى کول ناممکنه خبره نه ده ، اوقاعده داده چې کومه خبره د عقل له مخې ممکنه وى په واقع کښې د هغې راتلل ديو رښتينى خبر ورکوونکى دخبر ورکولو په بنياد ثابتيدې شى. کله چې دا خبره فيصله شوه چې دوباره ژوندى کيدل ممکن دى ديو رښتينى پيغمبر عليه السلام صرف دومره فرمائيل ددې خبرې يقينى دليل دې چې دا واقعه به ضرور راپيښيږى.

**د نبى کريم ﷺ د معجزو ثبوت:** ﴿وَإِذَا رَأَوْا آيَةً يَسْتَسْخِرُونَ﴾ دلته د اية لغوى معنى نښه ده ، اوددې نه دلته مراد معجزه ده. نو دا آيت ددې خبرې دليل دې چې نبى کريم ﷺ ته الله ﷻ دقرآن پاک نه علاوه هم څه معجزې ورکړې وې. په دې سره دهغې بې دينو يعنى ملحدانو رد کيږى کوم چې د نبى کريم ﷺ معجزې دحسى اسبابو تابع بولى ، دا دعوى کوى چې د نبى کريم ﷺ په لاس مبارک باندې د قرآن پاک نه سوا بله معجزه نه ده ښکاره کړې شوې.

ځلورم آيت کښې الله ﷻ صفا ارشاد فرمائى چې: ﴿وَإِذَا رَأَوْا آيَةً يَسْتَسْخِرُونَ﴾ يعنى هرکله چې دوئ څه معجزه اووينى نو خندا ورپورې کوى. د معجزې ځينې انکار کوونکى وائى چې دلته د اية نه معجزه مراد نه ده بلکه عقلى دليلونه ترې مراد دى ، خو دا خبره ځکه غلطه ده چې په وروسې آيت مبارک کښې فرمائى چې:

﴿وَقَالُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ﴾ يعنى دوئ وائ چې دا خو ښکاره جادو دې. ښکاره خبره ده چې څه دليل ته د جادو وئيلو هيڅ ګنجائش نشته بلکه په معجزه ليدو سره به ئې داسې وئيل.

د معجزې نه منکر ځينې خلق داسې هم وائى چې د اية نه مراد د قرآن پاک آيتونه دى چې دوئ ورته جادو وائى. ليکن پخپله قرآن پاک په رَأَوْا فرمائيلو سره ددې صفا ترديد کوى ، ولې چې د قرآن پاک آيتونه ليدلې نه بلکه آوريدلې شى اوقرآن پاک هم قرآنى آيتونو سره آوريدل فرمائى. او په قرآن کريم کښې ځائې په ځائې د اية لفظ د معجزې په معنى کښې راغلې دې. لکه دموسى عليه السلام نه د فرعون مطالبه داسې نقل کوى چې: ﴿قَالَ إِن كُنتَ جِئْتَ بِآيَةٍ فَأْتِ بِهَا إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ﴾ يعنى که تاسو څه معجزه راوړې وى نو راوړئ که تاسو رېښتونى يئ. او ددې

Scanned with Ca

جواب کښې ورته موسی ﷺ د همسا نه د مار جوړولو معجزه ښکاره کوی.
پاتې شو د قرآن پاك هغه آيتونه کومو کښې چې ذکر دی چې رسول کريم ﷺ ددوئ د معجزې والا مطالبه او نه منله ، نو په حقيقيت کښې هلته بار بار معجزې خودلې شوې وې. خو هغوئ به د خپلې خوښې يوه نوې معجزه غوښتله. ددې په جواب کښې د معجزې خودلو څخه انکار اوشو. ځکه چې د الله نبی د الله ﷻ په حکم سره معجزې ښکاره کوی. که بيا هم څوك ددوئ خبره اونه منی او ددې خبرې څخه انکار اوکړی نو هره ورځ يوه نوې معجزه خودل د نبی د وقار څخه خلاف دی او د الله ﷻ د مشيت څخه هم.
ددې څخه علاوه د الله ﷻ خپله دا طريقه ده چې کله يې يو قوم ته هغه معجزه ښکاره کړه کومه چې هغوئ غوښتله اوبيا ئې هم ايمان نه وو راوړې نو د عام عذاب په ذريعه يې هغوئ هلاک کړی دی. هرکله چې امت محمديه سره الله ﷻ ته داسې کول منظور نه وو چې عام عذاب پرې راشي او ټول امت په هغې سره ختم شی ځکه ورته الله ﷻ دهغوئ غوښتلې معجزې ښکاره نه کړې.

فَاِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ فَاِذَا هُمْ
| پس بيشکه | دا قيامت | جړق دې يو | پس په هغه دم به | دوئ
| قيامت خو به بس يوه چغه وی | نو هغه وخت کښې به دوئ ټول ليدل کتل

يَنْظُرُوْنَ ﴿۱۹﴾ وَقَالُوْا يٰوَيْلَنَا هٰذَا يَوْمُ الدِّيْنِ ﴿۲۰﴾
ګوری [چې څه کيږی] | اووائی به دوئ | اے افسوس دې مونږ لره | دا ورځ دجزا ده |
شروع کړی | اودوئ به وائی چې هائې افسوس | داخو دقيامت ورځ راغله

هٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿۲۱﴾ اُحْشُرُوا
دا ورځ دفيصلې ده | هغه | چې وئ تاسو | په دې سره | چې دروغ به مو ګڼړله | راجع کړئ |
داهم هغه د فيصلې ورځ ده | چې تاسو به دروغ ګڼړله | ظالمان خلق او دهغوی ظالمان

الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَاَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوْا
هغه کسان | چې ظلم ئې کړې دې | او ښځې ددوئ | او هغه [معبودان] چې وو دوئ |
ملګری او دهغوئ معبودان ټول راجمع کړئ | چې د الله ﷻ نه بغيربه ئې

يَعْبُدُوْنَ ﴿۲۲﴾ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَاهْدُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطِ
چې عبادت به ئې کولو دهغوئ | ماسوا د الله نه | پس سيده کړئ دوئ | لارې
دوئ عبادت کولو | ............................. اوبيا دوئ دوزخ په لار روان کړئ

الْجَحِيْمِ ﴿۲۳﴾ وَقِفُوْهُمْ اِنَّهُمْ مَّسْئُوْلُوْنَ ﴿۲۴﴾ مَا لَكُمْ
ددوزخ ته | او ودروی دوئ | بيشکه دوئ چې دی | تپوس کيدې شی ددوئ نه | څه اوشو تاسو لره |
او دوئ اودروئ دودئ نه به يوه پوښتنه کيږی | ............ چې تاسو باندې څه اوشو چې

لَا تَنَاصَرُوْنَ ﴿۲۵﴾ بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُوْنَ ﴿۲۶﴾
چې نه کوئ امداد ديو بل | بلکه دوئ خو نن ورځ | خان پخپله حواله کونکی دی |
ديو بل مدد نه کوئی | بلکه دوئ ټول به په دغه ورځ دشرم نه ټيټ سرونه ولاړوی |

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

پس هغه خو به یو زوردار آواز وی، چه دهغې نه پس به ناساپه دوی (ټول هیبت ناک منظر) ګوری او وائی به چه: هائې افسوس دې، دا خو د حساب او کتاب ورځ ده . (هو) هم دا هغه د فیصلې ورځ ده، چه تاسو به دروغ ګڼله. (فرښتو ته به اوو ئیلې شی چه:) راجمع کړئ هغې ټولو لره، کومو چه ظلم کړې دې، او دهغوی ملګرو لره هم. او هغوی لره هم د څه چه دوی د الله تعالی نه سوا عبادت کولو. بیا دوی ته د دوزخ لاره سمه کړئ. او لږ شان دوی حصار کړئ، ددوی نه به څه تپوس کولې شی. څه وجه ده تاسو لره؟ چه دیو بل امداد نه کوئ بلکه دوی نن ورځ سر ټیټې ولاړ دی.

## خلاصه تفسیر

﴿فَاِنَّمَا هِیَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ﴾ [پس قیامت خو به یوه چغه وی] یعنی دویمه شپیلۍ ﴿فَاِذَا هُمْ یَنْظُرُوْنَ﴾ [پس] په دې سره به [یکدم] ژوندی شی [کتونکی به شی او] په حسرت سره به ﴿وَقَالُوْا یٰوَیْلَنَا هٰذَا یَوْمُ الدِّیْنِ﴾ [وائی چه هائې زمونږه کم بختئ] ﴿هٰذَا یَوْمُ الْفَصْلِ الَّذِیْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ﴾ دا خو هغه د فیصلې ورځ ده کومه چه تاسو دورغژن کوله] وړاند دقیامت دخنې واقعاتو تفصیل دې چه فرښتوته به حکم وشي ﴿اُحْشُرُوا الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا﴾ [جمع کړئ ظالمانو لره] یعنی کوم چه دکفر اوشرك بانیان او مقتدا وو ﴿وَاَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوْا یَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ او [ددوی هم مشربولره] یعنی کوم چه ددوی سره تابع وو [او هغوی معبودانو لره دکومو چه دغو خلقو د خدائ نه سواعبادت کولو] یعنی شیطانان اوبتان ﴿فَاهْدُوْهُمْ اِلٰی صِرَاطِ الْجَحِیْمِ﴾ [بیا دغو تولوته د دوزخ لار وښایئ] یعنی هلته ئې بوځئ [او] بیابه داحکم وشی چه ښه ﴿وَقِفُوْهُمْ﴾ [دوی لره] لږ [ودروئ ﴿اِنَّهُمْ مَّسْئُوْلُوْنَ﴾ ددوی نه څه تپوس کولې شي] چنانچه داسوال به ترې نه وشی ﴿مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُوْنَ﴾ [چه اوس تاسولره څه وشول چه] دعذاب حکم مو واوریدو [دیو بل مددنه کوئ] یعنی دکافرانو لوئ لوئ رهنمایان انسانان وی اوکه شیطانان دخپلو تابعینو مدد نه کوی لکه څنګه چه په دنیا کښې به مو دغو لره غولول مګر ددې سوال نه پس به هم هغوی مدد ونه کړې شی ﴿بَلْ هُمُ الْیَوْمَ مُسْتَسْلِمُوْنَ﴾ [بلکه هغه ټول به په دغه ورځ سر ښکته] ولاړ [وی]

## معارف او مسائل

﴿فَاِنَّمَا هِیَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ﴾ د آخرت دامکان او ثبوت نه پس الله ﷻ دې آیتونو کښې د حشر او نشر څه واقعات بیان کړی دی. او دوباره ژوندی کیدو نه پس کافرانو او مسلمانانو ته چې کوم حالات به راپیښیږی دهغې بیان ئې کړې دې.

د ټولونه اول آیت کښې د مړو د ژوندی کیدو طریقه کار ئې بیان کړې دې فرمائی چې:

﴿فَاِنَّمَا هِیَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ﴾ یعنی قیامت خو به یو چغه وی. ﴿زَجْرَةٌ﴾ داسې یو اسم دې چې د زجر د یوځل دپاره استعمالولې شي. عربی ژبه کښې دا لفظ ډیرې معنې لری. یو معنی ئې داسې آواز کول دی چې دهغې په آوریدو سره څاروی روانیدو دپاره تیاریږی. دلته تر مراد د اسرافیل ؑ دویم ځلی شپیلۍ پوک وهل دی چې ورسره به مړی راژوندی کیږی، دې شپیلۍ پوک وهلو ته څکه زجره اوفرمائیلې شو چې دا د مړو د راژوندی کولو دپاره یو قسم آواز

دي ، ځنګه چې د څاروؤ د تيارولو دپاره چې اواز کولې شي [تفسير قرطبی] [۱].
اګر چې الله ﷻ د شپيلئ د پوک وهلو نه بغير هم په مړو ژوندي کولو باندې قادر دې خو دحشر او نشر ننداره هيبتناکه جوړولو دپاره به داسې کولې شي . [تفسير کبير] [۲] ددې شپيلئ پوک وهلو اثر به په کافرانو باندې دا وي چې :

﴿فَإِذَا هُمْ يَنظُرُونَ﴾ نو ناګاهانه به دوئ ويني ګوري ، يعنی ځنګه چې دنيا کښې ئې د ليدو طاقت لرلو هغسې به په آخرت کښې هم ليدل کولې شي . او ځينې مفسرينو ددې مطلب دا بيان کړې دې چې دوئ به په حيرانئ سره يو بل ته ګوري [قرطبی] [۳].

﴿احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ﴾ يعنی دا ظالمان کومو چې لوئې ظلم شرک او کفر کړې دې دوئ او ددوئ پشان کارکوؤنکی جمع کړئ . دلته ديو شان کار کوؤنکو دپاره دازواج لفظ استعمال شوې دې چې لفظی معنی ئې جوړه ده . چې دښځې خاوند دپاره ډير ډير استعماليږی . په دې بنا ځينې مفسرينو دې نه د مشرکانو هغه ښځې مراد اخستی دی چې کومې ددوئ پشان مشرکانې دی ، خو د اکثرو مفسرينو په نزد دلته د ازواج نه مراد هم ددوئ پشان مشرکان او عبد الرزاق رحمه الله د يو ارشاد نه هم کيږی ، امام بيهقی رحمه الله دی ، نو ددې تائيد د عمر فاروق دا قول نقل کړې دې چې دلته د رضی الله عنه وغيره ددې آيت په تفسير کښې د عمر فاروق رضی الله عنه ازواجهم نه مراد ددوئ په شان خلق دی . نو سود خواره به سود خورو سره ، زناکار به زناکارو سره او شراب خواره به شراب خورو سره يو ځائې کولې شی [روح المعانی و مظهری] [۴].

دې نه علاوه ﴿وَمَا كَانُوا يَعْبُدُونَ﴾ الفاظو سره اوخودلې شو چې مشرکانو سره به ددوئ هغه باطل معبودان او شيطانان هم جمع کولې شی چې کوم به دې خلقو په دنيا کښې الله ﷻ سره شريکان ګرځول . دادې دپاره چې دغه وخت ددغې باطلو معبودانو د بې وسئ په ښه شان سره ننداره اوکړې شی .

دې نه پس به فرښتو ته حکم کولې شی چې ﴿فَاهْدُوهُمْ إِلَىٰ صِرَاطِ الْجَحِيمِ﴾ يعنی دې خلقو ته دجهنم لار اوښائې . کله به چې فرښتې داخلق روان کړی نو پل صراط ته په رسيدو به ورته حکم اوشی چې ﴿وَقِفُوهُمْ إِنَّهُم مَّسْئُولُونَ﴾ يعنی دوئ اېسار کړئ ، تپوس به ترې کيږی ، نو په دغې مقام کښې به ددوئ نه ددوئ د عقيدو او عملونو په باره کښې هغه سوالونه کولې شی چې بيان ئې د قرآن پاک او حديث په ډيرو ځايونو کښې راغلې دې .

| وَأَقْبَلَ | بَعْضُهُمْ | عَلَىٰ بَعْضٍ | يَتَسَاءَلُونَ | قَالُوا | إِنَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| او مخ به کړی | ځينی ددوئ | ځينو ته | چې تپوسونه به کوی ديو بل نه | اوبه وائی | ابيشکه تاسو چی يئ |

اويو بل ته به ګوری | او تپوسونه به شروع کړی | کشران به ورته وائی چې تاسو به په مونږ

---

[۱] تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۱۵، ص ۷۲
[۲] التفسير الكبير: ج ۱۳، ص ۱۱۶
[۳] تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۷۲
[۴] تفسير المظهري:۸، ص۱۱۲،والمستدرک للحاکم،کتاب التفسير، تفسيرسورة الصافات، رقم الحديث: ۳۶۰۹

Scanned with Ca

كُنْتُمْ تَأْتُوْنَنَا عَنِ الْيَمِيْنِ ﴿۲۸﴾ قَالُوْا بَلْ لَّمْ تَكُوْنُوْا

وئ تاسو | چي راتلئ به مونږ ته | دښي طرفنه | اوبه وائي [جواب] | بلكه نهٔ وئ تاسو |

باندې دښي طرف نه ډير په زور كښې راتلئ |......... مشران به ورته جواب وركړي | نه بلكه

مُؤْمِنِيْنَ ﴿۲۹﴾ وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ بَلْ كُنْتُمْ

پخپله ايمان راوړونكى | اونهٔ وو مونږ لره | په تاسو باندې | هيڅ زور | بلكه وئ تاسو |

تاسوخو پخپله ايمان نه راوړلو |.......... اوزمونږ خو په تاسو څه زور نه وو | ..........خوتاسو

قَوْمًا طٰغِيْنَ ﴿۳۰﴾ فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَآ إِنَّا

قوم [خلق] | سركشه | پس ثابته شوه | په مونږ باندې | خبره درب زمونږه | بيشكه مونږه

سركشه خلق وئ |.......... نواوس په مونږ ټولو باندې دخپل رب فيصله ثابته شوه | اوس به مونږ

لَذَآئِقُوْنَ ﴿۳۱﴾ فَأَغْوَيْنٰكُمْ إِنَّا كُنَّا غٰوِيْنَ ﴿۳۲﴾

خامخا څكونكى يو دعذاب | پس بې لارې كړئ مونږه تاسو | بيشكه وو مونږه | بې لارې پخپله |

ضرور [دعذاب] مزه اوڅكو | بيشكه چې مونږ تاسو گمراهئ كړئ وئ | [اخو مونږ] پخپله هم گمراه يو

فَإِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ ﴿۳۳﴾ إِنَّا كَذٰلِكَ

پس بيشكه دوئ به | په دغه ورځ | په عذاب كښې | شريك وى | بيشكه چې مونږه همداړنگې

نو دا ټول به په دغه ورځ په عذاب كښې شريک وى | مونږ داسې مجرمانو سره هم

نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِيْنَ ﴿۳۴﴾ إِنَّهُمْ كَانُوْا إِذَا قِيْلَ لَهُمْ

كار كوؤ | دمجرمانو سره | بيشكه چې دوئ وو | كله چې به اووئيلې شو | دوئ ته |

دغه شان كوو | دوئ داسې خلق وو چې كله به ورته اووئيلې شو | چې د الله ﷻ نه بغير

لَآ إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۳۵﴾ وَيَقُوْلُوْنَ أَئِنَّا

چې نشته دې لائق دعبادت | مگر الله دې | نو دوئ به لوئې كوله | اووئيل به ئې | آيا مونږه |

بل معبود نشته | نو دوئ به تكبر كولو | ..................او دا به ئې وئيل چې آيا مونږ

لَتَارِكُوْا اٰلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجْنُوْنٍ ﴿۳۶﴾ بَلْ جَآءَ بِالْحَقِّ

پرېښودونكى يو | دخدايانو زمونږه | دپاره ديو شاعر | ليونى | بلكه هغه راوړې دې حق |

ديوليونى شاعر په وينا خپل معبودان پرېږدو ؟!، بلكه دې پيغمبر يو ريښتوني دين راوړې دې

وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۳۷﴾ إِنَّكُمْ لَذَآئِقُوا الْعَذَابِ

او تصديق ئې كړې دې | درسولانو | بيشكه تاسو | خامخا څكونكي يئ | دعذاب

اود ټولو پيغمبرانو تصديق كوى |.........تاسو ټول به د دردناک عذاب مزه اوڅكئ

الْأَلِيْمِ ﴿۳۸﴾ وَمَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۳۹﴾

درد ناك | اونهٔ دركړې كيږي بدله تاسو ته | مگر هغه | چې وئ تاسو | چې كول به مو |

اوتاسو ته زياتى نه صرف ستاسو دخپل عمل بدله به دركولې شي

Scanned with Ca

| |
|---|
| اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ　الْمُخْلَصِيْنَ |
| ماسوا دبندګانو دالله نه \|چې خالص کړې شوي دي\| |
| البته دالله مخلص بندګان به د عذاب نه بچ وي\| |

## آسان ترجمه قرآن

او دوی به یو بل ته مخامخ شي، په خپلو کښې به یو بل نه سوال او جواب کوي (کشران به خپلو مشرانو ته) وائي: چه هم تاسو وئ چه راتللئ مونږ ته په ډیر طاقت سره هغوی به ورته اووائي چه: نه. بلکه تاسو په خپله ایمان راوړونکي نه وئ.او په تاسو باندې زمونږ هیڅ زور نه وو. اصل خبره داده، چه تاسو خپله سرکش خلق وئ.اوس خو زمونږ د پروردګار دا خبره په مونږ باندې ثابت شوې ده، چه مونږ ټول به څکونکې د عذاب یو څکه چه مونږ تاسو لره ګمراهئ ته اوبللئ، مونږ په خپله ګمراهان وو.غرض دا چه دوی ټول به په دغه ورځ په عذاب کښې یو تربله شریک وی.مونږ مجرمانو سره هم داسې کوو.ددوی حال دا وو، چه کله به دوی ته اووئیلې شو، چه دالله تعالی نه سوا هیڅ معبود نشته، نو دوی به لوئې کوله.او وئیل به ئې چه: آیا مونږ داسې یو، چه د یو لیونی او شاعر د وجې نه مونږ خپل معبودان پریږدو؟ حالانکه هغه(پیغمبر(صلی الله علیه وسلم) حق راوړې وو،اوهغه د نورو پیغمبرانو تصدیق کړې وو،نو(هغوی ته به اووئیلې شی چه) تاسو ټول د دردناک عذاب مزه اوڅکئ . او تاسو ته به بدله نشی درکولې مګر دستاسو دعملونو البته چه کوم دالله تعالی مخلصان بندګان دي.

## خلاصه تفسیر

په ځای ددې چه مشرکان دیو بل مدد وکړې شی په دوی کښې به هغه وخت التـه جګړه جوړه شي ﴿وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ﴾[او هغوی به یو بل ته مخامخ شی سوال جواب] یعنی اختلاف [به شروع کړی] چنانچه [تابعین به] خپلو سردارانوته ﴿قَالُوْٓا﴾[ووائی چه] مونږ خو تاسو ګمراه کړو ځکه چه ﴿اِنَّكُمْ كُنْتُمْ تَاْتُوْنَنَا عَنِ الْيَمِيْنِ﴾ [په ډیر زور شور به تاسو مونږ ته راتلئ] یعنی تاسوبه په مونږ ښه زور اچولو زمونږ دګمراه کولو کوشش به موکولو ﴿قَالُوْا بَلْ لَّمْ تَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ﴾[نو متبوعین به ورته دا ووائی چه نابلکه تاسو په خپله ایمان نه وو راوړې او] په مونږه ناحقه الزام لګوئ ځکه چه ﴿وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ﴾[زمونږ په تاسو څه زور خو نه وو﴿بَلْ كُنْتُمْ قَوْمًا طٰغِيْنَ﴾بلکه تاسو په خپله سر کشی کوله پس] هرکله چه کفر کوونکې مونږ هم وو او تاسوهم نو معلومه شوه چه﴿فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَآ﴾ [په مونږ ټولو زمونږ درب دا] ازلی [خبره ثابته شوه ﴿اِنَّا لَذَآئِقُوْنَ﴾چه مونږ ټولو لره] دعذاب [مزه څکل دی نو] ددې سامان دا وشو چه ﴿فَاَغْوَيْنٰكُمْ﴾[مونږه تاسو له وغولولئ] چه په دې سره تاسو زمونږ دجبر او اکراه نه بغیر په خپل اختیار سره ګمراه شوئ او دې خوا ﴿اِنَّا كُنَّا غٰوِيْنَ﴾[مونږ په خپله هم] په خپل اختیار سره [ګمراه وو] پس د دواړو دګمراهئ اسباب جمع شول چې په هغو کښې ستاسو خپل اختیار هم ستاسو دګمراهۍ لوئ سبب دې بیاتاسو خان بری کول څنګه غواړئ؟ وړاند دحق تعالی ارشاد دې چه هرکله د دواړوفریقو په کفرکښې شریکوالې ثابت دې﴿فَاِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ فِى الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ﴾ نو هغه ټول به په دغه ورځ په عذاب کښې] هم [شریك وی] او﴿اِنَّا كَذٰلِكَ نَفْعَلُ

Scanned with Ca

﴿بِالْمُجْرِمِيْنَ﴾ [مونږ دداسې مجرمانو سره هم داسې کوو] وړاندې ددوی دکفر دجرم بيان دې چه
﴿اِنَّهُمْ كَانُوْٓا﴾ [هغه خلق داسې وو چه] توحيد نه هم منکر وو او رسالت نه هم چنانچه ﴿اِذَا قِيْلَ
لَهُمْ﴾ [هر کله به دوی ته] په واسطه د رسول الله ﷺ [ووئيلې شول ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ يَسْتَكْبِرُوْنَ﴾ چه
دخدایٔ نه سوا څوک معبود برحق نشته نو] ددې دمنلو نه [تکبر به ئې کولو ﴿وَيَقُوْلُوْنَ اَئِنَّا لَتَارِكُوْٓا
اٰلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجْنُوْنٍ﴾ او وئيل به ئې چه ايا مونږ خپلو معبودانو لره ديو شاعرليوني] دوينا [په
وجه پريږدو؟] پس په دې کښې دتوحيد او رسالت دواړو انکار وشو الله تعالى فرمائی چه
داپيغمبر نه شاعر دې او نه مجنون ﴿بَلْ﴾ [بلکه] پيغمبر دې چه ﴿جَآءَ بِالْحَقِّ﴾ [يو رښتوني دين ئې
راوړې دې او] په اصولو د توحيد وغيره کښې ﴿وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ دنورو پيغمبرانو تصديق]
اوموافقت [کوی] يعنی داسې اصول ښائی په کومو چه ټول رسولان متفق دی پس دا اصول
دبې شميره دليلونو په رڼا کښې حق دی خيال بندی نه ده او دحقې خبرې وئيل ليونتوب نه
دې نورو امتونو هم دخپلو انبياؤ ﷺ سره داقسم سلوك کړې دې دلته چونکه نيغ په نيغ د عربو
کفار مخاطب دی په دې وجه صرف ددې امت دکافرانو ذکر شوې دې وړاند ددې خبرې بيان
دې چه دوی ته مشافة ددې مشترك عذاب وعيد اوروليې شی چه ﴿اِنَّكُمْ لَذَآئِقُوا الْعَذَابِ الْاَلِيْمِ﴾
[تاسو ټول] تابع او متبوع [لره به دردناك عذاب څکل وی او] په دې حکم کښې په تاسو هيڅ
ظلم او نه شو څکه چه ﴿وَمَا تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ [تاسو ته به دهغې بدله ملاوېږی څه چه
تاسو] کفر وغيره [کولو ﴿اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ﴾ البته مگر کوم چه دالله تعالى خاص کړې شوی
بندگان دی] ددې نه مراد هغه ايماندار دی کوم چه دحق تابعداری وکړه او الله تعالى دوی لره
مقبول اومخصوص وفرمائيل داسې خلق به دعذاب نه محفوظ وی

## معارف او مسائل

﴿وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ﴾ د حشر په ميدان کښې به د راجمع کيدو نه پس د کافرانو
لوئې لوئې سرداران چا چې خپل کشران غولولی وو خپلو تابعدارانو ته به مخامخ راشی نو د
يو بل د مدد کولو په ځائې به په خپل مينځ کښې بحث او تکرار شروع کړی . دې آيت مبارك
کښې ددې بحث او تکرار څه نقشه راايستلې شوې ده او د فريقينو خراب انجام بيان کړې
شوې دې . د آيتونو مطلب د تفسير دخلاصې نه واضح دې صرف يو څو لنډې خبرې دبيانولو
جوګه دی .

① ﴿اِنَّكُمْ كُنْتُمْ تَاْتُوْنَنَا عَنِ الْيَمِيْنِ﴾ کښې د يمين څو معنې کيديشی ، په دې کښې يوه معنی قوت
او طاقت هم ده . پورته ددې معنی په لحاظ سره تفسير دا کړې شوې دې چې په مونږ باندې
ستاسو راتلل به د ډير زور وو . يعنی ډير په زبردستئ به مو ګمراه کولو . او هم دغه تفسير زيات
صفا او واضح دې ، دې نه علاوه د يمين معنی قسم هم راځی . څکه ځينې مفسرينو ددې
تفسير داسې کړيدې چې تاسو به مونږ ته په قسمونو کولو سره راتلئ ، يعنی په قسمونو خوړلو
به مو زمونږ يقين راوستو چې زمونږ مذهب صحيح دې او د رسول الله ﷺ تعليم معاذ الله
باطل دې ، د قرآنی الفاظو په لحاظ سره دا دواړه تفسيرونه بې تکلفه کيديشی .

② ﴿فَاِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ فِى الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ﴾ نه معلومه شوه چې څوک پخپل اثر رسوخ او زور زبردستئ
سره چالره ګمراه کړی نو ددې ګناه به ضرور دغې کس وی ، خو هغه څوک به هم د ګناه

Scanned with Ca

کولو مجرم ضرور وی چې چا دغه ګناه ددعوت عذاب خو پخپل اختیار سره قبوله کړې وی ، په آخرت کښې به ددې سزا نه نشی خلاصیدې ، او هغه په آخرت کښې په دې وینا خلاصې نشی موندلې چې زه خو فلانی ګمراه کړې وم البته که دغه ګناه ئې پخپل اختیار نه وی کړې بلکه په ډیر مجبوره کولو سره کړی وی چې مطلب ئې په کښې ځان خلاصول وؤ نو انشاء الله چې معاف به کړې شی.

| |
|---|
| أُولَٰئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُومٌ |
| هغوئ چې دی دې دهغوئ دپاره رزق معلوم |
| اودوئ دپاره معلوم خوراکونه مقرردی |
| فَوَاكِهُ وَهُم مُّكْرَمُونَ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ |
| میوې به وی او هغوئ به په عزت سره ساتلې کیږی په جنتونو دنعمتونو کښې |
| قسم قسم میوې به وی اوهغوی به د آرام په باغونو کښې ښه په عزت سره ناست وی |
| عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ يُطَافُ عَلَيْهِم بِكَأْسٍ |
| ناست به وی په تختونو باندې یو بل ته مخامخ ګرزولې کیږی به په هغوئ باندې پیالئ دشرابو |
| په تختونو به یوبل ته مخامخ ناست وی د چینې د شرابو ډک ډک جامونه به پرې ګرځولې |
| مِّن مَّعِينٍ بَيْضَاءَ لَذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ لَا فِيهَا |
| دچینې نه تک سپین خلیدونکی خوند ناک به وی دپاره دڅکونکو نه به وی په هغې کښې |
| شی تک سپین به وی دڅکونکو دپاره به د خوند نه ډک وی ......... نه به په کښې |
| غَوْلٌ وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنزَفُونَ وَعِندَهُمْ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ |
| څه ضرر اونه به هغوئ دهغې نه بې عقله کیږی اووی به دهغوئ سره ښکته کتونکې حورې |
| سرخوږئ وی اونه به په عقل کښې نقصان راولی او ورسره به دحیا نه نظر ښکته کتونکې د غتوغتو |
| عِينٌ كَأَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُونٌ فَأَقْبَلَ |
| غتوغتو سترګو والا داسې نازکې لکه چې هغوئ اګۍ دی پټې ساتلې شوی بیا به مخ کړی |
| سترګو والا ښځې وی ........لکه چې په پرده کښې محفوظ اګئ پټې پرتې وی بیا به |
| بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ |
| ځینی دهغوئ ځینوته چې تپوسونه به کوی دیو بل نه اوبه وائی یوویونکې دهغوئ نه |
| هغوئ یو بل ته مخامخ شی او تپوسونه به کوی .........یوکس به په کښې اووائی |
| إِنِّي كَانَ لِي قَرِينٌ يَقُولُ أَئِنَّكَ لَمِنَ الْمُصَدِّقِينَ |
| بیشکه زه چې وم اوؤ ماله یو ملګرې اچې وئیل به ئې آیا ته [هم] تصدیق کونکونه ئې ددوباره ژوند] |
| چې زما یو ملګرې وو هغه به ماته وئیل چې ایا ته هم دقیامت په ورځ تصدیق کوې؟ |

ءَاِذَا مِتۡنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَدِيۡنُوۡنَ﴿۵۳﴾

آيا كله چې | مړه شو مونږه | او شو مونږ | خاورې | او هډوکی | آيا مونږه لره به | خامخاجزا سزا راکړې کيدې شي

آيا کله چې مونږ مړه شو | او بشاورې هډوکې شو | نو آيا مونږ ته به بدله راکولې شي

قَالَ هَلۡ اَنۡتُمۡ مُّطَّلِعُوۡنَ﴿۵۴﴾ فَاطَّلَعَ فَرَاٰهُ

اوبه وائي هغه | آيا تاسو | ليدل غواړئ [هغه منکرلره] | بيا سراوچت کړو هغه | پس وې ليدو هغه

ورته به اووئيلې شي | چې تاسو [هغه ته] ښکته کتل غواړئ | نو هغه به اوګورئ

فِيۡ سَوَآءِ الۡجَحِيۡمِ﴿۵۵﴾ قَالَ تَاللّٰهِ اِنۡ كِدۡتَّ لَتُرۡدِيۡنِ﴿۵۶﴾

په منځ ددوزخ کښې | وې وئيل | قسم دې په الله | قريبه وه چې تا | خامخا تباه کړې وم زهٔ

اوخپل ملګرې به د دوزخ په مينځ کښې بيامومئ | دې به اووائی چې قسم دې په الله تاخو زهٔ تباه کولم

وَلَوۡلَا نِعۡمَةُ رَبِّيۡ لَكُنۡتُ مِنَ الۡمُحۡضَرِيۡنَ﴿۵۷﴾ اَفَمَا نَحۡنُ بِمَيِّتِيۡنَ﴿۵۸﴾

که چرې نهٔ وې فضل | درب زما | نو خامخا وم به زهٔ | حاضرکړې شوونه [دوزخ ته] | آيا پس نهٔ يو مونږه

اوکه په ما دخپل رب فضل نه وې شوې | نوزه به [لکه ستا] راګيرشوې ووم | آيا [داسې نه ده چې] مونږ به بيانه مرو؟

اِلَّا مَوۡتَتَنَا الۡاُوۡلٰى وَمَا نَحۡنُ بِمُعَذَّبِيۡنَ﴿۵۹﴾

مړه کيدونکی | مګر مرګ زمونږه | ړومبنې [تير شوې] | اونهٔ يو مونږه | عذابيدونکی

سوا [ددنيا] د ړومبی مرګ نه | اونه به راته چرې عذاب راکولې شي؟

اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِيۡمُ﴿۶۰﴾ لِمِثۡلِ هٰذَا فَلۡيَعۡمَلِ

بيشکه دا [انجام] | خامخا دا کاميابی ده لويه | دپاره دداسې کاميابۍ | پکار دی چې عمل اوکړی

بيشکه دادېره لويه کاميابی ده | ..........هم دداسې کاميابۍ دپاره عمل کونکو

الۡعٰمِلُوۡنَ﴿۶۱﴾

عمل کونکی |

دپاره عمل کول پکار دی |

## آسان ترجمه قرآن

دهغوی دپاره مقرر شوې رزق دې. ميوې دی، او د نعمتونو نه ډک باغونو کښې به دهغوی پوره پوره عزت کولې شي. هغوی به په اوچتو تختونو باندې يوبل ته مخامخ ناست وی. داسې د چينه دارو شرابو جامونه به هغوی باندې ګرزولې شي، چه تک سپين به وی، او خوند ورکونکې به وی دپاره د څکونکو. نه به په هغې کښې سردردې وی، او نه به دهغوی عقلونه خرابيږی. اوهغوی سره به د ښکتو سترګو والا ښځې وی، چه بهر لرونکی به وی نظرونه خپل (په خپلو خاوندانو باندې) (دهغوی بے داغه وجود به) داسې ښکاری، لکه چه هغه (دګرد او غبار نه) پټې ساتلې شوې اګې دی، بيا به جنتيان خلق يو بل ته متوجه شي، او په خپلو کښې به يو بل نه سوالونه کوی. په هغوی کښې به يو ويونکې اووائی چه زما يو ملګرې وو. چه (ماته به ئې) وئيل چه: ايا ته واقعی دهغې خلقو نه ئې، چه د (آخرت ورځ لره) رشتيا

Scanned with Ca

کنړی؟ آیا هرکله چه مونږ خاوړې او هډوکې شو، نو آیا واقعی به مونږ ته (زمونږ د عملونو) بدله راکولې شي؟ هغه جنتي به نورو جنتيانو ته اووائي چه: آیا تاسو زما هغې ملګري لره ليدل غواړئ؟ بيا به هغه خپله (په دوزخ کښې) اوګوري، نو هغه به ورته د دوزخ په مينځ کښې په نظر راشي. هغه جنتي به (هغه دوزخي) ته اووائي: په الله تعالی قسم! نژدې وه چه تا زه هلاک کړې وې. او که زما د پروردګار فضل شامل حال نه وې نو خامخا اوم به زه د حاضر کړې شوؤ نه په عذاب کښې. (بيا به هغه د خوشحالۍ په حالت کښې خپلو جنتيانو ملګرو ته اووائي) آیا پس نه يو مونږ مړه کيدونکي. سوا د هغې مرګ نه چه مونږ ته پخوا راغلې وو؟ او مونږ ته به عذاب هم نه وي حقيقت دادې، چه لويه کاميابي هم داده. د دغې شان کاميابۍ د پاره، پس عمل دې کوي عمل کونکي.

## خلاصه تفسير

﴿أُولَٰئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُومٌ﴾ [ددوی] دالله ﷻ مقبولو بندګانو [د پاره داسې خوراکونه دی دکومو حال چه] په نورو سورتونو کښې [معلوم] شوې [دې ﴿فَوَاكِهُ﴾ يعنی ميوې] چه ملاويدل ئې دسوره يس په ايت [لهم فيها فاكهة][1] کښې او چه صفتونه ئې دسوره واقعه په ايت [فاكهة كثيرة لامقطوعة ولاممنوعة][2] کښې ددې نه مخکښې نازل شوی دی ځکه چه يس او واقعه د سوره صفت نه په نزول کښې وړاند دی لکه چه داسې په اتقان کښې دی[3] ﴿وَهُم مُّكْرَمُونَ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ﴾ [او هغه خلق به په لوئ عزت سره دارام په باغو کښې په تختونو يوبل ته مخامخ ناست وی] ﴿يُطَافُ عَلَيْهِم بِكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ﴾ او [هغوی ته به داسې جامونه دشرابو راوړې شی] يعنی غلمان به ورله راوړی [چه دبهيدونکوشرابونه به ډکولې شی] ددې نه دشرابو کثرت او لطافت معلوم شو او په ليدو کښې به ﴿بَيْضَاءَ﴾ [سپين وی] او په څښلو کښې به ﴿لَذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ﴾ څښونکوته لذيذ معلوميږی] او ﴿لَا فِيهَا غَوْلٌ﴾ [نه به په دې کښې درد سروی] لکه چه ددنيا په شرابو کښې وی کوم ته چه خمر وئيلې شی ﴿وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنزَفُونَ﴾ [اونه به په دې سره په عقل کښې خرابی راځی ﴿وَعِندَهُمْ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ عِينٌ﴾ او ددوی سره به ښکته نظر کوونکې لويولويو سترګو والا] حوراني [وی] چه رنګ به ئې داسې صفاوی چه ﴿كَأَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُونٌ﴾ [ګوياهګۍ دی کومې چه] دځانګونو لاند [پټې ساتلې شوې وی] چه دګردوغبار او داغ نه بالکل محفوظ وی تشبيه محض په صفايئ کښې ده [بيا] هرکله چه خلق ټول په يوه جلسه کښې جمع شی نو ﴿فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ﴾ [يوبل ته به مخامخ شی خبرې اترې به کوی] ددې خبرو اترو په دوران کښې ﴿قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ إِنِّي كَانَ لِي قَرِينٌ﴾ [په دوی] جنتيانو [کښې يو ويونکې] د مجلس دخلقونه [اووائی چه] په دنيا کښې [زما يوملاقاتی وو هغه به] ماته په طور دتعجب ﴿يَقُولُ أَإِنَّكَ لَمِنَ الْمُصَدِّقِينَ﴾ [وئيل چه ايا ته دبياپورته کيدو د عقيده لرونکو نه يې؟ ﴿أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَدِينُونَ﴾ ايا هرکله چه مونږ مړه شو او خاوړې او هډوکی شو نو ايا مونږ ته به] ددوباره ژوندی کولونه پس [جزا سزا راکولې شی ؟]

[1] ) ترجمه: ددوی د پاره به هلته ميوی وی۔
[2] ) او ډيری ميوی به وی کومے چه به نه ختميږی او نه به ادريږی۔
[3] ) الاتقان، النوع السابع، معرفة اول ما انزل: ج ۱، ص ۲۷

Scanned with CamScanner

یعنی هغه داخرت نه منکر وو په دې وجه به هغه خامخا دوزخ ته تلې وی ﴿قَالَ هَلْ أَنْتُمْ مُطَّلِعُونَ﴾ دالله تعالى [ارشاد به وشی چه] اے جنتیانو [ایاتاسو ننداره کوئ] هغه لره [ایدل غواړئ؟] که غواړئ نو تاسوته اجازت دې ﴿فَاطَّلَعَ فَرَاٰهُ فِيْ سَوَآءِ الْجَحِيْمِ﴾ [پس هغه سړې] کوم چه قصه بیان کړې وه [به ننداره وکړی نو هغه لره به دجهنم په مینځ کښې پروت [ووینی] چه هلته ئ ووینی ﴿قَالَ تَاللّٰهِ اِنْ كِدْتَّ لَتُرْدِيْنِ﴾ نو هغه ته به [ووائی چه په خدائ قسم دې تا خو زۀ تباه کولم] یعنی مانه دې هم داخرت دمنکر جوړولو کوشش کولو ﴿وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّيْ﴾ [او که زما درب په ما [فضل نه وې] چه هغه زۀ په صحیح عقیده باندې قائم وساتلم ﴿لَكُنْتُ مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ﴾ [نو زۀ به هم] ستا په شان [په نیولي شوو خلقو کښې وم] او ددې نه پس به جنتی دمجلس خلقو ته ووائی چه ﴿اَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ ۝ اِلَّا مَوْتَتَنَا الْاُوْلٰى﴾ [ایا مونږ به داول خل دمرګ نه پس] کوم چه په دنیا کښې مړۀ شوی یو [اوس نه مرو ﴿وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ﴾ اونه به مونږ لره عذاب وی؟] داتولې خبرې به دخوشحالئ په جوش کښې وکړی چه الله تعالى دټولو تکلیفونو او مصیبتونو نه بچ کړو او دهمیشه دپاره بې فکره شو مخکښې دالله تعالى ارشاددې چه دجنت څومره جسمانی او روحانی نعمتونه بره بیان کړې شول ﴿اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ﴾ [دا بیشکه لویه کامیابی ده ﴿لِمِثْلِ هٰذَا فَلْيَعْمَلِ الْعٰمِلُوْنَ﴾ دداسې کامیابئ] حاصلولو [دپاره عمل کوونکو لره عمل کول پکاردی] یعنی ایمان راوړل او اطاعت کول پکار دی

## معارف او مسائل

﴿اُولٰٓئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُوْمٌ﴾ د دوزخیانو د حالاتو بیانولو نه پس په دې آیت مبارک کښې د جنتیانو د حالاتو بیان شوې دې ، ددې بیان دوه حصې دی . په اولو لسو آیتونو کښې د عام اهل جنت د حاصل شوی عیش و آرام بیان دې، دې نه پس آیتونو کښې د یو خاص جنتی عبرتناکه واقعه بیان کړې شوې ده . په اولو لسو آیتونو کښې څو خبرې په خاص ډول سره د یادولو وړ دی .

① ﴿اُولٰٓئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُوْمٌ﴾ لفظی ترجمه داده چې دې خلقو لره داسې روزی ده چې حال ئې معلوم دې ، مفسرینو ددې مطلبونه مختلف بیان کړی دی . ځینې حضراتو ترې هغې جنتی غذاګانو اود هغې تفصیلی صفتونو ته اشاره ګڼړلې ده چې مختلفو سورتونو کښې بیان شوی دی . ځینې حضراتو فرمائیلی دی چې رزق معلوم نه مراد دادی چې ددې وختونه تاکلې شوی دی یعنی هغه به صبا بیګاه په پابندئ سره ورکولې شی . څنګه چې په بل آیت مبارک کښې دې دپاره غدواوعشیا یعنی صبا بیګاه ښکاره الفاظ هم راغلی دی . دریم تفسیر ددې دابیان شوې دې چې ددې مطلب یقینی او دائمی رزق دې ، ددنیا پشان نه چې څوک په یقین سره نشی خودلې چې صبا ماته کومه او څومره روزی حاصلیدونکې ده . او نه چاته داعلم شته چې ماته حاصل شوې رزق به ترکومې ماسره وی ؟ هر انسان هر وخت په فکر کښې وی چې د اموجوده نعمتونه به صبا ته ماسره پاتې وی اوکه نه؟ جنت کښې به دا خطره نه وی بلکه دهغه ځائې روزی به یقینی هم وی او همیشه دپاره به هم وی [تفسیر قرطبی وغیره] [1].

② ﴿فَوَاكِهُ﴾ قرآن پاک ددې لفظ په ذریعه دابیان کړې دې چې د جنت دغه حاصله شوې روزی

---

[1] تفسير القرطبي: ج ١٥، ص ٧٧، وتفسير روح المعاني: ج ١٧، ص ١٠٦

به د میوؤ په شکل کښې وی ، ولې چې ﴿فَوَاكِهُ﴾ د فاکهة جمع ده او په عربۍ کښې فاکهة هر هغه څیز ته وائی چې د لوږې دفع کولو دپاره نه وی ، بلکه دمزو اخستو دپاره خوړلې شی. ځکه په اردو کښې ددې ترجمه په میوؤ سره کولې شی. ګنی حقیقت کښې د فاکهة مطلب د میوې د مطلب نه عام دې. امام رازی رحمه الله ددې فواکه لفظ نه نکته راؤښکلې ده چې د جنتیانو ټول رزق به د مزو او خوندونو اخستو دپاره وی ځکه چې هلته د لوږې حاجت او تکلیف به نه وی. ځکه په جنت کښې به انسان ته د هیڅ څیز حاجت نه وی. هلته به ده لره د خپل صحت براقرار ساتلو اود حفظان صحت دپاره به هم د څه غذا ضرورت نه وی. خو خواهش به وی او ددې خواهش پوره کولو دپاره به لذت وی. او د جنت د ټولو نعمتونو مقصد به لذت عطا کول وی [تفسیر کبیر ج/۷ص/۹۸](۱).

③﴿وَهُمْ مُّكْرَمُوْنَ﴾ سره اوخودلې شو چې دجنت دغه روزی به ښه په قدر سره او عزت سره ورکولې شی ، ولې چې د بې عزتۍ ډیره خوندناکه روزی هم بې خونده وی ، دې نه داهم معلومه شوه چې د میلمه حق صرف هغه ته په خوراک ورکولو سره نه ادا کیږی ، بلکه دهغه دقدر او عزت کول هم د هغه په حقونو کښې داخل دی.

④﴿عَلٰى سُرُرٍ مُّتَقٰبِلِيْنَ﴾ یعنی د جنتیانو دمجلس شان به دا وی چې دوئ به په تختونو باندې یو بل ته مخامخ ناست وی ،ددې عملی صورت به څه وی؟ ددې د عملی صورت صحیح علم الله ﷻ ته دې ، ځینو حضراتو او فرمائیل چې د مجلس دائره به دومره زیاته لویه وی چې هیڅوک به بل ته د شاکولو ضرورت نه محسوسوی. او الله ﷻ به جنتیانو ته د لیدولو اؤریدواو وینا دومره طاقت ورکړی چې لرې لرې کسانو سره به هم ښه په آرام بې تکلیفه خبرې کولې شی. او ځینو حضراتو داهم فرمائیلی دی چې دغه تختونه به تاویدونکی وی چاسره به چې خبرې کول غواړی اخوا به هلته پخپله تاویږی [والله اعلم].

⑤[لَذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ] لَذَّةٍ په اصل کښې مصدر دې چې معنی ئې خوندناک ده.. ځکه ځینو حضراتو فرمائیلی دی چې دلته صرف مضاف محذوف دې ، یعنی په اصل کښې ذات لذة وؤ یعنی خوندوالا خو ددې تکلف ضرورت نشته دې. اول خو که لذة مصدر اومنلې شی نو مصدر داسم فاعل په معنی کښې استعمالیږی. په دې صورت کښې به ددې معنی دا شی چې دا به د شراب څکونکو دپاره مجسم لذت وی. ددې څخه علاوه د لَذّة صیغه صفت لذیذ څخه علاوه ،، لذ ،، هم راځی کیدې شی چې دلته لذة د لذ مؤنث وی [تفسیر قرطبی](۲). په دې بنا به ئې معنی دا وی چې څکونکو دپاره خوندناک

⑥﴿لَا فِيْهَا غَوْلٌ﴾ د غَوْلٌ معنی چا خو د سر درد بیان کړې ده ، چا د خیټې درد ، چا بدبوئی او ګندګی ، اوچا د عقل تلل ، په حقیقت کښې دغول لفظ په دې ټولو معنو کښې استعمالیږی. او حافظ ابن جریر رحمه الله فرمائیلی دی چې د لته غول د آفت معنی ورکوی. مطلب دا چې د جنت په شرابو کښې به داسې څه آفت نه وی کوم چې ددنیا په شرابو کښې وی. د سر ،

---

(۱) التفسیر الکبیر للرازی تحت هذه الآیة: ج ۱۳، ص ۱۲۳
(۲) تفسیر القرطبی: ج ۱۵، ص ۷۸

Scanned with Ca

ښځي درد او بدبوئي او د عقل تلل به په کښې نه وي [تفسير ابن جرير رحمه الله] (١).

⑥﴿قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ عِيْنٌ﴾ دا د جنت د حورو صفت دې چې دوئ به خپل نظرونه ښکته لرونکې وي ، يعنې د خپلو جنتي خاوندانو نه بغير به بل هيڅ نارينه ته پورته نه ګورې . علامه ابن جوزي رحمه الله نقل کړې دې چې دغه حورې به خپلو جنتي خاوندانو ته وائي چې زما دې د خپل پروردګار په عزت قسم وي چې جنت کښې راته ستانه غوره بل هيڅوک نه ښکاري . کوم الله ﷻ چې زه ستا بي بي اوته ئې زما خاوند جوړ کړې يئ ټول تعريفونه هم هغه ذات دپاره دي .
علامه ابن جوزي رحمه الله داسې هم ليکلي دي چې د نظر ښکته لرونکو مطلب دا دې چې دغه حورې به دومره ښکلې وي چې خاوند به ئې بل هيچا ته کتل قدرې هم نه غواړي . يعنې بل چاته به نه پخخيږي . [تفسير زاد المسير د ابن جوزي ص/۵۸،۵۷ ج/۸] (٢).

⑧﴿كَاَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُوْنٌ﴾ دا تشبيه د عربو د طبيعت او مذاق مطابق داسې ورکړې شوېده چې کومه هګۍ د وزرونو لاندې پټه پرته وي نو په هغې هيڅ ګرد نه پريوزي او رنګ ئې ښه صفا وي . بله دا چې د داسې هګۍ رنګ زيړوالي ته مائل سپين وي ، چې عربو به داسې رنګ د زناناؤ ډير د ښکلا رنګ ګڼړلو . او ځينې مفسرين حضرات دې نه مراد د هګۍ هغه جلئ او پرده مراد اخلي چې په پوستکي کښې دننه وي ، مطلب ئې دا شو چې دغه حورې به لکه د دغې جلئ نرمې او نازکې وي [روح المعاني] (٣). والله سبحانه وتعالى اعلم

**يو جنتي او دهغه کافر ملاقات** :: په رومبو لسو آيتونو کښې د جنتيانو عام حالات بيان شو نو هغې نه پس د يو جنتي په خاص شان سره بيان داسې راغلي دې چې کله هغه د جنتيانو مجلس ته اورسيږي نو د دنيا خپل يو کافر دوست به راياد کړي کوم چې د آخرت نه منکر وو . بيا به د الله ﷻ په اجازت سره جهنم ته سر ورښکاره کړي او دغې دوست سره به خبرې اوکړي . قرآن کريم د دغه کس څه نوم نښه نه دې خودلې څکه يقين نشي کيدې چې دا به څوک وي ؟ خو بيا هم ځينې مفسرينو داخيال ښکاره کړې دې چې د دغې مؤمن سړي نوم يهود دې ، او د دغې کافر نوم مطروس دی ، اودا هغه دوه ملګري دي چې بيان ئې د سورة کهف په آيت ﴿وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلًا رَّجُلَيْنِ الخ﴾ (٤) کښې تير شوې دې [تفسير مظهري] (٥).
او علامه سيوطي رحمه الله د ګنړو تابعينو په حواله د دغې کس د تاکلو دپاره يوه واقعه نقل کړې ده . خلاصه ئې دا ده چې دوه کسان په کاروبار کښې شريک وو ، اته زره ديناره آمدن ئې اوشو ، د هر يو حصه څلور څلور زره ديناره اورسيده . يو ملګري ئې په زر ديناره څه زمکه واخسته ، بل ملګري ئې ډير نيک وو ، وې وئيل چې زه په زر ديناره جنت کښې زمکه اخلم نو هغه ئې خيرات کړې . بيا دغه يو شريک په زر ديناره کور جوړ کړو نو دغه بل شريک ئې اووئيل چې يا الله ﷻ ! دغه سړي په دنيا کښې په زر ديناره ځان له کور جوړ کړو . زه په زر ديناره ځان له جنت کښې کور اخلم او زر ديناره ئې نور خيرات کړې ، ملګري ئې چې په زر

١) تفسير الطبري: ج ٢١، ص ٣٩ تحت هذه الآية.
٢) زاد المسير تحت هذه الآية: ج ٥، ص ٢٠٨
٣) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ١٧، ص ١١٤
٤) ترجمه: او تاسو دے خلقو ته دوؤ کسانو حال بيان کړی.
٥) تفسير المظهري: ج ٨، ص ١١٦

Scanned with Ca

دیناره یوې ښځې سره نکاح اوکړه نو هغه په دې غرض نور زر دیناره خیرات کړل چې دا به جنت کښې به یوې ښځې ته زما پیغام شی. بیائې ملګرې په زر دیناره څه غلامان او سامان واخستو نو ده هغه آخری زر دیناره هم په دې غرض خیرات کړل چې ددې په بدل کښې به راته د جنت غلامان او سامان په ګوتو راشی.

بیا داسې اوشو چې دغه مؤمن ډیر زیات حاجت مند شو، امداد غوښتو دپاره هغه خپل پخوانی ملګری ته ورغې، هغه ترې دحاصل کړی مال باره کښې تپوس اوکړو چې هغه دې څه کړو؟ مؤمن ورته په جواب کښې ټوله قصه بیان کړه. هغه حیران شو او وې وئیل چې آیا واقعی ته دې خبرې له رښتیا ګڼړې چې کله مونږ د مرګ نه پس ښاورې کیدو سره چې ذره ذره شو نو بیا به هم ژوندې کیږو. او هلته به زمونږ د عملونو بدله راکولې شی ؟ځه لاړ شه زه خو درته هیڅ نه درکوم؟ بیا دې نه پس دواړه مړه شو، په مذکوره آیتونو کښې د جنتی نه مراد هغه بنده دې چا چې د آخرت دپاره ټول مال خیرات کړې وو، جهنمی ملاقاتی ئې هم دغه کاروباری شریک دې. کوم چې دوباره ژوندی کیدو او د آخرت په منلو باندې خندا ګانې کړې وې، [تفسیر در منثور په حواله د ابن جریر وغیره ص/۱۲۵ج/۵] [1].

**دخرابې ملګرتیا نه د ځان ساتلو تعلیم** :: بهر کیف ددې نه مراد که هر څوک وی، خو ددې واقعې د بیانولو نه د قرآن پاک مطلب خلق په دې پوهول دی چې د خپلو دوستانو او ملګرو د مجلس دې په ښه شان جاج [خبر] اخلی چې دې کښې داسې څوک شامل نه دې چې ښکاره ښکاره هغه دوزخ طرفته بوتلل کوی، دخراب مجلس نه چې کومه پوره تباهی خوبه په آخرت کښې لیدلې شی کله به چې ددې نه د ځان ساتلو څه لاره نه وی. ځکه هم په دنیا کښې دوستانې او تعلقات په ډیر احتیاط سره جوړول او برابرول پکار دی. کله خو داسې اوشی چې د کافر یا فاسق په دوستئ کښې په ځان څوک پوهه نشی او دهغه د نظریاتو، فکرونو او د ژوند د طرز اثر قبول کړی چې آخرت دپاره ډیر خطرناک ثابتیږی.

**د مرګ په ختمیدو باندې تعجب ښول** :: دلته دابیان اوشو چې هغه مؤمن بنده به دکافر ملګری دکتو دپاره جهنم ته سر ورښکاره کړی، ورپسې آیت مبارک کښې فرمائی چې دآخرت د نعمتونو په تر لاسه کولو به مؤمن د ډیرې خوشحالئ نه دا وائی چې آیا مونږ به اوس هیچرې نه مرو؟ ددې مقصد دا نه دې چې ده ته په دې کښې څه شک دې چې د جنت نعمتونه همیشه دپاره دی. بلکه چا ته چې بیحده زیاتې خوشحالئ حاصلې شی هغه ډیر ځل داسې خبرې کوی لکه چې هغه ته په دې خوشحالو حاصلیدو باندې یقین نه وی، دغسې مطلب ددې جملو هم دې.

آخر کښې قرآن پاک ددې واقعې اصل سبق او عبرت ته دخلقو مخه راګرځولې ده چې ﴿لِمِثۡلِ هٰذَا فَلۡيَعۡمَلِ الۡعٰمِلُوۡنَ۝﴾ یعنې هم دداسې کامیابئ حاصلولو دپاره عمل کوونکوله عمل کول پکاردی.

---

[1] تفسیر الدر المنثور: ج ۸، ص ۳۳۱

أَذٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ ﴿٦٢﴾

| آیا دا څیز | بهتره دي | په لحاظ د میلمستیا سره | او که ونه دزقوم

| آیا دا میلمستیا بهتره ده | او که د زقوم ونه ؟

إِنَّا جَعَلْنَاهَا فِتْنَةً لِّلظَّالِمِينَ ﴿٦٣﴾ إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ

مونږه جوړه کړې ده دا ونه | یوه فتنه | دپاره دظالمانو | بیشکه داونه ده | چې راوځي

مونږ دغه دظالمانو دپاره د عذاب یوه فتنه جوړه کړې ده | دغه یوه داسې ونه ده | چې د

فِي أَصْلِ الْجَحِيمِ ﴿٦٤﴾ طَلْعُهَا كَأَنَّهُ رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ ﴿٦٥﴾

په مینځ ددوزخ کښې | غنچې ددې داسې دي | لکه چې هغه | سرونه دي | دشیطانانو

دوزخ په ویخ کښې راټوکیږي | دهغې غونچه داسې ده لکه د مارانو چڼې [سرونه]

فَإِنَّهُمْ لَآكِلُونَ مِنْهَا فَمَالِئُونَ مِنْهَا

پس بې شکه هغوئ | خامخا خوړونکي دي | دهغې نه | پس ډکونکي دي هغوئ | دهغې نه

نودوئ به دهغې نه خوراک کونکي وي | او هم د هغې نه به خیټې ډکونکي وي

الْبُطُونَ ﴿٦٦﴾ ثُمَّ إِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا

خیټو خپلو لره | بیا | بې شکه | هغوئ لره به | په هغې دپاسه | خامخا یو خاټې کیدل وي

......بیا ورته د هغې دپاسه ویشدلې خړبوژني اوبه ورکولې شي

مِّنْ حَمِيمٍ ﴿٦٧﴾ ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَإِلَى الْجَحِيمِ ﴿٦٨﴾ إِنَّهُمْ أَلْفَوْا

داوبو ګرمونه | بیا بې شکه | واپسي دهغوئ به | خامخا دوزخ ته وي | بیشکه دوئ | او موندل

.........بیا به دوزخ طرف ته د دوی واپس ګرځیدل وي | بیشکه دوئ خپل مشران

آبَاءَهُمْ ضَالِّينَ ﴿٦٩﴾ فَهُمْ عَلَىٰ آثَارِهِمْ يُهْرَعُونَ ﴿٧٠﴾ وَلَقَدْ ضَلَّ

پلاران خپل | ګمراهان | پس دوئ | په نقش قدم دهغوئ باندې | منډې وهي | او ګمراهه شوی وو

ګمراه موندلي وو | نو دوئ هم د هغوی په قدمونو باندې منډې وهلې | ................ او ددوئ نه

قَبْلَهُمْ أَكْثَرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٧١﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا فِيهِمْ مُّنذِرِينَ ﴿٧٢﴾

مخکښې دهغوئ نه | اکثر رومبني خلق | او لیږلي وو مونږه | په هغوئ کښې | یرونکي [خبردارونکي]

وړاندې هم زیات پخواني خلق ګمراه شوي وو | او مونږ هغوئ ته هم ویرونکي لیږلي وو

فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنذَرِينَ ﴿٧٣﴾ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ

پس اوګوره | څرنګې وو | انجام دیرولې شوو خلقو | مګر بچ شوی دي | بندګان دالله

نو ته اوګوره چې دهغه خلقو انجام څه شو ؟ | سوا دالله ﷻ د خاص

الْمُخْلَصِينَ ﴿٧٤﴾

خالص کړې شوی |

بندګانو نه [باقي نورټول هلاک شول] |

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

آیا دا میلمستیا غوره ده، یا د زقوم اونه ؟ مونږ دغه اونه دهغې ظالمانو دپاره یو آزمائش جوړ کړې دې په اصل کښې هغه اونه داسې ده، چه د دوزخ د ویخ نه راوځی. څانګې دهغې داسې دی، لکه د شیطانانو سرونه پس دوزخیان خلق به دهغې نه خوراک حاصلوی، او دهغې نه به ګیډې ډکوی. بیا یقیناً هغوی ته په دپاسه ددې د ګرمو اوبو ګډون ملاویږی . بیا به واپسی دهغوی دوزخ طرف ته وی هغوی خپل پلار نیکه مونډلې وو د ګمراهۍ په حالت کښې، پس دوی په قدمونو د هغوی زغلولې شول، او ددوی نه مخکښې چه کوم خلق تیر شوې دی، په هغوی کښې اکثر خلق هم ګمراهان وو.او حقیقت دادې چه مونږ په هغوی کښې ویره ورکونکې (پیغمبران) رالیږلې وو.اوس اوګوره، چه کومو خلقو لره ویرولې شوې وو. دهغوی انجام څرنګه شو؟ البته کوم خلق چه د الله تعالیٰ خالص کړې شوې بندګان دی، (هغه محفوظ پاتې شو).

### خلاصه تفسیر

دعذاب او ثواب دواړو موازنه ئې وکړه اوس ایماندارو ته ترغیب اوکفارو ته ترهیب فرمائی چه وبنایئ ﴿أَذَٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا﴾ [آیا دادعوت] دجنت دنعمتونو [غوره دې] کوم چه دایماندارو دپاره دې ﴿أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ﴾ [یاد زقوم اونه] کوم چه دکفاردپاره ده ﴿إِنَّا جَعَلْنَاهَا فِتْنَةً لِّلظَّالِمِينَ﴾ [بیشکه مونږه دې اونې لره] په اخرت کښې دسزا جوړولونه علاوه په دنیا کښې ددې [ظالمانو دپاره دامتحان موجب جوړکړې دې] چه ددې په اوریدو تصدیق کوی یا تکذیب او مسخرې کوی چنانچه کفارو تکذیب او مسخرې وکړې او وئې وئیل زقوم خو کج او خرمانه وائی هغه خو به مزیدار شي دې او وئې وئیل که زقوم اونه وی نو دوزخ خو ټول اور اور دې اونه په کښې څنګه کیدې شی؟ ددې جواب الله تعالی د اورکړو چه ﴿إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِي أَصْلِ الْجَحِيمِ﴾ [هغه یوه اونه ده چه دوزخ دویخ نه راوځی] یعنی کج او خرمانه ده او چونکه دا په خپله په اور کښې پیداکیږی په دې وجه ئې هلته پاتې کیدل څه بعید نه دی لکه چه سمندر نوم ښناور په اور کښې پیداکیږی او په اور کښې اوسیږی په دې سره ددواړو خبرو جواب وشو اوس مخکښې دزقوم یو کیفیت مذکور دې چه ﴿طَلْعُهَا كَأَنَّهُ رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ﴾ [ددې میوه داسې] بدشکله [ده لکه دمار چجه] پس په داسې اونې به دظالمانو میلمستیا کولې شی ﴿فَإِنَّهُمْ لَآكِلُونَ مِنْهَا﴾ [نو هغه خلق] چه د لوږې نه به بې ارامه وی ﴿فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ﴾ [ددې نه به خیټې ډکوی ﴿ثُمَّ إِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيمٍ ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَإِلَى الْجَحِيمِ﴾ بیا] چه هرکله د تندې نه بې قراره شي او به وغواړی نو [هغوی ته به جوشیدلې اوبه] غساق یعنی زوو کښې [ملاؤشوې ورکولې شي او] داسې نه چه ددې مصیبت خاتمه به وشی بلکه ددې نه پس [بیا اخری د اوسیدو ځائ ئه دهغوی دوزخ طرف ته وی] یعنی ددې نه پس به هم هلته همیشه دپاره اوسیدل وی او دوی له دا سزا په دې وجه ورکړې شوه چه ﴿إِنَّهُمْ أَلْفَوْا آبَاءَهُمْ ضَالِّينَ﴾ [هغوی] دالله تعالی دهدایت تابعداری نه وه کړې بلکه [خپل مشران ئې دګمراهۍ په حالت کښې مونډلی وو ﴿فَهُمْ عَلَىٰ آثَارِهِمْ يُهْرَعُونَ﴾ بیا دوی هم دهغو په قدمونو په تیزئ سره روان وو] یعنی په شوق او رغبت سره د هغو په بې لارئ باند روان وو ﴿وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ أَكْثَرُ الْأَوَّلِينَ﴾ [او ددوی] موجوده کفارو [نه مخکښې هم په وړاندینو خلقو کښې ډیر ګمراه شوی دی ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا فِيهِم مُّنذِرِينَ﴾ او مونږ په

Scanned with Ca

هغوی کښې هم ویرونکی] پیغمبران لیږلی وو ﴿فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِينَ﴾ [پس وګوره چه د هغو خلقو څنګه] بد [انجام شو کومو لره چه ویرولې شوی وو] هغوی نه وومنلې چه په هغوی په دنیاکښې څنګه څنګه عذاب نازل شو ﴿إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾ [البته مګر کوم چه دالله تعالی خاص کړې شوی] یعنی ایماندار[بندګان وو] هغوی ددې دنیوی عذاب نه هم محفوظ شول

## معارف او مسائل

د دوزخ او جنت دواړو د لږ لږ حالتونو بیانولونه پس الله ﷻ هر انسان ته ددې ځاې اخستو بلنه ورکړه چې غور اوکړئی چې دې کښې کوم یو حالت زیات غوره دې ؟ نو فرمائی چې ﴿أَذَٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ﴾ یعنی دغه د جنت بیان شوی] نعمتونه زیات غوره دی یا د زقوم ونه چې په دوزخیانو به خورولې شی.

**د زقوم حقیقت**:: زقوم نومې یوه ونه د جزیرة العرب په تهامه علاقه کښې بیامونده‌ې شی ، او علامه آلوسی رحمه الله لیکلی دی چې دا په نورو بنجرو صحراګانو کښې هم مونده‌ې شی[1].
ځنې حضرات هغه ونې ته زقوم وائی چې په اردو ورته تهوهړ وئیلې شی. ځینې حضرات هغې ونې ته زقوم وائی چې هندوستان کښې د ناګ پهن په نوم سره مشهوره ده. او دا قیاس ته نزدې هم ده ، اوس د مفسرینو حضراتو په دې کښې مختلفې رائې دی. چې د جهنمیانو خوراکه به هم ددې دنیوی ونې پشان څه ونه وی اوکه بل شان څه ونه به وی ، ځینې فرمائی چې بل شان څۀ ونه به وی ، په ښکاره دا معلومیږی چې څنګه په دنیا کښې ماران لړمانان وی داسې په آخرت کښې به هم وی خو ددنیا د لړمانانو او مارانو نه دآخرت ماران اولړمانان به ډیر زیات خطرناک اوسخت وی اګر چې په نوم کښې یو شان دی ، دغسې ددنیا او جهنم زقوم اګر چې په نوم کښې یو شان دی خو ددې زقوم ددنیا نه به زیات بدشکله او په خوراک کښې به ډیر زیات تکلیف ورکوونکې وی، والله سبحانه و تعالی اعلم.

﴿إِنَّا جَعَلْنَاهَا فِتْنَةً لِّلظَّالِمِينَ﴾ یعنی مونږ دې د زقوم ونې لره دې ظالمانو دپاره فتنه جوړ کړې ده . د ځینې مفسرینو په نزد دلته د فتنه نه مراد عذاب دې ، یعنی مونږدا ونه د عذاب ذریعه جوړه کړې ده لیکن د اکثرو مفسرینو حضراتو دا وینا ده چې دلته د فتنه نه مراد آزمیښت او امتحان اخستل زیات مناسب ښکه دی چې مطلب به ئې دا وی چې مونږ ددې ونې په یادګیرنې کولوسره دا امتحان اخستل غواړو چې څوک په دې ایمان راوړی او څوک دې پورې خندا کوی. نو کافران په دې کښې ناکام پاتې شو چې په دې ئې دا یمان راوړلو په ځائې دې پورې ئې توقې مسخرې شروع کړې . لکه چې ابوجهل هغه وخت خپلو ملګرو ته اووئیل کله چې هغه آیتونه نازل شو په کومو کښې چې په دوزخیانو باندې د زقوم د ونې خوړول راغلی دی چې ستاسو دوست محمد ﷺ وائی چې په اور کښې یو ونه ده

حالانکه ونې لره خو اور سوځوی او خوری ئې او وې وئیل چې قسم په الله چې مونږ د اېږنو چې زقوم کهجورو اوکچو ته وئیلې شی نو راځئ کهجورې او کچ خورو. [درمنثور ص/۲۷۷ج/۵][2]. اصل کښې زقوم په بربری ژبه کښې کهجورو او کچو ته وئیلې شی. په دغه

---

[1] ) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱۷، ص ۱۲۹
[2] ) تفسیر الدر المنثور تحت هذه الآیة: ج ۸، ص ۳۳۵

Scanned with Ca

بنا تري کافران توقـه جوړه کړه ، خو الله ﷻ هم پـه يـوه جملـه کښې ددې دواړو خبرو جواب داسې ورکړو.

﴿اِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِيْٓ اَصْلِ الْجَحِيْمِ﴾ يعنی زقوم داسې يوه ونه ده ؛چې د جهنم پـه بيخ کښې راټوکيږي .لهذا ددې څخه مراد نـه کهجوره ده او نـه کوچ دی . او نـه دا اعتراض معقول دی چې پـه اور کښې ونه څنګه کېدې شی؟ هرکله چې دغه ونـه هم پـه اور کښې پيدا شوه نو الله ﷻ پـه دې کښې دا صفات پيدا کړل چې دا پـه اور کښې د سوزيدو پـه ځائې پـه دې کښې پرورش اخلی.د نمونې په طور داسې ډير حيوانات موجود دی چې پـه اور کښې ژوندی پاتې کيدې شی يا اور ورته د سوزولو پـه ځائې پرورش ورکوی.

﴿طَلْعُهَا كَاَنَّهٗ رُءُوْسُ الشَّيٰطِيْنِ﴾ دې آيت مبارک کښې د زقوم ميوې تـه د شيطانانو د سرونو پشان وئيلې شوی دی ، ځينې مفسرينو د لته د شيطانانو ترجمه په مارانو سره کړيده څنګه چې پـه اردو کښې هم ورته ناګ پهن د مارچجه وئيلې کيږي. خو اکثر مفسرين فرمائی چې ددې معنی هم شيطانان کولې شی . او فرمائی چې څنګـه د شيطانانو سرونه بد شکله وی دغسې ددې ونې ميوه به هم بد شکله وی ، اوس دلته نه دی کول پکار چې شيطان خو چا ليدلې نه دې نو بيا دهغـه سره تشبيه ولې ورکړې شوه؟ ځکه چې دلتـه دا يو قسم تخيلی تشبيه ده يعنی شيطان اګر چې چا پـه خپل اصل شکل کښې نه دې ليدلې خو هرکله چې د شيطان عمل او کردار خراب او پليت دې دغسې دخلقو پـه خيال کښې دهغـه شکل هم خراب اوپليت راځی. څنګه چې زيات بدشکله انسان ته خلق شيطان اوپيرې ديو وائی [روح المعانی وغيره][1] د نورو آيتونو مطلب د تفسير خلاصې نه واضح کيږي.

وَلَقَدْ نَادٰىنَا نُوْحٌ فَلَنِعْمَ

| او پـه تحقيق سره | آواز اوکړو مونږ ته | نوح عليه السلام | پس خامخا ښه

| او نوح عليه السلام مونږ ته آواز اوکړو | نو مونږ ډير ښه فرياد

الْمُجِيْبُوْنَ ۝ وَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗ مِنَ الْكَرْبِ

جواب ورکونکی يو مونږه | نو بچ کړو مونږه هغه | اوکور والا دهغه | دمصيبت

رس يو | او مونږ هغه اودهغه د کور خلقو ته د لوئې غم نه نجات ورکړو

الْعَظِيْمِ ۝ وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهٗ هُمُ الْبٰقِيْنَ ۝ وَتَرَكْنَا

لوئ نه | اواوګرځول مونږه | اولاد دهغه | هم هغوئ | باقی پاتې کيدونکی | اوپريښودو مونږ صفت

..............او صرف دهغه اولاد مو باقی پاتې پريخودل | ..............اود روستو راتلونکو خلقو

عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ ۝ سَلٰمٌ عَلٰى نُوْحٍ فِي الْعٰلَمِيْنَ ۝

پـه هغه باندې | پـه روستو نسلونو کښی | سلام دې | پـه نوح عليه السلام | ددنيا پـه ټولو خلقو کښی

دپاره مو دا واقعه پاتې پريخوده | .....چې پـه ټول مخلوق کښې دې پـه هغه سلام وئيلې شی

[1] تفسير روح المعانی تحت هذه الآية: ج ۱۷، ص ۱۳۲

| إِنَّا كَذَٰلِكَ | نَجْزِي | الْمُحْسِنِينَ ﴿٨٠﴾ | إِنَّهُ | مِنْ عِبَادِنَا |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه مونږه همدارنګې | بدله ورکوؤ | نیکانو خلقو له | بیشکه هغه | زمونږ دبندګانو |
| مونږ نیکانو ته هم دغه شان بدله ورکوؤ \| هغه زمونږ یو ایماندار بنده وو | | | | |
| الْمُؤْمِنِينَ ﴿٨١﴾ | ثُمَّ أَغْرَقْنَا | الْآخَرِينَ ﴿٨٢﴾ | | |
| مومنانو نه وو | بیا ډوب کړل مونږه | | | |
| بیامونور خلق [یعني کافران] غرق کړل | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او نوح علیه السلام مونږ ته آواز کړې وو، نو (اوګوره) چه مونږ د آواز ښه جواب ورکونکې یو. او مونږ هغه ته او د هغه کور والو ته د لوئې تکلیف نه نجات ورکړو. او مونږ هم د هغه نسل باقي اوساتلو او کوم خلق چه د هغه نه پس راغلل، په هغوی کښې مو دا روایت قائم کړو. (چه هغوی به دا وائي) سلام دې وی په نوح علیه السلام باندې په ټول عالم کښې. مونږ نیک عمل کونکو ته دغه شان بدله ورکوؤ. بې شکه هغه زمونږ د بندګانو مومنانو نه وو. بیا مونږ نور خلق په اوبو کښې غرق کړل.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ نَادَانَا نُوحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِيبُونَ ۚ﴾ [او مونږ لره نوح ﷺ [د نصرت دپاره راوبللو] یعنی دعاځ وکړه [پس] مونږ دده فریاد رسي وکړه او [مونږ ښه فریاد اوریدونکي یو ﴿وَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيمِ ۚ﴾ او مونږ ده لره او دده تابعینو لره د ډیرلوئ غم نه] کوم چه کفارو به دروغژن کولو او ازار به ئې ورته رسولو [نجات ورکړو] چه په طوفان سره مو کفار غرق کړل او دده تابعین مو بچ کړل ﴿وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُ هُمُ الْبَاقِينَ ۚ﴾ [او مونږ ددوی اولاد لره باقی پاتې کړو] دبل چانسل ونه چلیدو ﴿وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ ۚ﴾ [او مونږ دده دپاره په وروستو راتلونکو خلقو کښې داخبره] د اوږدې مودې دپاره [باقی پاتې کړه ﴿سَلَامٌ عَلَىٰ نُوحٍ فِي الْعَالَمِينَ﴾ چه سلام دې وی په نوح ﷺ [باند په عالم والوکښې] یعنی خدایځ دې کړی چه په دۀ ټول اهل عالم بنیادم پیریان او ملائك سلام لیږی ﴿إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾ مونږ مخلصانو ته داسې بدله ورکوو ﴿إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ﴾ بیشکه هغه زمونږ په ایماندارو بندګانو کښې وو ﴿ثُمَّ أَغْرَقْنَا الْآخَرِينَ﴾ بیا مونږ نور خلق غرق کړل] یعنی دبلې طریقې یعنی کافران خلق.

## معارف او مسائل

تیر شوې آیت کښې دا بیان شوې وو چې مونږ رومبی امتونو ته هم ویرونکی پیغمبران ﷺ لیږلی وو خواکثرو خلقو د نبی ﷺ خبره اونه منله، ځکه ئې انجام ډیر خراب شو، اوس دلته نه هم ددې اجمال څۀ تفصیل بیانولې شی، او په دې ترځ کښې دنورو پیغمبرانو ﷺ واقعات بیان کړې شوی دی. ددې آیتونو ځینې په اولنی آیت کښې د نوح ﷺ بیان شوې دې دنوح ﷺ تفصیلی واقعه په سورۀ هود کښې تیره شویده، دلته یو څو خبرې په خاص طور هم ددې آیتونو تفسیر سره تعلق لري ځکه اوس دهغې بیان کوؤ.

﴿وَلَقَدْ نَادَانَا نُوحٌ﴾ کښې فرمائیلې شویدی چې نوح ﷺ مونږ ته آواز کړې وو. اکثرو مفسرینو

Scanned with Ca

دې نه مطلب هغه دعا کول اخستې دی چې په سورهٔ نوح کښې داشان راغلې ده چې: ﴿رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ دَيَّارًا﴾ يعنې ائې زما ربه! په کافرانو کښې يو اوسيدونکې هم مه پرېږده. يا چې په سورهٔ قمر کښې داسې راغلې ده چې ﴿فَدَعَا رَبَّهٗ اَنِّيْ مَغْلُوْبٌ فَانْتَصِرْ﴾ يعنې زه پاتې راغلې يم زما مدد اوکړه. دادعا نوح ﷺ په هغه موقعه کړې وه چې قوم ئې په مخه سرکشی او نافرمانی اختيار کړې وه. اود دوئ ﷺ قوم دوئ ﷺ ته په دروغژن وئيلو باندې صبر اونکړو بلکه د دوئ ﷺ د شهيد کولو بندوبست ئې اوکړو.

﴿وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهٗ هُمُ الْبٰقِيْنَ﴾ يعنې اوموږ هم د دوئ ﷺ اولاد په ځائې پاتې اولرلو. داکثرو مفسرينو حضراتو په نزد ددې آيت مبارک مطلب دادې چې په طوفان نوح سره اکثر هلاک شو، هغې نه پس د بنيادمونسل د نوح ﷺ د دريو ځامنو سام، حام او يافث نه په دې شان اوچليدو چې د سام اولاد کښې اهل عرب او اهل فارس وغيره دی. د حام اولاد کښې د افريقې دملکونو خلق دی او څينو په کښې په هندوستان باشندگان هم شامل کړی دی او د يافث په اولاد کښې ترک منګول يا جوج ماجوج دی، مطلب دا چې نوح ﷺ سره په کشتئ کښې د سورو خلقو څيني صرف ددې دريو ځامنو نسل ئې اوچليدو د بل هيچا نسل اونه چليدو.

البته ډير کم عالمان ددې قائل پاتې شوی دی چې طوفان نوح په ټوله دنيا کښې نه بلکه صرف د عربو په زمکه راغلې وو، دهغوئ په نزد د آيت مطلب دا شو چې د عربو په زمکه کښې صرف دنوح ﷺ اولاد باقی پاتې شو. او هم د دوئ نه د عربو خلقو نسل اوچليدو. دې آيت کښې ددنيا په نورو خطو کښې د نورو د نسلونو د چليدلو نفی نه کيږی [بيان القرآن]([1]).

د مفسرينو حضراتو دريمه ډله دا وائی چې د نوح ﷺ طوفان خو په ټوله دنيا کښې راغلې وو خو په ټوله دنيا کښې دبنيادمو نسل يواځې د نوح ﷺ د اولادنه نه وو بلکه دهغې کسانو نه هم چليدلې دې کوم چې ورسره په کشتئ کښې سوارهٔ شوی محفوظ پاتې شوی وو. دا ډله په آيت کښې حصر حصر اضافی ګنړی او وائی چې دلته اصل مقصد دا بيانول دی چې په ډوبيدونکو خلقو کښې د بنيادمو نسل نه دې چليدلې [قرطبی]([2]).

دقرآن پاک د روانئ په لحاظ دا دريم قول ډير کمزورې او رومبې قول د ټولو نه زيات غوره ښکه دې چې ددې تائيد د څينو احاديثو نه هم کيږی. کوم چې امام ترمذی رحمه الله وغيره ددې آيت مبارک په تفسر کښې نيغ په نيغه درسول الله ﷺ نه روايت کړېدې. چې د سمره بن جندب رضی الله عنه نه روايت دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې سام دعربو د خلقو، حام د حبشو دخلقو او يافث د روم دخلقو نيکه دې، امام ترمذی رحمه الله دې حديث پاک ته حسن او امام حاکم رحمه الله ورته صحيح وئيلی دی [روح المعانی ص/۹۸ ج/۲۳]([3]).

﴿وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ ۝ سَلٰمٌ عَلٰى نُوْحٍ فِي الْعٰلَمِيْنَ﴾ يعنې موږ دوئ ﷺ دپاره وروستو راتلونکو خلقو کښې دا خبره باقی اولرله چې په نوح ﷺ دې سلام وی د جهان په خلقو کښې. ددې

---

[1]) تفسير بيان القرآن: ج ۹، ص ۱۲۶

[2]) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۸۹

[3]) تفسير روح المعاني: ج ۱۷، ص ۱۴۳، وجامع الترمذی، أبواب المناقب، باب فی فضل العرب: ج ۲، ص ۲۳۰، والمستدرک للحاکم، رقم الحديث: ۴۰۰۶

Scanned with Ca

مطلب دادې چې نوح ؑ نه پس چې کوم خلق پیدا شو د هغوئ په نظر کښې مونږ نوح ؑ لره دومره عزت مند او قدرمند جوړ کړو چې هغوئ به تر قیامته پورې نوح ؑ دپاره دسلامتئ دعاګانې کوی. څنګه چې په واقع کښې داسې ده چې کوم مذهبونه آسماني کتابونو ته منسوب دی ، هغوئ ټول د خیرمې د نوح ؑ د پیغمبرئ او پاکوالی قائل دی. د مسلمانانو نه علاوه یهودیان او عیسایان هم دوئ ؑ لره خپل پیشوا او مقتدا مني.

ثُمَّ اَغْرَقْنَا | الْاٰخَرِیْنَ۝ | وَاِنَّ | مِنْ شِیْعَتِهٖ
بیا ډوب کړل مونږه | هغه نور خلق | او بیشکه | یو ډلې دهغه نه
| ............................ اودهغه په طریقه روانوخلقو کښې

لَاِبْرٰهِیْمَ۝ | اِذْ جَآءَ | رَبَّهٗ | بِقَلْبٍ سَلِیْمٍ۝ | اِذْ قَالَ
خامخا ابراهیم وو | کله چې راغې هغه | رب خپل ته | په زړه سلامت سره | کله چې اووئیل هغه
ابراهیم ؑ هم وو | چې رب ته په صفا روغ زړه متوجه شو | ............څه وخت چې هغه خپل پلار

لِاَبِیْهِ | وَقَوْمِهٖ | مَاذَا | تَعْبُدُوْنَ۝ | اَئِفْكًا اٰلِهَةً
پلار خپل ته | او قوم خپل ته | داڅه څیزونه دی | چې تاسو ئې عبادت کوئ | آیا د دروغو خدایان
اوخپل قوم ته اووئیل | چې تاسو دڅه څیزعبادت کوئی ؟ | آیا د الله ﷻ نه سوا خان دپاره د

دُوْنَ اللّٰهِ | تُرِیْدُوْنَ۝ | فَمَا ظَنُّكُمْ | بِرَبِّ الْعٰلَمِیْنَ۝ | فَنَظَرَ
بې دالله نه | غواړئ تاسو | پس څه دې ګمان ستاسو | په رب العالمین باندې | بیا نظر اوکړو هغه
دروغو معبودان لټوئ | نودرب العالمین په حق کښې ستاسو څه خیال دې | بیا ابراهیم ؑ شا طرف

نَظْرَةً | فِی النُّجُوْمِ۝ | فَقَالَ | اِنِّیْ سَقِیْمٌ۝ | فَتَوَلَّوْا | عَنْهُ
یو نظر | په ستورو کښې | پس وې وئیل | چې زه ناجوړه یم | پس اوګرځیدل هغوئ | دهغه نه
ته اوکتل | اووائې ئې اووئیل چې زه ناجوړه یم | ..................غرض دا چې هغوئ ترې لاړل

مُدْبِرِیْنَ۝ | فَرَاغَ | اِلٰۤى اٰلِهَتِهِمْ | فَقَالَ | اَلَا تَاْكُلُوْنَ۝
شاکونکې هغه ته | پس پټ ورغې | معبودانو دهغوئ ته | پس وې وئیل | آیا تاسوولې نه خورئ [دا طعام]
روان شو | ابراهیم دهغوئ معبودانو ته ورغلو | نوورته ئې اووئیل چې آیا تاسو خوراک څکاک نه کوئی

مَا لَكُمْ | لَا تَنْطِقُوْنَ۝ | فَرَاغَ عَلَیْهِمْ | ضَرْبًا | بِالْیَمِیْنِ۝
څه اوشو په تاسو | چې خبرې نه کوی | پس ورغې په هغوئ باندې | په وهلو سره | په ښي لاس
داڅه دربانذې شوی دی؟ | تاسوخبرې هم نه کوئ؟ | ابیائې په ښی لاس پوره قوت سره دهغوی ماتول شروع کړل

فَاَقْبَلُوْۤا | اِلَیْهِ | یَزِفُّوْنَ۝ | قَالَ | اَتَعْبُدُوْنَ | مَا
پس راغلل هغوئ | ده ته | چې منډې ئې راوهلې | اووئیل هغه | آیا تاسو عبادت کوئ | دهغه څیزونو
نو ورته واپس په منډو راغلل | ............ ابراهیم ؑ اووئیل چې تاسو دهغه بتانو عبادت کوئی

Scanned with Ca

تَنۡحِتُوۡنَ ۙ﴿۹۵﴾ وَاللّٰهُ خَلَقَكُمۡ وَمَا

چي تاسو ئې تراشئ [په لاسونو] | او حال دا چې الله | پیدا کړي يې تاسو | او هغه څيزونه

چې په خپلو لاسونو ئې تراشئ | اوحال دا دې چې الله تعالی تاسو اوستاسوجوړ کړي څيزونه هم

تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۹۶﴾ قَالُوا ابۡنُوۡا لَهٗ بُنۡيَانًا فَاَلۡقُوۡهُ

چې تاسو ئې جوړوئ | اووئیل هغوئ | جوړ کړئ | دپاره دده | يو غټ خانې [دوور] | پس اوغورزوئ ده لره

پیدا کړی دی | ............هغوئ اووئیل چې دهٔ دپاره اور تيا رکړئی | ..............نو دې

فِي الۡجَحِيۡمِ ﴿۹۷﴾ فَاَرَادُوۡا بِهٖ كَيۡدًا فَجَعَلۡنٰهُمُ

دوور په سرو لمبو کښې | پس اراده اوکړه هغوئ | دهغه سره|ديوخطر ناك كاركولو |پس اوگرځول مونږه هغوئ

بل اور کښې وراوغورزوئ | ..........نو هغوئ د ابراهیم ﷺ خلاف سازش شروع کړو

الۡاَسۡفَلِيۡنَ ﴿۹۸﴾

ښکته [ذليله] |

نومونږ هغوئ ناکامه کړل |

## آسان ترجمه قرآن

اوهم دهغه په طريقې باندې چليدونکوله يقيناً ابراهيم عليه السلام هم وو. چه کله هغه خپل پروردګار ته په پاک زړه سره راغلو. چه کله هغه خپل پلار او قوم ته اووئیل چه تاسو د کومو څيزونو عبادت کوئ؟ آيا د الله تعالی نه ماسوا د دروغو معبودان تاسو غواړئ؟ نو بيا چه کوم ذات د ټولو جهانونو پالونکې دې، دهغه باره کښې ستاسو څه خیال دې؟ ددې نه (څه موده) پس هغه ستورو طرف ته يو نظر اوکتل. او وے وئيل چه: زما طبعيت خراب دې نو هغه خلق اوګرځيدل دده نه شاکولکې، پس لاړو په معبودانو (يعنې بتانو) د هغوی پسې، او (هغوی ته ئې) اووئيل آيا تاسو خوراک نه کوئ؟ تاسو ته څه اوشو، چه خبرې نه کوئ؟ بيا هغه په پوره قوت سره (دهغه بتانو) په وهلو باندې شروع شو. په دې باندې د هغه د قوم خلق په منډه باندې هغه ته راغلل. ابراهيم عليه السلام اووئيل آيا تاسو ددې (بتانو) عبادت کوئ. چه تاسو ئې په خپله تراشئ؟ حالانکه الله تعالی تاسو هم پيدا کړې يئ. اوڅه چه تاسو جوړوئ، هغې لره هم. هغې خلقو اووئيل: د ابراهيم دپاره يو عمارت جوړ کړئ، او ده لره د لمبو والا اور کښې اوغورزوئ دغه شان هغوی د ابراهيم عليه السلام خلاف يوه بده منصوبه جوړول اوغوختل، ليکن مونږ هغوی لره ذليله کړل.

## خلاصه تفسير

﴿وَاِنَّ مِنۡ شِيۡعَتِهٖ لَاِبۡرٰهِيۡمَ ﴿۸۳﴾﴾ [او دنوح]ﷺ [دطريقې والوڼه] يعنی دهغو خلقو نه کوم چه په اصولی عقيدو کښې دنوحﷺ سره متفق وو [ابراهيم]ﷺ [هم وو] دده هغه واقعه د يادولو قابله ده ﴿اِذۡ جَآءَ رَبَّهٗ بِقَلۡبٍ سَلِيۡمٍ ﴿۸۴﴾﴾ [هر کله چه هغه په صفا زړه سره خپل رب طرف ته متوجه شو] دصفا زړه مطلب دادې چه دده زړه د بدې عقيدې او دريا دجذبې نه پاك وو ﴿اِذۡ قَالَ لِاَبِيۡهِ وَقَوۡمِهٖ مَاذَا تَعۡبُدُوۡنَ ۚ﴾ [هر کله چه ده خپل پلار ته او خپل قوم ته] کوم چه بت پرست وو [وفرمائيل چه

Scanned with Ca

تاسو دځه] واهیاتو [څیزونو عبادت کوئ﴿اَىِٕفۡكًا اٰلِهَةً دُوۡنَ اللّٰهِ تُرِيۡدُوۡنَ ؕ﴾ ایا ددروغو معبودانو لره دالله تعالی نه سوا] معبودان جوړول [غواړئ ﴿فَمَا ظَنُّكُمۡ بِرَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ۝﴾ نو ستاسو په رب العلمین باند څه خیال دې؟] یعنی تاسو چه کوم دهغه عبادت پرېښودې دې نو ایا دهغه په معبود کیدو کښې موڅه شبهه دهٔ؟ یعنی اول خو داسې نه وو پکار اوکه څه شبهه وی نو هغه لرې کړئ غرض دغسې بحث مباحثه کیده دیو وار واقعه ده چه ددوی یو خوشحالی راغله قوم دهٔ ته هم درخواست وکړو چه زمونږ میلې ته راسره لاړ شه ﴿فَنَظَرَ نَظۡرَةً فِى النُّجُوۡمِۙ ۝﴾ [پس ابراهیمؑ [ستوروته دغور په یو نظر سره وکتل ﴿فَقَالَ اِنِّىۡ سَقِيۡمٌ ۝﴾ اووئ وئیل چه زهٔ بیمار کیدونکې یم] په دې وجه میلې ته نه شم تلې ﴿فَتَوَلَّوۡا عَنۡهُ مُدۡبِرِيۡنَ ۝﴾ [غرض هغو خلقو] ددهٔ داعذر واوریدو [دې ئې پرېښودو لاړل] چه برناحقه به په پیمارئ کښې دهٔ ته او ددهٔ په وجه نورو ته تکلیف وی ﴿فَرَاغَ اِلٰٓى اٰلِهَتِهِمۡ﴾ نودې] یعنی ابراهمؑ [ددوی بتانو ته ورننوتو او] مسخرې په طورئ هغوته ﴿فَقَالَ اَلَا تَاۡكُلُوۡنَ ۚ﴾ [ووئیل چه ایاتاسو] داچه ستاسو په وړاند خوراکونه ایښودې شوی دی [خورئ ولې نه] او ﴿مَا لَـكُمۡ لَا تَنۡطِقُوۡنَ ۝﴾ [تاسوله څه وشو تاسو خبرې هم نه کوئ؟ ﴿فَرَاغَ عَلَيۡهِمۡ ضَرۡبًۢا بِالۡيَمِيۡنِ ۝﴾ بیا ئې په قوت سره په دوی په وهلوشروع وکړه] او په تبر وغیره سره ئې هغه مات رامات کړل [پس] هغه خلق چه هرکله ددې نه خبرشول نو ﴿فَاَقۡبَلُوۡۤا اِلَيۡهِ يَزِفُّوۡنَ ۝﴾ هغه خلق دهٔ ته په منډه] په ویره او غصه کښې [راغلل او] خبرې شروع شوې ﴿قَالَ اَتَعۡبُدُوۡنَ مَا تَنۡحِتُوۡنَ ۙ﴾ [ابراهیمؑ [وفرمائیل ایاتاسو ددې څیزونو عبادت کوئ کوم چه په خپلو لاسونو تراش کوئ] نو چه څوك تاسوته محتاج وی هغه به خدائ څنګه وی ؟ ﴿وَاللّٰهُ خَلَقَكُمۡ وَمَا تَعۡمَلُوۡنَ ۝﴾ [حال دادې چه تاسولره او ستاسو جوړو شوو دې څیزونو] ټولولره [الله تعالی پیدا کړی دی] پس عبا دت دهغه کول پکاردی ﴿قَالُوا ابۡنُوۡا لَهٗ بُنۡيَانًا﴾ [هغه خلقو] هرکله چه په مقابله کښې مغلوب شول نو دغصې نه ئې خپل مینځ کښې [ووئیل چه دابراهیمؑ [دپاره یوه آتش خانه جوړه کړئ] او په هغې کښې اور بل کړئ ﴿فَاَلۡقُوۡهُ فِى الۡجَحِيۡمِ ۝﴾ [پس دهٔ لره په دې بل کړی اور کښې وروغورزوی ﴿فَاَرَادُوۡا بِهٖ كَيۡدًا فَجَعَلۡنٰهُمُ الۡاَسۡفَلِيۡنَ ۝﴾ [غرض هغو خلقو دحضرت ابراهیمؑ سره بدکول او غوښتل یې] چه دې هلاك کړی [پس مونږ د هغو تدبیر ناکامه کړو] چه قصه ئې په سوره انبیاء کښې تیره شوې ده

### معارف او مسائل

د نوحؑ د واقعې نه پس قرآن کریم د ابراهیمؑ د ژوند مبارک باره کښې دوه واقعې بیان کړې دی. دا دواړه واقعې داسې دی چې په کښې ابراهیمؑ خالص دالله ﷻ دپاره لوئې قربانئ پیش کړې دی ، دې کښې ړ ومبئ واقعه د ابراهیمؑ اور کښې د ورغوځولو ده چې تفصیلات ئې په سورة انبیاء کښې تیر شوی دی ، البته دلته چې کوم طرز بیان دې دهغه په وجه د یو څو خبرو وضاحت ضروری دې.

﴿وَاِنَّ مِنۡ شِيۡعَتِهٖ لَاِبۡرٰهِيۡمَ ۘ﴾ شیعة په عربی ژبه کښې هغه ډلې ته وائی جې خپل مینځ کښې بنیادی نظریاتو او په طور طریقو کښې یو شان وی دلته هرکله چې دشیعته ضمیر نوحؑ ته راجع دې نو مطلب ئې دا شو چې ابراهیمؑ د خپل پیشرو پیغمبر نوحؑ په طریقو باندې وو او ددین په بنیادی اصولو کښې د دواړو مکمل اتفاق وو ، او دا هم کیدیشی چې د

Scanned with Ca

دوارو شریعتونه هم یو شان یا خپل مینځ کښې نږدې نږدې وو.
معلومه دې وی چې د ځینې تاریخی روایاتو تر مخه نوح ﷺ او د ابراهیم ﷺ ترمینځه د دوؤ زرو شپږو سوؤ اوځلویښتو کالو مودې فرق دی. او د دوارو ترمینځه دهود ﷺ او صالح ﷺ نه سوا بل څوك پیغمبر نه دې تیر شوی [کشاف ص/۴۸ ج/۴] ([1]).

﴿إِذْ جَآءَ رَبَّهُۥ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ﴾ ددې رسا لفظی معنی داده چې ، کله چې هغوئ ﷺ راغلل خپل پروردګار ته صفا زړه راوړو سره ، پروردګار ته د راتلو مطلب هغه ته رجوع کول ، ورته مخ کول او عبادت ئې کول وی. صفا زړه سره د قید لګولو کښې دې ته اشاره ده چې د الله ﷻ هیڅ قسم عبادت تر هغې د قبلیدو جوګه نه دې تر څو چې د عبادت کوؤنکی زړه د غلطو عقیدو او خرابو جذباتو نه پاك نه وی. که یو عبادت کوؤنکې هر څومره عبادت په څومره محنت سره اوکړی خو چې عقیده کښې ئې فرق وی نو دغه عبادت ئې د قبلیدو جوګه نه دې. دغسې که د عبادت کوؤنکی اصل مقصد د الله ﷻ د رضا حاصلولول نه وی بلکه د خودنې دپاره وی یا څه د مالی فائد اخستو دپاره وی نو داسې عبادت د تعریف کولو جوګه نه دې. د ابراهیم ﷺ الله ﷻ ته ماتې کول ددې ټولو خرابیانو نه پاك وو.

﴿فَنَظَرَ نَظْرَةً فِى ٱلنُّجُومِ ۝ فَقَالَ إِنِّى سَقِيمٌ﴾ ددې آیتونو په شا واقعات دادی چې د ابراهیم ﷺ قوم به یو خاص ورځ نمانځله چې هغه ورځ راغله نو په دغه یوه ورځ کښې ئې ابراهیم ﷺ ته په جشن کښې ځان سره د شریکیدو بلنه ورکړه چې ددې په لیدو سره شاید ابراهیم ﷺ زمونږ طرفته راشی. او زمونږ دین قبول کړی. [در منثور ابن جریر وغیره] ([2]).

خو ابراهیم ﷺ ددغې واقعې نه څه بله فائده اخستل غوښتل. د ابراهیم ﷺ اراده دا وه چې کله ټول قوم جشن ته لاړ شی نو زه به د دوئ د بت خانو ټول بتان مات کړم چې په واپسئ د خپلو بتانو بې وسی اووینی نو کیدیشی چې ددې نه بدګمانه شی ، په یو الله ﷻ باندې ایمان راوړی او شرك نه توبه ګار شی. په دې غرض ابراهیم ﷺ هغوئ سره د تلو نه انکار اوکړو خو دې دپاره ئې طریقه دا اختیار کړه چې اول ئې په شخ نظر ستورو ته اوکتل او بیا ئې اوفرمائیل چې زه ناجوړه یم. دقوم خلقو هم معذور اوګڼلو ، دغلته ئې پریښودو او پخپله جشن دپاره بهر ته لاړل.

دې واقعې سره ګڼ تفسیری اوفقهی بحثونه تعلق لری ، دلته دهغې خلاصه وړاندې کولې شی.

**په ستورو باندې دنظر اچولو مقصد:** رومبې سوال دادې چې ابراهیم ﷺ د جواب ورکولو نه وړاندې په ستورو باندې نظر اچولو کښې څه مقصد وو؟ ځینې حضرات دې ته یو اتفاقی او بې غرضه عمل وائی. ولې چې کله یو انسان څه سوچ و فکر کوی نو داسې په بې اختیارئی او بې غرضئ سره آسمان ته ګوری. کله چې ابراهیم ﷺ ته په جشن کښې د شرکت دعوت ورکړې شو نو ددې بلنې د رد کولو دپاره په سوچ کښې شو چې څنګه ئې رد کړم ، په دې حالت کښې هسې بې اختیاره ستورو ته ئې پام اوکړو او روستو ئې جواب ورکړو. په ستورو باندې د نظر اچولو دا تشریح بظاهره بې ګردوغبار معلومیږی خو د قرآنی طرز تر مخه دې ته

---

[1] ) تفسير الكشاف تحت هذه الآية: ج ٥، ص ٤٧١

[2] ) تفسير الطبرى: ج ١٨، ص ٤٥٨ تحت هذه الآية.

صحيح وئيل مشکل دی . اول خو ځکه چې قرآن پاک د خپل طرز په ډول د واقعاتو صرف ضروري برخې بيانوي او غير ضروري تفصيلات پريږدي . پخپله هم په دې ايتونو کښې د واقعې ګڼې برخې محذوفې دی . تر دې پورې چې ددې شاته پوره څيزونه پس منظر هم بيان کړې شوی نه دی . نو دا باور کول ډير ګران دی چې قرآن پاک د واقعې شاته څيزونه بيانول خو په دې وجه پريخودل چې خبره اوږده نشی اويو بې اختياره غيرضروري عمل بيان کړو چې واقعې سره يې دلرې تعلق هم نشته بل داچې دغه عمل که غيرضروري وو او ستوروته په کتو کښې څه خاص حکمت په وړاندې نه وو ، بلکه بې اختياره ئې ورته کتلې وو نو د عربۍ ژبې د قواعدو ترمخه : ﴿فَنَظَرَ نَظۡرَةً فِي ٱلنُّجُومِ ۝ فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٞ﴾ وئيل پکار وو . ﴿فِي ٱلنُّجُومِ﴾ نه وو پکار .
دې نه معلومه شوه چې ستورو ته په ښخ کتلو کښې څۀ خاص مصلحت د ابراهيم ﷺ په وړاندې وو ځکه قرآن پاک په اهميت سره ددې بيان کړېدې . اوس دغه څه مصلحت وو؟ ددې جواب کښې اکثرو مفسرينو دا فرمائيلی دی چې د ابراهيم ﷺ قوم د علم النجوم شيدايان وو ، هغوئ به د کار کول يا نه کول ستورو ته په کتو سره تاکل . ابراهيم ﷺ ستورو ته کتلو سره هغوئ ته چې کوم جواب ورکړې دې د هغه مقصد دا وۀ چې خلق دا اوګڼړی چې ابراهيم ﷺ د خپلې بيمارئی باره کښې چې څه فرمائی هغه څه هوائی خبره نه ده بلکه د ستورو په چلن باندې په غور کولو هغه خبره کوی. اګر چې ابراهيم ﷺ د علم نجوم قائل نه وو صرف په دې غرض ئې داسې کول چې په جشن کښې ورسره د شريکيدو نه بچ شی . هرکله چې په خوله ئې د علم نجوم څه حواله ورنکړه ، او دا ئې هم او نه خودل چې زما مطلب ستورته کتلو کښې د علم نجوم نه مدد اخستل دی ځکه په دې کښې د څه دروغ وئيلو يو طرف نه وو.
دلته داشبه کيديشی چې د ابراهيم ﷺ په داسې کولو سره ددغې کافرانو حوصله اوچته شوه چې نه يواځې دعلم نجوم قائل وو بلکه ستوری ئې ددنيا په واقعاتو کښې حقيقی مؤثر ګڼړل . نو ددې جواب دادې چې حوصله اوچتولو خبره به ئې هله وی چې ددې نه روستو ابراهيم ﷺ ددوئ په ګمراهيانو باندې رد نه وې کړې ، دلته خو دا ټول بندوبست هم دې دپاره جاری کيدو چې دوئ ته د توحيد بلنه په زياته اثرناکه طريقه ورکړی ، نود معمولی ډيل کولو نه پس ابراهيم ﷺ د قوم يوه يوه ګمراهی ښه په ډاګه بيان کړه . په دې شان صرف پدې مبهم عمل په جشن کښې د شريکيدو نه خپل ځان ايسارول وو او دا ئې مطلب وو چې د حق دبلنې دپاره زياته اثرناکه فضا پيدا کيږی . ددې مقصد دپاره د وهم ورکولو طريقه خالص په حکمت باندې بنا ده . چې هيڅ معقول اعتراض پرې نشی کيدې . ستورو ته د کتودا تشريح اووضاحت کول د اکثرو مفسرينو نه منقول دی. او حکيم الامت تهانوی رحمه الله هم په بيان القرآن کښې دې لره اختيار کړی دی[1] .

**دعلم نجوم شرعي حيثيت:** ددې آيت مبارک لاندې دويمه مسئله داده چې د علم نجوم شرعی حيثيت څه دې ؟ دلته په لنډو ددې سوال جواب عرض کولې شی .
دا خو يو غوڅۀ شوې خبره او حقيقت دې چې الله ﷻ په نمر ، سپوږمۍ او ستورو کښې څه داسې خاصيتونه ايښی دی چې په انسانی ژوند به اثرغورزوی ، په دې کښې ځينې خاصيتونه

[1] تفسير بيان القرآن: ج ۹، ص ۱۲۸

هغه دی چې هر څوك ئې وينی ګوری لکه دنمر دنزدې والی او لرې والی نه ګرمی او يخنی پيدا کيدل ، دسپوږمئ د ښکته کيدو او پورته کيدو نه په سمندر کښې چپې راتلل وغيره .
اوس ځينې حضرات خو د اوائی چې ددې ستورو خاصيتونه صرف دومره دی چې څومره په عامو ليدلو سره معلوميږی . او ځنې خلق وائی چې ددې نه علاوه د ستورو دګردشونونه څه داسې خواص پيدا کيږی چې د انسان دژوند په اکثرو معاملو باندې اثر کوی . يو انسان دپاره ديو ستوری په يو خاص برج کښې ورتلل د خوشحاليانو او کاميابو سبب جوړيږی . او چا دپاره د غمونو او ناکامو ، بيا ځينې خلق هم دغه ستوری د کاميابو اوناکامو په معامله کښې مؤثر حقيقی منی او ځينې خلق وائی چې مؤثر حقيقی خو الله ﷻ دې خو هغه پاک ذات ستورو ته داسې خاصيتونه ورکړی دی ، په دې لحاظ د نورو سببونو پشان دا هم د انسان دکاميابو او ناکامو سببونه جوړيږی .
څوک چې ستوری مؤثر حقيقی ګڼړی ، او وائی چې دا هر څه هم دستورو په ګردش سره کيږی ، نو بيشکه دا خيال غلط او باطل دې . اودا عقيده انسان لره دشرک حد ته رسوی . اهل عربو به د باران باره کښې هم دا عقيده لرله چې يو خاص ستورې باران وروی . او هغه باران دپاره دمؤثر حقيقی شان لری ، رسول الله ﷺ ددې عقيدې سخت ترديد کړې دې . چې په احاديثو کښې ښۀ په صفا بيان سره راغلی دی[1] .
اوکوم خلق چې مؤثر حقيقی خو الله ﷻ منی خو ورسره دا هم وائی چې الله ﷻ ستوروته داسې خاصيتونه ورکړی دی چې دسبب په درجه کښې د انسان په ژوند باندې اثر غورزوی . څنګه چې باران ورونکې خو هم الله ﷻ دې خو ددې ښکاره سبب وريځ ده ،داشان د کاميابو او ناکامو اصل جرړه خو د الله ﷻ اراده ده خو دغه ستوری د کاميابو او ناکامو سبب جوړيږی .
نو دا خيال خو شرک نه دې او د قرآن پاک او حديث نه ددې خيال نه تصديق کيږی اونه ترديد ، نو دا څه لرې خبره نه ده چې الله ﷻ دستورو په ګردش او راختو اوډوبيدو کښې څۀ داسې اثرات ايخودی وی ، خو ددې اثراتو د لټون کولو دپاره د علم نجوم حاصلول په دې علم باندې اعتماد کول او ددې په بنا دمستقبل باره کښې فيصلې کول په هر حال منع او ناجائزه دی . اوپه احاديثو کښې ئې منع راغلې ده . د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د روايت مطابق رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چې : اذاذکر القدر فامسکوا واذاذکرت النجوم فامسکوا واذاذکر اصحابی فامسکوا[2]
کله چې د تقدير بحث شروع شی نو په خائې اودريږی او چې په ستورو بحث شرع شی نو په خائې اودريږئ او چې زما د صحابه کرامو رضی الله عنهم بحث شروع شی [يعنی د هغوئ خپل مينځ کښې د اختلافاتو ذکر اوشی] نو په خائې اودريږئ يعنی خپله رائې په کښې مه چلوئ .
[تخريج د عراقی د احياء العلوم په حواله دطبرانی او دې حديث پاک ته عراقی حسن وئيلی دی .
او عمر فاروق رضی الله عنه فرمائيلی دی چې : تعلموا من النجوم ما تهتدون به فی البر والبحر ثم امسکوا[3]
يعنی په ستورو سره تاسو دومره علم حاصل کړئ چې په اوچه او درياب کښې پرې لارې معلومولې شئ ، بيا ورپسې نور څه مه کوئ هم په دغه ځائې اودريږئ [احياء العلوم دغزالی رحمه الله]

---

[1] ) صحيح البخاری، کتاب الصلاة، باب يستقبل الامام الناس اذا سلم: ج ۱، ص ۱۱۷
[2] ) تخريج احاديث الاحياء للحافظ العراقی، رقم الحديث: ۷۸، ج ۱، ص ۷۸
[3] ) قد وجدت فی مصنف ابن ابی شيبة: ج ۱۰، ص ۷۰

Scanned with Ca

ددې ممانعت نه د ستورو د خاصيتونو او اثراتو نه انكار نه لازميږي . خودې خاصيتونو او اثراتوپسې كيدل او خپل قيمتي وختونه په كښې ضائع كول منع كړې شوي دي . امام غزالي رحمه الله په احياء العلوم كښې په دې باندې تفصيلي بحث كړې دې . او ددې ممانعت ګڼر حكمتونه ئې خودلي دي .

علم نجوم نه دمنع كولو اودې ته د بد وئيلو رومبې حكمت خو دادې چې كله په دې علم كښې بوښت شي نو آخركار هغه هر څه د ستورو نه ګڼړل شروع كړي . مطلب ئې دا راوځي چې بيا ستوري حقيقي مؤثر ګڼري . چې مشركانه عقيدې ته ئې ورولي .

دويم حكمت ئې دادې چې ستورو كښې دالله ﷻ دايخودي خاصيتونو او اثراتو د يقيني علم حاصلولو لار سوا د وحي نه بله نشته . د ادريس عليه السلام باره كښې د احاديثو نه ثابت دي چې ورته الله ﷻ داسې څه علم وركړې وو ، خو هغه علم اوس دنيا كښې ځكه پاتې نشو چې دهغې بنياد دالله ﷻ په وحي باندې وو . اوس دعلم نجوم ماهران صرف د اټكل او اندازې غشي په كښې اولي چې يقيني علم پرې نه حاصليږي . نو د نجوميانو بې شميره پيشنګويانې هره ورځ غلطې ثابتيږي . چا ددې علم په باره كښې څه ښه تبصره كړې ده :

مفيده غير معلوم و معلومه غير مفيد [يعني د علم نجوم فائده مند برخه چاته معلومه نه ده او خلقوته معلومه برخه ئې فائده مند نه ده].

علامه آلوسي رحمه الله په روح المعاني كښې د تاريخي واقعاتو داسې ګڼر مثالونه پيش كړي دي چې د علم نجوم د منلې شوؤ قاعدو تر مخه يوه واقعه چې څنګه راپيښيدونكې وه په حقيقت كښې هغه دهغې خلاف راپيښه شوه . نو كومو لويو لويو خلقو چې ددې علم په حاصلولو كښې عمرونه تير كړي دي هغوئ په آخر كښې په دې وئيلو مجبوره شوي دي چې ددې علم انجام داندازې او اټكل نه سوا بل هيڅ نه دې ، يو مشهور منجم كوشيار ديلمي په علم نجوم باندې خپل كتاب المجمل في الاحكام كښې ليكلي دي چې :

علم نجوم مدلل علم نه دې ، په دې كښې د انسانانو دوسوسو او ګمانونو دپاره ډير ګنجائش دي . [روح المعاني جلد :۲۳ ص/۱۱۲](۱).

علامه آلوسي رحمه الله د علم نجوم د نورو ګڼرو عالمانو داسې قسم اقوال نقل كړي دي ، بهر حال دا خبره غوڅه شويده چې داعلم څۀ يقيني علم نه دې او په دې كښې د غلطيانو بې حده احتمالات شته دې . خو سره ددې دې علم كښې چې كوم خلق وربوښت شوي دي هغوئ دې علم ته د يقيني علم درجه وركوي او په دې بنا دمستقبل فيصلې پرې كوي . هم په دې وجه دنورو په باره كښې خرابې رائې قائموي ، دټولو نه غټه خبره ده چې دا د دروغو ګمان اونشه كله خوانسان د علم غيب دعوؤ ته رسوي . او ښكاره خبره ده چې دې ټولو خبرونه بې شميره فسادونه راولاړيږي .

د علم نجوم دممانعت دريمه درجه داده چې دې بې فائدې علم كښې د عزت عمر هسې ضائع كيږي . هر كله چې ددې علم نه څۀ يقيني نتيجه نه رابرخيره كيږي نو ددنيا په كارونو كښې هم داڅه زياته فائده نشي وركولې . نو داسې څه بې فائدې څيز پسې كيدل داسلامي شريعت

(۱) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ۱۷، ص ۱۷۵

Scanned with Ca

روح او مزاج نه بیخی خلاف دی. په دې وجه دا منع کړې شوی دی.

**د ابراهیم ﷺ د ناروغتیا مطلب:** دې آیت سره تعلق لرونکې دریمه مسئله داده چې ابراهیم ﷺ دخپل قوم د بلنې په جواب کښې چې: ﴿إِنِّي سَقِيمٌ﴾ اووئیل نو آیا ابراهیم ﷺ واقعي بیمار وو؟ دغه ناروغتیا قرآن کریم په ګوته کړې نه ده خود صحیح بخاری دیو حدیث نه معلومیږي چې ابراهیم ﷺ دغه وخت داسې ناروغه نه وو چې ګنې هغوئ سره میلې ته تلو نه پاتې وو[1]، بیا نو بیا دغه وخت ابراهیم ﷺ داخبره څنګه اوکړه؟

ددې جواب د جمهورو مفسرینو په نزد دادې چې پدې الفاظو سره هغوئ توریه کړې وه. توریه داسې خبرې ته وائی چې ویونکې ئې دظاهر نه خلاف څه لرې معنی تر مراد واخلی چې واقعي سره مطابق وی. نو دلته دابراهیم ﷺ مراد څه بدنی ناروغتیا نه وه، ددې اصل مراد باره کښې دمفسرینو رائې مختلفې دی، ځینو ترې دا مراد اخستې دې چې دهغوئ طبیعت د دوئ دمشرکانه حرکاتو په وجه قبض شوې وو، څنګه چې ﴿ سقیم ﴾ لفظ پرې دلیل داسې جوړیږی چې سقیم ډیرې سپکې اوکمزورې ناروغتیا ته وائی. پښتو کښې هم ددې ترجمه داسې کیږی چې طبیعت مې خراب دې. ښکاره خبره ده چې دې جمله کښې د طبعی انقباض د مفهوم هم پوره ګنجائش شته.

ځینې حضراتو فرمائیلی دی چې هغوئ ترې دا مطلب واخستو چې زۀ ناروغه کیدونکې یم، څنګه چې عربی ژبه کښې داسم فاعل صیغه اکثر د آئنده زمانې دپاره استعمالیږی. لکه قرآن کریم هم چې رسول الله ﷺ ته خطاب کوی نو فرمائی:

[إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ]ددې دظاهری الفاظو ترجمه داسې هم کیدیشی چې تاسوهم مړۀ یئ او دوئ هم مړۀ دی. لیکن ظاهره داده چې دلته مراد دا معنی ده چې تاسو به هم مړۀ کیږئی او هغوئ به غه مړۀ کیږی. داشان د: (إِنِّي سَقِيمٌ) معنی ابراهیم ﷺ دا مراد اخستې وه چې څه بیماریدو والا یم. اودا یې په دې وجه اوفرمائیل چې دمرګ څخه وړاندې وړاندې د هر انسان بیماریدل یو یقینی امر دې. که څوک په ظاهره بیمار نه وی نو بیابه هم دمرګ نه لږ شان وړاندې ئې طبیعت ناسازه شی.

که په دې تاویلاتو سره د چا تسلی نه کیږی نو بیادا توجیه کول د ټولو نه زیاته غوره ده چې دغه وخت ابراهیم ﷺ اګر چې معمولی ناروغه وو خو بیماری داسې نه وه چې د جشن ته نشو تللې. دوئ د خپلې معمولی بیمارۍ ذکر په داسې ماحول کښې اوکړو چې آوریدونکی په دې پوهه شی چې دوئ ﷺ ډیر زیات بیمار دی چې ددې په وجه دوئ واقعی مونږ سره نشی تللې. د ابراهیم ﷺ د توریه دا تشریح د ټولو څخه زیاته معقوله او تسلی بخش ده.

ددې تشریح نه دا هم واضحه کیږی چې د بخاری شریف یو حدیث پاک کښې د: ﴿إِنِّي سَقِيمٌ﴾ دپاره د کذبة یعنی د دروغو وئیلو لفظ چې استعمال کړې شوې دې[2] دهغې مطلب هم دغه توریه ده، چې ظاهری شکل ئې د دورغو دې، لیکن د متکلم د مراد په لحاظ سره هغه دورغ نه دی پخپله ددې حدیث پاک په ځینې روایتونو کښې دا الفاظ هم راغلی دی.

---

[1]) صحیح البخاری، کتاب الأنبیاء، باب قول الله تعالٰی واتخذ الله ابراهیم خلیلاً: ج ۱، ص ۴۷۴

[2]) صحیح البخاری، کتاب احادیث الأنبیاء، باب قول الله تعالٰی واتخذ الله ابراهیم خلیلاً: ج ۱، ص ۴۷۴

Scanned with Ca

﴿ما منها كذبة الا ماحل بها عن دين الله﴾(۱) په دې کښې داسې دروغ نشته چې د الله ﷻ د دين د دفاع او مرستې دپاره به نه وي وئيلې شوي. ددې الفاظو پخپله دا واضحه کړه چې دلته کذب د خپلې عامې معنى نه جدا يو مفهوم لري ددې حديث پاک باره کښې څه قدرې تفصيلي بحث د سورة انبياء آيت: ﴿قَالَ بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ﴾(۲) لاندې تير شوې دې.

**د توريې شرعي حکم** :: دې آيتونو نه دا مسئله هم راوځي چې د ضرورت په وخت کښې توريه کول روا دي. توريه دوه قسمه ده. يو قولي ده، يعنى داسې خبره چې ښکاره مطلب ئې د واقعې نه خلاف وي او باطني مطلب ئې دواقعې مطابق وي. بله توريه عملي ده يعنى داسې عمل کول چې ليدونکي ترې يو شان مطلب اخلي. اوحقيقت کښې ئې مطلب څۀ بل وي. ددې بل نوم ايهام هم دې، په دې بنا د ابراهيم ﷺ ستورو ته کتل د اکثرو مفسرينو مطابق ابهام وو او خپل ځان ته ناروغه فرمائيل توريه وه، دضرورت په موقعو د توريې دا دواړه قسمونه د نبي کريم ﷺ نه هم ثابت دي. لکه د هجرت د سفر په دوران کښې چې کله د ابوبکر صديق رضی الله عنه نه د نبي کريم ﷺ باره کښې تپوس اوشو چې دا څوک دى نو ابوبکر صديق رضی الله عنه اوفرمائيل چې: [هوهاديهديني](۳) يعنى دا زما لاره خودونکې دې. تپوس کوونکي تر د سفر لار خودونکې مطلب واخستو او د ابوبکر صديق رضی الله عنه مراد ديني او روحاني لار خودونکې وو. [روح المعاني](۴).

دغه شان کعب بن مالک رضی الله عنه فرمائي چې کله به نبي کريم ﷺ يو جهاد ته د مديني منورې نه وتل نو دهغې مخالف اړخ ته به په دې غرض وتل چې کتونکو ته دصحيح منزل پته او نه لګي. [صحيح مسلم وغيره](۵) دا عملي توريه يعنى ايهام وه. دخان مشغولو اوخوش طبعئ په موقعو هم د نبي کريم ﷺ نه توريه ثابته ده. لکه د شمائل ترمذي ديوروايت ترمخه نبي کريم ﷺ يوې بوډئ ښځې ته د خوش طبعئ نه اوفرمائيل چې څوک بوډئ ښځه به جنت ته نه داخليږي. هغه په دې آوريدو سره پريشانه شوه. نبي کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې بوډئ به د ځوانئ په حالت کښې جنت ته داخليږي. [دبوډا توب په حالت کښې به پاتې نشي](۶).

دې نه پس د آيتونو مطلب دتفسير خلاصه نه واضح کيږي او د واقعې تفصيلات په سورة انبياء کښې تير شوي دي.

| وَقَالَ | إِنِّي | ذَاهِبٌ | إِلَىٰ رَبِّي | سَيَهْدِينِ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| او اووئيل ابراهيم | بيشکه زه | تلونکې يم | رب خپل ته | لاره به اوښائي ماته |

او ابراهيم اووئيل چې زه خپل رب طرفته روان يم اهغه به ماته نيغه لاره اوښائي

(۱) جامع الترمذي، أبواب التفسير، باب تفسير سورة بني اسرائيل: ج ۲، ص ۱۴۷
(۲) ترجمه: ده ووئيل، نه بلکه دا کار ددوی دے لوئے بت کړے دے.
(۳) مسند أحمد، مسند انس بن مالک رضي الله عنه، رقم الحديث: ۱۲۲۳۴
(۴) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ۱۷، ص ۱۵۵
(۵) صحيح البخاري، كتاب الجهاد، باب من اراد غزوة فوری، بغيرها--- الخ: ج ۱، ص ۴۱۴
(۶) جامع الترمذي، شمائل ترمذي، باب ما جاء في صفة مزاح رسول الله صلى الله عليه وسلم: ص ۱۶

Scanned with Ca

رَبِّ هَبْ لِيْ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ۝ فَبَشَّرْنٰهُ بِغُلٰمٍ حَلِيْمٍ۝

اے ربه زما | راکړه مالره [څوئي] د صالحانو نه | پس زيري ورکړو مونږ هغه ته | په يو هلك صبرناك سره

اې زماربه! ماته يو نيک څوئي راکړه | ............نو مونږ هغه ته ديو صابره هلك زيرې ورکړو

فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ قَالَ

پس هر کله چې | اورسيدو هغه څوئي | دهغه سره | دمنډو تررو عمر ته | نو اووئيل ابراهيم |

نو څه وخت چې هغه دخپل پلار سره دګرځيدو عمر ته اورسيدو | نو ابراهيم ﷺ ورته اووئيل چې

يٰبُنَيَّ اِنِّيْٓ اَرٰى فِي الْمَنَامِ اَنِّيْٓ اَذْبَحُكَ فَانْظُرْ

اے څويه زما | بيشکه زه | وينم | په خوب کښې | چې زه | ذبحه کوم تالره | پس ته هم نظر اوکړه |

اې څويه! زه په خوب کښې وينم چې تا ذبح کوم | نو ته هم سوچ اوکړه | [اوماته اووايه]

مَاذَا تَرٰى ط قَالَ يٰٓاَبَتِ افْعَلْ مَا

چې څه وينې ته په خيال خپل کښې | اووئيل هغه | اے پلاره زما | اوکړه ته | هغه |

چې ستا څه رائې ده | ..............هغه [څوئې] اووئيل چې اې بابا! تاته چې څه حکم شوې

تُؤْمَرُ سَتَجِدُنِيْٓ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰبِرِيْنَ۝

چې حکم درته کيدې شی دهغې | او به مومې ته مالره | که اوغواړي الله | دصبر کونکونه |

دې هغه په ځائې کړه | ................ان شاء الله مابه صبر کونکې بيا مومې

فَلَمَّآ اَسْلَمَا وَتَلَّهٗ لِلْجَبِيْنِ۝ وَنَادَيْنٰهُ

پس هر کله چې | غاړه کيښوده دواړو | اووائې چوڼ هغه | پر مخې په تندی | او آواز کړو مونږ هغه ته

بيا چې دې دواړو د الله ﷻ حکم اومنلو | او هغه [څوئې] ئې په پر مخې څملولو | او مونږ ورته آواز اوکړو

اَنْ يّٰٓاِبْرٰهِيْمُ۝ قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْيَا اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي

چې اے ابراهيم | رښتيا کړو تا | خوب خپل | بيشکه مونږه | دارنګې | بدله ورکوؤ

چې اې ابراهيم ﷺ! تا خوب واقعی رښتيا کړو | بيشکه مونږ نيکانو بندګانو ته هم دغه شان

الْمُحْسِنِيْنَ۝ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْبَلٰٓؤُا الْمُبِيْنُ۝ وَفَدَيْنٰهُ

نيکانو خلقو له | بيشکه دا [ذبحه] | خامخا دا وؤ | آزميښت ښکاره | او فديه ورکړه مونږ هغه له

بدله ورکوؤ | .........حقيقت دا دې چې دا يو ډير لوئې امتحان وو | او مونږ ددې په بدله کښې

بِذِبْحٍ عَظِيْمٍ۝ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ۝

يوه قربانی | لويه [جنتی ګډوری] | او پريښودو مونږه | په هغه باندې صفت | په روستنو نسلونو کښې

د ده نه يو لويه قربانی ورکړه | راتلونکو خلقو ته مو داخبره دده په تاريخ کښې باقی پريخوده

سَلٰمٌ عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ۝ كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ۝ اِنَّهٗ

سلام دې | په ابراهيم باندې | دارنګې | بدله ورکوؤ مونږ | نيکانو خلقو له | بيشکه هغه |

چې سلام دې وی په ابراهيم ﷺ بيشکه مونږ نيکانو بندګانو ته هم دغه شان بدله ورکوو | بيشکه هغه

Scanned with Ca

| مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ۝ | وَبَشَّرْنٰهُ | بِاِسْحٰقَ | نَبِيًّا |
|---|---|---|---|
| دبندګانو زمونږ مومنانونه وو | او زیري ورکړو مونږ هغه ته | په اسحاق سره | یو نبي |
| زمونږ د نیکانو بندګانو نه وو | اومونږ ابراهیم ته د اسحاق ﷺ زیري ورکړو | چې نبي اوخوش نصیبه | |

| مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ۝ | وَبٰرَكْنَا | عَلَيْهِ | وَعَلٰٓى اِسْحٰقَ ط |
|---|---|---|---|
| د صالحانونه | او برکت کړې وو مونږه | په هغه باندي | او په اسحاق باندي |
| به وی | ............او مونږ په هغه [ابراهیم ﷺ] او اسحاق ﷺ باندي برکتونو اوکړل | | |

| وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا | مُحْسِنٌ | وَّظَالِمٌ | لِّنَفْسِهٖ | مُبِيْنٌ۝ |
|---|---|---|---|---|
| او داولاد ددې دوارو نه | څوك نیکو کار دي | او څوك ظالم دي | په خان خپل باندي | ښکاره |
| اوددې دواړو په اولاد کښې نیکان خلق هم دی | اوپخپلو خانونو باندي ښکاره ظلم کونکی هم | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اوابراهیم اووئیل: زه خپل رب ته ځم. هم هغه به ماته لاره ښائی اے زما پروردګاره! ماته یو داسې ځوې راکړې چه دنیکانو نه وی. نو مونږ هغه ته په یو صابره هلک سره زیرې ورکړو بیا چه کله هغه هلک د ابراهیم سره د ګرځیدلو راګرځیدلو قابل شو. نو هغه اووئیل: اے ځویه! زه په خوب کښې وینم. چه تالره حلالوم اوس په سوچ سره راته اووایه. چه ستا څه رائے ده؟ ځوی ورته اووئیل: اباجان! اته هم هغه اوکړه. د څه چه تاته حکم کړې شوې دې. ان شاء الله ته به ما لره د صبر کونکو نه اومومې. نو (هغه ډیر عجیبه منظر وو) چه کله دواړه تابع شو. او پلار ځوی لره سملوۀ په اړخ د تندی باندې او مونږ هغه ته آواز ورکړو چه: اے ابراهیمه! تا خوب لره رښتیا کړو. یقیناً مونږ نیکی کونکو ته دغه شان بدله ورکوو. یقیناًدا یو ښکاره امتحان وو. او مونږ ورله د یوې عظیمې ذبیحې فدیه ورکړه. او هغه ماشوم مو بچ کړو او کوم خلق چه د هغه نه روستو راغلل. په هغوی کښې مو دا روایت قائم کړو. (چه هغوی به دا وائی چه) سلام دې وی په ابراهیم علیه السلام باندې. مونږ نیکی کونکو ته دغه شان بدله ورکوو. یقیناًهغه زمونږ د مومنانو بندګانو نه وو اومونږ هغه ته د اسحاق علیه السلام زیرې ورکړو، چه هغه به د صالحانو نه یو نبی وی. اومونږ په هغه باندې هم برکتونه نازل کړل او په اسحاق باندې هم. او دهغوی په اولاد کښې څه خلق نیک عمل کونکې دی. اوڅه په خپل ځان باندې ښکاره ظلم کونکې دی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَالَ اِنِّیْ ذَاهِبٌ اِلٰی رَبِّیْ سَیَهْدِیْنِ۝﴾ [اوابراهیم] ﷺ هر کله چه ددې خلقو دایمان راوړو نه مایوسه شونو [وې وئیل چه زه خو] تاسو نه هجرت کوم [دخپل رب] په لاره کښې یو [طرف ته ځم هغه به مالره] ښه خاې ته [ورسوی] چنانچه شام ته ورسیدو او دادعاې وکړه چه ﴿رَبِّ هَبْ لِیْ مِنَ الصّٰلِحِیْنَ۝﴾ [اے زما ربه ماته یو نیك فرزند راکړې ﴿فَبَشَّرْنٰهُ بِغُلٰمٍ حَلِیْمٍ۝﴾ پس مونږ دۀ ته د یو حلیم المزاج خوئ خوشخبری ورکړه] او دغه فرزند پیداشو او هوښیار شو ﴿فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْیَ﴾ [پس هرکله چه دغه هلك داسې عمرته ورسیدو چه دابراهیم] ﷺ [سره د ګرځیدو شو نو ابراهیم] ﷺ یو خوب ولیدو چه زۀ دا خوې دخداې په حکم سره ذبح کوم ==== او دا ثابته نه ده چه مرئ ورله پریکړې هم ولیده اوکه نه غرض چه ویخ شو نو داې دالله تعالی حکم وګڼړلو ځکه چه

دانبیاء خوب هم وحی وی او ددې حکم دتعمیل دپاره تیارشو بیایې دا سوچ وکړو چه خدایې
خبرزما خوې په دې باره کښې څه وائی ددهٔ خبرول یې ضروری وګڼړل په دې وجه یې هغه ته
﴿قَالَ يٰبُنَيَّ إِنِّيٓ أَرٰى فِي الْمَنَامِ أَنِّيٓ أَذْبَحُكَ﴾[وفرمائیل چه څویه زهٔ په خوب کښې وینم چه زهٔ تالره]
دالله تعالی په حکم ذبح کوم﴿فَانْظُرْ مَاذَا تَرٰى﴾ پس ته هم سوچ وکړه ستاڅه رایې ده؟﴿قَالَ
يٰٓأَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ﴾ هغه ووئیل پلاره] په دې کښې زمانه دتپوس څه خبره ده هرکله چه تاته دالله
تعالی دطرف نه حکم شوې دې نو[تاته چه کوم حکم شوې دې هغه] بلاتامل [وکړه ﴿سَتَجِدُنِيٓ إِنْ
شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰبِرِينَ﴾ ان شاء الله تعالی ته به مالره دصبرکوونکونه ووینې ﴿فَلَمَّآ أَسْلَمَا وَتَلَّهٗ
لِلْجَبِينِ﴾ غرض هرکله چه دواړو] دالله تعالی حکم لره [ومنلو اوپلار خوې لره] د ذبح کولو
دپاره [پړمخې څملولو اوغوښتل یې چه مرئ] ورلره پریکړی او دغه وخت ﴿وَنَادَيْنٰهُ أَنْ
يّٰٓإِبْرٰهِيمُ﴾[مونږ دوی ته اواز وکړو چه اے ابراهیم]علیه السلام ﴿قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْيَا﴾شاباش [تاخوب لره
ډیرښه رشتیاکړو] یعنی په خوب کښې چه درته کوم حکم شوې وو دخپل طرف نه د په هغې
پوره عمل وکړو اوس مونږ داحکم منسوخ کوو پس دې پریږده غرض هغه یې پریښودو او هغه
بالکل بچ شو او اوچتې درجې ورته په هغې دپاسه ورکړې شوې ﴿إِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾
[مونږ مخلصانوته داسې بدله ورکوو] چه د دواړو جهانوراحت ورته ورکوو ﴿إِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْبَلٰٓؤُا
الْمُبِينُ﴾[په حقیقت کښې داوو لوې امتحان] کوم لره چه بغیر دکامل مخلص نه بل څوك نه
شی برداشت کولې نومونږ په داسې امتحان کښې په پوره ختلوباند صله هم ډیره لویه ورکړه او
په دې کښې چه څنګه امتحان د ابراهیم علیه السلام وو دغه شان داسماعیل علیه السلام هم وو نو په صله
کښې دغه دواړه شریك وو﴿وَفَدَيْنٰهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ﴾[او مونږ یوه لویه ذبیحه ددې په بدله کښې
ورکړه] چه د حضرت ابراهیم علیه السلام په لاس هغه ذبح کړې شوه ﴿وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِينَ ۝ سَلٰمٌ عَلٰٓى
إِبْرٰهِيمَ﴾[او مونږ په وروستوراتلونکوکښې داخبره ددوی دپاره پاتې کړه چه په ابراهیم]علیه السلام
[دسلام وی] چنانچه ددهٔ نوم سره تراو سه وئیلې شی ﴿كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾مونږ مخلصانو
ته داسې صله ورکوو] چه هغوی لره دخلقو د دعاګانو او دسلامتیٔ د خوشخبرو مرکز جوړ وو
﴿إِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ﴾[بیشکه هغه زمونږ دایماندارو بندګانو نه وو اومونږ] یو انعام په
هغه دا وکړو چه﴿وَبَشَّرْنٰهُ بِإِسْحٰقَ نَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِينَ﴾[دهٔ ته مو داسحاق]علیه السلام [خوشخبری ورکړه
چه نبی او دنیك بختونه به وی ﴿وَبٰرَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلٰٓى إِسْحٰقَ﴾ او مونږ په ابراهیم] علیه السلام [باند او په
اسحق]علیه السلام [باند برکتونه نازل کړل] ددې برکتونو نه یودادې چه د دوی نسل ډیر خورشو او د
دوی په نسل کښې ډیرانبیاء کرام علیهم السلام پیداشول [او] بیا وراند﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَّظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ
مُبِينٌ﴾[ددې دواړو په نسل کښې ځنې ښه هم دی او ځنې داسې هم کوم چه] بدې کوی
[ښکاره خپل نقصان کوی]

## معارف او مسائل

**د څوي د قربانۍ واقعه** :: دې آیتونو کښې د ابراهیم علیه السلام د پاکیزه ژوند یوه بله مهمه واقعه بیان شوېده.چې په کښې ابراهیم علیه السلام خالص د یو څوي قربانی پیش کوی. د واقعې بنیادی برخې د تفسیر دخلاصې نه واضح کیږی.ځینې تاریخی تفصیلات به دآیتونو د تفسیر په لمنه کښې راشی.

Scanned with Ca

﴿وَقَالَ إِنِّي ذَاهِبٌ إِلَىٰ رَبِّي سَيَهْدِينِ﴾ يعنى ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل چي زه خپل رب ارخ ته ځم هغه به راته لار سمه کړي . داخبره ابراهيم عليه السلام هغه وخت اوکړه چي کله هغوئ دخپل وطن والو نه بيخي نااميده شو او هلته دخپل خوريئ [1] لوط عليه السلام نه سوا بل چا پرې ايمان راوْ نه ړو. رب ته دتلو مطلب دادې چې د دار کفر په پريخودو سره داسې يوځائې ته ځم چې دتلو حکم ماته د خپل رب د طرفنه شوې دې اوچرته چي زه به د خپل پروردګار عبادت کولې شم ، نو هغوئ خپله بى بى ساره رضى رضي الله عنها او خپل وراره لوط عليه السلام ځان سره کړو او په سفر روان شو ، دعراق د مختلفو برخو نه پورې وتل او په شام کښې داخل شو، په دې ټول دوران کښې د ابراهيم عليه السلام څه اولاد نه ووشوې څکه ئې هغه دعا اوکړه چې په ورپسې آيت مبارک کښې داسې ده چې :

﴿رَبِّ هَبْ لِي مِنَ الصَّالِحِينَ﴾ يعنى ائې زما پروردګاره ماته يو نيک فرزندراکړه . نو د ابراهيم عليه السلام دادعا قبوله شوه او الله جل جلاله ورته ديو څوئې د پيداکيدو زيرې ورکړو ، فرمائي چې ﴿فَبَشَّرْنَاهُ بِغُلَامٍ حَلِيمٍ﴾ يعنى مونږ ورته د بردبار څوئې زيرې ورکړو. په حليم فرمائيلو سره الله جل جلاله دې ته اشاره اوکړه چې دا ماشوم به په خپل ژوند کښې دداسې صبر اوزغم ننداره کوي چې دنيا به ددې مثال نشى پيش کولې . ددې څوئې دپيدا کيدو واقعه داسې اوشوه چې کله ساره رضي الله عنها دا اوليدل چې اولاد مې نه کيږي او ځان ئې شنډه اوګڼړه ، بل خوا فرعون مصر ساره رضي الله عنها ته هاجره رضي الله عنها نومې خپله لور د خدمت دپاره ورکړې وه . ساره رضي الله عنها دغه هاجره رضي الله عنها ابراهيم عليه السلام ته ورکړه . ابراهيم عليه السلام هغې سره نکاح اوکړه ددغې بى بى نه ئې څوئې پيدا شو چې د هغوئ نوم ئې اسماعيل عليه السلام کيخودو.

﴿فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ قَالَ يَا بُنَيَّ إِنِّي أَرَىٰ فِي الْمَنَامِ أَنِّي أَذْبَحُكَ﴾ يعنى کله چې دغه څوئې ئې داسې عمر ته اورسيدو چې ابراهيم عليه السلام سره ګرځيدو راګرځيدو نو ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل چې ائې زما څويه زه وينم په خوب کښې چې ذبح کوم دې . دځينو روايتونو نه معلوميږي چې دا خوب ابراهيم عليه السلام ته په مخه درې شپې اوخودلې شو. [قرطبى] [2] . او يقينا چې د پيغمبرانو عليهم السلام خوب وحى وى . څکه ددې خوب مطلب دا وو چې د الله جل جلاله د طرفنه ابراهيم عليه السلام ته دا حکم شوې وو چې خپل هم يو څوئې ذبح کړي . دا حکم ورته الله تعالى نيغ په نيغه يا دفرښتې په ذريعه هم ورکولې شو خو په خوب کښې ورته ددې حکم ورکولو کښې حکمت په ظاهره دا ووچې د ابراهيم عليه السلام مکمله بندګى او فرمانبردارى په ډاګه شي . دخوب په ذريعه ورکړى حکم کښې دانسانى نفس دپاره د تاويلونو لوئې ګنجائش وى خو ابراهيم عليه السلام د تاويلونو دلارې نه اختيارولو په ځائې د الله جل جلاله د حکم په وړاندې حکم منلو ته سر ټيټ کړو [تفسير کبير] [3].

دې نه علاوه دلته دالله جل جلاله اصل مقصد د اسماعيل عليه السلام ذبح کول نه وو اونه ابراهيم عليه السلام ته خامخا دهغوئ د ذبح کولو حکم ورکول وو. بلکه ددغې حکم ورکولو منشا دا وه چې دهغوئ د ذبح کولو پوره انتظام اوکړه او ځان ورته ښه تيار کړه . اوس که داحکم يې زبانى ورکړې وى

---

[1]) دا خائې د تحقيق دې مشهوره داده چې لوط عليه السلام د ابراهيم عليه السلام خورينې نه بلکه وراره وو ﴿يقال له ابنه امى ابراهيم يقولون هو لوط بن هارون بن ازر﴾ [ابن کثير]

[2]) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۱۰۱

[3]) التفسير الكبير تحت هذه الآية: ج ۱۳، ۱۴۲

Scanned with Ca

نو په خلې سره حکم ورکولو کښې به دا آزمیښت نه وو. ځکه ئې ورته په خوب کښې اوخودل چې هغوئ خپل ځوئې ذبح کوی ، په دې شان ابراهیم پوهه شو چې د ذبح کولو حکم ورته شوې دې . او هغه پوره شان سره ذبح کولو دپاره تیار شو. دغسې آزمیښت هم پوره شو اوخوب هم رښتیا شو. دا حکم که زبانی وې نو یاخو به آزمیښت نه وو او یا به حکم منسوخ کول راتلل . دا امتحان څومره سخت وو؟ دې ته اشاره کولو دپاره الله ﷻ د : ﴿فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ﴾ الفاظ زیات کړی دی . یعنی په منتونو ددغې غوښتلې شوی ځوئې د قربانولو حکم په داسې وخت کښې ورکړې شوې وو چې کله دغه ځوئې خپل پلار سره ډګرځیدو راګرځیدو جوګه شوې وو، اودهغه دپاللو نه پس اوس وخت دا راغلې وو چې هغه د متهو طاقت جوړ شوی او دپلار ملاتړ شوی وؤ، مفسرینو لیکلی دی چې دغه وخت د اسماعیل ﷺ عمر مبارک دیارلس کاله او ځینو لیکلی دی چې بلوغ ته رسیدلې وو، [تفسیر مظهری]([1]).

﴿فَانْظُرْ مَاذَا تَرَىٰ﴾ نو ته هم سوچ اوکړه چې څهٔ دې رائې ده ؟ ابراهیم ﷺ دا خبره پدې غرض نه وه پوښتلې چې ګنی ابراهیم ﷺ الله ﷻ په حکم باندې عمل کولو کښې زړه وهلو تردد او شك یې وو بلکه هغوئ د خپل ځوئې امتحان اخستو چې هغه دې آزمیښت پوره کولو ته ترکومه حده پورې تیار دې ؟ نو د نورو انبیاء کرامو ﷺ طرز ، همیشه دپاره دا پاتې شوې دې چې هغوئ د الله ﷻ حکمونه منلو ته هروخت تیار اوسیږی . خو دې دپاره لاره هغه اختیاروی چې په حکمت او د وس مطابق په آسانئ باندې بنا وی . که ابراهیم ﷺ هغوئ سره د مشورې کولو نه بغیر ئې هغوئ ذبح کولې نو دا به دواړو ته ګرانه پریوتې وه د مشورې په انداز کښې ئې ددې تپوس ځوئې نه ځکه اوکړو چې هغوئ ته دالله ﷻ حکم د اول نه معلوم شی . نو ددې سختئ تیرولو دپاره به د اول نه تیار شی . اوکه ځوئې ئې په دې کښې څه زړه وهی نو هغه به پوهه کړی . [روح المعانی وبیان القرآن]([2]).

خو دغه ځوئې هم د الله ﷻ د دوست ځوئې وو او پخپله هم پیغمبر جوړیدونکې وو ځکه ئې جواب کښې اوفرمائیل چې : ﴿يَا أَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ﴾ یعنی ائې باباجی په درکړی حکم باندې عمل اوکړئې . دې نه خو د اسماعیل ﷺ د ځان سپارلو بې مثاله جذبه ثابتیږی . او دا هم ترې معلومیږی چې په دې کم عمرئ کښې ورته الله ﷻ څنګه ذهن او علم ورکړې وو؟ ابراهیم ﷺ ورته دالله ﷻ د څه حکم حواله نه وه ورکړې بلکه خالص خوب ئې ورته بیان کړې وو خو اسماعیل ﷺ پوهه شوچې د پیغمبرانو ﷺ خوب وحی وی چې په حقیقت کښې د حکم الهی یو صورت دی، نوهغوئ د خوب په ځائې دالله ﷻ دحکم د تعمیل یادګیرنه اوکړه.

**د غیرمتلو وحی ثبوت** :: هم دې ځائې نه د حدیث پاک د منکرینو ښه ښکاره تردید کیږی کوم چې د غیر متلو وحی وجود د سره نه منی او وائی چې وحی صرف هغه ده چې په آسمانی کتاب کښې نازله شوې وی . دې نه علاوه بل قسم وحی بالکل نشته . نو دا دې اوګورئې چې ابراهیم ته د ځوئې د قربانئ حکم دخوب په ذریعه ورکړې شو او اسماعیل ﷺ په ښکاره الفاظو کښې دې لره دالله ﷻ حکم اوګرځولو ، که غیر متلو وحی څهٔ څیز نه دې نو دا حکم په

---

[1] ) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۸، ص ۱۲۸

[2] ) تفسیر بیان القرآن: ج ۹، ص ۱۲۹، ۱۳۰، وتفسیر روح المعانی: ج ۱۷، ص ۲۰۰

Scanned with CamScanner

کوم آسمانی کتاب کښې نازل شوېدي.
اسماعیل ﷺ خپل باباجی ته د خپل طرفنه دا یقین هم ورکړو چې: ﴿سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلصَّٰبِرِينَ﴾ انشاء الله ما به د صبر کوؤنکو نه بیا مومې. په دې جمله کښې د اسماعیل ﷺ ډېرزیات ادب او ډېر زیاته خاکساری اوګورئی، یو خو ئې په ان شاء الله وئیلو سره معامله الله ﷻ ته اوسپارله او په دې وعده کښې ددعوې چې کوم ظاهری صورت پیدا کیدې شو هغه ئې ختم کړو. بله دا چې هغوئ دا هم وئیلې شو چې ان شاء الله ما به صبر کوؤنکې بیا مومې. خو ددې په ځائې ئې اوفرمائیل چې ان شاء الله تاسو به ما د صبر کوؤنکو نه بیا مومئ . دې کښې نور دې خبرې ته اشاره ده چې دا صبر او ضبط یو ازې کمال ندې بلکه په د نیا کښې هم ډېر صبر کوؤنکی شته دې چې زۀ به په کښې انشاء الله شامل شم. دې جملې سره ئې د تکبر، غرور او فخر هغه نام و نشان هم ختم کړو او خپله ډېره کمزوری او عاجزی ئې څرګنده کړه [روح المعانی][1].
دې نه دا سبق همس حاصلیږی چې که د یو انسان په خپل ځان باندې ډېر اعتبار هم وی خو بیا هم غټې دعوې کول پکار نه دی چې دهغې نه فخر او غرور پیدا کیږی. که ددې قسم خبرې کولو څه ضرورت پیښ شی نو په الفاظو کښې ددې لحاظ ساتل پکار دی چې د خپل ځان په ځائې په الله ﷻ باندې آسره کول ښکاره کړی. او تر څو چې کیدیشی د خاکسارئی لومن پریښودل نه دی پکار.
﴿فَلَمَّآ أَسْلَمَا﴾ نو هر کله چې هغوئ دواړه تیټ شو. د اسلم معنی راتیټېدل، تابعداری کول او غاړه ایښودل دی. مطلب دادې چې کله هغوئ د الله ﷻ دحکم په وړاندې راتیټ شو یعنی باباجی د خوئې دذبح کولو او خوئې ئې د ذبح کیدو اراده اوکړه، دلته د لما [کله] کلمه استعمال شوې ده لیکن ددې جواب په الفاظو کښې نشته چې ښه نو بیا څۀ اوشو؟ دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چې د پلار خوئې د قربانئ ورکولو دا جذبه دومره عجیبه وه چې الفاظ د هغې پوره شان دسره بیانولې نشی.
ځینې تاریخی او تفسیری روایتونو نه معلومیږی چې شیطان درې ځل د ابراهیم ﷺ د دهوکه کولو کوشش اوکړو، ابراهیم ﷺ هر ځل هغه په اووۀ کاڼړو اوویشتو او وې شړلو چې دهغې په یاد کښې تر اوسه پورې د منی په دریو برجو باندې ددې ښکلی عمل په یاد ګار کښې کاڼړې ویشتلې شی خو آخر دواړه پلار اوخوئې چې ددې عجیبه عبادت ادا کولو دپاره د قربانئ ځائې ته اورسیدل نو اسماعیل ﷺ خپل والد ته اووئیل چې باباجی! ما به ښه اوتړئ چې زیاتې لتې اونه ټکولې شم او خپلې جامې هم ما نه ساتئ هسې نه زما د وینو په څاڅکو ککړې شی، بیا به زما په ثواب کښې فرق راشی. بله دا چې مور بی بی زما د وینو داغونه اووینی نو زیاته به خفه شی او چاړه هم تیره کړئی زما په مرئ ئې زر زر راکاږئی چې ساه مې زر اوزی ولې چې مرګ ډېر سخت څیز دې. او کله چې تاسو زما د مور بی بی خواته ورشئ نو ورته زما سلام اورسوئ او که قمیص مې والدې بی بی ته اوړل غواړئ نو دهغې د تسلئ دپاره ئې یوسئ. کله چې د یو خوئې د خولې نه یو مهربان پلار داسې خبرې واوری نو په

[1]) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱۷، ص ۲۰۱

Scanned with Ca

زره به ئې څه تيريږي ؟ خو ابراهيم ﷺ داستقامت غر جوړ شو او دا جواب ئې ورکړو چې بچيه ! دالله ﷻ په حکم پوره کولو کښې مې څومره ښهٔ مددګار ئې ؟ چې دائې او فرمائيل نو څوئې ئې ښکل کړو ، سترګې مبارک ئې د اوښکو نه ډکې شوې او وې ترلو. [مظهری]( ١ )

او : ﴿وَتَلَّهُ لِلْجَبِينِ﴾ يعنى هغه ئې پړمخې په ښاورو کښې واچولو. د ابن عباس ﷺ نه داسې منقول دى چې دې نه مطلب داسې په اړخ څملول دى چې د تندى يوه ډډه ئې په زمکه لګى [مظهری]( ٢ ) د لغت په اعتبار سره دا تفسير څکه غوره دې چې په عربى ژبه کښې جبين د تندى دواړو اړخونو ته وئيلې شى. مينځنئ ته ئې جبهه وئيلې شى ، څکه حکيم الامت تهانوى ﷫ ددې ترجمه په اړخ څملول کړې ده. خو ځينې مفسرينو ددې مطلب دا خودلې دې چې پړمخې په زمکه واچولو ، په هر صورت تاريخى روايتونو کښې ددې شان څملولو وجه دابيان شوې ده چې په اول کښې اسماعيل ﷺ لره ابراهيم ﷺ مخامخ نيغ څملولې وو ، خو هر کله چې ددوئ ﷺ مرئ مبارکه چړې نه پريکوله چې الله تعالى په خپل قدرت سره د پيتلو تکړه ترمينځه راوستې وه ، په دغه موقع اسماعيل ﷺ خواست کړې وو چې ما پړمخې واچوه څکه چې زما په مخ ستاسو په نظر پريوتو سره يو خو ستاسو پلارګنې شفقت په جوش کښې راځى ، بله دا چې چاړه زه وينم نو ويره مې ترې کيږى ، څکه په دغه شان يې څملولو او چاړه چلول ئې شروع کړل [تفسير مظهرى وغيره]( ٣ ) والله اعلم.

﴿وَنَادَيْنَاهُ أَنْ يَا إِبْرَاهِيمُ ۝ قَدْ صَدَّقْتَ الرُّؤْيَا﴾ يعنى مونږ هغوئ ته آواز اوکړو چې ائې ابراهيم ﷺ ! تاسو خپل خوب ښتيا اوخودلو. يعنى دالله ﷻ په حکم باندې عمل کولو کښې مو هيڅ قسم سستى اونه کړه. څکه چې خوب کښې غالبا ورته صرف چاړه راښکل خودلې شوى وو. ذبح کول ورته نه وو خودلې شوى. اوس دا آزمينښت پوره شو څکه ئې پريږدئى.

﴿إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾ مونږ اخلاص لرونکو ته هم دغه شان بدله ورکوؤ. کله چې دالله ﷻ څوک بنده دالله ﷻ حکم منلو ته په پوره اخلاص غاړه کيږدى او ټولو خپلو جذباتو قربانولو ته تيار شى نو مونږ آخر هغه ددنيوى تکليفونو نه هم محفوظ ساتو او دآخرت ثواب ئې هم دهغه په عمل نامه کښې ليکو.

﴿وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ﴾ او مونږ ورته يوه لويه ذبيحه ددې په بدل کښې ورکړه. په روايتونو کښې راغلى دى چې ابراهيم ﷺ ددې آسمانى آواز په آوريدو چې پورته اوکتل نو وې ليدل چې جبرائيل ﷺ خان سره ګډ راوستې ولاړ وو. د ځينې روايتونو نه معلوميږى چې دا هغه ګډ وو کوم چې دآدم ﷺ څوئې هابيل په قربانئ کښې پيش کړې وو. والله اعلم.

بهرحال دغه جنتى ګډ ابراهيم ﷺ ته ورکړې شو چې دالله ﷻ په حکم ې د خپل څوئې په ځائې قربانى کړو. لويه ذبيحه دې ته څکه وائى چې د الله ﷻ د اړخه راليږلې شوې وه چې دهغې په قبليدو کښې د هيڅ شک نشى کيدې. [تفسير مظهرى وغيره]( ٤ ).

---

[1] تفسير المظهرى: ج ۸، ص ۱۳۰
[2] تفسير المظهرى: ج ۸، ص ۱۳۰
[3] تفسير المظهرى: ج ۸، ص ۱۳۰
[4] تفسير المظهرى: ج ۸، ص ۱۳۲

Scanned with CamScanner

**ذبیح اسماعیل ﷺ وو او که اسحاق ﷺ:** پورته بیان شوې تفسیر په دې بنا دې چې ابراهیم ﷺ ته د کوم ځوئې د قربانی کولو حکم ورکړې شوې وو هغه اسماعیل ﷺ وو لیکن په حقیقت کښې دلته د تاریخ پوهانو او مفسرینو په مینځ کښې سخت اختلاف راغلې دې چې عمر فاروق رضی الله عنه، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه، عباس رضی الله عنه، ابن عباس رضی الله عنه، کعب الاحبار رحمه الله، سعید بن جبیر رحمه الله، قتاده رحمه الله، مسروق رحمه الله، عکرمه رضی الله عنه، عطاء رحمه الله، مقاتل رحمه الله، زهری رحمه الله او سدی رحمه الله نه منقول دی چې دغه ځوئې اسحاق ﷺ وو ،بل طرفته علی رضی الله عنه ابن عباس رضی الله عنه عبدالله بن عمر رضی الله عنه، ابوهریره رضی الله عنه، ابو الطفیل رضی الله عنه، سعید المسیب رضی الله عنه، سعید بن جبیر رحمه الله، حسن بصری رحمه الله، مجاهد رحمه الله، عمر بن عبدالعزیز رحمه الله، شعبی رحمه الله، محمد بن کعب قرظی رحمه الله او نورو ډیرو تابعینو نه منقول دی چې دغه ځوئې اسماعیل ﷺ وو.

وروستو مفسرینو کښې حافظ ابن جریر طبري رحمه الله رمبې قول غوره کړې دې[1] او حافظ ابن کثیر رحمه الله وغیره دویم قول اختیار کړې دې[2]. رمبې قول ئې په سخته رد کړې دې. دلته د دواړو فریقو په دلیلونو باندې مکمله تبصره نشی کیدې. بیاهم د قرآن پاک د طرزبیان او د روایتونو دمضبوطیا تر مخه غوره دا معلومیږی چې د ابراهیم ﷺ دغه ځوئې اسماعیل ځکه وو چې:

① قرآن کریم ددې ټولو قیصې نقل کولو نه پس فرمائیلی دی چې: ﴿وَبَشَّرْنٰهُ بِاِسْحٰقَ نَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ﴾ ددې نه صفا دا معلومیږی چې دغه ځوئې ئې دا اسحاق ﷺ څخه علاوه بل یو وو او د اسحاق ﷺ زیرې ورته دې نه پس ورکړې شوې وو.

② د اسحاق زیری ورکولو کښې دا بیان دې چې اسحاق ﷺ به نبی وی، دې نه علاوه په یو بل آیت مبارک کښې دا بیان دې چې د اسحاق ﷺ د پیدا کیدو سره د ازیرې هم ورکړې شوې وو چې دوئ ﷺ نه به یعقوب ﷺ پیدا کیږی لکه فرمائی چې: ﴿فَبَشَّرْنٰهَا بِاِسْحٰقَ ۙ وَمِنْ وَّرَآءِ اِسْحٰقَ يَعْقُوْبَ﴾ نو ددې صفا مطلب دادې چې دوئ ﷺ به تر ډیره عمره پورې ژوندی وی تر دې چې اولاد به ئې هم کیږی ، نو بیا په وړوکتوب ددوئ ﷺ د ذبح کولو به څه مطلب کیدیشی ؟ او که په وړوکتوب کښې ددوئ ﷺ پیغمبر کیدو نه وړاندې ددوئ ﷺ د ذبح کولو حکم ورکړې کیدلې نو ابراهیم ﷺ به پوهیدو چې دوئ ﷺ خو به پیغمبر جوړیږی. دوئ ﷺ نه به یعقوب ﷺ پیدا کیږی. نو په ذبح کولو سره د دوئ ﷺ مړ کیدل نشته. په دې شان به دا نه خو څه لوئې امتحان وو او نه به ددې په کولو سره ابراهیم ﷺ دځه تعریف حقدار وو. امتحان خو به دې صورت کښې ممکن وو چې د ابراهیم ﷺ دا یقین وې چې زما ځویې به په ذبح کولو سره ختم شی، په دې بنا د اسماعیل ﷺ په باره کښې د اخبره پوره رښتیا کیږی چې الله ﷻ د دوئ ﷺ د ژوندی پاتې کیدو او د پیغمبر جوړیدو څه پیشنګوئی نه وه فرمائیلې.

③ دقرآن پاک د بیان نه معلومیږی چې ابراهیم ﷺ ته د رومبی ځوئې د ذبح کولو حکم شوې دې ولې چې هغوئ ﷺ کله چې خپل وطن نه هجرت کولو نو د یو ځوئې دپاره ئې دعا کړې وه، ددې په جواب کښې ورته دا زیرې ورکړې شو چې هغوئ ﷺ ته به الله ﷻ یو زغمناک

---

[1] تفسیر الطبری تحت هذه الآیة: ج ۲۱، ص ۷٤

[2] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۳۲ نه ۳۵ پورې.

Scanned with Ca

ځوئي ورکړي. کله چې هغه ورسره د ګرځيدو راګرځيدو جوګه شو نو د ذبح کولو حکم ئې ورکړې شو. نو د واقعاتو داټولـه سلسله ښائي چې دا د ابراهيم ﷺ رومبي ځوئي وو. اودا اتفاقي خبره ده چې رومبي ځوئي ئې اسماعيل ﷺ دې او اسحاق ﷺ ئې دويم ځوئي دې. ځکه په دې کښې هيڅ شک نه پاتې کيږي چې ذبيح إسماعيل ﷺ وو.

④ دا خبره هم تقريبا په ډاګه شوې ده چې دځوئي د قربانۍ دا واقعه د مکې مکرمې په خواؤ شا کښې راپيښه شوې وه. ځکه په اهل عربو کښې د حج په دوران کښې په مخه دا طريقه روانه پاتې شوې ده. چې دوئ به قرباني کوله، بله دا چې د ابراهيم ﷺ د ځوئي په بدل کښې چې کوم ګډ قرباني کړې شوې وو دهغې ښکرونه په کلونو کلونو په کعبه شريفه کښې آويزان پاتې شوي وو. لکه حافظ ابن کثير رحمه الله ددې په تائيد کښې څو روايتونه نقل کړي دي. او د عامر شعبي رحمه الله دا قول ئې هم ذکر کړې دې چې ماد ګډ [پسه] دغه ښکرونه په کعبه کښې پخپله آويزان ليدلي دي. [ابن کثير ص/۱۸ جلد/۴] ([1]). او سفيان فرمائيلي دي چې ددې ګډ ښکرونه په کعبه شريفه کښې په مخه آويزان پاتې شوي وؤ تر دې چې په هغې اور اوسوځيدل کوم چې د حجاج بن يوسف په زمانه کښې په خانه کعبه کښې لګيدلي وو. [ايضا ص/۱۷ جلد/۴] ([2]). اوس دا خبره ښکاره ده چې په مکه مکرمه کښې اسماعيل ﷺ استوګنه کړيده. اسحاق ﷺ نه ده کړې، په دې بنا داخبره په ډاګه شوه چې د ذبح حکم د اسماعيل ﷺ په باره کښې شوې وو. د اسحاق ﷺ باره کښې نه وو شوې. پاتې شو هغه روايتونه چې هغوئ کښې د مختلفو صحابه کرامو او تابعينو باره کښې ذکر دي چې اسماعيل ﷺ ذبيح ګرځولي دې نو په دې باره کښې حافظ ابن کثير رحمه الله ليکلي دي چې:

الله ﷻ به پوهيږي خو په ظاهره د دا ټولې خبرې د کعب الاحبار رحمه الله نه راخستې شوې دې داسې معلوميږي چې هغوئ کله د عمرفاروق رضي الله عنه په زمانه کښې اسلام راؤړو نو عمر فاروق رضي الله عنه ته به ئې د خپلو زړو کتابونو نه خبرې آؤرولې چې د هغوئ په آوريدو سره نورو ته هم دا موقعه په ګوتو ورغله چې هغوئ به ئې هم خبرې آوريدلې او د هغې نقل کول ئې شروع کړل. په دې کښې هر قسم يقيني اوغير يقيني خبرې راجمع شوې وې سره ددې چې دې امت ته ددغې خبرو هيڅ ضرورت نشته. والله اعلم. [تفسير ابن کثير ص/۱۷ جلد/۴] ([3]).

د حافظ ابن کثير رحمه الله دا خبره قياس سره نزدې معلوميږي ولې چې د اسحاق ﷺ ذبيح ګرځولو بنياد په اسرائيلي روايتونو باندې قائم کړې شوې دې او هم دا وجه ده چې يهود او نصرانيان اسحاق ﷺ ته ذبيح وائي موجوده بائيبل کښې دا واقعه په دې الفاظو کښې بيان کړې شوېده چې: ددې خبرونه پس داسې اوشو چې الله ﷻ په ابراهام ﷺ باندې آزميښت اوکړو او ورته ئې اوفرمائيل چې ائې ابراهام ﷺ! هغوئ ﷺ اووئيل چې زه حاضر يم. بيا الله ﷻ اوفرمائل ته خپل ايکى يو ځوئي اضحاق ﷺ چې ته ورسره مينه کوې ځان سره کړه، د موريـاه ملک تـه لاړ شه او هلته په يو غر باندې چې زه به ئې درته اوښايم د سوځيدونکې قربانۍ په ډول اوخيژوه. [پيدائش ۲۲:۲]

---

[1] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۲۹

[2] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۲۹

[3] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۳۲

Scanned with Ca

په دې کښې د ذبح واقعه اسحاق ﷺ ته منسوب کړې شوې ده خو که د انصاف او تحقيق نه کار واخستې شي نو صفا معلوميږي چې دلته يهوديانو د خپل روايتي تعصب نه کار اخستې دې او د تورات په عبارت کښې ئې بدلون کړې دې. ولې چې د کتاب پيدائش په دغه بيان شوي عبارت کښې د ا ايکې يو ځوئې الفاظ ښائي چې ابراهيم ﷺ ته د ايکې يو ځوئې دقرباني کولو حکم ورکړې شوې وو ، نو هم په دغه باب کښې دې پسې ليکي چې: تاخپل ايکې يو ځوئې هم ما نه منع نه کړو [پيدائش: ۲۲:۲].

دې جمله کښې په ډاګه داخبره موجود ده چې دغه ځوئې دابراهيم ﷺ ايکې يو ځوئې وو، خو بل خوا دا خبره يقيني ده چې اسحاق ﷺ د هغوئ ﷺ ايکې يواځې ځوئې نه وو. بلکه دهغوئ ﷺ ايکې يواځې ځوئې اسماعيل ﷺ وو نو هم د پيدائش نور عبارتونه ددې ګواهي ورکوي چې د اسماعيل ﷺ پيدا کيدل د اسحاق ﷺ نه ډير وړاندې دی. اوګورئی:

اود ابرام ﷺ بی بی ساره څه اولاد او نه شو. دهغوئ ﷺ يو ه مصرئي وينځه وه چې هاجره نوم ئې وو چې هغوئ ﷺ ورته نزدې شو نو دهغې اولاد اوشو. د الله ﷻ فرښتې ورته اووئيل چې ته اوس بارداره ئې ځوئې به دې کيږی دهغه نوم اسماعيل ﷺ کيږده. کله چې اسماعيل ﷺ د هغې نه پيدا شو نو د ابرام ﷺ عمر شپږاتيال کاله وو [پيدائش باب: ۱۲ آيتونه او ۴ وه او ۱۲].

دغسې په وړسې باب کښې ليکي چې:

او الله ﷻ ابرام ﷺ ته اوفرمائيل چې ستاسو ﷺ د ساری بی بی نه هم درته يوځوئې بخښم، بيا ابرام ﷺ سر ښکته کړو او مسکې شو په زړه کښې ئې اووئيل چې آيا د سلو کالو د بوډا بڅوئې اوشی او آيا د ساره به دځلورو نيمو شلو کالو په عمر کښې اولاد کيږی. او ابرام ﷺ الله تعالی ته اووئيل چې کاش ا سماعيل ﷺ ستا ﷻ په حضور کښې ژوندې پاتې شی ،بيا الله ﷻ اوفرمائيل چې بيشکه ستاسو د بی بی ساره نه به ستاسو ﷺ يوځوئې پيدا کيږی چې د هغوئ ﷺ نوم اضحاق ﷺ کيږده [پيدائش ۱۷ : ۱۵: تا ۲۰].

وړسې داسحاق ﷺ دپيدا کيدو بيان داسې شوېدې چې: او کله چې د هغوئ ﷺ ځوئې اضحاق ﷺ پيدا شو نو ابراهام د سلو کالو وو [پيدائش: ۲۱:۵].

دې عبارتونو نه په ډاګه معلوميږی چې اسحاق ﷺ د اسماعيل ﷺ نه څوارلس کاله کشر وو، تر دغې وخته پورې د ابراهيم ﷺ ايکې يوځوئې وو ، اوس ددې نه پس کله چې د کتاب پيدائش په دوه ويشتم باب کښې د ځوئې د قربانۍ بيان راځي نو په هغې کښې د لفظ ايکې يو ددې خبر ګواهي ورکوي چې دې نه مراد اسماعيل ﷺ دې ، او چا يهودی دې سره د اضحاق ﷺ لفظ خالص په دې غرض لګولې دې چې دا فضيلت د بنی اسماعيلو ﷺ په ځائې بنی اسحاق ﷺ ته حاصل شي.

دې نه علاوه د بائيبل هم په دې کتاب د پيدائش کښې چرته چې د اسحاق ﷺ دپيدا کيدو زيرې ابراهيم ﷺ ته ورکړې شوې دې ، هلته دا هم بيان شوېدې چې: يقينا زه ده ته [يعنی اسحاق ﷺ ته] برکت ورکړم چې قومونه بڅ ددوئ د نسل نه وی، [پيدائش ۱۷: ۱۶].

اوس ښکاره خبره ده چې دکوم ځوئې باره کښې د هغه د پيدا کيدو نه وړاندې دا خبر ورکړې شوې وی چې هغه بڅ صاحب اولاد وی او قومونه به دهغه د نسل نه وی ، دهغه د قربانولو حکم څنګه ورکولې شی ؟ دې نه هم دا معلوميږی چې داحکم د اسحاق ﷺ باره کښې نه بلکه

د اسماعیل ﷺ باره کښې وو. د بائیبل ددې عبارتونو ملاحظه کولو سره دا اندازه کیدیشی چې د حافظ ابن کثیر رحمه الله داخیال څومره صحیح دې چې:
د یهودیانو په مقدسو کتابونو کښې دا خبره په ډاګه ده چې داسماعیل ﷺ د پیدا کیدو په وخت د ابراهیم ﷺ عمر شپږ اتیا کاله وو. اوکله چې اسحاق ﷺ پیدا شو نو دهغوئ ﷺ عمر سل کاله وو، او هم په دغې کتابونو کښې داهم درج دی چې الله ﷻ ابراهیم ﷺ ته د ایکې یواځې ځوئې د ذبح کولو حکم ورکړې وو، اوپه یوه نسخه کښې دا اکلوتې [ایکی یواځې] په ځائې د پهلوتې [اړفریز] لفظ راغلې دې، پس یهودیانو دلته د اسحاق لفظ د خپل طرفنه زیات کړو او دې ته درست وئیل هیڅکله جائز نه دی چې پخپله د دوئ کتابونه ددې نه په ډاګه خلاف دی، نوددوئ دا ړخه ددې لفظ د زیاتولو وجه داده چې اسحاق ﷺ د دوئ مشر نیکه دې او اسماعیل ﷺ د عربو مشر نیکه دې، نو یهودیانو د حسد په وجه داسې اوکړل او اوس د ایکی یواځې ځوئې دا معنی ښائی یعنی هغه بچې چې دهغه نه سوا په هغه وخت کښې تاسو سره بل څوك موجود نه وو ځکه چې دغه وخت هغوئ سره یواځې اسحاق ﷺ موجود وو او اسماعیل ﷺ او دهغه والده محترمه ورسره دغه وخت موجود نه وو، [په دې وجه اسحاق ﷺ ته په دې معنی یواځې بی وئیلې شی] دا خوبیخی غلط تاویل کول دی او دا هل زبان د اصطلاح نه په بله مخ اړول دی، اهل زبان ایکی یواځې ځوئې هغې ته وائې چې بل ځوئې ئې په دغه وخت کښې د سره ژوندې نه وی. [تفسیر ابن کثیر ص/۱۴ جلد/۴] ([1]).
حافظ ابن کثیر رحمه الله دا هم نقل کړی دی چې یو یهودی عالم د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په زمانه کښې مسلمان شوې وو، عمر بن عبدالعزیز رحمه الله هغه نه تپوس اوکړو چې ابراهیم ﷺ ته د کوم یو ځوئې د ذبح کولو حکم شوې وو؟ هغه اووئیل چې قسم په الله ﷻ! امیر المومنین هغه اسماعیل ﷺ وو، یهودیان هم په دې ښه پوهه دی خو ستاسو د عربو خلقو د حسد په وجه داسې وائی. [ص/۱۸ جلد/۴] ([2]).
ددې دلیلونو په رڼاکښې دا خبره تقریبا یقینی ده چې ذبیح هم اسماعیل ﷺ دې، والله اعلم.
﴿وَمِن ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ مُبِينٌ﴾ ددې دواړو په نسل کښې ځینې ښۀ هم دی او ځینې داسې هم دی چې په ډاګه خپل زیان کوی. ددې آیت ترمخه د یهودو هغه باطل خیال رد کړې شوې دې چې دوئ بۀ د ټولو نه زیات دانسان غور والې دا ګڼړلو چې د پیغمبرانو ﷺ په اولاد کښې وی او هم دا بۀ ئې د فضیلت او دنجات ذریعه ګڼړله، ددې آیت مبارك ترمخه دا خبره په ډاګه شوه چې د انسان نسبی تعلق هیڅ پکار نه راځی. بلکه نجات او کامیابی وغیره په خپلو عقیدو او عملونو باندې اړه لری.

| وَلَقَدْ | مَنَنَّا عَلَىٰ مُوسَىٰ وَهَارُونَ ﴿١١٤﴾ | وَنَجَّيْنَاهُمَا | وَقَوْمَهُمَا |
|---|---|---|---|
| اواحسان اوکړو مونږه | په موسی او هارون باندې | او نجات ورکړو مونږ دواړو له | او قوم ددواړو له |

او مونږ په موسی ﷺ او هارون ﷺ باندې هم احسان کړې وو | او دوئ دواړه مو سره دخپله قومه

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۲۷
[2] ) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۳٤

مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ﴿۱۱۵﴾ وَنَصَرْنٰهُمْ فَكَانُوْا هُمُ

دمصيبت [غم] لوئ نه | او امداد اوكړو مونږه دهغوئ | پس شو هغوئ | هم هغوئ |

دلوئي مصيبت نه خلاص كړل | او مونږ ددوئ امداد اوكړو | نو دوئ [په فرعونيانو]

الْغٰلِبِيْنَ ﴿۱۱۶﴾ وَاٰتَيْنٰهُمَا الْكِتٰبَ الْمُسْتَبِيْنَ ﴿۱۱۷﴾ وَهَدَيْنٰهُمَا

غالب | او وركړو مونږ دواړو له | كتاب | روښانه | اولاره اوښودله مونږ دواړو ته

غالب شول| ............ او مونږ دې دواړو ته روښانه كتاب وركړو |اومونږ دې دواړو ته نيغه لار

الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴿۱۱۸﴾ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِمَا فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۱۹﴾

لاره | نيغه | او پريښودو مونږه صفت | په دواړو باندې| په روستنو نسلونو كښې |

اوخودله | او مونږ دې دواړو دپاره په روستو راتلونكو خلقو كښې دا [ذكرخير] باقي اوساتلو

سَلٰمٌ عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿۱۲۰﴾ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۲۱﴾

سلام دې | په موسى او هارون باندې | بيشكه مونږه | هم درانګې | بدله وركوؤ | نيكانو خلقو له

چې په موسى عليه السلام اوهارون عليه السلام دې سلام وى| بيشكه مونږ دغه شان نيكانو بندګانو ته بدله وركوؤ

اِنَّهُمَا مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۲۲﴾

بيشكه هغوئ دواړه | دبندګانو زمونږ | مومنانو نه وو |

دوئ دواړه زمونږ د مومنانو بندګانو څنى وو |

## آسان ترجمه قرآن

او بې شكه مونږ په موسىٰ او هارون باندې هم احسان اوكړو. او مونږ هغوى ته او دهغوى قوم ته د يو لوئې مصيبت نه نجات وركړو او مونږ د هغوى مدد اوكړو، چه دهغې په نتيجه كښې هم هغوى غالب وو. او مونږ هغوى دواړو ته داسې كتاب وركړو، چه بالكل واضحه وو. او هغوى دواړو ته مو د نيغې لارې هدايت اوكړو. اوكوم خلق چه د هغوى نه روستو راغلل، په هغوى كښې مو دا روايت قائم كړو. (چه هغوى به دا وائى چه) سلام دې وى په موسىٰ او هارون باندې. يقيناً مونږ نيكى كونكو ته داسې بدله وركوؤ. بے شكه هغه دواړه زمونږ د مومنانو بندګانو نه وو.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ﴾ [اومونږ په موسى عليه السلام او هارون عليه السلام] [باند هم احسان وكړو] چه دوى ته مونبوت او نوركمالات وركړل ﴿وَنَجَّيْنٰهُمَا وَقَوْمَهُمَا مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ﴾ [اومونږ دې دواړو لره او د دوى قوم لره] يعنى بنى اسرائيلولره] [دلوئ غم نه] يعنى دفرعون دطرف نه رسيدونكو تكليفونو نه [نجات وركړو ﴿وَنَصَرْنٰهُمْ فَكَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِيْنَ﴾ اومونږ ددې تولو] د فرعون په مقابله كښې مدد اوكړو پس آخر كښې هم دغه خلق غالب شو چې فرعون غرق كړې شو او دې خلقو ته حكومت ملاؤ شو ﴿وَاٰتَيْنٰهُمَا الْكِتٰبَ الْمُسْتَبِيْنَ﴾ [او مونږه] دفرعون دغرقيدو نه پس [هغودواړو] صاحبانو[ته] يعنى موسى عليه السلام ته اصالتا او هاورن عليه السلام ته تبعا [واضح كتاب وركړو] مراد تورات دې چه په دې كښې احكام په واضح طور سره مذكور وو ﴿وَهَدَيْنٰهُمَا الصِّرَاطَ

Scanned with CamScanner

الْمُسْتَقِيْمَ﴾ [اومونږ دوی لره په نیغه لاره باندقائم وساتل] چه اعلی درجه ئ داده چه دوی لره مو معصوم نبیان جوړ کړل ﴿وَتَرَكْنَا عَلَيْهِمَا فِي الْاٰخِرِيْنَ﴾ [اومونږ ددي دواړو دپاره په وروستو راتلونکو خلقوکښې] داوړدي مودي دپاره [دا خبره پریښوده ﴿سَلٰمٌ عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ﴾ چه په موسی اوهارون سلام] چنانچه ددواړو حضراتود نوموسره ترننه پورې ﷺ وئیلې شی ﴿اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ﴾ [مونږ مخلصانوته داسې بدله] ورکوو چه دوی لره دثنااو دعا مستحق جوړ وو ﴿اِنَّهُمَا مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [بیشکه دغه دواړه زمونږ د] کاملو [ایماندارو بندګانونه وو] په دې وجه بدله هم کامله ورکړې شوه.

## معارف او مسائل

دې آیتونو کښې دریمه واقعه د موسی ﷺ اوهارون ﷺ بیان شوې ده چې په ګنړو ځایونو کښې په تفصیل سره تیره شوې ده ، ددې د بیانولو اصلی مقصد دلته داد ې چې الله ﷻ د خپلو فرمانبردارو اواخلاصمندو بندګانو په څه شان سره مدد کوی . او دوئ باندې څنګه څنګه انعامات کوی ، نو دلته په موسی ﷺ او هارون ﷺ باندې دخپلو انعاماتو بیان کوی . انعامونه دوه قسمه دی ، یو مثبت انعامات چې فائده پرې رسی ، اوبل منفی انعامات دی چې ضرر پرې دفع کیږی . دلته اول قسم انعاماتو ته اشاره داسې فرمائی چې ﴿وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ﴾ او د دویم قسم انعاماتو تفصیل په راتلونکو آیتونو کښې بیانیږی . د آیتونو مطلب د تفسیر د خلاصې نه واضح کیږی .

وَاِنَّ اِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ﴿

| او بیشکه الیاس ﷺ [هم] | درسولانو نه وو

| اوالیاس ﷺ هم په پیغمبرانو کښې شامل دې

اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَلَا تَتَّقُوْنَ﴿ اَتَدْعُوْنَ بَعْلًا وَّتَذَرُوْنَ

کله چې اووئیل هغه | قوم خپل ته | آیا نه یریږئ تاسو | آیا تاسو رابلئ | بعل بت | او پریږدئ تاسو

څه وخت چې هغه خپل قوم ته اووئیل | چې آیا تاسو دالله ﷻ نه نه ویریږئ | آیاتاسو دبعل عبادت کوئ

اَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ﴿ اللّٰهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ اٰبَآئِكُمُ

بهتره پیدا کونکې [الله] | [هغه] الله | چې رب ستاسو دې | او رب دپلارانو ستاسو |

اوښکلې خالق مو پریخودې دې | یعنی الله ﷻ چې ستاسو او ستاسو د پخوانو پلار نیکونو رب هم

الْاَوَّلِيْنَ﴿ فَكَذَّبُوْهُ فَاِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ﴿

رومبنو دې | پس هغوئ دروغ اوګڼړو هغه | پس بیشکه هغوئ | خامخا به حاضر کړې کیږی سزا ته

دې | ..........هغوئ الیاس ﷺ دروغ اوګڼړلو | نو دا ټول به عذاب ته حاضرولې شی

اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ﴿ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ

بغیر | دبندګانو دالله نه | هغه چې خالص کړې شوی وو | او پریښودو مونږ [صفت] | په هغه باندې |

سوا دالله تعالی د خاص بندګانو نه |............ اومونږ د هغه په باره کښې راتلونکو خلقو ته دا خبره

| فِي الْاٰخِرِيْنَ ۝ | سَلٰمٌ | عَلٰۤى اِلْ يَاسِيْنَ ۝ | اِنَّا | كَذٰلِكَ | نَجْزِي |
|---|---|---|---|---|---|
| په روستو نسلونو کښې | سلام دې | په الیاس باندې | بیشکه مونږ | دارنګې | بدله ورکوو مونږه |
| پریخوده ............ | چې په الیاس ﷺ دې سلام وی | ............ | بیشکه مونږ هم دغه شان نیکانو | | |

| الْمُحْسِنِيْنَ ۝ | اِنَّهٗ | مِنْ عِبَادِنَا | الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| نیکانو خلقو له | بیشکه وږ هغه | دبندګانو زمونږ | مومنانو نه |
| بندګانو ته بدله ورکوو | بیشکه دې زمونږ د مومنانو بندګانو ځنې وو | | |

## آسان ترجمه قرآن

او الیاس هم یقیناً د پیغمبرانو نه وو چه کله هغه خپل قوم ته وئیلي وو چه: آیا تاسو د الله تعالی نه ویرېږئ نه؟ آیا تاسو د بعل (لوی بت) عبادت کوئ، او هغه لره پرېږدئ، چه د ټولو نه بهتر تخلیق کونکې دې هغه الله تعالی چه ستاسو هم پروردګار دې، او د ستاسو د پلار نیکه هم. چه مخکښې تیر شوي دي. بیا دا اوشو چه هغوی الیاس علیه السلام ته دروغژن اووئیل . پس یقیناً هغوی به په عذاب کښې حاضرولې شي البته د الله تعالی خالص بندګان (به محفوظ وی) او کوم خلق چه د هغه نه روستو راغلل، په هغوی کښې مونږ دا روایت قائم کړو (چه هغوی به دا وائي چه) سلام دې وی په الیاسین باندې. یقیناً مونږ نیکی کونکو ته داسې بدله ورکوو. بے شکه هغه زمونږ د مومنانو بندګانو نه وو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِنَّ اِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ۝﴾ [او الیاس ﷺ [هم] دنبی اسرائیلو] پیغمبرانو نه وو] دد؛ دهغه وخت واقعه یاده کړه ﴿اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖۤ اَلَا تَتَّقُوْنَ ۝﴾ [هر کله چه دوی خپل قوم] بنی اسرائیلو[ته] چه هغوی په بت پرستئ کښې اخته وو [وفرمائیل چه ایاتاسو د الله تعالی نه نه ویرېږئ؟] ﴿اَتَدْعُوْنَ بَعْلًا﴾ ایاتاسو بعل لره] کوم چه دیوبت نوم وو [عبادت کوئ ﴿وَتَذَرُوْنَ اَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ ۝﴾ او هغه [عبادت لره ئې] پرېږدئ کوم چه د ټولونه دیر ښهٔ جوړونکې دې] ځکه چه نور خلق خو دځنې اشیاؤ په تحلیل او ترکیب قدرت لرې او هغه هم عارضي او هغه ټولو اشیاؤ لره د عدم نه په وجود کښې په راوستو ذاتي قدرت لري بیا بل څوك روح نه شي ورکولې او هغه روح ورکوی او هغه ﴿اللّٰهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ۝﴾ [معبود برحق دې] او [ستاسو هم رب دې او ستاسو د وړاندینو پلارانو نیکونو هم رب دې ﴿فَكَذَّبُوْهُ﴾ پس دغو خلقو] د توحید په دې دعوی کښې [هغه لره دروغژن کړو پس] ددې دروغژن کولو په شامت او بدبختئ کښې ﴿فَاِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ ۝﴾ [هغه خلق] د اخرت په عذاب کښې [به ونیولې شی ﴿اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ۝﴾ مګر کوم چه د الله تعالی خاص بندګان] یعني ایماندار [وو] هغه به په ثواب او اجر کښې وی ﴿وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ ۝ سَلٰمٌ عَلٰۤى اِلْ يَاسِيْنَ ۝﴾ [او مونږ د الیاس ﷺ د پاره په ورستو راتلونکو خلقو کښې] د اوږدې مودې د پاره [دا خبره پرېښوده چه په الیاسین باند] چه داهم د الیاس ﷺ نوم دې [د سلام وی ﴿اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ۝﴾ مونږ مخلصانو ته داسې بدله ورکوو] چه دوی لره دثنا او دعا مستحق جوړ وو ﴿اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ۝﴾ [بیشکه هغه زمونږ په] کاملو [ایماندارو بندګانو کښې وو

## معارف او مسائل

**الیاس ﷺ**: ﴿وَإِنَّ إِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ دې آیتونو کښې څلورمه واقعه د الیاس ﷺ بیان کړې شوې ده. دآیتونو دتفسیر نه رومبې د الیاس ﷺ باره کښې څو معلومات بیانولې شي:

قرآن پاک کښې د الیاس ﷺ بیان صرف په دوؤ مقاماتو کښې راغلې دې. یو په سورۀ انعام کښې او بل په دې سورة کښې په دې آیتونو کښې. په سورة انعام کښې صرف دپیغمبرانو ﷺ په لړئی کښې د الیاس ﷺ نوم مبارک شامل کړې شوېد ې. او بله څه واقعه ئې نه ده بیان کړې شوې. البته دلته ډیره لنډه د دوئ د بلنې اوتبلیغ واقعه بیان کړې شوې ده.

قرآن پاک کښې د الیاس ﷺ حالات په تفصیل سره بیان کړې شوی نه دی او نه په مستندو احادیثو کښې د دوئ حالات راغلی دی څکه د دوئ په باره کښې د تفسیر کتابونو مختلف روایتونه راختستی دی چې د هغې څینې زیات د بنی اسرائیلو روایتونه راختستې شوی دی.

مفسرینو کښې یوه مختصره ډله دا وائی چې الیاس ﷺ د ادریس ﷺ بل نوم دې پیغمبر دغه یو دې او څینې حضراتو دا وئیلی دی چې الیاس ﷺ او خضر ﷺ کښې هیڅ فرق نشته. [در منثور ص/۳۸۵، ۳۸۲ جلد/۵](۱).

خو محققینو دا اقوال رد کړی دی، قرآن پاک هم د ادریس ﷺ او الیاس ﷺ بیان په دې شان بیل بیل راختستې دې چې د هغې نه ددې دواړو یو کیدل نه ثابتیږی څکه حافظ ابن کثیر ﷫ پخپل تاریخ کښې صحیح هم دې ته وئیلی دی چې دواړه بیل بیل پیغمبران دی. [البدایه والنهایه ص/۳۳۹جلد/۱].

**د پیغمبر کیدو زمانه او مقام**: د قرآن پاک نه دا پته هم نه لګی چې الیاس ﷺ کله او چرته پیغمبر لیږلې شوې وو. خو تاریخی او اسرائیلی روایتونه په دې خبره تقریبا اتفاق لری چې الیاس ﷺ حزقیل ﷺ نه پس اود الیسع ﷺ نه وړاندې بنی اسرائیلو ته لیږلې شوې وو. داهغه زمانه ده چې د سلیمان ﷺ د جانشینو د بدکارئی په وجه د بنی اسرائیلو حکومت په دوؤ برخو کښې تقسیم کړې شوی وو. یوه حصه یهوداه یا یهودیه بللې شوه او د هغې مرکز بیت المقدس وو او بله حصه ئې اسرائیل بللې شوه چې پایۀ تحت ئې سامره یعنی موجوده نابلس وو، الیاس ﷺ د اردن په علاقه جلعاد کښې پیدا شوې وو. دغه وخت د اسرائیل په ملک کښې چې کوم بادشاه حکمران وو دهغه نوم په بائیبل کښې اخی اب او په عربی تواریخ کښې او تفاسیر کښې اجب یا اخب راغلې دې، دهغه ښځه ایزبل د بعل نومې یوبت عبادت کونکې وه او هم دې په بنی اسر ائیلو کښې د بعل په نوم باندې یو لوئې قربانګاه تعمیر کړې وو او ټول بنی اسرائیل ئې بت پرستئ باندې لګولې وو. الیاس ﷺ ته د الله ﷻ دطرفنه حکم اوشو چې دغه خائې ته په ورتلو دتوحید تعلیم ورکړی او اسرائیل د ې د بت پرستئ نه منع کړی. [په حواله دتفسیر ابن جریر ص/۵۳ جلد/۱۲۳، و ابن کثیر ص/۱۹ جلد/۴، او تفسیر مظهری ص/۱۳۴ جلد/۸، او د بائیبل کتاب سلاطین اول: ۱۷:۳۳ تا ۱۹:۱۲].

**قوم سره کشمکش**: څنګه چې د نورو پیغمبرانو ﷺ خپلو قومونو سره کشمکش راغلې دې، دغسې کشمکش د الیاس ﷺ هم خپل قوم سره راغلې وو. خو هر کله چې قرآن پاک دتاریخ

---

(۱) تفسیر الدرالمنثور تحت هذه الآیة: ج ۸، ص ۳۵٤

څه کتاب نه دي څکه د کشمکش تفصیلي حال بیانولو په ځائې یې صرف دومره خبره بیان کړې ده چې عبرت او نصیحت حاصلولو دپاره ضروري وه ، هغه داسې چې د الیاس ﷺ قوم الیاس ﷺ لره په دروغه اوبللو او د یو څو اخلاصي بندګانو نه سوا ، چاهم د الیاس ﷺ خبره اونه منله څکه به په آخرت کښې دیو خطرناک انجام سره مخامخ کیږي .

ځینې مفسرینو د لته ددغې کشمکش تفصیلي حالات بیان کړي دي ، په مروجه تفسیرونو کښې د الیاس ﷺ د ټولونه زیات تفصیلي بیان په تفسیر مظهري کښې د علامه بغوي ﷫ په حوالې سره کړې شوې دې . په دې کښې چې کوم واقعات بیان شوي دي هغه تقریبا د ځیرمې د بائیبل نه راخستې شوي دي . او په نورو تفسیرونو کښې هم بیان شوي دي چې اکثر اسرائیلي روایتونه نقل کوي .

ددې ټولو روایتونو نه راوتې شریکه خلاصه د اده چې الیاس ﷺ د اسرائیلو بادشاه اخي اب او دهغه رعیت د بعل نومې بت د عبادت نه منع کول او توحید ته ئې راؤبلل ، مګر د یو نیم حق پرستو کسانو نه بغیر چا هم د الیاس ﷺ خبره او نه منله . بلکه په قسماقسم طریقو سره ئې د هغه د پریشانه کولو کوشش ئې اوکړو. تر دې چې اخي اب او دهغه ښځې د الیاس ﷺ د شهید کولو منصوبې جوړې کړې . هغه په یو لرې غار کښې پناه واخسته او تر ډیرې زمانې پورې هلته پاتې شو ، دې نه پس الیاس ﷺ دعا اوکړه چې په اسرائیلو قحطي راولې ، غرض ئې دا وو چې دغې قحطئ لرې کولو دپاره به ورته الیاس ﷺ خپلې معجزې څرګند کړي نو ګیدیشي چې هغوئ ایمان راؤړي . نو په هغوئ سخته قحطي راغله .

دې نه پس الیاس ﷺ د الله ﷻ په حکم د اخي اب سره ملاقات اوکړو او ورته ئې اوفرمائیل چې دا عذاب د نافرمانئ په وجه دې که تاسو اوس هم منع شئ نو عذاب به تاسو نه لرې شي . زما د رښتونولي د امتحان هم د ازیاته غوره موقعه ده ، تاسو وایئ چې په اسرائیلو کښې ستاسو د معبود بعل څلورنیم سوه پیغمبران دي تاسو یوه ورځ دا ټول زما په وړاندې جمع کړئ ، هغوئ دې دبعل په نوم قرباني پیش کړي او زه به د الله ﷻ په نوم پیش کړم ، د چا قربانئ لره چې آسماني اور اورسیږي . دهغه دین به رښتیا وي ټولو د الیاس ﷺ تجویز په خوشحالئ اومنلو . نو د کرمل نومې غر مقام باندې ئې دا اجتماع اوشوه . د بعل دروغژنو پیغمبرانو چې خپله قرباني پیش کړه او د صبا نه تر غرمې پورې ئې بعل ته زارئ اوکړې خو هیڅ جواب رانغلو ، دې نه پس الیاس ﷺ خپله قرباني پیش کړه چې آسماني اور اوسیزله . ددې په لیدو ډیر خلق په سجده پریوتل او په هغوئ باندې حق واضح شو . خود بعل دروغژنو پیغمبرانو بیا هم اونه منل . څکه هغوئ لره الیاس ﷺ په قیشون وادئي کښې په خلقو اووژل .

دې واقعې نه پس په شیبو باران هم او شو او پوره علاقه په اوبو سره پنړه اوخړوب شوه . خو سره ددې داخي اب د ښځې ایزبل سترګې اونه غړیدې ، هغې په الیاس ﷺ باندې د ایمان راؤړلو په ځائې د الیاس ﷺ دښمنه شوه . اود الیاس ﷺ د وژلو تیارۍ ئې شروع کړو. الیاس ﷺ چې خبر شونو سامریه نه بیا پټ شو . اوڅه زمانه پس ئې د بني اسرائیلو په بل ملک کښې بیا تبلیغ شروع کړو. ولې چې هلته هم رو رو د بعل پرستئ وباء خوریدله . د هغه ځائې بادشاه یهورام هم د الیاس ﷺ خبره اونه منله . تردې چې هغه د الیاس ﷺ د پیشنګوئ متعلق کښې تباه شو او برباد شو څو کاله پس هغوئ دوباره اسرائیل ته تشریف راوړو ،

Scanned with Ca

اوبيا ئې اخې اب اودهغه ځوئې اخزياه لره په سمه لار دراوستو کوشش اوکړو خو سره ددې هغوئ د خپلو بدو عملونو نه منع نشو. تر دې چې هغوئ دبهرنو حملو او د هلاکوونکو رنځونو ښکار جوړ کړې شو ، دې نه پس الله ﷻ خپل پیغمبر واپس اوبللو.

**آيا الياس ﷺ ژوندې دې ::** دتاريخ پوهانو او مفسرينو ترمينځه دا مسئله د بحث لاندې راغله چې آيا الياس ﷺ ژوندې دې او که وفات شوې دې. په تفسير مظهرى کښې د علامه بغوى رحمه الله په حواله چې کوم اوږد روايت بيان کړې شوې دې ، په هغې کښې دا هم بيان شوې دى چې الياس ﷺ د اور په يو اس سور کړې شوې آسمان ته خيژولې شوې دې. او هلته په آسمانونو کښې لکه د عيسى ﷺ پشان ژوندې دې. [مظهرى ص/۱۴۱ ، ج/۸].

علامه سيوطى رحمه الله هم د ابن عساکر او حاکم وغيره په حواله ګڼ داسې روايتونه نقل کړى دى چې د هغې نه د الياس ﷺ ژوندى پاتې کيدل معلوميږى. کعب الاحبار نه منقول دى چې ځلور پيغمبران ﷺ تر اوسه پورې ژوندى دى، دوه په زمکه کښې، خضر ﷺ او الياس ﷺ. او دوه په آسمانونو کښې ، عيسى ﷺ او ادريس ﷺ. [در منثور ص/۲۸۲ ، ۲۸۵ ، جلد/۵][1]. تر دې پورې چې ځينې حضراتو دا هم وئيلى دى چې خضر ﷺ او الياس ﷺ هر کال په رمضان کښې په بيت المقدس کښې جمع کيږى. او روژې ساتى . [تفسير قرطبى ص/۱۱۲ جلد/۱۵].

خو حافظ ابن کثير رحمه الله غوندې محققينو عالمانو دې روايتونو ته صحيح نه دى وئيلى هغوئ رحمه الله دداسې روايتونو باره کښې ليکلى چې ::

وهومن الاسرائيليات التى لاتصدق ولاتكذب بل الظاهران صحتها بعيدة

يعنى دا اسرائيلى روايتونه دى چې تصديق او تکذيب ئې دواړه نشى کيدې ، بلکه ښکاره خبره داده چې صحيح ثابتيدل ئې هم لرې خبره ده . [البدايه والنهاية : ص/۳۳۸ جلد/۱].

داشان فرمائي چې :

ابن عساکر رحمه الله ګڼ روايتو نه دهغې خلقو نقل کړى دى چې الياس ﷺ سره يو ځائې شوى دى خو په هغې کښې يو هم اعتبارى نه دې. يا خو ځکه چې سند ئې ضعيف دې يا هغه کسان مجهول دى چاته چې دا واقعات منسوب کړې شوى دى [البدايه والنهايه: ص/۳۳۹ جلد/۱].

ښکاره داده چې دا نظريه د اسرائيلى روايتونو نه اخستې شوې ده . چې الياس ﷺ آسمان ته خيژولې شوې دې . بائيبل کښې داسې ليکلى دى چې :

او هغوئ ﷺ مخ په وړاندې روان وو خبرې ئې کولې چې ګورى يو اور ګاډى او د اور اسونو هغوئ دواړه بيل کړل او ايلياه[2] [الياس ﷺ] د اور په شعله کښې آسمان ته لاړو [۲- سلاطين ۲:۱۱].

په دې وجه يهوديانو کښې دا عقيده پيدا شوې وه چې الياس ﷺ بهٔ دوباره زمکې ته تشريف راوړى.لهذا کله چې يحيى ﷺ پيغمبر شو نو هغوئ پرې د الياس ﷺ شبه ښکاره کړه په انجيل يوحنا کښې دى: هغوئ ترې تپوس اوکړو چې څوک ئې ايليا خو نه ئې هغوئ ﷺ اووئيل چې نه يم [يوحنا: ۱:۲۱].

---

[1]) تفسير الدرالمنثور تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۳۵٤

[2]) دا ياد ساتى چې بائبل کښې د الياس ﷺ نوم ايلياه مذکور دې

داسي معلوميږي چې كعب الاحبار رحمه الله او وهب بن منبه رحمه الله غوندي علماء د اهل كتابو د علمونو ماهران وو هغوئ به هم دا روايتونه د مسلمانانو په وړاندې بيان كړي وي. چې دهغوئ نه د الياس عليه السلام د ژوند نظريه په ځينې مسلمانانو كښې هم خوره شوه. ګنې قرآن پاک اوحديث كښې داسې څۀ دليل نشته چې دهغې نه د الياس عليه السلام ژوندي پاتې كيدل ملاويږي صرف مستدرك د حاكم كښې يو روايت ملاويږي چې د تبوک په لاره كښې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم ملاقات د الياس عليه السلام سره شوې دې، خو محدثينو دې حديث ته په ډاګه موضوعى وئيلې دې ، لكه حافظ ذهبى فرمائى چې:

بل هوموضوع قبح الله من وضعه وماكنت احسب ولا اجوزان الجهل يبلغ بالحاكم الى ان يصحح هذا

يعنى بلكه دا حديث منګړت د ځانه جوړ شوې دې ، الله ﷻ دې مخ وران كړى د هغه كس چا چې داحديث پاک د ځانه جوړكړې دې ، ددې نه وړاندې زما په ګمان كښې هم نه وو چې د امام حاكم بې خبرى به دې حد ته رسيدې شى چې هغه دې حديث پاک ته صحيح اووائى [در منثور ص/۲۸۶ جلد/۵]([1]).

خلاصه دا شوه چې د الياس عليه السلام ژوندي پاتې كيدل د يو معتبر اسلامى روايت نه ثابت نه دي، نو په دې معامله كښې د سلامتيا لار داده چې پدې كښې چپ كيدل اختيار كړې شى ، اود اسرائيلى روايتونو په سلسله كښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په تعليم باندې عمل اوكړې شى چې مه ئې رښتيا بولئ او مه ئې دروغ. ولې چې د قرآن پاک تفسير اودعبرت او نصيحت مقصد ددې نه بغير هم په پوره شان حاصليدې شى ، والله سبحانه وتعالى اعلم.

اوس د آيتونو په تفسير باندې غور اوكړئ :

﴿أَتَدْعُونَ بَعْلًا﴾ يعنى آيا تاسو دبعل عبادت كوئى. دبعل معنى ميړه او مالک وغيره ده ، خو دا د بت نوم وو كوم چې د الياس عليه السلام قوم خپل معبود جوړ كړې وو. د بعل د عبادت كولو تاريخ ډير پخوانې دې ، دشام په علاقه كښې د موسى عليه السلام په زمانه كښې ددۀ عبادت كيدو، دا دهغوئ ټولو نه زيات قبول شوې معبود وو. دشام مشهور ښار بعلبک همس ددې په نوم دې او د ځينو خلقو خيال دادې چې دا هل حجاز مشهور بت هبل هم دا بعل دې [قصص القرآن ص/۲۸ ج/۲].

﴿وَتَذَرُونَ أَحْسَنَ الْخَالِقِينَ﴾ او هغه مو پريخودې چې د ټولو نه زيات ښه جوړونكې دې ، دې نه مراد الله ﷻ دې. او د ﴿أَحْسَنَ الْخَالِقِينَ﴾ د ټولونه زيات غوره خالق، مطلب دا نه دې چې معاذالله ، څوک بل هم خالق كيديشى. بلكه مطلب دادې چې كوم په دروغه معبودان تاسو خالقان ګرځولى دى ، هغه ﷻ په ټولو كښې د لوړ شان خاوند دې [قرطبى]([2]).

اوځينو مفسرينو وئيلى دى چې دلته خالق د صانع يعنى جوړونكى په معنى استعمال شوې دې مطلب ئې دادې چې الله ﷻ د ټولو كاريګرو يعنى جوړونكو نه زيات غوره جوړونكې دې يعنى نور كاريګر خو داسې كولې شى چې مختلفې پرزې او برخې راپوځائې كړى او څه څيز ترې تيار كړى. دائې هيڅكله په وس كښې نشته چې دنيشت نه څه څيز شته كړى او الله ﷻ دا

[1] وكذا فى تعليقات الذهبى على المستدرك، رقم الحديث: ٤٢٣١

[2] تفسير القرطبى: ج ١٥، ص ١١٧

Scanned with Ca

ذاتی قدرت لری چې د نیشت نه څه څیز شته کړی [بیان القرآن](١).

**دالله ﷻ نه بغیر بل چاته د پیداکولو صفت منسوب کول جائز نه دی :** دلته دا خبره یاد لرل پکار دی چې د خلق معنی پیدا کول دی چې په قدرت ذاتی سره څه څیز دنیشت نه شته کړی ، څکه دا صفت د الله ﷻ سره خاص دې بل چاته ئې منسوب کول جائز نه دی . نوزمونږ په زمانه کښې چې د کوم رواج له مخې د اهل قلم مضمونونه، دشاعرانو شعرونه او دتصویر جوړونکو تصویرونو ته دهغوئ تخلیق وئیلې شی بالکل جائز نه دی. ولې چې الله ﷻ نه بغیر بل هیڅوک خالق نشی کیدې. په دې وجه دهغوئ مضمونونوته کاوش یا مضمون وغیره پکار دی نه چې تخلیق.

﴿فَكَذَّبُوهُ فَإِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ﴾ یعنی نو دغې خلقو هغه لره په دروغه اوبللوچې راوبه نیولې شی ، مطلب دادې چې هغوئ به د الله ﷻ د رسول ﷺ د دروغژن کولو مزه اوڅکی . دې نه دآخرت عذاب هم مراد کیدیشی . او ددنیا خراب انجام هم . وړاندې تیر شوی دی چې د الیاس ﷺ د دروغژن بللو په نتیجه کښې د یهوداء او اسرائیل د دواړو ملکونو حکمرانان تباهئ سره مخامخ شو، ددې تباهئ تفصیل په تفسیر مظهری(٢) کښې او د بائیبل په کتاب سلاطین اول باب :۲۲ سلاطین دویم باب اول اوتواریخ دویم باب : ۲۱ کښې موجود دې.

﴿إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾ دلته د مخلصین په لام باندې زور دې ، لفظ استعمال شوې دې چې معنی ئې خالص کړې شوی خلق ده ،مطلب تر هغه خلق دی چې الله ﷻ خپلې فرمانبردارئی اواجر او ثواب دپاره خالص کړی وی . څکه ددې ترجمه د اخلاص لرونکو په ځائې چونړ کړې شوی، زیاته مناسبه ده .

﴿سَلَامٌ عَلَىٰ إِلْ يَاسِينَ﴾ الیاسین هم د الیاس ﷺ یو نوم دې اهل عرب اکثر عجمی نومونو سره یاء او نون زیاتوی لکه سینا سره سینین او دلته الیاس سره دوه حرفونه زیات کړې شوی دی الیاسین.

| وَإِنَّ لُوطًا | لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ | إِذْ | نَجَّيْنَاهُ | وَأَهْلَهُ أَجْمَعِينَ |
|---|---|---|---|---|
| او بیشکه لوط ﷺ | درسولانو نه | وو | اِکله چې | بچ کړو مونږ هغه | او اهل دهغه تول |
| او بیشکه لوط ﷺ هم د پیغمبرانو څنی وو | څه وخت چې مونږ هغه او دهغه متعلقین تول بچ کړل | | | |
| إِلَّا عَجُوزًا | فِي الْغَابِرِينَ | ثُمَّ دَمَّرْنَا | الْآخَرِينَ | |
| بغیر د یوې بوډئ نه | چې په روستو پاتې کیدونکو کښې وه | بیا هلاك كړل مونږه | باقی نور [تول] | |
| خو بس یوه بوډئ [هلاکه شوه] | چې په روستو پاتې کیدونکو کښې وه | بیا مونږ تول خلق تباه کړل | | |
| وَإِنَّكُمْ | لَتَمُرُّونَ | عَلَيْهِمْ | مُصْبِحِينَ | وَبِاللَّيْلِ |
| او بیشکه تاسو | خامخا تیریږئ | په هغوئ باندې | په صبا کښې | او په شپه کښې |
| اوتاسو خلق صبا بیګاه دهغوئ په علاقو تیریږئ | نوآیا تاسو نه پوهیږئ | | | |

(١) تفسیر بیان القرآن: ج ۹، ص ۱۳۱ تحت هذه الآية.
(٢) تفسیر المظهری: ج ۸، ص ۱۳٤ نه ۱٤۲ پورې.

Scanned with Ca

| |
|---|
| اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ |
| آيا پس نۀ چلوئ عقل تاسو |
| [چه دهغوی د تباهئ نه عبرت واخلئ] |

## آسان ترجمه قرآن

او يقيناً لوط عليه السلام هم د پيغمبرانو نه وو. چه كله مونږ هغه ته او د هغه ټولې كورنئ ته (د عذاب نه) نجات وركړو سوا د يوې بوډئ نه، چه روستو پاتې كيدونكو كښې شامله شوه بيا مونږ نور خلق تباه كړل. او (اے مكې والو) تاسو د هغوی (په كلو) باندې تيريږئ، كله د سحر په وخت.او كله د شپې په وخت كښې آيا بيا هم تاسو د عقل نه كار نه اخلئ.

## خلاصه تفسير

﴿وَاِنَّ لُوۡطًا لَّمِنَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ﴾او بيشكه لوط [هم دپيغمبرانو نه وو] د دۀ دهغه وخت قصه ديادولو قابله ده ﴿اِذۡ نَجَّيۡنٰهُ وَاَهۡلَهٗۤ اَجۡمَعِيۡنَ﴾[هركله چه مونږ ده لره او ددۀ متعلقينو ټولو لره نجات وركړو﴿اِلَّا عَجُوۡزًا فِى الۡغٰبِرِيۡنَ﴾ بغير دهغې بوډئ نه[يعنى د دۀ دبى بى] چه هغه [په عذاب كښې] دپاتې كيدونكوسره پاتې شوه ﴿ثُمَّ دَمَّرۡنَا الۡاٰخَرِيۡنَ﴾ بيا مونږ نورو ټولو لره [كوم چه دلوط او ددۀ داهل نه سوا وو] هلاك كړل] چه قصه ئې څوځايه تيره شوې دۀ [او] اے دمكې خلقو﴿وَاِنَّكُمۡ لَتَمُرُّوۡنَ عَلَيۡهِمۡ مُّصۡبِحِيۡنَ وَبِالَّيۡلِ﴾[تاسوخو دهغوی] په كلواو مسكنونودشام په سفر كښې كله [دسحر په وخت او] كله [دمابښام په وخت تيريږئ] او دبربادئ نښې وينئ [﴿اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ﴾نو آيا] ددې په ليدو [بياهم نه پوهيږئ] چه دكفر څه انجام شو او څوك چه اتنده كفر كوی دهغه دپاره هم دا ويره ده

## معارف او مسائل

﴿وَاِنَّ لُوۡطًا لَّمِنَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ﴾په دې آيتونو كښې پنځمه واقعه د لوط بيان كړې شوې ده . دا واقعه په تيرو شوؤ ګڼړو ځايونو كښې بيان شوېده څكه ئې دلته دتفصيل بيانولو ضرورت نشته دې. دلته اهل مكه ته په خاص ډول خبرداري وركړې شوې دې چې تاسو دشام په تجارتى سفر كښې د سدوم په دغې علاقې ، شپه ورځ تيريږئی چرته چې دا عبرتناكه واقعه راپيښه شوې ده. خو ددې نه هيڅ عبرت نه حاصلوی . د صبا او شپې ذكر په خاص ډول څكه اوفرمائيلې شو چې اهل عرب به هم غالبا په دې وختونو كښې ددې ځائې نه تيريدل او قاضى ابوالسعود فرمائی چې غالبا دسدوم دغه علاقه د لارې پداسې پړاؤ باندې پرته وه چې دغه ځائې نه كېه كوونكى به د صبا په وخت كښې روانيدل اود راتلونكى به دمابښام په وخت دغلته ايساريدل [تفسير ابى السعود] (۱).

| إِذۡ | لَمِنَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ | وَاِنَّ يُوۡنُسَ |
|---|---|---|
| كله چې | درسولانو نه وو | او بيشكه يونس عليه السلام |
| څه وخت | او يونس هم د پيغمبرانو څنى وو | |

۱) تفسير ابى السعود تحت هذه الآية: ج ۵،ص ۴۵۴

Scanned with Ca

اَبَقَ | اِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ۝ | فَسَاهَمَ | فَكَانَ

هغه اوتښتيدو | کشتئ | ډکې | ته | نو په خسنړی کښې شريك شو | پس شو |

چې اوتښتيدو [اوبوې] ډکې بيړئ ته اورسيدو | .........نو په خسنړی کښې شريک شو

مِنَ الْمُدْحَضِيْنَ ۝ | فَالْتَقَمَهُ | الْحُوْتُ | وَهُوَ مُلِيْمٌ ۝

دبيلات کونکونه په قرعه اندازئ کښې | پس تېر کړو هغه لره | مهی | او هغه ملامته وؤ |

نود بيلات کونکو څنې شو | بيا دې يو مهی لوا ر تير کړو | [اوحال دا وو] چې دې [سخت] پښيمانه وو

فَلَوْلَآ | اَنَّهٗ كَانَ | مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ ۝ | لَلَبِثَ

پس که چرې نهٔ وې دا خبره | چې وؤ هغه | دتسبيح ويونکونه | نو خامخا به ئې وخت تيرولې |

بيا که چرې دې دالله ﷻ تسبيح کونکي نه ووٓ | نو ددغه مهی په خيټه ..............

فِيْ بَطْنِهٖٓ | اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ۝ | فَنَبَذْنٰهُ

په خيټه دمهی کښې | دهغه ورځې پورې چې راپاسولې کيږي خلق | پس اوغورزووٓ مونږ هغه

کښې به ترقيامته پروت ووٓ | نومونږ دې په يو هوار ميدان کښې واچولو | چې ډير

بِالْعَرَآءِ | وَهُوَ سَقِيْمٌ ۝ | وَاَنْۢبَتْنَا | عَلَيْهِ | شَجَرَةً

په ډاګه | او هغه ناجوړه [کمزورې] ووٓ | او راوخيژوله مونږه | په هغه باندې | ونه |

کمزورې شوې وو | اومونږ په ده باندې يوه زيلئ داره ونه رازرغونه کړه |

مِّنْ يَّقْطِيْنٍ ۝ | وَاَرْسَلْنٰهُ | اِلٰى مِائَةِ اَلْفٍ | اَوْ يَزِيْدُوْنَ ۝

زيلو والا [کدو ] | او اوليږو مونږه هغه | يولاك خلقو ته | يا زياتوته ددې نه |

او مونږ دې يو لاکهٔ يا ددې نه زياتو خلقو طرفته ليږلې ووٓ |

فَاٰمَنُوْا | فَمَتَّعْنٰهُمْ | اِلٰى حِيْنٍ ۝

پس هغوئ ايمان راوړو | پس نفع ورکړه مونږ هغوئ له | دخاص وخته پورې |

نودوئ ايمان راوړو | نو مونږ دوئ ته يو مقرروخته پورې [د دنياوی ژوند] فائده ورکړه |

**آسان ترجمه قرآن**

او يقيناً يونس عليه السلام هم د پيغمبرانو نه وو. چه کله هغه اوتښتيدو، او ډکې کشتۍ ته اورسيدو بيا هغه په قرعه اندازئ کښې شريک شو، اوپه قرعه کښې مغلوب شو. بيا مهې هغه لره لوا ر تير کړو، اوهغه خپل ځان ملامته کولو نوکه هغه د تسبيح ويونکو نه نهٔ وو. نو هغه به تر هغې ورځې پورې د مهې په ګيډه کښې پروت وو، په کومه ورځ چه به مړی ژوندې کولې شي. بيا مونږ هغه لره په داسې حالت کښې په يو کهولاؤ ميدان کښې واچوؤ، چه هغه بيمار وو اودهغه د پاسه مو يو زيلو والا اونه زرغونه کړه. اومونږ هغه لره يولاک. بلکه ددې نه هم زياتو خلقو ته پيغمبر ليږلې وو بيا هغوی ايمان راؤړې وودې وجې نه مونږ هغوی ته يوې زمانې پورې د ژوند نه فائده اخستلو موقع ورکړه.

Scanned with Ca

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِنَّ يُوْنُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ [او بیشکه یونس] [هم دپیغمبرانونه وو] د دهٔ دهغه وخت قصه یاده کړه ﴿اِذْ اَبَقَ اِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ﴾ [هرکله چه] دهٔ خپل قوم ته دایمان په نه راوړو باند دالله تعالی دعذاب پیشګوئی وکړه او په خپله د هغه ځائ نه لاړو او هرکله چه په مقرر وخت باند دعذاب نښې ښکاره شوې نو قوم دایمان راوړو په غرض سره دیونس په تلاش کښې شو هرکله چه هغه ملاؤنه شو نو ټول متفق شول او دالله تعالی په وړاند ئ ژړا فریاد اوکړو او په اجمالی طور ئ ایمان راوړو او دغه عذاب واپس شو حضرت یونس ته په څه ذریعه دا خبرمعلوم شو نو دشرمندګئ په وجه سره په خپل اجتهاد دالله تعالی د واضح اجازت نه بغیر ئ چرته لرې دتللو اراده وکړه او دخپل ځائ نه [وتښتیدو] په لاره کښې دریاب وو په دې کښې دمسافرو نه ډکه کشتئ وه په دغه [ډکه کشتئ کښې کښیناستلو] کشتئ روانه شوه نو طوفان راغې کشتئ والو ووئیل چه په مونږ کښې څوك نوې قصور وار دې دې دکشتئ نه لرې کول پکاردی هغه سرې دمتعین کولو دپاره دټولو اتفاق په دې وشو چه خسنړې ئ واچولو ﴿فَسَاهَمَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِيْنَ﴾ [پس نو یونس] [هم په خسنړی کښې شریك شو نو] په خسنړی کښې [دې ملزم وګرځیدو] یعنی ددهٔ نوم راوختلو پس دهٔ خپل ځان دریاب ته وغورزولو شاید چه غاړه به نزدې وه نو په لامبو وهلو به ئ غاړې ته دځان رسولو اراده کړې وه نو زمونږ په حکم سره ﴿فَالْتَقَمَهُ الْحُوْتُ وَهُوَ مُلِيْمٌ﴾ [دهٔ لره مهی] ثابت [تیرکړو او دهٔ] دغه وخت [خپل ځان لره] په دې اجتهادی غلطئ سره [ملامته کولو] داخو په زړهٔ سره توبه شوه او په ژبه ئ هم په تسبیح او توحید سره استغفار کولو لکه چه په بل ایت کښې دی [لااله الاانت سبحانك انی کنت من الظلمین][1]

﴿فَلَوْلَآ اَنَّهٗ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ﴾ [پس که هغه] داوخت [په تسبیح] او استغفار [کوونکوکښې نه وې ﴿لَلَبِثَ فِيْ بَطْنِهٖٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ﴾ نو ترقیامته پورې به ددهٔ ګیډه کښې پاتې شوې و] مطلب دادې چه دګیډې نه به نه وو وتلې بلکه د هغه خوراك شوې به وو [پس] چونکه دهٔ تسبیح او توبه وکړه په دې وجه ﴿فَنَبَذْنٰهُ بِالْعَرَآءِ﴾ [مونږه] دې ددې نه محفوظ کړو او دمهی د ګیډې نه مو ووېستلو [دهٔ لره مو په یو میدان وغورزولو] یعنی مهی ته مو حکم ورکړو چه غاړې ته ئ وغورزوه ﴿وَهُوَ سَقِيْمٌ﴾ [او هغه دغه وخت کمزورې وو] ځکه چه دمهی په ګیډه کښې ورته کافی هوا او خوراك نه ملاویدو ﴿وَاَنْۢبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِّنْ يَّقْطِيْنٍ﴾ [اومونږه] د غرمونه دبچ کیدو دپاره [په دهٔ یوه زیلیده اونه هم زرغونه کړه] او یوې صحرائی بیزې به دوی له پې ورکول ﴿وَاَرْسَلْنٰهُ اِلٰى مِائَةِ اَلْفٍ اَوْ يَزِيْدُوْنَ﴾ [او مونږ دوی یو لاك یا ددې نه زیاتو سړو طرف ته] دموصل په خواه کښې نینوا ښار ته [پیغمبر جوړکړو ولیږلو ﴿فَاٰمَنُوْا فَمَتَّعْنٰهُمْ اِلٰى حِيْنٍ﴾ بیا دغوخلقو ایمان راوړې و] دعذاب دنښوپه لیدو اجمالا او دمهی د واقعې نه پس حضرت یونس هلته دوباره تشریف یوړو دغه وخت تفصیلا [خو] دایمان په برکت سره [مونږ دوی ته تر یوې زمانې پورې [یعنی دعمر تر زمانې پورې په ښه شان ورته] عیش ورکړو.

---

[1] ترجمه: ستانه سوا څوک هم معبود نشته، ته پاک یې بې شک څه قصوروار یم.

## معارف او مسائل

﴿وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ دې سورة کښې آخري واقعه د يونس ﷺ بيان کړې شوې ده ، دا واقعه او ورسره تړلې تفصيلات د سورة يونس په آخر کښې تير شوی دی ،[حواله د معارف القرآن ص: ۵۷۵ ج: ۴].

ددې آيتونو مبارکو باره کښې څو ضروري خبرې داسې دی :

﴿وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ ځينې مفسرينو او مؤرخينو په دې باندې بحث کړې دې چې يونس ﷺ د کب يعنی ماهی د واقعې نه وړاندې پيغمبر جوړ کړې شوې وو او که دې نه روستو ؟ د ځينې حضراتو خيال دادې چې د کب د واقعې نه روستو پيغمبر جوړ کړې شوې وو خو د قرآن پاک د ظاهري طرز او ګڼړو روايتونو نه هم دا غوره معلوميږي چې ددې نه وړاندې پيغمبر جوړ کړې شوی وو.

﴿إِذْ أَبَقَ إِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ﴾ يعنی کله چې هغوئ ﷺ او تښتيدل ډکې کشتۍ ته . اَبَقَ د اباق نه مشتق دې معنی ئې د خپل آقا نه د غلام تښتيدل دی ، دلته د يونس ﷺ د پاره ددې لفظ د استعمالولو مطلب دا راځيژی چې يونس ﷺ د وحی د انتظار کولو نه بغير خپل ځائې نه بهر ته روان شوی وو . هرکله چې پيغمبران ﷺ د الله ﷻ نزديکان وی ځکه د هغوئ معمولی خوځيدل هم د لوئې ګرفت سبب جوړيږی . په دې بنا هغوئ د پاره دا سخت الفاظ استعمال کړې شول .

﴿فَسَاهَمَ﴾ نو هغوئ ﷺ په خسنړی اچولو کښې شريک شو . دا خسنړې هغه وخت اچولې شوی وو چې د درياب مينځ ته دغه کشتۍ اورسيده اوهلته د دروندوالی په وجه ئې د ډوبيدو ويره پيدا شوه . فيصله دا اوشوه چې يو کس دې درياب کښې ګزار کړې شی ، خسنړې ددغې سړی ټاکلو د پاره واچولې شو.

**دخسنړی اچولو حکم** : دلته په دې خبره ځان پوهول پکار دی چې د خسنړی په ذريعه د چا حق ثابتول يا څوک مجرم ګرځول نشی کيدې . لکه په دې سره څوک غل نشی نيولی ، دغسې دجګړې څه څيز يا جائيداد د خسنړی اچولو په ذريعه د يو کس ملکيت نشی ګرځولې . البته په دې سره څوک مکمل اختيار مند بنده خپل ځان د پاره په ډيرو جائزو لارو کښې يوه لاره ټاکلې شی لکه د يو نه د زياتو ښځو خاوند چې په سفر باندې ځان سره بوتللو د پاره يوه ښځه ټاکل غواړی چې د بلې يا نورو ښځو زړونه ئې مات نشی ځنګه چې دنبی کريم ﷺ طريقه وه.[1] دلته د يونس ﷺ په واقعه کښې هم په خسنړی اچولو سره څوک مجرم ثابتول نه وؤ بلکه د ټولې کشتۍ د بچ کولو د پاره يو کس په درياب کښې اچولې شو خو په دې سره صرف هغه او ټاکلې شو.

﴿فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِينَ﴾ يعنی نو هغوئ مغلوب شو . د احاض لغوی معنی چالره ناکامه جوړول ده . مطلب دادې چې په خسنړی اچولو کښې هم دهغوئ نوم راووتلو او يونس ﷺ په درياب کښې ځان ګزار کړو . په دې د ځان وژلو شبه کول پکار نه دی کوم چې کيدېشی چې

[1]) صحيح البخاری، کتاب المغازی، حديث الافک: ج ۲،ص ۵۹٤

یونس ﷺ په لامبو وهلو سره د دریاب غاړې ته د راوتو اراده کړې وی.
﴿فَلَوْلَآ أَنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ﴾ ددې آیت مبارک نه دا مطلب اخستل غلط دی چې که تسبیح یې نه وئیلې نو دغه کب به تر قیامته پورې ژوندې وو بلکه مطلب دا دې چې ددې کب خیټه به د یونس ﷺ قبر جوړ کړې شوې وو.

**په تسبیح او استغفار سره مصیبتونه لرې کیږي**: ددې آیت مبارک نه دا معلومه شوه چې په مصیبتونو اوآفتونو لرې کولو کښې استغفار خاص دخل لری. په سورت انبیاء کښې تیر شوی دی چې یونس ﷺ به دا کلمه وئیله چې ﴿لا اله الا انت سبحنك انی كنت من الظّالمین﴾(۱) هم ددې کلمې په برکت سره یونس ﷺ ته د آزمیښت نه خلاصې ورکړو او یونس ﷺ د کب د خیټې نه صحیح سلامت راووتل، ځکه د ځینې بزرګانو نه منقول راغلی دی چې هغوئ دخانی یا اجتماعی مصیبت په وخت دا کلمه یو لاک پنځه ویشت زره ځل
اووئیله او هم ددې په برکت سره الله ﷻ مصیبت لرې کړو. په ابی داود کښې د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه په روایت کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې یونس ﷺ چې کومه دعا دکب په خیټه کښې کړې وه، هغه چې مسلمان کوم مقصد دپاره لولی نو دهغوئ دعا به قبوله وی [تفسیر قرطبی](۲).
﴿فَنَبَذْنٰهُ بِالْعَرَآءِ وَهُوَ سَقِيْمٌ﴾ نو مونږ هغه په ډاګه اوغورځولو، چې دغه وخت بې تابه وو، دالعراء معنی ډاګه ده چې هیڅ ونه [درخته] په کښې نه وی. د ځینې روایتونو نه معلومیږی چې دغه وخت یونس ﷺ د کب په خیټه کښې دپاتې کیدو په وجه ډیر زیات کمزورې شوې وو او په بدن مبارک ئې ویښته هم نه وو پاتې شوی.
﴿وَاَنْۢبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِّنْ يَّقْطِيْنٍ﴾ اومونږ په هغوئ باندې یو بیلداره ونه هم راټوکولې وه. یقطین هرې بې تنې بوټی ته وائی. د روایتونو تر مخه دا دکدو ونه وه. مطلب ئې یونس ﷺ باندې سیورې کول وو او دلته د شجرة لفظ دا ښائی چې د معجزې په ډول الله ﷻ دغې بوټی نه ونه جوړه کړې وه، یا بل څه ونه وه چې په هغې باندې ئې دغه جیلغونه خواره کړی او خیژولی وو. چې د هغې نه ګڼړ سیورئی حاصل شی. هسې خو د جیلعدار بوټی نه سیورئ حاصلیدل مشکل وی.
﴿وَاَرْسَلْنٰهُ اِلٰى مِائَةِ اَلْفٍ اَوْ يَزِيْدُوْنَ﴾ اومونږ هغوئ ﷺ یو لکو یا ددې نه زیاتو کسانو ته دپیغمبر په حیث لیږلې وو، دلته یو اشکال داسې راپورته کیږی چې الله ﷻ خو علیم او خبیر دې، هغه ته د شک ښکاره کولو څه ضرورت دې. چې وې فرمائیل چې لکو یا ددې نه زیاتو کسانو ته مو اولیږلو. جواب ئې دادې چې دا دعامو خلقو په مناسبت سره وئیلې شویده یعنی که یو عام بنده دغه خلق لیدلې وی نو داسې به ورته ښکاریدل چې یو لاکهـ یا څه زیات کسان دی [مظهری](۳).

(۱) ترجمه: ستانه سوا څوک هم معبود نشته، ته پاک يې بې شک څه قصوروار یم.
(۲) جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب ما جاء فی عقد التسبیح بالید قبیل الأسماء الحسنیٰ: ج ۲، ص ۱۸۸.
تفسیر القرطبي: ج ۱۵، ص ۱۲۷
(۳) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۸، ص ۱٤٦

Scanned with Ca

او تهانوی رحمه الله فرمائیلی دی چې دلته شک ښکاره کول د سره مقصود نه دی ، دوئ ته یو لاک هم وئیلې شی . او دې نه زیات هم یعنی که د کسر لحاظ اونکړې شی نو یو لاک ورته وئیلې شی او که کسر هم حساب کړې شی نو یو لاک نه زیات ورته وئیلې شی [بیان القرآن] [1].

دا جمله چونکه د کب [ماهی] د واقعې نه پس راغلې ده ځکه ترې ځینې مفسرینو دا نتیجه اوښکلې ده چې یونس عليه السلام ددې نه پس پیغمبر جوړ کړې شوې وو. او علامه بغوی رحمه الله خو تردې اوفرمائیل چې دې آیت مبارك کښې د نینوا طرفته د استولو ذکر نشته بلکه د کب [ماهی] د واقعې نه پس بیا یو بل امت ته اولیږلې شو. چې شمیر ئې د لاکو نه زیات وو، [2].

خو دقرآن پاک اوروایتونو نه ددوئ ددې قول تائید نه کیږی. دلته د یونس عليه السلام د واقعې په شروع کښې د یونس عليه السلام دپیغمبرئی بیان صفا ښائی چې د کب واقعه د یونس عليه السلام دپیغمبر کیدو نه پس راپیښه شوې ده . خو دلته ددغې جملې ددې نه پس دوباره راوړل دا مطلب لری چې د یونس عليه السلام د رغیدو نه پس یونس عليه السلام دوباره هلته لیږلې شوې وو. دلته دا واضح کړې شو چې دغه خلق هسې څو کسان نه بلکه د یو لاکو نه هم زیات وو.

﴿فَآمَنُوا فَمَتَّعْنٰهُمْ اِلٰى حِيْنٍ﴾ نو هغوئ ایمان راوړو نو مونږ ورته تر یو زمانې پورې عیش ورکړو. د یو زمانې پورې جملې نه مطلب دادې چې تر څو دوباره کفر او شرک کښې اخته شوی نه وو په هغوئ هیڅ عذاب رانغلو.

**د مرزا قادیانی د تلبیس جواب ::** دا خبره دسورهٔ یونس په تفسیر کښې هم واضح کړې شوې ده او ددې آیت نه هم واضح کیږی چې د یونس عليه السلام په قوم باندې عذاب راتلل ځکه ایسار کړې شوی وو چې د یونس عليه السلام قوم په وخت باندې ایمان راوړې وو ، دې نه د پنجاب د دروغژن نبی مرزا غلام قادیانی دا تلبیس ختمیږی چې کله هغه خپلو مخالفینوته دړکه او د همکی ورکړه چې فلانی وخت پورې به دالله ﷻ عذاب راځی نو د مخالفینو کوشش چې نور هم تیز شو او بیا هم عذاب رانغلو نو دناکامئ د ذلت نه د بچ کیدو دپاره قادیانی دا وئیل شروع کړل چې هر کله مخالفین په زړه کښې ویریدلی دی ځکه په هغوئ باندې عذاب راتلل ایسار شو. څنګه چې د یونس عليه السلام په قوم باندې عذاب راتلل ایسار شوی وو. خو د قرآن پاک دا آیت مبارک ددغې باطل تاویل تردید ځکه کوی چې د یونس عليه السلام قوم دایمان راوړو په وجه د عذاب نه بچ شوې وو. ددې برعکس د مرزا قادیانی مخالفینو یواځې دا نه چې ایمان ئې راونړو بلکه د هغوئ مخالفانه کوشش نور هم تیز شو.

| فَاسْتَفْتِهِمْ | اَلِرَبِّكَ | الْبَنٰتُ | وَلَهُمُ | الْبَنُوْنَ | اَمْ خَلَقْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| پس تپوس اوکړه ددوئ نه | چې ایا رب ستا لره دی | لونړه | او دوئ لره دی | خامن | ایا پیدا کړی دی مونږه |
| نواوس ددوئ نه تپوس اوکړه | چې ایا ستاد رب لونړه دی | | او ددوئ دپاره خامن دی | | ایا مونږ فرښتې |

| الْمَلٰٓئِكَةَ | اِنَاثًا | وَّهُمْ شٰهِدُوْنَ | اَلَآ | اِنَّهُمْ | مِّنْ اِفْكِهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| فرښتې | ښځې | او دوئ حاضر وو | ښه واوره | بیشکه دوئ | د دروغو خپلو نه |
| ښځې پیدا کړې دی | اودوئ [د پیدا کولو په وخت] موجود وو | | خبر دار | یقینا دوی دروغ | |

[1] بیان القرآن: ج ۹، ص ۱۳۳

[2] تفسیر البغوی تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۶۱

لَيَقُوْلُوْنَ ۝ وَلَدَ اللّٰهُ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ۝ اَصْطَفَى

خامخا وائی | چې خوبئ راوړې دې الله | او بیشکه دوئ | دروغژن دی | آیا غوره کړی دی الله

وائی | ..........چې دالله ﷻ اولاد دې | او دوئ بیخی دروغژن دی | ..................آیا دالله ﷻ

الْبَنٰتِ عَلَى الْبَنِيْنَ ۝ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ۝

لونړه | په خامنو باندې | څه شوی دی تاسو لره | څرنګې حکمونه لګوی تاسو |

دخامنو په مقابله کښې لونړه زیاتې خوښې دی | داپه تاسو څه شوی دی | داځنګه غلطې فیصلې کوئ

اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ۝ اَمْ لَكُمْ سُلْطٰنٌ مُّبِيْنٌ ۝ فَاْتُوْا

آیا نصیحت نه قبلوئ تاسو | یا شته تاسو لره | دلیل | ښکاره | پس راوړئ |

بیاتاسو ولې نه پوهیږئ | ........اوکه تاسو سره په دې خبره څه ښکاره دلیل وی | نو هغه

بِكِتٰبِكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ وَجَعَلُوْا بَيْنَهُ

کتاب خپل | که یئ تاسو | رښتینی | او جوړه کړی ده دوئ | په منځ دالله کښې |

خپل [زوړ] کتاب مو وړاندې کړئ | که تاسو رینښتونی یئ | اودوئ دالله ﷻ اودپیریانو

وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا ۝ وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ اِنَّهُمْ

او په منځ دپیریانو کښې | دنسب رشته | او بیشکه معلومه ده | پیریانو ته | چې بیشکه دوئ به |

په مینځ کښې هم یوه خپلوی جوړه کړې ده | اوپخپله دپیریانودا عقیده ده | چې هغوئ به [الله ته]

لَمُحْضَرُوْنَ ۝ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۝ اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ

خامخا حاضر کړې کیږی | پاکی ده د الله | دهغې نه | چې دوئ ئې بیانوی | سوا دبندګانو دالله نه |

حاضرولې شی | [یادساتئ] چې الله ﷻ دهغه خبرو نه پاک دې | کومې چې داخلق بیانوی | سوا د هغه

الْمُخْلَصِيْنَ ۝ فَاِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ ۝ مَا اَنْتُمْ

چې خالص کړې شوی دی | پس بیشکه تاسو | او هغه چې تاسو ئې عبادت کوئ | نه یئ تاسو |

د الله تعالی د خاص بندګانو نه | نو تاسو اوستاسو ټول معبودان | چې راغوند شی نو اهیڅوک

عَلَيْهِ بِفٰتِنِيْنَ ۝ اِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ

دهغه نه [یعنی دالله نه] | اړونکی هیچا لره | مګر اړونکی یئ | هغه چالره | چې هغه | سوزیدونکی

دالله ﷻ نه اړولې نشی | ..........سوادهغه کس نه چې جهنم ته تلونکې دې

الْجَحِيْمِ ۝ وَمَا مِنَّا اِلَّا لَهٗ مَقَامٌ مَّعْلُوْمٌ ۝ وَاِنَّا

ددوزخ دې | او نشته دې زمونږ نه | مګر دې هغه لره | یو مقام مقرر کړې شوې | اوبیشکه مونږ |

او فرښتې وائی چې په مونږ کښې د هر یوې فرښتې دپاره یو خاص مقام دې | او دا چې مونږ

| لَنَحۡنُ | الصَّآفُّوۡنَ ۚ﴿۱۶۵﴾ | وَاِنَّا | لَنَحۡنُ الۡمُسَبِّحُوۡنَ ﴿۱۶۶﴾ |
|---|---|---|---|
| خامخا مونږه | قطار کښې ولاړ خدمتګاران يو | او بيشکه مونږه | پاکي بيانونکي يو |
| تول په صف کښې په ادب ولاړ يو | ................. | اومونږ تول | [دهغه] پاکی بيانونکی يو |

## آسان ترجمه قرآن

اوس ددوی (مشرکين مکه) نه تپوس اوکړه چه: آيا (اے پيغمبره) ستا د رب په حصه کښې خو لونړه راغلې دی اوخپله ددوی په حصه کښې ځامن؟ يا بيا چه کله مونږ فرشتو لره ښځې جوړولې، نو آيا دوی ليدل. ياد ساتئ! دوی د خپلو دروغو د وجې نه وائی چه د الله تعالیٰ دپاره اولاد دې، او دا خلق يقينی طور باندې دروغژن دی. آيا الله تعالیٰ د ځامنو په ځائې لونړه خوښې کړې دی؟ تاسوته څه شوې دی؟ تاسو څرنګه انصاف کوئ؟ آيا تاسو دومره هم خيال نه کوئ. يا که تاسوسره څه واضحه دليل شته نو راوړئ خپل هغه کتاب که تاسو رښتونې يئ. او هغوی د الله تعالیٰ او د پيريانو په مينځ کښې هم نسبی رشته داری جوړه کړې ده حالانکه خپله پيريانو ته دا خبره معلومه ده، چه دوی لره به (د مجرمانو په شکل کښې) پيش کولې شی. (ځکه چه) کومې خبرې دوی جوړوی، الله تعالیٰ دهغې ټولو نه پاک دې، البته د الله تعالیٰ خالص بندګان (به محفوظ وی) ځکه چه تاسو چه د کومو څيزونو تاسو عبادت کوئ. هغه هيچا لره د الله تعالیٰ باره کښې ګمراه کولې نشی سوا دهغه سړی نه چه هغه دوزخ کښې سوزيدونکې وی. او (فرشتې خو دا وائی چه) په مونږ کښې دهر يو دپاره يو مقررمقام دې. اومونږ خو (دالله تعالیٰ په اطاعت کښې) صفونه جوړونکې يو او مونږ خو د الله تعالیٰ پاکی بيانونکې يُو.

## خلاصه تفسير

دتوحيد دليلونه خو بره بيان شول [پس] ﴿فَاسۡتَفۡتِهِمۡ﴾ اوس ددې نه پس دهغوخلقونه] کوم چه ملائکې او پيريان د الله تعالی شريك جوړوی داسې چه ملائکې نعوذ بالله دخدائ لونړه او دپيريانو د سردارانو لونړه ددې فرښتو ميندې ګرځوی په کومو سره چه دا لازميږی چه دالله تعالی فرښتو سره نسبی رشته ده او پيريانو سره ئې د زوجيت تعلق دې پس ددې ټولو نه [تپوس وکړه ﴿اَلِرَبِّكَ الۡبَنٰتُ وَلَهُمُ الۡبَنُوۡنَ ﴾ چه ايا دالله تعالی دپاره به لونړه] وی [او تاسو دپاره ځامن] وی يعنی هرکله چه د خان دپاره ځامن خوښوئ نو په ذکر شوې عقيدې کښې يوه خرابی خو داده او [هاه] دويمه خبره واورئ ﴿اَمۡ خَلَقۡنَا الۡمَلٰٓئِكَةَ اِنَاثًا﴾ [ايا مونږه فرښتولره ښځې جوړکړی دی ﴿وَّهُمۡ شٰهِدُوۡنَ ﴾ او هغوی] د دوی دښځو د جوړيدو په وخت [کتل] يعنی يو به بله خرابی داده چه په فرښتو بې دليله د ښځولئ تهمت لګوی ﴿اَلَاۤ اِنَّهُمۡ مِّنۡ اِفۡكِهِمۡ لَيَقُوۡلُوۡنَ ﴾ [ښه واورئ چه هغه خلق] دليل هيڅ نه لری بلکه محض [خبرې جوړوی وائی چه] نعوذبالله ﴿وَلَدَ اللّٰهُ﴾ [الله تعالی صاحب اولاد دې ﴿وَاِنَّهُمۡ لَكٰذِبُوۡنَ ﴾ او هغوئ يقينا] بلکل [دروغژن دی] پس په دې عقيده کښې دريمه خرابی داده چه دالله تعالی طرف ته د اولاد نسبت کول لازم راځی په دې کښې داولې خرابئ ناکاروالې په عرف سره د دويمې په نقل سره او د دريمې په عقل سره ثابت دې او چونکه د جاهلانو دپاره د عرفی خرابئ اثبات زيات مؤثر دی په دې وجه اولې خرابئ لره په بل عنوان سره مکرر فرمائی چه البته ﴿اَصۡطَفَى الۡبَنٰتِ عَلَى الۡبَنِيۡنَ ﴾ [ايا الله تعالی د ځامنو په مقابله

کنبي لونړه زياتي خوښي کړي؟ ﴿مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ﴾ تاسو لره څه وشول تاسو څنګه] بې هوده [حکم لګوئ] کوم چه عرفا په خپله هم بدګنړئ ﴿أَفَلَا تَذَكَّرُونَ﴾[بيا] علاوه د عرف نه [اياتاسو] دعقل او [سوچ نه کار نه اخلئ] چه دا عقيده دعقل نه هم خلاف ده [البته] که دليل عقلي نه وي نو ﴿أَمْ لَكُمْ سُلْطَانٌ مُبِينٌ﴾[اياتا سوسره] په دې [څه واضح دليل موجود دې] ددې نه مراد نقلي دليل دې ﴿فَأْتُوا بِكِتَابِكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ﴾[پس تاسو که چرې] په دې کښې [رښتوني يئ نو خپل هغه کتاب پيش کړئ او] په ذکر شوې عقيده کښې ملائکې د اولاد ګرځولونه علاوه ﴿وَجَعَلُوا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا﴾[دې خلقو دالله تعالى او پيريانو په مينځ کښې] هم [رشته داری مقرر کړې ده] چه باطلوالې ئې نور هم ښکاره دې څکه چه ښځه دکوم کار دپاره وی دهغې نه الله تعالى پاك دې اوکله چه زوجيت محال دې نو دسخرګنئ رښتې کومې چه ددې نه وځی هغه به هم محالې وی [او] کوموکومو لره چه داخلق دخدائ سره شريك ګرځوی د هغوی خو داحال دې چه په هغې کښې کوم [پيريان] دی ﴿وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ﴾ په خپله دهغوی [دا عقيده ده چه] په دوی کښې کوم کافردی [هغه به] په عذاب کښې [ګرفتار شی] او په عذاب کښې به ولې ګرفتار نه شی چه دالله تعالى په نسبت بدې بدې خبرې بيانوی ﴿سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ﴾[حال دادې چه الله تعالى د هغو خبرو نه پاك دې کومې چه دوی بيانوی] پس د دوی په کافرانه خبرو سره به دوی په عذاب کښې ګرفتار شی ﴿إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾[مګر کوم چه دالله تعالى خاص] يعني ايماندار [بندګان دی] هغوی به ددې عذاب نه بچ وی ﴿فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ﴾پس تاسو اوستاسو ټول معبودان] ﴿مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ بِفَاتِنِينَ﴾ يو څانې کيدو سره هم دالله ﷻ نه څوك نشئ بچ کولې اړولی څنګه چه تاسو کوشش کوئ ﴿إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيمِ﴾[مګر هغو لره کوم چه] په علم الهي کښې [جهنم ته رسيدونکی دی او] وړاند دملائکو ذکر فرمائی چه په دوی کښې کومې ملائکې دی دهغو دا خبره ده چه مونږ خو محض بندګان يو چنانچه کوم خدمت زمونږ په ذمه دې په دې کښې ﴿وَمَا مِنَّا إِلَّا لَهُ مَقَامٌ مَعْلُومٌ﴾[په مونږ کښې دهريو يوه معينه درجه ده] چه دهغې په پوره کولو کښې لګياوی په خپله رائ سره هيڅ نه شی کولې ﴿وَإِنَّا لَنَحْنُ الصَّافُّونَ﴾[اومونږ] دالله تعالى په حضور کښې دحکم اوريدو په وخت يا عبادت په وخت په ادب سره [صف بسته ولاړ يو﴿وَإِنَّا لَنَحْنُ الْمُسَبِّحُونَ﴾ اومونږ] دالله تعالى [پاکی بيانولو کښې هم لګيايو] غرض په هرشان سره محکوم او بندګان يو پس هرکله چه فرښتې په خپله دخپلې بندګئ اعتراف کوی نو بيا په دوی باند دمعبود کيدو شبهه کول خالصه بيوقوفی ده پس دجناتو او ملائکوپه حق کښې د خدائ اعتقاد لرل په ډيره ښه طريقه باطل شو

**معارف او مسائل**

﴿فَاسْتَفْتِهِمْ أَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ وَلَهُمُ الْبَنُونَ﴾ دپيغمبرانو ﷺ واقعات ،نصيحت اوعبرت دپاره بيان کړې شوی وو ، اوس بيا دتوحيد د ثابتولو اود شرك دباطلولو اصل مضمون بيانيږی. دلته د شرك د يو خاص قسم بيان دې. د عربو کافرانو دا عقيده وه چې فرښتې د الله ﷻ لونړه دی او دپيريانو دسردارانو لونړه د فرښتو ميانډې دی. دعلامه واحدی رحمه الله په قول دا عقيده د قريشو نه علاوه جهينه ، بنوخزاعه او بنو مليح هم لرله [تفسير کبير : ص/۱۱۲ جلد/۷].

﴿فَاسْتَفْتِهِمْ أَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ﴾ تر ﴿فَأْتُوا بِكِتَابِكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ﴾ دې آیتونو کښې د عربو د کافرانو د هغې عقیدې د رد کولو دپاره دلیلونه پیش کړې شوي دي چې خلاصه ئې داده:

اول خو ستاسو دا عقیده پخپله ستاسو دعرف اورسم رواج په لحاظ سره بیخي غلطه ده، ولې چې تاسوخپلې لونړه خپلو ځانونودپاره د شرم باعث بولئ. نوهغه الله ﷻ دپاره څنګه ثابتیدې شي ،بله دا چې ددې دلیل څه دې چې تاسو فرښتو ته د الله لونړه وایئ؟نود یوې دعوې ثابتولو دپاره درې قسمه دلیلونه کیدیشي. یو لیدل ، کتل ، او بل نقلي دلیل یعنې د یو داسې ذات خبره چې دهغه ریښتنولي منلې شوي وي ، دریم عقلي دلیل. رومبې دلیل خو څکه نشته چې تاسو الله ﷻ دفرښتو په پیدا کولو دسره لیدلې نه دي چې ګنې هغه ئې زنانه پیدا کړي دي څنګه چې فرمائي :

﴿أَمْ خَلَقْنَا الْمَلَائِكَةَ إِنَاثًا وَهُمْ شَاهِدُونَ﴾ او پاتې شوی نقلي دلیل نو تاسو سره نقلي دلیل هم نشته ولې چې نقلي دلیل د هغو خلقو معتبر وي چې خلق ئې ریښتوني مني ، خو ددې په برعکس داسې عقیده لرونکي پخپله دروغژن دي چې خبره ئې حجت نشي کیدیشي څنګه چې الله ﷻ فرمائي چې :﴿أَلَا إِنَّهُمْ مِنْ إِفْكِهِمْ لَيَقُولُونَ﴾ دغسې عقلي دلیل هم ستاسو تائید نه کوي ولې چې ستاسو په خیال کښې هم د لونړو درجه د ځامنو په نسبت ډیره کمه ده ، نوالله ﷻ چې د ټولو کائناتو نه زیات غوره دې خپل ځان دپاره دغسې کم رتبه څیز څنګه خوښولې شي؟ لکه فرمائي چې :

﴿أَصْطَفَى الْبَنَاتِ عَلَى الْبَنِينَ﴾ اوس صرف هم یو صورت پاتې کیږي چې تاسو ته څه آسماني کتاب راغلې وي او په هغې کښې د وحې په ذریعه درته ددې عقیدې تعلیم درکړې شوي وي. په دې صورت کښې دغه وحي او کتاب خو مونږ ته هم را اوښائې لکه فرمائي چې :﴿أَمْ لَكُمْ سُلْطَانٌ مُبِينٌ فَأْتُوا بِكِتَابِكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ﴾.

**ضدیانو خلقو دپاره الزامي جواب زیات مناسب دې**: ددې آیتونو نه معلومه شوه چې څوک ضد کوي ، هغوئ ته الزامي جواب ورکول زیات مناسب دی ، مطلب دا چې د دوئ دغه دعوی هم ددوئ د بلې نظریئ په ذریعه باطل کړې شي. په دې کښې دا ضروري نه دي چې ګنې دغه بله نظریه دې مونږ هم صحیح منو ،بلکه اکثر داسې دي چې دغه دویمه نظریه هم غلطه وي صرف د مخالف د پوهولو دپاره پکار راوستې شي ،دلته الله ﷻ د هغوئ د عقیدې رد کولو دپاره پخپله هم ددوئ نظریه استعمال کړې ده چې هغوئ خپلې لونړه دشرم باعث ګنړي. ددې دا مطلب نه دې چې دالله ﷻ په نزد هم لونړه باعث دشرم دی ، او دا مطلب ئې هم نه دې چې که الله تعالی لره ئې ځامن بللې نو دا به درست وو. حاصل دادې چې دد ې اصلي جواب هغه دې کوم چې په قرآن پاک کښې بیا بیا داسې بیان شوې دې. چې الله ﷻ بې نیازه دې د اولاد ضرورت ورته نشته، ولې چې دهغه لوړشان سره دامناسب نه دی اونه ورسره څه سمون خوري.

﴿وَجَعَلُوا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا﴾ دوئ دالله ﷻ او پیریانو تر مینځه نسبي تعلق بولي. ددې تفسیر دادې چې دوئ به وئیل چې د پیریانو دسردارانو لونړه د فرښتو میاندې دي. او په دې دا فاسده عقیده بنا وه چې هغه د الله ﷻ ښځې دي. چنانچه په یو تفسیري روایت کښې دي چې کله په یو موقعه چې دعربو مشرکانو فرښتو ته دالله ﷻ لونړه اووئیلې نو ابوبکرصدیق رضی الله عنه

ترې تپوس اوکړو چې ددوئ مور څوک ده ؟ هغوئ ورته اووئیل چې د پیریانو د سردارانو لونړه دی. [تفسیر ابن کثیر ص/۲۳ جلد/۴] (۱).

خوپه دې تفسیر باندې دا اشکال راځي چې په آیت مبارک کښې دالله ﷻ او پیریانو ترمینځه دنسبي تعلق بیان دې حالانکه د ښځې خاوند ترمینځه نسبي تعلق نه وی. په دې بنا یو بل تفسیر دلته زیات غوره معلومیږی چې کوم د ابن عباس رضي الله عنه ، حسن بصری رحمه الله او ضحاک رحمه الله نه منقول دې. او هغه دا چې د ځینې اهل عربو عقیده دا هم وه چې معاذالله ابلیس دالله ﷻ رور دې. الله ﷻ د خیر او هغه دشر پیدا کوونکې دې ، په دې شان دلته ددغې باطلې عقیدې رد کړې شوې دې. [تفسیر ابن کثیر قرطبی اوتفسیر کبیر] (۲).

﴿وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ﴾ اود پیریانو عقیده داده چې دوئ به گرفتار وی ، دلته ددوئ نه مراد داسې مشرکین هم کیدیشی چې پیریان او شیطانان دالله ﷻ سیالان بولی. او پخپله پیریان هم، په دویم صورت کښې مطلب داد ې چې کومو شیطانانو او جناتو لره چې تاسو دالله ﷻ شریکان گرځولې دی. هغوئ پخپله په ښه شان پوهیږی چې په آخرت کښې دهغوئ خراب حشر کیدونکې دې لکه ابلیس چې هغه د خپل خراب انجام نه ښه خبرې دې اوس چې څوک یقین لری چې پخپله به په عذاب کښې راگیریږی ، هغه لره د الله ﷻ سیال گرځول څومره لویه بیوقوفی ده .

| لَوْ اَنَّ | عِنْدَنَا | ذِكْرًا |
|---|---|---|
| که چرې بیشکه وې | زمونږ سره | ذکر [یعني یو کتاب] |
| که مونږ ته دپخوانو خلقو پشان یود نصیحت | | |

| مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ | لَكُنَّا | عِبَادَ اللّٰهِ | الْمُخْلَصِيْنَ |
|---|---|---|---|
| درومبنو قومونو نه | خامخا به وو مونږه | بندگان دالله | خالص کړې شوی |
| کتاب راغلې وې | ..............نو مونږ به ضرور د الله ﷻ خاص بندگان وو | | |

| فَكَفَرُوْا | بِهٖ | فَسَوْفَ | يَعْلَمُوْنَ |
|---|---|---|---|
| [خوچې هغه کتاب راغې] نو انکار ئې اوکړو | دهغې نه | پس ډیر زر به | معلومه شی دوئ ته [نتیجه ددې عمل] |
| بیادوئ ددې قران پاک نه انکار اوکړو | ........نوزر به [په خپل انجام] پوهه شی | | |

| وَلَقَدْ سَبَقَتْ | كَلِمَتُنَا | لِعِبَادِنَا | الْمُرْسَلِيْنَ |
|---|---|---|---|
| او په تحقیق سره مخکښې شوی ده | خبره زمونږه | دبندگانو زمونږ | رالیږلو شوو سره |
| او د وړاندې نه زمونږ پیغمبرانو بندگانو دپاره دا فیصله شوې ده | | | |

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية: ج ۷، ص ٤٢
(۲) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية: ج ۷، ص ٤٢، وتفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۱۳۵، والتفسير الكبير للرازي تحت هذه الآية: ج ۱۳، ص ١٥٤

Scanned with Ca

إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنصُورُونَ ۝ وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ

چې بیشکه دوي چې دی | هم دوئ سره | امداد کیدئ شي | او بیشکه لښکر زمونږه | هم دوئ به

چې ددوئ به مدد کولې شي | ......................... او هم زمونږ لښکر به غالب راځي |

الْغَالِبُونَ ۝ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتَّىٰ حِينٍ ۝ وَأَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ

غالب وی | پس مخ واړوه | ددوئ نه | دځه وخته پورې | اوګوره دوئ ته | پس ډیر زر به |

نوتریو وخته پورې ددوئ دخبرو پرواه مه ساته | ...................... اولږ ددوئ حال ته ګوره

يُبْصِرُونَ ۝ أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ ۝ فَإِذَا نَزَلَ

دوئ اووینی پخپله | آیا پس عذاب زمونږ ته | تلوار کوی دوئ | پس هر کله چې | راکوز شي عذاب

دوی به پخپله هم ډیر زر خپل انجام اووینی | .......... آیادوئ زمونږ عذاب ته تلوار کوی | نوځه وخت

بِسَاحَتِهِمْ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنذَرِينَ ۝ وَتَوَلَّ عَنْهُمْ

صحن [انګړ] ددوئ ته | پس بد دې | صبا دیرولو شوؤ | او مخ اوګرزوه | ددوئ نه

چې دغه عذاب ددوئ میدان ته راکوز شی | نو دویرولي شوؤ خلقو دپاره به ډیر خراب سحر وی | او ته

حَتَّىٰ حِينٍ ۝ وَأَبْصِرْ فَسَوْفَ يُبْصِرُونَ ۝

دځه وخته پورې | اوګوره | پس ډیر زر به | دوئ اووینی پخپله |

ترځه مودې پورې ددوئ پرواه مه کوه | اودوئ ته ګوره | دوئ به ډیر زر د خپلو کړو انجام اووینئ

## آسان ترجمه قرآن

او دوی (کافرانو) به مخکښې خو دا وئیل. چه: که مونږ سره د پخوانو خلقو پشان څه کتاب وې. نو مونږ به هم ضرور د الله تعالیٰ خالص کړې شوو بندګانو کښې شامل وې بیا هم هغوی د کفر طریقه اختیار کړه. پس زر ده چه دوی ته به معلومه شی. او مونږ د مخکښې نه دخپلو پیغمبرانو بندګانو باره کښې دا فیصله کړې ده. چه خامخا به هغوی سره مدد کولې شی. اوحقیقت دادې. چه زمونږ د لښکر خلق به غالب وی. لهٰذا (اے پیغمبره) ته څه وخته پورې ددوی نه بے پرواه [ناچاره] شه. او دوی ته ګوره. نزدې ده چه دوی خپله هم اوګوری. آیا دوی زمونږ عذاب په تلوار سره غواړی نو چه کله هغه عذاب دَ دوی صحن ته راکوز شی لوهغه کوم خلق چه خبردار کړې شوې وو. دهغوی هغه صبا به ډیر بد صبا وی. او ته څه وخته پورې ددې خلقو له بے پرواه شه او ګوره. نزدې ده چه دوی خپله هم اوګوری.

## خلاصه تفسیر

﴿وَإِن كَانُوا لَيَقُولُونَ﴾ [او دې خلقو] یعنی دعربو کفارو دنبی کریم ﷺ دبعث نه وړاند [به وئیل ﴿لَوْ أَنَّ عِندَنَا ذِكْرًا مِّنَ الْأَوَّلِينَ ۝ لَكُنَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾ چه که مونږ ته څه د نصیحت] کتاب د [وړاندې خلقو] دکتابو نو[په شان راغلې وی] یعنی لکه یهودو او نصاراؤ ته چه رسولان او کتابونه راغلې دی که زمونږ دپاره هم داسې شوی وی نو مونږ دالله ﷻ خالص بندګان شوی وو یعنی ددې کتاب تصدیق او په دې به موعمل کولو ددوی په شان تکذیب او مخالفت به مونه

کولو [بیا] هرکله چه داد نصیحت کتاب درسول په ذریعه دوی ته ورسیدو ﴿فَكَفَرُوْا بِهٖ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ۝﴾ نو [دې خلقو ترې نه [انکاروکړو] او خپل هغه عهدئ مات کړو [پس] خیر [اوس به دوی ته] ددې انجام [معلوم شی] چنانچه دمرګ سره به ورته دکفر انجام مخې ته راشی او خنې سزاګانې ورته دمرګ نه وړاند هم ملاؤ شوې [او] وړاند نبی کریم ﷺ ته تسلی ده چه اګر که دا وخت دې مخالفینو ته څه قدرې شوکت حاصل دې لیکن داد څو ورځو دې خکه چه ﴿وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ﴾ [یقینا زمونږ د خاصو بندګانو یعنی پیغمبرانو دپاره زمونږ داقول د وړاند نه] یعنی په لوح محفوظ کښې [مقررشوې دې چه ﴿اِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُوْرُوْنَ﴾ بې شکه هغه به غالب کړې شی او] زمونږ خو عامه قاعده ده چه ﴿وَاِنَّ جُنْدَنَا لَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ۝﴾ [زمونږ لښکر به غالب وی] کوم چه درسولانو تابعدارانو لره هم شامل دې پس هرکله چه داخبره ده چه ته ﷺ غالب راتلونکې یې ﴿فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ﴾ [نو ته ﷺ] تسلی ساته او [ترلږې زمانې پورې] صبر وکړه او [ددوی] د ازار رسولو او مخالفت [خیال مه کوه ﴿وَّاَبْصِرْهُمْ﴾ او] لږ [دوی ته ګوره] یعنی ددوی دحالت لږ شان انتظار وکړه ﴿فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ۝﴾ [پس ډیر زر به دوی هم ووینی] ددې هم هغه مطلب دې کوم چه د [فسوف یعلمون] وو چه دوی ته به د مرګ نه پس هم او دمرګ نه وړاندې هم دالله تعالی دطرف نه سزا ورسیږی په دې دړکه هغو وئیلې شو او اکثر به ئې وئیل چه داسې به کله وی؟ نو ددې په جواب کښې ارشاد فرمائی چه ﴿اَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُوْنَ۝﴾ [ایازمونږ دعذاب خواهش کوی ﴿فَاِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ﴾ پس کله چې هغه] عذاب [ددوی روبرو راشی نازل شی ﴿فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ۝﴾ پس هغه ورځ به دهغو خلقو کوم چه] دړاند نه [ویرولې شوی وو ډیره بده وی] چه هغه عذاب به نه شی واپس کیدې [او] هرکله چه داخبره ده چه په دې خلقو باند عذاب واقع کیدونکې دې نو ﴿وَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ﴾ ته] تسلی ساته او [ترلږې زمانې پورې] صبر کوه او ﴿وَّاَبْصِرْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ۝﴾ ددوی] د مخالفت او ازار رسولو [خیال مه کوه او] لږ ددوی حالت ته [ګوره] یعنی انتظار کوه [پس ډیر زر به دوی هم ووینی] یعنی ستا خو زما په وینا یقین شته په سترګو چه ووینی نو ددوی به هم یقین راشی

## معارف او مسائل

﴿وَاِنْ كَانُوْا لَيَقُوْلُوْنَ﴾ کله چې داسلام بنیادی عقیدې په دلیلونو او شواهدو سره ثابتې کړې شوې نو وریسې آیتونو کښې دکافرانو د ضد ذکر کړې شوې دې. دې خلقو به د نبی کریم ﷺ دپیغمبر کیدو نه وړاندې خواهش کولو چې دالله ﷻ څوک پیغمبر راشی نو دوئ به ئې تابعداری کوی. خوکله چې نبی کریم ﷺ تشریف راوړو نو دوئ ضد او ناراموی اختیارکړه. دې پسې نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکړې شوېده چې تاسو ﷺ ددې خلقو دضرر رسانیانو نه مه خفه کیږئ. زر هغه وخت راتلونکی دې چې تاسو ﷺ به غالب شئ اوبرې به بیا مومئ. او دوئ به مغلوب او د عذاب نشانه بهٔ وی، په آخرت کښې خو به ددې مکمله تنداره وی په دنیا کښې هم الله ﷻ اوخودل چې د بدر د غزانه واخله د مکې تر فتح پورې په هر جهاد کښې الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته برې ورکړو. اود نبی کریم ﷺ مخالفین ذلیل او خوار شو.

**د الله والوخلقو دغلبې مطلب** :: ﴿وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا﴾ تر ﴿وَاِنَّ جُنْدَنَا لَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ۝﴾ ددې آیتونو مطلب دادې چې مونږ داخبره ړومبې نه غوته کړې [فیصله کړې] ده چې زمونږ خاص بندګان

Scanned with Ca

یعني پیغمبران ﷺ به غالب کیږي. پدې باندې دا اشکال کیدیشي چې ځینې پیغمبرانو ﷺ ته په دنیا کښې غلبه حاصله نه شوه.

جواب ئې دادې چې په معلومه پیغمبرانو ﷺ کښې اکثریت داسې دې چې کومو قومونو انبیاء ﷺ لره دروغژن اوبلل نوهغوئ په عذاب کښې راګیر شو او هغه پیغمبران ئې دعذاب نه په حفاظت کښې اولرل. صرف څو پیغمبران ﷺ داسې دی چې په دنیا کښې ورته مادي غلبه تر آخره پورې حاصله نشوه. خو د دلیل او حجت په میدان کښې همیشه هم هغوئ سربالا پاتې شو. او نظریاتی فتح همیشه هم هغوئ ته حاصله شوه. البته ددې سربلندئ مادي نخښې نښانې د یوخاص حکمت په وجه آخرت ته روستو کړې شوې. نو تهانوی ﷫ ددې مثال دا ورکړې دې چې مثلا یو ذلیل شو کمار [غل] یو لوئې حاکم سره د سفر په حالت لوټ مار کوی. خو دغه حاکم دخپلې عالی دماغئ په وجه چرې هم ددغې ذلیل شوکمار خوشامدې نه کوی. تر دې چې کله دغه حاکم خپل دارالحکومت ته اورسیږی نو دغه شوکمار ګرفتار شی. اوسزا ورکړی. نو ددې عارضی غلبې په وجه نه دغې شوکمار [غل]ته حاکم وئیلې شی او نه دغسې افسر ته محکوم، بلکه د اصل حالت په اعتبار سره دغه شوکمار [غل] ددغې شوکې [غلاګانې] په وخت هم محکوم دې او دغه افسر د دغې مغلوبیت په وخت هم حاکم دې. نو دا خبره ابن عباس ﷠ په یو لنډ او سپیځلی عنوان سره داشان تعبیر کړې ده چې:

ان لم ینصروافی الدنیاینصروافی الاخرة()[بیان القران تفسیرسورة مائدة]().

خو دا خبره ذهن کښې لرل پکار دی چې دا قسم غلبه که په دنیا کښې وی او که آخرت کښې صرف د نوم، نسل وغیره په بنیاد باندې چاته نشی حاصلیدې. بلکه دا په هغه وخت کښې حاصلیدې شی چې انسان خپل ځان دالله ﷻ فوجی جوړ کړی. مطلب دا چې د ژوند په هر میدان کښې د الله ﷻ فرمانبرداری کول د خپل ژوند مقصد جوړ کړی ځنګه چې دلته د جندنا لفظ ښائی چې څوک اسلام قبول کړی هغه به خپل ټول ژوند دنفس اوشیطان د طاقتونو سره په جنګ کولو کښې د خرچ کولو ذمه داری اخلی، په دې بنا دداسې بنده مادی ،اخلاقی غلبه که په دنیا کښې وی اوکه په آخرت کښې هغه په دې شرط باندې اړه لری.

﴿فَإِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ﴾ کله به چې دا عذاب د دوئ په انګڼ [صحن، غولی] کښې رانازل شی نو دهغې خلقو دغه صبا به ډیر خراب وی چې ړومبې نه ویرولې شوی وو. د ساحة لفظی معنی غولې او انګړ[صحن] ده، او په انګڼ[صحن] کښې د عذاب راتللو مطلب دعذاب اوآفت مخامخ راتلل دی. او د صبا د وخت خاص کولو مطلب دادې چې اهل عرب به عموما حمله د صبا په وخت کښې کوله ،او د نبی کریم ﷺ همدا معمول وو ؛چې کله د دښمن په علاقه به د شپې په وخت داخل شونو حملې دپاره به ئې د صبا تر وخته پورې انتظار کولو. [مظهری]().

---

[۱] ) ترجمه: که په دنیا کښې دهغوی مدد اونه کړی شو نو په آخرت کښې به ئې مدد وکړے شي.

[۲] ) بیان القرآن، تفسیر سورة المائدة آیت: ۵۶، ج ۲، ص ۴۰

[۳] ) تفسیرالمظهری: ج ۸، ص ۱۵۱، وصحیح البخاری، کتاب الأذان، باب مایحقن بالأذان من الدماء: ج ۱، ص ۸۶

Scanned with Ca

په روايتونو کښې راغلي دي چې کله نبي کريم ﷺ په خيبر قلاګانو باندې د صبا په وخت حمله اوکړه نو وې فرمائيل چې [الله اکبر، خربت خيبر انا اذا نزلنا بساحة قوم فساء صباح المنذرين]() الله اکبر، خيبر ويجاړ شو، بيشکه کله چې مونږ ديو قوم په انګړ کښې ورکوز شو دهغې خلقو د غه صبا ډېر خراب وی، کوم چې ړومبې ويرولي شوی وی.

| سُبْحٰنَ | رَبِّكَ | رَبِّ الْعِزَّةِ | عَمَّا | يَصِفُوْنَ ۟ | وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ ۟ |
|---|---|---|---|---|---|
| پاکی ده | رب ستا لره | چې رب دعزت دې | دهغه خبرونه | چې جوړوی ئې دا خلق | اوسلام دې په رسولانو باندې |
| ستا رب چې دعزت خاوند دې | | ددوئ د بيان کړو خبرو نه پاک دې | | | او په ټولو پيغمبرانو دې سلام وی |
| وَالْحَمْدُ | لِلّٰهِ | رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۟ | | | |
| او ثنا ده | الله لره | چې رب دمخلوقاتو دې | | | |
| او ټول تعريفونه الله ﷻ دپاره دی | | چې دټول مخلوق رب دې | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**ستا پروردګار د عزت مالک دې، دهغې ټولو خبرو نه پاک دې، کومې خبرې چه دا خلق جوړوی، اوسلام دې وی په پيغمبرانو باندې. او ټول صفتونه الله تعالی دپاره دی، چه دټولو جهانونو پروردګار دې.**

## خلاصه تفسير

﴿سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۟﴾ [ستا رب چه لوئ عظمت والا دې دهغو خبرو نه پاك دې کومې چه دا] کافران [بيانوی] پس الله تعالی لره د دغو خبرونه پاك مقررکړه [او] پيغمبرانو لره واجب الاتباع وګڼړه ځکه چه مونږ د هغوی په شان کښې دا وايو چه ﴿وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ ۟﴾ سلام دې وی په پيغمبرانو ﷺ باندې او] الله تعالی لره دشرك وغيره نه دپاك ګڼړلو سره سره دټولو کمالاتو جامع ئې هم ګڼړه ځکه چه ﴿وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۟﴾ [ټول تعريفونه الله تعالی لره دی کوم چه دټول عالم پروردګار] مالك [دې]

## معارف او مسائل

﴿سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۟﴾ دې آيتونو سره سورة صافات ختم کړې شوې دې. او حقيقت دا دې چې ددې ښکلې خاتمه دتشريح دپاره دفتر پکاردې. لنده دا چې الله ﷻ په دې دريو آيتونو مبارکو کښې د سورت ټول مضمونونه رايوځائې کړی دی. د سورت شروع د توحيد د بيان نه شوې ده. حاصل ئې دا دې چې مشرکان کومې کومې خبرې چې الله ﷻ ته منسوب کړی دی، الله ﷻ ددغې ټولو نه پاک دې، نو په ړومبی آيت کښې هم دغې اوږد مضمون ته اشاره ده. وروسته هم په دې سورت کښې د پيغمبرانو ﷺ واقعات بيان کړې شوی دی. نو په دويم آيت کښې هم دې ته اشاره ده، بيا ښه په ډاګه د کافرانو دعقيدو، شبهو

---

() صحيح البخاری، کتاب الأذان، باب ما يحتن، بالأذان من الدماء: ج ۱، ص ۸۶

Scanned with Ca

اواعتراضونو عقلی او نقلی تردید اوکړې شو. اودا هم اوخودلې شو چې غلبه به آخر اهل حق ته حاصلیږی. دا خبرې چې څوک د عقل او بصیرت په نظر سره لولی هغه بهٔ آخر دالله ﷻ په حمدوثناء باندې مجبوروی ، نو هم په دې حمدوثناء باندې سورة ختم کړې شو.

دغسې په آیتونو کښې داسلام دبنیادی عقیدو ، توحید ، او رسالت په ډاګه او ددې په ترڅ کښې د آخرت بیان هم راغلو چې ثابتول ئې دسورت اصلی مقصدوو ، او ورسره دا تعلیم هم ورکړې شوېدې چې یو مؤمن دې خپل هر یو کار ، مضمون ، خطبه اود مجلس اختتام دالله ﷻ په لوئې سره او دهغه لوئې ذات په حمدوثناء سره شروع کوی. نو علامه قرطبی رحمه الله دلته پخپل سند سره د ابی سعید خدری رضی الله عنه دا قول نقل کړې دې هغه فرمائی چې ما د نبی کریم ﷺ نه ډیر ځل واوریدل چې دمونځ ختمیدو نه پس به ئې دا آیتونه تلاوت کول. ﴿سُبۡحَٰنَ رَبِّكَ رَبِّ ٱلۡعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ۝ وَسَلَٰمٌ عَلَى ٱلۡمُرۡسَلِينَ ۝ وَٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝﴾[قرطبی] ([1]).

دغسې په ګڼړو تفسیرونو کښې د امام بغوی رحمه الله په حواله د علی رضی الله عنه د اقول منقول دې چې څوک دا غواړی چې دقیامت په ورځ په ډکو منګولو اجر حاصل کړی نو پکار دی چې دخپل مجلس په آخر کښې دا لولی چې ﴿سُبۡحَٰنَ رَبِّكَ رَبِّ ٱلۡعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ۝ وَسَلَٰمٌ عَلَى ٱلۡمُرۡسَلِينَ ۝ وَٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝﴾، هم دا قول ابن ابی حاتم رحمه الله د شعبی رحمه الله په روایت سره مرفوعا نقل کړې دې[تفسیر ابن کثیر]([2]).

﴿سُبۡحَٰنَ رَبِّكَ رَبِّ ٱلۡعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ۝ وَسَلَٰمٌ عَلَى ٱلۡمُرۡسَلِينَ ۝ وَٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝﴾

بحمد لله تعالی نن په اوولسم محرم ۱۳۹۲ هجری
د شك شنبې په ورځ د ماسختن په وخت د سورة صافات تفسیر مکمل شو.

......

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۱۵، ص ۱٤۱، ومصنف ابن ابی شيبة: ج ۱، ص ٤٥۷

[2]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ٤۷، وتفسير البغوی: ج ۷، ص ٦٦، وكنز العمال، رقم الحديث: ۳٤۸۱

Scanned with Ca

| اياتونه | سورة صٓ وهي ثمان وثمانون اية وخمس ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۸۸ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۵ |

صٓ وَالۡقُرۡاٰنِ ذِي الذِّكۡرِ ؕ بَلِ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا

ص | قسم دې په قرآن | چې نصیحت والا دې | بلکه هغه کسان | چې انکار ئې کړې دې |

صاد په قرآن پاک باندې قسم دې | چې دنصیحت نه ډک [کتاب] دې | بلکه دا کافر صرف

فِيۡ عِزَّةٍ وَّشِقَاقٍ ۞ كَمۡ اَهۡلَكۡنَا مِنۡ قَبۡلِهِمۡ

په تکبر کښې دی | او په ضد کښې مبتلا دی | څومره ډیر هلاک کړی دی مونږ | مخکښې ددوئ نه

په غرور او په مخالفت کښې پراته دی | ............ ددوئ نه وړاندې مونږ ډیر

مِّنۡ قَرۡنٍ فَنَادَوۡا وَّلَاتَ حِيۡنَ مَنَاصٍ ۞ وَعَجِبُوۡۤا

دقومونو نه | پس هغوئ چغې اوهلې | اونه وو | هغه وخت | دخلاصیدو | اوتعجب اوکړودې خلقو

قومونه هلاک کړی وو | نو هغوئ ډیرې نعرې سورې وهلې | خود خلاصی وخت تیرشوې وو

اَنۡ جَآءَهُمۡ مُّنۡذِرٌ مِّنۡهُمۡ وَقَالَ الۡكٰفِرُوۡنَ هٰذَا سٰحِرٌ

چی راغې دوئ ته | یو یرونکې | ددوئ نه | اواوئیل کافرانو | دا جادوګر دې

اودوئ په دې خبره ډیر تعجب اوکړو | چې دوئ ته هم په دوی کښې یو ویرونکې راغلې دې | او کافران وائی

كَذَّابٌ ۞ اَجَعَلَ الۡاٰلِهَةَ اِلٰهًا وَّاحِدًا ۚ اِنَّ هٰذَا لَشَیۡءٌ

سخت دروغژن | آیا ده اوګرځول ټول خدایان | خدائې یو | بیشکه | دا خو یو څیز دې

چې داخو یو درغژن جادوګردې | آیا د ددومره ډیرو خدایانو په ځائې صرف یو خدائې معبود جوړ کړو

عُجَابٌ ۞ وَانۡطَلَقَ الۡمَلَاُ مِنۡهُمۡ اَنِ امۡشُوۡا وَاصۡبِرُوۡا

ډیر عجیبه | او روان شو | مشران | دهغوئ نه | چې ځئ | او ټینګ شئ |

داخو ډیره عجیبه خبره ده | او ددوئ مشرانو په ټلوټلو کښې اووئیل | چې تاسو لاړشئ دخپلو معبودانو

عَلٰۤى اٰلِهَتِكُمۡ ۖ اِنَّ هٰذَا لَشَیۡءٌ يُّرَادُ ۞

په خدایانو خپلو باندې | بیشکه | دا خو یو څیز دې | اراده کړې شوې دپاره دبل غرض |

په عبادت کلک ولاړ وسیرئ | دا نوې خبره ضرور یو داسې څیز دې چه اراده ئې کړې شوې ده

مَا سَمِعۡنَا بِهٰذَا فِي الۡمِلَّةِ الۡاٰخِرَةِ ۚ اِنۡ هٰذَاۤ اِلَّا

نه ده اوریدلې مونږه | داخبره | په ملت [دین] روستنی کښې | نه دې دا هیڅ څیز | مګر

مونږ خو داخبره هیچرې په پخوانی مذهب کښې نه ده اوریدلې | داخو بس دخان نه جوړه شوې

اخۡتِلَاقٌ ۞ ءَاُنۡزِلَ عَلَيۡهِ الذِّكۡرُ مِنۡۢ بَيۡنِنَا ؕ

دخانه جوړ کړې شوی دروغ دی | آیا نازل کړې شو | په ده باندې | دا ذکر [قرآن] | دمنځ زمونږ نه

خبره ده | آیا په مونږ ټولو کښې هیله په ده باندې دالله ﷻ کلام نازل شوې دې ؟

بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ مِّنْ ذِكْرِيْ ۚ بَلْ لَّمَّا يَذُوْقُوْا عَذَابِ ۞

بلکه دوئ | په شك شك كښې دى | د ذكر زمانه | بلکه نه دي څكلي دوئ | عذاب زما |

[الله فرمائی] نه بلکه دوئ ته زما په نصیحت کښې شک دي[،] بلکه تر اوسه ئې زما دعذاب مزه نه ده څکلې

اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيْزِ الْوَهَّابِ ۞ اَمْ لَهُمْ

آیا ددوئ سره دی | خزانې | د رحمت درب ستا | چې غالب دې | ببښونکې دې | آیا دوئ لره ده |

آیا دوئ سره ستا د غالب او ورکونکي رب خزانې دی ؟ | .................... آیا دوئ سره

مُّلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۚ

بادشاهی | دآسمانونو | او دزمکې | او دهغې چې په منځ ددې دواړو کښې دی |

دآسمانونو اوزمکې اوددې په مینځ کښې چې څه دی دهغې واک اختیار دې

فَلْيَرْتَقُوْا فِي الْاَسْبَابِ ۞ جُنْدٌ مَّا هُنَالِكَ

پس او دخيژی دوئ [آسمان ته] | په دنیاوی اسبابو کښی | دوئ خو یو وړوکې لښکر دې | چې هم دلته

که داسې وی نو بیا دوئ ته پکار دی[،] چې د رسو په ذریعه [آسمان ته] اوخیژی | داهم د هغه ډلو نه یوه

مَهْزُوْمٌ مِّنَ الْاَحْزَابِ ۞ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ

شکست خوړونکې دې | د ډلو نه | دروغ گنړلی دی | مخکښی ددوئ نه | قوم دنوح |

ډله ده | چا چې ماتې [شکست] خوړلې دې | د دوئ نه وړاندې د نوح ﷺ قوم

وَّعَادٌ وَّفِرْعَوْنُ ذُو الْاَوْتَادِ ۞ وَثَمُوْدُ وَقَوْمُ لُوْطٍ

او عادیانو | او | فرعون | میخونو والا | او ثمودیان | او قوم دلوط |

اوعادیانو اوفرعون چې د میخونو تک وهونکې وو اوثمودیانو او د لوط ﷺ قوم

وَّاَصْحٰبُ لْئَيْكَةِ ۭ اُولٰٓئِكَ الْاَحْزَابُ ۞ اِنْ كُلٌّ اِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ

او ایکه والو | داوې | لوئې | ډلې | نه وؤ دا تول | مگر | دروغ ئې گنړل رسولان

اودبنړاوسیدونکو هم خپل پیغمبران درغژن گنړلی وو [،] هم دالوئې لوئې ډلې وې [،] دوئ تولو خپل

فَحَقَّ عِقَابِ ۞ وَمَا يَنْظُرُ هٰٓؤُلَآءِ اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً

پس ثابت شو په هغوئ | عذاب زما | اونه کوی انتظار | دا خلق | مگر | دیوې چغې |

رسولان دروغژن گنړلی وو [،] نوزما دعذاب مستحق شو [،] اوداخلق صرف دیوې درنې چغې انتظار کوی

مَّا لَهَا مِنْ فَوَاقٍ ۞ وَقَالُوْا رَبَّنَا عَجِّلْ لَّنَا قِطَّنَا

چې نشته هغې لره | څه وقفه | او وائی دوی | اے ربه زمونړه | زر راکړه | مونږ ته | حصه زمونړه

چې دهغې په مینځ کښې به هیڅ وقفه نه وی [،] اوداخلق داتوقو په طوروائی [،] چې ائې زمونړ ربه! دحساب د ورځې

قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ ۞

مخکښی | دورځې دحساب نه |

نه مخکې مونږ ته زمونږ [دعذاب] حصه راکړه |

## آسان ترجمه قرآن

ص، قسم دې په قرآن باندې چه د نصيحت نه ډک دې. چه کومو خلقو کفر اختيار کړې دې، نو هغوی
دڅه بلې وجې نه نه بلکه د دې وجې نه اختيار کړې دې، چه هغوی په لويئ، تکبر او ضد کښې مبتلا دي
او ددوی نه مخکښې مونږ څومره قومونه هلاک کړې دی. نو هغوی هغه وخت کښې آوازونه کول. کله چه د
خلاصۍ هيڅ وخت نه وو او دوی (قريش) په دې خبره باندې تعجب کوی، چه دوی ته يو خبردار کونکې
هم ددوی نه راغلې دې، او دې کافرانو دا اووئيل چه دا دروغژن جادوګر دې. آيا دهٔ ټولو معبودانو لره يو
معبود جوړ کړو، دا خو ډيره عجيبه خبره ده. او لاړل سرداران دهغې خلقو، او دا ئې اووئيل: چه لاړ شئ،
او د خپلو خدايانو (په عبادت) باندې مضبوط اوسيږئ، دا خبره خو داسې ده، چه ددې نه روستو څه
نورې ارادې دی مونږ خو دا خبره په نورو دينونو کښې نه ده اوريدلې، نور هيڅ نه دا دځان نه جوړه کړې
شوې خبره ده. آيا دنصيحت دا خبره زمونږ په مينځ کښې زمونږ نه علاوه په دې سړی باندې نازله کړې
شوې ده؟ اصل خبره داده، چه دا خلق زما د نصيحت باره کښې په شک کښې مبتلا دی، بلکه دوی اوسه
پورې زما د عذاب مزه لا څکلې نه ده ستا رب چه ډير زورآور، او ډير لوئې صاحب اقتدار دې، آيا دهغه د
رحمت ټولې خزانې د دوی سره دی. يا بيا د آسمانونو او زمکې او څه چه د دوی په مينځ کښې دی، د هر
څيز بادشاهي دوی سره ده؟ بيا خو دوی لره پکار دی چه رسۍ راکاږی او آسمان ته بره اوخيژی (ددوی
حقيقت خو دادې) چه دا د مخالفو ډلو يو لښکر کوټې دې، چه هم دلته به شکست اوخوری ددوی نه
مخکښې دنوح عليه السلام قوم، قومِ عاد، او ميخونو والا فرعون هم پيغمبرانو ته دروغژن وئيلې وو.
اوقوم ثمود، اود لوط عليه السلام قوم، او آيکه والؤ هم، هغه وو د مخالفې ډلې خلق په هغوی کښې هيڅوک
داسې نه وو چه پيغمبرانو ته ئې دروغژن نه وی وئيلې، ددې وجې نه زما عذاب په حقه هغوی باندې
نازل شو او (د مکې) دا خلق (هم) بس د يوې چغې انتظار کوی، چه په هغې کښې به څه وقفه نه وی او
وائی چه: اے زمونږ پروردګاره! زمونږ حصه مونږ ته د ورځې دحساب نه مخکښې زر را کړه.

## خلاصه تفسير

﴿صٓ﴾ [صٓ] ددې معنی خوالله تعالی ته معلومه ده ﴿وَالْقُرْاٰنِ ذِی الذِّكْرِ﴾ قسم دې په قرآن چه
نصيحت نه ډك دې] چه کفار ستا درسالت نه په انکارکولو کښې چه څه وائی هغه صحيح نه
دی ﴿بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِیْ عِزَّةٍ وَّشِقَاقٍ﴾ [بلکه] په خپله [داکفار په تعصب او] دحق نه [په مخالفت
کښې] پراته [دی] او ددې تعصب او مخالفت وبال به يوه ورځ په دوی پريوځی لکه چه ﴿كَمْ
اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ﴾ [د دوی نه وړاند ډيرې پيړئ مونږ] په عذاب سره هلاکې کړی
دی ﴿فَنَادَوْا وَّلَاتَ حِيْنَ مَنَاصٍ﴾ پس [هغوی] د هلاکت په وخت کښې [ډيرې چغې وويستلې]
او ډير شور زوږ ئې وکړو [او] هغه وخت په شور زوږ څه کيږی ځکه چه [دغه وخت دخلاصی نه
وو] په دې وجه چه عذاب کله راشی نو بياتوبه نه قبليږی ﴿وَعَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ﴾ [او دې
کفارو] دقريشو [په دې خبره تعجب وکړو چه دوی ته ددوی نه] يعنی چه ددوی په شان بشردې
[يو] پيغمبر [ويرونکې راغې] دتعجب وجه داود چه دوی په خپل جهالت سره بشريت دنبوت
منافی ګڼړلو [او] درسالت په دې انکار کښې دې حد ته ورسيدل چه ستا دمعجزو او نبوت

ددعوې په باره کښې ﴿وَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا سٰحِرٌ كَذَّابٌ﴾ [وونيل کافرانو چه] نعوذ بالله [داسړی] د خوارق عادت په معامله کښې [ساحراو] دنبوت ددعوې په معامله کښې [دروغژن دې] او ﴿اَجَعَلَ الْاٰلِهَةَ اِلٰهًا وَّاحِدًا﴾ [ايا] داسړي رښتوني کيدې شي هر کله چه [ده د دومره معبودانو په ځائ يو معبود پاتې کړو] د نوروټولو معبودانو نه ئې نفي وکړه ﴿اِنَّ هٰذَا لَشَیْءٌ عُجَابٌ﴾ [واقعي دا ډيره د تعجب خبره ده] چه وجه ئې ډيره زر راځي [او] دتوحيد مضمون چه ئې واوريدونو ﴿وَانْطَلَقَ الْمَلَاُ مِنْهُمْ اَنِ امْشُوْا﴾ [په دې کفارو کښې سرداران] مجلس نه پورته شول او خلقو ته ئې [دا ووئيل روان شول چه] ددې ځائ نه [ځئ ﴿وَاصْبِرُوْا عَلٰۤى اٰلِهَتِكُمْ﴾ او دخپلو معبودانو] په عبادت [قائم وسيږئ] ځکه چه ﴿اِنَّ هٰذَا لَشَیْءٌ يُّرَادُ﴾ اول خو [دا] دتوحيد دعوت [دڅه مطلب خبره ده] يعنى په دې بهانه سره دوى ﷺ معاذالله رياست غواړى دويم دتوحيد دعوى هم باطله او عجيبه ده ځکه چه ﴿مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِی الْمِلَّةِ الْاٰخِرَةِ﴾ [مونږ خو داخبره] په خپل تير مذهب [کښې اوريدلې نه ده وى نه وى ﴿اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا اخْتِلَاقٌ﴾ دا] ددې سړى [جوړه کړې خبره ده] دتيرو مذهبونو مطلب دادې چه په دنيا کښې دډيرو طريقو خلق تير شوى دى دټولونه وروستو مونږ راغلو او په حق يو پس مونږ ددې طريقې دمشرانونه چرې داخبره نه ده اوريدلې او داسړې کوم چه دنبوت دعويداردې او توحيدته تعليم الهى وائى پس اول خو نبوت دبشريت منافى دې دويم که ددې نه قطع نظر اوشى نو ﴿ءَاُنْزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِنْۢ بَيْنِنَا﴾ [ايا په مونږ ټولو کښې په دې سړى دالله تعالى کلام نازل کړې شو؟] ده ته څه فوقيت او فضيلت حاصل وو چه نبوت ورته ملاوشو بلکه که په رئيس باند نازل شوې وې نو باك نه وو وړاند دالله تعالى ارشاد دې چه دوى داوينا چه په ده ولې نازل شو؟ په چا سردارولې نازل نه شو؟ په دې وجه سره نه ده چه که داسې شوى وې نو تابعدارى به ئې کړې وه ﴿بَلْ هُمْ فِیْ شَكٍّ مِّنْ ذِكْرِیْ﴾ [بلکه] اصل خبره داده چه [داخلق] په خپله [زما دوحى دطرف نه په شك [يعنى انکار کښې] دى [يعنى دنبوت دمسئلې نه منکر دى خاصکر بشر لره د نبى منلو ته تيار نه دى او دا انکارهم څه ددې دپاره نه دې چه ددوئ سره څه دليل شته ﴿بَلْ لَّمَّا يَذُوْقُوْا عَذَابِ﴾ [بلکه] ددې اصل وجه داده چه [دوى تراوسه پورې زما دعذاب مزه ونه څکله] ورنه دټولو به عقل په ځائ شوې وو وړاند په بل طرز سره جواب دې چه ﴿اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيْزِ الْوَهَّابِ﴾ [ايا ددې خلقو سره ستا درب زبردست فياض درحمت خزانې دى] چه په دې کښې نبوت هم داخل دې چه چالره ئې غواړى ورکوى ئې چالره چه غواړى نه ئې ورکوى يعنى که درحمت ټولې خزانې د ددوى په قبضه کښې وى نو بيا به ددې ويناګنجائش وو چه مونږ بشرته نبوت نه دې ورکړې بيا دې نبى څنګه شو؟ [يا] که ټولې خزانې ئې په قبضه کښې نشته نو ﴿اَمْ لَهُمْ مُّلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا﴾ [ايا دوى ته داسمانونو اومزکې او څه څيزونه چه ددوى په مينځ کښې دى ددې] ټولو [اختيار حاصل دې] چه که دومره اختيارئ وې نو بيا به هم ددې وينا ګنجائش وو چه دوى د اسمانونو اومزکې دمصلحتونو نه خبردار دى په دې وجه چالره چه غواړى نبوت ملاويدل پکار دى او اوس وړاند ددوى دعاجزه کولو په طور باند ارشاد دې چه که دوى ته په دې باند اختيار شته ﴿فَلْيَرْتَقُوْا فِی الْاَسْبَابِ﴾ [نو دوى ته پکاردى چه يو پوړى ولګوى] اسمان ته [وخيژى] او ظاهره ده چه دوى په دې باند قادر نه دى پس هر کله چه ددوى دومره هم قدرت نشته نو داسمانونو اومزکې په معلوماتو او په دوى به ورته څه اختيار وى؟ بيا دوى ته دداسې بې سرو پښو خبرو کولو څه حق

Scanned with Ca

دي؟ مګر اے محمد ﷺ ته ددوی دمخالفت فکر مه کوه ځکه چه ﴿جُندٌ مَّا هُنَالِكَ مَهزُومٌ مِّنَ الأَحزَابِ﴾ [په دې مقام] يعنی مکه کښې [ددې خلقو دغه شان يو لښکر دې منجمله] دانبياؤ ﷺ دمخالفينو [د ډلو کوم چه] ډير زر [به شکست وخوری] چنانچه دبدر په غزا کښې داپيشګوئی پوره شوه ﴿كَذَّبَت قَبلَهُم قَومُ نُوحٍ وَعَادٌ وَفِرعَونُ ذُو الأَوتَادِ﴾ [او ددوی نه وړاندهم قوم دنوح ﷺ او عاد او فرعون چه] حکومت [ئې ميخونه وهلی وو ﴿وَثَمُودُ وَقَومُ لُوطٍ وَأَصحَابُ الأَيكَةِ﴾ او ثموديانو او قوم دلوط ﷺ او خاوندانو دبنړ] چه قصې ئې څو ځايه راغلی دی دې ټولو [تکذيب کړې وو] او ﴿أُولَٰئِكَ الأَحزَابُ﴾ [هغه ډله] چه بره ئې په من الاحزاب ذکر راغلې دې ﴿إِن كُلٌّ إِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ عِقَابِ﴾ [داخلق دی دې ټولو صرف رسولان دورغژن کړی وو] لکه دقريشو داکفارچه تالره دروغژن کوی [پس زما عذاب] په هغوی [واقع شو] پس هرکله چه جرم مشترك دې نو دعذاب داشتراك نه دوی ولې مطمئن دی؟ [او داخلق] کوم چه په تکذيب اصرار کوی نو ﴿وَمَا يَنظُرُ هَٰؤُلَاءِ إِلَّا صَيحَةً وَاحِدَةً مَّا لَهَا مِن فَوَاقٍ﴾ [پس داخلق د يوې زور دچغې] يعنی دويمې شپيلۍ [منتظر دی چه دساه اخستو ګنجائش به په کښې نه وی] ددې نه مراد قيامت دې ﴿وَقَالُوا رَبَّنَا﴾ [او داخلق] چه دقيامت وعيد واوری د رسول دتکذيب او مسخرو په طور [وائی چه اے زمونږ ربه] په اخرت کښې چه کافرانو دپاره کوم عذاب وی دهغې نه ﴿عَجِّل لَّنَا قِطَّنَا قَبلَ يَومِ الحِسَابِ﴾ [زمونږ حصه مونږ ته د ورځې دحساب نه وړاند راکړې] مطلب داچه قيامت نشته اوکه شته نو زمونږ اوس عذاب پکار دی هرکله چه عذاب نه راځی نو معلومه شوه چه قيامت نه راځی نعوذ بالله

### معارف او مسائل

**شان نزول** :: ﴿صٓ وَالقُرآنِ ذِي الذِّكرِ﴾ ددې سورت ددې ابتدائی آيتونو په شا نندار ه پس منظر دا وه چې د نبی کريم ﷺ ترهٔ ابوطالب د نه مسلمانيدو باوجود د نبی کريم ﷺ ډير حفاظت کولو، کله چې هغه په يو رنځورتيا کښې ګيرشو نو د مشورې دپاره يومجلس ئې راؤبللو چې په کښې ابوجهل ، عاص بن وائل ، اسود بن مطلب ، اسود بن يغوث او نور سرداران شريک شو. مشوره دا اوشوه چې ابوطالب رنځور دې که هغه مړ شو نو بيا که مونږ نبی کريم ﷺ د نوی دين نه د منع کولو دپاره څه سخت قدم پورته کوؤ. نود عربو خلق به راته پيغور راکوی چې د ابی طالب په ژوند باندې تاسو د هغوئ هيڅ اونکړې شو د هغه د مرګ نه پس مو په هغه زور راؤړو ، نو دابی طالب په ژوند کښې مونږ لره د نبی کريم ﷺ په معامله کښې فيصله کول پکار دی. چې نبی کريم ﷺ زمونږ د معبودانو بدوئيل پريږدی.

کله چې په دې غرض ابوطالب ته ورغلل نو ورته ئې اووئيل چې ستا وراره زمونږ د بتانو بدرد بيانوی. تاسو د انصاف نه کار واخلئ او ورته اووايئ چې نبی کريم ﷺ د کوم الله ﷻ عبادت کول غواړی هغه دې کوی ، خو زمونږ معبودانو ته دې څه نه وائی . سره ددې چې نبی کريم ﷺ به د دوئ دبتانو باره کښې سوا ددې نه بل څه نه فرمائيل چې بې حسه اوبې روحه دی ، ستاسو خالق ، رازق نه دی ، هيڅ نفع نشی درکولې.

ابو طالب نبی کريم ﷺ دغه مجلس ته راوبلل او ورته ئې اووئيل چې داخلق ستاسو ﷺ نه دا شکايت کوی چې د دوئ معبودانو ته بد وايئ ، دوئ خپل مذهب ته پريږدئی او تاسو ﷺ د خپل الله ﷻ عبادت کوئی ، دغسې د قريشو خلق هـ لګيا وو.

بالاخر نبی کریم ﷺ ارشاداوفرمائیلو چې ائې ترهٔ ! آیا زهٔ دوئ ته د هغې خيز بلنه ورنکړم چې په کوم کښې چې دهغوئ بهتری ده . ابوطالب ورته اووئیل چې هغه څه خيز دې ؟ هغوئ اوفرمائیل چې :
زه ترې داسې کلمه وئیل غواړم چې دهغې په ذریعه ټول عرب ورته سرټیټی شی او دوئ د پوره عجم مالکان شی ، په دې ورته ابوجهل اووئیل چې اوښایئ ، هغه کلمه څه ده ؟ ستاسو په پلار مې دې قسم وی چې مونږ یوې کلمې وئیلو ته نه بلکه لسو کلمو وئیلو ته تیار یو. دغه وخت ورته نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې بس [لااله الاالله] وایئ ، ددې په آوریدو ټولو جامې اوځنډلې او روان شو او وې وئیل چې آیا مونږ ټول معبودان پریږدو او صرف یو اختیار کړو ؟ دا خو لویه عجیبه خبره ده . په دې موقعه دسورة ص دا آیتونه نازل شو . [تفسیر ابن کثیر ص/۲۷ جلد/۴] (۱).

﴿وَانْطَلَقَ الْمَلَاُ مِنْهُمْ الخ﴾ او ددې کافرانو سرداران روان شو دائې وئیل الخ. په دې کښې هم دغه بیان شوې واقعې ته اشاره ده چې د توحید دبلنې په آوریدو هغوئ د مجلس نه روان شو.

﴿ وَفِرْعَوْنُ ذُوالْاَوْتَادِ﴾ ددې لفظی معنی میخونو والافرعون ،ده خوپه تفسیر کښې ئې د مفسرینو مختلف قولونه دی . ځینو حضراتو اوفرمائیل چې دی نه دهغه د بادشاهئ مضبوطوالی ته اشاره ده ،په دې وجه تهانوی رحمه الله ددې ترجمه داسې کړېده چې موږی ئې ښخ وو، او ځینو حضراتو فرمائیلی دی چې ده بهٔ خلقو ته داسې سزا ورکوله چې پړمخې بهٔ ئې څملول په لاسونو پښو به ئې ورته میخونه ټک وهل او په هغوئ به ئې ماران لړمانان پریخودل .
او ځینو وئیلی دی چې ده بهٔ په رسو او موږو سره څه خاص لوبه کوله . اوځینو وئیلی دی چې د میخونو نه مراد عمارتونه دی ،ولې چې ده ډیر مضبوط عمارتونه جوړ کړی وو ،[تفسیر قرطبی] (۲) والله اعلم .

﴿اُولٰٓئِكَ الْاَحْزَابُ﴾ ددې تفسیر دادې چې دا جمله د ﴿مَهْزُوْمٌ مِّنَ الْاَحْزَابِ﴾ بیان دې مطلب تر هغه ډلې دی کومو ته چې په دې آیت مبارک کښې اشاره شوېده . تهانوی رحمه الله هم ددې مطابق تفسیر کړې دې خو نورو مفسرینو ددې معنی دا خودلی ده چې ډلې دغه وې یعنی اصل د طاقت خاوندان هم د اخلق دی ، ددوئ په مقابله کښې دمکې مشرکان هیڅ نه دی ، کله چې هغوئ دعذاب الهی نه بچ نشو نو دوئ څه څیزدی ؟ [قرطبی] (۳).

﴿مَا لَهَا مِنْ فَوَاقٍ﴾ د فواق په عربی کښې ګڼړې معنې راځی .یوه معنی ئې هغه درمیانی وقفه ده چې د پیولوشولو نه پس دوباره د ځاروی په غلانځه کښې پئ راشی ، داشان ددې معنی راحت ، اوآرام ، هم ده . بهر صورت مطلب دادې چې د اسرافیل علیه السلام پوکلې شپیلئ دومره په مخه پوکلې شی چې څه وقفه به په کښې نه وی ، [ قرطبی] (۴).

---

۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ٥٤
۲) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۱٥، ص ۱٥٤، ۱٥٥
۳) تفسیر القرطبی: ج ۱٥، ص ۱٥٤
۴) تفسیر القرطبی: ج ۱٥، ص ۱٥٦

Scanned with Ca

﴿عَجِّلْ لَّنَا قِطَّنَا﴾ قِطّ اصل کښې هغه کاغذی ثبوت ته وئیلې شی چې دهغې په ذریعه چاته د انعام ورکولو وعده کړې شوی وی ، بیا دا لفظ دمطلق برخې په معنی کښې هم استعمالیدل شروع شو ، دلته هم دا معنی مراد ده چې د آخرت د سزا زمونږ برخه راته دلته راکړه.

اِصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ

| اصبر کوه [اے نبی] | په هغه خبرو باندې | چې وائی ئې دوئ |

| ته ددوئ په دې خبرو صبر کوه |

وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوٗدَ ذَا الْاَيْدِ ۚ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ۝

اوبیان کړه |قیصه دبنده زمونږه | داؤد |چې مالك وؤدلويو قوتونو |بیشکه هغه|رجوع کونکې وؤ

اوزمونږ بنده داؤد یاد کړه | چې ډیرد طاقت خاوند وو | او الله ﷻ طرف ته زیات رجوع کونکې وو

اِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهٗ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ

بیشکه تابع کړی وؤ مونږه | غرونه | دهغه سره |چې تسبیح به ئې وئیله |په آخر دورخې[بیگاه] کښې

مونږ غرونه تابع کړی وو | چې سحر ماښام به ئې دهغه سره تسبیح وئیل

وَالْاِشْرَاقِ ۙ۝ وَالطَّيْرَ مَحْشُوْرَةً ۭ كُلٌّ لَّهٗٓ اَوَّابٌ۝

او په اول دورځې [صبا] کښې | او مارغان | جمع کړې شوی | او ټول به | هغه ته | رجوع کونکی وؤ

............اومارغان به هم دهٔ سره جمع کیدل | او تسبیح به ئې وئیل | دا ټول دده دفرمان تابع وو

وَشَدَدْنَا مُلْكَهٗ وَاٰتَيْنٰهُ الْحِكْمَةَ

او مضبوط کړې وؤ مونږه | حکومت دهغه | او ورکړې وؤ مونږ هغه ته | حکمت |

اومونږ ددهٔ حکومت ډیر مضبوط کړې وو | او مونږ دهٔ ته نبوت او د خبرو پوهه ورکړې وه

وَفَصْلَ الْخِطَابِ۝

اوپوهه دخبرو

............ |

## آسان ترجمه قرآن

(اے پیغمبره) دوی چه څه وائی، په هغې باندې صبر کوه. او زمونږ بنده داؤد علیه السلام لره یاد کړه، چه ډیر طاقتور وو هغه بے شکه الله تعالیٰ ته ډیر زیات رجوع کونکې وو. مونږ غرونه په دې کار باندې لګولې وو، چه هغوی دې د ماښام په وخت کښې او د نمر ختلو په وخت کښې هغه سره تسبیح کوی. او مرغانو لره هم، چه هغوئ به راغونډولې شو، دوی ټول به هغه سره یوځائې شو او د الله تعالیٰ ډیر ذکر به ئې کولو او مونږ د هغه سلطنت ته مضبوطوالې ورکړې وو، او هغهٔ ته مو دحکمت او فیصلې کولکې خبرو طریقه ورکړې وه.

## خلاصه تفسیر

﴿اِصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ﴾ته ددې خلقو په خبرو صبر کوه﴿وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوٗدَ ذَا الْاَيْدِ ۚ﴾ او زمونږ بنده داؤد یاد کړه کوم چه] په عبادت کښې چه په دې کښې صبرهم داخل دې [لوئ قوت] او همت [والا

وو] او ﴿إِنَّهُ أَوَّابٌ﴾ [هغه] دالله تعالى طرف ته [ډير رجوع كوونكې وو] اومونږ دۀ ته دا نعمتونه وركړى وو يو داچه ﴿إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ﴾ [مونږ غرونو ته حكم كړې وو چه دده سره] شريك شي ﴿يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ﴾ [ماښام او سحر] چه دحضرت داؤد ﷺ دتسبيح داوختونه وو [تسبيح كوئ او] دغه شان ﴿وَالطَّيْرَ مَحْشُورَةً﴾ [الوتونكو مارغانوته هم] داحكم وركړې وو [كوم چه به دتسبيح په وخت دۀ ته [جمع كيدل] او داغرونه او مارغان وغيره ﴿كُلٌّ لَهُ أَوَّابٌ﴾ [به ټول دده دتسبيح [په وجه په ذكر كښې مشغول وو او] دويم نعمت دا چه ﴿وَشَدَدْنَا مُلْكَهُ وَآتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ﴾ [مونږ دده حكومت لره نهايت قوت وركړې وو او] دريم نعمت داچه مونږ دۀ ته حكمت] يعنى نبوت ﴿وَفَصْلَ الْخِطَابِ﴾ [او فيصله كوونكې تقرير] چه نهايت واضح او جامع وى [وركړې وو]

## معارف او مسائل

﴿اصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ﴾ دكافرانو دتكذيب او خندا نه چې نبى كريم ﷺ ته چې كوم خفگان راولاړيدو ، دهغې دلرې كولو اوتسلئ وركولو دپاره عموما الله ﷻ دپخوانو پيغمبرانو ﷺ واقعات آورولى دى ، نو دلته هم نبى كريم ﷺ ته ئې دصبر تلقين كړې دې او د ځينې پيغمبرانو ﷺ واقعات ئې ورته يادكړى دى چې دهغې ځينې ړومبى واقعه د داؤد ﷺ ده .

﴿وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُودَ ذَا الْأَيْدِ﴾ اوياد كړى زمونږ بنده داؤد چې د قوت خاوند وو. تقريبا ټولومفسرينو ددې دا مطلب بيان كړې دې چې هغوئ به په عبادت كښې د ډير قوت او همت نه كار اخستو، ځكه ورپسې دا جمله راروې شوه چې : ﴿إِنَّهُ أَوَّابٌ﴾ بيشكه هغوئ الله ﷻ ته ډير رجوع كوونكى وؤ.لكه د صحيحينو په يوحديث پاک كښې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې د الله ﷻ په نزد د ټولونه زياټ خوښ مونځ د داؤد ﷺ دې او د ټولو نه زياتې خوښې روژې د داؤد ﷺ دى ، هغوئ به نيمه شپه اوده وو ، دريمه برخه دشپې به ئې عبادت كولو او بيا به د شپې شپږمه برخه اوده كيدو، يوه ورځ به ئې روژه نيوله او بله ورځ به ئې كوژه كوله. دښمن سره د مقابلې په وخت به ئې تيښته نه كوله. اوبيشكه داؤد ﷺ الله تعالى ته رجوع كو وڼكې وو [تفسير ابن كثير] (١).

د عبادت داطريقه د ټولونه زياته غوره ځكه اوګرځولې شوه چې يو خو دې كښې مشقت وى ځكه چې ټول عمر روژه كولو سره انسان د روژې عادى شي او څه زمانه پس بيا ورته څه مشقت نه وى ليكن يو ورځ روژه كول ، اوبله ورځ كوژه كول داسې دى چې په روژه نيولو كښې ورته په مخه تكليف وى ، بله دا چې په دې شان انسان د عبادت كولو سره دځپل ځان ، اهل و عيال او متعلقينو حقوق هم په پوره شان سره ادا كولې شى .

﴿إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ﴾ دې آيت مبارك كښې دابيان دې چې غرونو او مارغانو به داؤد ﷺ سره په شريكه تسبيح كوله. ددې تشريح په سورة انبياء او سورة سبا كښې تيره شوې ده. دلته دا خبره دياد ولو جوګه ده چې دغرونو او مارغانو تسبيح الله ﷻ پدې شان بيان كړېده چې دا په داؤد ﷺ باندې يو خاص انعام وو، سوال دا دې چې دا د داؤد ﷺ دپاره نعمت څنګه شو؟ دمارغانو او غرونو د تسبيح كولو نه داؤد ﷺ ته خاص څه فائده اورسيده ؟

---

(١) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ٧، ص ٥٧، وصحيح البخارى، كتاب الصوم، باب صوم داود عليه السلام: ج ١، ص ٢٦٥، وصحيح مسلم، كتاب الصيام، باب النهى عن صوم الدهر لمن تضرربه الخ: ج ١، ص ٣٦٦

Scanned with Ca

دهغي يو جواب دادې چې دې نه د داؤد ﷺ يوه معجزه ظاهره شوه او ښكاره خبره ده چې دا يو لوئې انعام دې. دې نه علاوه تهانوى رحمه الله يوه باريكه توجيه داسې فرمائيلې ده چې د غرونو او مارغانو په تسبيح سره به د ذكر اوشغل يو خاص شان پيدا كيدو چې ورسره به په عبادت كښې چستي او تازګي پيدا كيده او همت او جذبه به ورسره زياتيدله د اجتماعي ذكر يو فائده داده چې د ذكر د بركتونو په يو بل باندې عكس پريوزي ،نو د صوفيائې كرامو د ذكر او شغل يوه خاص طريقه مشهوره ده چې په دغې شان ذكر كولو كښې دا سې تصور كولې شي چې پوره كائنات ذكر كوى ، ددې طريقې په اصطلاح د باطن او عبادت په شوق كښې عجيبه تاثير دې ، ددې آيت مبارك نه د ذكر ددغې طريقې بنياد هم مستنبط كيږي. [مسائل السلوك](١).

**صلوة ضحى :** ﴿بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ﴾ د عَشِيّ معنى ده دماسپخين نه پس دراتلونكې ورځ تر صبا پورې وخت ، او د اشراق معنى ده دصبا هغه وخت چې نمر په زمكه باندې خور شى . دې آيت نه معلومه شوه چې ابن عباس رضي الله عنه د صلوة ضحى په مشروع كيدو باندې دليل نيولې دې . صلوة ضحى ته صلوة اوابين او ځينې حضرات ورته صلوة اشراق هم وائى . اګر چې دصلوة اوابين نوم د ماښام نه پس شپږو ركعتونو نفلو او صلوة اشراق دنمر راختو سره پيوست دوؤ يا څلورو ركعتو نفلو دپاره زيات مشهور شو.

صلوة ضحى د دوؤ نه تر دولس پورې اداكولې شى . په حديث پاک كښې ددې ډيرې فائدې راغلې دى . په جامع ترمذى كښې د ابى هريره رضي الله عنه نه روايت دې چې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې څوک د صلوة ضحى د دوؤ ركعتونو پابندى كوى دهغوئ ګناهونه بخښلې شى ،خواه هغه دسمندرى ځګ هومره وى.(٢) اود انس رضي الله عنه د روايت مطابق څوک چې دصلوة ضحى دولس ركعتونه اداكوى الله ﷻ به هغه دپاره د سرو زرو محل جوړ كړى . [قرطبى](٣).

علماء كرامو فرمائيلى دى چې هسې خو دا مونځ ، دوؤ نه تر دولسو ركعتونو پورې ادا كول صحيح دى خو شمير دپاره خاص معمول جوړول ډير زيات غوره دى . اودا معمول كم ناكم څلور ركعته جوړول ډير زيات ښه دى ولې چې د نبى كريم ﷺ عام معمول د څلورو ركعتونو اداكولو وو.

﴿وَآتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ﴾ اومونږ ورته حكمت او فيصله كوؤنكې تقرير وركړو ، د حكمت نه مراد دانائى ده . يعنى مونږ ورته دعقل او پوهې دولت وربخښلې وو ، او ځينوحضراتو فرمائيلى دى چې پيغمبرى تر مراد ده . او د فصل الخطاب مختلف تفسيرونه شوى دى . ځينوفرمائيلى دى چې دې نه مراد دبيان زور او دخطابت قوت دې ، چنانچه داود ﷺ د لوړې درجې خطيب وو. او په خطبو كښې دحمد و صلوة نه پس لفظ د امابعد د ټولونه اول هغوئ استعمال كړې دې . او ځينو حضراتو وئيلى دى چې ددې نه بهترين قوت فيصله مراد ده . يعنى الله ﷻ دوئ ﷺ ته دجګړو خلاصولو اوداختلافاتو ختمولو طاقت وركړې وو ، درحقيقت په دې الفاظو كښې په يو وخت د دواړو معنو پوره ګنجائش دې ، او هم دواړه خبرې مراد دى. تهانوى رحمه الله چې ددې ترجمه كړې ده په دې كښې هم دواړه معنې يو ځائې كيديشى .

١) انا سخرنا الجبال— الآية، بيان القرآن تحت هذه الآية: ج ٢، ص ٨٨٥
٢) جامع الترمذى، أبواب الصلاة، باب ما جاء في صلاة الضحى: ج ١، ص ١٠٨
٣) جامع الترمذى، أبواب الصلاة، باب ما جاء في صلاة الضحى: ج ١، ص ١٠٨، وتفسير القرطبى: ج ١٥، ص ١٦٠

Scanned with Ca

وَهَلْ اَتٰىكَ نَبَؤُا الْخَصْمِ ۘ اِذْ

او ایا راغلې دې تاته | خبر دجګړه کونکو | کله چې

........ | او [ائې پیغمبره] ایا تا ته دهغه جګړه کونکو واقعه معلومه ده | هر کله چې

تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ ۙ اِذْ دَخَلُوْا عَلٰى دَاوٗدَ

ورواوختل هغوئ په دیوال | بالاخانې ته | کله چې ورننوتل هغوئ | په داود باندې |

هغوئ په دیوال راواوړیدل | او عبادت خانې ته داخل شول | څه وخت چې داؤد ته ورغلل

فَفَزِعَ مِنْهُمْ قَالُوْا لَا تَخَفْ ۚ خَصْمٰنِ بَغٰى

نو اوویریدو | دهغوئ نه | نواووئیل هغوئ | مۀ یریږه تۀ | دوه جګړه کونکې یو | زیاتې کړې دې |

نودې دهغوی نه اوویریدو | هغوئ ورته اووئیل چې مه ویریږه | مونږ دوه فریقه یو | په

بَعْضُنَا عَلٰى بَعْضٍ فَاحْكُمْ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ

یو زمونږه | په بل باندې | پس فیصله اوکړه | په منځ زمونږ کښې | په حقه سره |

معامله کښې اختلاف راغلې دې | نوزمونږ په مینځ کښې د انصاف فیصله اوکړه

وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَآ اِلٰى سَوَآءِ الصِّرَاطِ ۞ اِنَّ هٰذَآ

اومۀ کوه بې انصافې | اولاربشودنه اوکړه زمونږه | نیغې لارې ته | بیشکه دا

او بې انصافې مه کوه | اومونږ ته سمه لاره اوښایه | ........دا سړې زما رور دې

اَخِىْ ۖ لَهٗ تِسْعٌ وَّتِسْعُوْنَ نَعْجَةً وَّلِىَ نَعْجَةٌ وَّاحِدَةٌ

رور زما دې | دۀ لره | نهه | او نوی | ګډې دی | او زما | ګډه یوه ده |

دۀ سره یو کم سل ګډې دی | ........اوماسره صرف یوه ګډه ده |

فَقَالَ اَكْفِلْنِيْهَا وَعَزَّنِيْ فِى الْخِطَابِ ۞ قَالَ

پس دۀ اووئیل [ماته] | راکړه ماته دغه [یوه هم] | او غالب شو په ما | په خبرو کښې | اووئیل داود

نودې ماته وائې | چې دغه یوه هم ماته راکړه | او په خبرو کښې را باندې ډیر غالب دې | داؤد ﷺ

لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ اِلٰى نِعَاجِهٖ ۭ وَاِنَّ كَثِيْرًا

بیشکه ظلم اوکړو دۀ په تا | په غوښتلو سره | د ګډې ستا | ګډو خپلو ته | او بیشکه | ډیر |

ورته اووئیل | چې ستا ګډه په خپله ګډو کښې یو ځائې کول غواړی | نو دا واقعې په تا زیاتې

مِّنَ الْخُلَطَآءِ لَيَبْغِىْ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ اِلَّا الَّذِيْنَ

دشریکانونه | خامخا زیاتې کوی | ځینې دهغوئ | په ځینو باندې | ماسوا دهغه کسانونه |

کوی | او [همدغسې] زیات شریکان په یو بل باندې زیاتې کوی | ........خو کومو خلقو چې

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَقَلِيْلٌ مَّا هُمْ ۭ

چې هغوئ ایمان راوړو | او عملونه ئې اوکړل | نیک | او لږ دی دوئ [یعنې دغسې خلق] |

ایمان راوړی | او نیک عملونه کوی [هغوئ زیاتې نه کوی] | او داسې خلق ډیر لږ دی

Scanned with Ca

| وَظَنَّ دَاوٗدُ | اَنَّمَا | فَتَنّٰهُ | فَاسْتَغْفَرَ |
|---|---|---|---|
| او پوهه شو داود | چې بیشکه | دا خو په آزمیښت کښې واچوو مونږ هغه | پس هغه بخښنه اوغوښتله |
| او داؤد ﷺ دا خیال اوکړو | چې مونږ د هغه امتحان اخستې دې | نو خپل رب ته ئې توبه | |

| رَبَّهٗ | وَخَرَّ | رَاكِعًا | وَّاَنَابَ۩ | فَغَفَرْنَا | لَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| درب خپل نه | او پریوتو | زکوع کونکې | او رجوع ئې اوکړه | پس معاف کړو مونږ | هغه ته |
| اوویستله | او په سجده پریوتلو | اوالله ﷻ ته یې رجوع اوکړه | نو مونږ ددغې خبرې معافي اوکړه | | |

| ذٰلِكَ | وَاِنَّ | لَهٗ | عِنْدَنَا | لَزُلْفٰى | وَحُسْنَ مَاٰبٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه [قصور] | او بیشکه | هغه لره دې | زمونږ سره | خامخا نژدې مقام | او ښه خاني دورتلو |
| او د هغه دپاره زمونږ په نیز اوچت مقام دې | ......................اوانجام ئې ډیر ښه دې | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او آیا تا ته دهغې مقدمې والو خبر درسیدلې دې، چه کله هغوی په دیوال دپاسه عبادت خانې ته رادننه شو چه کله هغوئ داؤد علیه السلام ته راغلل نو داؤد علیه السلام اوېریدو، هغوی اووئیل: چه مونږ د یوې جګړې دوه فریقه یو مونږ کښې یو په بل باندې زیاتې کړې دې، اوس ته زمونږ په مینځ کښې صحیح صحیح فیصله اوکړه، او زیاتې مه کوه او مونږ ته صحیح صحیح لاره اوښایه. دا زما ورور دې، ده سره نهه نوی ګډې دی، او زما سره یوه ګډه ده. اوس دې وائي، چه هغه هم ما ته راکړه. او دې په ما زورآور شوې دې په خبرو کښې. داؤد علیه السلام اووئیل: یقیناً ظلم کړې دې ده په تا باندې، په وجه د غوختلو دګډې ستا چه یو ځائې کړې د خپلو ګډو سره او یقیناً ډیر خلق د شریکوالو نه، خامخا زیاتې کوی بعضې د دوی نه په بعضو باندې، سوا د هغې خلقو نه چه ایمان ئې راوړې دې او نیک عملونه ئې کړې دی، اوهغه ډیر کم دی او داؤد علیه السلام ته خیال راغلو. چه مونږ په اصل کښې هغه باندې آزمائش کړې دې، نو هغه دخپل پروردګار نه معافي اوغوختله. او پریوتو سجده کونکې. اوالله تعالیٰ طرف ته ئې رجوع اوکړه نو مونږ په دې معامله کښې هغه ته معافي اوکړه. اوحقیقت دادې، چه هغه لره زمونږ سره نزدیکت حاصل دې. اوښه ځائې د واپسئ.

## خلاصه تفسیر

﴿وَهَلْ اَتٰىكَ نَبَؤُا الْخَصْمِ﴾ [او ایا تا ته د هغه مقدمه کوونکو خبر رسیدلې دې] کومو چه حضرت داؤد ﷺ ته مقدمه راوړې وه ﴿اِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ﴾ [هرکله چه هغه خلق] دحضرت داؤد ﷺ [د عبادت خانې په دیوال باند راواوریدل ﴿اِذْ دَخَلُوْا عَلٰى دَاوٗدَ﴾ داوٗد] ﷺ [ته راغلل] په دروازه پهره دارانو ځکه نه راپریښودل چه دغه وخت دده دعبادت وو دمقدمو دفیصلونه وو ﴿فَفَزِعَ مِنْهُمْ﴾ [نو هغه] ددوی په دې بې قاعدې راتلو باند [وویریدو] چه هسې نه داخلق دښمنان نه وی کوم چه دقتل په اراده داسې په تنهایئ کښې راننوتی وی ﴿قَالُوْا لَا تَخَفْ﴾ [هغه خلقو] ده ته [ووئیل چه ته ویریږه مه ﴿خَصْمٰنِ بَغٰى بَعْضُنَا عَلٰى بَعْضٍ﴾ مونږ دواړه معامله کوونکی یو چه یو په بل باند ځه [زیاتې کړې دې] ددې فیصلې دپاره مونږ راغلی یو چونکه پهره دارانو په دروازه نه

پریښودو په دې وجه په دې شان سره راغلو ﴿فَاحْكُمْ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ﴾ [پس ته په مونږ کښې په انصاف سره فيصله وکړه ﴿وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَا إِلَىٰ سَوَاءِ الصِّرَاطِ۝﴾ او بې انصافي مه کوه او مونږ ته] دمعاملې [نيغه لار وښايه] او بيا يوسړي ووئيل چه دمعاملې صورت دادې چه ﴿إِنَّ هَٰذَا أَخِي ف﴾ [داسړې زما وروردې] يعنې ديني ورور لکه چه په درمنثور[1] کښې دحضرت ابن مسعود نه نقل دي او ﴿لَهُ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ نَعْجَةً﴾ [دده سره يوکم سل ګډې [ميږې] دي ﴿وَلِيَ نَعْجَةٌ وَاحِدَةٌ ف﴾ اوماسره] بس يوه ګډه ده ﴿فَقَالَ أَكْفِلْنِيهَا وَعَزَّنِي فِي الْخِطَابِ۝﴾ پس دې وائي چه دغه هم ماته راکړه او په خبرو کښې په ما زوراور دې] او زما خبره د خلې په زور سره چليدو ته نه پريږدي ﴿قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِ ط﴾ [داؤد] ؑ [ووئيل چه داچه کوم ستاګډه په خپلو ګډو کښې د ملاولودرخواست کوي نو واقعي په تاظلم کوي ﴿وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ او اکثر شرکاء] عادت ئې دې په يوبل] دغسې [زياتې کوي ﴿إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ مګر البته کوم خلق چه ايمان لري اونيك کار کوي ﴿وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ ط﴾ او داسې خلق ډيرکم وي] داخبره دوی دمظلوم دتسلئ دپاره وفرمائيله ﴿وَظَنَّ دَاوُودُ أَنَّمَا فَتَنَّاهُ﴾ [او داؤد] ؑ [ته خيال راغې چه] دا مقدمه په داسې پيش کولو[مونږ دده امتحان کړې دې] پس هغوی ﴿فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ۝﴾ [خپل رب ته توبه وکړه او په سجده پريوتو او] په خاص طور الله تعالی ته [رجوع ئې وکړه ﴿فَغَفَرْنَا لَهُ ذَٰلِكَ ط﴾ پس مونږ دده ته دغه] کار [معاف کړو ﴿وَإِنَّ لَهُ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَآبٍ۝﴾ او زمونږ سره دده دپاره] خاص [قرب او] اعلی درجې [نيك انجامی] يعنی دجنت اوچته درجه [ده]

## معارف او مسائل

دې آيتونو کښې د داود ؑ واقعه بيان شوې ده . دې نه صرف دومره معلوميږی چې داود ؑ عبادت خانې ته دغې دوؤ جګړې کوؤنکو لره الله ﷻ د داود ؑ د امتحان اخستو دپاره ليږلی وو. داود ؑ په دې امتحان باندې خبرداره شو، الله ﷻ نه ئې بخښنه اوغوښته . او په سجده کښې پريوتو چې الله ﷻ اوبخښلو. د قرآن کريم اصل مقصد د لته د ابيانول دی چې داود ؑ به خپلې هرې معامله کښې الله ﷻ ته رجوع کوله ، که څه لږ شان به اخوا ديخوا شو نو سمدستی به ئې بخښنې غوښتو ته مخه شوه ، ځکه دلته ددغې امتحان تفصيل نه دی بيان کړې شوی چې هغه امتحان څه وؤ او داؤد ؑ نه هغه کوم لغزش او تيروتنه شوې وه چې دهغې نه په بخښنې غوښتو سره الله ﷻ هغه معاف کړې وو.

په دې بنا ځينې محققينو او احتياط کوؤنکو مفسرينو ددې آيتونو مبارک تشريح کښې فرمائيلی دی چې د الله ﷻ په خاص مصلحت او حکمت سره د خپل جليل القدر پيغمبر ؑ دغه لغزش او امتحان په تفصيل سره په ډاګه بيان نه کړو . ځکه مونږ له هم دې پسې کيدل پکار نه دی ، صرف په . دومره خبره باندې ايمان لرل پکار دی څومره چې په قرآن پاک کښې بيان شوې ده . نو حافظ ابن کثير ؒ پشان محقق مفسر هم په خپل تفسير کښې دغسې کړی دی . د واقعې د تفصيلاتو بيانولونه ئې ډډه کړې ده . په دې کښې څۀ شک نشته چې دا خبره د ټولو نه د زيات احتياط او سلامتئ ده ځکه خو پخوانو علماء کرامو نه نقل شوی دی چې

[1] الدر المنثور: ج ۸، ص ۳۸۸

Scanned with Ca

[ابهموا ما ابهمه الله] یعنی کوم څیزونه چې الله ﷻ مبهم پریخودی دی هغه مبهم پریږدئی . او هم په دې کښې حکمت او ښیګړه ده . ښکاره خبره ده چې دې نه مراد د هغې څیزونو مبهم پریخودل دی کومو سره چې زمونږ دعمل او دحلالو ، حرامو تعلق نه وی . او کومو معاملو سره چې دمسلمانانو د عمل تعلق وی دهغې ابهام رسول الله ﷺ پخپل قول او عمل مبارک سره پورته کړې دې .

البته نورو مفسرینو د روایتونو او آثارو په رڼا کښې ددې امتحان او آزمیښت د ټاکلو کوشش کړې دې . دې باره کښې یو عامیانه روایت خو دا مشهور دې چې یو ځل د داود ﷺ نظر د یو فوجی افسر اور یا بی بی باندې برابر شو چې ورسره ئې دنکاح کولو خواهش په زړه کښې پیدا شو . نو داود ﷺ د اوریا د وژلو په غرض ورته یو خطرناک مشن په حواله کړو. هغه په کښې شهید شو نو داود ﷺ ئې بی بی سره نکاح اوکړه . ددې خبردارئی ورکولو په غرض ورته دغه دوه فرښتې د انسان په شکل کښې راغلې وې .

لیکن دا روایتونه بیشکه هغه ګډې وډې خبرې دی چې د یهودو د اثر لاندې په مسلمانانو کښې خورې شوی دی . نو دا روایت په اصل کښې د بائیبل د کتاب سموئیل د باب نمبر یولسم [۱۱] نه راخستې شوې دې . فرق صرف دومره دې چې په بائیبل کښې ښه په ډاګه په داود ﷺ باندې دا تور پورې کړې شوې دې چې داود ﷺ د اوریا بی بی سره دنکاح کولو نه وړاندې [معاذالله] زنا کړې وه . او په دې تفسیری روایتونو کښې د زنا دا برخه په کښې نه ده راخستې شوې ، داسې معلومیږي چې چا دغه اسرائیلی روایت لیدلې دې . د زنا دغه برخه ئې ترې لرې کړه او د قرآن پاک دغې آیتونو پسې ئې اولګوله . سره ددې چې دا کتاب سموئیل دسره بې اصله دې . او ددې روایت شان یقینا د دروغو او تور پورې کولو دې . په دې بنا ټولو محققینو مفسرینو ددې تردید په سختئ سره کړې دې .

حافظ ابن کثیر رحمه الله نه علاوه علامه ابن جوزی رحمه الله، قاضی عیاض رحمه الله ، قاضی ابو السعود رحمه الله قاضی بیضاوی رحمه الله ، امام رازی رحمه الله ، علامه ابوحیان اندلسی رحمه الله ، خازن رحمه الله ، زمخشری رحمه الله ، ابن حزم رحمه الله ، علامه خفاجی رحمه الله ، احمد بن نصر رحمه الله ، ابوتمام رحمه الله او علامه آلوسی رحمه الله وغیره هم دې ته دروغ وئیلی دی . حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکلی دی چې :

څینې مفسرینو دلته یوه واقعه بیان کړې ده چې زیاته برخه ئې په کښې د اسرائیلیانو نه اخستې شوېده . د رسول الله ﷺ نه دې باره کښې هیڅ داسې څه خبره نه ده ثابته چې دهغې تابعداری واجبه وی . صرف ابن ابی حاتم رحمه الله دلته یو حدیث مبارک روایت کړې دې خو ددې سند صحیح نه دې[1] .

غرض دا چې د ډیرو روایتونو په رڼا کښې چې څینې تفصیل ئې دامام رازی رحمه الله په تفسیر کبیر کښې او د ابن جوزی رحمه الله په زادالمیسر وغیره کښې موجود دې ، دا روایت خو ددې آیت په تفسیر کښې قطعا د بحث نه اوځی .

حکیم الامت تهانوی رحمه الله ددې آزمیښت او لغزش په تشریح کښې داشان فرمائیلی دی چې د مقدمې دغه دوه فریقه کله چې په دیوال واوړیدل ، د خبرو کولو طرز ئې هم داسې د بې ادبئ

---

[1] ) تفسیر القرطبی: ج ۷، ص ۶۰، تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۶۰

اختيار كړو چې داود ﷺ ته ئې د انصاف كولو او د ظلم نه كولو په سخته نصيحت شروع كړو ، په داسې كولو به يو عام سړی د څه جواب وركولو په ځائې ورته سزا وركړې وه . په دې شان دا د الله ﷻ آزميښت وو چې داود ﷺ به غصه كښې راځي او سزا به وركوي يا د پيغمبرئ عفو او زغم نه به كار اخلي او ددوئ خبره به آوري .

داود ﷺ په دې آزميښت كښې پوره اؤختو خو دومره كمي ترې په كښې راغله چې د فيصلې آؤرلو په وخت ئې ظالم ته د خطاب كولو په ځائې ئې مظلوم ته خطاب اوكړو چې دې نه يو قسم جانبداري معلوميده . ځكه پرې ورته سمدستي خبرداري وركړې شو چې په سجده كښې پريوتو او الله ﷻ معاف كړو [بيان القرآن] (١).

ځينې مفسرينو د لغزش د اتشريح كړې ده چې داود ﷺ مدعا عليه خاموش اوليدو نو د هغه بيان ئې واؤ نه ريدو صرف د مدعی د بيان په آوريدو ئې د نصيحت خبرې اوفرمائيلې چې دمدعی د خبرې تائيد ترې معلوميدو ، حالانكه ړومبې د مدعا عليه نه تپوس كول پكار وو چې هغه څۀ وائي ؟ داسې رويه هركله چې د جليل القدر پيغمبر شان سره نه ښائيدله ځكه په دې پوهه شو او په سجده پريوتو . [روح المعانی] (٢).

ځينې حضراتو فرمائيلی دی چې داود ﷺ د وختونو انتظام داسې برابر كړې وو چې په پوره شواروز كښې به د داود ﷺ د كوروالا نه يو نه يو فرد په عبادت ، ذكر او تسبيح كښې به مشغول اوسيدلو ، يوه ورځ هغوئ ددې حال يادګيرنه دالله ﷻ په حضور كښې اوكړه چې پروردګاره ﷻ ! د شپې او ورځې يو ساعت هم داسې نه تيريږی چې په هغوې كښې د داؤد ﷺ د خاندان والو نه يو نه فرد ستا په عبادت مونځ او تسبيح او ذكر كښې مشغول نه وی . نو الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې ائې داؤده ﷺ ! دا ټول هر څه زما په توفيق سره كيږی ، كه زما مدد درسره نه وې نو تاسو داسې نه شو كولې . ورته ئې اووئيل چې يو ورځ به تاسو هم ستاسو خوښې ته پريږدم . ځكه ورته دا واقعه راپيښه شوه . هغه وخت د داود ﷺ د عبادت كولوؤ ، چې دا ناګهانی واقعه ورته راپيښه شوه . داود ﷺ هم د عبادت نه اووتل . پخپله ددې مقدمې په فيصلې كولو كښې لګيا شو . دغه وخت د داود ﷺ په كور كښې بل څوک هم په عبادت كښې او دالله ﷻ په ذكر كښې مصرف نه وو ، په دې سره داود ﷺ ته خبرداري وركړې شو چې هغه فخريه خبره دې دخلې مباركې نه وتل غلطی وه ځكه ئې بخښنه اوغوښته او په سجده پريوتو ، او ددې توجيه تائيد د ابن عباس رضي الله عنهما د يو ارشاد نه هم كيږی ، چې مستدرك دحاكم كښې په صحيح سند سره منقول دې [احكام القرآن] (٣).

په دې ټولو تشريحاتو كښې داخبره په شريكه منلې شوېده چې مقدمه فرضی نه بلكه حقيقی وه ، اود مقدمې دا صورت د داؤد ﷺ د آزميښت يا لغزش سره څه تعلق نه لری . ددې پخلاف ډيرو مفسرينو ددې داسې تشريح كړې ده چې حاصل ئې دادې : د مقدمې دواړه فريقه انسانان نه بلكه فرښتې وې ، او هغوئ لره الله ﷻ دې دپاره ليږلې وې چې هغوئ هسې د مقدمې يو فرضی صورت پيش كړی چې په هغې سره داؤد ﷺ په خپل لغزش خبر شی . نو

---

(١) تفسير بيان القرآن: ج ٥، ص ١٠

(٢) تفسير روح المعانی تحت هذه الآية: ج ١٧، ص ٣١٧

(٣) أحكام القرآن تحت هذه الآية: ج ٨، ص ٣٦٩

Scanned with Ca

ددي حضراتو ﷺ وينا داده چې د اوريا د وژلو او د هغه بي بي سره دنكاح كولو دغه قيصه غلطه ده. خو حقيقيت دا وو چې په بني اسرائيلو كښې به دا غوښتنه عيب نه شوه ګڼړلې چې يو كس دې خپلې ښځې ته طلاق وركړي چې دغه غوښتونكې ئې پخپله په نكاح واخلي او دې ته به څه بيغرتي هم نه شوه وئيلې. نو دغسې وينا داؤد ﷺ اوريا ته دخپلې بي بي د طلاق وركولو دپاره هم كړې وه. څكه الله ﷻ د خبرداريځ وركولو دپاره دغه دوه فرښتې راؤليږلې، ځينې حضراتو فرمائيلي دي چې كومې زنانه ته اوريا د نكاح پيغام ليږلې وو هغې ته داؤد ﷺ هم د نكاح پيغام اوليږلو. پدې باندې اوريا ډير خفه شو. الله ﷻ ددې خبردارنې وركولو دپاره داؤد ﷺ ته دغه دوه فرښتې راوليږلې. او په يو نازك شان سره ئې په دغې لغزش باندې ورته خبرداري وركړو. قاضي ابويعلى ﷫ په دې توجيه باندې د قرآن پاک الفاظ ﴿وَعَزَّنِي فِي الْخِطَابِ﴾ دليل جوړ كړې دې. اوفرمائى چې دا معامله يواځې دنكاح د پيغام وركولو وه تر دغې وخته پورې ئې دغې بي بي سره لا نكاح نه وه كړې. [زاد المسير لابن الجوزى ﷫ ص/۱۱۴ جلد/۷] ([1]).

اكثرو مفسرينو ﷭ دا آخرى دوه تشريحات غوره بللى دى چې تائيد ئې دصحابه كرام ﷡ د ځينې آثارو نه هم كيږي [روح المعانى، تفسيرابو السعود، زادالمسير، تفسير كبيره وغيره]. خو واقعه داده چې ددې آزميښت او لغزش تفصيل نه د قرآن كريم نه ثابت دې اونه د څه صحيح حديث پاک نه، څكه دومره خبره منلې شويده چې د اوريا د وژلو فيصله غلطه ده البته داصل واقعې باره كښې بيان شوى ټول احتمالونه موجود دى چې په كښې يو ته هم يقيني نشى وئيلې، په دې بنا د سلامتيځ لار هم هغه ده كومه چې حافظ ابن كثير ﷫ ([2])اختيار كړې ده. هغه داسې چې د الله ﷻ مبهمه پريښودې معامله دې مونږ هم مبهمه پريږدو. د خپلو قياسونو اسونو دې په كښې نه زغلوؤ، ولې چې يو خو دې سره زمونږ د څه عمل تعلق نشته، بلکه دا چې ددې په ابهام كښې به يقينا دالله ﷻ څه حكمت وى، البته ددې واقعې نه ګڼړى عملى فائدې حاصليږى. هغې ته زياته توجه وركول پكار دى. اوس ددې آيتونو تفسير اوګورئى، چې په كښې به درته دغه فائدې ان شاء الله مخې ته راشي.

﴿إِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ﴾ يعنى كله چې هغوئ د محراب په ديوال ورواؤړيدل. محراب په اصل كښې بالاخانې ته يا ديو مكان وړاندينځ حصې ته وئيلې شى. بيا په خاص ډول سره د مسجد يا عبادت خانې وړاندې حصې ته وئيل ئې شروع شو. قرآن پاک كښې دا لفظ د عبادت خانې په معنى كښې استعمال شوې دې. علامه سيوطى ﷫ ليكلى دى چې د دائرې په شكل كښې د مسجدونو دا اوسنى قسم محرابونه د رسول الله ﷺ په زمانه كښې موجود نه وو. [روح المعانى] ([3]).

﴿فَفَزِعَ مِنْهُمْ﴾ نو داود ﷺ ددوئ نه اوويريدو. ولې چې ددغې دوؤ كسانو مقرره پهره ماتول او په ديوال ورتلل خامخا خطرناک او د ويرې خبره ده.

---

[1]) تفسير زاد المسير تحت هذه الآية: ج ۵، ص ۲۳۳
[2]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۶۰
[3]) تفسير روح المعانى تحت هذه الآية: ج ۱۷، ص ۳۱۲

Scanned with Ca

**طبعي ويره پيغمبرانو يا ولي توب سره بې سمونه نه ده** :: دې نه معلومه شوه چې د يو خطرناک څيز نه په طبعي ډول ويريدل پيغمبرتيا او ولي توب سره بې سمونه نه ده . البته دا ويره په خپل زړه او دماغ باندې سورول او خپل فرض پريخودل ضرور خراب وي ، په دې باندې داشبه کيديشي چې په قرآن پاک کښې د پيغمبرانو ﷺ داشان بيان کړې شوېدې چې :: ﴿وَلَا يَخْشَوْنَ أَحَدًا إِلَّا اللَّهَ﴾ يعنې هغوئ ﷺ د الله ﷻ نه سوا د بل هيچا نه نه ويريږي . نو په دغه واقعه کښې داؤد ﷺ سره ويره څنګه مل شوه ؟ ددې جواب دادې چې ويره په دوه قسمه ده . يو هغه ويره چې د موذي څيزونو نه کولې شي ، په عربي کښې دې ويرې ته خوف وئيلې شي . او بله هغه ويره چې د چا د لوئي او شان رعب په چا غالب شي چې ورته خشية وئيلې شي . [مفردات امام راغب][1].
پدې بنا خشيت سوا د الله ﷻ دبل چا نه دې پکار ، او د پيغمبرانو ﷺ شان هم دا وی چې د الله ﷻ نه سوا دبل چا خشيت پرې نه راځی البته خوف ئې د موذي څيزونو نه کيديشي .

**په بې قاعدګئ باندې دحقيقت حال تر څرګنديدو پورې صبر کول پکار دی** :: ﴿قَالُوا لَا تَخَفْ﴾ يعنې هغوئ اووئيل چې مه ويريږئ . دا خبره هغې کسانو اوکړه چې بهر نه داؤد ﷺ ته په ديوال راؤړيدلي وو خو بيا هم داؤد ﷺ د دوئ خبره په ډير خاموشئ سره آؤريدله . دې نه معلومه شوه چې په بې قاعدګئ کولو سره سمدستي چاته رټنه دکنه کول پکار نه دی بلکه په خبرې آؤريدو سره ئې دا پته لګول پکار دی چې ددې بې قاعدګئ جواز ورسره وو اوکه نه ؟ څکه داؤد ﷺ هم دغسې اوکړل او دې ته ئې انتظار اوکړو چې کيديشي دا خلق په دې باره کښې څه عذر لري .

﴿وَلَا تُشْطِطْ﴾ يعنې او بې انصافي مه کوئ . د راتلونکو د خبرو انداز په ظاهره ډير د بې ادبئ وو ، اول خو بې وخته راتلل ، په ديوال راؤړيدل ، بيا داؤد ﷺ غوندې جليل القدر پيغمبر ته دانصاف کولو او ظلم کولو نه دځان د ساتلو درس ورکول ټول جاهلانه قسم حرکتونه وو ، بيا داؤد ﷺ په دې هر څه صبر اوکړو او څه بدرد ئې ورته اونه وئيل .

**لوئې بنده له پکار دی چې د حاجتمندو په غلطيانو تر خپله وسه صبر کوی** :: دې نه معلومه شوه چې کوم لوئې بنده ته الله ﷻ څه مرتبه ورکړې وی ،او د خلقو ضرورتونه ورسره تړلی وی هغه له پکار دی چې د حاجتمندو غلطيانې تر خپله وسه پورې زغمی ، خصوصا قاضی ، مفتی او يو حاکم له خو دې لحاظ کول پکار دی [روح المعانی][2].

﴿قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِ﴾ داؤد ﷺ اوفرمائيل چې ستا يوه ګډه خپلو ګډو سره د يوځائې کولو خواست کول په تاباندې ظلم کول دی . دلته په دوؤ خبرو باندې غور کول پکار دی يو داچې دلته داؤد ﷺ دا جمله صرف د مدعی د خبرې په آؤريدو سره اوفرمائيل او د مدعا عليه بيان ئې واؤنه ريدو . په دې بنا ځينو حضراتو ﷺ د اوئيلی دی چې کوم لغزش باندې داؤد ﷺ استغفار غوښتې وو هغه هم دا وو ، خو نورو مفسرينو ﷺ فرمائيلی دی چې داسې کيدې نشی چې داؤد ﷺ به د مدعا عليه د بيان آؤريدو نه بغير دغسې فرمائيلی وی څکه چې دلته د مقدمې پوره تفصيلات نه بيانيږي . صرف ضروری خبرې بيان شوې دې ، نو

[1] ) المفردات للراغب الأصفهاني، باب الخاء وما يتصل بها : ص ١٤٨، ١٦١و١٦٢
[2] ) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ١٧، ص ٣١٤

Scanned with Ca

یقینا چې داؤد ﷺ د مدعا علیه بیان آؤریدلې وې . او هر کس په دې پوهیږی چې دلته د مدعا علیه نه د تپوس کولو والا جمله محذوفه ده.

دا هم کیدیشی چې داؤد ﷺ دفتوې په حیث دا سې فرمائیلی وی اگر چې دغې فریقینو عدالتی فیصله غوښتې وه ، خو دغه وخت نه د عدالت وو او نه مجلس د قضا وو ، او داؤد ﷺ سره د فیصلې جاری کولو وسیلې جمع نه وې ، نو د مفتی کار د واقعې تحقیق کول نه وی بلکه صرف د سوال مطابق جواب ورکول وی .

**څه قسم دباؤ سره چنده یا هدیه غوښتل هم غصب دې ::** بله د ژور نظر کولو جوگه خبره داده چې داؤد ﷺ خالص گډې غوښتنو ته ظلم اووئیل حالانکه چا نه محض څه څیز غوښتل ظلم نه دې .وجه ددې داده چې دا خو صورة یو سوال دې خو هرکله چې دغه وخت قولی او عملی دباؤ اچولو سره دا سوال کولې شو څکه ددې صورت او شان د غصب جوړ شو.

دې څخه معلومه شوه که یو کس د چا څخه په داسې طریقه څه څیز اوغواړی چې مخاطب راضی وی یا خفه وی خو هغه ته د ورکولو څخه بغیر بل صورت نه وی نوداشان هدیه غوښتل په غصب کښې داخل دی که غوښتونکی څوك مالدار یا وجاهت والا کس وی نو مخاطب ددهٔ د شخصیت په وجه انکار نشی کولې نو که هلته صورت د هدیه غوښتلو وی ، لیکن حقیقت کښې هم غصب وی. او د غوښتونکی دپاره دداسې څیز استعمالول جائز نه دی. دې مسئلې ته دې خاص طور هغه خلق هم پام اوکړی کوم چې د مدرسو ، جماتونو ، انجمنو او جماعتونو دپاره چنده راغونډوی. صرف هغه چنده حلاله او پاکیزه ده چې ورکونکې ئې په ښه زړه پخپله ورکوی .که په شخصی دباؤ اچولو یا دگنړو کسانو په ورتللو سره چنده وصول کړې شی نو دا په ډاگه ناجائز کار دې ، رسول الله ﷺ په ښکاره او واضح طور فرمائیلی دی چې : [لایحل مال امرء مسلم الا بطیب نفس منه][1] یعنی د یو مسلمان مال دهغه د رضا څخه بغیر حلال نه دې .

**په معاملو کښې شریکېدو دپاره ډیر احتیاط کول ضروری دی ::** ﴿وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ او ډیر شریکان په یو بل باندې زیاتی کوی ، ، په دې سره د معاملې شریکانو ته خبردارې ورکړې شوې دې چې اکثر د یو معاملې شریکان خپل مینځ کښې د بل حق په دې شان وهی چې هیڅ پروا ئې نه کوی . خو په حقیقت کښې هغه د گناه سبب جوړیږی څکه د شراکت په معامله کښې هم ډیر احتیاط کول ضروری دی .

﴿وَظَنَّ دَاوُودُ أَنَّمَا فَتَنَّاهُ﴾ او داؤد ﷺ ته خیال راغلو چې مونږ پرې امتحان اوکړو. که دمقدمې صورت لره د داؤد ﷺ د لغزش تمثیل اوگرځولې شی نو بیا خو دا خیال راتلل ښکاره خبره ده اوکه د مقدمې د صورت دې سره څه تعلق نه وی ، بیا هم د فریقینو دمجموعی حالت ښکاره کولو دپاره کافی وو چې دا د امتحان دپاره لیږلې شوی دی. یوطرفته خو دغه فریقو د مقدمې د فیصلې دپاره دومره تیزی او جرات نه کار واخستو چې په دیوال داخل شو بل طرفته چې مقدمه پیش شوه نو مدعا علیه خاموش ناست وو او په قولی او عملی شان سره ئې دمدعی خبره بې د څه مچختی[چون چراؤ] لتولو نه اومنله . که د مدعی بیان کړې واقعه مدعا علیه منلې نو د جگړې د فیصلې دپاره ، بیا داؤد ﷺ ته د راتلو ضرورت نه وو . د یو معمولی

---

[1] شعب الإيمان للبيهقي، رقم الحديث: ٥٢٥١

Scanned with Ca

عقل خاوند په دې پوهيدې شو چې داؤد ﷺ په دې صورت كښې هم د مدعى په حق كښې فيصله كوى ، د فريقينو د راز نه ډک دغسې عمل خودل چې دا څه معمولى واقعه نه ده . د داؤد ﷺ په زړه كښې راغلل چې دا د الله ﷻ رالیږلې شوى دى . چې غرض ئې په ما امتحان كول دى . او ځینې روایتونو كښې راغلى دى چې د فیصلې آوریدو نه پس هغوئ یو بل ته اوكتل او سمدستى آسمان ته لاړې ، والله اعلم.

﴿فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ﴾ یعنى هغوئ ﷺ د خپل پروردګار نه بخښنه اوغوښته او په سجده پريوتل او رجوع ئې اوكړه . دلته د ركوع لفظ استعمال شوې دې چې دهغه لغوى معنى د ټیټیدلو ده او ددې ركوع نه مراد دا كثرو مفسرینو ﷺ په نزد سجده كول دى ، د احنافو ﷺ په نزد ددې آیت په تلاوت سره سجده واجبيږي .

**په ركوع سره سجدۀ تلاوت ادا كيږي** :: امام ابوحنيفه رحمه الله په دې آيت سره دليل نيولې دې چې د مونځ سجدۀ تلاوت ددې مونځ په ركوع كولو سره ادا كيديشى . خو هله چې نيت ئې ورسر شامل وى . ولې چې الله ﷻ دسجدې دپاره دركوع لفظ استعمال كړې دې .چې ددې خبرې دليل ګرځى چې ركوع هم د سجدې قائمقام كيديشى . خو په دې سلسله كښې څو ضرورى مسئلې يادې ساتل پكار دى .

**سجدۀ تلاوت ځینې مسئلې** ::د مونځ د فرض ركوع په ذريعه سجده صرف په هغې صورت كښې ادا كيديشى چې كله د سجدې ايت په مونځ كښې اووائى . كه بهر لوستلې شوې وى نو بيا نه ادا كيږى. ولې چې ركوع صرف په مونځ كښې عبادت دې د مونځ نه بهر مشروع نده. [بدائع][1].

**مسئله** :: سجده د تلاوت په ركوع كښې صرف هغه وخت ادا كيديشى چې د سجده تلاوت د آيت پسې سمدستى ركوع اوكړې شى يا زيات نه زيات درې آيتونه نور ئې ورپسې لوستى وى . اوكه دې نه زيات آيتونه ئې لوستى وو نوپه ركوع كښې بيا سجدۀ تلاوت نه ادا كيږى .

**مسئله** :: په ركوع كښې سجدۀ تلاوت په دې شرط ادا كيږى چې ورسره نيت هم شامل وى البته كه سجدې ته لاړو نو سجدۀ تلاوت ئې بې نيته هم ادا كيږى .

**مسئله** :: بهر حال بهتره داده چې سجدۀ تلاوت دپاره سجدې ته لاړشى د هغې نه په راپورته كيدو سره دوه درې آيتونه چې اولولى هله دې ركوع ته لاړ شى . [بد ائع][2].

﴿وَإِنَّ لَهُ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَآبٍ﴾ او بيشكه هغوئ دپاره زمونږ په نزد خاص نزديكت او نيک انجامى ده . دې آيت سره خبره ختمول دې ته اشاره ده چې د داؤد ﷺ لغزش كه هر څه وو خو هركله چې داؤد ﷺ بخښنه اوغوښتله او الله ﷻ ته ئې رجوع اوكړه نو په دې سره ئې تعلق الهى كښې نور هم زياتوالئ راغلو.

**په غلطۍ باندې د خبرداره كولو دپاره دحكمت نه كار اخستل** :: ددې واقعې سره متعلق يوه بله خبره قابل ذكر ده چې د داؤد ﷺ لغزش كه هر څه وو، په دې باندې خبرداره كولو دپاره ورته الله ﷻ نيغه په نيغه هم فرمائيلې شو خو ددې په ځائې يې يوه مقدمه اوليږله او دخبردارى دپاره

[1] ) بدائع الصنائع،كتاب الصلاة، فصل فى كيفية اداء سجدة التلاوة:ج ٢، ص ٢٣٤

[2] ) بدائع الصنائع،كتاب الصلاة، فصل فى كيفية اداء سجدة التلاوة:ج ٢، ص ٢٣٤

Scanned with Ca

دا طریقه ولې اختیار کړې شوه؟ په حقیقت کښې په دې طریقه باندې غور کولو سره د امر بالمعروف او نهی عن المنکر والو دپاره دا هدایت کړې شوې دې چې د یو سړی په غلطئ باندې هغه خبرداره کولو دپاره ډیر د حکمت ضرورت دې او ددې دپاره داسې طریقه اختیارول ډیر ښه دی چې په هغې سره دغه غلطی کؤنکې خپله غلطی محسوس کړی. او په د بل د طرفه ورته د خبرداره کولوضرورت پیښ نه شی ، نو دې دپاره دداسې تمثیلاتونه کار ا خستل ډیر مؤثر دی چې په هغې د چا زړه آزار نه شی او ضروری خبره هم واضحه شی.

| يٰدَاوٗدُ | اِنَّا جَعَلْنٰكَ | خَلِيْفَةً | فِي الْاَرْضِ | فَاحْكُمْ | بَيْنَ النَّاسِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اے داود | بیشکه جوړ کړې مونږ ته | خلیفه | په زمکه کښې | پس حکومت کوه | په منځ دخلقو کښې |
| اے داوده! مونږ ته په زمکه کښې حاکم جوړ کړې یې | | | | نود خلقو په مینځ کښې په انصاف سره | |

| بِالْحَقِّ | وَلَا تَتَّبِعِ | الْهَوٰى | فَيُضِلَّكَ | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ |
|---|---|---|---|---|
| په حقه سره | اومه کوه پیروی | دخواهشاتو | پس بې لارې به کړی تا | دلارې دالله نه |
| فیصلې کوه | اودخپلوخواهشاتو تابعداری مکوه | | کنې دالله ﷻ دلارې نه به دې بې لارې کړی | |

| اِنَّ الَّذِيْنَ | يَضِلُّوْنَ | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | لَهُمْ | عَذَابٌ شَدِيْدٌ |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه هغه کسان | چې بې لارې کیږی | دلارې دالله نه | دپاره دهغوئ | عذاب سخت دې |
| څوک چې دالله ﷻ دلارې نه بې لارې شی | | نو هغه دپاره سخت عذاب مقرر دې | | |

| بِمَا | نَسُوْا | يَوْمَ الْحِسَابِ ۝ |
|---|---|---|
| په سبب دهغې | چې هیره کړه هغوي | ورځ دحساب |
| ځکه چې د حساب ورځ ئې هیره کړې ده | | |

## آسان ترجمه قرآن

اے داؤده! مونږ جوړ کړې دې تاﺳﺮه په زمکه کښې خلیفه، لهٰذا ته د خلقو په مینځ کښې په حقه سره فیصلې کوه، او نفسانی خواهش پسې مه روانیږه، پس هغه به تاﺳﺮه د لارې د الله تعالیٰ نه واړوی. یقین ساته، کوم خلق چه د الله تعالیٰ د لارې نه واوړی، د هغوی دپاره سخت عذاب دې، ځکه چه هغوی د حساب ورځ هیره کړې ده.

## خلاصه تفسیر

﴿يٰدَاوٗدُ﴾[اے داوده] ﴿اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْاَرْضِ﴾[مونږ تاﻟﺮه په مزکه حاکم جوړ کړې دې پس] څنګه چه دتراوسه کول دغه شان اننده هم ﴿فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ﴾[په خلقو کښې په انصاف سره فیصلې کوه او] لکه څنګه چه دتراوسه چرې نفسانی خواهش پیروی نه ده کړې دغه شان اننده هم ﴿وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى﴾[دنفسانی خواهش پیروی مه کوه] که داسې وکړې نو ﴿فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ﴾[دغه به دالله تعالی دلارې نه تاﻟﺮه بې لارې کړی] او ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَضِلُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾[کوم خلق چه دالله تعالی دلارې نه بې لارې شی ﴿لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌۢ بِمَا نَسُوْا يَوْمَ الْحِسَابِ﴾ دهغوی دپاره به سخت عذاب وی په دې وجه سره چه هغوی ورځ د حساب هیره کړه]

Scanned with Ca

## معارف او مسائل

الله ﷻ داؤد ﷺ ته پیغمبرئ سره بادشاهي هم ورکړې وه. نو په دې ایت مبارک کښې د حکومت او سیاست دپاره ورته بنیادي هدایت نامه ورکړې شوې ده. دې هدایات نامه کښې درې بنیادي خبرې ورته ارشاد فرمائیلې شوې دي:

① په دې حیثیت سره ستاسو بنیادي کار د حق مطابق فیصله کول دي.

② او ددې کار دپاره نفساني خواهشاتو د تابعدارئ نه ځان ساتل یو لازمي شرط دې

③ مونږ په زمکه کښې خپل خلیفه جوړ کړې یئ.

په زمکه کښې دخلیفه جوړولو مطلب په سورهٔ بقره کښې بیان کړې شوې دې. هلته ئې اوګورئ. دې نه د اسلامي سیاست دا اصل الاصول واضح کیږي. چې اقتدار اعلی الله ﷻ ته حاصل دې. د زمکې حکمرانانو ته صرف ددې حکمونو مطابق دې چلیدو اجازت دې. ددې نه بهر نشي تلې، نو د مسلمانانو حاکم، شوری یا اسمبلی د اسلامي قانون تشریح یا تدوین خو کولې شي لیکن په حقیقت کښې دا قانون جوړونکي نه دي بلکه د الله ﷻ قانون پیش کوؤنکي دي.

**د اسلامي ریاست بنیادي کار حق قائمول دي:** بله خبره دا واضحه کړې شوې ده چې داسلامي ریاست بنیادي کار حق قائمول دي، په حکومت باندې لازم دي چې هغوئ دې په خپلو انتظامي معاملو او جګړو په صفا کولو کښې حق او انصاف قائم کړي.

هرکله چې اسلام یو ابدي دین دې، ځکه هغې د سیاست اوحکمرانئ دپاره داسې انتظامي جزئیات نه دي ټاکلي چې د حالاتو اوزمانې په بدلیدو سره بهٔ ګنې بدلیدې شي. بلکه څه داسې بنیادي هدایتونه ئې ورکړي دي چې دهغې په رڼا کښې د هرې زمانې مطابق انتظامي جزئیات پخپله سمولې شي، ځکه دلته دا خبره اوخودلې شوه چې د حکومت اصل کار دحق قائمول دي، لیکن ددې انتظامي تفصیلات دهردور اهل رائې مسلمانانو ته پریخودې شوي دي

**دعدلیه او انتظامیه ترمینځه تړون:** انتظامیه او عدلیه دې یو ځائې وي او که بیل بیل؟ دې باره کښې څه ټاکلې حکم نشته چې په هر دور کښې دې نه بدلیږي. بلکه په څه زمانه کښې چې د حکمرانانو په امانت او دیانت باندې پورا اعتماد کیدیشي نو یو ځائې کیدل ئې کیدیشي او که داسې نه وه نو د انتظامیه به نه عدلیه بیله او آزاده لرلې شي.

هرکله چې داؤد ﷺ د امانت او دیانت لوړه درجه لرله ځکه په یو وخت د انتظامیئ او عدلیئ سربراه کړې شو دغه حال د نورو پیغمبرانو ﷺ او خلفائې راشدینو هم وؤ ځکه به دا دواړه مرتبې هغوئ سره یوځائې وې. امیر المومنین به هم وؤ او قاضي القضاة هم، لیکن دې نه پس د اسلامي حکومتونو دا طریقه بدله شوه، امیر المومنین د انتظامیئ او قاضي القضاة د عدلیئ سربراه جوړ کړې شو.

کوم دریم هدایت باندې چې دې آیت مبارك کښې زور ورکړې شوې دې هغه دادې چې د نفساني خواهشاتو تابعداري مه کوئ او دحساب ورځ هر وخت خپل وړاندې لرئ. پدې باندې د زور ورکولو وجه داده چې دا څیز د حق قائمولو بنیاد دې. دکوم حاکم یا قاضي په زړه کښې چې دالله ﷻ ویره او د آخرت فکر وي هغه په صحیح ډول حق او انصاف قائمولې شي ګنې که ډیر ښه قانون جوړ کړې شي خو انساني ناړمئ راپورته کیږي. او په دغې

صورت کښې د قانون غوره نظام ، حق او انصاف نشی قائمولې ، ددنیا تاریخ او د موجوده زمانې حالات په دې باندې ګواه دی.

**ځاته چې مهدې او مرتبې حواله شوله وي نوهغې کښې د بنده د کردار جاج اخستل ضروري دي:** دې ځائې نه معلومه شوه چې څوک چې حاکم ، قاضي یا دڅه محکمې افسر جوړولې شی نو اول دې د هغه دا جاج واخستې شی چې دې دالله ﷻ نه ویریږی ، د آخرت فکر ورسره شته ، د اخلاقو او کردار ئې څه حال دې ؟ که دا محسوس شوه چې ددهٔ په زړه باندې د الله ﷻ د ویرې په ځائې د نفسانی خواهشاتو حکمرانی ده نوکه هر څومره ډګرئی لری ، په خپل فن کښې هر څومره ماهر اوکلک وی ، د اسلام په نظر کښې هغه د یو لوړ منصب حقدار نه دې.

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ

اونهٔ دی پیدا کړی مونږه | آسمان |

| اومونږ آسمان اوزمکه اوددې دواړو په

وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِيْنَ

او زمکه | او هغه چې په منځ ددې دواړو کښې دی | عبث [فضول] | دا ګمان دې | دهغه کسانو |

مینځ کښې چې څه دی بې مقصده نه دی پیدا کړی | .................دا خو د کافرانو خلقو ګمان دی

كَفَرُوْا فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنَ النَّارِ

چې کفر ئې کړې دې | پس تباهي ده | دپاره دهغه کسانو | چې کفر ئې اوکړو | داور نه |

............ | ......... نوکافرانو دپاره لوئې هلاکت دې | چې ددوزخ اور دې

اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَالْمُفْسِدِيْنَ

یا ګرځوو مونږه | هغه کسان | چې ایمان راوړی | او عمل اوکړی نیک | پشان دفساد کونکو

آیا مونږ به د ایمان خاوندان او نیک عمله خلق د هغه چاسره برابر ګرځوو | چې په زمکه کښې

فِي الْاَرْضِ اَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِيْنَ كَالْفُجَّارِ كِتٰبٌ

په زمکه کښې | یا ګرځوو مونږه | پرهیزګاران خلق | پشان دفاجرانو [بدکارانو] | کتاب |

فسادونه خوروی | آیا مونږ به پرهیزګاران دبدکارونو پشان کوو | ............. دا [قرآن یو] برکتی

اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ مُبٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوْٓا اٰيٰتِهٖ

چې نازل کړې دې مونږ هغه | تاته | برکتناک دې | دپاره ددې چې غور اوکړی خلق | په آیتونو ددې

کتاب دې | چې مونږ تاته د دې دپاره نازل کړې دې | چې دوئ ددې په آیتونو کښې فکر اوکړی

وَلِيَتَذَكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ

او دپاره ددې چې نصیحت قبول کړی | خاوندان دعقل |

اوعقل مند ترې نصیحت قبول کړی |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ آسمان او زمکه او ددوی په مینځ کښې چه څه دی، فضول نه دی پیدا کړې. دا خو دهغې خلقو ګمان دې، کومو چه کفر اختیار کړې دې. نو د دغې کافرانو دپاره د دوزخ په شکل کښې لوی تباهي ده. او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې، او کومو چه نیک عملونه کړې دی. آیا مونږ هغوی لره د داسې خلقو برابر کړو، چه په زمکه کښې فساد کوی؟ یا مونږ پرهیزګارانو لره د بدکارو سره برابر کړو؟ (اے پیغمبره) دا یو برکت والا کتاب دې، چه مونږ په تا باندې ددې دپاره نازل کړې دې، چه خلق ددې په آیتونو کښې غور او فکر اوکړی او ددې دپاره چه عقل لرونکی نصیحت حاصل کړی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا﴾ [او مونږ اسمانونه اومزکې لره اوڅه چه ددوی په مینځ کښې دی دحکمت نه خالی نه دی پیدا کړی] بلکه ډیرحکمتونه دی په کښې چه دټولو نه لوئ حکمت توحید اود آخرت ثابتیدل دی دا ﴿ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ یعنی ددوئ دحکمت نه خالی کیدل [دهغو خلقو خیال دې کوم چه کافرانودی] ځکه چه هرکله ئې دتوحید او اخرت دجزا اوسزا نه انکار وکړو نو دکائناتو دپیداکولو دلوئ حکمت نه ئې انکار وکړو ﴿فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنَ النَّارِ﴾ [پس دکافرانودپاره] په اخرت کښې [لویه خرابی ده یعنی دوزخ] ځکه چه هغوی دتوحید نه انکار کولو [البته] یوه غلطی د دوی داده چه دقیامت نه منکر دی حال دادې چه په قیامت کښې دا حکمت دې چه نیکانوته جزا او مفسدانوته سزا ملاوشی او ددوی د قیامت په انکار سره لازمیږی چه ددې حکمت تحقیق ونه شی بلکه ټول برابر شی ﴿اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ [نو ایامونږ به هغو خلقو لره چه ایمان راوړی اونیک کارونه وکړی دهغوسره برابر کړو ﴿كَالْمُفْسِدِيْنَ فِي الْاَرْضِ﴾ کوم چه] کفروغیره کوی [په دنیاکښې فسادخوروی یا] په نوروالفاظوسره ایا ﴿اَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِيْنَ كَالْفُجَّارِ﴾ [مونږ به پرهیزګارانو لره دبدکارو سره برابر کړو] یعنی داسې نه شی کیدې لهذا قیامت به خامخا راځی چه نیکانوته جزا اوبدکاروته سزا ملاؤ شی دغه شان دتوحید او اخرت سره په رسالت ایمان لرل هم ضروری دی ځکه چه ﴿كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ مُبٰرَكٌ﴾ [دا] قرآن [یوبابرکته کتاب دې کوم لره چه مونږ په تاباند په دې واسطه سره نازل کړې دې ﴿لِّيَدَّبَّرُوْٓا اٰيٰتِهٖ وَلِيَتَذَكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ﴾ چه خلق ددې په ایتونو کښې غور وکړی] یعنی ددې په اعجازکښې هم او په کثیرالنفع مضامینوکښې هم [او ددې دپاره چه] په غور سره ددې حقیقت معلوم کړی ددې نه [دعقل خاوندان نصیحت حاصل کړی] یعنی په دې عمل وکړی

## معارف او مسائل

**د آیتونومبارکو نازک ترتیب** ﴿وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا﴾ دا آیتونه چې په کښې د اسلام بنیادی عقیدې او خصوصا آخرت ثابت کړې شوې دې د داؤد علیه السلام او سلیمان علیه السلام د واقعاتو په مینځ کښې په انتهائی نازك ترتیب سره راغلی دی ، امام رازی رحمه الله فرمائیلی دی چې که څوک د ضد په وجه نه پوهیږی نو داسې کس سره د حکیمانه طریقې مطابق داسې کول پکار دی چې دغه چیړلې شوې موضوع پریږدی او بله څه غیر متعلق خبره شروع کړی، او کله چې ددهٔ ذهن د ړومبئ خبرې نه واوړی نو په خبرو خبرو کښې دې په ړومبئ خبرې منلو باندې

مجبوره کړې شي. دلته د آخرت ثابتولو دپاره هم دا طريقه اختيار کړې شوې ده، د داؤد ﷺ د واقعې نه وړاندې د کافرانو د ضد بيان روان وو چې په دې آيت باندې ختم شو چې ﴿وَقَالُوْا رَبَّنَا عَجِّلْ لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ﴾ ددې حاصل دا وو چې د اخلق د آخرت نه انکار او ورپورې ټوقې کوی، دې پسې سمدستي دا ارشاد اوشو چې ﴿اِصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوٗدَ ذَا الْاَيْدِ ۚ اِنَّهٗۤ اَوَّابٌ﴾ ددوئ په خبرو باندې صبر اوکړئ او زمونږ بنده داود رايادکړئ. اوپه دې شان يوه نوې خبره شروع کړې شوه، خو د داود ﷺ واقعه په دې خبره ختمه شوه چې:

ائې داؤد ﷺ! مونږ تاسو په زمکه کښې خليفه جوړ کړې يئ، ځکه په خلقو کښې انصاف سره فيصلې کوئ. اوس دلته په يو نامحسوس طريقې سره دآخرت اثبات داسې اوکړې شو چې کوم ذات په زمکه کښې خپل خليفه ته دعدل او انصاف قائمولو حکم ورکوی او په نتيجه کښې ئې بدکاران سزا او نيکان آرام بيا مومي، آيا دغه ذات به پخپله په دې کائناتو کښې عدل او انصاف نه قائموی؟ يقينا د الله ﷻ د حکمت تقاضا داده چې نيکان او بدان به په فرق سره لری، بدکارو ته به سزا ورکوی او نيکانوته به انعام ورکوی. نود کائناتو د پيدا کولو مقصد هم دا دې او ددې عملې کولو دپاره د قيامت قائمول دهغه د حکمت عين مطابق دی، د قيامت نه انکار کول دا مطلب لری چې ګويا دا کائنات بې مقصده او د حکمت نه خالی پيدا کړې شوی دی. ښه او بد خلق به ددنيوی ژوند تيرولو نه پس مړهٔ کيږی او بيا به تر هيڅ تپوس نه کيږی. حالانکه د الله ﷻ په حکمت باندې ايمان لرونکې دا خبره چرې هم نشی منلې.

[اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَالْمُفْسِدِيْنَ فِي الْاَرْضِ اَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِيْنَ كَالْفُجَّارِ] نو آيا مونږ به ايمان راوړونکې او نيکان خلق په زمکه کښې فساد خورونکو سره برابر کړو، او يا به پرهيزګار خلق د بدو خلقوسره برابر کړو؟ يعنی داسې هيچرې نشی کيدې، بلکه د دواړو انجام به مختلف وی، دې ځخه معلومه شوه چې د مؤمن او کافر دا فرق د آخرت د احکامو په اعتبار سره دې، په دنيا کښې خو کافر ته د مؤمن ځخه زيات مادی راحتونه حاصليږی، دغسې ددې ځخه دانتيجه هم نشی راويستلې کيدې چې دکافرو دنياوی حقوق د مسلمان برابر نه شی کيدې، بلکه کافر ته د مسلمان برابر انسانی حقوق ورکولې کيدې شی. په اسلامی حکومت کښې چې کوم غير مسلم اقليتونه د څه وعدو سره استوګن وی هغوئ ته به انسانی حقونه د مسلمانانو سره يوشان او برابر ورکولې شي.

وَوَهَبْنَا لِدَاوٗدَ

| او ورکړو مونږه | داود ته |

او مونږ داؤد ﷺ ته [د هغه خوئي] ..........

سُلَيْمٰنَ ط نِعْمَ الْعَبْدُ ط اِنَّهٗۤ اَوَّابٌ ۝ اِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ

سليمان | ښهٔ بنده | بيشکه هغه رجوع کونکې دې | کله چې | پيش کړې شو | هغه ته |

سليمان ﷺ ورکړې وو | ډير ښهٔ بنده وو | او [الله ﷻ] ته ډير رجوع کونکې وو | هغه وخت ياد کړه چې

بِالْعَشِيِّ الصّٰفِنٰتُ الْجِيَادُ ۝ فَقَالَ اِنِّيْۤ اَحْبَبْتُ

په اخردورځ [ماښام] کښې | په درې خپو ولاړ [اصل] | اسونه | نو هغه اووئيل | بيشکه خوښ کړو ما

په ماښام کښې هغه ته اصيل ښهٔ اسونه پيش کړې شول | نو هغه اووئيل چې زهٔ د مال به محبت کښې

Scanned with Ca

| بِالْحِجَابِ۝ | تَوَارَتْ | حَتّٰى | عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ | حُبَّ الْخَيْرِ |
|---|---|---|---|---|
| په پردو کښې | چې پټ شو [اسونه] | تر دې پورې | په وجه دیادولو درب زما | محبت دمال [اسونو] |

دخپل رب دیادولو نه غافله پاتې شوم | تر دې چې نمر [دمغرب] په پرده کښې پټ شو

| بِالسُّوْقِ | مَسْحًۢا | فَطَفِقَ | عَلَيَّ ۭ | رُدُّوْهَا |
|---|---|---|---|---|
| په پنډو [باندې] | په وهلو دلاسونو | پس شروع اوکړه هغه | ماته | واپس راولئ دغه اسونه |

دا [اسونه] خو لړ را واپس کړئ | هغه د هغوئ په پنډو او ښتونو وهلو شروع اوکړه

وَالْاَعْنَاقِ۝

او په ښتونو [باندې] |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ داؤد علیه السلام ته سلیمان (ځوئ) ورکړو. هغه بهترین بنده وو، یقیناً ډیر رجوع کونکې وو الله تعالیٰ ته (هغه یو یادګار وخت وو) چه کله د هغه مخکښې دماښام په وخت کښې د ښه نسل کره اسونه پیش کړې شو. نو هغه اووئیل: یقیناً زه دې دولت سره مینه ساتم، د خپل پروردګار د یاد د وجې نه تردې پورې چه هغه په پرده کښې پټ شول. (په دې باندې هغه اووئیل) واپس کړئ دا ماته. نو شروع شو، چه لاس ئې وهلو په پنډو او په ښتولو د هغوی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَوَهَبْنَا لِدَاوٗدَ سُلَيْمٰنَ ۭ﴾او مونږ داؤد] علیه السلام [ته سلیمان] علیه السلام ځوئ [ورکړو ﴿نِعْمَ الْعَبْدُ ۭ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ۝ۭ﴾ ډیر ښه بنده وو چه] دالله تعالیٰ طرف ته [ډیر رجوع کوونکې وو] چنانچه دهغه هغه قصه دیادولو ده ﴿اِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِالْعَشِيِّ الصّٰفِنٰتُ الْجِيَادُ۝ۙ﴾[هرکله چه دماښام په وخت دهٔ ته مخامخ اصیل] او [عمده اسونه] کوم چه په غرض دجهاد وغیره ساتلې شول [پیش کړې شول] اودهغو په کتلو کښې دومره وخت تیرشو چه ورځ پټه شوه او څه معمول ددهٔ لکه مونځ فوت شو او په وجه دهیبت او جلالت چا خادم جراءت ونه کړې شو چه دې ئې خبر اوپوه کړې وې بیا چه په خپله پوه شو ﴿فَقَالَ اِنِّىْٓ اَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ ۚ﴾[نووئ وئیل چه] افسوس [زهٔ ددې مال په محبت کښې] لګیاشوم [دخپل رب دیادونه] یعنی د مونځ نه [غافله شوم ﴿حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ۝﴾ تردې چه نمر په پرده] دماښام [کښې پټ شو] بیا ئې خادمانو ته حکم وکړو چه ﴿رُدُّوْهَا عَلَيَّ ۭ﴾[هغه اسونه لږ بیا ماته راولئ] چنانچه راوستلې شو﴿فَطَفِقَ مَسْحًۢا بِالسُّوْقِ وَالْاَعْنَاقِ۝﴾[پس هغوی ددغو] اسونو [پنډئ او ښتونه] په توره سره [وهل شروع کړل] یعنی هغه ئې ذبح کړل

## معارف او مسائل

﴿ وَوَهَبْنَا لِدَاوٗدَ سُلَيْمٰنَ ۭ نِعْمَ الْعَبْدُ ۭ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ۝ۭ اِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ﴾دې آیتونو کښې د سلیمان علیه السلام واقعه بیان شوې ده ، ددې واقعې مشهور تفسیر هغه دې چې پورته دتفسیر په خلاصه کښې بیان شوې دې. خلاصه ئې داده چې سلیمان علیه السلام د آسونو معائنه کښې داسې مشغوله شو چې د مازیګر دمونځ وخت ترې لاړو کوم چې د سلیمان علیه السلام معمول وو، کله چې ئې دې ته خیال شونو هغه

Scanned with Ca

ټول آسونه ئي ذبح کړل ولې چې دهغې په وجه ترې د الله ﷻ په یاد کښې خلل واقع شوي وو. دغه مونږ نفلي هم کیدې شو او په دې صورت کښې خو څه اشکال ځکه نشته چې پیغمبران ﷺ د دومره غفلت هم د راسره کولو کوشش کوي. او دا هم کیدې شي چې فرض مونځ وي. او په معائنه کښې د لګیا کیدو په وجه ترې هیر شوې وي. د هیرې په وجه اګر چې دفرض مونځ د قضا کیدو په وجه ګناه نه وي خو سلیمان ﷺ د خپل لوړ منصب له کبله دې راسر کول هم غوښتل.

ددې آیتونو د ا تفسیر د ګڼرو امامانو نه منقول دې. او حافظ ابن کثیر ﷫ غوند محقق عالم هم دا غوره کړې دی، ددې تائید یو مرفوع حدیث نه هم کیږي چې علامه سیوطی ﷫ د معجم طبراني اسماعیلي او ابن مردویه په حواله سر نقل کړي. عن ابی بن کعب عن النبی ﷺ فی قوله فطفق مسحا بالسوق والاعناق قال قطع سوقها واعناقها بالسیف

دا حدیث پاک طبراني ﷫ په اوسط کښې روایت کړېد ې، په دې کښې یو راوی سعید بن بشیر دې چې شعبه وغیره ورته ثقه وئیلي دی. او ابن معین وغیره ورته ضعیف وئیلي دی. خو پاتې نور راویان ئې ټول ثقه دی. [مجمع الزوائد ص/۹۹ جلد/۷ کتاب التفسیر](۱).

ددې مرفوع حدیث په وجه دا تفسیر ښه مضبوطیږي خو په دې باندې غالبا عموما دا شبه کیږي چې هرکله دغه آسونه د الله ﷻ ورکړي یو ا نعام وو نو هسې ئي ضائع کول د یو نبي ﷺ شان سره مناسب نه معلومیږي. خو مفسرینو ددې جواب دا ورکړې دې چې دغه آسونه د سلیمان ﷺ ذاتي ملکیت کښې وو. او د هغوئ ﷺ په شریعت کښې د هغې قرباني کول هم جائز وو نو دا ضائع کول نه بلکه د الله ﷻ په نوم قرباني کول وو، نو څنګه چې د نورو حلالو څاروو قرباني کول یو عبادت دې دغسې آسونه قرباني کول هم هغوئ ﷺ دپاره عبادت شو. روح المعاني](۲).

دا خو د اکثرو مفسرینو ﷭ تفسیر شو، یو بل تفسیر ئي د عبدالله بن عباس ﷺ نه منقول دې، د هغې خلاصه داده چې کله دغه آسونه د سلیمان ﷺ په وړاندې راوستې شو چې جهاد دپاره ساتلې شوي وو نو سلیمان ﷺ خوشحاله شو او وې فرمائیل چې په دنیوي غرض نه بلکه د خپل پروردګار د یاد په وجه مې دا آسونه ډیر خوښ دی، ولې چې دا آسونه جهاد دپاره دي ا وجهاد د یوې اعلی درجې عبادت دې. په دې کښې هغه آسونه چې د سلیمان ﷺ د نظر نه پناه شو سلیمان ﷺ حکم ورکړو چې ماته دې دوباره راوستې شي کله چې ورته راوستې شو نو د مینې نه ئې ورته په پنډو او څټونو باندې لاسونه راښکل شروع کړل.

ددې تفسیر مطابق ﴿ عن ذکر ربي ﴾ کښې د عن سببیه دې، د توار ت ضمیر اسونو ته راجع دې، او د مسح معنی دلته پریکول نه بلکه د مینې نه پرې لاس راښکل.

یعنی دا آسونه مې د خپل پروردګار د یاد په وجه خوښ دی، کله چې دغه آسونه د سلیمان ﷺ د نظر نه پناه شو نو دهغې د واپس راوستو حکم ئې اوفرمائیلو. چې ورته راوستې شو نو ورته ئې په پنډو او څټونو لاسونه راښکل د مینې نه شروع کړل.

د قدیم مفسرینو ﷭ ځینې حافظ ابن جریر طبري ﷫ او امام رازی ﷫ وغیره دا تفسیر

(۱) المعجم الأوسط للطبراني، رقم الحدیث: ۷۱۹٤
(۲) تفسیر روح المعاني تحت هذه الآیة: ج ۱۷، ص ۳۳٤

Scanned with Ca

ځکه غوره کړې دي چې پدې باندې د مال ضائع کولو شبه نه کیږي.(١)

د قرآن پاک د الفاظو په لحاظ د دواړو تفسیرونو ګنجائش دلته شته دي خو هرکله چې د رومبی تفسیر باره کښې یو مرفوع حدیث هم راغلې دې چې د سند په لحاظ سره حسن دې ځکه د هغې قوت زیاتیږي.

**د نمر راواپس کیدو واقعه:** ځینو حضراتو چې رومبې تفسیر اختیار کړې دې، هغوئ د اهم وئیلی دی چې کله د سلیمان ﷺ نه د مازیګر مونځ قضا شو نو الله ﷻ یا فرښتو ته ئې خواست اوکړو چې نمر دې واپس راولی، نمر چې راواپس شو نو سلیمان ﷺ خپل معمول پوره کړو نو بیرته نمر ډوب شو، په دې بنا د غه حضرات د ردوها ضمیرنمر ته راجمع بولی. لیکن محققینو مفسرینو ﷺ مثلا علامه آلوسی ﷺ وغیره ددې واقعې رد کړې دې او وئیلی ئې دی چې د ردوها ضمیر آسونو ته راجع دې خو ددې وجه دا نه ده چې معاذ الله نمر راواپس کول دالله ﷻ په قدرت کښې نه دی. بلکه وجه ئې دا ده چې دا واقعه د قرآن پاک و حدیث په څه دلیل سره ثابته نه ده. [روح المعانی](٢).

**د الله ﷻ په یاد کښې چې غفلت وی نو په خپل ځان باندې سزا مقررول د دینی غیرت تقاضا ده:** بهر کیف ددې واقعې نه دا ثابتیږي چې څه وخت دالله ﷻ د یادونه بنده د غفلت په وجه پاتې راشی نو ځان ته د سزا ورکولو په غرض یو مباح کار نه ځان محرومه کول جائز دی. چې د صوفیانو حضراتو په اصطلاح کښې دې ته غیرت وئیلې شی. [بیان القرآن](٣).

په یو نیکئ باندې د ځان عادت کولو په غرض پخپل ځان باندې داسې سزاګانې مقررول د نفس د اصلاح یوه نسخه ده. او ددې واقعې نه ددې روا والې بلکه مستحبوالې ثابتیږي، درسول الله ﷺ نه هم روایت شوېدې چې یو ځل نبی کریم ﷺ ته ابو جهم ﷺ یو شامی څادر پیش کړو چې څه نقشونه پرې باندې وو، نبی کریم ﷺ په دغې څادر کښې مونځ او کړو، چې واپس راغلو نو عائشه صدیقه ﷺ ته ئې اوفرمائیل چې دا څادر ابوجهم ته واپس کړئې. ولې چې په مانځه کښې زما نظر ددې په نقش باندې پریوتو نزدې وه چې هغه مې په فتنه کښې واچوی، [احکام القرآن په حواله د مؤطا امام مالک ﷺ](٤). دغسې ابوطلحه ﷺ چې خپل باغ کښې مونځ کولو نو یو مرغئ ته په کتو شو چې مونځ ته ئې خیال پاتې نشو، ځکه ئې هغه ټول باغ خیرات کړو.(٥)

لیکن د ایاد لرل پکار دی چې دې مقصد دپاره سزا هم داسې پکار ده چې بذات خود روا وی، یو مال بې وجې ضائع کول جائز نه دی. نو په صوفیاء کرامو ﷺ کښې شبلی ﷺ یو ځل د سزا په ډول خپلې جامې سوځولې وې. خو محققینو صوفیانو مثلا:

---

(١) تفسیر الطبری تحت هذه الآیة: ج ۲۱، ص ۱۹۶، وتفسیر الرازی تحت هذه الآیة: ج ۱۳، ص ۱۹۱

(٢) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱۷، ص ۳۳۶

(٣) تفسیر بیان القرآن: ج ۱۰، ص ۸

(٤) وکذا فی صحیح البخاری، کتاب الأذان، باب الالتفات فی الصلاة، ج ۲، ص ۱۰٤، ومؤطا امام مالک رقم الحدیث: ۲۰٤، کتاب النداء بالصلاة، باب النظر فی الصلاة الی ما یشغلک عنها.

(٥) مؤطا امام مالک، رقم الحدیث: ۲۰٦، کتاب النداء بالصلاة، باب النظر فی الصلاة الی ما یشغلک عنها.

Scanned with Ca

شيخ عبدالوهاب شعراني رحمه الله دهغوئ رحمه الله دغې عمل ته صحيح اونه وئيل [روح المعاني][1]

**امير لره پخپله د رياست دكاروںو نګراني كول پكار دي** :: دې واقعې نه دويمه خبره دا معلومه شوه چې د حكومت ذمه دار يا لوئې درجې افسر له پكار دى چې هغه د خپل ماتحتو شعبو نګراني پخپله كوى. د خپلو ماتحتو په حواله كولو دى ئې هم داسې نه پريږدى. ځكه د ډيرو ماتحتو باوجود سليمان عليه السلام دآسونو معائنه پخپله اوفرمائيله دخلفاء راشدينو رضي الله عنهم او خصوصا د عمرفاروق رضي الله عنه دعمل نه هم دا ثابتيږى.

د يو عبادت په وخت په بل عبادت كښې مشغوليدل غلطى ده :ددې واقعې څخه دريمه خبره دا ثابتيږى چې يو عبادت دپاره مقرر وخت وى هغه په څه بل عبادت كښې هم ندى صرف كول پكار ،ښكاره خبره ده چې د جهاد د آسونو معائنه يو عظيم عبادت وو خو دغه وخت ددې عبادت په ځائې د مونځ دپاره وو ځكه سليمان عليه السلام هغې لره په غلطئ كښې شمير كړه او دهغې راسره كول ئې اوفرمائيل ، په دې بنا زمونږ فقهاء كرامو رحمهم الله ليكلى دى چې د جمعې د اذان څخه پس څنګه چې اخستلو خرڅولو كښې مشغوليدل جائز نه دى دغسې د جمعې مونځ دپاره د تيارئى څخه سوا په يو بل كار كښې مشغوليدل هم جائزنه دى اګر چې هغه د قرآن پاک دتلاوت يا د نفل مونځ كولو عبادت وى

| | | |
|---|---|---|
| وَلَقَدْ فَتَنَّا | سُلَيْمٰنَ | وَاَلْقَيْنَا |
| او بې شكه په آزميښت كښې واچوو مونږه | سليمان | او غورزوله مونږه |
| او مونږ سليمان عليه السلام په يو امتحان كښې واچولو \| اودهغه په تخت مو يو | | |
| عَلٰى كُرْسِيِّهٖ | جَسَدًا | ثُمَّ اَنَابَ﴿۳۴﴾ |
| په كرسئ دهغه باندې | يوه جوثه | بيا رجوع اوكړه هغه |
| نيمګړې بدن واچولو | | |

## آسان ترجمه قرآن

**اودا هم واقعه ده، چه مونږ په سليمان عليه السلام باندې يو آزمائش كړې وو ،او دهغه په كرسئ مو يوه جوسه واچوله بيا هغه الله تعالى طرف ته رجوع اوكړه.**

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمٰنَ﴾ [او مونږ سليمان] عليه السلام [لره] په يو بل شان سره هم [په امتحان كښې واچولو ﴿وَاَلْقَيْنَا عَلٰى كُرْسِيِّهٖ جَسَدًا ثُمَّ اَنَابَ﴾ اومونږ دده په تخت يوه بوتئ [يوه توته] واچوله بيا هغه] دالله تعالى طرف ته [رجوع وكړه]

## معارف او مسائل

﴿وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمٰنَ﴾ دې آيت كښې الله جل جلاله د سليمان عليه السلام ديو بل آزميښت يادګيرنه كړې ده . او په دغې سلسله كښې صرف دومره ذكر كړې شوى دى چې ددغې آزميښت په دوران كښې څه جوثه د سليمان عليه السلام په كرسئ باندې اچولې شوې وه ، اوس هغه جوثه څه وه ؟ د سليمان عليه السلام

[1]) تفسير روح المعاني: ج ۱۷، ص ۳۳٤

Scanned with Ca

په کرسئ باندې د اچولو څه مطلب دې ؟ او دا څنګه آزمینبت کیدیشی ؟ دا تفصیلونه نه خو په قرآن پاک کښې موجود دی اونه د یو صحیح حدیث پاک نه ثابت دی. څکه څینې محققینو مفسرینو رحمهم الله لکه حافظ ابن کثیر رحمه الله دا غوره کړې دی چې دقرآن پاک مجمله پریخودې خبره هم مجمله پریخودل پکار دی. د تفصیلاتو لټولو ضرورت ئې نشته. دلته صرف په دومره خبره ایمان لرل پکار دی چې الله ﷻ په سلیمان عليه السلام څه آزمینبت کړې وو چې د هغې نه پس سلیمان عليه السلام الله ﷻ ته زیاته رجوع اختیار کړل او د قرآن پاک اصل مقصد هم په دومره بیان سره پوره کیږی. او څینې مفسرینو رحمهم الله ددغې آزمینبت دتفصیلاتو د درک لګولو کوشش کړې دې او په دې سلسله کښې ئې ګڼړ احتمالونه بیان کړی دی. په دې کښې څینې احتمالونه خو خالص د اسرائیلی روایتونو نه اخستې شوی دی. لکه دا چې د سلیمان عليه السلام د حکومت راز د سلیمان عليه السلام په ګوتمه کښې وو، یو څل شیطان دغه ګوتمه قبضه کړه. او دهغې له وجې د سلیمان عليه السلام په شکل د سلیمان عليه السلام په تخت کیناستو. څلویښت ورځې پس دغه ګوتمه ورته د کب [ماهی] د خیټې نه په ګوتو ورغله چې دهغې په وجه ئې په حکومت دوباره قبضه اوکړه. داسې نور ګڼړ واقعات [قصې] ئې ګڼړو تفسیرونو کښې ذکر کړی دی. خو حافظ ابن کثیر رحمه الله ددې قسم ټول روایتونه په اسرائیلیاتو کښې شمیر کړی دی او بیا لیکی چې:

اهل کتابو کښې یوه ډله داسې ده چې سلیمان عليه السلام لره پیغمبر نه منی، بس ښکاره خبره داده چې دا د دروغوواقعات هم دغې خلقو دڅان نه جوړکړی دی.[تفسیر ابن کثیر ص/۳۶ جلد/۴] ([1])

نو داسې قسم روایتونو ته ددې قرآنی آیت تفسیر وئیل په هیڅ شان سره صحیح نه دی.

د سلیمان عليه السلام یوه بله واقعه په صحیح بخاری وغیره کښې راغلې ده چې څینې مفسرینو حضراتو رحمهم الله ددې واقعې څینې برخې چې دقرآن پاک دې آیت سره ئې سمون خوړلو هغه ئې ددې آیت مبارک تفسیر اوبللو. ددغې واقعې خلاصه داده چې یو څل سلیمان عليه السلام داخیال ظاهر کړو چې نن شپه به زه دخپلو بیبیانو سره کور والې اوکړم ، دهرې بی نه به مې یو یو خوئې پیدا شی چې د الله ﷻ په لار کښې به جهاد کوی ، خو دې سره ان شاء الله وئیل ترې هیر شو. الله ﷻ ته دخپل جلیل القدر پیغمبر دا کمزوری خوښه نه شوه او هغه لوئې ذات د سلیمان عليه السلام دعوی په دې شان غلطه ثابته کړه چې په ټولو ازواجو مطهراتو کښې صرف د یوې بی بی یو داسې مړ ما شوم پیدا شو چې یو اړخ ئې د سره نه وو. ([2])

څینو مفسرینو دا واقعه دې آیت سره اوتړله او وې فرمائیل چې په تخت باندې د جوثې اچولو نه مراد دادې چې د سلیمان عليه السلام یو خادم دغه ماشوم ورته په تخت کیخودو ، سلیمان عليه السلام چې د انشاء الله نه وئیلو دا نتیجه اوکتړله نو الله ﷻ ته رجوع شو او بخښنه ئې دالله ﷻ نه اوغوښته. دا تفسیر ګڼړو مفسرینو رحمهم الله مثلاً قاضی ابوالسعود رحمه الله ، او علامه آلوسی رحمه الله وغیره اختیار کړېدې. حکیم الامت تهانوی رحمه الله په بیان القرآن کښې هم ددې مطابق تفسیر

---

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۶۹

[2]) صحیح البخاری، کتاب الجهاد، باب من طلب الولد للجهاد: ج ۱، ص ۳۹۵

Scanned with Ca

کړې دي[1] خو حقیقت دا دې چې دې واقعې ته هم د آیت یقیني تفسیر نشي وئیلې ، ولې چې دا واقعه په څومره آیتونو کښې چې راغلې ده په هغې کښې ددې هیڅ علامت نشته چې رسول الله ﷺ دې لره د زیربحث آیت په تفسیر کښې ذکر کړې دی . امام بخاري رحمه الله هم دا حدیث پاک په کتاب الجهاد او کتاب الانبیاء او کتاب الایمان والنذور وغیره کښې په ګڼړو طریقو سره نقل کړې دې . لیکن په کتاب التفسیر کښې دسوة ص د تفسیر لاندې دا چرته هم نه دې ذکر کړې شوې بلکه دآیت مبارک ﴿وهب لي ملكا الخ﴾ لاندې ئې یو بل روایت نقل کړې دې او ددې حدیث ئې چرته حواله قدرې هم نه ده ورکړې . دې نه معلومیږی چې د امام بخاري رحمه الله په نزد هم دا واقعه د زیر بحث آیت تفسیر نه ده ، بلکه څنګه چې د انبیاء کرام علیهم السلام نور ګڼړ واقعات رسول الله ﷺ بیان کړې دی . هغسې د اهم یو څانله واقعه ده . چې د یوآیت تفسیر کیدل ئې ضروري نه دی .

یو دریم تفسیر امام رازي رحمه الله وغیره داسې بیان کړې دې چې سلیمان علیه السلام یو ځل سخت ناجوړه شو په هغې سره دومره زیات مانده او کمزورې شو چې کله په تخت تشریف فرما شو نو صرف بې ساه بدن معلومیدو . دې نه پس ورته الله ﷻ صحت او روغتیا ورکړه ، دغه وخت سلیمان علیه السلام الله تعالی ته رجوع اوکړه شکر ئې هم ادا کړو او بخښنه ئې هم اوغوښتله او آئنده کښې ځان دپاره داسې حکومت دعا ئې اوکړه چې دبل چا د هغسې نه وی[2] .

خو دا تفسیر هم خالص قیاسي دې ، د قرآن پاک الفاظو سره هم مناسبت نه لري او د څه روایت نه هم ددې څۀ ثبوت نشته . حقیقت دا دې چې په زیر بحث آیت کښې کومې واقعې ته اشاره شوې ده دهغې د یقیني تفصیلاتو دمعلومولو مونږ سره څه ذریعه نشته ، او نه مونږ ددې مکلف یو ، بس په دومره خبره باندې ایمان لرل کافي دی چې الله ﷻ په سلیمان علیه السلام باندې څه آزمیښت کړې وو چې د هغې نه پس په کښې الله ﷻ طرفته د رجوع کولو جذبه د ړومبې نه زیاته پیدا شوه. او ددې واقعې ذکر کولو نه د قرآن اصل مقصد ټولو انسانانو ته ددې خبرې بلنه ورکول دی چې هغوئ کله په څه مصیبت یا آزمیښت کښې راګیر شی نو هغه دپاره لکه د سلیمان علیه السلام پشان الله ﷻ ته د ړومبې نه زیاته رجوع کول پکار دی . البته د سلیمان علیه السلام د آزمیښت تفصیلات الله ﷻ ته حواله کول پکار دی . والله اعلم .

| اغْفِرْلِيْ | رَبِّ | قَالَ |
|---|---|---|
| معافي اوکړه ماته | اے ربه زما | وې وئیل |

اِدۀ دعا اوکړه | چې ائې زماربه! ماته معافي اوکړه

| اِنَّكَ | مِّنْۢ بَعْدِيْ | لِاَحَدٍ | لَّا يَنْۢبَغِيْ | مُلْكًا | وَهَبْ لِيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه ته | روستو زمانه | هیچا لره | چې نه ښائي | داسې بادشاهي | او راکړه ماله |

او داسې بادشاهي راته راکړې | چې زما نه بغیر [په دې زمانه کښې] بل هیچا ته حاصله نشي

[1] تفسیر بیان القرآن: ج ۱۰، ص ۹
[2] تفسیر الرازي تحت هذه الآية: ج ۱۳، ص ۱۹۳

اَنْتَ الْوَهَّابُ۝ فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيْحَ تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖ

هم ته ورکونکې ئې | پس تابع کړه مونږه | هغه لره | هوا | چې چلیده به | په حکم دهغه |

بیشکه ته ډیر زیات ورکونکې یې | نو مونږ بادونه د هغه تابع کړل | چې دهغه په حکم به

رُخَآءً حَيْثُ اَصَابَ۝ وَالشَّيٰطِيْنَ كُلَّ بَنَّآءٍ

په نرمئ سره | هر ځائې ته | چې خوښه وه دهغه | او تابع مو کړل شیطانان | هر قسم ماڼئ جوړونکی

دهغه په اختیارکښې الوتل | کم خوا چې به دهغه خوښه وه | اوټول عمارت جوړونکی او غوپه وهونکی پیریان

وَّغَوَّاصٍ۝ وَّاٰخَرِيْنَ مُقَرَّنِيْنَ فِي الْاَصْفَادِ۝ هٰذَا عَطَآؤُنَا

او غوپې وهونکی | او نور | تړلي شوی | په زنځیرونو کښې | دا بخشش زمونږ دي

مودهغه تابع کړل | اونور پیریان هم چې په زنځیرونو کښې تړلی پراته وو | دا زمونږ ورکړه ده

فَامْنُنْ اَوْ اَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ۝ وَاِنَّ لَهٗ

پس احسان کوه په ورکړه سره | یا مه ورکوه | بې حسابه | او بیشکه | هغه لره دي

نو ورکړه کوه یا ئې مکوه | ..............ستا نه به ددې هیڅ تپوس نه کیږی | اوهغه مونږ ته

عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَحُسْنَ مَاٰبٍ۝

زمونږ سره | نزدې مقام | او ښهٔ ځائې دورتلو |

ډیر نزدې دې | اوډیر ښه انجام ئې دې |

## آسان ترجمه قرآن

دې وئیل چه: اے زما پروردګاره! ماته بخښنه اوکړې، او ماته داسې سلطنت راوبخښې چه زما نه پس د هیچا دپاره مناسب نه وی بیشکه هم ته بخښنه کونکې ئې. نو مونږ هوا دهغه قابو کښې راوسته، چه دهغه په حکم بانديې به نرمه چلیده او شریران پیریان موهم دهغه په قابو کښې ورکړی وو، چه په هغې کښې هرقسمه آبادونکې او غوپه وهونکی شامل وو. اوڅه پیریان چه په زنځیرونو کښې تړلې شوې وو (اوهغه ته مو وئیلې وو) چه دا زمونږ ورکړه ده. اوس تاته اختیاردې، چه احسان کوې او چاته څه ورکوې، یاخپل ځان سره ئې ساتې په تاباندې د هیڅ حساب ذمه داری نشته اوحقیقت دادې، چه هغه ته زمونږ په نزد خاص نزدیکت حاصل دې، او ښه ځائې د اوسیدلو.

## خلاصه تفسیر

﴿قَالَ رَبِّ اغْفِرْلِيْ وَهَبْ لِيْ مُلْكًا لَّا يَنْۢبَغِيْ لِاَحَدٍ مِّنْۢ بَعْدِيْ﴾ حضرت سلیمان ﷺ دالله تعالی نه [دعا وغوښتله چه اے زما ربه زما] تیر [قصورمعاف کړه او] ائنده دپاره [ماته داسې حکومت راکړې چه زمانه سوا] زماپه زمانه کښې [چاته حاصل نه وی] خواه څه غیبی وهبی سامان راکړې خواه دزمانې بادشاهان هسې دباوکړې چه مقابله راسره ونه کړې شی او ﴿اِنَّكَ اَنْتَ الْوَهَّابُ۝﴾ [ته لوئ بخشش کوونکې یې] تاته ددې دعاقبلول څه ګران نه دی [پس] مونږ دده دعا قبوله کړه او دده خطا موهم معاف کړه او دارنګ ﴿فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيْحَ﴾ [مونږ هوالره دده تابع کړه ﴿تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖ رُخَآءً حَيْثُ اَصَابَ﴾ چه هغه به دده په حکم سره کوم ځائ ته چه به ده] تلل

[غوښتل په نرمۍ سره تلله] چه په دې سره دده اسونوته ضرورت پاتې نه شو ﴿وَالشَّيٰطِيْنَ كُلَّ بَنَّـآءٍ وَّغَوَّاصٍ ﴾[اوپيريان موهم دده تابع كړل يعنى ابادو جوړونكولره هم او] دملغلرو وغيره دپاره [غوپې وهونكى هم﴿وَّاٰخَرِيْنَ مُقَرَّنِيْنَ فِى الْاَصْفَادِ﴾ اونورو پيريانو لره هم كوم چه په زنځيرونو كښې به بند وو] غالبا چه كومو به دسپارلى خدمت نه ډډه كوله يا به يې په كښې كوتاهى كوله هغوى له به دقيد سزا وه او مونږ داسامان وركړو ارشادمووفرمائيلوچه ﴿هٰذَا عَطَآؤُنَا فَامْنُنْ [دا زمونږ بخشش دې پس خواه] چالره څه [وركوې ﴿اَوْ اَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ يا نه وركوې تانه هيڅ تپوس نشته] يعنى څومره سامان چه مونږ تالره دركړې دې په دې كښې ته دنورو بادشاهانو په شان محض خازن او منتظم نه يې جوړشوې بلكه ته مالك هم جوړشوې يې [او] علاوه ددې سامان نه كوم چه ده ته په دنيا كښې وركړې شوې وو ﴿وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَحُسْنَ مَاٰبٍ﴾[دده دپاره مونږ سره خاص [قرب او] اعلى درجه [نيك انجامى ده] چه ثمره به يې په پوره طور سره په اخرت كښې ظاهره شى

## معارف او مسائل

﴿وَهَبْ لِىْ مُلْكًا لَّا يَنْۢبَغِىْ لِاَحَدٍ مِّنْۢ بَعْدِىْ﴾ يعنى ماته داسې بادشاهى راكړه چې زما نه پس بل چاته حاصله نه وى.ځينې مفسرينو ددې مطلب دا بيان كړې دې چې زما په زمانه كښې دې زما پشان عظيم الشان سلطنت چاته حاصل نه وى. ګويا دهغوئ په نزد زما نه پس زما نه سوا مطلب لرى. تهانوى ﷫ هم ددې مطابق ترجمه كړې ده. خود زياتو مفسرينو ﷭ په نزد ددعا مطلب دادې چې زما نه پس دې هم دغسې عظيم الشانه بادشاهى چاته حاصله نه وى ، نو واقعه هم داده چې الله ﷻ سليمان ﷺ ته څنګه حكومت وركړې وو. د هغې نه پس هم هغسې بل چا ته نصيب نشو، ځينې خلق چې د عملياتو په ذريعې سره ځينې پيريان تابع كړځوى هغه دې سره بې سمونه ځكه نه دى چې دغسې خلق يو يا دوه پيريان په قابو كښې راولى ليكن څنګه تول اړخيزه حكومت چې د سليمان ﷺ په برخه رسيدلې وو هغسې بل چاته په برخه نه شو.

**د حكومت او اقتدار دعا:** دلته دا خبره هم يادول پكار دى چې د پيغمبرانو ﷺ هيڅ دعا دالله ﷻ د اجازت نه بغير نه وى ، سليمان ﷺ دادعا هم دالله ﷻ په اجازت سره غوښتې وه ، او هركله چې ددې منشا خالص د اقتدار مطلب نه وو بلكه ددې شا ته دالله ﷻ د احكامو نافذ كولو اودحق د سربلند كولو جذبې كار كولو او الله ﷻ ته معلومه وه چې د حكومت ملاويدو نه پس به سليمان ﷺ هم ددغې لوړو مقصدونو دپاره كار كوى ، او مرتبې سره دمينې جذبات به د سليمان ﷺ په زړه كښې ځائې نه بيا نه مومى ، ځكه ورته ددغې دعا اجازت هم وركړې شو او هغه قبوله كړې شوه ، ليكن عام خلق د اقتدار طلب كولو نه ځكه منع كړې شوى دى چې په دې كښې د مرتبې او مال جذبې شامليږى. نو كله چې انسان ددې قسم نفسانى جذباتو نه د خالى كيدو يقين لرى. او هغه واقعى د حق كلمې د بلندولو نه سوا دڅه بل دنيوى مقصد دپاره اقتدار حاصلول نه غواړى نو هغوئ دپاره د حكومت دعا غوښتل جائز دى [روح المعانى وغيره] (١).

(١) تفسير روح المعانى تحت هذه الآية: ج ١٧، ص ٣٤٦، ٣٤٧

Scanned with Ca

﴿مُقَرَّنِيْنَ فِي الْأَصْفَادِ﴾ يعنى په زنځيرونو كښې د ښكيل شوؤ ، د پيريانو دتابعدار كولو او هغوئ ته د سپارلو خدمتونو تفصيل په سورة سبا كښې تير شوې دې . دلته دا خودلې شوې دې چې سركش پيريان سليمان ﷺ په زنځيرونو كښې ښكيل كړي وو. اوس دغې زنځيرونو دپاره ضروري نه دی چې دا دې هم د اوسپنې عام زنځيرونه وی چې هر څوک ئې ليدلې شى ، كيديشى چې د پيريانو د ښكيل كولودپاره څه بله طريقه اختيار كړې شوې وی . چې په آسانه پوهولو دپاره دهغې نه په زنځيرونو سره تعبير كړې شوې وی.

| |
|---|
| وَاذْكُرْ　عَبْدَنَآ　اَيُّوْبَ م |
| او ياد كړه \| بنده زمونږه \| ايوب ﷺ \| |
| اوزمونږ بنده ايوب ياد كړه ........... \| |
| اِذْ　نَادٰى　رَبَّهٗٓ　اَنِّيْ　مَسَّنِيَ　الشَّيْطٰنُ |
| كله چى \| هغه آواز اوكړو \| رب خپل ته \| چې بيشكه زۀ چې يم \| مسه كړې يم زۀ \| شيطان \| |
| څه وخت چې هغه خپل رب ته آواز اوكړو \| چې شيطان زۀ په بيمارئ او په مشقت كښې |
| بِنُصْبٍ　وَّعَذَابٍ ؕ　اُرْكُضْ　بِرِجْلِكَ ۚ　هٰذَا مُغْتَسَلٌۢ　بَارِدٌ |
| په تكليف سره \| او په عذاب سره \| اووهه \| په پښه خپله [زمكه] \| داوبۀ دى دلمبيدلودپاره \| يخې |
| اچولې يم \| [جواب ورته اوشو] چې ته خپله پښه په زمكه اووهه \| اود لامبلو اوڅكلو دپاره دا يوه يخه |
| وَّشَرَابٌ　وَوَهَبْنَا　لَهٗٓ　اَهْلَهٗ　وَمِثْلَهُمْ　مَّعَهُمْ　رَحْمَةً |
| اواوبه دى دڅكلو \| او وركړو مونږ \| هغه ته \| اهل دهغه \| او نور هغومره \| دهغوئ سره \| په طور درحمت |
| چينه [راوتلې] ده \| اومونږ ورته ټول اهل وعيال واپس وركړه \| اودهغوئ هومره ورسره نور هم |
| مِّنَّا　وَذِكْرٰى　لِاُولِي الْاَلْبَابِ　وَخُذْ　بِيَدِكَ |
| دطرفه زمونږ نه \| او په طور دنصيحت \| دپاره دخاوندانو دعقلونو \| او واخله \| په لاس خپل كښې |
| دازمونږ مهربانى ده \| اودعقل مندو دپاره د عبرت سبق وو \| [او ائي ايوب ﷺ] ته په خپل لاس كښې يو |
| ضِغْثًا　فَاضْرِبْ　بِّهٖ　وَلَا تَحْنَثْ ؕ　اِنَّا　وَجَدْنٰهُ |
| دنرو لختو يو موټې \| پس اووهه هغه \| په هغې سره \| او قسم مۀ ماتوه \| بيشكه مونږه \| اوموندو هغه |
| موټئ دكى راواخله \| اوپه دې [خپله بى بى] اووهه \| اوقسم مۀ ماتوه \| مونږ هغه په حقيقت كښې ډير صابره |
| صَابِرًا ؕ　نِعْمَ الْعَبْدُ ؕ　اِنَّهٗٓ　اَوَّابٌ |
| صبر ناك \| ډير ښۀ بنده \| بيشكه هغه \| رجوع كونكې دې \| |
| بيا موندو \| هغه ډير ښه بنده وو \| اومونږ ته ډير رجوع كونكې وو \| |

**آسان ترجمه قرآن**

او زمونږ بنده ايوب عليه السلام لره ياد كړه. چه كله هغه خپل پروردګار را بللې وو. چه شيطان ما ته رسيدلې دې، په تكليف او په مرض سره. (مونږ هغه ته اووئيل) خپله پښه په زمكه باندې اووهه دا

يخې اوبه دي، د لامبلو دپاره هم، او د څښلو دپاره هم. او (دغه شان) مونږ هغه ته د هغه كور والا هم وركړل، او دهغوي سره هغومره نور هم د وجې د رحمت زمونږ نه، او دعقل والو د پاره يو يادګار نصيحت هم او(مونږ هغه ته دا هم اووئيل چه) چه راواخله په لاس خپل كښې جارو . پس اووهه په هغې سره بي بي خپله اوخپل قسم مه ماتوه حقيقت دادې، چه مونږ هغه لره ډير صبر كونكې بيامونډلې وو. اوهغه بهترين بنده وو، او الله تعالى طرف ته ډير زيات رجوع كونكې وو.

## خلاصه تفسير

﴿وَاذْكُرْ عَبْدَنَآ اَيُّوْبَ ۘ﴾[او ته زمونږ بنده ايوب] لره يادكړه ﴿اِذْنَادٰى رَبَّهٗٓ اَنِّىْ مَسَّنِىَ الشَّيْطٰنُ بِنُصْبٍ وَّعَذَابٍ ۝﴾ هركله چه هغه خپل رب لره وبللو چه شيطان ماته رنج او ازار رسولې دې] او دارنج او ازار دځنو مفسرينو دقول مطابق هغه دې كوم چه امام احمد په كتاب الزهد كښې دابن عباس نه روايت كړې دې چه دحضرت ايوب دبيمارئ په زمانه كښې يو خل شيطان ديوطبيب په شكل كښې دحضرت ايوب دبي بي سره ملاؤشوې وو هغې دې طبيب او ګڼړلو او دعلاج درخواست ئې ورته وكړو هغه ووئيل چه په دې شرط كه هغه جوړشي نو چه ته داسې ووائې چه تا ورله شفا وركړه زۀ نور څه نذرانه نه غواړم هغې حضرت ايوب ته ذكر وكړو هغوي ووئيل چه داخو شيطان وو زۀ عهد كوم چه كه الله تعالى ماته شفا راكړه نو زۀ به تاسل كوړې ووهم(¹) پس دۀ ته سخت تكليف ورسيدو ددې نه چه زما دبيمارى په وجې دشيطان دومره حوصله زياته شوه چه خاص زما دښځې سره داسې كلمې وائي كومې چه په ظاهره موجب دشرك دى اګر چه په تاويل كښې شرك نه دې اګر كه حضرت ايوب دمرض لرې كيدو دپاره اول هم دعا كړې وه مګرپه دې واقعه سره ئې نوره زياته په زارئ او عاجزئ سره دعا وكړه پس مونږ دده دعا قبوله كړه اوحكم مو ورته وكړو چه ﴿اُرْكُضْ بِرِجْلِكَ ۚ﴾[خپله پښه] په مزكه [ووهه] چنانچه هغه مزكې له پښه راپريښوده نو هلته يوه چينه پيداشوه راوه احمد]
پس مونږ دۀ ته ووئيل چه ﴿هٰذَا مُغْتَسَلٌۢ بَارِدٌ وَّشَرَابٌ ۝﴾[دا] ستاد پاره [دلمبلويخې اوبه دي او د څښلو] يعنى په دې كښې غسل وكړه او څښه هم چنانچه وئې لمبل او اوڅښلې ئې هم او بالكل ښه شو ﴿وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اَهْلَهٗ وَمِثْلَهُمْ مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنَّا﴾[اومونږ دۀ ته ددۀ كورمه او كورنئ وركړه او ددوى سره] په شمير[ددوى برابر نورهم] وركړل [دخپل خاص رحمت په سبب سره ﴿وَذِكْرٰى لِاُولِى الْاَلْبَابِ ۝﴾او دعقلمندو دپاره ديادګار پاتې كيدو په سبب سره] يعنى چه عقلمند ياد او ساتى چه الله تعالى صابرانو ته څنګه جزا وركوى او اوس ايوب دخپل قسم پوره كولو اراده وكړه مګر چونكه هغې د ايوب خدمت ډيركړې وو او ددې نه څه ګناه هم نه وه شوې په دې وجه الله تعالى په خپل رحمت سره ددې دپاره يو تخفيف وفرمائيلو [او] ارشاد ئې وفرمائيلو چه اے ايوب ﴿وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا﴾[ته په خپل لاس كښې يو موټې دلښتو واخله] چه سل تيلى په كښې وى ﴿فَاضْرِبْ بِّهٖ وَلَا تَحْنَثْ ۭ﴾ [او] خپله بي بي [په دې سره ووهه او] خپل [قسم مه ماتوه] چنانچه داسې وشوه وړاند دايوب تعريف دې چه ﴿اِنَّا وَجَدْنٰهُ صَابِرًا ۭ نِعْمَ الْعَبْدُ ۭ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ ۝﴾[بيشكه مونږ دۀ لره] يو لوئې صبر ناك بيا موندو ښه بنده چې الله تعالى ته ډير رجوع كوونكى وؤ.

¹) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٥، ص ٢١٢، والزهد الأحمد بن حنبل، رقم الحديث: ٤٥٨، بلا ايوب عليه السلام.

## معارف او مسائل

﴿وَاذْكُرْ عَبْدَنَا أَيُّوبَ﴾ دلته د ایوب ﷺ واقعه رسول الله ﷺ ته د صبر د تلقین کولو دپاره راوړې شوې ده ، دا واقعه په تفصیل سره په سورة انبیاء کښې تیره شوې ده ، دلته یو څو خبرې د بیانولو جوګه دی :

﴿إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ أَنِّي مَسَّنِيَ الشَّيْطَانُ بِنُصْبٍ وَعَذَابٍ﴾ یعنی شیطان راته تکلیف او آزار رارسولې دې .ځینې حضراتو ددې تفصیل دابیان کړې دې چې په ایوب ﷺ باندې دغه بیماری د شیطان د قابو موندو په وجه راغلې وه . اوشو داسې چې یو ځل فرښتو د ایوب ﷺ ډیر تعریف اوکړو ، دې سره د شیطان کینه پیدا شوه ، هغه د الله ﷻ نه دعا اوکړه چې ماته دې د ایوب ﷺ په بدن ، مال او اولاد داسې قابو راکړې شی چې زه په خپله خوښه ورسره هر څه کولې شم . الله ﷻ ته هم په ایوب ﷺ باندې آزمیښت کول مقصود وو ، ځکه شیطان ته دا حق ورکړې شو او هغه ایوب ﷺ لره په دغه رنځ کښې اخته کړو.

لیکن محققینو مفسرینو ﷺ ددې واقعې رد کړې دې او وئیلی ئې دی چې د قرآن پاک د واضح بیان مطابق په پیغمبرانو ﷺ باندې دشیطان قابو نشی راتلې ، ځکه دا نشی کیدې چې شیطان ناروغه کړې وی .

ځینو د تکلیف او آزار رسولو دا تشریح کړې ده چې د بیمارئی په حالت کښې به شیطان د ایوب ﷺ په زړه کښې قسما قسم وسوسې اچولې چې ورسره به د ایوب ﷺ تکلیف نور هم سیوا کیدو. خو بیا هم ددې آیت مبارک دټولونه زیاته غوره تشریح هغه ده چې تهانوی رحمه الله په بیان القرآن کښې اختیار کړې ده(١) . اودلته په خلاصه تفسیر کښې لیکلې شوې ده .

**د ایوب ﷺ د مرض نوعیت** :: قرآن کریم کښې صرف دومره خودلې شوی دی چې ایوب ﷺ باندې یوه سخته بیماری راغلې وه خودهغې نوعیت نه دې خودلې شوې. په احادیثو کښې هم ددې څۀ تفصیل رسول الله ﷺ نه منقول نه دې ، البته د ځینو آثارو نه معلومیږ چې د ایوب ﷺ د بدن په هره برخه باندې دانې راختلې وې . تر دې چې خلقو ترې کرکه کوله او په یو ډیران ئې اچولې وو ، خوځینو محققو مفسرینو دغه آثار درست نه دی منلی .هغوئ وائی چې په پیغمبرانو ﷺ بیماری راتلې شی خو د کرکې بیمارئیانې نه ، نو د ایوب ﷺ بیماری یوه عامه بیماری وه . دکرکې بیماری نه وه ، ولې چې دا د عقل او نقل دواړو نه خلاف دی . [النذیز دروح المعانی او احکام القرآن](٢).

﴿وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا﴾ تاسو دتیلو یو موټئ په لاس کښې واخلئ . ددې په شا واقعات د تفسیر په خلاصه کښې بیان شو، اوس دلته ددې واقعې باره کښې څو مسئلې درج کولې شی .

ړومبئ مسئله خو داده چې ددې واقعې نه دا معلومه شوه چې که چرې څوک چالره د سلو کوړو وهلو قسم اوکړی او بیا د یو ځانله ، ځانله کوړې وهلو په ځائې په یوځل دسلو کوړو په موټئ ئې اووهلو نوقسم ئې پوره شو.ځکه ددغسې کولو حکم ایوب ﷺ ته اوشو. دامسلک

١) تفسیر بیان القرآن: ج ۱۰، ص ۱۰
٢) تفسیر روح المعانی: ج ۱۷، ص ۳۵٤، و تفسیر القرطبي: ج ۱۵، ص ۲۰۸

Scanned with Ca

د امام ابوحنیفه رحمه الله هم دي ، خو د علامه ابن همام رحمه الله د لیکلو مطابق دي دپاره دوه شرطونه ضروری دی . یو دا چې ددغې کس په بدن باندې په پلنو یا اوږدو هره یوه کوره اولګی ، بله دا چې دهغې نه ئې بدن ته څه نه څه تکلیف ضرور رسی . که داسې نه وه نو قسم ئې نه پوره کیږی . تهانوی رحمه الله چې په بیان القرآن کښې څه لیکلی دی چې قسم ئې نه پوره کیږی . غالبا دهغوئ مراد دادې چې تکلیف ورته بیخی اونه رسی . یا څینې کورې بدن باندې د لګیدو نه پاتې شی ګنی حنفی فقهاء کرامو تصریح کړې ده چې که ددغه دوؤ بیان شوؤ شرطونو مطابق اووهلې شی نو قسم ئې پوره کیږی . [ فتح القدیر ص/۱۳۷ جلد/۴] ([1]).

**د حیلو شرعی حیثیت** :: دې آیت نه بله مسئله دا معلومه شوه چې د یو نامناسب یا مکروه خبرې نه د ځان ساتلودپاره چې څۀ شرعی حیله اختیار کړې شی نو هغه جائز دی ، ښکاره خبره ده چې د ایوب علیه السلام په واقعه کښې د قسم اصلی تقاضا داوه چې ایوب علیه السلام خپله بی بی پوره سل کورې وهلې وې ، خو هر کله چې هغه بیګناه وه او د ایوب علیه السلام ئې ډیر په راستئ سره خدمت کړې وو . څکه الله ﷻ ورته پخپله دغه حیله اوخودله . اودائې ورته په ډاګه کړه چې په دې سره به ئې قسم هم نه ماتیږی ، څکه دا واقعه د حیلې په روا کولو باندې دلالت کوی .

خو یادساتل پکار دی چې داسې حیلې هغه وخت روا کیږی چې دشرعی مقصودونو د باطلولو اوماتولو دپاره ذریعه جوړه نه شی . اوکه په دې سره د یو حقدار حق باطلول مقصد وی یا په ډاګه د یو حرام کار د روح برقرار ساتلو باوجود هغه خپل ځان دپاره حلال کړې شی نو داسې حیله بیخی ناروا ده . لکه زکوة د ځان ساتلودپاره څینې خلق دا حیله کوی چې د کال د ختمیدو نه لږ شان مخکې خپله ښځه دخپل مال مالکه جوړه کړی . بیا څو ورځې پس ئې ښځه دهغه مال بیرته خپل خاوند مالک ته واپس کړی . او د غه شان دا سلسله هر کال جاری وی . نو په دې شان زکوة ادا کولو نه خپل ځان ساتی . خو هرکله چې داسې کول د شرعی مقصدونو باطلولو یو کوشش دې څکه حرام دې ، او کیدیشی چې ددې وبال اوګناه دزکوة نه ادا کولو د ګناه نه زیاته لویه وی . [روح المعانی د مبسوط سرخی نه] ([2]).

**په نا مناسبه کار باندې قسم خوړل** :: دریمه مسئله تر د امعلومه شوه چې که څوک په یونامناسب ، غلط یا ناجائزکار باندې قسم خوری نو قسم ئې کیږی . اودهغې په ماتولو پرې کفاره نه کیږی . ښکاره خبره ده که د ایوب علیه السلام دغه قسم نه وې شوې نو ورته به داحیله نه وه خودلې شوې ، لیکن ورسره دا هم یاد لرل پکار دی چې که یو نامناسب کار باندې قسم اوخوړلې شی نو دشرعی حکم مطابق قسم دې مات کړی او کفاره دې ادا کړی . لکه په یو حدیث پاک کښې ر سول الله ﷺ فرمائیلی دی چې :

څوک چې قسم اوخوری بیا دهغې نه پس ئې رائې داوی چې ددې قسم نه پخلاف عمل زیات غوره دی نو دۀ دپاره پکار دی چې هغه کار دې اوکړی کوم چې ورته زیات غوره ښکاری او د خپل قسم کفاره دې ادا کړی ([3]) .

[1]) فتح القدیر، کتاب الإیمان، باب الیمین فی الضرب والقتل وغیره: ج ۱۱، ص ۲۴۰، ۲۴۱

[2]) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱۷، ص ۳۶۰

[3]) صحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب ندب من حلف یمیناً فرای غیرها— الخ: ج ۲، ص ۴۷

Scanned with CamScanner

وَاذْكُرْ عِبٰدَنَآ

| اویادکړه | بندګان زمونږ

| او زمونږ بندګان

اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ اُولِي الْاَيْدِيْ وَالْاَبْصَارِ﴿۴۵﴾ اِنَّآ

ابراهیم او اسحاق او یعقوب |خاوندان دلاسونو | او دسترګو | بیشکه مونږه

ابراهیم ﷺ او اسحاق ﷺ او یعقوب ﷺ یاد کړه | چې د [مضبوطو] لاسونو او د [سترګو] خاوندان وو

اَخْلَصْنٰهُمْ بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ﴿۴۶﴾ وَاِنَّهُمْ

خالص کړي وو هغوئ | په خالص صفت سره | یعني یادول دکور دآخرت | او بیشکه هغوئ

مونږ هغوئ په یو خاص فضیلت سره مخصوص کړي وو | چې هغه دآخرت یادساتنه ده | دغه خلق

عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْاَخْيَارِ﴿۴۷﴾ وَاذْكُرْ اِسْمٰعِيْلَ وَالْيَسَعَ

زمونږ سره | دغوره کړي شوو | نیکانو خلقو نه وو | او یاد کړه | اسماعیل | او الیسع

مونږ منتخب شوي او نیکان خلق دي | ............ او اسماعیل ﷺ او یسع ﷺ

وَذَا الْكِفْلِ ؕ وَكُلٌّ مِّنَ الْاَخْيَارِ﴿۴۸﴾ هٰذَا ذِكْرٌ ؕ وَاِنَّ

او ذوالكفل | او دا ټول | دنیکانو خلقو نه وو | دا یو ذکر وو | او بیشکه |

اوذوالکفل ﷺ هم یاد کړه | اودوئ ټول په نیکانو خلقو کښې شامل وو | داد نصیحت یو بیان اوشو

لِلْمُتَّقِيْنَ لَحُسْنَ مَاٰبٍ﴿۴۹﴾ جَنّٰتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً

دپاره دمتقیانو | خامخا ښهٔ ځائي دروتلو دي | جنتونه دي | دهمیشه استوګنې | پرانستي شوي به وي

اوپرهیزګارانو دپاره ډیر ښهٔ ځائي د ورتلو دي | ..................د همیشه اوسیدو باغونه دي

لَّهُمُ الْاَبْوَابُ﴿۵۰﴾ مُتَّكِـِٕيْنَ فِيْهَا يَدْعُوْنَ فِيْهَا

دپاره دهغوئ | دروازې [دهغې] | ډډې وهونکي به وي | په هغې کښې | راغواړي به | په هغې کښې

دکومو دروازې چې به دوئ دپاره پرانستې پرتې وي | دوئ به په دغه باغونو کښې ډډې وهلې وي

بِفَاكِهَةٍ كَثِيْرَةٍ وَّشَرَابٍ﴿۵۱﴾ وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ

میوې ډیرې | او شربتونه | اووي به دهغوئ سره | ښکته کتونکې [شرمناکې] |

اوډیرې میوې اوشربتونه به راغواړي | ........... اوورسره به [دحیا نه] سترګې ټیټې

الطَّرْفِ اَتْرَابٌ﴿۵۲﴾ هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِيَوْمِ الْحِسَابِ﴿۵۳﴾

همزولې ښځې | دا هغه څیزونه دي | چې وعده نې کیږي له تاسو سره | دپاره دورځې دحساب

ساتونکې همزولې جینکئ ناستې وي | دا هغه نعمتونه دي | چې تاسو سره دحساب دورځې دپاره دهغې وعده کیږي

اِنَّ هٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهٗ مِنْ نَّفَادٍ﴿۵۴﴾ هٰذَا ؕ وَاِنَّ

بیشکه دا | رزق زمونږ دې | چې نشته دې لره | خـتمیدل | دادې [متقیانولره] | او بیشکه

دا زمونږ هغه ورکړه ده | چې د هغې هیڅکله خلاصې نشته | داخبره خو اوشوه | ............او

لِلطّٰغِيْنَ لَشَرَّ مَاٰبٍ ﴿۵۵﴾ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا

دپاره دسرکشو خلقو | ډېر بد ځائې دې داوسيدو | دوزخ | چې سوزی به په هغې کښې |

د سرکشو خلقو دپاره ډير خراب ځائې دې يعنې دوزخ | چې دوئ په ورته ننوځي

فَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۵۶﴾ هٰذَا فَلْيَذُوْقُوْهُ حَمِيْمٌ وَّغَسَّاقٌ ﴿۵۷﴾

پس ډير بد دې | ځائې دقرار | دا [عذاب] دې | پس اوڅکی دوئ دا | يشيدلي اوبۀ | اووينې زوې |

نوهغه ډير خراب ځائې دې | داويشدلي اوبه او زوې [نو] دی | نودوئ دې اوس ددې مزه اوڅکي

وَّاٰخَرُ مِنْ شَكْلِهٖٓ اَزْوَاجٌ ﴿۵۸﴾ هٰذَا فَوْجٌ مُّقْتَحِمٌ مَّعَكُمْ

او نور | دقسمه ددې نه | ډېر قسمونه دعذاب | دا يو لښکر دې | چې ننوتونکې دې | ستاسو سره

اودغسې نور ډير ځيزونه دی | دايوه بله ډله تاسو سره داخليږی | دوئ دې هيڅکله هم

لَا مَرْحَبًۢا بِهِمْ ۭ اِنَّهُمْ صَالُوا النَّارِ ﴿۵۹﴾ قَالُوْا

نشته پخير راغلې | دپاره ددوئ | بيشکه دوئ | سوزيدونکی دی په اور کښې | او به وائی هغوئ |

خوشحاله نه وی | ..........دوئ په دوزخ کښې پريوتونکی دی | ..............هغوئ به وائی چې

بَلْ اَنْتُمْ لَا مَرْحَبًۢا بِكُمْ ۭ اَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوْهُ

بلکه تاسو سوزئ | هيڅ پخير راغلې نشته دپاره ستاسو | هم تاسو راوړاندې کړې دې دا عذاب

نه بلکه هم ستاسو دې هيڅکله خوشحالی نصيب نشی | هم تاسو خوراته دا [دوزخ] رامخکښې کړې وو

لَنَا ۚ فَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴿۶۰﴾ قَالُوْا رَبَّنَا

مونږ ته | پس ډير بد دې | ځائې دقرار | اوبه وائی هغوئ | اے ربه زمونږه |

دا ډيره د استوګنې ډير خرابه ځائې دې | ..............هغوئ به اووائې چې ائې زمونږ ربه

مَنْ قَدَّمَ لَنَا هٰذَا فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا

چاچې مخکښې تيار کړې دې دپاره زمونږ | دا انجام | پس زيات ورکړه هغه ته | عذاب دوچند |

دامصيبت چې مونږ ته چا راوړاندې کړې دې | هغه ته په دوزخ کښې دوچنده عذاب ورکړه

فِي النَّارِ ﴿۶۱﴾ وَقَالُوْا مَا لَنَا لَا نَرٰى رِجَالًا

په وور کښې | اوبه وائی په خپل منځ کښې | څه شوی دی مونږ لره | چې نۀ وينو | هغه سړی |

..........او وائی به چې څه خبره ده | ..............چې مونږ هغه خلق دلته نه وينو

كُنَّا نَعُدُّهُمْ مِّنَ الْاَشْرَارِ ﴿۶۲﴾ اَتَّخَذْنٰهُمْ سِخْرِيًّا

چې وۀ مونږه | چې شمارل به مونږ هغوئ | دناکاره خلقو نه | آيا نيولی وۀ مونږ هغوئ | په ټوقو سره

کوم چې به مونږ په شريرو خلقو کښې شميرل | دا مونږ ور پورې هسې ټوقې کولې که نه

اَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْاَبْصَارُ ﴿۶۳﴾ اِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ

او که کږې شوې | دهغوئ نه | سترګې زمونږ | بيشکه | دا خبره | خامخا حقه ده |

زمونږ نظرونه هغوئ نه اوړيدلي رااوړيدلی دی | بيشکه ددوزخيانو مينځ کښې

Scanned with Ca

| | |
|---|---|
| تَخَاصُمُ　　اَهْلِ النَّارِ ۝ | |
| دیو بل سره جگړه \| د دوزخ والو \| | |
| دا جگړه بالکل حقه خبره ده \| | |

## آسان ترجمه قرآن

او زمونږ بندګان ابراهیم، اسحاق، او یعقوب یاد کړه، (چه نیک عمل کونکي) لاسونه (او لیدونکي) سترګې ئې لرلې مونږ هغوی لره د یو خاص وصف دپاره منتخب کړي وو، چه (د آخرت) دحقیقي کور یاد وو. او په حقیقت کښې هغوی زمونږ په نزد هغه د منتخب شوو بهترینو خلقو نه وو. او اسماعیل، الیسع او ذوالکفل لره یاد کړه او دا ټول بهترین خلق وو، دا ټول هرڅه د یو نصیحت پیغام دې، او یقین او کړئ، چه کوم خلق تقوی اختیار کړي د آخرې ټهکانې بهترې هم دهغوی په حصه کښې راځي. یعني همیشه اوسیدلو دپاره جنتونه دي، چه دهغې دروازې به ددوی دپاره پرانستلې شوې وي. چه هلته کښې به دوی تکیه لګولې وي، او ډیرې میوې او دڅکلو څیزونه به غواړي. اوهغوی سره به هغه همزولې ښځې وي، چه دهغوی نظرونه به په خپلو خاوندانو لګیدلې وي. دا دې (د نعمتونو نه ډک ژوند) چه ددې تاسو سره په ورځ د حساب وعده شوې ده. بے شکه دا زمونږ ورکړه ده، چه چرې هم ختمیدونکې نه ده یوطرف ته دا نعمتونه دي، او (دویم طرف ته) کومو خلقو چه سرکشي اختیار کړې ده، یقین اوکړئ، دهغوی آخرې ځائې به ډیربد وي یعني دوزخ چه هغې ته به دوی داخلیږي، بیا به هغه ددوی بدترین د آرام ځائې وي، دا دې خوټکیدلې اوبه او پیپ، اوس دې دوی ددې مزه اوڅکي او ددې د مثل نه نور قسما قسم عذابونه. (او چه کله دوی خپلو تابعدارو لره اووینې نو یو بل ته به اووائي) دا یو بل لښکر دې چه تاسو سره رانوځي، نه دې وي په خیر راغلې ددوی دپاره، دا ټول په اور کښې سوزیدونکي دي. هغه (راتلونکي) به اووائي نه بلکه تاسو، نه دې وي په خیر راغلې تاسو لره، تاسو رامخکښې کړې دې دا مصیبت مونږ ته، اوس خو هم دا بدترین ځائې دې، چه دلته به اوسیدل وي. (بیا به هغوی الله تعالیٰ ته اووائي چه) اے زمونږ پروردګاره ! کوم سړي چه دا مصیبت مونږ ته رامخکښې کړي دې، هغه ته په دوزخ کښې دوچند عذاب ورکړه. او هغوی (به یو بل ته) وائي څه خبره ده، مونږ ته هغه خلق (دلته په دوزخ کښې) په نظر نه راځي، چه هغوی لره مونږ په بدو خلقو کښې شمارل آیا مونږ هغوی پورې (ناحقه) ټوقې کړې وې، یا دهغوی لیدلو نه سترګو ته غلطي کیږي. یقیناً دا دوزخیانو په خپلو کښې د جګړو داخبرې ټولې رشتیا دي، چه خامخا به کیږي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاذْكُرْ عِبٰدَنَآ اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ﴾ [او زمونږ بندګانو ابراهیم علیه السلام او اسحق علیه السلام او یعقوب علیهم السلام] [لره یادکړه ﴿اُولِي الْاَيْدِيْ وَالْاَبْصَارِ ۝﴾ کوم چه] په [لاسونو] سره کار کوونکی [او] په [سترګو] سره لیدلو [والا وو] یعني په دوی کښې قوت عملیه هم وو او قوت علمیه هم او ﴿اِنَّآ اَخْلَصْنٰهُمْ بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ ۝﴾ [مونږ دوی لره په یوه خاص خبره سره مخصوص کړی وو چه هغه یاد داخرت دی] چنانچه دا ظاهره ده چه په انبیاؤ علیهم السلام کښې دا صفت دټولو نه زیات تام او کامل وی او

شاید دا جمله ئې ځکه زیاته کړې ده چه غافلان پوه شي چه هر کله انبیاء علیهم السلام ددې فکر نه خالي نه وو نو تاسو په کوم شمیر کښې يئ؛ ﴿وَإِنَّهُمْ عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ﴾ [او هغه] حضرات [زمونږ په نزد منتخب او دټولو نه په ښو خلقو کښې دی] یعنی په منتخبو خلقو کښې هم د ټولونه زیات چنانچه ظاهره ده چه انبیاء دنورو اولیاؤ او صالحانو نه افضل وی ﴿وَاذْكُرْ إِسْمَاعِيلَ وَالْيَسَعَ وَذَا الْكِفْلِ﴾ [او اسمعیل علیه السلام او یسع علیه السلام او ذوالکفل] علیه السلام [لره هم یادکړه ﴿وَكُلٌّ مِنَ الْأَخْيَارِ﴾ او داټول هم دټولو نه دښو خلقو نه وو] وړاندې دتوحید او اخرت او رسالت څه قدرې مفصل بیان دې ﴿هَٰذَا ذِكْرٌ﴾ [یود نصیحت مضمون خو دا وشو] ددې نه مراد دانبیاؤ علیهم السلام واقعات دی په دې واقعاتو کښې دکافرانو دپاره درسالت دعقیدې تبلیغ دې او دمؤمنانو دپاره داخلاق جمیله او اعمال فاضله تعلیم دې [او] دویم مضمون داخرت د جزا او سزا متعلق اوس شروع کیږی تفصیل ئې دادې چه ﴿وَإِنَّ لِلْمُتَّقِينَ لَحُسْنَ مَآبٍ﴾ [د پرهیزګارانو دپاره] په اخرت کښې [ښه ځائ داوسیدو دې یعنی ﴿جَنَّاتِ عَدْنٍ مُفَتَّحَةً لَهُمُ الْأَبْوَابُ﴾ دهمیشه اوسیدو باغونه چه دروازې به ئې ددوی دپاره بیرته وی] ظاهر مراد دادې چه وړاند نه به بیرته وی ﴿مُتَّكِئِينَ فِيهَا يَدْعُونَ فِيهَا بِفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ وَشَرَابٍ﴾ [هغوی به په دې باغونو کښې تکیه لګولی ناست وی] او [هغوی به هلته] د جنت دخادمانونه [ډیرې میوې او دڅښلو څیزونه راغواړی ﴿وَعِنْدَهُمْ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ أَتْرَابٌ﴾ او دهغوی سره به نظرونه ښکته لرونکې همزولې وی] مراد حورانې دی اے مسلمانانو ﴿هَٰذَا﴾ [دا] چه بره ئې ذکر وشو ﴿مَا تُوعَدُونَ لِيَوْمِ الْحِسَابِ﴾ [هغه] نعمت [دې چه تاسو سره ئې دحساب د ورځې په راتلو وعده کولې شی ﴿إِنَّ هَٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهُ مِنْ نَفَادٍ﴾ بیشکه دازمونږ بخشش دې ددې چرې ختمیدل نشته] یعنی دائمی او ابدی نعمت دې ﴿هَٰذَا ۚ وَإِنَّ لِلطَّاغِينَ لَشَرَّ مَآبٍ﴾ [داخبره خو وشوه] کومه چه دنیك بختو پرهیزګارانو متعلق وه [او] وړاند دکافرانو متعلق مضمون دې هغه داچه [دسرکشانو دپاره] یعنی کوم چه په کفرکښې دنورو رهنماوو دهغو دپاره [بدځائ د اوسیدو دې ﴿جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا﴾ یعنی دوزخ په دې کښې به هغوی دا خلیږی ﴿فَبِئْسَ الْمِهَادُ﴾ پس ډیر بدځائ دې ﴿هَٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ﴾ دا جوشیدلې اوبه او زوې] موجود [دی پس داخلق به دغې لره څکی او] ددې نه علاوه ﴿وَآخَرُ مِنْ شَكْلِهِ أَزْوَاجٌ﴾ [نورهم ددې قسمه] ناګواره او موجب آزار [قسم قسم څیزونه] موجود [دی] دغولره به هم څکی او کوم خلق چه د دوی تابع وو دهغو دپاره به داڅیزونه وی اګر چه په تقدم او تاخر او د ډیر سخت او سختوالی تفاوت به وی باقی په نفس عذاب کښې به ټول شریك وی چنانچه هرکله دکافرانو رهنما اول دوزخ ته داخل شي بیا ددوی پیرو کار راشی نو رهنما به په خپل مینځ کښې ووائی چه واخلئ ﴿هَٰذَا فَوْجٌ مُقْتَحِمٌ مَعَكُمْ﴾ [دایوه ډله بله راغله کومه چه تاسو سره] په عذاب کښې دشریکیدو دپاره په جهنم کښې [راننوځی ﴿لَا مَرْحَبًا بِهِمْ ۚ إِنَّهُمْ صَالُو النَّارِ﴾ په دوی دالله تعالی لعنت داهم دوزخ ته راځی] یعنی که داسې څوك راتلې چه دعذاب مستحق نه وې نو دهغوی په راتلو به خوشحالی هم وه او ددوی خو شامنده به هم کیده داخو په خپله دوزخیان دی ددوی نه څه امید او ددوی د راتلو څه خوشحالی او څه راشه درشه؟ ﴿قَالُوا بَلْ أَنْتُمْ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ﴾ [هغوی] پیروان به خپلو رهنماؤ ته [ووائی بلکه په تاسو دې دالله تعالی لعنت وی] ځکه چه ﴿أَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوهُ لَنَا ۖ فَبِئْسَ الْقَرَارُ﴾ [تاسو خودا] مصیبت [مونږ ته راپیښ کړو] ځکه چه تاسو به

Scanned with Ca

مونږه لمسولو [پس] جهنم [ډیره بده ټکاونړه ده] کومه چه ستاسو په وجه مونږ ته راپیښه شوه ددې نه پس هرکله چه په دوی کښې هرسړي په بل الزام لګوي نو دغه وخت به متبعین ددوی سره خبرې پریږدي ﴿قَالُوْا رَبَّنَا﴾ الله تعالی ته به [دعاوکړي چه اے زمونږ پروردګاره ﴿مَنْ قَدَّمَ لَنَا هٰذَا فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا فِي النَّارِ﴾ کوم سړي چه په مونږ ددې] مصیبت [راوستونکي دې هغه له په دوزخ کښې دوچنده عذاب ورکړې ﴿وَقَالُوْا﴾ او هغه خلق] یعنی متبعین یا ټول دوزخیان به په خپل مینځ کښې [ووائی ﴿مَا لَنَا لَا نَرٰى رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُمْ مِّنَ الْأَشْرَارِ﴾ چه څه خبره ده چه مونږ هغو خلقو لره] په دوزخ کښې [نه وینو کومو لره چه به مونږ په بدو خلقو کښې شمیرل] یعنی مسلمانان به مو بدراه او سپك ګڼړل هغه ولې په نظر نه راځی ﴿أَتَّخَذْنَاهُمْ سِخْرِيًّا أَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْأَبْصَارُ﴾ [آیا مونږ] ناحقه [په هغوی پورې خنداکوله] او هغوی ددې قابل نه وو او جهنم ته رانغلل [یا] داچه په جهنم کښې موجود دی مګر [دهغوی] دلیدو [نه زمونږ نظرو نه اوړیدلی دی] چه په هغو مونظر نه پریوځی مطلب داچه دعذاب سره به دایو بل حسرت وی چه کومو خلقو لره مونږ بدګڼړل هغه دعذاب نه بچ شول او ﴿إِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ أَهْلِ النَّارِ﴾ [داخبره یعنی ددوزخیانو په خپل منځ کښې جګړه کول بالکل رښتونې خبره ده] چه خامخا به وی

## معارف او مسائل

﴿أُولِي الْأَيْدِي وَالْأَبْصَارِ﴾ ددې لفظی معنی داده چې هغوئ ﷺ د لاسونو او نظرونو خاوندان وو، مطلب دا چې هغوئ ﷺ به فکری او عملی طاقتونه د الله ﷻ په فرمانبردارئ کښې لګول، په دې کښې اشاره دې خبر ته ده چې د انسانی اندامونو اصلی کار دادې چې دالله ﷻ په فرمانبردارئ کښې اولګولې شی او چې کوم اندام په دې کښې صرف نشی دغه اندامونه د نیشت برابر دی.

**دآخرت فکر د پیغمبرانو ﷺ امتیازی صفت دې** ﴿ذِكْرَى الدَّارِ﴾ د کور یاد دلته د کور نه مراد آخرت دې، دآخرت د لفظ په ځائې د دار لفظ راوړل دې ته اشاره ده چې دانسان اصلی کورآخرت دې او هم د آخرت فکر د انسان فکری او عملی قوت کښې نور زیاتوالئ راولی. د ځینو ملحدانو یعنی بیدینو دا خیال بیخی بې بنیاده دې چې د آخرت فکر انسانی قوتونه کمزوری کوی.

**الیسع ﷺ** ﴿وَالْيَسَعَ﴾ او الیسع ﷺ یادکړئ الیسع ﷺ د بنی اسرائیلو یو پیغمبر وو. قرآن کریم کښې ددوئ ﷺ ذکر صرف دوه ځائې کښې راغلې دې. یو په سورة انعام کښې او بل دلته په دواړو ځایونو کښې ئې څه تفصیلی حالات نه دی بیان کړی. بلکه د انبیاء کرامو ﷺ په لړئی کښې صرف د دوئ ﷺ نوم راوستې شوېدې.

په تاریخی کتابونو کښې راغلی دی چې دوئ ﷺ د الیاس ﷺ د ترهٔ ځوئې او دهغوئ ﷺ نائب او خلیفه وو. هم د هغوئ ﷺ په ملګرتیا کښې به پاتې کیدو، دهغوئ ﷺ نه پس ورته پیغمبری ورکړې شوه. دبائیبل په کتاب سلاطین اول باب ۱۹ او سلاطین دوم باب ۲ وغیره کښې ددوئ ﷺ تفصیلی حالات بیان کړې شوېدې. دغلته د دوئ ﷺ نوم مبارک الیشع بن سافط بیان شوېدې

﴿وَعِنْدَهُمْ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ أَتْرَابٌ﴾ او دوئ سره به لاندې نظر لرونکی همځولی ښځې وی. دې نه مراد د جنت حورې دی. دلته د همځولو، دوه مطلبه کیدیشی، یو دا چې دغه حورې به خپل

مینځ کښې سره همځولې وی ، اوبل دا چې خاوندانو سره به همځولې وی ، چې خپل مینځ کښې حورې سر ه همځولې وی نو دهغې فائده داده چې ددغې ښوبه خپل مینځ کښې د مینې محبت اودوستئ تعلق وی. چې دا خبره خاوند دپاره د ډیره آرام موجب وی.

**دښځې خاوند ترمینځه د عمر دمناسبت لحاظ ساتل ډیر غوره دی** کله چې د خاوندانو سره د همځولتیا مطلب ترې واخستې شی نو پدې صورت کښې به ئې فائده دا وی چې د ښځې خاوند ترمینځه به چرې طبیعت خرابیدل نه راځی ځکه ددوئ تر مینځ به زیات جوړښت او مینه محبت وی. یو تربله به دآرام او د یوبل د زړه زیات خیال ساتلې شی. ددې نه معلومه شوه چې د ښځې خاوند تر مینځه د عمر لحاظ هم ساتل پکار دی ، ولې چې ددې نه خپل مینځ کښې مینه محبت او دنکاح تعلق ئې زیات او ښه پائیدار جوړیږی.

قُلْ　اِنَّمَآ　اَنَا مُنْذِرٌ ۖۗ　وَّمَا مِنْ اِلٰهٍ

| ورته اووایه | بیشکه | زهٔ یرونکې یم | او نشته ځوك معبود |

| ته اعلان اوکړه چې زهٔ خو صرف یو ویرونکې یم | او د یو غالب

اِلَّا اللّٰهُ　الْوَاحِدُ　الْقَهَّارُ ۚ　رَبُّ السَّمٰوٰتِ　وَالْاَرْضِ

سوا دالله نه | چې یو دې | په ټولو غالب دې | چې رب دآسمانونو | او دزمکې دې |

الله ﷻ نه سوا بل هیڅوک معبود نشته | ..........هغه دآسمانونو او دزمکې اود دې دواړو

وَمَا بَیْنَهُمَا　الْعَزِیْزُ　الْغَفَّارُ　قُلْ

او دهغه څه چې په منځ ددې دواړو کښې دی | چې غالب دې | بخښونکې دې | ورته اووایه |

په مینځ کښې چې څه دی دټولو څیزونو رب دې | زبردست دې ډیربښونکې دې | ته ورته اووایه

هُوَ نَبَؤٌا　عَظِیْمٌ ۙ　اَنْتُمْ　عَنْهُ　مُعْرِضُوْنَ　مَا كَانَ لِیَ　مِنْ عِلْمٍ

دا یو خبر دې | لوئ | تاسو | ددې نه | مخ اړونکی یئ | نهٔ وو ماته | هیڅ علم |

هغه [قیامت] یولوئې خبر دې | دکوم نه چې تاسو مخ اړوئ | ماته د برنئ دنیا د فرښتو هیڅ څیز

بِالْمَلَاِ الْاَعْلٰۤی　اِذْ　یَخْتَصِمُوْنَ　اِنْ یُّوْحٰۤی　اِلَیَّ　اِلَّاۤ

په ډله لوړه [دفرښتو] باندې | کله چې | هغوئ جګړه کوله | نهٔ کیږی وحی | ماته | مګر په دې وجه

خبرنه وو اهر کله چې هغوئ په خپل مینځ کښې [په پیدا وښت دآدم ؑ] بحث کولو | ماته خودوحی په ذریعه

اَنَّمَاۤ　اَنَا　نَذِیْرٌ مُّبِیْنٌ　اِذْ قَالَ　رَبُّكَ　لِلْمَلٰٓىِٕكَةِ　اِنِّیْ

چې بیشکه | زهٔ | یرونکې یم ښکاره | کله چې اووئیل | رب ستا | فرښتو ته | بیشکه زهٔ |

صرف داخودلې شی اچې زهٔ ښکاره ویرونکې یم | هر کله چې ستارب فرښتو ته اووئیل | چې زهٔ د

خَالِقٌۢ　بَشَرًا　مِّنْ طِیْنٍ　فَاِذَا　سَوَّیْتُهٗ　وَنَفَخْتُ

جوړونکې یم | دیو بشر | دختې نه | پس هر کله چې | زهٔ پوره جوړ کړم هغه | او پوك وهم زهٔ |

ختې نه انسان جوړول غواړم | بیاهر کله چې زهٔ هغه پوره کړم | اود خپل طرف نه په کښې روح

Scanned with Ca

فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِيْنَ ۝ فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ

په هغه کښې | دروح خپل نه | نوپریوزئ | هغه ته | سجده کونکی | پس سجده اوکړه فرښتو |

پوک وهم | نو تاسو ټول هغه ته په سجده پريوځئ | نوټولو فرښتو په جمع

كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ ۝ اِلَّآ اِبْلِيْسَ ط اِسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ۝

ټولو په جمع سره | مگر اونۀ کړه ابليس | لوئي ئې اوکړه | او وۀ دې | دکافرانو نه |

سجده اوکړه | خو يو ابليس اونه کړه |......... خان ئې لوئي اوګڼړلو | اود کافرانو څخه شو

قَالَ يٰٓاِبْلِيْسُ مَا مَنَعَكَ اَنْ تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ

اووئيل الله | اے ابليسه | څه څيز منع کړې ته | چې تا سجده کړې وې | هغه چاته | چې جوړ کړې دې ما

[الله ﷻ] تپوس اوکړو چې ائې ابليس ته څه څيز هغه ته دسجدې کولو نه منع کړې | څوک چې

بِيَدَيَّ ط اَسْتَكْبَرْتَ اَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِيْنَ ۝ قَالَ

په لاسونو خپلو سره | آيا تکبر اوکړو تا | يا ئې ته | دلويو خلقو نه | اووئيل ابليس |

ما په خپلو لاسونو جوړ کړې دې . | آيا ته په تکبر کښې راغلې | آيا ته دمرتبې خاوند يئ | ابليس اووئيل

اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ ط خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَّارٍ وَّخَلَقْتَهٗ مِنْ طِيْنٍ ۝ قَالَ

زۀ بهتريم ددۀ نه | تاپيدا کړې يم زۀ | دوور نه | او پيدا کړې د دې هغه | د خټې نه | اووئيل الله

زه ده نه بهتر يم | تا زه د اور نه پيدا کړې يم | او دې دې د خټو نه پيدا کړې دې | حکم اوشو

فَاخْرُجْ مِنْهَا فَاِنَّكَ رَجِيْمٌ ۝ وَّاِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِيْٓ

پس اوزه | ددې ځائې نه | پس بيشکه تۀ | رټلې شوې ئې | او بيشکه | په تاباندې | لعنت زما دې

ددې دربار نه بهرته اوزه | ته رټلې شوې يئ | او په تا باندې به تر ورځې دقيامت پورې

اِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ ۝ قَالَ رَبِّ فَاَنْظِرْنِيْٓ اِلٰى يَوْمِ

دورځې دجزا پورې | اووئيل ابليس | اے ربه زما | پس مهلت راکړه ماته | دهغه ورځې پورې |

زما لعنت وريږي | هغه اووئيل چې ائې زما ربه ! ماته ترهغې ورځې پورې مهلت راکړه

يُبْعَثُوْنَ ۝ قَالَ فَاِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ۝ لا

چې دوباره به راپاسولې کيږي خلق | اووئيل الله | پس بې شکه تۀ | دمهلت ورکړې شوۀ نه ئې |

چې مړې به دوباره راپاڅولې شی | الله ﷻ اووئيل څه تاته مهلت دې

اِلٰى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ ۝ قَالَ فَبِعِزَّتِكَ

دورځې دوخت معلوم پورې | اووئيل ابليس | پس قسم دې په عزت ستا |

ديو تاکلې ورځې پورې | .........[ابليس] اووئيل چې ستا په عزت مې دې قسم وی

لَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝ لا اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ

خامخا زۀ به دوکه کوم دا خلق | ټول | ماسوا دبندګانو ستا نه | ددوئ نه |

زه به دوئ ټول ګمراه کوم | ستا د هغه بندګانو نه سوا کوم چې

الْمُخْلَصِيْنَ۝ قَالَ فَالْحَقُّ وَالْحَقَّ اَقُوْلُ۝ لَاَمْلَئَنَّ

چي خالص کړې شوي وي | اوونيل الله | پس حقه خبره داده | او حق خبره وايم زه | خامخا به زه ډک کړم

ستا مخلص دی | الله ﷻ اوفرمائيل چي زه درته رښتيا وايم | اوزه خو تل رښتيا وايم | چي

جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ اَجْمَعِيْنَ۝ قُلْ

دوزخ | ستانه | او دهغه چانه | چي پيروي ئې اوکړه ستا | ددوئ نه | تول | ورته اووايه

زه به ستا نه او ستاد ټولو منونکو نه دوزخ ډک کړم | [ائي پيغمبره] ته ورته اووايه چي

مَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ۝

زه نه غواړم ستاسو نه | په دې کار باندې | څه اجر | او نه يم زه | دتکليف کونکو [بناوټيانو] نه |

زه ستاسو نه په دې قران باندې هيڅ اجر نه غواړم | او نه زه تکلف کونکې يم

اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ۝ وَلَتَعْلَمُنَّ

نه دې دا | مګر | يو نصيحت دې | دپاره دخلقو | او خامخا به معلوم شي تاسو ته |

دا خو ددنيا د خلقو دپاره يو نصيحت دې | او يقينی طور زر به دې خلقو ته

نَبَاَهٗ بَعْدَ حِيْنٍ۝

خبر ددې | پس دڅه مو دې نه |

ددې حقيت معلوم شي

## آسان ترجمه قرآن

(اے پيغمبره!) اووايه چه: زه خو يو خبردارونکې يم. او دهغه الله تعالیٰ نه ماسوا هيڅوک د عبادت لائق نشته، چه يو دې، چه په ټولو باندې غالب دې. چه د ټولو آسمانونو او زمکې او د مينځ ددې دواړو د هر څيز مالک دې، چه دهغه اقتدار په ټولو باندې خور دې، چه ډير بخونکې دې.اووايه چه: دا د يو عظيم حقيقت اظهار دې، چه ددې نه تاسو مخ اړوئ ماته د عالم بالا د خبرو هيڅ علم نه وو، چه کله هغوی (فرشتو) سوال او جواب کولو ماته وحې صرف دې دپاره راځي، چه زه صفا صفا خبردارونکې يم. ياد کړه چه کله ستا پروردګار فرشتو ته اوونيل چه زه د خټې نه يو انسان پيدا کونکې يم. نو چه کله زه هغه لره پوره جوړ کړم، او په هغې کښې روح پوک وهم، نو تاسو د هغه مخکښې په سجده پريوځئ. بيا دا اوشوه، چه ټول په ټوله فرشتې خو په سجده پريوتې البته ابليس سجده اونه کړه. هغه د تکبر نه کار واخستلو، او په کافرانو کښې شامل شو. الله تعالیٰ اوونيل: اے ابليسه! چا لره چه ما په خپلو لاسونو پيدا کړې دې، هغه ته د سجدې کولو نه ته څه څيز منع کړې؟ آيا تا د تکبر نه کار اخستلې دې، يا ته په ډيرو لويو هستو کښې ئې. وې وئيل: زه دده (آدم عليه السلام) نه بهتر يم. تا زه د اور نه پيدا کړې يم. او ده لره دې د خټې نه پيدا کړې دې. الله تعالیٰ اوفرمائيل چه: پس اوځه ددې ځائې نه، ځکه چه ته مردود ئې. او يقيناً په تا باندې به زما لعنت وی تر ورځې د قيامته پورې. هغه اوونيل: اے زما پروردګاره، بيا ته ماته دهغې ورځې پورې (د ژوندن) مهلت را کړه، په کومه ورځ به چه خلق دوباره

Scanned with

ړوندې کولې شي. الله تعالیٰ اوفرمائیل: څه، ته په هغې خلقو کښې شامل کړې شوې ئې چه هغوی ته به مهلت ورکولې شي. (لیکن) د یو معین وخت ورځې پورې وې وئیل: بس زه ستا په عزت قسم خورم چه زه به دوی ټولو لره بې لارې کړم. سوا ستا د بندګانو خالص کړې شوو نه. الله تعالیٰ اوفرمائیل: نو بیا رشتونې خبره داده، او زه هم رشتونې خبره وایم. چه زه به ستا نه او دهغه چا نه چه په دوی کښې تاپسې روان وی جهنم ډک کړم. (اے پیغمبره خلقوته) اووایه: چه زه ستاسو نه (داسلام په دې )دعوت باندې هیڅ اجرت نه غوارم او نه زه یم د تکلف کونکو نه. دا خو د ټولې دنیا د خلقو دپاره یو نصیحت دې، او لږ وخت پس به تاسو ته ددې حال معلوم شي.

## خلاصه تفسیر

﴿قُلْ اِنَّمَآ اَنَا مُنْذِرٌ﴾[ته ووایه چه] تاسو دتوحید اورسالت په مسئله کښې کوم تکذیب اوانکار کوئ نو داستاسو نقصان دې زما هیڅ ضرر نشته ځکه چه [زهٔ خو] صرف دالله تعالی دعذاب نه [ویرونکې] پیغمبر[یم او] لکه څنګه چه زما رسول کیدل او ویرونکې کیدل واقعی دی دغه شان توحیدهم برحق دې یعني ﴿وَمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّا اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ﴾[بغیر دالله تعالی واحد غالب نه څوك لائق دعبادت نشته ﴿رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا﴾ هغه پروردګار دې داسمانونو اومزکې او دهغوڅیزونو کوم چه ددوی په مینځ کښې دی] اوهغه ﴿الْعَزِيْزُ﴾زبردست] او دګناهونو ﴿الْغَفَّارُ﴾[لوئ بخښنې والادې] او چونکه توحید خو په څه درجه کښې دغو خلقو منلو هم او د رسالت نه بالکل منکر وو په دې وجه درسالت دزیات تحقیق دپاره ارشاد دې چه اے پیغمبر ﷺ ﴿قُلْ هُوَ نَبَؤٌا عَظِيْمٌ﴾[ته ووایه چه دا] یعنی دالله تعالی مالره دتوحیداو دشریعت داحکامو د تعلیم دپاره رسول جوړول [یو عظیم الشان مضمون دې ﴿اَنْتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُوْنَ﴾ چه ددې] تاسولره ډیراهتمام پکار وو مګرافسوس چه ددې [نه تاسو] بلکل [بې پرواه کیږئ او ددې دعظیم الشان مضمون کیدو وجه داه چه ددې داعتقاد ساتلو نه بغیر حقیقی سعادت حاصلول ناممکن دی مخکښې دنبی کریم ﷺ درسالت ثابتولو یو دلیل دې هغه داچه ﴿مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍ بِالْمَلَاِ الْاَعْلٰى اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ﴾ [ماته دپور ته عالم] دبحث او خبرو په هیڅ ذریعه سره [هیڅ خبرنه وو کله چه هغوی] د ادم ﷺ دپیدائش په باره کښې چه تفصیل ئې وړاند راخی دالله تعالی سره [خبرې کولې] اوس زهٔ چه ددغوخبرو واقعه بیا نوم نو دسوچ خبره داده چه ماته دا واقعه دکوم ځایٔ نه معلومه شوه؟ ما خو په خپلو سترګو داد سره لیدلې نه ده داهل کتابو سره هم زما څه ګډون نشته چه دهغوی نه مې معلومه کړه یقینا ماته داعلم دوحی په ذریعه حاصل شوې دې په دې وجه ثابته شوه چه ﴿اِنْ يُّوْحٰٓى اِلَيَّ﴾[ماته] کومه [وحی] راځی چه په دې سره د عالم بالا احوال هم معلومیږی نو ﴿اِلَّآ اَنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ﴾ [محض په دې سبب سره راځی چه زهٔ] د الله تعالی دطرف نه [صفاصفا ویرونکې] جوړ کړې لیږلې شوې [یم] یعنی چونکه ماته پیغمبری ملاؤ ده په دې وجه وحی نازلیږی پس واجب ده چه تاسو زما درسالت تصدیق وکړئ او دعالم بالادالله تعالی سره خبرې چه ذکر ئې بره شوې دې هغه وخت شوې دې ﴿اِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّيْ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ طِيْنٍ﴾[هرکله چه ستا رب فرښتو ته ارشاد وفرمائیلو چه زهٔ دختې نه یو انسان لره] یعنی د هغه ډانچې لره [جوړونکې یم ﴿فَاِذَا سَوَّيْتُهٗ﴾ پس زهٔ چه هرکله دهٔ لره] یعنی ددهٔ جسمانی اندامونولره] پوره جوړ کړم ﴿وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ﴾ او په دهٔ کښې] د [خپل] طرف

نه [روح واچوم]﴿فَقَعُوْالَهٗ سٰجِدِيْنَ﴾ نو تاسو ټول دده په وړاندې په سجده پريوځئ پس] هرکله چه الله تعالى دۀ لره جوړ کړو نو ﴿فَسَجَدَالْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ﴾ [ټولو فرښتو په جمع] ادم ؑ ته [سجده وکړه ﴿اِلَّآاِبْلِيْسَ﴾ مګر ابليس ﴿اِسْتَكْبَرَوَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ﴾ چه هغه په غرور کښې راغئ او دکافرانو نه شو ﴿قَالَ يٰٓاِبْلِيْسُ مَامَنَعَكَ اَنْ تَسْجُدَلِمَاخَلَقْتُ بِيَدَيَّ﴾ الله تعالى وفرمائيل چه اے ابليسه کوم شی لره چه ماپه خپلو لاسونو سره جوړ کړو] يعنى دکوم شي په وجود کښې د راوستو دپاره چه خاص عنايت ربانى متوجه شو بيا د هغه په وړاند دسجدې کولو حکم وشو نو [دۀ ته دسجدې کولو نه تالره کوم شي مانع شو ﴿اَسْتَكْبَرْتَ اَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِيْنَ﴾ ايا ته په غرور کښې راغلې] او په واقع کښې لوئ نه يې [يادا چه ته] په واقع کښې دداسې لوئ درجې [والو نه يې] کوموته چه دسجدې کولو حکم مناسب نه دي ﴿قَالَ اَنَاخَيْرٌمِّنْهُ﴾ [وې وئيل چه] دويمه خبره صحيح ده يعنى [زۀ دادم ؑ] [نه غوره يم] ځکه چه ﴿خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَّارٍوَّخَلَقْتَهٗ مِنْ طِيْنٍ ○ قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَافَاِنَّكَ رَجِيْمٌ﴾ [تا زۀ داورنه پيداکړې يم او دې يعنى آدم ؑ دې د ختې نه پيدا کړې دې پس ماته داحکم کول چې دده په وړاندې سجده اوکړم دحکمت نه خلاف دى ارشاد اوشو چې ښه] نو بيا د آسمان نه اووځه ځکه چې بيشکه ته په دې حرکت سره مردود شوې، ﴿وَّاِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِيْٓ اِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ﴾ او بيشکه په تا بانديې به زما لعنت وى دقيامت تر ورځې پورې او ددې نه روستو ستا دپاره د رحمت احتمال نشته دې هغه اووئيل چې که زه دې ادم ؑ په وجه مردود کړم ﴿قَالَ رَبِّ فَاَنْظِرْنِيْٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ﴾ [نو بيا ماته] دمرګ نه [مهلت راکړه د قيامت دورځې پورې] چه دۀ او ددۀ د اولاد نه ښه بدله واخلم ﴿قَالَ فَاِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ○ اِلٰى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ﴾ [ارشاد وشو] هرکله چه ته مهلت غواړې [نو] خه [تاته دمعين وخت دتاريخه پورې مهلت درکړې شو ﴿قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ وې وئيل] هرکله چه ماته مهلت ملاؤ شو] نو [زما هم [ستاسو په عزت قسم] دې [چه زۀ به دوى ټولو لره ګمراه کوم ﴿اِلَّاعِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ﴾ بغير ستا د هغه بندګانو نه کوم چه په دوى کښې منتخب شوى دى] يعنى تا هغوى لره زما داثر نه محفوظ کړې دې ﴿قَالَ فَالْحَقُّ وَالْحَقَّ اَقُوْلُ﴾ [ارشاد وشو چه زۀ رښتيا وايم او زۀ خو] هميشه [رښتيا وايم ﴿لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ چه زۀ به تانه او څوک چه په دوى کښې تاسره شول ددې ټولو نه دوزخ ډک کړم]

دسوره دابتدائى ايتونو نه واضحه ده چه ددې سورت بنيادى مقصد دنبى کريم ﷺ درسالت اثبات دې په دې موضوع دلائل خو ورکړې شول اوس په ناصحانه طريقه دايمان راوړو دعوت ورکولې شى ﴿قُلْ مَآاَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ﴾ [ته] ﷺ په طور داتمام حجت [ووايه چه زۀ تاسونه په دې] قرآن او تبليغ [نه څه معاوضه غواړم ﴿وَّمَآاَنَامِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ﴾ اونه زۀ دبناوټ کوونکو نه يم] چه دبناوټ په طريقه مې دنبوت دعوى کړې وى او غير قرآن ته مې قرآن وئيلې وى يعنى که دروغ مې وئيلې نو ددې منشاء خو يا به ما دى نفع وه لکه معاوضه يا څه طبعى عادت به وو لکه تکلف. پس دا دواړه خبرې نه دى بلکه په واقع کښې ﴿اِنْ هُوَاِلَّاذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ﴾ [داقرآن خو] دالله تعالى کلام او [ددنيا جهان دپاره يو نصيحت دې] چه دتبليغ دپاره ئې ماته نبوت ملاؤشوې دې او په کوم کښې چه سراسر ستاسو نفع ده [او] که د حق واضح کيدو باوجود هم تاسو نه منئ نو ﴿وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَاَهٗ بَعْدَ حِيْنٍ﴾ [لږې ورځې پس به تاسوته ددې حال معلوم شى]

یعنی دمرګ سره به حقیقت ښکاره شي چه داحق وو او ددې نه انکار باطل وو مګر هغه وخت به په معلومیدو کښې هیڅ فائده نه وی

## معارف او مسائل

**دسورت دمضمونونو خلاصه:** ﴿قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ مُنذِرٌ﴾ د سورت په شروع کښې تاسو اولیدل چې ددې سورت اصل مقصد د رسول الله ﷺ دپیغمبرئی ثابتول او د کافرانو تردید کول دی. پدې ترځ کښې د پیغمبرانو ﷺ واقعات د دوو وجو نه راوړې شو، یو داچې رسول الله ﷺ ته پرې تسلی حاصله شی او ددغې پخوانو پیغمبرانو ﷺ پشان نبی کریم ﷺ هم دکافرانو په بې هوده خبرو صبر کوی ،بله دا چې پخپله هغه خلق ددې نه عبرت حاصل کړی چې د یو برحق نبی د پیغمبرئ نه انکار کوی، دې نه پس په یو بلې طریقې سره کافرانو ته دا سلام بلنه ورکړې شوې ده. هغه داسې چې د مؤمنانو دنیک انجامئ او دکافرانو د سخت عذاب نقشه راښکلې شوېده، او په دې خبره خبردارې ورکړې شوېدې چې د کومو خلقو په تابعدارئ کښې چې تاسو نن د افضل الرسل ﷺ دروغژنی کوئ د آخرت په ورځ به هم دغه خلق ستاسودا مداد نه لاس واخلی ، دوئ به درته بد رد وائی او تاسو به په هغوئ لعنت لیږئ.
ددې ټولو مضمونونه پس په آخر کښې بیا اصل مدعا د پیغمبرئ ثابتول بیان کړې شوی دی او دلیلونه پیش کولو سره د نصیحت په انداز کښې بلنه ورکړې شوې ده .

﴿مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍۭ بِٱلْمَلَإِ ٱلْأَعْلَىٰٓ إِذْ يَخْتَصِمُونَ﴾ یعنی ماته د عالم بالا هیڅ خبر هم نه وو ، کله چې هغوئ خبرې اترې کوې. یعنی دا زما د پیغمبرئی ښکاره دلیل دې چې زه درته دعالم بالا داسې خبرې بیانوم چې د وحی نه بغیر په بل هیڅ ذریعې سره نشی معلومیدې. ددې خبرونه مراد یو هغه خبرې اترې دی چې د آدم ﷺ دپیداکولو په وخت د الله ﷻ او د فرښتو ترمینځه شوې وې. [بیان ئې په سورة بقره کښې راغلې دې چې فرښتو وئیلی وو چې :﴿قَالُوٓاْ أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ ٱلدِّمَآءَ﴾
[آیا ته په زمکه کښې داسې انسان پیدا کوئی چې په کښې به فسادکوی او وینې بهٔ تویوی] ، دغه خبرې اترې دې ځائې کښې د اختصام په لفظ سره تعبیر کړې شوې دې چې ددې لفظی معنی ده جګړه ، یا بحث مباحثه ، حالانکه واقعه داده چې د فرښتو د اسوال څه د اعتراض په طور نه وو بلکه صرف د آدم ﷺ د تخلیق حکمت معلومول یې غوښتل. لیکن د سوال جواب ظاهری اړخ چونکه د بحث په شان شوې وو په دې وجه د اختصام لفظ سره تعبیر کړې شوې دې. او دا داسې دی لکه چې یو کشر د مشرڅخه څه سوال کوی خو کله کله دا مشر ددې ذکر کوی او د تفتن [بل انداز] په طور دده د سوال جواب څخه په جګړې سره تعبیر کوی.

﴿إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ﴾ کله چې ستاسو رب فرښتوته اوفرمائیل . دلته د آدم ﷺ دپیداکولو په واقعې بیانولو سره دالله ﷻ او فرښتو ترمینځه خبرو اترو ته اشارې سره سره دې خبرې ته هم توجه راګرځولې شوې ده چې څنګه ابلیس د حسد اوتکبر په وجه آدم ﷺ ته دسجدې کولو نه انکار کړې وو. دغسې د عربو مشرکانو هم د نبی کریم ﷺ خبره دتکبر او حسد په وجه نه منی ، څکه به د دوئ انجام هم لکه دابلیس وی ، [تفسیر کبیر][1].

[1] تفسیر کبیر للرازی تحت هذه الآیة: ج ۱۳، ص ۲۱۱

Scanned with Ca

﴿لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ﴾ الله ﷻ د آدم ؑ باره کښې فرمائی چې ما هغوئ لره په خپلو لاسونو پیدا کړو. هر کله چې الله ﷻ د انسان پشان داندامونو لرلو نه پاک او بې ضررر ته دې څکه د جمهور امت په دې اتفاق دې چې دلته د لاسونو نه مراد د الله ﷻ قدرت دې ، څنګه چې ډیرو ځایونو کښې دا مطلب اخستې شوېدې . مثلا یو ځائې کښې فرمائی چې :

﴿بِيَدِهٖ عُقْدَةُ النِّكَاحِ﴾[1] په دې بنا د آیت مطلب دا شو چې ما آدم ؑ پخپل قدرت سره پیدا کړو. هسې خو ټول کائنات د الله ﷻ په قدرت سره پیدا شوی دی خو چرته چې الله ﷻ د یو څیز خصوصی شرف ښکاره کول غواړی . نو هغه په خاص ډول خپل اړخ ته منصوب کړی لکه کعبې ته چې بیت الله وئیلې شی . د صالح ؑ اوښې ته ناقة الله ، عیسی ؑ ته کلمة الله یا روح الله وئیلې شوی دی . دلته هم دغسې نسبت د آدم ؑ دغوروالی ښکاره کولو دپاره کړې شوېدې . [قرطبی][2].

**د تکلف او تصنع بدی بیانول** :: ﴿وَمَآ اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ﴾ او زه په هغې کسانو کښې نه یم چې د ځانه خبرې جوړوی . مطلب دادې چې د پیغمبرئی دعوی مې هسې د ځانه نه ده کړې اونه په دغې بنا باندې علم او حکمت ښکاره کوم . بلکه د الله ﷻ حکمونه صحیح صحیح رسوم . دې نه معلومه شوه چې تکلف او تصنع د شریعت په وجه خراب څیز دې ، څینې احادیثو مبارکو کښې هم ددې مذمت راغلی دی . په صحیحینو کښې د عبدالله بن مسعود ؓ ارشاد داسې منقول دې چې :

اې خلقو ! په تاسو کښې چې چاته د یوې خبرې علم وی نو هغه دې خلقو ته اووائی لیکن د کومې علم چې ورته نه وی هغه کښې دې صرف الله اعلم اووائی ، څکه چې الله ﷻ د خپل رسول ﷺ باره کښې فرمائیلی دی چې :﴿قُلْ مَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ﴾[روح المعانی][3].

......

---

[1] ترجمه: د چاپه لاس کښې چه د نکاح غوټه وی.
[2] تفسیر القرطبي: ج ۱۵، ص ۲۲۸
[3] تفسیر روح المعانی تحت هذه الآية: ج ۱۷، ص ۴۰۸، وصحیح البخاری، کتاب التفسیر، سورة ص، قوله وما انا من المتکلفین، ج ۲، ص ۷۱۰، وصحیح مسلم، کتاب صفات المنافقین وأحکامهم، باب صفة القیامة والجنة والنار: ج ۲، ص ۳۷۲

Scanned with Ca

| اياتونه | سورة الزمر مكية وهي خمس وسبعون اية وثماني ركوعات | ركوع گانې |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ٧٥ | شروع كوم په نوم د الله چه ډېرمهربان زيات رحم كونكې دې | ٨ |

تَنۡزِيۡلُ الۡكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الۡعَزِيۡزِ الۡحَكِيۡمِ ①

نازليدل | ددې كتاب | دطرفه دالله نه دى | چې غالب دې | دحكمت خاوند دې |

داكتاب دالله ﷻ د طرفنه نازل شوې دې اچې غالب دې صاحب د حكمت دې

اِنَّاۤ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَيۡكَ الۡكِتٰبَ بِالۡحَقِّ فَاعۡبُدِ اللّٰهَ

بېشكه نازلې كړې دې مونږه | تاته | دا كتاب | دحق سره | پس بندگى كوه دالله |

مونږ دا كتاب په حق مضامينو مشتمل ستا طرفته نازل كړې دې | نو ته په اخلاص سره دالله ﷻ

مُخۡلِصًا لَّهُ الدِّيۡنَ ② اَلَا لِلّٰهِ الدِّيۡنُ الۡخَالِصُ

حال دا چې خالص كونكې ئې | هغه لره | ددين [خپل] | خبردار | الله لره حق دى | دين خالص |

عبادت كوه | ........................يادساته؛ خالصه بندگى هم دالله دپاره ده

وَالَّذِيۡنَ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اَوۡلِيَآءَ مَا نَعۡبُدُهُمۡ

اوهغه كسان | چې نيولى دى هغوئ | غير دالله نه | دوستان نور | وائى چې نۀ كومونږ عبادت ددوئ

اوچاچې دالله ﷻ نه سوا نور شريكان نيولى دى | ............. [اوداوائى] چې

اِلَّا لِيُقَرِّبُوۡنَاۤ اِلَى اللّٰهِ زُلۡفٰى ؕ اِنَّ اللّٰهَ

مگر دپاره ددې چې نزدې كړى دوئ مونږه | الله ته | په نزديكت سره | بېشكه الله

مونږ خو صرف الله تعالى د نزديكت دپاره د دوى عبادت كوو | ............بېشكه الله

يَحۡكُمُ بَيۡنَهُمۡ فِيۡ مَا هُمۡ فِيۡهِ

به فيصله كوى | په منځ ددوئ كښى | په هغه كارونو كښى | چې دوئ په هغې كښى

به د دوى په مينځ كښې په هغې خبرو كښې فيصله اوكړى په كومو كښې چې دوى اختلاف كولو |

يَخۡتَلِفُوۡنَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهۡدِىۡ مَنۡ هُوَ كٰذِبٌ كَفَّارٌ ③

اختلاف كوى | بېشكه الله | نه ښائى لار | هغه چاته | چې هغه دروغژن وى | ناشكره وى

............ | الله ﷻ هغه چاته هدايت نه كوى | چې دروغژن اوانكار كونكې وى

لَوۡ اَرَادَ اللّٰهُ اَنۡ يَّتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصۡطَفٰى مِمَّا

| كه اراده لرله الله | چې اونيسى | خوئې | نو خامخا به ئې غوره كولې | دهغې نه |

كه الله ﷻ خانله اولاد نيول غوښتل | نو پخپل مخلوق كښې څوك چې ئې خوښ وو

يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ ۙ سُبْحٰنَهٗ ؕ هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ

چې پيدا کوي ئې هغه | هغه چې ئې غوښتلي | پاکي ده هغه لره [ددې نه] | هغه الله | يو دې |

هغه به ئې منتخب کړې وو | هغه [الله] دپاره پاکي ده | ........ هغه الله ﷻ يوذات دې

الْقَهَّارُ ۝ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۚ يُكَوِّرُ الَّيْلَ

غالب دې | هغه پيدا کړي دي | آسمانونه | او زمکه | په حقه | نغاړي شپه

زبردست دې |هغه [الله] آسمانونه اوزمکه په يو مقصد سره پيدا کړي دي| هغه شپه په ورځ باندې

عَلَى النَّهَارِ وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى الَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ؕ

په ورځ باندې| او نغاړي ورځ | په شپه باندې| او تابع کړي دي هغه | نمر او سپوږمۍ |

رانغاړي | او ورځ په شپه باندې رانغاړي| او نمر او سپوږمۍ [ستاسو دپاره] تابع کړي دي

كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ اَلَا هُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفَّارُ ۝

هر يو | روان دې [گرزي] | دوخت مقرر پورې | واورئ | هم هغه | غالب دې | بښونکې دې

هر يو تر يو مقررې نيټې پورې روان دې | يادساته چې هغه غالب دې | ډير بښونکې دې

خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا

هغه پيدا کړئ تاسو | دنفس [بدن] يو نه | بيا ئې جوړه کړه | ددغه بدن نه | جوړئ دهغه |

هغه تاسو ديو کس [سړي] نه پيدا کړئ | بيائې هم د هغه نه دهغه جوړه [بي بي حوا] پيدا کړه

وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ الْاَنْعَامِ ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ؕ يَخْلُقُكُمْ

او نازل ئې کړل | ستاسو دپاره | دڅاروؤ نه | اته نر ښځې | هغه پيدا کوي تاسو |

او ستاسو دپاره ئې په څاروؤ کښې اته جوړې پيدا کړې دي| هغه تاسو د ميندو په

فِيْ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ خَلْقًا مِّنْۢ بَعْدِ خَلْقٍ فِيْ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ ؕ

په خيټو دميندو ستاسو کښې | په يو پيدا وښت کښې | روستو دپيدا وښت نه | په تيرو دريو کښې |

خيټو کښې پيدا کوي | اودا پيدائش په مختلفو مرحلو کښې په دريو تياور کښې دننه کيږي

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ؕ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ

دا ستاسو الله دې | رب ستاسو | هغه لره بادشاهي ده | نشته لائق دعبادت | مگر هم هغه دې

همدا الله ﷻ ستاسو رب دې | بادشاهي هم د هغه ده | ........دهغه نه سوا بل لائق د عبادت نشته

فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ ۝

پس کوم خواته | تاسو روان کړې شوي يئ؛ |

نو بيا تاسو [دحق نه] کوم خوا اړولې شئ؛ |

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

دا کتاب د الله تعالیٰ د طرف نه نازلولې شی، چه د لوئې اقتدار مالک دې، او ډیر حکمت والا دې. (اے پیغمبره) بے شکه دا کتاب مونږ په تا باندې په حقه سره نازل کړې دې، پس د الله تعالیٰ عبادت دا رنګې کوه، چه بندګی خالص هغه لره وی یاد ساته چه خالص بندګی د الله تعالیٰ حق دې، او کومو خلقو چه دهغه نه ماسوا نور ساتونکې جوړ کړې دی، (دا وئیلو سره چه) مونږ ددوی عبادت صرف ددې دپاره کوؤ، چه دوی مونږ الله تعالیٰ ته نزدې کړی ددوی په مینځ کښې به الله تعالیٰ دهغه خبرو فیصله اوکړی، په کومو کښې چه دوی اختلاف کوؤ، یقین لره، چه الله تعالیٰ داسې سړی په لار باندې نه راولی، چه دروغژن وی، او په کفر باندې مضبوط ولاړ وی. که الله تعالیٰ غوختلې چه څوک په اولاد سره اونیسی، نو هغهٔ به په خپل مخلوق کښې چه څوک غوختل منتخب کړې وو، (لیکن) هغه پاک دې (ددې خبرې نه چه هغه لره اولاد دې) هغه خو الله دې، او دیو زبردست اقتدار مالک دې هغه ټول آسمانونه او زمکه په حقه سره پیدا کړې دی، هغه شپې لره په ورځ راغولړوی، او ورځې لره په شپه باندې راغولړوی اوهغه نمر او سپوږمۍ په کار باندې لګولې دی، هر یو د یو وخت مقرره پورې روان دی، یاد اوساته، چه هغه د لوئې اقتدار مالک او ډیر بخونکې دې. هغه تاسو ټول د یو سړی نه پیدا کړې بیا دهغه نه ئې دهغه جوړه پیدا کړه، او ستاسو دپاره ئې د څاروؤ نه اته جوړې پیدا کړې. هغه ستاسو تخلیق ستاسو د میاندو په ګیډو کښې داسې کوی، چه په دریو تیارو کښې تاسو د جوړښت د یوې مرحلې نه پس بلې مرحلې نه تیریږئ هغه الله تعالیٰ دې، چه ستاسو پروردګار دې، ټوله بادشاهی هغه لره ده، دهغه نه سوا هیڅوک د عبادت لائق نشته، بیا هم ستاسو مخ کوم طرف ته اړولې شی؟

## خلاصه تفسیر

﴿تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ۝﴾ [دانازل کړې شوې دې دالله تعالى غالب حکمت والا دطرف نه] چه غالب کیدل ئې ددې مقتضی وو چه څوك ددهٔ تکذیب وکړی سزا ورلـه ورکړی مګر چونکه حکیم هم دې او په مهلت کښې مصلحت وو په دې وجه ئې په سزا کښې مهلت ورکړې دې ﴿اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ﴾ [مونږ په ټیك طور دې کتاب لره ستا طرف ته نازل کړې دې ﴿فَاعْبُدِ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ۝﴾ پس ته] دقرآن دتعلیم موافق [خالصه عقیده ساته دالله تعالى عبادت کوه] لکه چه تراوسه دکړې دې اوهرکله چه په تاهم دا واجب ده نو په نورو به ولې واجب نه وی اے خلقو ﴿اَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ ۭ﴾ [خبردار عبادت کوم چه] دشرك او ریانه [خالص وی دالله تعالى دپاره لائق دې ﴿وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَاۗءَ ۘ﴾ اوکومو خلقو چه] خالص عبادت پریښودو [دالله تعالى نه سوائې نور شریکان تجویز کړی دی] او وائی ﴿مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى ۭ﴾ [چه مونږ خو ددوی عبادت ځکه کوو چه مونږ لره خدائې ته نزدې کړی] یعنی زمونږ حاجتونه د دالله تعالى په حضور کښې پیش کړی لکه چه په دنیا کښې وزیران دبادشاهانو په دربار کښې ددې کار دپاره وی ﴿اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِيْ مَا هُمْ فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ڛ﴾ [نو ددوی] او ددوی په مقابله کښې دایماندارو [په مینځ کښې داختلافاتو به] دقیامت په ورځ [الله تعالى] عملی [فیصله وکړی] چه دتوحید خاوندان به جنت ته او دشرك خاوندان به دوزخ ته داخل کړی یعنی ددې خلقو په نه منلو ته غم مه کوه ددې فیصله به هلته وی او په دې هم تعجب مه کوه چه سره

Scanned with Ca

دد ليلونو دقيام دوی حق ته نه رااوړی ځکه چه ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهۡدِىۡ مَنۡ هُوَ كٰذِبٌ كَفَّارٌ﴾ [الله تعالی داسې سړی لره نه په لاره کوی کوم چه] قولا [دروغژن او] اعتقادا [کافروی] یعنی په خلې سره دکفر په خبرواو په زړهٔ سره دکفر په عقیدو مصروی یعنی ټینګار کوی او ددې نه واپس کیدو او دحق دطلب قصد نه کوی نو ددهٔ په دې عناد سره الله تعالی هم دهٔ ته دهدایت توفیق نه ورکوی او چونکه په مشرکانو کښې ځنې خدایٔ طرف ته داولاد نسبت کولو لکه چه ملائکو ته به یٔ دخدایٔ لونړه وئیل اوس مخکښې ددوی رد دې چه ﴿لَوۡ اَرَادَ اللّٰهُ اَنۡ يَّتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصۡطَفٰى مِمَّا يَخۡلُقُ مَا يَشَآءُ﴾ [که چرې] بالفرض [الله تعالی] چالره اولاد جوړولې نو په وجه ددې [چه بغیر د ارادې د الله تعالی نه هیڅ کارنه شی کیدې اول به یٔ د اولاد جوړولو اراده کوله اوکه چرې چالره یٔ دخپل اولاد جوړولو اراده کولې نو] چونکه ماسوا دالله تعالی نه ټول مخلوق دی په دې وجه [به یٔ خامخا په خپل مخلوق کښې چالره چه غوښتې] ددې کار دپاره [منتخب فرمائیل] او لازم باطل دې ځکه چه [هغه] د عیبونو نه ﴿سُبۡحٰنَهٗ﴾ [پاك دې] او غیرجنس کیدل عیب دې په دې وجه اراده کول هم محال ده په دې شان سره ثابته شوه چه ﴿هُوَ اللّٰهُ الۡوَاحِدُ الۡقَهَّارُ﴾ [هغه داسې الله تعالی دې چه یو دې] چه هیڅوك یٔ بالفعل شریك نشته او [زبردست دې] د هغه هیڅوك شریك بالقوه هم نشته ځکه چه صلاحیت به هله وو چه څوك دغسې زبردست وې او هغه شته نه وړاند دتوحید دليلونه ارشاد فرمائی چه ﴿خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ بِالۡحَقِّ﴾ [هغه مزکې او اسمانونو لره په حکمت سره پیداکړل ﴿يُكَوِّرُ الَّيۡلَ عَلَى النَّهَارِ﴾ هغه] د [شپې] تیارې [لره د ورځې] درنړا [نه چاپیره کوی] چه په دې سره ورځ پټه اوشپه ښکاره شی ﴿وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى الَّيۡلِ﴾ [او] د [ورځې رنړا [لره دشپې] دتیارې [نه چاپیره کوی] چه په دې سره شپه ورکه او ورځ ښکاره شې ﴿وَسَخَّرَ الشَّمۡسَ وَالۡقَمَرَ﴾ [او هغه نمر اوسپوږمۍ لره پکارکښې لګولی دی چه] په دې کښې ﴿كُلٌّ يَّجۡرِىۡ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ [هر یو د مقرر وخته پورې چلیږی یاد ساتیٔ چه] ددې دليلونو نه پس دتوحیدنه په انکارسره ویره دعذاب ده او الله تعالی په دې قادر هم دې ځکه چه ﴿اَلَا هُوَ الۡعَزِيۡزُ الۡغَفَّارُ﴾ [هغه زبردست دې] لیکن که پس د انکار نه هم څوك ومنی نو په تیر انکار باند به عذاب نه وی ځکه چه هغه [لویٔ بخښنې والا] هم [دې] په دې سره د توحیدترغیب او دشرك نه ترهیب وشو او بره استدلال وو په افاقی دليلونو سره وړاند استدلال دې په انفسیه دليلونو سره چه په دې کښې په ضمنی طور سره څه افاقی حالات هم راغلی دی یعنی ﴿خَلَقَكُمۡ مِّنۡ نَّفۡسٍ وَّاحِدَةٍ﴾ [هغه تاسو خلقو لره دیو واحد تن] یعنی حضرت ادم عليه السلام [نه پیداکړیٔ] چه اول هغه واحد تن پیداشو ﴿ثُمَّ جَعَلَ مِنۡهَا زَوۡجَهَا﴾ [د هغه بیایٔ د هغه نه جوړه جوړه کړه] مراد ددې نه حواء وه وړاند بیا ددوی نه ټول بنیادم خوارهٔ شول [او] پس دحدوث نه ﴿وَاَنۡزَلَ لَكُمۡ مِّنَ الۡاَنۡعَامِ ثَمٰنِيَةَ اَزۡوَاجٍ﴾ [ستاسو] دنفع او بقاء دپاره [اته نراوماده یٔ په څاروو کښې پیداکړل] چه ذکر یٔ داتمې پارې په ربع [وهوالذی انشاجنت] کښې راغلې دې او ددوی تخصیص ځکه دې چه دوی زیات په کار راځی دادې هغه جزء کوم چه په افاقیاتو کښې تبعا ذکر شو او تبعا ځکه ووئیلې شو چه مقصود بیان دې دنفسونو دبقاء او دا دبقاء د اسبابو نه دی وړاندې کیفیت دانسانی نسل دپیدائش بیان فرمائی چه ﴿يَخۡلُقُكُمۡ فِىۡ بُطُوۡنِ اُمَّهٰتِكُمۡ خَلۡقًا مِّنۡۢ بَعۡدِ خَلۡقٍ﴾ [هغه تاسو لره دموریه کیده کښې دیو کیفیت نه پس په بل کیفیت باند] او ددویم کیفیت نه پس په دریم کیفیت او بنا په دې په

مختلفو کیفیاتو مو [جوړوي] چه اول نطفه وي بیا علقه بیا مضغه تراخره پوري ﴿فِىْ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ﴾ او دا جوړول [په دریو تیاروکښې] وي یوه تیارهٔ دګیډې بله درحم دریمه دهغه پوستکي په کوم کښې چه بچې نغښتې وي په دې مختلفو کیفیاتو او ډیرو تیارو کښې پیدا کول دکمال قدرت دلیل دې اوپه دریو تیارو کښې پیداکول دکمال علم دلیل دې ﴿ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ﴾[دادې الله ستاسو رب] چه صفتونه ئې اوس تاسو واوریدل [ددهٔ حکومت دې ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾دهغه نه سوا څوک لائق دعبادت نشته ﴿فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ﴾ پس] د دې دلیلونو نه پس [تاسو کوم طرف ته] حق نه [اوړیدلی ګرځئ] بلکه واجب ده چه توحید قبول کړئ اوشرک پریږدئ.

## معارف او مسائل

﴿فَاعْبُدِ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ ۞ اَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ﴾ دلته ددین معنی عبادت یا فرمانبرداری ده چې ددین د ټولو حکمونو پابندئ لره عام شامل دی ، ددې په ړومبی جمله کښې رسول الله ﷺ ته په خطاب کولو سره حکم کړې شوېدې چې عبادت او اطاعت خالص دالله ﷻ دپاره کوئ چې په کښې د غیر الله دشرک یا ریاء نمائش نه وی . دویمه جمله هم ددې د تاکید دپاره ده ، چې دین خالص کول صرف الله ﷻ لره لائق دی . د الله ﷻ نه سوا بل هیڅوک یې مستحق نه دی .

د ابی هریره ﷜ در وایت مطابق یو سړی رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! زهٔ کله کله چې څه صدقه او خیرات کوم یا چاسره ښیګړه کوم چې په کښې مې دالله ﷻ رضا لټولو نیت هم وی او ورسره مې دا نیت هم وی چې خلق دې زما صفت بیان کړی . نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زما دې په الله ﷻ قسم وی چې د چا په قبضه کښې چې دمحمد روح دې ، چې الله ﷻ داسې هیڅ څیز نه قبلوی چې په کښې بل څوک شریک کړې شوی دی ورپسې ئې ﴿اَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ﴾(۱) د دلیل په ډول تلاوت کړو . [قرطبی](۲).

**دعملونو مقبولیت دالله ﷻ په نزد د اخلاص په انداز دې** :: ګڼړ قرآنی آیتونه په دې ګواه دی چې د الله ﷻ په نزد دعملونو حساب په شمیر سره نه دې بلکه په وزن سره دې ﴿وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ﴾(۳) او دې آیتونو د ااوخودل چې د الله ﷻ په نزد د عملونو قدر او وزن داخلاص په اندازه وی . اوداښکاره خبره ده چې کامل اخلاص د کامل ایمان نه بغیر نه حاصلیږی . ولې چې کامل اخلاص دادې چې الله ﷻ نه سوا بل چالره د نفع اوضرر مالک نه ګنړی . په خپلو کارونو کښې دخل ورکوونکې بغیر د الله ﷻ نه بل څوک نه ګنړی . په عبادت کښې او فرمانبردارئ کښې دغیرالله تصورهم نه راولی ،البته غیراختیاری وسوسې الله ﷻ معاف کوی دصحابه کرامو ﷢ چې د اولې درجې په مسلمانانو کښې حسابیږی . د هغوئ عملونو او ریاضتونو ته چې اوګورې نو په شمیر کښې زیات په نظر نه راځی . خو سره دهغې یو ادنی عمل ئې د نور ا مت دلویو لویو عملونو نه زیات او پورته څکه وی چې په کامل ایمان او کامل اخلاص باندې بنا وو.

---

(۱) ترجمه: یاد ستاسې چه عبادت خالص دالله حق دی.

(۲) تفسیر القرطبی: ج ۱۵، ص ۲۳۳

(۳) او دقیامت په ورځ به مونږ میزان عدل ( دعدل تله ) به قائم وو.

Scanned with Ca

﴿وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ ۘ مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى ۭ ﴾ دا دعرب و د مشرکانو حال دی او ددغې زمانې عامو مشرکانو هم دغه عقيده لرله چې خالق او مالک او په ټولو کارونو کښې تصرف کوونکې خو يواځې الله ﷻ دې. شيطان هغوئ دهوکه کړل نو پخپل خيال کښې د فرښتو په شکلونو ئې بتان جوړ کړل ، په دې ښه پوهيدل چې دا هم زمونږ دلاس جوړ کړئ شوی بتان دی. خو په دې عقيده به ئې ددغې بتانو عبادت کولو چې هغه اصل فرښتې به رانه په دې خوشحاله شی ولې چې هغوئ د الله ﷻ سره نزدې دی اوزمونږ سفارش به کوی دالله ﷻ دربار ئې ددنيا په بادشاهانو قياس کړې وو ، چې څرنه د بادشاه نزديکان د چا نه رضا وی نو دهغوئ په سفارش سره بادشاه هم ترې راضی کيږی.

خو ددوئ دا ټول خيالونه شيطانی اوباطل وو. ځکه چې اول خو دغه بتان د فرښتو په شکلونو کښې واقعتا وو نه او که وو هم نو دالله ﷻ مقرب فرښتې پخپل عبادت باندې د چا نه څنګه خوشحاليدی شی چې دوئ د هرهغه څيز نه کرکه کوی کوم چې الله ﷻ ته ناخوښ وی ، علاوه دا چې دالله ﷻ داجازت نه بغير هغوئ د چاسفارش کولې نشی. د ﴿وَكَمْ مِّنْ مَّلَكٍ فِي السَّمٰوٰتِ لَا تُغْنِيْ شَفَاعَتُهُمْ شَيْـًٔا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اَنْ يَّاْذَنَ اللّٰهُ لِمَنْ يَّشَاۗءُ وَيَرْضٰى﴾[1] هم دا مطلب دې.

**دهغې زمانې مشرکان هم د نن زمانې دکافرانو نه غوره وو:** د نن زمانې ماده پرست کافران خودالله ﷻ د موجودګئ نه منکر دی او دالله ﷻ په شان کښې ګستاخيانې کوی ، ديورپ نه راوړې کفر اګر چې مختلف رنګونه لری ، څوک پنګه پرست او څوک اشتراکيان دی ، خو دا خبره دکفر په ټولو شريکه ده چې معاذالله الله ﷻ هيڅ څيز نه دې. زمونږ خپله مرضی ده ، زمونږ د عملونو تپوس کوونکې زمونږ نه څوک نشته. نو ددې زيات ناکاره کفر او ناشکرئ په نتيجه کښې د ټول دنيا امن ، اطمينان ، آرام او سکون سرخوړلې دې. د آرام نوی نوی سامانونه اګر چې ډير دی خو آرام نه دې حاصل. د علاج نوې نوې آلې ا و تحقيقات اګر چې زيات دی خو مرضونه بيا هم دومره زيات چې پخوا زمانه کښې دومره نه وو ليدلې شوی. اونه آوريدلې شوی وو. پيرې ، څوکئ ، پوليس ، خفيه پوليس په قدم قدم باندې شته دې خو جرمونه امروزه په مخه زياتيږی. دا نوې آلې او دآرام نوئ نوؤ طريقو باندې چې غور اوکړې شی نو خلقو دپاره هم دا وبال جان جوړ شوی دی. د کفر سزا خو په آخرت کښې ټولو کافرانو دپاره دائمی جهنم دې. خو ددې رندې د ناشکرئ څه سزا په دنيا کښې هم ورکولې شی دکوم ذات د نعمتونو په رايوځائې کولو سره چې دخلقو د آسمان د ختو حوصله پيدا شوه هم دهغې ذات نه انکار دې.

درميان خانه ګم کرديم صاحب خانه را

[دکور په مينځ کښې رانه د کور خاوند ورک دې]

﴿لَوْ اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا﴾ دا په هغې خلقو رد دې چا به چې فرښتې د الله ﷻ اولاد بللې ، ددوئ د باطل خيال او محال په باره کښې د فرض محال په ډول فرمائې چې که چرې معاذالله د الله ﷻ څه اولاد وې نو دا به د الله ﷻ د ارادې نه بغير ناممکن وو . ولې چې په زور باندې اولاد

---

[1] ترجمه: او په آسمانونو کښې ډيرې فرښتې دی چه دهغوی سفارش هيڅ په کار راتلے نه شی سوا ددے نه چه الله تعالی چاله اجازت ورکړی او د هغه نه رضا وی.

Scanned with Ca

ورتپل پرې نشي کيدې. بيا بالفرض که اراده ئې وې نو دهغه لوئې ذات ﷻ نه سوا ټول د الله ﷻ مخلوق دی د هغې نه به چالره اولاد جوړول او داخبره ضرروی ده چې والد او اولاد خپل مينځ کښې سره يوجنس وی او خالق مخلوق خپل مينځ کښې يو جنس کيدې نشی ځکه مخلوق لره د اولاد جوړولو اراده کول محال يعنی ناممکن دی.

﴿يُكَوِّرُ الَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ﴾ د تکوير معنی په يو څيز باندې د بل څيز په وراچولو سره پرې هغه پټول دی، نو دشپې او ورځې بدليدو ته د عامو نظرونو په اعتبار سره تکوير ځکه فرمائی چې د شپې په راتلو سره ګويا کښې د ورځې په رڼا باندې ا ود ورځې په راتلو سره ګويا کښې د شپې په تياره باندې پرده راتلل دی.

﴿كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُسَمًّى﴾ دې نه معلوميږی چې نمر او سپوږمۍ دواړه حرکت کوی، د فلکياتو او د طبقات الارض مادی، تحقيقات کول اګر چې دقرآن پاک يا دبل آسمانی کتاب د بحث موضوع نه دی خو په دې معامله کښې څومره اوکومه خبره چې ضمنا راشی په هغې باندې يقين لرل فرض دی. د فلسفيانو جديد او قديم تحقيقات دومو پوزې دی چې امروزه بدليږی او قرآنی حقيقتونه بدليدونکی نه دی. هر کله چې په دې آيت مبارک سره مونږ ته قرآن پاک اوخودل چې نمر او سپوږمۍ حرکت کوی نو په دې باندې يقين لرل فرض دی، اوس دنمر او سپوږمۍ ډوبيدل او راختل ددې دواړو دخپل حرکت له وجه دی او که دزمکې د حرکت په وجه نو قرآن پاک ددې نه خاموش دې. ځکه چې په تجربو سره د ثابت شوی څيز منلو کښې څه حرج نشته.

﴿وَأَنْزَلَ لَكُمْ مِنَ الْأَنْعَامِ ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ﴾ په دې آيت کښې د څاروؤ پيدا کولو ته نازلول اوفرمائيل په دې کښې دې خبرې ته ارشاره ده چې ددې په پيدا کولو کښې داوبو زيات دخل دې کومې چې د آسمان نه نازليږی. په دې بنا داسې ښکاره کړې شو چې ګويا کښې هم دا څاروی د آسمان نه نازل شوی دی. نو قرآن پاک د انسانی لباس باره کښې هم نازلول استعمال کړی دی لکه فرمائی چې ﴿قَدْ أَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا﴾[1] داسې د اوسپنې باره کښې هم نازلول استعمال شوی دی لکه فرمائی چې ﴿وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيدَ﴾[2] ددې ټولو حاصل دادې چې دا ټول څيزونه د الله ﷻ په قدرت سره پيدا کيږی. او انسان ته ورکړې شوې دی. [قرطبی][3].

﴿خَلْقًا مِنْ بَعْدِ خَلْقٍ فِي ظُلُمَاتٍ ثَلَاثٍ﴾ په دې کښې د الله ﷻ دقدرت دهغې رازونو او اشارو نشاندهی شوې ده چې دانسان په پيدا کيدو کښې کار کوی اول خو دا چې الله ﷻ په يو وخت دمور په خيټه کښې دمکمل بچی پيدا کولو قدرت لرلو خو د حکمت د تقاضا مطابق ئې دغسې اونه کړل، بلکه: ﴿خَلْقًا مِنْ بَعْدِ خَلْقٍ فِي ظُلُمَاتٍ ثَلَاثٍ﴾ په تدريج واره واره ئې دغسې اوکړل چې دمور خيټه کښې کوم عالم اصغر جوړيږی هغه ددې بې مثله ډير ښکلی مخلوق او پيټې په دمه زغملو عادت شی. بلـه دا چې ددې بې مثله ډير ښکلی انسان پيدا کيدل په داسې ځائې کښې اوشی چې په کښې درې قسمه تيرې دی چرته چې د چا نظر څه چې فکر هم کار نشی

---

[1] ) ترجمه: مونږ تاسو دپاره لباس پيدا کړو.

[2] ) ترجمه: او مونږ اسپنه پيدا کړی ده.

[3] تفسير القرطبي: ج ۱۵، ۲۳۵

کولي، حالانکه په انسان کښې په سوونو نازک مشینونه د ویښته هومره نري رګونه د روح اوویښې رسولو دپاره لګولې شوي دي او دعامو کاریګرو پشان په خلاص ځائې د رنړا مددسره نه دي پیدا کړې شوي ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحۡسَنُ الۡخٰلِقِيۡنَ﴾

اِنۡ تَكۡفُرُوۡا　فَاِنَّ اللّٰهَ　غَنِیٌّ

| که تاسو کفر اوکړئ | پس بیشکه الله | بې پروا دې |

| که چرې تاسو ناشکري کوئ | نو [یادساتئ] چې الله ﷻ

عَنۡكُمۡ　وَلَا يَرۡضٰى　لِعِبَادِهِ　الۡكُفۡرَ　وَاِنۡ تَشۡكُرُوۡا

ستاسو نه | اونه خوښوي | دپاره دبندګانو خپلو | کفر | او که تاسو شکر اوکړئ

ستاسونه بې پرواه دې | اوهغه خپلو بندګانو دپاره کفر نه خوښوي | اوکه تاسو شکر اوباسئ

يَرۡضَهُ　لَكُمۡ　وَلَا تَزِرُ　وَازِرَةٌ　وِّزۡرَ اُخۡرٰى

نو خوښوي هغه دا | ستاسو دپاره | اونه باروي | يو بارونکې | بار دبل چا |

نوهغه ئې ستاسو دپاره خوښوي | [اوواورئ] هیڅوک بوج اوچتونکې به دبل بوج اوچت نکړې شي

ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمۡ　مَّرۡجِعُكُمۡ　فَيُنَبِّئُكُمۡ　بِمَا

بیا رب ستاسو ته | واپس ورتلل دی ستاسو | پس خبر به درکړي تاسو ته | په هغه څه |

بیا به تاسو خپل رب ته واپس کیږئ | نو هغه به تاسو ته ستاسو د ټولو عملونو

كُنۡتُمۡ　تَعۡمَلُوۡنَ　اِنَّهٗ　عَلِيۡمٌۢ　بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ　وَاِذَا

چې وئ تاسو | چې کول به مو | بیشکه هغه | عالم دې | په خبرو دسینو باندې | او کله چې

خبر درکړي | ........... هغه ته د زړونو پټ رازونه ښه معلوم دي | ........... او کله چې

مَسَّ الۡاِنۡسَانَ　ضُرٌّ　دَعَا　رَبَّهٗ　مُنِيۡبًا　اِلَيۡهِ

اورسیږي انسان ته | تکلیف [سختي] | نو رابلې | رب خپل | حال دا چې رجوع کونکې وي | هغه ته

انسان ته څۀ تکلیف اورسیږي | نو د خپل رب نه سوال کوي | ........... اوهغه ته رجوع کوي

ثُمَّ اِذَا　خَوَّلَهٗ　نِعۡمَةً　مِّنۡهُ　نَسِىَ　مَا　كَانَ

بیا چې کله | ورکړي هغه ته | نعمت | د طرفه خپل نه | نو هیره کړي | هغه سختي | چې وۀ دې |

بیاچې هغه ورته دخپل طرفنه څه نعمت ورکړي | نو هغه د مصیبت حالت هیر کړي | دکوم دپاره چې

يَدۡعُوۡۤا　اِلَيۡهِ　مِنۡ قَبۡلُ　وَجَعَلَ　لِلّٰهِ　اَنۡدَادًا

چې رابلو ئې الله | هغې ته | مخکښې ددې نه | او جوړوي | الله لره | شریکان |

ئې وړاندې الله نه سوال کولو | او الله ﷻ سره شریکان جوړول شروع کړي | نتیجه ئې دا شي چې نور

لِّيُضِلَّ　عَنۡ سَبِيۡلِهٖ　قُلۡ　تَمَتَّعۡ　بِكُفۡرِكَ

دپاره ددې چې بې لارې کړي خلق | دلارې دهغه نه | ورته اووایه | چې نفع واخله | په کفر خپل

خلق دهغه دلارې نه ګمراه کړي | ته ورته اووایه چې دخپل کفرنه یو څو ورځې فائده اوچته کړه

Scanned with Ca

قَلِيلًا ۖ إِنَّكَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ ۝٨ أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ

لږه | بیشکه ته | دملګرو دوور نه ئې | آیا هغه څوك | چې هغه حکم منونکې دې |

بیشکه ته دوزخی یې | ..............[آیا د اسې سړې غوره دې آیا هغه چې دشپې په وختونو کښې په

آنَاءَ اللَّيْلِ سَاجِدًا وَقَائِمًا يَحْذَرُ الْآخِرَةَ وَيَرْجُو

په وختونو دشپې کښې | سجده کونکې | او ودریدونکې | چې یریږی دآخرت نه | او امید لری |

سجده پروت اوپه قیام ولاړ وی | ..................دآخرت نه ویریږی | اودخپل رب د

رَحْمَةَ رَبِّهِ ۗ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ

درحمت درب خپل | ورته اووایه | آیا برابر کیدې شی | هغه کسان | چې پوهیږی | او هغه کسان |

رحمت امید ساتی| نو ته اووایه چې آیا پوهه اوناپوهه خلق برابریدې شی | اونصیحت خو بس

لَا يَعْلَمُونَ ۗ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُو الْأَلْبَابِ ۝٩ قُلْ يَا عِبَادِ

چې نه پزهیږی | بیشکه چې نصیحت قبلوئ | خاوندان دعقلونو | ورته اووایه | اے بندګانو زما

عقل مند خلق قبلوی| ........................ اووایه چې ائې مومنانو

الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا رَبَّكُمْ ۚ لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا

هغه | چې ایمان مو راوړې دې | او یریږئ | درب خپل نه | دپاره دهغه کسانو | چې نیك عمل کوی

بندګانو | دخپل رب نه ویریږئ| څوک چې په دې دنیا کښې نیکی اوکړی | هغوی دپاره نیکه

فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ۗ وَأَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةٌ ۗ إِنَّمَا يُوَفَّى

په دې دنیا کښی | نیکی ده | او زمکه دالله | فراښه ده | بیشکه | چې پوره به ورکیدې شی

بدله مقرر ده | ..................اود الله ﷻ زمکه فراخه ده | ............... [یاد ساتئ] کوم خلق

الصَّابِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝١٠

صبر ناکو خلقو ته | اجر دهغوئ | بې حسابه |

چې صبر کوی| هغوئ دپاره بې حسابه اجر اوثواب مقرردې |

**آسان ترجمه قرآن**

که تاسو کفر اختیار کړئ، نو یقین ساتئ، چه الله تعالیٰ ستاسو نه بے نیازه دې او هغه د خپلو بندګانو دپاره کفر نه خوښوی، او که تاسو شکر کوئ، نو دا شکر هغه ستاسو دپاره خوښوی، او هیڅ بار پورته کونکې به د بل چا بار پورته نه کړی، بیا ستاسو د ټولو خپل پروردګار طرف ته واپسی ده، هغه وخت به هغه تاسو ته اوښائی، هغه څه چه تاسو کول، یقیناً هغه د زړونو په خبرو باندې هم پوهیږی، اوکله چه انسان ته څه تکلیف اورسی، نو هغه خپل پروردګار لره رابلی، په دې حال کښې چه هم هغه طرف ته رجوع کونکې وی بیا چه هغه دخپل طرف نه انسان ته څه نعمت ورکړی، نو هغه (هغې تکلیف لره) هیر کړی، د کوم دپاره ئې چه الله تعالیٰ رابللې وو او د الله تعالیٰ سره شریک جوړوی، چه دهغې په نتیجه کښې نورو خلقو لره هم د الله تعالیٰ د لارې نه ګمراه کوی. اووایه چه فائده واخله په کفر خپل سره لږه شان.

Scanned with Ca

یقیناً ته د دوزخ والؤ نه ئې. آیا (داسې سړې دهغه سړی سره برابر کیدې شی) چه د شپې په وختونو کښې عبادت کوی، کله په سجده کښې کله په قیام کښې، د اخرت نه ویرېږی، او دخپل پروردګار د رحمت امیدوار دې؟ او وایه چه: آیا هغه خلق چه پوهیږی، او هغه خلق چه نه پوهیږی، ټول برابر دی؟ (لیکن) نصیحت خو هغه خلق قبلوی، چه عقل لری. او وایه چه: اے زما ایمان والا بندګانو! دخپل پروردګار ویره په زړه کښې اوساتئ، ښیګړه هم دهغوی دپاره ده، کومو خلقو چه په دې دنیا کښې ښیګړه کړې ده او د الله تعالیٰ زمکه ډیره فراخه ده، کوم خلق چه د صبر نه کار اخلی، دهغوی ثواب به هغوی ته بے حسابه ملاویږی.

## خلاصه تفسیر

اے خلقو تاسو دکفر اوشرك بطلان واوریدو ددې نه پس ﴿اِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنْكُمْ﴾ [که تاسو کفر وکړو] چه په دې کښې شرك هم داخل دې [نو] د [الله تعالی هیڅ ضرر نشته ځکه چه هغه[ستاسو] اوستاسو دعبادت [حاجتمند نه دې] چه ستاسو په عبادت او توحیدنه اختیارولو به هغه ته ضرر ورسیږی [او] داخبره ضرور ده چه ﴿وَلَا يَرْضٰى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ﴾ [هغه دخپلو بندګانو دپاره کفر نه خوښوی] ځکه چه په کفرسره بندګانو ته ضرر رسیږی ﴿وَاِنْ تَشْكُرُوْا يَرْضَهُ لَكُمْ﴾ [اوکه تاسو شکر وکړئ] چه ددې لوئ فرد ایمان دې [نو] د هغه فائده نه ده بلکه ستاسو نفع ده ځکه چه هغه [دې لره ستاسو دپاره خوښوی او] چونکه زمونږ په نزد قاعده مقرر ده چه ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى﴾ [څوك دچا بوج] دګناه [نه شی پورته کولې] په دې وجه کفر کولو سره داسې هم مه ګنړئ چه زمونږ کفر به دبل په عملنامه کښې په څه وجه سره ولیکلې شی او مونږ به بری شو خواه په دې وجه سره چه مونږ دنورو متبع یو ددې وخت دخلقو یا دپخوانو پلار نیکه خواه په دې وجه چه بل ددې بوج دپورته کولو وعده کوی لکه چه څنو کفارو به وئیل [وَلْنَحْمِلْ خَطٰيٰكُمْ](١) غرض داسې به نه وی بلکه ستاسو کفر به ستاسو په جرائمو کښې لیکلې کیږی ﴿ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ مَّرْجِعُكُمْ﴾ [بیا به تاسو ټول خپل رب طرف ته واپس کیږئ ﴿فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ پس هغه به ستاسو ټول عملونه تاسو ته وښائی] او سزا به درکړی پس داګمان هم غلط دې چه ددوی عملونه به دپیشئ په وخت کښې رانه شی او ﴿اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ﴾ [هغه د زړونو په خبرو باند پوهیدونکې دې] پس داګمان هم مه کوئ چه زمونږ دکفر به شاید هغه ته اطلاع نه وی لکه چه په احایثو کښې دی چه څنو خلقو خبرې کولې چه معلومه نه ده چه الله تعالی زمونږ خبرې اوړی یا نه چاڅۀ جواب ورکړو او چاڅه چه په دې دا ایت نازل شو [وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ..الخ](٢) [او د] مشرك [سړی] حالت دادې چه ﴿وَاِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ ضُرٌّ﴾ کله ده [ته کله څه تکلیف رسیږی ﴿دَعَا رَبَّهٗ مُنِيْبًا اِلَيْهِ﴾ نو خپل رب] حقیقی [لره د هغه طرف ته رجوع کوی بلی ئې] او نور ټول معبودان هیر کړی ﴿ثُمَّ اِذَا خَوَّلَهٗ نِعْمَةً مِّنْهُ﴾ [بیا چه هرکله الله تعالی ده ته دخپل طرف نه نعمت] امن او ارام [ورکړی ﴿نَسِيَ مَا كَانَ يَدْعُوْٓا اِلَيْهِ مِنْ قَبْلُ﴾ نو دکوم] تکلیف دفع کولو [دپاره چه ئې اول] خدائ لره [بللو هغه لره هیر کړی] او غافله شی ﴿وَجَعَلَ لِلّٰهِ

---

(١) ترجمه: او ستاسو ګناه زمونږ په زمه.

(٢) ترجمه: او تاسو (دګناه کولو په وخت له دے خبرے نه) پټیدےنه شوی چه ستاسو غوږونه، ستاسو سترګے او ستاسو څرمنے به ستاسو خلاف ګواهي ورکوی.

Scanned with

أَنْدَادًا لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِهِ ﴾ [او خدایٔ لره شریك جوړول شروع کړي چه اثر يې] علاوه دخپلې ګمراهۍ نه [دا وی چه دالله تعالی دلارې نه نورو لره] هم [ګمراه کوی] اوکه دامصیبت [ئې پیش نظر ساتلې نو په توحید کښې به ئې اخلاص لره قائم کړې وو دا دمشرك مذمت شو وړاند دعذاب نه ویرول دی چه ته] ﷺ داسې سړی ته ﴿قُلْ تَمَتَّعْ بِكُفْرِكَ قَلِيلًا﴾ [ووایه چه دخپل کفر دبهارنه لږې ورځې نورې مزې واخله] بیا اخرکار ﴿إِنَّكَ مِنْ أَصْحٰبِ النَّارِ﴾ [ته د دوزخیانونه کیدونکې یې] وړاند دتوحید مدح او خوشخبری ده یعنی ﴿أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ الَّيْلِ سَاجِدًا وَقَائِمًا﴾ [ایاکوم سړې چه] په عکس دحال د ذکر شوی مشرك نه [دشپې په وختونو کښې] کوم چه عموما دغفلت وخت وی [دسجدې او قیام] یعنی مونځ [په حالت کښې عبادت کوی] داخو د هغه ظاهر دې او باطن ئې داوی چه ﴿يَحْذَرُ الْآخِرَةَ وَيَرْجُوا رَحْمَةَ رَبِّهِ﴾ [داخرت نه ویریږی او دخپل پروردګار درحمت امید] هم [کوی] ایا داسې سړې او دا ذکرشوې مشرك برابریدې شی؟ هرګزنه بلکه دا قانت کوم چه په عبادت همیشوالې کونکې او دالله تعالی نه ویریدونکې هم دې او دهغه نه دعفوکرم امیدساتونکې هم دې دا محمود دې اومشرك چه دمطلب پوره کیدونه پس اخلاص لره پریږدی مذموم دې او چونکه ددې عبادتونو پریښودل کفارو مذموم نه ګنړل په دې وجه ددې تفاوت په بنا دمذمومیت او محمودیت په حکم کښې دوی ته شبهه کیده په دې وجه وړاند ددې نه زیات په واضح اومسلم عنوانونو سره ددې حکم اثبات فرمائی یعنی اے پیغمبر ﷺ ﴿قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾ [ته] ﷺ دوی ته په دې عنوان [ووایه چه علم والا اوجهل والا] چرې [برابر وی] چونکه جهل لره هرسړې بدګنړی ددې په جواب کښې ددوی دطرف نه به هم داسې ونیلې شی چه جاهلان مذموم دی وړاند به دا ثابتول پاتې شی چه صاحب عمل صاحب علم دې او دعمل نه اعراض کوونکې صاحب جهل دې پس دا امر خو لږ په تامل سره ثابت دې او هرخومره چه په دې بیان سره دکفر او اهل کفر مذموم والې او دایمان اوایمان والؤ محمود والې ثابت شو لیکن بیا هم ﴿إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُوا الْأَلْبَابِ﴾ [هغه خلق نصیحت اخلی کوم چه دعقل] سلیم [خاوندان دی او] هرکله چه دطاعت د خاوندانو دالله تعالی په نزد محمود والې معلوم شو نو د اطاعت دترغیب ورکولو دپاره ﴿قُلْ يٰعِبَادِ الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا رَبَّكُمْ﴾ [ته] مؤمنانو ته زما دطرف نه [ووایه چه اے زما ایماندارو بندګانو تاسود خپل پرودګار ویره کوئ] یعنی په طاعت همیشوالې او دګناهونو نه ځان ساتونکی وسیږئ چه داتول دتقوی فرعې دی وړاند ددې ثمره ده چه ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ﴾ [کوم خلق په دې دنیا کښې نیکی کوی دهغوی دپاره نیکه صله ده] په اخرت کښې خو ضرور او په دنیاکښې هم باطنی راحت خو ضرور اوکله ظاهرا هم [او] که په وطن کښې دنیکۍ کولو نه څه مانع وی نو هجرت کوئ بل ځایٔ ته ځئ څکه چه ﴿وَأَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةٌ﴾ [دالله تعالی مزکه فراخه ده] او که په وطن پریښودو کښې څه تکلیف در رسیږی نو استقلال ساتئ څکه چه په دین کښې ﴿إِنَّمَا يُوَفَّى الصّٰبِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ [مستقل اوسیدونکو ته به ددوی صله بې شمیره ملاویږی] پس په دې سره ترغیب وشو اطاعت طرف ته

## معارف او مسائل

﴿إِنْ تَكْفُرُوا فَإِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنْكُمْ﴾ یعنی ستاسو دایمان نه الله ﷻ ته څه فائده اوستاسو د کفر نه څه زیان ورته نشته. د صحیح مسلم په یو حدیث پاک کښې راغلی دی چې الله ﷻ فرمائی چې

اني زما بندګانو که ستاسو اولين اوآخرين او ستاسو انسان او پيريان ټول د څيرمې په انتهائي فسق اوفجور کښې اخته شي ، نو زما په ملک او بادشاهئ کښې لږ شان قدرې هم کمې نه راځي. [ابن کثير]([1]).

﴿وَلَا يَرۡضَىٰ لِعِبَادِهِ ٱلۡكُفۡرَ﴾ يعني الله ﷻ د خپلو بندګانو په کفر سره نه راضي کيږي. دلته درضا مراد محبت دې يا د څه کار اراده کول دي بغير د اعتراض نه ، ددې په مقابله کښې د سخط لفظ دې چې معنی ئې يو څيز ناخوښول يا يو څيز د اعتراض جوګه ګرځول دي اګر چې ورسره اراده هم تړلې وي.

**مسئله**: د اهل سنت والجماعت د عقيدې په جوړ په دنيا کښې هيڅ يو ښۀ او خراب کار ، ايمان يا کفر د الله ﷻ د مشيت او ارادې نه بغير نه شي موجوديدلئ. په دې بنا د هر څيز موجوديدو دپاره دالله ﷻ اراده شرط ده ، البته دالله ﷻ رضا اوخوښه صرف ايمان اوخو کارونو سره تړلې ده ، کفر شرک او ګناهونه دهغه ﷻ خوښ نه دي. شيخ الاسلام نووي رحمه الله په خپل کتاب [الاصول والضوابط] کښې ليکلي دي:

**مذهب اهل الحق الايمان بالقدر واثباته وان جميع الكائنات خيرها وشرها بقضاء الله وقدره وهومريد له كلها ويكره المعاصي معانه تعالى مريدلها لحكمة يعلمها جل وعلا.**

داهل حق مذهب په تقدير باندې ايمان راوړل ، او په دې ايمان راوړل دي چې ټول کائنات که ښه وي اوکه بد دالله ﷻ په حکم او تقدير سره په وجود کښې راځي ، اوالله ﷻ ددې دپيدا کولواراده هم کوي مګرټول ګناهونه بد او ناخوښۀ ګڼړي،اګر چې دهغې دپيدا کولو اراده په څه حکمت او مصلحت باندې بنا وي چې هم هغه ئې پيژني. [روح المعاني]([2]).

﴿أَمَّنۡ هُوَ قَٰنِتٌ ءَانَآءَ ٱلَّيۡلِ﴾ لفظ د امن د دوؤ لفظونونه جوړ دې ، ام په کښې حرف استفهام دې ، او من په کښې اسم موصول دې. ددې جملې نه وړاندې کافرانو ته دالله ﷻ د طرفنه وئيلې شوي دي چې ددنيا د خور ورځو په ژوند کښې د خپل کفر ، فسق وفجور مزې واخلئ آخربه تاسو دجهنم د اور خشاک يئ. دې نه پس پدې جمله کښې د فرمانبردار مؤمن بيان دې چې د امن په لفظ سره شروع کړې شوې دې ، دتفسير علماء ددې نه وړاندې يوه جمله محذوفه بولي ، هغه داسې چې يو کافر ته به اووئيلې شي چې ته ښۀ ئې يا هغه مؤمن فرمانبردار چې بيان ئې وړبسې دې. د قانت لفظ ګڼړې ترجمې شوي دي ټول ارخيز قول د ابن مسعود رضي الله عنه دې ددې معنی ده فرمانبردار ، کله چې دا لفظ مونځ دپاره استعمال شي لکه: ﴿وَقُومُواْ لِلَّهِ قَٰنِتِينَ﴾([3]) نو دلته تر مراد هغه مونځ ګزار وي چې په مونځ کښې خپل نظر ښکته لرې ، اخوا ديخوا نه ګوري ، خپل بدن يا جامو سره لوبې نه کوي ، نه پخپل اختيار سره ددنيا څه څيز ځان ته راياد وي. که په هيره اوبې اختيارئې ورته څه راياد شي نو دداسې وسوسې څه باک نشته [قرطبي]([4]).

﴿ءَانَآءَ ٱلَّيۡلِ﴾ ددې معنی وختونه دشپې ده ، مراد ترې د شپې اوله حصه او درمياني او آخره ده ، ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلي دي چې څوک غواړي چې د محشر په موقف د حساب کښې الله ﷻ

---

[1] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۸۷، وصحيح مسلم، كتاب البروالصلة، باب تحريم الظلم: ج ۲، ص ۳۱۹
[2] ) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ۱۷، ص ٤٢٦
[3] ) ترجمه: او دالله تعالی مخکې عاجزی سره اودريږی.
[4] ) تفسير القرطبي: ج ۱۵ ص ۲۳۹

Scanned with Ca

پرې آسانې اوکړې هغه له پکار دی چې الله ﷻ ده لره د شپې په تيارو کښې د سجدې او قيام په حالت کښې بيامومی. په داسې شان چې دآخرت فکر ورسره وی او د رحمت اميد هم. ځينې حضراتو د ماښام او ماسختن د مونځ وخت ته هم ﴿آنَآءَ الَّيۡلِ﴾ وئيلی دی. [قرطبی] (۱).

﴿وَأَرۡضُ ٱللَّهِ وَٰسِعَةٌ﴾ ددې نه په وړاندې جمله کښې د نيکو عملونو حکم دې. دې کښې چا دا عذر کولې شو چې زه په کوم ښار يا ملک کښې اوسيږم. يا په کوم ماحول کښې چې راګير يم، ددې ماحول ما دنيکو عملونو نه ايسار وی. ددې جواب په دې جمله کښې ورکړې شو چې که په يو خاص ملک، ښار يا خاص ماحول کښې چاته د شرعی حکمونو پابندی کول، ګران شی، نو هغه دې پريږدی، د الله ﷻ زمکه ډيره فراخه ده، چرته په داسې يو ځائې او چاپير چل کښې استوګنه اختيار کړئ چې دالله ﷻ دحکمونو اطاعت دپاره سازګار وی، په دې کښې دداسې ځائې نه د هجرت کولو شوق راپورته کول دی چرته چې د دين د حکمونو پابندی نشی کولې. دهجرت تفصيلی حکمونه په سورة نساء کښې راغلی دی.

﴿إِنَّمَا يُوَفَّى ٱلصَّٰبِرُونَ أَجۡرَهُم بِغَيۡرِ حِسَابٖ﴾ ﴿بِغَيۡرِ حِسَابٖ﴾ نه مراد دادې چې د صبر کوؤنکو ثواب به په يوې مقررې پيمانې او اندازې سره نه بلکه بې اندازې او بې حسابه ورکولې شی. لکه په يو حديث پاک کښې ئې بيان راروان دې او ځينو حضراتو دبغير حساب معنی بې خواسته. او بې مطالبې کړې ده يعنی ددنيا په شان به نه وی، چې يو حقدار ته په غوښتو خپل حق ورکولې شی بلکه الله ﷻ به صبر کوؤنکو ته بې غوښتو ثواب ورکوی.

قتاده رحمه الله اوفرمائيل چې انس رضی الله عنه داحديث پاک واؤريدلو چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې: دقيامت په ورځ به د انصاف تله قائمه کړې شی. خيرات کوؤنکو ته به په تول سره دهغې پوره پوره اجرو ثواب ورکړې شی. دغه شان دمونځ، حج وغيره عبادتونو خاوندانو ته په تول سره پوره پوره اجر ورکولې شی. خو په تکليف او مصيبت باندې صبر کوؤنکو ته به بې تول پيمانې، بې حسابه اوبې اندازې اجرو ثواب ورکولې شی. ځکه چې الله ﷻ پخپله فرمائی چې: ﴿إِنَّمَا يُوَفَّى ٱلصَّٰبِرُونَ أَجۡرَهُم بِغَيۡرِ حِسَابٖ﴾ تر دې پورې چې په دنيا کښې د روغتيا او مزو عيش تيروؤنکی به ارمان اوکړی چې زمونږ بدن په قينچيانو سره پريکړې شوې وې چې راته داسې بدله راکړې شوې وې (۲).

امام مالک رحمه الله دلته د صابرينو نه مراد هغه خلق اخستی دی چې ددنيا په تکليفونو او مصيبتونو باندې ئې صبر کړې وی. او ځينې حضراتو فرمائيلی دی چې دې آيت مبارک کښې دصابرانو نه مراد هغه خلق دی چې دګناهونو کولو نه ځان په قابو کښې اوساتی. امام قرطبی رحمه الله فرمائيلی دی چې يواځې صابر لفظ چې استعمال شی نو هغې نه مراد ګناهونو نه ځان ساتونکې دې او کله چې ورسره بل لفظ ملګرې کړې شی لکه صابر علی کذا، اووئيلې شی نو مراد ترې په مصيبت او تکليف وغيره باندې صبر کوؤنکې وی (۳)، والله اعلم.

---

(۱) تفسير القرطبي: ج ۱۵ ص ۲۳۹

(۲) تفسير القرطبي: ج ۱۵ ص ۲۴۱ بالتفصيل، والمعجم الكبير للطبراني (بالاختصار) رقم الحديث: ۸۶۸۹

(۳) تفسير القرطبي: ج ۱۵ ص ۲۴۲

قُلْ إِنِّيٓ أُمِرْتُ

| ورته اووايه | بيشکه حکم شوې دې ماته

| ..............ته اووايه چې ماته د الله

أَنْ أَعْبُدَ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ ﴿١١﴾ وَأُمِرْتُ

چې بندګي اوکړم دالله | چې خالص کونکې يم زۀ | هغه لره ددين | او حکم شوې دې ماته |

دعبادت حکم شوې دې | اوعبادت صرف د هغه کوم| .................. اوماته دا حکم [هم] شوې دې

لِأَنْ أَكُوْنَ أَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿١٢﴾ قُلْ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ

چې شم زۀ | اول دمسلمانانو نه | ورته اووايه | بيشکه زۀ | يريږم | که نافرماني اوکړم

چې په مسلمانانو کښې دې اول [نمبر] مسلمان يم | ته اووايه که زه دخپل رب نافرماني اوکړم

رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿١٣﴾ قُلِ اللّٰهَ أَعْبُدُ مُخْلِصًا

درب خپل| دعذاب دورځې لوئې نه | اووايه | چې الله لره به | بندګي کوم زۀ | خالص کونکې

نودقيامت دلوئې ورځې دعذاب نه ويريږم | ته اووايه چې زه خو دالله ﷻ عبادت په داسې

لَّهُ دِيْنِيْ ﴿١٤﴾ فَاعْبُدُوْا مَا شِئْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ قُلْ

هغه لره | ددين زما | پس بندګي کوئ تاسو | دهغې | چې غواړئ تاسو | بې دهغه نه | ورته اووايه

طريقه کوم|............ چې خپل عبادت خالص دهغه په نوم ساتم | نوتاسو دهغه نه سوا چې څوک مو

إِنَّ الْخٰسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا أَنْفُسَهُمْ وَأَهْلِيْهِمْ

بيشکه تاوانيان خلق|هغه خلق دې |چې په تاوان کښې ئې واچول | ځانونه خپل | او اهل وعيال خپل

خوښ وي دهغه عبادت کوئ|اووايه چې تاوانيان هغه کسان دي |چې خپل ځانونه او خپله خيلخانه ئې

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ أَلَا ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ﴿١٥﴾ لَهُمْ

په ورځ دقيامت | خبردار [واورئ] | هم دا | تاوان ښکاره دې | وي به دهغوئ دپاره

دقيامت په ورځ تاواني کړي دي | ياد ساته ! چې هم دغه ښکاره تاوان دې | ........په هغوئ باندې به

مِّنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِنْ تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ذٰلِكَ

دپاسه دهغوئ نه | چترونه | دوور نه | او لاندې دهغوئ نه | چترونه | دا هغه انجام دې

د پورته نه هم د اور شغلې وي | اودلاندې نه به هم د اور شغلې وي | ............دا هغه

يُخَوِّفُ اللّٰهُ بِهٖ عِبَادَهٗ يٰعِبَادِ فَاتَّقُوْنِ ﴿١٦﴾ وَالَّذِيْنَ

چې يروي الله | په دې سره | بندګان خپل | اے بندګانو زما | پس اويريږئ زما نه | او هغه کسان

خبرې دي | چې الله ﷻ پرې خپل بندګان ويروي | نو ائې زما بندګانو زما نه اويريږئ | اوڅوک

اجْتَنَبُوا الطَّاغُوتَ أَنْ يَعْبُدُوهَا وَأَنَابُوا إِلَى اللَّهِ

چي خان اوساتو | دطاغوت [بتانو] نه | چي عبادت اوکړي دهغې | او رجوع ئې اوکړه | الله ته

چي دشيطان عبادت نه خان بچ ساتي | او الله ﷻ ته رجوع کوی | هغوئ د زيری لائق دی

لَهُمُ الْبُشْرَىٰ ۚ فَبَشِّرْ عِبَادِ ﴿١٧﴾ الَّذِينَ يَسْتَمِعُونَ

دپاره دهغوئ دي | زيري | پس زيري ورکړه | زما بندګانو ته | هغه بندګانو ته | چي اوري

نو زما بندګانو ته زيري ورکړه | څوک چي خبري ته غوږ ايږدي | ...................او د ټولو نه په ښه

الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُونَ أَحْسَنَهُ ۚ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَاهُمُ اللَّهُ

خبره | بيا پيروی کوی | دښه اړخ دهغې | دا هغه خلق دی | چي هدايت کړي دي دوئ ته الله

خبرو عمل کوی | .........................هم دغه کسان دی چي الله ﷻ ورته هدايت کړي دي

وَأُولَٰئِكَ هُمْ أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿١٨﴾ أَفَمَنْ حَقَّ

او هم دا کسان | خاوندان دعقلونو دی | آيا نو [بچ کولي شی څوک] هغه سړي | چي ثابته شوی وی

اوهم دغه کسان دعقل خاوندان دی | ........................ايا د چا په حق کښي چي دعذاب فيصله شوي

عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ ۚ أَفَأَنْتَ تُنْقِذُ مَنْ فِي النَّارِ ﴿١٩﴾

په هغه باندي | خبره دعذاب | آيا نو ته بچ کولي شي | هغه څوک | چي غورزيدلي وی په وور کښي

وی [نو هغه دوزخيان دی] | ...............نو آيا ته دوزخيان دعذاب نه خلاصولي شي ؟ |

لَٰكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ غُرَفٌ مِنْ فَوْقِهَا

البته هغه کسان | چي اويريدل | ادرب خپل نه | دی دپاره دهغوئ | مانړئ | چي دپاسه دهغې به

البته څوک چي د خپل رب نه ويريږی | هغوئ دپاره بالاخانې تيارې دی | چي دهغې نه پورته

غُرَفٌ مَبْنِيَّةٌ ۙ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ وَعْدَ اللَّهِ ۚ

نورې مانړئ وی | جوړې کړې شوی | چي بهيږي به | لاندي دهغې نه | نهرونه | دا وعده ده دالله

نورې بالاخانې تيارې دی | چي لاندي ترې نه ولې بهيږی | ....................دا دالله ﷻ وعده ده

لَا يُخْلِفُ اللَّهُ الْمِيعَادَ ﴿٢٠﴾

خلاف نه کوی الله | دوعدې | |

الله ﷻ هيچرې د وعدې خلاف نه کوی |

### آسان ترجمه قرآن

اووايه چه: ماته دا حکم را کړې شوی دی، چه زه د الله تعالیٰ داسې عبادت اوکړم، چه زما بندګی خالص هم دهغه دپاره وی او ماته حکم را کړې شوی دی، چه د ټولو نه اول فرمانبردار زه جوړ شم اووايه چه که زه دخپل پروردګار نافرمانی اوکړم نو ماته د يوې لوئې ورځې د عذاب خطره ده. اووايه چه: زه خو د الله تعالیٰ عبادت داسې کوم، چه ما خپله بندګی صرف دهغه دپاره خالص کړې ده. اوس تاسو دهغه نه ماسوا د څه څيز چه غواړئ، عبادت کوئ اووايه چه: د تاوان سودا کونکې هغه خلق دی، چه تاوان کښ

Scanned with Ca

ئې اچولې دي ځان خپل او اهل خپل په ورځ د قيامت، خبردار هم دا ښکاره تاوان دې. د داسې خلقو دپاره دپاسه ددوی نه وريځې دی د اور، او لاندې ددوی نه هم هغسې وريځې، دا هغه عذاب دې، چه په دې سره الله تعالىٰ خپل بندګان ويروی، لهٰذا اے زما بندګانو! زما ويره په زړه کښې اوساتئ. او کومو خلقو چه ددې خبرې نه پرهيز اوکړو، چه هغوی د طاغوت عبادت وکړی اوهغوی الله تعالىٰ ته رجوع اوکړه، دخوشحالئ خبر دهغوی دپاره دې، لهٰذا زما هغې بندګانو ته د خوشحالئ خبر واوروه دا هغه کسان دی، چه خبرې لره په غور سره اوری، نو په هغې کښې چه کومه ډيره ښه وی، دهغې تابعداری کوی هم دا هغه خلق دی، چه دوی ته الله تعالىٰ هدايت ورکړې دې، او هم دا عقل والا دی. آيا په کوم سړی چه د عذاب فيصله مقرر شوې ده، نو آيا ته به هغه سړی لره بچ کړې، چه اور کښې دننه دې؟ البته کومو خلقو چه د خپل پروردګار ويره په زړه کښې ساتلې ده، د هغوی دپاره لاندې باندې جوړ کړې شوې اوچت اوچت عمارتونه دی، چه دهغې لاندې به نهرونه بهيږی، دا د الله تعالىٰ وعده ده، الله تعالىٰ چرې هم د وعدې نه خلاف نه کوی.

## خلاصه تفسير

﴿قُلۡ اِنِّیۡۤ اُمِرۡتُ اَنۡ اَعۡبُدَ اللّٰهَ مُخۡلِصًا لَّهُ الدِّیۡنَ ﴿۱۱﴾﴾[ته ووايه چه ماته] دالله تعالى دطرف نه [حکم شوې دې چه زۀ دالله تعالى داسې عبادت وکړم چه عبادت د هغه دپاره خالص کړم] يعنى دشرک شائبه په کښې نه وی ﴿وَ اُمِرۡتُ لِاَنۡ اَکُوۡنَ اَوَّلَ الۡمُسۡلِمِیۡنَ ﴿۱۲﴾﴾[اوماته] داهم [حکم شوې دې چه ددې امت په خلقو کښې [په ټولو مسلمانانو کښې اول] اسلام لره حق منونکې [زۀ شم] او ظاهره ده چه داحکامو په قبلولو کښې دنبى اول والې ضروری دې او﴿قُلۡ اِنِّیۡۤ اَخَافُ اِنۡ عَصَیۡتُ رَبِّیۡ عَذَابَ یَوۡمٍ عَظِیۡمٍ ﴿۱۳﴾﴾[ته] ﷺ داهم [اوويه چه که] به فرض محال [زۀ دخپل رب خبره ونه منم نو زۀ ديوې لويې ورځې] يعنى قيامت [د عذاب ويره لرم ﴿قُلِ اللّٰهَ اَعۡبُدُ مُخۡلِصًا لَّهٗ دِیۡنِیۡ ﴿۱۴﴾﴾ اوته] ﷺ داهم] ووايه چه] ماته دکومې خبرې حکم شوې دې زۀ خو په هغې کار بنديم چنانچه [زۀ خو دالله تعالى عبادت داسې کوم چه عبادت لره دهغه دپاره خالص کوم] چه په هغې کښې دشرک يوه ذره شائبه نشته [نو] ددې تقاضا خو داده چه تاسو هم داسې خالص عبادت وکړئ ليکن که تاسو نه منئ نو تاسو پوه شئ او ﴿فَاعۡبُدُوۡا مَا شِئۡتُمۡ مِّنۡ دُوۡنِهٖ ؕ﴾[د الله تعالى نه سوا چه ستاسو زړۀ څه شى] عبادت [لره غواړی دهغې عبادت کوئ] دقيامت په ورځ به ددې مزه وڅکئ او﴿قُلۡ اِنَّ الۡخٰسِرِیۡنَ الَّذِیۡنَ خَسِرُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ وَ اَهۡلِیۡهِمۡ یَوۡمَ الۡقِیٰمَةِ ؕ﴾ [ته ﷺ دوی ته] داهم [ووايه چه پوره زيان کاران هغه خلق دی کوم چه په خپلو ځانونو سره او د خپلو متعلقينو سره دقيامت په ورځ په خساره کښې پريوځی] يعنى نه دخپل ځان نه دوی ته څه فائده اورسيده اونه د خپلو متعلقينونه ځکه چه هغه متعلقين هم که ددوی په شان ګمراه وو نو هغوی به هم په عذاب کښې ګرفتار وی نوروته به څه فائده ورسوی اوکه هغه مؤمن مخلص وی او جنت ته لاړشی نو هغه هم کافرانو ته په سفارش کولو باند څه نفع نه شی رسولې ﴿اَلَا ذٰلِکَ هُوَ الۡخُسۡرَانُ الۡمُبِیۡنُ ﴿۱۵﴾﴾ [يادساتئ چه داده ښکاره خساره ﴿لَهُمۡ مِّنۡ فَوۡقِهِمۡ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَ مِنۡ تَحۡتِهِمۡ ظُلَلٌ ؕ﴾چه د هغوی دپاره به دهغوی دپاسه هم داور شغلې وی او د هغوی د لاند نه به هم د اور شغلې وی ﴿ذٰلِکَ یُخَوِّفُ اللّٰهُ بِهٖ عِبَادَهٗ ؕ﴾ دا هغه] عذاب [دې په کوم سره چه الله تعالى خپلو بندګانو لره ويروی] او

ددې نه دېچ کیدو تدبیرونه ورته ښائي کوم چه په حق دین عمل کوي پس ﴿یٰعِبَادِ فَاتَّقُوْنِ﴾ [اے زما بندګانو زمانه] یعني زما دعذاب نه [وویریږئ] داحال خو دکفارو مشرکانو شو ﴿وَالَّذِیْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ اَنْ یَّعْبُدُوْهَا﴾ [اوکوم خلق چه [دشیطان دعبادت نه ځان ساتي] دشیطان دعبادت نه مراد دهغه اطاعت دې [او] همه تن ﴿وَاَنَابُوْا اِلَی اللّٰهِ لَهُمُ الْبُشْرٰی﴾ [دالله تعالی طرف ته متوجه کیږي هغه مستحق د خوشخبرئ اوروړلو دي ﴿فَبَشِّرْ عِبَادِ﴾ پس ته زما هغه بندګانو ته خوشخبري واوړ وه کوم چه] په دې صفت سره هم موصوف دي چه ﴿الَّذِیْنَ یَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ﴾ [دې کلام] د خدائ [ته غوږ اږدي اوري ﴿فَیَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ﴾ بیا ددې په ښو خبرو] او دالله تعالی احکام ټول ښه دي لکه چه وړاند په ایت احسن الحدیث کښې راځي [چلیږي ﴿اُولٰٓئِکَ الَّذِیْنَ هَدٰىهُمُ اللّٰهُ﴾ دادي کومو ته چه الله تعالی هدایت کړې دې ﴿وَاُولٰٓئِکَ هُمْ اُولُوا الْاَلْبَابِ﴾ او دادي کوم چه دعقل خاوندان دي] پس دې خلقو ته خوشخبري ورکړه دکوم شي چه خوشخبري ورکولې شي د هغې بیان خو به وړاند راشي په ایت [لکن الذین اتقوا] کښې په مینځ کښې نبي کریم ﷺ ته دتسلي ورکولو دپاره دابیان شوې دې چه ددې کافرانو نه مؤمنان جوړول ستا داختیارنه بهر دي په دې وجه په دې څه غم مه کوه چه ﴿اَفَمَنْ حَقَّ عَلَیْهِ کَلِمَةُ الْعَذَابِ﴾ [ایا په کوم سړي چه دعذاب] ازلي تقدیري [خبره ثابته شوه ﴿اَفَاَنْتَ تُنْقِذُ مَنْ فِی النَّارِ﴾ نو ایاته داسې سړي لره کوم چه] په علم ازلي کښې [په دوزخ کښې دې] دجهنم نه [خلاصولې شې؟] یعني کوم سړې چه دوزخ ته تلونکې دې هغه په کوشش سره هم دګمراهئ نه واپس کیدې نه شي په دې وجه په دوی افسوس او غم بې کاره دې ﴿لٰکِنِ الَّذِیْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ﴾ [لیکن کوم خلق چه] داسې دي چه دهغوی په حق کښې د عذاب کلمه نه ده ثابته شوې او په دې وجه هغوی تانه احکام واوري [دخپل رب نه ویریږي ﴿لَهُمْ غُرَفٌ مِّنْ فَوْقِهَا غُرَفٌ مَّبْنِیَّةٌ﴾ دهغوی دپاره] د جنت [بالاخانې دي چه دپاسه نه پرې نورې بالاخانې دي کومې چه به تیارې جوړې شوې وي] او ﴿تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ﴾ [ددغو نه لاندې به نهرونه چلیږي ﴿وَعْدَ اللّٰهِ﴾ دا الله تعالی وعده کړې ده] او ﴿لَا یُخْلِفُ اللّٰهُ الْمِیْعَادَ﴾ [الله تعالی وعده خلافي نه کوي] دامضمون د هغه خوشخبرئ دې چه تاته ئې حکم شوې دې [فبشرعباد]

## معارف او مسائل

﴿فَبَشِّرْ عِبَادِ الَّذِیْنَ یَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَیَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ اُولٰٓئِکَ الَّذِیْنَ هَدٰىهُمُ اللّٰهُ وَاُولٰٓئِکَ هُمْ اُولُوا الْاَلْبَابِ﴾

ددې آیت مبارک په تفسیر کښې د مفسرینو حضراتو ګڼ قولونه منقول دي. یو قول هغه دې چې ابن کثیر اخستې دې او دلته د تفسیر په خلاصه کښې هم دغه قول غوره کړې شوې دې. هغه قول دادې چې دلته د قول نه مراد د الله ﷻ کلام قرآن پاک یا قرآن سره د تعلیماتو د نبي کریم ﷺ دې، چې هغه سراسر احسن دې ځکه په ظاهره د مقام تقاضا دا وه چې: ﴿یَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَیَتَّبِعُوْنَهٗ﴾ فرمائیلې وې خو ددې په ځائې: ﴿فَیَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ﴾ فرمائیلو سره ئې دې ته اشاره اوکړه چې دا کارئې د بیوقوفانو پشان نه دې کړې چې بس څه خبره ئې واوریده او عمل ئې پرې بې تحقیقه او بې بصیرتئ سره اوکړو بلکه دې خلقو دالله ﷻ اود نبي کریم ﷺ کلام حق او احسن اولیدو ځکه ئې په بصیرت سره دهغې تابعداري اوکړه او هم دا وجه وه چې په آخر د آیت کښې دې خلقوته ﴿اُولُوا الْاَلْبَابِ﴾ یعني د عقل خاوندان اوفرمائیلې شو، ددې مثال قرآن پاک کښې بل ځائې کښې دې چې الله ﷻ موسی علیه السلام ته د تورات په باره کښې فرمائیلي دي:

Scanned with Ca

﴿فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَأْمُرْ قَوْمَكَ يَأْخُذُوا بِأَحْسَنِهَا﴾(۱) دلته هم داحسن نه مراد پوره تورات او ددې احکام دی. داشان په دې آيتونو کښې د قول د استماع نه مراد قرآن استماع يعنې آوريدل دی او اتباع د احسن نه مراد اتباع د پوره قرآن پاک ده ، چې په ورپسې آيت کښې ورته احسن الحديث اوفرمائيلې شو او هم په دې تفسير کښې چې قول نه مراد خاص قرآن واخستې شی . ځينې حضراتو دا اوفرمائيل چې په قرآن پاک کښې هم په ډيرو احکامو کښې د حسن او احسن درجې ايخودې شوې دی. لکه بدله اخستل او عفو دواړه جائز دی . مګر عفو احسن او افضله ده لکه فرمائی چې ﴿وَأَنْ تَصْبِرُوا خَيْرٌ لَكُمْ﴾(۲) او ډير ځيزونه چې په هغه کښې قرآن کريم انسان ته اختيار ورکړې دې چې په دواړو کښې کوم يو ا وکړې څه ګناه نشته مګر په هغه کښې يو ته احسن او افضل هم فرمائيلې دی لکه : ﴿وَأَنْ تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ﴾(۳) کښې دې داسې ډيرو ځيزونو کښې رخصت ورکړې شوې دې ليکن په عزيمت باندې ئې عمل ته احسن او افضل اوفرمائيل نو مراد د آيت نه دا شو چې دا خلق د قرآن د رخصت حکمونه هم آوری او د عزيمت هم ، خو د رخصت په ځائې د عزيمت تابعداری کو ی ، اوپه کومو دوؤ ځيزونو کښې چې يو حسن او بل احسن وی نو په هغې کښې عمل کولو د پاره احسن اختيار وی .

او ډيرو مفسرينو حضراتو دلته دقول نه مراد د عامو خلقو اقوال مراد اخستی دی چې په هغې کښې توحيد ، شرک ، کفر ،اسلام ، حق او باطل ، بيا په حق کښې حسن او احسن او راجح او مرجوح ټول داخل دی . نو بنا په دې تفسير د آيت مطلب دا شو چې دا خلق خو خبرې د ټولو آؤری د کافرانو هم او د مؤمنانو هم اوباطل هم ،ښې هم او خرابې هم ، خو تابعداری يواځې د هغې خبرې کوی چې احسن وی ،توحيد او شرک کښې د توحيد او په حق او باطل کښې دحق اوکله چې د حق مختلفې درجې وی نو په هغې کښې د احسن او غوره تابعداری کوی ، ځکه دا په دوؤ صفتونو سره موصوف کړې شو ، رومبې په ﴿هَدَاهُمُ اللَّهُ﴾ يعنې چې دا خلق د الله ﷻ دطرفنه په هدايت باندې دی ، ځکه په مختلفو خبرو آوريدو سره متزلزل کيږی نه ، اوبل په : ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمْ أُولُو الْأَلْبَابِ﴾ يعنې دا د عقل خاوندان دی، سره ځکه چې د عقل کار هم دادې چې د ښه او خراب او دحق او باطل ترمينځه بيلتون کوی او حسن او احسن پيژنی او په هغې کښې احسن اختيار وی .

ځکه وئيلې شوی دی چې دا آيت مبارک د زيد بن عمرو بن نفيل او ابی ذر غفاری او سلمان فارسی رضی الله عنه په باره کښې نازل شو. چې زيدبن عمرو بن نفيل رضی الله عنه به دجاهليت په زمانه کښې دشرک او بت پرستئ نه نفرت کولو ، ابی ذر غفاری رضی الله عنه او سلمان فارسی رضی الله عنه بهٔ دمختلفو اهل مذهبو مشرکانو بيا د يهودو نصرانيانو خبرې آوريدې او دهغوئ طور طريقې به ئې ليدلې او بيا ئې هم ايمان راؤړو ، په دې شان ئې د قرآن پاک تعليمات د ټولو نه زيات ښه بيا مونډل او هغې ته ئې تر جيح ورکړه [قرطبی](۴).

---

(۱) ترجمه: او ته دا په کوشش سره په عمل کښې راوله.
(۲) ترجمه: او ستاسو صبر کول ډير بهتر دی۔
(۳) ترجمه: او ستاسو معاف کول تقوی ته ډير نزدی دی۔
(۴) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۲٤٤

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ

| آیا نه گورې ته | چې بیشکه الله | نازلې کړې | د آسمان نه |

| آیا تا ته دې خبرې ته نه دې کتلي | چې الله ﷻ پورته نه

مَاءً فَسَلَكَهُ يَنَابِيعَ فِي الْأَرْضِ ثُمَّ يُخْرِجُ بِهِ

اوبه | پس ننه یستلې ئې دا اوبه | په چینو کښې | په زمکه کښې | بیا | رااوباسي | په دې سره |

اوبه نازلې کړې | بیا ئې د زمکې دپاسه په لارو کښې اوبیولې | بیا ترې نه فصلونه پیدا

زَرْعًا مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا

فصلونه | چې مختلف وي | رنګونه دهغې | بیا | وچ شي | پس ته وینې هغه | زیړ |

کوي | چې د هغې رنګونه مختلف وي | .....بیا هغه اوچ شي | نو ته ئې تک زیړ وینې

ثُمَّ يَجْعَلُهُ حُطَامًا ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ

بیا جوړوي هغه | ذره ذره مات شوی | بیشکه په دې کښې | خامخا نصیحت دې |

بیا ئې ټکرې ټکرې کړي | ........................په دې کښې یقیناً د عقل مندو دپاره نصیحت

لِأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿٢١﴾ أَفَمَنْ شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ فَهُوَ

دپاره دعقلمندو خلقو | آیا اوس هغه سړې | چې پرانستله الله | سینه دهغه | دپاره داسلام | او هغه |

پروت دې | ...............آیا الله ﷻ چې دچا سینه اسلام ته پرانستې ده | نو هغه د خپل رب د طرفه

عَلَىٰ نُورٍ مِنْ رَبِّهِ ۚ فَوَيْلٌ لِلْقَاسِيَةِ

روان دې په نور باندې | دطرفه درب خپل نه | پس تباهي ده | دپاره دهغو چې سخت شو |

په رڼا کښې روان دې [هغه اوگمراهان برابر کیدیشي؟] | نو د هغه خلقو دپاره هلاکت دې | د کومو

قُلُوبُهُمْ مِنْ ذِكْرِ اللَّهِ ۚ أُولَٰئِكَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ﴿٢٢﴾

زړونه دهغوئ | په ذکر [نصیحت] دالله سره | دا کسان | په گمراهئ ښکاره کښې پراته دي |

زړونه چې دالله ﷻ دیاد نه اثر نه اخلي | .........دغه خلق په ښکاره گمراهئ کښې پراته دي

اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتَابًا مُتَشَابِهًا

الله نازل کړې دې | دټولونه بهتر کلام | داسې کتاب | چه ټولې حصې ئې یو شان دی |

الله ﷻ ډیر ښکلې کتاب نازل کړې دې | داسې کتاب چې مضامین ئې یو بل سره

مَثَانِيَ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ

بار بار ذکر شوي دي | چې زړیږي | [داوریدو] ددې نه | خرمنې | دهغه کسانو | چې یریږي |

سم برابر دي | بیا بیا لوستلې شي | ........کوم کسان چې دخپل رب نه ویریږي نو د هغوی

رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ ۚ

درب خپل نه | بیا نرمې شي | خرمنې دهغوئ | او زړونه دهغوئ | یادولو دالله ته |

زړونه ترې ریږدي | نوبیا د هغوئ وجودونه او زړونه دالله ﷻ یاد ته متوجه شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ | يَهۡدِيۡ | بِهٖ | مَنۡ | يَّشَآءُ ؕ |
| دا هدایت دې د الله | لار ښائي | په دې سره | هغه چاته | چې غواړي ئې هغه |
| دا د الله ﷻ هدایت دې \| او د چا په حق کښې چې او غواړي نو ددې په ذریعه ورته هدایت کوي | | | | |
| وَمَنۡ يُّضۡلِلِ اللّٰهُ | فَمَا لَهٗ | مِنۡ | هَادٍ ۝ | |
| او هغه څوک چې بې لارې ئې کړي الله | پس نشته | هغه لره | څوک لار ښوودونکې | |
| او الله چې څوک بې لارې کړي \| نو هغه ته هیڅوک لار خودونکې نشته | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

آیا تاسو نه ګورئ، چه الله تعالیٰ د آسمان نه اوبه راوروي، بیا چلوي دهغې نه چینې په زمکه کښې بیا زرغونوي دهغې اوبو نه داسې فصل، چه دهغې رنګونه مختلف وي، بیا هغه فصل اوچ شي، نو ته وینې هغې لره زیړ شوې بیا هغې لره چوره چوره کرځوي، یقیناً په دې خبرو کښې دهغې خلقو دپاره لوئې سبق دې، چه عقل لري آیا هغه سړې چه دهغه سینه الله تعالیٰ د اسلام دپاره کهولاؤ کړې ده، چه دهغې په نتیجه کښې هغه ته دخپل پروردګار د طرف نه رڼړا راغلې ده، (د بد بختو خلقو برابر کیدې شي؟) او! بربادي د هغې خلقو دپاره ده، چه د کومو خلقو زړونه چه د الله تعالیٰ د ذکر نه سخت شوې دي، دا خلق په ښکاره ګمراهئ کښې پراته دي. الله تعالیٰ بهترین کلام نازل کړې دې یو داسې کتاب چه دهغې مضامین یو بل سره یو شان دي، چه دهغې خبرې بیا بیا بیانیږي، هغه کسان چه ویریږي د خپل پروردګار نه، د هغوي څرمنې رپیږي د دې نه، بیا د هغوي بدنونه او دهغوي زړونه نرم شي، او د الله تعالیٰ یاد طرف ته متوجه کیږي. دا هدایت د الله تعالیٰ دې، هدایت کوي په دې سره هغه چاته چه اوغواړي او کوم خلق چه الله تعالیٰ بې لارې کړي، نشته دې هغه لره څوک په لاره کونکې.

## خلاصه تفسیر

اے مخاطب ﴿اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً﴾ [ایاتا په دې] خبره [نظر نه دې کړې چه الله تعالیٰ داسمان نه اوبه وورولې ﴿فَسَلَكَهٗ يَنَابِيۡعَ فِي الۡاَرۡضِ﴾ بیا دې لره دمزکې په رګونو کښې] یعنې په هغو تکړو کښې دکومو نه چه اوبه راخوتکیږي دکوهو [څاهانو] او چینو په ذریعه راوځي [داخلوي بیا] چه هرکله هغه راوخوتکیږي نو ﴿ثُمَّ يُخۡرِجُ بِهٖ زَرۡعًا مُّخۡتَلِفًا اَلۡوَانُهٗ﴾ [ددې په ذریعه سره فصلونه پیداکوي دکومو چه مختلف قسمونه دي ﴿ثُمَّ يَهِيۡجُ فَتَرٰىهُ مُصۡفَرًّا﴾ بیا هغه فصلونه بالکل وچ شي پس هغې لره ته زیړ وینې ﴿ثُمَّ يَجۡعَلُهٗ حُطَامًا ؕ﴾ بیا] الله تعالیٰ هغه [چوره چوره کوي ﴿اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ لَذِكۡرٰى لِاُولِي الۡاَلۡبَابِ ۝﴾ بیشکه په دې نمونه [کښې دعاقلانو دپاره لوئ عبرت دې] چه داحالت بعینه دانسان د دنیوي ژوند دې چه اخرفنا کیدونکې او دفنا کیدونکی دي په دې کښې مشغولیدل دابدي راحت نه محروم پاتې کیدل او ابدي مصیبت په سر اخستل ډیر حماقت دې اګر چه زمونږ بیان نهایت بلیغ دې مګر بیاهم تول اوریدونکې دیوبل سره په تفاوت دي ﴿اَفَمَنۡ شَرَحَ اللّٰهُ صَدۡرَهٗ لِلۡاِسۡلَامِ﴾ [پس د کوم سړي سینه چه الله تعالیٰ داسلام] قبلولو [دپاره پرانیزي] یعنې داسلام په حقوالي دده یقین راغې ﴿فَهُوَ عَلٰى نُوۡرٍ مِّنۡ رَّبِّهٖ ؕ﴾ [نو هغه دخپل پروردګار په] ورکړي [نور] یعنې دهدایت په مقتضٰ [باندې] چلیدونکې [دې] یعنې یقین ئې راغلې ؛

Scanned with Ca

هغې موافق عمل ئې وکړو ایا هغه سړې او سخت دله سړې برابردی دکوم ذکر چه وړاند راغې ﴿فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُم مِّن ذِكْرِ اللَّهِ﴾ [پس دکومو خلقو زړه چه دالله تعالی د ذکر نه] په دې کښې احکام او مواعیدتول راغلل [نه متاثره کیږي] یعنې ایمان نه راوړی [د هغوی دپاره] په قیامت کښې [لویه خرابی ده] او په دنیاکښې ﴿أُولَٰئِكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾ [داخلق په ښکاره گمراهۍ کښې] گرفتار [دی] وړاند ددې نور او ذکر بیان دې یعنی ﴿اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتَابًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ﴾ [الله تعالی ډیرعمده کلام] یعنی قرآن [نازل کړې دې کوم چه داسې کتاب دې چه] په اعتبار داعجاز نظم او صحت معانی [دیوبل په شان دې] او په کوم کښې چه دپوهولو دپاره څنې ډیرې ضروری خبرې [باربار دوباره شوی دی] لکه چه داقول دالله تعالی دې [ولقدصرفنا الخ] چه په دې کښې سره دتاکید دفائدې او دمخاطب دمدعا د رسوخ په زړه کښې هرځائې دخاص خاص لطائفو هم لحاظ ساتلې شوې دې په دې سره دا خالي تکرار نه دې پاتې شوې او باربار دوباره کول ئې دلیل دې په هدایت دمشتمل کیدو ﴿تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ﴾ [چه په دې سره د هغو خلقو کوم چه دخپل رب نه ویریږی په بدن غونې زیګیږی] داکنایه ده د ویرې نه اګر چه په زړه کښې پاتې شی په بدن ئې اثر ونه شی او اګرچه هغه ویره عقلی او ایمانی وی طبعی او حالی نه وی ﴿ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ [بیاددوی بدن او زړه نرم شی دالله تعالی ذکر] یعنی په کتاب الله باند عمل کولو [طرف ته متوجه شی] یعنی اوویریږ ی او داندامونو او دزړه عملونه په انقیاد او توجه سره په ځائې راوړی ﴿ذَٰلِكَ هُدَى اللَّهِ يَهْدِي بِهِ مَن يَشَاءُ﴾ او [دا قران [دالله تعالی هدایت دې چاته چه هغه غواړی په دې سره ورته هدایت کوی] لکه دویریدونکې حال چه اوس واوړولې شو ﴿وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ﴾ [او خدائې چه چالره ګمراه کوی د هغه هیڅوك هدایت کوونکې نشته] لکه چه دسختو زړونو کافرانو حال اوس واوړولې شو

## معارف او مسائل

﴿فَسَلَكَهُ يَنَابِيعَ فِي الْأَرْضِ﴾ ینابیع د ینبوع جمع ده ، معنی ئې هغه چینې دی چې زمکې نه راخوتکیږی . مطلب ئې دادې چې د آسمان نه اوبۀ نازلول یو عظیم الشان نعمت دې . که په زمکه ددې د محفوظ کولو انتظام نه شو کیدلې نو انسان بۀ ترې صرف د باران په وخت یا وریسې راتلونکې څو ورځې فائده پورته کولې شوه سره ددې چې په اوبو باندې د انسان ژوند اړه لری چې هیڅ وخت ترې بې حاجته نشی پاتې کیدې څکه الله تعالی د نازلو سره سره ئې د محفوظ کولوئې عجیبه عجیبه انتظامونه او نه فرمائیل څه خو ئې دزمکې په تالاؤنو او حوضونو کښې را آیسار کړې ، لویه ذخیره ئې د غرونو په سرونو د واؤرو په شکل کښې جوړه کړه چې سخا کیدو او خرابیدو نه هم پاتې شی ، دغه واؤره په کراره کراره ویلی کیږی د غرونو د رګونو په ذریعه په زمکه کښې ورښکته کیږی . او ځائې په ځائې پخپله د چینو په شکل کښې راخوتکیږی . اود لختو او ولو په شکل کښې په زمکه بهیږی . ددغې اوبو څه برخه زمکه کښې ډیره ورښکته شی چې د کوهو [څاهانو] کنستو په ذریعه ترې خلق حاصلوی دقدرت د اوبه خور دا عجیبه نظام په پوره تفصیل سره دسورة مؤمن د آیت ﴿فَأَسْكَنَّاهُ فِي الْأَرْضِ﴾

﴿وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابٍ بِهِ لَقَادِرُونَ﴾ (۱) لاندې بيان کړې شوېدې.

﴿مُّخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ﴾ د فصل دراټوکيدو او پخيدو په وخت پرې مختلف رنګونه راځي او چونکه په دغې رنګونو کښې بدلون او نوې والې دې ځکه ﴿مُّخْتَلِفًا﴾ په ترکيب نحوی کښې حال جوړ کړې شو . او منصوب اوکرځولې شو چې په نوی والی دلالت کوی .

﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِأُولِي الْأَلْبَابِ﴾ يعنی په دې اوبو راکوزولو ددې په محفوظ کولو اود انسان په کار راوستو کښې ئې په دې سره قسما قسم زرغني کولو او ونو راټوکولو په دغې ونو بوټو باندې د مختلفو رنګونو وغيره راتلونه پس په آخر کښې ددې په زيړيدو او چيدو ، دغلې اوبوس وغيره په بيل بيل کيدو کښې ئې عقلمندو دپاره لوئې نصيحت دې ، ولې چې دا دالله ﷻ د عظيم الشان قدرت اوحکمت دليلونه دی چې ددې په ليدو سره انسان دخپلو پيداکيدو دمعاملې حقيقت پيژنی او ددې په ذريعه بيا خپل خالق او مالک پيژندې شی .

﴿أَفَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ فَهُوَ عَلَىٰ نُورٍ مِّن رَّبِّهِ﴾ د شرح لفظی معنی پرانستل ، خوزول او فراخه کول ده . د شرح صدر معنی د زړه فراخ کيدل ده ، مطلب ئې دادې چې په زړه کښې ئې ددې استعداد موجود شی چې هغه د الله ﷻ تکوينی نښو ، آسمان زمکه او پخپله خپل پيدائش وغيره کښې په غور کولوسره عبرت او فائدې حاصلې کړې ، دغسې د الله ﷻ دهغې نښو نه هم فائده اخلې کومې چې د کتاب الله او احکامو په صورت کښې نازلولې شی ، ددې په مقابله کښې د زړه تنګوالې او سختوالئ دې دقرآن پاک بل آيت ﴿يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا﴾ (۲) اودلته په وروسته آيت کښې ﴿فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُم﴾ دشرح صدر په مقابله کښې راوړې شوې دې .

د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چې کله رسول الله ﷺ دا آيت مبارک: ﴿أَفَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ﴾ تلاوت کړو نو مونږ ترې دشرح صدر مطلب باره کښې تپوس اوکړو . نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې کله د ايمان نور د انسان په زړه کښې داخل شی نو د هغه زړه فراخه شی په احکامو باندې پوهيدل او په هغې باندې عمل کول ده دپاره آسان شی ، مونږ عرض اوکړو چې يارسول الله ﷺ ! ددې شرح صدر نخښه څه ده ؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ::

الانابة الى دار الخلود والتجافی عن دار الغرور والتاهب للموت قبل نزوله

يعنی د هميشوالی کورته رغبت او ميلان لرل او د غوليدو د کور يعنی دنيا او لذتونو او زينتونو نه لرې پاتې کيدل د مرګ د راتلو نه وړاندې ددې تياری کول [روح المعانی] (۳).

دا آيت مبارک دحرف استفهام افمن نه شروع کړې شو او ددې مطلب دادې چې آيا داسې کس چې زړه ئې داسلام دپاره پرانستې شوې وی . او هغه د خپل رب د اړخه په راغلی نور باندې وی يعنی دهغې په رڼړا کښې ټول کارونه کوی او هغه خلق چې زړه تنګی او سخت زړه والا دی برابر کيديشی ؟ ددې په مقابله کښې د سخت زړو بيان په وروستې آيت مبارک کښې دويل په عذاب سره کړې شوې دې .

﴿فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُم﴾ قاسية د قساوت نه مشتق دې ، معنی ئې د سخت زړه خاوند کيدل دی ،

---

۱ ) ترجمه: او مونږ دهغې په ختمولو باندې قادر يو

۲ ) ترجمه: او دهغه سينه ډيره تنګه کړو.

۳ ) روح المعانی: ج ۱۷، ص ۴۵۲، والمستدرک للحاکم، رقم الحديث: ۷۸۶۳، ومصنف ابن ابی شيبة: ج ۸، ص ۱۲۶

Scanned with Ca

چې په چاني رحم نه راځي . او د الله ﷻ او د هغه داحکامو نه څه اثر نه قبلوي .

﴿اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحۡسَنَ الۡحَدِيۡثِ كِتٰبًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ﴾ د دې نه مخکښې آيت کښې د الله ﷻ د قبول کړو شوؤ داحال بيان کړې شوې وو چې : ﴿يَسۡتَمِعُوۡنَ الۡقَوۡلَ فَيَتَّبِعُوۡنَ اَحۡسَنَهٗ﴾ په دې کښې دا خودلې شوې دي چې ټول قرآن پاک احسن الحديث دې ، د حديث لفظي معنی هغه کلام يا قيصه ده چې بيانولې شي ، قرآن کريم ته د احسن الحديث فرمائيلو حاصل دادې چې د انسان په ټولو وينا گانو او خبرو کښې احسن الکلام يواځې قرآن کريم دې ، ورپسې آيت مبارک کښې د قرآن کريم څو صفتونه بيان شوي دي :

① كِتٰبًا مُّتَشَابِهًا : دلته دمتشابها معنی يو شان ده . يعنې دقرآن پاک مضمونونه يوبل سره ترلي اويوشان دي چې د يو آيت تشريح او تصديق بل آيت مبارک سره کيږي . دې کلام کښې بې سمونې او مقابله نشته دې .

② دويم صفت ئې دمثاني دې چې د مثنی جمع ده ، ددې معنی مکرر يعنې دوباره ده ، مطلب ئې دادې چې د قرآن پاک يومضمون په ذهن کښې کيښنولو دپاره بيا بيا دوباره کولې شي .

③ دريم صفت ئې د ﴿تَقۡشَعِرُّ مِنۡهُ جُلُوۡدُ الَّذِيۡنَ يَخۡشَوۡنَ رَبَّهُمۡ﴾ يعنې د الله ﷻ د لويئ نه په متاثره کيدو سره د ويريدونکو په قرآن پاک لوستلو سره د ويرې او هيبت داحالت کيږي چې په بدن باندې ئې ويښته نيغ نيغ اودريږي .

څلورم صفت دادې : ﴿ثُمَّ تَلِيۡنُ جُلُوۡدُهُمۡ وَقُلُوۡبُهُمۡ اِلٰی ذِكۡرِ اللّٰهِ﴾ يعنې د قرآن پاک د تلاوت کله دا اثر کيږي چې د عذاب د وعيد په آوريدو سره دبدن ويښته ئې نيغ نيغ اودريږي . اوکله د رحمت او مغفرت آيتونو آوريدو سره داحال کيږي چې بدن اوزړه دواړه ئې دالله ﷻ په ياد کښې نرم شي . اسماء بنت ابی بکر ﷞ فرمائي چې دصحابه کرامو ﷡ عام حال دا وو چې کله به د دوئ وړاندې قرآن کريم لوستلې شو نو په سترگو کښې به ئې اوښکې راغلې او په بدن به ئې ويښته نيغ اودريدل [قرطبي] ([1]).

عبدالله بن عباس ﷠ د روايت مطابق نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې دکوم بنده په بدن چې دالله ﷻ د ويرې نه ويښته نيغ اودريږي نو الله ﷻ د هغه بدن په اور حرام کړي [قرطبي] ([2]).

| اَفَمَنۡ | يَّتَّقِيۡ | بِوَجۡهِهٖ | سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ | يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ | وَقِيۡلَ |
|---|---|---|---|---|---|
| آيا پس هغه څوک چې بچ کوي خان | | په مخ خپل سره | دسخت عذاب نه | په ورځ دقيامت | اواوبه وئيلې شي |

آيا څوک چې دقيامت په ورځ دخپل مخ په ذريعه خان دسخت عذاب نه بچ کوي | او داسې ظالمانو ته

| لِلظّٰلِمِيۡنَ | ذُوۡقُوۡا | مَا | كُنۡتُمۡ | تَكۡسِبُوۡنَ ﴿۲۴﴾ | كَذَّبَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ظالمانو ته | اوڅکئ مزه | دهغه عمل | چې وئ تاسو | چې کولو به مو | دروغ گنړلي وو |

به حکم اوشي | چې دخپل عمل سزا اوڅکئ | ............د دوی نه وړاندې

[1] ) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۲۴۹

[2] ) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۲۵۰، ددی مضمون والا حديث اوگورئ: شعب الإيمان للبيهقي، رقم الحديث: ۸۱۶، وكنزالعمال، رقم الحديث: ۷۹۷

Scanned with Ca

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَاَتٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ

هغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وو | پس راغې هغوئ ته عذاب | دداسې طرفنه |

هم خلقو [پيغمبران] دروغژن ګڼړلي وو | نو د هغه طرفه ورته ناګهاني عذاب راغلو | چې د هغوئ

لَا يَشْعُرُوْنَ ۝ فَاَذَاقَهُمُ اللّٰهُ الْخِزْيَ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ

چې نه راتلو په خيال دهغوئ کښې | پس ورا وڅکوله هغوئ ته الله | شرمندګی | په ژوند ددنيا کښې

برې ګمان هم نه وو | ..................نو الله تعالى په باندې ددې دنيا په ژوند کښې دذلت مزه اوڅکوله

وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ۝

او خامخا عذاب دآخرت | زيات سخت دې | کاش چې وې دوئ | چې پوهيدلې |

او دآخرت عذاب خو ډير لوئې دې | ..................کاش که دوئ پوهيدلې

وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ لَّعَلَّهُمْ

او بيشکه بيان کړي دي مونږه | دپاره دخلقو | په دې قرآن کښې | هر قسم مثالونه | دپاره ددې چې دوئ

او مونږ په دې قرآن کښې خلقو ته هر قسم ښه ښه مضمونونه بيان کړي دي | ............ د دې دپاره چې

يَتَذَكَّرُوْنَ ۝ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِيْ عِوَجٍ

نصيحت قبول کړي | داسې قرآن | چې په عربئ ژبه کښې دې | چې نه دې خاوند دکوږ والې |

نصيحت تري واخلي | دا عربي قران دې | چې د ذرې هومره کږليچ په کښې نشته دې

لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ۝

دپاره ددې چې دوئ | خان اوساتي دخراب انجام نه | |

دې دپاره نازل شوې دې چې دوئ پرهيزګار جوړ شي |

## آسان ترجمه قرآن

آيا (دهغه سړي به څه بد حال وي) چه د قيامت په ورځ په خپل مخ سره بدترين عذاب منع کول غواړي؟ او ظالمانو ته به اووئيلې شي، چه اوڅکئ عذاب دهغې عملونو چه تاسو به کول. کوم خلق چه ددوی نه مخکښې وو، هغوی هم خپلو پيغمبرانو ته دروغژن وئيلي وو دهغې په نتيجه کښې هغوی باندې د داسې ځائې نه عذاب راغلو چه هغې طرف د هغوی ګمان هم نشو تللې پس الله تعالى دوی ته اوڅکوو د رسوايئ عذاب په دې ژوند د دنيا کښې. او د آخرت عذاب خو نور هم لوئې دې. کاش چه دوی پوهيدلې. حقيقت دادې، چه مونږ په دې قرآن مجيد کښې د خلقو دپاره هر قسم مثالونه بيان کړې دی دې دپاره چه خلق سبق حاصل کړی. دا عربي قرآن دې چه په دې کښې هيڅ کوږ والې نشته. دې دپاره چه خلق تقوٰی اختيار کړی.

### خلاصه تفسير

﴿اَفَمَنْ يَّتَّقِيْ بِوَجْهِهٖ سُوْٓءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ﴾ [ايا کوم سړې چه خپل مخ لره دقيامت د ورځې سخت عذاب ته ډال کوی ﴿وَقِيْلَ لِلظّٰلِمِيْنَ ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ۝﴾ او داسې ظالمانو ته به حکم وشی چه

Scanned with Ca

تاسو څه کول] اوس [دهغې مزه وڅکئ نو ایادا] گرفتار په عذاب کښې [اوکوم چه داسې نه وی برابریدې شی؟] او کفارچه داعذابونه واوری انکار دنه کوی څکه چه ﴿كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ [کوم خلق ددوی نه وړاند تیرشوی دی هغوی هم] حق لره [دروغژن کړې وو ﴿فَأَتٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ﴾ پس په دوی عذاب په داسې طور راغې چه ددوی خیال هم نه وو ﴿فَأَذَاقَهُمُ اللّٰهُ الْخِزْيَ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ پس الله تعالی دوی ته په دې دنیوی ژوند کښې هم د رسوایۍ مزه وڅکوله] چه په مزکه کښې دننوتو او دمخ وړانیدو او داسمان نه دګټو دوریدو په عذاب سره په دنیا کښې بدنام شول ﴿وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ﴾ [او داخرت عذاب نور هم لوئ دې ﴿لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ﴾ کاش داخلق پوهیدې] بره په یو ایت [افمن شرح الله صدره] کښې دابیان شوې وو چه قرآن واوری نو څنې خلق متاثره کیږی څنې نه وړاند په ایت کښې دابیان دې چه دځنوخلقو ددې نه نه متاثره کیدل د هغوی دخپل قابلیت او صلاحیت دکمئ په وجه سره دی ورنه قرآن فی نفسه دټولو دپاره برابر اثر لری چه نچوړئ دادې چه دا تفاوت د قابلیت په اعتبارسره دې په فاعل کښې څه کمی او نقص نشته ﴿وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ﴾ [او مونږ دخلقو د] هدایت د [پاره په دې قرآن کښې هرقسم] ضروری [عمده مضامین بیان کړی دی ﴿لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ﴾ چه داخلق نصیحت واخلی ﴿قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِيْ عِوَجٍ﴾ چه کیفیت ئې دادې چه هغه عربی قرآن دې یوه ذره په کښې هم کوږ والې نشته] او دامضامین څکه راوړې شول ﴿لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ﴾ [چه دا خلق] داربنتونی او صفا مضامین واوری [او وویریږی] معلومه شوه چه په قرآن پاك کښې دهدایت دکتاب کیدو چه دکومو صفتونو ضرورت وو هغه ټول په دې کښې جمع دی ددې مضامین هم ټول ربښتونی صفا او واضح دی او ژبه ئې هم عربی ده چه دا موجوده مخاطبین ئې بې د واسطې نه ازده کولې شی بیا د دوی په ذریعه دنورو پوهیدل هم اسانیدې شی غرض دهدایت په دې کتاب کښې خو هیڅ کمې نشته چه په چاکښې دقبلولو استعداد او صلاحیت نه وی نو څه به وکړې شی

## معارف او مسائل

﴿أَفَمَنْ يَتَّقِيْ بِوَجْهِهٖ﴾ دې کښې د جهنم د سخت خطرناک کیدو بیان دې هغه داسې چې دانسان عادت په دنیا کښې دادې چې د تکلیف څه څیز ورته مخې ته راشی نو د خپل مخ دحفاظت کولو په غرض لاسونه پښې ددهٔ دپاره ډهال جوړوی ، خو الله ﷻ دې پناه راکړی چې جهنمیان به په جنهم کښې داسې هم څکه نشی کولې چې دوئ به لاس پښې تړلی په جهنم غوزار کړې شی او د جهنم اور به ئې نیغ په نیغه په مخ حمله کوی [نعوذ باالله منه].

د تفسیر د امامانو څنې عطاء بن زید رحمه الله فرمائیلی دی چې د جهنمی پښې لاسونه به تړلې شوی وی په راښکلو به جهنم ته داخل کړې شی [قرطبی] [1].

| ضَرَبَ اللّٰهُ | مَثَلًا | رَّجُلًا |
|---|---|---|
| بیانوی الله | یو مثال | دیو سړی |
| الله ﷻ یو مثال بیانوی چې یو سړې [غلام] | | |

[1] تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة: ج ۱۵، ص ۲۵۱

Scanned with Ca

| فِيْهِ | شُرَكَآءُ | مُتَشٰكِسُوْنَ | وَرَجُلًا | سَلَمًا لِّرَجُلٍ ؕ |
|---|---|---|---|---|
| چې وی په هغې کښې | شریکان | ټول بد خویه | او بل سړي وی | سالم دیو سړي [مالك] |
| دې چې څو کسان په کښې شریک وی | | او دیو بل سره ضد ساتی | او بل سړي دې | چې ټول دیو مالک مال دې |

| هَلْ يَسْتَوِيٰنِ | مَثَلًا ؕ | اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ | بَلْ اَكْثَرُهُمْ | لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| آیا برابریدې شی دا دواړه مثالونه | | ټوله ثناده الله لره | بلکه زیات ددوئ نه | نه پوهیږی |
| آیا ددې دواړو حال برابریدې شی | | ټول تعریفونه الله دپاره دی | بلکه په دوئ کښې زیات خلق نه پوهیږی | |

| اِنَّكَ | مَيِّتٌ | وَّاِنَّهُمْ | مَّيِّتُوْنَ ۝ | ثُمَّ اِنَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه ته هم | مړکیدونکې ئې | او بیشکه دوئ هم | مړکیدونکي دی | بیا به بیشکه تاسو |
| بیشکه ته به هم مرې | | ..................اودوئ بۀ هم مری | | ........بیا به یقینا تاسو ټول دقیامت |

| يَوْمَ الْقِيٰمَةِ | عِنْدَ رَبِّكُمْ | تَخْتَصِمُوْنَ ۝ |
|---|---|---|
| په ورځ دقیامت | په نز درب ستاسو | جګړه کوی [مقدمه به پیش کړئ خپله خپله] |
| په ورځ د الله ﷻ په دربار کښې جګړې کوئ | | |

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالی یو مثال دا ورکړې دې، چه یو (غلام) سړې دې، چه دهغه په ملکیت کښې څه خلق شریک دی چه دهغوی په مینځ کښې اختلاف هم دې، او دویم (غلام) سړې هغه دې، چه ټول په ټوله د یو سړی ملکیت دې. آیا د دغې دواړو حالت یو شان کیدې شی؟ الحمد لله (په دې مثال سره خبره بالکل واضحه شوه) لیکن په دوی کښې اکثر خلق نه پوهیږی. (اے پیغمبره) مرګ په تاته هم راځی، او مرګ په دوی ته هم راځی. بیا به تاسو ټول د قیامت په ورځ خپل پروردګار ته خپله مقدمه پیش کوئ.

## خلاصه تفسیر

﴿ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِيْهِ شُرَكَآءُ﴾ [الله تعالی] دموحداومشرك په باره کښې [یومثال بیان فرمائی چه یوسړې دې] غلام [په کوم کښې چه څه شریکان دی ﴿مُتَشٰكِسُوْنَ وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ ؕ﴾ د کومو چه په خپل مینځ کښې ضد او خلاف] هم [دې اویوسړې دې بل چه پوره د یوسړی] غلام [دې] نو ﴿هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا ؕ﴾ [ایاددې دواړو حالت یو شان] دکیدو [دې] او ظاهره ده چه دا دواړه برابر نه دی اولنې سړې په تکلیف کښې دې چه همیشه حیران وی چه دچا خبره ومنی د چاونه منی دویم په ارام کښې دې چه دیو سړی سره ئې تعلق دې پس اولنې مثال دمشرك دې چه همیشه اوتری وی کله غیرالله طرف ته منډې وهی کله دالله تعالی طرف ته بیا په غیرالله کښې ئې هم په یو اطمینان نه وی کله دیو طرف ته رجوع کوی اوکله دبل طرف ته ددې سوال جواب هم مشرکان ددې نه سوا نه شی ورکولې چه مشترك غلام په لوئ مصیبت کښې وی په دې وجه په دوی حجت تمام شو په دې اتمام حجت ئې وفرمائیل ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ﴾ الحمدالله حق ثابت شو لیکن بیا هم داخلق نه قبلوی ﴿بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝﴾ [بلکه] قبول خو څه کوې [په دوی کښې اکثرخلق پوهیږی هم نه] ځکه چه دپوهیدو اراده نه کوی وړاند دقیامت دفیصلې ذکر دې کومه

Scanned with Ca

چه به اخری فیصله وی چه څوك به ترې نه تښتیدې نه شی او دقیامت دفیصلې نه وړاند دمرګ خبر ورکوی ځکه چه مرګ مقدمه او طریقه ده اخرت ته درسیدو په دې وجه فرمائی اے پیغمبر ﷺ داخلق که په دنیاکښې څه عقلی اونقلی فیصلې لره نه منی نو ته غم مه کوه ځکه چه ددنیا نه ﴿إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ﴾[تاله هم مړه کیدل دی او دوی له هم مړه کیدل دی ﴿ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِندَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ﴾ بیا به دقیامت په ورځ تاسو] دواړه فریقه خپلې خپلې [مقدمې دخپل رب په وړاند پیش کړئ] هغه وخت به عملی فیصله وشی چه دظهور بیان ئې وړاند راځی .

## معارف او مسائل

﴿إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ﴾ میت راتلونکی وخت کښې چې کوم مړ کیدونکی وی هغې ته وئیلی شی . او میت مړ شوی ته وئیلې شی ، دې آیت مبارک کښې رسول الله ﷺ ته خطاب دې چې تاسو ﷺ به هم مړ کیږئی او ستاسو دوستان ، دښمنان به هم مړه کیږی . ددې فرمائیلو مقصد د ټولو د آخرت فکر او د آخرت دپاره عمل کښې اخته کیدو ته شوق ورکول دی او ددې په ترڅ کښې داهم خودل دی چې افضل الخلائق او سید الرسل کیدو باوجود مرګ نه رسول الله ﷺ مستثنی نه دې چې د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس په دې باندې څه اختلاف پیدا نشی [قرطبی] ([1]) .

**محشر کښې ظالم څخه د مظلوم د حق وصولولو صورت ::** ﴿ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِندَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ﴾ ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چې د لته په لفظ د إِنَّكُمْ کښې مؤمنان کافران او مسلمانان ظالمان او مظلومان ټول داخل دی . دا ټول به خپلې خپلې مقدمې د خپل رب په عدالت کښې پیش کوی ، او الله جل جلاله به ظالم نه د مظلوم حق اخلی خواه که هغه کافر وی اوکه مؤمن وی ، ددغې حقونو اخستو او حقدار ته ئې د ورکولو صورت به داوی کوم چې صحیح بخاری کښې د ابوهریره رضي الله عنه په روایت کښې دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې : حق لاندې کوونکی ته پکار دی چې په دنیا کښې ورته ادا کړی یا ئې پرې معاف کړی . او ځان خلاص کړی ، ځکه چې په آخرت کښې خو به چاسره روپئ اشرفئ نه وی که ظالم سره څه نیک عملونه وی نو د ظالم په اندازه به دغه عملونه مظلوم ته ورکړې شی او که نیک عملونه ئې نه وی نو د مظلوم ګناهونه به پرې ورواچولې شی([2]) .

صحیح مسلم کښې د ابی هریره رضي الله عنه د روایت مطابق یو ورځ رسول الله ﷺ صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم نه سوال اوکړو چې تاسو مفلس پیژنئ چې څوک دې ؟ صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ مونږ خو مفلس هغه کس ته وایو چې ورسره څه نقد رقم او ضرورتونو دپاره سامان نه وی . نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زما په امت کښې حقیقی مفلس هغه څوک دې چې په قیامت کښې به ډیر نیک عملونه ، مونځونه ، روژې ، زکوتونه وغیره راوړی خو د هغه به دا حال وی چې په دنیا کښې به ئې چا ته کنځل کړی وی ، په چا پورې به ئې تور پورې کړې وی ، د چا به ئې مال په ناجائزه طریقه خوړلې وی ، څوک به ئې وژلی وی ، څوک به ئې وهلې وی ،

---

[1]) تفسیر القرطبي: ج ۱۵، ص ٢٥٤

[2]) صحیح البخاري، أبواب المظالم والقصاص، باب من كانت له مظلمة عند الرجل ... الخ: ج ۲ص ۳۳۱

Scanned with Ca

نو دا ټول مظلومان به د الله ﷻ په مخکښې په دوئ د شوی ظلمونو مطالبه اوکړي او د هغه نیکئ به په مظلومانو اوویشلې شي. کله چې دغه نیکئ ئې ختمې شي او د مظلومانو حقونه لا تر اوسه پورې پاتې وي نو د مظلومانو ګناهونه به په هغه بار کړې شي، په دغه به ظالم په جهنم کښې داخل کړې شي نو دا کس دخه سامان باوجود قیامت کښې مفلس پاتې شو دا اصلي مفلس دې.

او طبراني په يو معتبر سند سره د حضرت ابی ایوب انصاری ﷺ نه روایت کړې دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې د ټولونه رومبئ مقدمه به د قیامت په ورځ د الله ﷻ په عدالت کښې د ښځې او خاوند پیش کیږي. وې فرمائیل چې په الله مې دې قسم وي چې هلته به ژبه نه چلیږي بلکه د ښځې پښې، لاسونه به ګواهي ورکوي چې په خپل خاوند به هغې څه څه هم عیبونه لګول، دغسې به د خاوند لاسونه پښې هم د هغې تورونو پورې کولو ګواهي ورکوي چې په خپلې ښځې ئې پورې کړي وي او نقصانونه به ئې ورته رسول. دې پسې مالداره او د نوکرانو مقدمې بهٔ پیش کیږي. د هغوئ تر مینځه شکایتونو فیصلې به واؤرولې شي، بیا دعامو معامله دارو بازاریانو ترمینځه به مقدمه پیش کړې شي په هغوئ کښې د مظلوم بدله به ظالم نه واخستې شي او حق به مظلوم ته ورکړې شي[1].

**ټول عملونه به د ظلمونو او حقونو په بدله کښې ورکولې شي خو ایمان به نشي ورکولې**:: تفسیر مظهری کښې د دغې ټولو روایتونو د حدیث نقل کولونه پس لیکلی دی چې د مظلومانو په حقونو کښې د ظالمانو د عملونو ورکولو بیان چې راغلې دې، د هغې نه مراد د ایمان نه علاوه نور عملونه دی. ولې چې ټول ظلمونه عملی ګناهونه دی، کفر نه دی او د عملی ګناهونو سزا به محدوده وي. خو هرکله چې ایمان يو نا محدود عمل دې، ددې جزا هم نامحدوده ده یعنی په جنت کښې همیشه دپاره اوسیدل دی اګر چې د ګناهونود سزا تیرولو او څهٔ زمانه جهنم کښې د تیرولونه پس وي. ددې حاصل دادې چې کله د ظلم په بدله کښې د ظالم ټول نیک عملونه مظلوم ته ورکړې شي او هغه ټول ختم شي او صرف ایمان پاتې شي نو دا به ترې نشي اخستې بلکه د مظلومانو ګناهونه به پرې وربار کولې شي چې دهغې په نتیجه کښې به د عذاب تیرولونه پس آخر په جنت کښې داخلیږي چې هلته به همیشه پاتې کیدونکې وي، د تفسیر مظهری صاحب فرمائیلی دی چې امام بیهقي هم داسې فرمائیلی دی[2].

[الحمد لله پاره نمبر ۲۳ ختمه شوه]

[1]) صحيح مسلم، كتاب البر والصلة والاداب، باب تحريم الظلم: ج ۲، ص ۳۱۹

[2]) المعجم الكبير للطبراني، رقم الحديث: ۳۸۷۲

Scanned with Ca

فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللّٰهِ وَكَذَّبَ

پس څوك دي ډېر ظالم | دهغه چانه | چې دروغ ئې اوتړل | په الله پورې | او دروغ ئې اوګڼړو |

نود هغه چانه زيات ظالم څوک کيدې شی | چې په الله ﷻ باندې دروغ اوتړی | اوکله چې

بِالصِّدْقِ اِذْ جَآءَهٗ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ۝

صداقت لره | کله چې راغې هغه ته | آيا نشته | په دوزخ کښې | ځاې داوسيدو دپاره دکافرانو |

ورته رښتينې خبره راشی نو هغه دروغ اوګڼړی؟ | آيا د(داسې) کافرانواستوګنه په دوزخ کښې نه ده

وَالَّذِيْ جَآءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهٖٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ

او هغه کس | چې راغې ورو صدق | رښتينې يې اومنو هغه | دغه کسان چې دی | هم دوئ

اوڅوک چې رښتينې خبره راوړی | او هغه رښتيا اومنی | ..................نو هم دغه کسان

الْمُتَّقُوْنَ۝ لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ

دعذاب نه بچکيدونکې دی | دپاره ددوئ | هغه څه دی | چې غواړی ئې دوئ | په نزد رب خپل

پرهيزګاران دی | هغوئ دپاره به د خپل رب سره هغه څيز وی کوم چې هغوی اوغواړی |

ذٰلِكَ جَزَآءُ الْمُحْسِنِيْنَ۝ لِيُكَفِّرَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اَسْوَاَ الَّذِيْ

دا بدله ده | دنيکانو خلقو | دپاره ددې چې لرې کړی الله | ددوئ نه | ډيره بده هغه ګناه

دا د نيکانو خلقو بدله ده | ...........ددې دپاره چې الله ﷻ د هغوئ هغه ګناهونه کوم چې هغوی

عَمِلُوْا وَيَجْزِيَهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ الَّذِيْ

چې کړې وه دوئ | او چې ورکړی دوئ له | اجر ددوئ | په سبب د ډير ښه عمل | هغه

کړی دی هغه ورته معاف کړی | اودنيکو اعمالو ورته پوره پوره بدله ورکړی

كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝ اَلَيْسَ اللّٰهُ بِكَافٍ عَبْدَهٗ وَيُخَوِّفُوْنَكَ

چې وو دوئ | چې کوئ به ئې | آيا نه دې الله | کافی | بنده خپل لره | او يروی دا خلق تالره |

**آسان ترجمه قرآن**

اوس اوښايئ، چه دهغه سړی نه به لوئ ظالم څوک وی، چه په الله تعالیٰ باندې دروغ تړی، او کله چه رښتولې خبره هغه ته راشی لوهغې ته دروغ وائی؟ آيا په جهنم کښې به دداسې کافرانو ټهکانه نه وی؟ او کوم خلق چه رښتولې خبره راوړی، اوخپله هم هغې لره رښتونې اوګڼړی، هم دغه خلق متقيان دی. دوی ته به د خپل پروردګار د طرف نه هر هغه څيز ملاويږی کوم چه دوی غواړی، دا ده د نيکو خلقو بدله. دې دپاره چه هغوی کوم بد کارونه کړې دی، الله تعالیٰ دهغې کفاره اوکړی او کوم چه نيک کارونه دوی کړې دی، دهغې ثواب هغوی ته ورکړی.

**خلاصه تفسير**

[پس] په دې مخاصمت او عدالت کښې د مقدمو پيش کيدو په وخت کښې به فيصله داوشی چه باطل پرستو ته به دجهنم عذاب وی او حق پرستوته به اجر عظيم ملاوشی او ظاهره ده چه

﴿فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ﴾ [د هغه سړی نه زيات بې انصافه] او ناحق پرست [به څوك وی ﴿كَذَبَ عَلَى اللّٰهِ﴾ كوم چه په الله تعالى دروغ جوړوی] يعني دخدای تعالى متعلق دا ووائی چه دده سره نور هم شريك دی ﴿وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ﴾ [او رښتوني خبرې لره] يعنی قرآن لره ﴿اِذْ جَآءَهٗ﴾ [هركله چه هغه ده ته] درسول په ذريعه [ورسيږی درغږنه كړی] نو دداسې كس لوئ ظالم كيدل هم ظاهر دی او د ظلم دلوئ عذاب مستحق كيدل هم ظاهر دی او لوئ عذاب دجهنم دې نو ﴿اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ﴾ [ايا] دقيامت په ورځ به [په جهنم كښې به دداسې كافرانو ځائ نه وی؟] دا فيصله خو دباطل پرستو شوه [او] ددوی برخلاف ﴿وَالَّذِيْ جَآءَ بِالصِّدْقِ﴾ [كوم خلق چه رښتوني خبرې راوړی] دالله تعالى د طرفنه يا د رسول د طرف نه خلقو ته [راشی او] په خپله هم ﴿وَصَدَّقَ بِهٖٓ﴾ [دې لره رښتوني گڼړی] يعني داخلق صادقان هم وی او مصدق هم لكه چه وړانديني خلق كاذبان هم وو اومكذب هم ﴿اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ﴾ [نو داخلق پرهيزگار دې] ددوی فيصله به داوی چه ﴿لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾ [دا خلق چه څه غواړی د دوی دپاره پروردگار سره هرڅه شته ﴿ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الْمُحْسِنِيْنَ﴾ دا صله ده د نيكو كارانو] او دا صله ددوی دپاره په دې واسطه تجويز شوه ﴿لِيُكَفِّرَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اَسْوَاَ الَّذِيْ عَمِلُوْا﴾ [چه الله تعالى ددوی نه بدو عملونو لره لرې كړی ﴿وَيَجْزِيَهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ الَّذِيْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ او دنيكو كارونو په غرض دوی ته ددوی ثواب وركړی]

## معارف او مسائل

﴿وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ﴾ اور ﴿وَالَّذِيْ جَآءَ بِالصِّدْقِ﴾ دې كښې دصدق څخه مراد هغه تعليمات دی كوم چې رسول كريم ﷺ راوړی دی . كه هغه قرآن عظيم الشان دې او كه د قرآن عظيم الشان څخه علاوه نور تعليمات ،د احاديثو او صَدَّقَ بِهٖٓ كښې ټول مؤمنان شامل دی چې ددې تصديق كوونكی دی .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلَيْسَ اللّٰهُ | بِكَافٍ | عَبْدَهٗ | وَيُخَوِّفُوْنَكَ | |
| آيا نه دي الله | كافي | بنده خپل لره | او يروی دا خلق تالره | |
| آيا صرف الله ﷻ دخپل [نيک] بنده دپاره كافی نه دې ؟ [او دوئ تا دالله ﷻ .......... | | | | |
| بِالَّذِيْنَ | مِنْ دُوْنِهٖ | وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ | فَمَا لَهٗ | |
| په هغه معبودانو سره | چې بې دالله نه دی | او هغه څوك چې گمراهه ئې كړی الله | پس نشته هغه لره | |
| نه سوا د نورو څيزونو نه ويروی | او څوك چې الله ﷻ بې لارې كړی | نو هيڅوك ئې په لار كولې نشی | | |
| مِنْ هَادٍ | وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ | فَمَا لَهٗ | مِنْ مُّضِلٍّ | |
| څوك لار ښودونكې | او چاته چې هدايت اوكړی الله | پس نشته هغه لره | څوك گمراهه كونكې | |
| اوچا ته چې الله ﷻ هدايت اوكړی | نو هغه هيڅوك گمراه كولې نشی | | | |
| اَلَيْسَ اللّٰهُ | بِعَزِيْزٍ ذِي انْتِقَامٍ | وَلَئِنْ | سَاَلْتَهُمْ | مَّنْ |
| آيا نه دي الله | غالب او خاوند دبدلې اغستلو | او كه چرې | تپوس اوكړې ته ددوئ نه | چې چا |
| آيا الله ﷻ زبردست اوانتقام اخستونكې نه دې ؟ | او كه ته ددوئ نه تپوس اوكړې چې | | | |

Scanned with Ca

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ط قُلْ اَفَرَءَيْتُمْ

پیدا کړي دي آسمانونه | او زمکه | نو ضرور به وائي دوئ چي الله | ورته اووايه | آيا پس وينئ تاسو

اسمانونه اوزمکه چا پيدا کړي دي؟ | نودوئ به وائي چي الله [پيدا کړي دي] | ته ورته او وايه چي ښه ده

مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ اَرَادَنِيَ اللّٰهُ بِضُرٍّ

هغه معبودان | چي رابلي ئي تاسو | بي دالله نه | که اراده اوکړي ماته الله | دضرر رسولو |

نو داراته اوښائي | چي تاسو دالله نه بغير دچا عبادت کوئ | که چري الله ماته څه تکليف رارسول اوغواړي

هَلْ هُنَّ كٰشِفٰتُ ضُرِّهٖٓ اَوْ اَرَادَنِيْ بِرَحْمَةٍ

آيا دا معبودان [بتان] | لري کونکي دي | دضرر دهغه [زمانه] | يا اراده اوکړي ماته | په رحمت سره

نو آيا هغوئ دهغه [راکړې شوې] تکليف لري کولي شي | يا که الله ﷻ ماسره څه مهرباني کول

هَلْ هُنَّ مُمْسِكٰتُ رَحْمَتِهٖ ط قُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ ط عَلَيْهِ

آيا دي دا بتان | بندونکي | درحمت دهغه | ورته اووايه | کافي دي مالره الله | هم په هغه باندي

اوغواړي | نو هغوئ دغه مهرباني منع کولي شي | ته اووايه چي زما دپاره صرف الله ﷻ کافي دي

يَتَوَكَّلُ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿۳۸﴾ قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ

بروسه کوي | بروسه کونکي | ورته اووايه | اے قومه زما | کار کوئ تاسو | په ځائي خپل |

بهروسه کونکي هميشه په هغه بهروسه کوي | ته ورته او وايه چي ائي زما قومه ! تاسو په خپلو اعمالو کښي

اِنِّيْ عَامِلٌ ج فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۹﴾ لا مَنْ يَّاْتِيْهِ

بيشکه زهٔ خپل کار کونکي يم | پس زر به | پته اولګی تاسو ته | چي څوک دي چي راځي هغه ته |

مشغول اوسئ | زه هم پخپل عمل کښي مشغول يم | نو ډير زر به تاسو ته معلومه شي چي په چا باندي

عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿۴۰﴾ اِنَّآ

عذاب | چي رسوا به کړي هغه | او نازليږي | په هغه باندي | عذاب هميشه | بيشکه مونږه

رسوا کونکي عذاب راتلونکي دي | او په چا باندي هميشه عذاب واقع کيدونکي دي | بيشکه مونږ په

اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ لِلنَّاسِ بِالْحَقِّ ج فَمَنِ

نازل کړي دي | په تا باندي | دا | کتاب | دپاره دخلقو | په حقه سره | پس هغه څوک |

تا باندي داکتاب دخلقو دهدايت دپاره په حق مضامينو مشتمل نازل کړي دي | نو څوک چي

اهْتَدٰى فَلِنَفْسِهٖ ج وَمَنْ ضَلَّ فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ج

چي په نيغه لار لاړو | پس فائيده ئي دپاره دخان ده | او څوک چي بې لاري شو | پس بې لاري کيږي په خان خپل

په سمه لار روان شي | نو فائده ئي خان دپاره ده | او څوک چي بې لاري شي نو خان ته نقصان رسوي

وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ﴿۴۱﴾ ع

اونه ئي ته | په هغوئ باندي | ساتونکي ذمه وار |

اوته په دوئ باندي څه ذمه وار خو نه يئ |

## آسان ترجمه قرآن

(اے پیغمبره) آیا الله تعالی دخپل بنده دپاره کافی نه دې،او دا خلق تا د الله تعالی نه سوا د نورو نه ویرّوی، او څوک چه الله تعالی بے لارې کړی هغه لره هیڅوک په لاره بانديې راوستونکې نشته. او څوک چه الله تعالی په نیغه لار بانديې راولی،نوهغه لره هیڅوک بے لارې کونکې نشه. آیا الله تعالی زورآور، او انتقام اخستونکې نه دې؟ او که ته ددوی نه تپوس اوکړې، چه آسمانونه او زمکه چا پیدا کړې دی؟ نوهغوی به ضرور اووائی، چه الله تعالی، (دوی ته) اووایه چه: لږ ماته اووایئ چه تاسو د الله تعالی نه ماسوا کومو (بتانو) لره رابلئ، که الله تعالی ماته د څه نقصان رارسولو اراده اوکړی، نو آیا دوی هغه رارسولې شوې نقصان لرې کولې شی؟ یا که الله تعالی په ما بانديې رحمت کول اوغواړی، نو آیا دوی هغه رحمت لره منع کولې شی، اووایه چه: زما دپاره الله کافی دې، توکل کونکې دې په هغه بانديې توکل اوکړی اووایه چه: اے زما د قوم خلقو، په خپله طریقه بانديې عمل کوئ، زه هم (په خپله طریقه بانديې) عمل کوم، زرده چه تاسو به پوهه شئ. چه په چا بانديې عذاب راځی،چه هغه لره به رسوا کړی،اوپه چا بانديې هغه عذاب راتلونکې دې چه همیشه دپاره به وی.(اے پیغمبره) مونږ د خلقو د فائدې دپاره په تا بانديې دا کتاب په حقه سره نازل کړې دې، اوس چه کوم سړې په نیغه لارې بانديې راځی،نوهغه د خپلې فائدې دپاره راځی، او څوک چه گمراهی اختیاروی، نوهغه په گمراهئ سره خپل نقصان کوی، او ته دهغوی ذمه دار نه ئې.

## خلاصه تفسیر

﴿أَلَيْسَ اللَّهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ﴾[آیا الله تعالی دخپل بنده] خاص محمد ﷺ دحفاظت [دپاره کافی نه دې؟] یعنی هغه خو دټولو دحفاظت دپاره کافی دې نو خپل خاص محبوب بنده دپاره به ولې کافی نه وی ﴿وَيُخَوِّفُونَكَ بِالَّذِينَ مِنْ دُونِهِ﴾ [او داخلق] داسې احمقان دی چه دخدایٔ دحفاظت نه خان ناخبره کوی [تاسو ﷺ لره دهغو] باطلومعبودانو [نه ویروی کوم چه دالله تعالی نه سوا] دوی تجویزکړی [دی] حال دادې چه هغوی په خپله بې روحه عاجزان دی اوکه قادرهم وی خو دالله تعالی دحفاظت په مقابله کښې به عاجزه وی [او] اصل خبره داده چه ﴿وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ﴾[چالره الله تعالی گمراه کړی هغه ته څوك هدایت کوونکې نشته ﴿وَمَنْ يَهْدِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ مُضِلٍّ﴾ او چاته چه هغه هدایت وکړی د هغه څوك گمراه کوونکې نشته] وړاند د الله تعالی دکامل قدرت ذکر کوی او ددوی حماقت ښکاره کړې شوې دې چه ﴿أَلَيْسَ اللَّهُ بِعَزِيزٍ ذِي انْتِقَامٍ﴾[آیا الله تعالی] ددوی په نزد [زبردست] او [بدله اخستو] باند قدرت لرلو [والانه دې] یعنی دالله تعالی دناصریت صفت هم کامل او دبنده دمنصوریت صلاحیت هم کامل او د دروغو دمعبودانو دقدرت او نصرت نه عاجز والې هم ظاهر بیا تالره په دې خبرو سره ویرول حماقت نه دې نو څه دې؟ او عجیبه خبره داده چه دالله تعالی دکامل قدرت او نصرت] مقدمات دوی هم تسلیموی چنانچه ﴿وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ﴾[که ته ددوی نه تپوس وکړې چه اسمانونه اومزکه چاپیداکړی دی﴿لَيَقُولُنَّ اللَّهُ﴾ نو دابه ووائی چه الله تعالی] په دې وجه [ته] دوی ته ﴿قُلْ﴾[ووایه چه ښه] نو هرکله چه تاسو الله تعالی لره پیداکوونکې یوازې منئ نو ﴿أَفَرَأَيْتُمْ مَا تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾[دا وښایئ چه دالله تعالی نه سوا کومو

معبودانو لره چه تاسو بلئ: ﴿إِنْ أَرَادَنِيَ اللَّهُ بِضُرٍّ﴾ كه الله تعالى ماته څه تكليف رسول غواړي ﴿هَلْ هُنَّ كَاشِفَاتُ ضُرِّهِ﴾ نو ايا دا معبودان دهغه وركړې شوى تكليف لره لرې كړې شى؟ ﴿أَوْ أَرَادَنِي بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِكَاتُ رَحْمَتِهِ﴾ ياكه الله تعالى په ماځپله مهرباني كول وغواړي نو ايادامعبودان به دهغه عنايت لره منع كړې شى؟] وړاندې ارشاد دې چه هركله ددې تقريرنه دالله تعالى كمال قدرت ثابت شو نو ﴿قُلْ﴾[ته وروايه چه] ددې نه ثابته شوه چه ﴿حَسْبِيَ اللَّهُ﴾[زما دپاره الله تعالى كافى دې ﴿عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ الْمُتَوَكِّلُونَ﴾ توكل كوؤنكي په هغه توكل كوي] په دې وجه زهٔ هم په هغه توكل او بروسه ساتم او ستاسو دعناد او خلاف هيڅ پرواه نه كوم او چونكه دغو خلقو داتولې خبرې اوريدې بياهم په خپل باطل خيال باند كلك وو په دې وجه تاته داخرى جواب تعليم دې چه [ته] دوى ته ﴿قُلْ﴾ [ووايه چه] كه په دې دپاسه هم تاسو نه منئ نو تاسو پوه شئ: ﴿يَا قَوْمِ اعْمَلُوا عَلَى مَكَانَتِكُمْ﴾[تاسو په خپل حالت عمل كوئ ﴿إِنِّي عَامِلٌ﴾ زهٔ هم] په خپل طرز [عمل كوم] يعنى هركله چه تاسو خپله باطله طريقه نه پريږدئ نو زهٔ حق څنګه پريږدم ﴿فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ﴾ [پس اوس به ډيره زر تاسوته معلومه شى ﴿مَنْ يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ﴾ چه هغه كوم سړې دې په كوم چه] په دنياكښې [داسې عذاب راځى چه دهٔ لره به رسواكړى او] ﴿وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُقِيمٌ﴾ دمرګ نه پس [به په دهٔ دائمى عذاب نازل شى] چنانچه په دنيا كښې په غزوه بدركښې دمسلمانانو په لاس دوى ته سزا ملاؤشوه ددې نه پس د اخرت دائمى عذاب دې تردې خو نبى كريم ﷺ ته د مخالفينو د خوف نه تسلى وركړې شوه وړاندې دوى ﷺ ته چه په كفارو او دالله تعالى په عام مخلوق باندكوم شفقت وو او په دې بنابه د دوى په كفراو انكار باندغمژن كيدل په دې تسلى وركړې شوه چه ﴿إِنَّا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ لِلنَّاسِ بِالْحَقِّ﴾[مونږ داكتاب په تا دخلقو د] نفعې د [پاره نازل كړو كوم چه حق دې پس] ستاكار ددې رسول دى بيا ﴿فَمَنِ اهْتَدَى فَلِنَفْسِهِ﴾[كوم سړې چه په نيغه لاره راشى نو دخپلې نفعې دپاره ﴿وَمَنْ ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا﴾ اوكوم سړې چه بې لارې شى نو دهغه دبې لارې كيدو وبال به په هغه وى ﴿وَمَا أَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيلٍ﴾ او ته په دوى] داسې [نه ئې مسلط كړې شوې] چه د دوى دبې لارې كيدو به تانه تپوس كيدې شى نو ته ددوى په ګمراهئ باندولې غمژن كيږې

## معارف او مسائل:

﴿أَلَيْسَ اللَّهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ﴾ ددې آيت مبارك شان نزول كښې يو واقعه ده ، هغه واقعه داده چې كفارو رسول اكرم ﷺ او صحابه كرام ﷺ ددې څخه ويرولى وو كه تاسو زمونږ د بتانو بې ادبى اوكړه نو ددې بتانو اثر ډير سخت دې . تاسو ددې څخه نشئ بچ كيدئ. ددې جواب كښې وئيلې شوى دى چې آيا الله ﷻ دخپل بنده دپاره كافى نه دې څه؟[1]

ددې وجې ځينې مفسرينو دلته د بنده څخه يو خاص بنده يعنى رسول كريم ﷺ ئې ددې څخه مراد اخستې دې . خلاصه تفسير كښې هم دا اختيار كړې شوې دې . او نورو مفسرينو د بنده څخه مراد عام اخستې دې . او د آيت مبارك بل قرآت چې عباده راغلې دې هغه ددې تائيد كوى . خو بهر حال دا مضمون عام دې چې الله ﷻ دخپل هر بنده دپاره كافى دې .

[1] تفسير المظهرى تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۲۱۳

Scanned with Ca

**عبرت او نصیحت::** ﴿وَيُخَوِّفُونَكَ بِالَّذِينَ مِن دُونِهِ﴾ یعني کافران تاسو د خپلو باطلو معبودانو څخه ویروی. څوک چې دا آیت مبارك اولولي نو عام طور دا خیال کوی چې دا د یو خاص واقعې ذکر دې. او ددې واقعې تعلق دکافرانود دهمکیانو سره او د رسول اکرم ﷺ ذات مبارك سره دې. اودې طرفته توجه نه کوی چې په دې کښې زمونږ دپاره څه هدایت دې. حالانکه په دې کښې خبره بالکل ښکاره ده. کوم یو کس چې مسلمان په دې وجه ویروی که تا فلانې حرام کار یا ګناه اونه کړه نو ستا حکام او افسران به ستا څخه خفه شی او تاته به تکلیف اورسوی څکه ته دهغوئ محتاج یئ. دا هم په کښې داخل دی اګر چې ویرونکی مسلمانان وی او د چا نه چې ویرولې شی هغه هم مسلمان وی او دا داسې یو عام آزمیښت دې چې د دنیا په اکثرو کارونو کښې خلقوته پیښیږی چې خلق یا خو د الله تعالی د احکامو خلاف ورزی اوکړی یا د خپلو افسرانو د غصې لاندې راشی. دې آیت مبارك دې ټولو ته دا هدایت اوکړو چې آیا الله ﷻ ستاسو د حفاظت دپاره کافی نه دې څۀ؟ که تاسو صرف اوصرف د الله ﷻ د رضا دپاره د ګناهونو څخه ډډه اوکړه او د الله ﷻ په احکامو کښې مو د خپلو افسرانو او حاکمانو پرواه اونه کړه نو الله ﷻ به ستاسو مددګار شی. اګر که ستاسو څخه دا ملازمت لاړ شی خو الله ﷻ به ستاسو د رزق بل بهتر بندوبست اوکړی. او یو مؤمن لره پکار دی چې داسې ملازمت د پرېښودلو پخپله کوشش کوی چې که چرته ورته بل ملازمت ملاؤ شی نو دا دې پرېږدی.

اَللهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ

| الله قبض کوی | روحونه | په وخت

| هم الله ﷻ روحونه دمرګ په وخت کښې قبض کوی

مَوْتِهَا وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا

دمرګ ددغې نفسونو کښې | او هغه نفس | چې نۀ وی مړ | قبض کوی هغه په خوب دهغه کښې

او چې د چا مرګ نه وی راغلې نودخوب په وخت کښې ئې روح قبض کوی

فَيُمْسِكُ الَّتِيْ قَضٰى عَلَيْهَا الْمَوْتَ وَيُرْسِلُ الْاُخْرٰٓى

پس منع کوی | هغه روح | چې فیصله کوی | په هغه باندې | دمرګ | او رالیږی نور روحونه

بیا هغه [روحونه] ایسار کړی | چې دمرګ حکم پرې لګولې شی | اوباقی روحونه ترې

اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۴۲﴾

نیټې مقررې ته | بیشکه په دې کښې | ډیرې نښې دی | دپاره دهغه خلقو | چې فکر کوی

تریومقررې نیټې پورې راپرېږدی | بیشکه په دې کښې هغه خلقو دپاره نښې دی | چې سوچ فکر کوی

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللهِ شُفَعَآءَ ؕ قُلْ اَوَلَوْ كَانُوْا

آیا نیولې دی دې خلقو | بې دالله نه | نور سفارشیان | ورته اووایه | آیا سفارش به کوی اګر که وی هغوئ

او دوئ دالله ﷻ نه سوا نور خلق [ځان له سفارشیان] جوړ کړی دی | ته ورته اووایه چې

Scanned with Ca

لَا يَمْلِكُوْنَ | شَيْـًٔا | وَّلَا يَعْقِلُوْنَ ۝ | قُلْ | لِّلّٰهِ | الشَّفَاعَةُ

چې نۀ لري اختيار | دهيڅ څيز | او نۀ پوهيږي په هيڅ څيز | ورته اووايه | چې الله لره دي | اختيار دسفارش

سفارش خو هم ټول د الله ﷻ په اختيار کښې دي | ...........د آسمانونو او د زمکې

جَمِيْعًا ۭ | لَهٗ | مُلْكُ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ۭ | ثُمَّ اِلَيْهِ | تُرْجَعُوْنَ ۝

ټول | هغه لره | بادشاهي د آسمانونو | او د زمکې ده | بيا به هغه ته | واپس کړې شئ تاسو

بادشاهي يوازې د هغه ده | ..........اوبيا به ټول هغه ته واپس پيش کيږئ |

وَاِذَا | ذُكِرَ اللّٰهُ | وَحْدَهُ | اشْمَاَزَّتْ | قُلُوْبُ | الَّذِيْنَ | لَا يُؤْمِنُوْنَ

او هر کله چې | يادکړې شي الله | يوازې | نو دننه سوزي | زړونه | دهغه کسانو | چې ايمان نۀ لري

او کله چې [د معبود په حيثيت] يوازې د يو الله نوم واخستې شي | نو د هغه خلقو زړونه سوزي | چې په

بِالْاٰخِرَةِ ۚ | وَاِذَا | ذُكِرَ | الَّذِيْنَ | مِنْ دُوْنِهٖٓ | اِذَا هُمْ

په آخرت باندې | او هر کله چې | ذکر کيږي | دهغه معبودانو | چې بې د الله نه دي | نو يودم هغوئ

آخرت باندې ايمان نه راوړي | او هر کله چې د الله ﷻ نه سوا د نورو [معبودانو] ذکر اوکړې شي

يَسْتَبْشِرُوْنَ ۝

خوشحاليږي |

نو هغه وخت دوئ خوشحاليږي |

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالیٰ ټولو روحونو لره دهغوی د مرګ په وخت کښې قبض کوی، او کومو ته چه مرګ نه وی راغلې، هغوی لره هم دهغوی د خوب په حالت کښې (قبض کوی) بيا د کومو باره کښې چه هغه د مرګ فيصله کړې وی، هغه خپل ځان سره ايسار کړی، او نورو روحونو لره يو مقرر وخته پورې پريږدی يقيناً په دې خبره کښې دهغې خلقو دپاره لوئې نښې دی، چه د غور او فکر نه کار اخلی آيا دغې خلقو د الله تعالیٰ (د اجازت) نه بغير څه سفارشيان جوړ کړې دی؟ (دوی ته) اووايه چه: اګر که هغوی هيڅ اختيار نه لری، او نه په څه پوهيږی (بيا هم تاسو هغوی لره سفارشيان منئ) اووايه چه: سفارش خو ټول په ټوله د الله تعالیٰ په اختيار کښې دې، دهغه په قبضه کښې د آسمانونو او زمکې بادشاهی ده، بيا هم هغه طرف ته ستاسو واپسی ده او کله چه يواځې د الله تعالیٰ ذکر کولې شی، نو چه کوم خلق په آخرت باندې ايمان نه لری، دهغوی زړونه بيزاره کيږی او کله چه دهغه نه سوا د نورو ذکر کولې شی، نو دا خلق خوشحاليږی.

## خلاصه تفسير

﴿اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ﴾ [الله تعالیٰ قبض] يعنی معطل [کوی هغو روحونو لره] د کومو چه وخت دمرګ راغلې وی ﴿حِيْنَ مَوْتِهَا﴾ [د دوی دمرګ په وخت] په مکمل طور باند چه ژوندئ بالکل ختم شی ﴿وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا ۚ فَيُمْسِكُ الَّتِيْ قَضٰى عَلَيْهَا الْمَوْتَ﴾ [او هغوروحونو لره هم دکوموچه مرګ نه وی راغلې د هغوی د خوب په وخت] دا تعطيل بالکليه نه وی يو حيثيت ئې د

Scanned with Ca

ژوندباقي پاتې وي مګر ادراك په كښې نه وي او دمرګ په صورت كښې نه ادراك پاتې كيږي نه حيات [بيا] ددې معطل كولو نه پس [هغو روحونو لره خو] بدن طرف ته دواپس كيدونه منع كوي د كومو چه دمرګ حكم شوې دې او باقي روحونو لره كوم چه دخوب په وجه معطل كړې شوي وو او لاړ دمرګ وخت نه دې راغلې ﴿وَيُرْسِلُ الْأُخْرَىٰ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى﴾ [ديو معين ميعاد] يعنى مودې [پورې ازادوي] چه بياواپس لاړشي په بدن كښې په تيره طريقه سره تصرفات شروع كړي ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ﴾ [په دې] ټولو تصرفاتو د الله پاك [كښې دهغو خلقو دپاره كوم چه فكركوونكى دي] دالله تعالى په كامل قدرت او بې دشركت د غيرنه دټول عالم په انتظاماتو كولو [دليلونه دي] چه دالله تعالى په توحيد سره ترې نه استدلال كولې شي ﴿أَمِ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ شُفَعَاءَ﴾ [هاه ايا] سره د واضحو دليلونو دتوحيدنه [دې خلقو د الله تعالى نه سوا نورو لره] معبودان [نيولى دي كوم چه به] د دوي [سفارش كوي] لكه چه مشركانو به دخپلو بتانو متعلق وئيل [هؤلاء شفعاؤنا عندالله] (۱) ﴿قُلْ أَوَلَوْ كَانُوا لَا يَمْلِكُونَ شَيْئًا﴾ [ته ووايه چه اګر كه دا] ستاسو جوړشوي شفعاء] هيڅ قدرت هم نه [لري؟ ﴿وَلَا يَعْقِلُونَ﴾ او هيڅ عقل او علم هم نه لري] ايا بيابه هم تاسودا ګنړئ چه دابه ستاسوسفارش كوي ايا دومره هم نه پوهيږئ چه دشفاعت دپاره علم او ددې مناسب قدرت خو ضروري دې كوم چه په دوي كښې نشته دلته خنومشركانو به داهم وئيلې شول چه دا د ګټوتراش شوي بتان زمونږ مقصود نه دي بلكه دا مجسمې او شكلونه دفرښتويا پيريانو دي نو په هغو كښې روح هم دې قدرت او علم هم لري په دې وجه ددې په جواب كښې دا تعليم وركړې شو چه [ته] داهم ﴿قُلْ لِلَّهِ الشَّفَاعَةُ جَمِيعًا﴾ [ووايه چه سفارش خو ټول دالله تعالى په اختياركښې دې] بغير دهغه داجازت نه ديوې فرښتې يا بشر مجال نشته چه سفارش دچاوكړې شي او دالله تعالى دشفاعت داجازت دپاره دوه شرطونه دي اول د شفاعت كونكى دالله تعالى په نزد مقبول كيدل ، دويم د چا چې شفاعت كولې شي د هغه دمغفرت قابل كيدل اوس پوه شئ چه مشركانو بتان چه دچاشكلونه ګڼړلي او اختيار كړي دي كه هغه جنات او شيطانان وي نو دواړه شرطونه مفقود دي نه دغه شفاعت كوونكى دالله تعالى په نزد مقبول دي اونه دغه مشركان قابل دمغفرت دي اوكه دغه شكلونه ئې ملائكو يا انبياؤ عليهم السلام شكلونه مقرر كړي دي نو دشفاعت كوونكو دمقبول كيدو شرط خو موجود شو مګردويم شرط مفقود دې چه په دې مشركانو كښې صلاحيت د مغفرت نشته وړاندې فرمائى چه دالله تعالى داشان دې چه ﴿لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ [دټولو اسمانونو او مزكې حكومت د هغه دې بيا به تاسو د هغه طرف ته واپس ورځئ] په دې وجه ټولو لره پريږدئ دهغه نه ويريږئ او دهغه عبادت كوئ [او] دتوحيد د واضحه دليلونو دقائميدو باوجود دكفارو او مشركانو حال دادې چه ﴿وَإِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَحْدَهُ﴾ [هركله فقط د الله تعالى ذكر وكړې شي] چه هغه بې دشركت د غيرنه دټول عالم دتور سپين مالك مختار او متصرف دې ﴿اشْمَأَزَّتْ قُلُوبُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ﴾ [نو ددغو خلقو زړه تنګ شي كوم چه په اخرت يقين نه لري ﴿وَإِذَا ذُكِرَ الَّذِينَ مِنْ دُونِهِ﴾ اوهركله چه دهغه نه سوا دنورو ذكر كيږي] خواه صرف د هغو يوازې ذكر وي يا دالله تعالى سره ددغو هم ذكر وي ﴿إِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُونَ﴾ [نو دغه وخت هغه خلق خوشحاليږي]

---

۱) ترجمه: دوی الله تعالی ته زمونږه سفارش كونكي دي

Scanned with Ca

## معارف او مسائل

**د مرګ او د خوب په وخت کښې د روح قبض کېدل او په دواړو کښې د فرق تفصيل:** ﴿اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا﴾ د ﴿تَوَفّٰى﴾ لفظي معنی اخستل او قبض کول دي. دې آيت مبارك کښې الله ﷻ دا فرمائيلي دي چې د ذي روح مخلوق روحونه هر وخت او هر حال کښې د الله ﷻ په تصرف کښې دي. هغه لوئې ذات چې کله هم غواړي نو دا قبض کولې هم شي او واپس ئې اخستې هم شي. او ددې تصرف يو ننداره خو هر وخت هر يو زنده سر ګوري او محسوسوي. د خوب په وخت کښې ددهٔ روح يو حيثيت سره قبض کولې شي. بيا چې دې بيدار شي نو واپس راشي. او آخر کار يو وخت به داسې هم راشي چې بالکل به ددهٔ روح قبض کړې شي. او واپس به ورته نه رازي.

تفسير مظهري ليکلي دي چې د روح قبض کولو مطلب ددې تعلق د انساني بدن سره ختمول دي. کله دا باطني او س کله ظاهري طور قطع کولې شي. هم دې ته مرګ وئيلې شي. او کله صرف ظاهري طور سره منقطع کولې شي. باطني طور باقي وي. او ددې اثر داوي چې صرف حرکت اراديه کومه چې ظاهري د ژوند علامت وي هغه منقطع شي. او دبدن باطني تعلق روح سره برقرار وي. اودې سره دې ساه اخلي او ژوندې وي. او ددې صورت دا وي چې انساني روح لره د عالم مثال طرفته متوجه کولوسره ددې دنيا دمطالعې څخه منقطع کړې شي چې انسان مکمل طور سره په آرام کښې شي. او کله دا باطني تعلق هم منقطع کېږي. او ددې په وجه د بدن حيات بالکل ختم شي.

دې مذکوره آيت مبارك کښې د ﴿تَوَفّٰى﴾ لفظ د قبض په معنی کښې په طور د عموم مجاز په دواړو معنو باندې حاوي دي. په مرګ او خوب دواړو کښې چې کوم فرق پورته بيان شو د علي ﷺ د يو قول نه هم ددې تائيد کېږي. هغوئ ﷺ فرمائي چې کله يو کس اوده شي نو ددهٔ روح ددهٔ د بدن نه اوزي خو د روح يوه شغله په بدن کښې پاتې کېږي چې دهغې په وجه دې ژوندې وي، او ددې شغلې د رابطې په وجه دې خوبونه ګوري. اوس که دا خوب د روح د عالم مثال طرفته په متوجه کېدو سره ليدلې شوې دې نو دا رېښتونې خوب دې. او که د هغه طرفنه ددې بدن ته د واپسئ په حالت کښې ليدلې شوې وي نو په دې کښې شيطاني تصرفات وي. هغې ته رؤيا صادقه نشي وئيلې. او فرمائي چې دخوب په حالت کښې چې کوم روح د انسان د بدن نه اوځي نو کله چې دې بيدار شي نو د سترګو په رپ کښې ددهٔ بدن ته دا روح واپس شي[۱].

| | | | |
|---|---|---|---|
| قُلِ | اللّٰهُمَّ | فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ |
| ته اووايه | اے خدايه | پيدا کونکيه دآسمانونو | او دزمکې |
| ته اووايه چې ائي الله ﷻ ! دآسمانونو او زمکې پيداکونکيه | | | |
| عٰلِمَ الْغَيْبِ | وَالشَّهَادَةِ | اَنْتَ تَحْكُمُ | بَيْنَ عِبَادِكَ |
| پوهيدونکيه په پټ | او په ښکاره | ته به فيصله کوې | په منځ دبندګانو خپلو کښې |
| په پټو او په ښکاره پوهيدونکيه هم ته به دخپلوبندګانو په هغه خبرو کښې په | | | |

۱) تفسير المظهري: ج ۸، ص ۲۱۷، ۲۱۸

Scanned with Ca

فِيۡمَا كَانُوۡا فِيۡهِ يَخۡتَلِفُوۡنَ ﴿۴۶﴾ وَلَوۡ

په هغه کارونو کښې | چې وۀ دوئ | په هغې کښې | چې اختلاف به ئې کولو | او که چرې وي

کومو کښې چې دوئ جګړې کولې فیصله کوې | ........................ اوکه د ظالمانو

اَنَّ لِلَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا مَا فِى الۡاَرۡضِ جَمِيۡعًا

دپاره دهغه کسانو | چې ظلم ئې کړې دې | هغه څه | چې په زمکه کښې دی | ټول

[مشرکانو] سره ددنیا ټول مالونه موجود شي | او دومره ورسره نور هم | نو دقیامت د ورځې

وَّمِثۡلَهٗ مَعَهٗ لَافۡتَدَوۡا بِهٖ مِنۡ سُوۡٓءِ الۡعَذَابِ

اوپه مثال دهغې نور | دهغه سره | نوخامخا به په فدیه کښې ورکړي | هغه هرڅه | دپاره دبچکیدو دسخت عذاب نه

دسخت عذاب نه دخلاصیدو دپاره به هغه ټول ورکول اوغواړي |

يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ؕ وَبَدَا لَهُمۡ مِّنَ اللّٰهِ مَا لَمۡ يَكُوۡنُوۡا

په ورځ دقیامت | او ښکاره به شي | دوئ ته | دطرفه دالله نه | هغه څه | چې نۀ وۀ دوئ

اوپه دوئ باندې به دالله ﷻ دطرفنه [عذاب] ښکاره شي | د کوم چې به دوئ ګمان

يَحۡتَسِبُوۡنَ ﴿۴۷﴾ وَبَدَا لَهُمۡ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوۡا

چې ګمان به ئې کولو دهغې | او ښکاره به شي | دوئ ته | بدانجامونه | دهغې | چې کړي وي دوئ

هم نه کولو | ........................ اوخپل ټول بد کارونه به ورته ښکاره شي | اوپه کوم عذاب

وَحَاقَ بِهِمۡ مَّا كَانُوۡا بِهٖ يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ﴿۴۸﴾

او چاپیره به شي | په دوئ | هغه [عذاب] | چې وۀ دوئ | چې په هغې پورې به | ئې ټوقې کولې

پورې چې به ئې ټوقې مسخرې کولې هغه بۀ ترې نه راتاؤ شي [او دوی به راګیر کړي]

فَاِذَا مَسَّ الۡاِنۡسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا ثُمَّ اِذَا خَوَّلۡنٰهُ

پس هر کله چې | اورسیږي | انسان ته | څه تکلیف | نو رابلي مونږ | بیا چې کله | ورکړو مونږ هغه ته

اوڅه وخت چې انسان ته تکلیف اورسیږي | نو مونږ رابلي | بیا چې مونږ ورته دخپل طرفنه

نِعۡمَةً مِّنَّا ۙ قَالَ اِنَّمَاۤ اُوۡتِيۡتُهٗ عَلٰى عِلۡمٍ ؕ بَلۡ

نعمت | دطرفه زمونږ نه | نو وائي | بیشکه راکړې شوې دې ماته دا | په وجه دعلم | [نۀ] بلکه

څه نعمت ورکړو | نو وائي چې داخو ماته پخپل علم اوعقل سره ملاؤ شوې دی | ............ [نه] بلکه

هِىَ فِتۡنَةٌ وَّلٰـكِنَّ اَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ﴿۴۹﴾ قَدۡ قَالَهَا

دا امتحان دې | ولیکن | زیات ددوئ | نۀ پوهیږي | بیشکه وئیلې ده دا خبره

دا یو امتحان دې | خو زیات خلق [په دې خبرا] نه پوهیږي | ........................ داخبرې هغه خلقو

الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ فَمَاۤ اَغۡنٰى عَنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا

هغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وۀ | پس هیڅ پکار رانغلل دهغوئ | هغه څه | چې وۀ هغوئ

هم کړې وې | کوم چې د دوی نه وړاندې وو | خو هغوی چې څه کړي وو هغې ورته هیڅ فائده اونه

يَكْسِبُونَ۝ فَأَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْاؕ وَالَّذِيْنَ

چې کول به ئې | پس اورسیدل هغوئ ته | بدانجامونه | دهغې | چې کړې وې هغوي | او هغه کسان

رسوله | ......... بلکه دخپلو بدو عملونه سزا ورته ملاو شوه | ......... او په دوئ کښې چې

ظَلَمُوْا مِنْ هٰٓؤُلَآءِ سَيُصِيْبُهُمْ سَيِّاٰتُ مَا

چې ظلم ئې اوکړو | ددې خلقو نه | ډیر زر به اورسیږي هغوئ ته | بدانجامونه | دهغې |

څوک ظالمان دی | هغوی ته به هم دخپلو بدو عملونه سزا ملاویږي

كَسَبُوْاۙ وَمَا هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ۝ اَوَلَمْ يَعْلَمُوْٓا

چې کړې وې هغوئ | اونهٔ دی دوئ | عاجزه کونکې مونږ لره | آیا اونهٔ ده معلومه دوئ ته

...... او دوئ [الله ﷻ په خپلو تدبیرونوسره] عاجزه کولې نشي | آیا دوئ ته دا معلومه نه ده

اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُؕ

چې بیشکه الله | فراښه کوی رزق | دپاره دهغه چا | چې غواړی هغه | او په اندازه کوی [رزق]

چې الله ﷻ دچاپه حق کښې اوغواړی | نو هغه دپاره روزی فراخه یا لنډه تنګه کړی

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ۝

بیشکه په دې کښې | خامخا نښې دی | دپاره دهغه قوم | چې ایمان راوړی |

په دې کښې د مومنانو دپاره ډیرې نخښې پرتې دی|

## آسان ترجمه قرآن

اووایه : اے الله! اے د آسمانونو او زمکې پیدا کونکیه! په هر غائب او حاضر باندې علم لرونکیه! هم ته به دخپلو بندګانو په مینځ کښ په هغې خبرو کښ فیصله کوې، په کومو کښ چه دوی اختلاف کوی. او کومو خلقو چه ظلم کړې دې، که هغوی سره هغه ټول هر څه وی، چه په زمکه کښ دی، او دهغې سره نور هم دهغې هومره، نو د قیامت په ورځ بدترین عذاب نه بچ کیدو دپاره به هغه ټول په فدیه کښ ورکوی. او د الله تعالیٰ د طرف نه به هغه ټول هر څه ددوی مخکښ ښکاره شی، د کومو چه ددوی ګمان هم نه وو. هغوی چه کوم کسب کړې وو، دهغې بدئ به هغوی ته ښکاره شی، او کومو خبرو پورې چه دوی ټوقې کولې، هغه به څلور وارو طرفونو نه دوی راګیر کړی بیا د انسان (حال دادې، چه کله هغه ته) څه تکلیف اورسی، نو هغه مونږ رابلی، ددې نه پس چه کله مونږ هغه ته څه نعمت دخپل طرف نه ورکړو، نو هغه وائی چه: دا خو ماته د خپل هنر د وجې نه ملاؤ شوې دی. نه! بلکه دا آزمائش دې، لیکن په دوی کښ اکثر خلق نه پوهیږی. هم دا خبره ددوی نه مخکښ (څه) خلقو هم کړې وه نتیجه دا شوه، چه کوم کسب هغوی کولو، دهغوی هیڅ پکار رانغلو. او هغوی چه کوم کسب کړې وو، دهغې بدئ هم په هغوی باندې راغلې. او ددې (عربو د) خلقو نه چا چه ظلم اوکړو دهغوی د کسب بدئ به هم نزدې ده چه په هغوی باندې راپریوځی. او دوی (الله تعالیٰ لره) نه شی عاجز کولې. او آیا دوی ته معلومه نه ده، چه الله تعالیٰ چه د چا دپاره اوغواړی، رزق فراخوی. او هم هغه رزق تنګوی هم؟ یقیناً په دې کښ دهغې خلقو دپاره لوئې نښې دی. کوم چه ایمان راوړی.

Scanned with Ca

## خلاصه تفسیر

﴿قُلِ اللّٰهُمَّ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ عٰلِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ [ته] ددوی په سخت عناد غمژن کیږه مه او دالله تعالی نه په دعا کښې دا [غواړه چه اې الله تعالی داسمانونو او مزکې پیداکونکیه په پټ او ښکاره پوهیدونکیه] دقیامت په ورځ [به﴿اَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ﴾ ته دخپلو بندګانو په مینځ کښې فیصله وکړې ﴿فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ﴾ په هغې کښې چه دوی په کښې اختلاف کولو] یعنی نه ددې عناد ګروفکر مه کوه بلکه د دوی معامله الله تعالی ته وسپاره هغه به په خپله عملی فیصله وکړی [او] ددې فیصلې په وخت کښې به دا حالت وی چه ﴿وَلَوْ اَنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا﴾[که دظلم] یعنی کفر او شرك [کوونکو سره دټولې دنیا خیزونه وی ﴿وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ﴾ او ددې خیزونو سره دومره نور هم وی﴿لَافْتَدَوْا بِهٖ مِنْ سُوْٓءِ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ او دغه خلق دقیامت دورځې دسخت عذاب نه دخلاصیدو دپاره] بې دریغه [دغه خیزونه ورکوی] اګر چه مقبول نه وی لکه چه سوره مائده کښې دی [ماتقبل منهم] ﴿وَبَدَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مَا لَمْ يَكُوْنُوْا يَحْتَسِبُوْنَ﴾[او د الله تعالی دطرف نه به دوی ته هغه معامله ورپیښه شی دکومې چه د دوی ګمان هم نه وو] خکه چه اول خو د اخرت نه منکر وو بیا په دې کښې هم ددې مدعی وو چه هلته به هم دوی ته عزت او دولت ملاویږی [او] دغه وخت به ﴿وَبَدَا لَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا﴾[دوی ته ټول خپل بدعملونه ظاهرشی﴿وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ﴾ او دکوم] عذاب [سره چه دوی مسخرې کولې هغه به دوی لره ګیرکړی] هسې خو مشرکان دالله تعالی په ذکر سره نفرت کوی او دغیرالله په ذکر سره خوشحالیږی ﴿فَاِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا﴾ [بیا څه وخت چه] دې مشرك [سړی ته څه تکلیف رسیږی نو] دکومو په ذکر سره چه به خوشحالیدل هغه ټول پریږدی صرف [مونږ لره بلی] دکوم نه چه یې وړاند نفرت وو ﴿ثُمَّ اِذَا خَوَّلْنٰهُ نِعْمَةً مِّنَّا﴾[بیاچه کله مونږ دهٔ ته دخپل طرف نه څه نعمت ورکړو نو] په دغه توحید دکوم حقوالې چه په خپله د دوی د اقرار نه ثابت شوې وو قایم نه پاتې کیږی چنانچه ددغې نعمت الله تعالی طرف ته نسبت نه کوی بلکه داسې ﴿قَالَ اِنَّمَآ اُوْتِيْتُهٗ عَلٰى عِلْمٍ﴾[وائی چه دا خوماته] زما [په تدبیرسره ملاوشوې دې] او چونکه نسبت یې الله تعالی طرف ته نه کوی بلکه دخپل تدبیر نتیجه یې ګڼړی په دې وجه په توحید قائم نه پاتې کیږی بلکه د خپلې پخوانۍ دشرك طریقې طرف ته واپس د غیرالله په عبادت کښې لګیاشی وړاندې الله تعالی د دوی قول [انمااوتیته] لره رد فرمائی چه نعمت د دوی دتدبیر نتیجه نه ده ﴿بَلْ هِيَ﴾[بلکه دغه] نعمت دالله تعالی ورکړې شوې او دهغه دطرف نه د انسان ﴿فِتْنَةٌ﴾[یو ازمانش دې] چه اوګوری چه ددې په ملایدولو باندې مونږ پریږدی او کفر کوی یا یادوی او شکر کوی اوددې ازمانش دپاره یې په خنو نعمتونو کښې داسباب او کسب واسطه هم اینښودې ده چه په دې سره زیات ازمانش وشی چه وګوری چه په دې ظاهری سبب نظر کوی یا په علت حقیقیه باند﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾[لیکن اکثر خلق] په دې خبره [نه پوهیږی] په دې وجه دې ته دخپل تدبیر نتیجه وائی او په شرك کښې اخته کیږی وړاند تفریع ده چه ﴿قَدْ قَالَهَا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾[دا خبره] خنو[هغو خلقو هم وئیلې وه کوم چه ددوی نه وړاند تیر شوی دی] لکه قارون چه وئیلې وو [انمااوتیته علی علم عندی][1] یا لکه کوم خلق چه دصانع نه منکر

[1] ترجمه: ماته دا برخه زما دخپل ذاتی هنرمندی سره ملاوشوی دی۔

تیرشوی دی لکه نمرود ،فرعون، ظاهره ده چه دغو هم د څه نعمت نسبت د الله تعالی طرف ته نه کولو بلکه په غیر مکتسب او غیر اختیاری کښې به یې بخت او اتفاق ضرف ته او په مکتسب او اختیاری کښې به یې هنر او تدبیر طرف ته نسبت کولو ﴿فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ [پس د دوی کار وائی د دوی هیڅ په کار رانغله] او دعذاب نه مانع نه شوه [بیا] د نه مانع کیدو نه پس دافع د عذاب هم نه شوه بلکه ﴿فَأَصَابَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوا﴾ [د دوی ټول بدعملونه په دوی راپریوتل] او سزا یاب شول [او] ددې زمانې خلق دې دا خیال نه کوی چه څه کیدل د وړومبو[مخکینو]سره هغه وشول بلکه ﴿وَالَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْ هَٰؤُلَاءِ سَيُصِيبُهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوا﴾[په دوی کښې چه هم کوم ظالمان دی په هغوی به هم د دوی د بدعملونو وبال پریوځی ﴿وَمَا هُم بِمُعْجِزِينَ﴾ او دوی] الله تعالی لره [نه شی عاجزه کولې] چنانچه په بدر کښې یې بنه سزا وموندء وړاند ددې دلیل بیان فرمائي چه څنې احمقان کوم چه نعمت او زرق لره دخپل تدبیر طرف ته منسوب کوی نو ﴿أَوَلَمْ يَعْلَمُوا﴾[ایادې خلقو ته] په حالاتوکښې په غور کولو سره [دامعلومه نه شوه ﴿أَنَّ اللَّهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَن يَشَاءُ﴾ چه الله تعالی چالره چه غواړی زیات رزق ورکوی ﴿وَيَقْدِرُ﴾ او هغه یې] د چادپاره چه غواړی [تنکوی هم ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ﴾ بیشکه په دې] فراخولو اوتنکولو [کښې] په غورکولو سره ﴿لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾[دایماندارو دپاره] چه دپوهې خاوندان وی په دې خبره کښې [نښې دی] یعنی دلیلونه قائم دی چه فراخه کوونکې او تنکوونکې هغه دې تدبیر او بدتدبیر په دې کښې علت حقیقیه نه دې پس څوك چه په دې دلیلونو پوه شی هغه دخپل تدبیر طرف ته نسبت نه کوی بلکه دالله تعالی دمنعم کیدونه نه بې پرواه کیږی کوم چه سبب شوې وو د ابتلاء په شرك سره بلکه هغه مؤحد وی او په مصیبت او راحت کښې د هغه حال او قال [وینا] متناقض او متعارض نه وی

## معارف او مسائل

﴿ قُل لِّلَّهِ الشَّفَاعَةُ جَمِيعًا ۖ لَّهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾صحیح مسلم کښې عبدالرحمان بن عوف رضي الله عنه څخه روایت دې ، فرمائي چې ما صدیقه کائنات عائشه صدیقه رضي الله عنها څخه تپوس اوکړو چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم به د شپې مونځ یعنی تهجد د کوم څیز څخه شروع کول. نو هغوئ رضي الله عنها اوفرمائیل چې کله به رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د تهجدو دپاره پورته شول نو دا دعابه ئې وئیله چې : ﴿اللهم رب جبريل وميكائيل واسرافيل ، فاطر السموات والارض عالم الغيب والشهادة انت تحكم بين عبادك فيما كانوا فيه يختلفون اهدني لما اختلف فيه من الحق باذنك انك تهدي من تشاء الى صراط مستقيم﴾ (۱)

**د دعا قبليدل**: حضرت سعید بن جبیر رضي الله عنه فرمائي چې ماته د قرآن عظیم الشان یو د اسې آیت مبارك معلوم دې چې ددې په لوستلو چې یو کس کومه دعا هم اوغواړی نو هغه به قبلیږی . بیا ئې دا آیت مبارك اولوستو چې : ﴿اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الخ﴾ [قرطبی] (۲)

﴿وَبَدَا لَهُم مِّنَ اللَّهِ مَا لَمْ يَكُونُوا يَحْتَسِبُونَ﴾ سفیان ثوری رحمه الله ددې آیت مبارك لوستلو څخه روستو اوفرمائیل چې هلاکت دې وی ریا کارو دپاره ، هلاکت دې وی ریا کارو دپاره. دا آیت مبارك

(۱) صحیح مسلم، کتاب صلاة المسافرین وقصرها باب صلاة النبی صلی الله علیه وسلم ودعائه باللیل: ج ۱، ص ۲۶۳

(۲) تفسیر القرطبی: ج ۱۵، ص ۲۶۵

Scanned with Ca

دهغه خلقو متعلق دي چې په دنيا کښې خودنې دپاره کارونه کوي. او خلق هم دوئ ته په ښه نظر ګوري هغوئ هم په دې دهوکه کښې وی چې دا عملونه به ددوئ دپاره د خلاصي ذريعه وی خو چونکه په دې کښې اخلاص نه وو په دې وجې الله ﷻ سره دداسې عملونو هيڅ بدله نشته دې. په دې وجه به هلته ددوئ د ګمان پخلاف په دوئ عذاب وی. [قرطبي] (١)

**دمشاجرات صحابه ﷺ متعلق يو اهم هدايت:** ربيع بن خيثم څخه چاد حسين ﷺ د شهادت متعلق تپوس اوکړو نو هغوئ دغم يو آسويلې اوکړو او دا آيت مبارك ئې تلاوت کړو. ﴿قُلِ اللّٰهُمَّ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ عٰلِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ اَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ﴾ او وې فرمائيل چې کله ستاسو په زړونو کښې د صحابه کرامو ﷺ خپلو کښې اختلاف په باره کښې څه خبره راپيدا شی نو ددې آيت مبارك تلاوت کوئی. روح المعاني کښې فرمائی چې دا عظيم الشان تعليم د ادب دې او دا هميشه دپاره ياد ساتل پکار دی (٢).

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ　لَاٰيٰتٍ　لِّقَوْمٍ　يُّؤْمِنُوْنَ ۝　قُلْ　يٰعِبَادِيَ

بيشکه په دې کښی | خامخا نښې دی | دپاره دهغه قوم | چی ايمان راوړی | اووايه | اے بندګانو زما

په دې کښې د مومنانو دپاره ډيرې نخښې پرتې دی | ته [زما دطرفنه خلقو ته] اووايه چې

الَّذِيْنَ　اَسْرَفُوْا　عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ　لَا تَقْنَطُوْا　مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ ؕ

هغه کسانو | چی زياتې مو کړې دې | په نفسونو خپلو باندې | مه نا اميده کيږئ | د رحمت دالله نه

اې زما هغه بندګانو چې په خپلو خانونو مو زياتې کړې دې | دالله ﷻ د رحمت نه مه نااميده کيږئ

اِنَّ اللّٰهَ　يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ　جَمِيْعًا ؕ　اِنَّهٗ　هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۝

بيشکه الله | معاف کوی ګناهونه | ټول | بيشکه هغه | هم هغه ښښونکې مهربانه دې

بيشکه الله ﷻ به ستاسو ټول ګناهونه معاف کړی | بيشکه الله ﷻ ښښونکې زيات رحم کونکې دې

وَاَنِيْبُوْٓا　اِلٰى رَبِّكُمْ　وَاَسْلِمُوْا　لَهٗ　مِنْ قَبْلِ

اوواپس راشئ | خپل رب ته | او غاړه کيدئ | حکمونو دهغه ته | مخکښې ددې نه |

اوتاسو خپل رب ته رجوع اوکړئ | اودهغه تابعدار جوړ شئ | د دې نه مخکښې چې په تاسو

اَنْ يَّاْتِيَكُمُ　الْعَذَابُ　ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ ۝　وَاتَّبِعُوْٓا　اَحْسَنَ

چی راشی تاسو ته | عذاب | بيا به ستاسو سره هيڅ امداد نه کيږی | او پيروی کونی | دښه طرف

باندې عذاب راشی | بيا به [هغه وخت] ستاسومدد نشی کيد لې | او [ائې خلقو!] تاسو ته چه د خپل رب

مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ　مِّنْ رَّبِّكُمْ　مِّنْ قَبْلِ　اَنْ يَّاْتِيَكُمُ

دهغې چی نازل کړې شوې دې تاسو ته | د طرفه درب ستاسو نه | مخکښی ددې نه | چی راشی تاسو ته

د طرفه کوم حکمونه نازل شوې دی | په هغې کښې په افضل عمل اوکړئ | ددې نه وړاندې چې په تاسو

---

(١) تفسير القرطبي: ج ١٥، ص ٢٦٥

(٢) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية: ج ١٧، ص ٤٨٨

Scanned with Ca

الْعَذَابُ بَغْتَةً وَّاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ۝ اَنْ تَقُوْلَ نَفْسٌ

عذاب | ناساپه | او یئ تاسو | ناخبره | هسې نۀ چې بیا اووائی | یو نفس |

ناڅاپه عذاب راشي | اوتاسو پرې خبر هم نه یئ | ..........د دې دپاره چې یو نفس دااونه وائي چې

يٰحَسْرَتٰى عَلٰى مَا فَرَّطْتُّ فِيْ جَنْۢبِ اللّٰهِ وَاِنْ كُنْتُ

اے افسوس دې | په هغه ګناه چې کړې ده ما | په طرف یعنی په حق دالله کښې | او بیشکه چې ومه زۀ

افسوس دې په هغه کوتاهئ چې ما دالله ﷻ په حق کښې کړې وه | .......... اوما صرف

لَمِنَ السّٰخِرِيْنَ ۝ اَوْ تَقُوْلَ لَوْ اَنَّ اللّٰهَ هَدٰىنِيْ لَكُنْتُ

دټوقو کونکونه | یاد اووائی | چې ارمان دې که الله | هدایت کړې وې ماته | نو خامخا به ومه زۀ

ټوقې کولې | ..........یادا اووائی چې که الله ﷻ راته هدایت کړې وې | نوزه به په پرهیزګارانو

مِنَ الْمُتَّقِيْنَ ۝ اَوْ تَقُوْلَ حِيْنَ تَرَى الْعَذَابَ لَوْ اَنَّ لِيْ

دمتقیانونه | یادا اووا ئی | په کوم وخت کښی | چې اووینی | عذاب | افسوس که وې ماله

کښې شامل ووم | یا چې عذاب اووینی نو دابه اووائی که چرته زه [دنیاته] واپس لاړ م |

كَرَّةً فَاَكُوْنَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝ بَلٰى قَدْ جَآءَتْكَ اٰيٰتِيْ

تلل بیا | پس شم به زۀ | دنیکانو خلقو نه | ولې نۀ | بیشکه راغلی وۍ تاته | آیتونه زما

..........نونیکانو کښې به شامل شم | [الله ﷻ به اوفرمائی ولې نه] زما آیتونه تاته درغلی وو

فَكَذَّبْتَ بِهَا وَاسْتَكْبَرْتَ وَكُنْتَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ۝

نو دروغ اوګڼړل تا | هغې لره | او تکبر اوکړو تا | اووې ته | دکافرانونه |

خو تا هغه دروغ اوګڼړل | اوتکبردې اوکړو | اوپه کافرانو کښې شامل پاتې شوې

وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ تَرَى الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ وُجُوْهُهُمْ

اوپه ورځ دقیامت به | ته اووینې | هغه کسان | چې دروغ ئې تړلي دی | په الله پورې | مخونه دهغوئ به

اودقیامت په ورځ به ته دهغه کسانو مخونه تک تور اووینې | چې په الله ﷻ ئې دروغ تړل

مُّسْوَدَّةٌ ۭ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْمُتَكَبِّرِيْنَ ۝ وَيُنَجِّي اللّٰهُ

تور وی | آیا نشته | په دوزخ کښی | ځائې | دپاره دتکبر کونکو خلقو | او خلاصې به ورکړی الله

ایا د متکبرو خلقو ځائې په دوزخ کښې نه دې | .......... او [چا چې د کفر او ګناه نه]

الَّذِيْنَ اتَّقَوْا بِمَفَازَتِهِمْ لَا يَمَسُّهُمُ السُّوْٓءُ

هغه کسانوله | چې پرهیزګاران وی | په سبب دکامیابئ دهغوئ | نۀ به رسی هغوئ ته | تکلیف [سختی

ځان بچ اوساتلو | الله ﷻ به هغوئ ته په کامیابئ سره [ددوزخ] نه نجات ورکړی | [هلته] به هغوئ ته

وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝

او نۀ به هغوئ غمژن کیږی |

هیڅ تکلیف نه رسی | اونه به غمژن شی

Scanned with Ca

## آسان ترجمه قرآن

اووايه چه: اے زما هغې بندګانو! کومو چه په خپلو ځانونو باندې زياتې کړې دي، د الله تعالیٰ د رحمت نه مايوسه کيږئ مه. يقين اوکړئ. الله تعالیٰ ټول په ټوله ګناهونه معاف کوی يقيناً هغه ډير بخونکې، او ډير مهربان دې. او تاسو خپل پروردګار طرف ته رجوع اوکړئ او دهغه فرمان بردار جوړ شئ، مخکښې ددې نه چه تاسو ته عذاب راشي، بيا به ستاسو سره مدد نشي کولې او ستاسو د پروردګار د طرف نه چه په تاسو باندې کوم بهترين کلام نازل کړې شوې دې، دهغې تابعداری اوکړئ. مخکښې ددې نه چه په تاسو باندې ناساپه عذاب راشي، او تاسو ته پته هم ونه لګی. هسې نه چه څوک دا اووائی چه: هائے افسوس دې، زما په هغې کوتاهئ باندې، چه ما د الله تعالیٰ په معامله کښې کړې ده او رشتيا خبره داده، چه زه د (الله تعالیٰ احکامو پورې) ټوقې کونکو کښې شامل شوې ووم. يا څوک داسې اووائی: چه که الله تعالیٰ ماته هدايت را کړې وې، نو زه به هم متقيانو کښې شامل شوې ووم. يا چه کله عذاب په خپلو سترګو باندې اووينی، نو دا اووائی چه: کاش که وې مالره واپس تلل دنيا ته. نو زه به نيکو خلقو کښې شامل شم. ولې نه (تاته هدايت ولې نه وو درکړې شوې؟) زما آيتونه تاته راغلې وو، بيا تا هغې لره دروغ اوګڼل او د لويئ په غرور کښې اخته شوې، او په کافرانو کښې شامل شوې. او د قيامت په ورځ به ته اووينې، چه کومو خلقو په الله تعالیٰ باندې دروغ تړلې دی، دهغوی مخونه به تور شوې وی. آيا په جهنم کښې به د داسې تکبر کونکو خلقو ځائې د اوسيدلو نه وی؟ او کومو خلقو چه تقوىٰ اختيار کړې ده، هغوی ته به الله تعالیٰ نجات ورکړی اوخپل منزل ته به ئې اورسوی، هغوی ته به هيڅ تکليف نه رسيږی، اونه به هغوی ته د څه خبرې غم وی.

## خلاصه تفسير

﴿قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ﴾ [ته] ددې تپوس کوونکو په جواب کښې زما دطرف نه [ووايه چه اے زمابندګانو کومو چه] کفر او شرک کړې دې ﴿اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ﴾ [په خان ئې زياتې کړې دې چه تاسو د الله تعالى درحمت نه مه نااميده کيږی] او داخيال مه کوئ چه د ايمان راوړونه پس به په تيرکفر اوشرک باندې مؤاخذه وی پس دا خبره نه ده بلکه ﴿اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا﴾ [په يقين سره الله تعالى به] داسلام په برکت سره [ټولو] تيرو [ګناهونو لره] اګر چه کفراو شرک ولې نه وی [معاف کوی ﴿اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ﴾ واقعی هغه لوئ بخښنې والا لوئ رحمت کوونکې دې او] چونکه د دې معافئ شرط او طريقه د کفرنه توبه کول او اسلام راوړول دی په دې وجه [تاسو] دکفر نه دتوبې کولو دپاره ﴿وَاَنِيْبُوْٓا اِلٰى رَبِّكُمْ﴾ [دخپل رب طرف ته رجوع وکړئ او] داسلام په قبلولو کښې ﴿وَاَسْلِمُوْا لَهٗ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ الْعَذَابُ﴾ [د هغه فرمانبرداری کوئ وراند ددې نه چه] داسلام نه راوړو په صورت کښې [په تاسوعذاب] د الله تعالى [واقع شي] ﴿ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ﴾ او [بيا] دغه وخت به دهيچا دطرف نه [ستاسو څه مدد نه شي کيدلې] يعنی لکه څنګه چه داسلام راوړو په صورت کښې ټول کفر او شرک معاف کيږی دغه شان داسلام نه راوړو په صورت کښې به په دې شرك او كفر عذاب وی چه هيڅ دفعيه ئې نشته [او] هرکله چه داخبره ده چه داسلام نه راوړولو دا انجام دې نو [تاسو] لره پکار دی چه ﴿وَاتَّبِعُوْٓا اَحْسَنَ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ الْعَذَابُ بَغْتَةً﴾ [دخپل رب نه په راغلو ښوښو حکمونو باند

Scanned with Ca

چلیږئ وړاند ددې نه چه په تاسو ناڅاپه عذاب راشی﴿وَاَنۡتُمۡ لَا تَشۡعُرُوۡنَ﴾ او تاسوته به] ددې [خیال هم نه وی] مراد ددې نه عذاب داخرت دې په قرینه د مابعد او ناڅاپه ئې یا خو ځکه ووئیل چه په اوله شپیلئ سره به ټول روحونه بې هوشه شی بیا به د دویمې شپیلئ نه پس دعذاب معلومیدل ناڅاپه وشی او یا ځکه چه څنګه عذاب واقع شی وړاند د وقوع نه ددې حقیقت ادراك نه وو او داسې ګمان ئې نه وو دګمان خلاف واقعې راپیښیدو لره ئې په ناڅاپه سره تعبیر کړو او دا دانابت او اسلام او اتباع حکم ځکه ورکولې شی چه [چرته] صبا دقیامت په ورځ ﴿اَنۡ تَقُوۡلَ نَفۡسٌ یّٰحَسۡرَتٰی عَلٰی مَا فَرَّطۡتُّ فِیۡ جَنۡۢبِ اللّٰهِ﴾[څوك سړې ووائی چه افسوس زما په دې کوتاهئ کومه چه ما دالله تعالی په جناب کښې وکړه] یعنی دده په اطاعت کښې چه زما نه کوم تقصیر وشو ﴿وَاِنۡ کُنۡتُ لَمِنَ السّٰخِرِیۡنَ﴾[او زه خو دالله تعالی په حکمونو پورې خندا کوونکې پاتې شوم ﴿اَوۡ تَقُوۡلَ لَوۡ اَنَّ اللّٰهَ هَدٰىنِیۡ﴾ یا څوك داسې ووائی چه که الله تعالی] په دنیا کښې [ماته هدایت کولې ﴿لَکُنۡتُ مِنَ الۡمُتَّقِیۡنَ﴾ نوزه به هم دپرهیزګارانو نه وم] مګر دهدایت نه محروم شوم په دې وجه داټول تقصیر اوکوتاهی وشوه چه زه په دې کښې معذور یم ﴿اَوۡ تَقُوۡلَ حِیۡنَ تَرَی الۡعَذَابَ﴾[یا څوك عذاب لره ووینی او داسې ووائی ﴿لَوۡ اَنَّ لِیۡ کَرَّةً فَاَکُوۡنَ مِنَ الۡمُحۡسِنِیۡنَ﴾ چه کاش زما] دنیاته [بیا واپسی وشوې بیا به زه دنیکانو بندګانو نه شم] او په دویم قول کښې چه دا وئیلی شوی وو چه که ماته هدایت شوې وی نو زه به هم متقی شوې وم وړاند ددې په جواب کښې فرمائی چه ﴿بَلٰی قَدۡ جَآءَتۡكَ اٰیٰتِیۡ﴾[البته بیشکه تاته زما ایتونه در رسیدلی وو﴿فَکَذَّبۡتَ بِهَا﴾ پس تا هغه درغژن کړل او] دروغژن کول په څه شك سره نه وو بلکه﴿وَاسۡتَکۡبَرۡتَ﴾ [تاتکبر وکړو او] داهم ونه شوه چه بل وخت د دماغ درست شوی وې بلکه ﴿وَکُنۡتَ مِنَ الۡکٰفِرِیۡنَ﴾[ته په کافرانو کښې] همیشه دپاره [پاتې شوې] او په دې وجه ستا دا وینا غلطه ده چه ماته هدایت نه دې رسیدلی [او] وړاندې په کفر باند د اصرار کوونکی او دکفر نه دتوبه کوونکی دسزا او جزا په لنډه ذکر فرمائی چه اے پیغمبره﴿وَیَوۡمَ الۡقِیٰمَةِ تَرَی الَّذِیۡنَ کَذَبُوۡا عَلَی اللّٰهِ وُجُوۡهُهُمۡ مُّسۡوَدَّةٌ﴾ [ته به دقیامت په ورځ د هغو خلقو مخونه تور ووینې کومو چه په الله تعالی دروغ وئیلی وو] په دې کښې دوه کارونه راغلل اول کومه خبره چه الله تعالی نه ده کړې مثلا شرك وغیره هغې ته دا اونیل چه الله تعالی وئیلې ده دویم او کومه خبره چه الله تعالی وئیلې ده لکه قرآن هغې ته داوئیل چه الله تعالی نه ده وئیلې ﴿اَلَیۡسَ فِیۡ جَهَنَّمَ مَثۡوًی لِّلۡمُتَکَبِّرِیۡنَ﴾[ایا ددې متکبرانو ځائ په جهنم کښې نه دې] کوم چه عنادا او تکبرا تکذیب کوی ﴿وَیُنَجِّی اللّٰهُ الَّذِیۡنَ اتَّقَوۡا بِمَفَازَتِهِمۡ﴾[او کوم خلق چه] د کفر اوشرك نه [بچ کیدل الله تعالی به هغو خلقو ته دکامیابئ سره] د جهنم نه [نجات ورکړی﴿لَا یَمَسُّهُمُ السُّوۡٓءُ وَلَا هُمۡ یَحۡزَنُوۡنَ﴾ هغوی ته به] ذره [تکلیف ونه رسیږی اونه به هغوی غمژن وی] ځکه چه په جنت کښې غم نشته

### معارف او مسائل

﴿قُلۡ یٰعِبَادِیَ الَّذِیۡنَ اَسۡرَفُوۡا﴾سعید بن جبیر رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کوی چې څه خلق داسې وو چې په ناحقه قتلونه اوکړل او ډیر زیات ئې اوکړل او زنا ئې اوکړه او دې کښې هم د حد نه تیر شو ، هغوئ رسول کریم ﷺ ته عرض اوکړو چې تاسو مونږ کوم دین طرفته رابلئ هغه خو ډیر ښکلې دین دې خو مونږ سره فکر دادې چې هر کله مونږ دومره لوئې لوئې ګناهونه کړی دی

Scanned with Ca

نو اوس که مونږ اسلام کښې داخل شو نو آیا زمونږ توبهٔ به قبوله شي ؟ نو په دې باندې الله تعالي دا آیت مبارك نازل کړو [قرطبي][1].

ددې آيت مبارك خلاصه دا شوه چې د مرګ نه مخکښې مخکښې د هرې لوئې ګناه نه که توبه اوکړې شي نو هغه قبليږي تر دې که د شرك اوكفر نه هم توبه اوويستلې شي نو هم قبليږي. او په رښتوني توبې سره ګناهونه معاف کيږي. په دې وجه نه دی پکار چې يو کس د الله تعالى د رحمت نه نااميده شي.

عبدالله بن عمر ﷺ فرمائي چې دا آيت مبارك قرآن عظيم الشان کښې د ګناهګارو دپاره د ټولو نه زيات اميد لرونکی آيت مبارك دې. خو ابن عباس ﷺ فرمائي چې د ټولونه زيات د رجاء او اميد هم دا آيت مبارك دې چې: ﴿وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْمَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ﴾[2]

﴿وَاتَّبِعُوْٓا اَحْسَنَ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ﴾ ، ﴿اَحْسَنَ مَآ اُنْزِلَ﴾ نه مراد قرآن عظيم الشان دې ، او پوره قرآن عظيم الشان احسن دې ، او قرآن عظيم الشان ته ﴿اَحْسَنَ مَآ اُنْزِلَ﴾ دې اعتباره سره وئيلې شی چې د الله ﷻ د طرفه څومره کتابونه نازل شوی دی لکه تورات ، انجيل ، زبور په هغه ټولو کښې د ټولو نه زيات احسن او اکمل قرآن عظيم الشان دې. [قرطبي][3].

﴿ اَنْ تَقُوْلَ نَفْسٌ يّٰحَسْرَتٰى﴾ نه تر ﴿مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ﴾ ، دې درې واړو آيتونو مبارکو کښې هم ددې مضمون تاکيد کړې شوې دې کوم چې ددې نه وړاندې درې آيتونو کښې بيان فرمائيلې شوې دې چې لوئې نه لوئې مجرم کافرو فاجر لره هم د الله تعالى د رحمت نه مايوسه کيدل نه دی پکار. که هغه توبه اوباسی نو الله ﷻ به ددهٔ ټول ګناهونه معاف کړی ﴿اَنْ تَقُوْلَ نَفْسٌ﴾ سره درې واړو آيتونو کښې اوفرمائيل چې الله ﷻ هره ګناه تر دې پورې چې کفر او شرك هم په توبه سره معاف کوی. مګر ياد ساتئ چې د توبې وخت د مرګ نه وړاندې وړاندې دې ، مرګ نه پس د قيامت په ورځ که څوك توبه اوباسي يا پخپلو کړو باندې پښيمانه شي نو هغې بيا هيڅ فائده نشته دې.

لکه څنګه چې به د قيامت په ورځ ځينې کفار فاجران خواهش کوی. څوك به ډير زيات افسوس کوی چې ما ولې د الله ﷻ اطاعت او نه کړو. څوك به خپل تقدير باندې الزام لګوی او ځان به بچ ګول غواړی چې که الله ﷻ ماته هدايت کړې نو څه به هم متقيانو کښې داخل شوې اوم. نو چې الله ﷻ راته هدايت اونه کړونو څه څه اوکړم. څوك به دا خواهش کوی چې کاش څه دنيا ته دوباره اوليږلې شم نو څه به ريښتونې مسلمان جوړ شم او د الله ﷻ د احکامو به پوره پوره اطاعت کوم. خو په هغه وخت کښې به دا خواهشات او آرزوګانې هيڅ پکار نه رازی.

کيدې شی دا درې قسمه خواهشات د مختلفو خلقو وی. او دا هم ممکن دی چې دا درې واړه قسمه آرزوګانې پرله پسې د کافرانو هم د يو ډلې وی. څکه چې آخری قول چې په هغې کښې دنيا ته د واپس تللو خواهش دې ، هغه آيت مبارك کښې دا هم مذکور دی چې هغه بهٔ د عذاب

---

[1] تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۱۵، ص ۲۶۸، وصحيح البخاري، كتاب التفسير، باب تفسير سورة الزمر، قوله يعبادى الذين الآية: ج ۲، ص ۷۱۰

[2] تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۲۶۹

[3] تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۲۷۰

Scanned with Ca

د مشاهدنه کیدو نه پس وی . ددې نه په ظاهره دا معلومیږی چې رومبی دواړه اقوال د عذاب د مشاهدې نه وړاندې دی چې د قیامت د اولې ورځې نه به خپلې عملی کوتاهیانې او خپل ګناهونه یادوی او دا به وائی ﴿يٰحَسْرَتٰى عَلٰى مَا فَرَّطْتُّ فِيْ جَنْۢبِ اللّٰهِ﴾ بیا به د عذر او بهانې کوی چې مونږ خو معذوره وو که چرې الله ﷻ مونږ ته هدایت کړې وې نو مونږ به هم متقیان او بعدار وې . نو هرکله چې هغه رب کریم مونږ ته هدایت اونه کړو نو په دې کښې زمونږ څه قصور دې . بیا چې کله عذاب اووینی نو وائی به چې کاش مونږ دنیا ته دوباره اولیږلې شوې . الله ﷻ په دې دریو واړو آیتونو کښې اوفرمائیل چې د الله ﷻ مغفرت او رحمت ډیر لوئې دې . خو دا هله حاصلیدې شی چې د مرګ نه وړاندې وړاندې توبه اوباسې . په دې وجه مونږ هم اوس دا وایو داسې نه وی چې بیا تاسو د مرګ نه پس پښیمانه یئ او بیا په آخرت کښې فضول خواهشونه او آرزوګانې کوئ ﴿بَلٰى قَدْ جَآءَتْكَ اٰيٰتِىْ فَكَذَّبْتَ بِهَا﴾ دې آیت مبارك کښې د کافرانو ددې خبرې جواب دې چې که الله ﷻ هدایت کړې وې نو مونږ به هم متقیان وې . ددې آیت مبارك حاصل دادې چې الله ﷻ خپل پوره هدایت کړې وو ، خپل کتابونه او آیتونه ئې لیږلی وو . په دې وجې ددوئ دا وینا غلط ده چې که الله تعالی مونږ ته هدایت کړې وې . او د هدایت نه پس په نیکئ او اطاعت باندې الله تعالی څوك مجبوره کړی نه دی . بلکه بنده چې کومه لاره اختیارول غواړی که په حق لار باندې ځی او که په باطله لار باندې تګ کوی . همدا د بنده امتحان وو . په دې باندې د هغه کامیابی او ناکامی موقوف وه . چا چې پخپل اختیار سره د ګمراهئ لار اختیار کړه نو هغه ددې پخپله ذمه دار دې .

اَللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ ۫ وَّهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ

| الله پیدا کونکې دې | دهر څیز | او هغه په هر څیز باندې

هم الله ﷻ دهر څیز پیدا کونکې دې

وَّكِيْلٌ ۝ لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا

نظرساتونکې دې |هغه لره دی | کنجیانې د آسمانونو | او د زمکې |او هغه کسان |چې کفر ئې او کړو

او هم هغه په هر څیز باندې نګران دې |د آسمانونو او زمکې کنجیانې هم د هغه په اختیار کښې دی

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ اُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝ قُلْ اَفَغَيْرَ اللّٰهِ

د آیتونو د الله سره | دغه کسان چې دی | هم دوئ په نقصان کښې دی |ورته اووایه| آیا نو بې د الله نه

او څوک چې د الله ﷻ د آیتونو نه انکار کوی |هم هغوئ په تاوان کښې دی| [ائې پیغمبره] ته ورته اووایه

تَاْمُرُوْٓنِّىْٓ اَعْبُدُ اَيُّهَا الْجٰهِلُوْنَ ۝ وَلَقَدْ اُوْحِيَ

تاسو حکم کوئ ماته | چې بندګی اوکرم دبل چا | اے نا پوهانو |او بې شکه وحی کړې شوی ده

ائې جاهلانو آیا تاسو بیا هم ماته د نورچا دعبادت فرمائشونه کوئ ؟ | او بیشکه چې تاته

اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ لَىِٕنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ

تاته |او هغه کسانو ته | چې مخکښې ستا نه وو | که چرې شرك اوکړو تا | نو خامخا به ضائع شی

او ستا نه وړاندې نور پیغمبرانو ته هم وحی لیږلې شوې وه | [ائې بنیادمه] که تا شرك اوکړو نو ټول عملونه به دې

عَمَلُكَ وَلَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ۝ بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ

عمل ستا | او خامخا به شې ته | دتاوانیانو نه | بلکه دالله | پس بندګي کوه ته |

برباد شي | او په تاوان کښې به اوغورزیږې | .............ته خو بس صرف د یو الله ﷻ عبادت کوه

وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ۝ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ ق

او شه دشکرایستونکو نه |اوونه کړو قدر[تعظیم]ادوئ دالله|لکه څنګه چې حق دې دقدرکولو دهغه

اودهغه شکرګزارو کښې شامل شه|خو دې خلقو د الله ﷻ هغسې قدر اونه کړلو څنګه چې پکار وو

وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ

او زمکه | ټوله | به په موټی دهغه کښې وی | په ورځ دقیامت | آسمانونه به

ددې باوجود چې دقیامت په ورځ به ټوله زمکه دهغه په موټی کښې وی |اوټول آسمانونه به

مَطْوِيّٰتٌۢ بِيَمِيْنِهٖ ط سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا

نغښتلې شوې وی | په ښی لاس دهغه کښې | پاکی ده هغه لره | اواوچت دې | دهغې نه

دهغه په ښی لاس کښې رانغښتی وی | ..........هغه دپاره پاکی ده| اوددوئ جوړ کړی

يُشْرِكُوْنَ۝

چې دوئ ئې ورسره شریکوی

شرک نه ډیر اوچت دې |

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالیٰ د هر څیز پیدا کونکې دې، او هم هغه د هر څیز ساتونکې دې. د ټولو آسمانونو او زمکې کنجیانې هغه سره دی، او کومو خلقو چه د الله تعالیٰ د آیتونو نه انکار کړې دې، هم دغه کسان نقصان والا دی. اووایه چه: آیا بیا هم اے جاهلانو! تاسو ماته وایئ، چه د الله تعالیٰ نه سوا د بل چا عبادت اوکړم؟ او دا حقیقت دې، چه تاته او ستا نه مخکښې ټولو پیغمبرانو ته د وحې په ذریعې سره دا خبره کړې شوې وه، چه که تا شرک اوکړو، نو ستا ټول عملونه به تباه شي، او ته به نقصان والؤ کښې شامل شې. لهذا ددې په ځائې ته د الله تعالیٰ عبادت اوکړه، او په شکرګزار خلقو کښې شامل شه. او دې خلقو د الله تعالیٰ قدر نه دې پیژندلې، څرنګه چه د هغه د قدر پیژندلو حق دې حالانکه ټول په ټوله زمکه به د قیامت په ورځ د هغه په موټی کښې وی، او ټول په ټوله آسمانونه به د هغه په ښي لاس کښې راغونډ کړې شوې وی، هغه پاک دې، او ډیر اوچت دې دهغه شرک نه، کوم چه دا خلق کوی.

## خلاصه تفسیر

﴿اَللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ [الله تعالی پیداکونکې دې دهرڅیز ﴿وَّهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ۝﴾ او هغه د هرڅیز نګهبان دې ﴿لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط﴾ د هغه په اختیار کښې دی کنجیانې د اسمانونو اومزکې] یعنی ددې ټولو څیزونو موجد او خالق هم هغه دې او دوی لره باقی پاتې کوونکې حفاظت کوونکې هم هغه دې کوم چه مطلب دې دلفظ د وکیل او په دې ټولو مخلوقاتو کښې

تصرفات او انقلابات هم دهغه کار دې دا مطلب دې د [له‌مقاليد السموات والارض] ځکه چه دچا په لاس کښې دخزانو کنجياني وی هغه عادتا په هغو کښې دتصرفاتو مالك وی او هرکله چه دټولو کائناتو خالق هم بغير دشرکت د بل نه هغه دې محافظ هم هغه دې مالك دتصرفاتو هم هغه نو عبادت هم صرف د هغه کيدل پکار دی او دسزا او جزا مالك هم هغه پکار دې کوم چه نچوړ دې دتوحيد او چونکه داټولې مقدمې مشرکانو هم تسليمولې نوپه هغوی لازمه وه چه توحيدئ هم منلې په دې وجه فرمائی ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ﴾[کوم خلق چه] په دې دپاسه هم [دالله تعالى ايتونو لره] کوم چه دتوحيد او جزا سزا په مضمون مشتمل دی [نه منی﴿أُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ﴾ هغوی به په لوئ تاوان کښې وی] او هغه خلق خو په خپله په شرك اوكفر کښې اخته وو اوس ددوی حوصله دومره زياته شوه چه تاته هم خپلې طريقې ته د راوستو فرمائش کوی پس ﴿قُلْ اَفَغَيْرَ اللّٰهِ تَاْمُرُوْٓنِّيْٓ اَعْبُدُ اَيُّهَا الْجٰهِلُوْنَ﴾[ته ووايه چه اے جاهلانو] په ذکر شوو دليلونو سره دتوحيد مکمل ثبوت او دکفراوشرك دباطلوالی نه پس [بيا هم تاسو ماته د غيرالله د عبادت کولو دپاره وايئ] او تاته دکفر او شرك صادريدل څنګه ممکن دی هرکله چه ﴿وَلَقَدْ اُوْحِيَ اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ﴾ [ستاطرف ته هم اوکوم پيغمبران چه ستانه وړاندې تيرشوی دی دهغوی طرف ته هم دا وحی ليږلې شوې ده چه] هرامتی ته ئ ورسوئ ﴿لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ﴾[چه که ته شرك وکړې نو ستاکړې کار به ټول عبث شی ﴿وَلَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ﴾ او ته به په خساره کښې پريوځې] په دې وجه ته چرې هم شرك ته مه نږدې کيږه ﴿بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ﴾[بلکه دالله تعالى عبادت کوه﴿وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ﴾ او د هغه شکر ګذار اوسيږه] اوهرکله چه انبياء ﷺ ته چه ته په کښې هم داخل يئ دتوحيد حقوالې او دکفر اوشرك باطلوالې په ذريعه دوحی ثابت شو او هغوی په دې ماموره کړې شول چه نوروته هم ددې عقيدې هدايت کوی نو ددې مشرکانو ستانه دکفر اوشرك توقع ساتل بغير د حماقت نه نور څه کيدې شی [او] افسوس چه ﴿وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ﴾[دې خلقو د الله تعالى قدر او عظمت ونه پيژندو څنګه چه پيژندل ئ پکار وو﴿وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ﴾ حال دادې چه ټوله مزکه به د هغه په موټی کښې وی﴿يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌ بِيَمِيْنِهٖ﴾ دقيامت په ورځ او ټول اسمانونه به رانغښتی شوی وی د هغه په ښی لاس کښې ﴿سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ﴾ هغه پاك او اوچت دې ددوی دشرك نه]

## معارف او مسائل

﴿لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ ﴿مَقَالِيْدُ﴾ د مقلاد يا د مقليد جمع ده .او ددې معنى د تالې کنجى ده. او ځينې حضراتو ونيلی دی چې اصل کښې دا لفظ د فارسئ ژبې څخه معرب دې . فارسئ کښې کنجئ ته کليد وائی . دا ئې معرب کړو او ددې څخه ئې اقليد جوړ کړو. او بيا ئې ددې جمع مقاليد راوړه . [روح][1]

د چا په لاس کښې چې کنجياني وی نو ددې دا مطلب وی چې دا کنجيانو والا ددې مالك دې. پدې وجه د آيت مبارك څخه مراد دادې چې په آسمانونو او زمکو کښې چې د نعمتونو کومې خزانې دی ، ددې ټولو کنجيانې د الله ﷻ په لاس کښې دی ، هم هغه ذات ددې محافظ دې او

[1]) تفسير روح المعانى تحت هذه الآية: ج ١٨، ص ١٠

هم هغه ذات ددې متصرف دې ، چا ته چې خومره اوغواړي ، کله اوغواړي او څنګه چې اوغواړي نو ورکوی یې او چې چاته اوغواړي نو نه ورکوی.
داحادیثو ځینې روایتونو کښې دریمې کلمې ﴿سبحان الله والحمدلله ولآ اله الاالله والله اکبرولاحول ولا قوة الا بالله العلی العظیم﴾ ته مقالید السماوات والارض وئیلې شوی دی . ددې حاصل دادې چې کوم کس سحر ماښام دا کلمه وائی الله ﷻ هغه ته د آسمانونو او زمکې خزانې ورکوی.
ابن جوزی دې روایتونو ته موضوع وئیلی دی . مګرنورو محدثینو دې ته ضعیف احادیث ګرځولې دې . او دا په فضائل اعمال کښې لیکلې شی . [روح المعانی][1]
﴿وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌۢ بِيَمِيْنِهٖ﴾ د متقدمینو اسلافو په نزد دا په حقیقی معنو کښې دی چې د قیامت په ورځ به زمکه د الله ﷻ په موټی کښې وی او آسمان به راغونډ شی او د الله ﷻ په ښی لاس کښې به وی . او د آیت مبارك مضمون د متاشبهات څخه دې . او ددې حقیقت د الله ﷻ څخه سوا بل چا ته نه دې معلوم . او عامو خلقو دپاره دا ممنوع دی چې دا حقیقت معلوم کړی . صرف په دې ایمان راوړل پکار دی چې ددې څخه د الله ﷻ څه مراد دې هغه حق او صحیح دی . او چونکه ددې آیت مبارك ظاهری الفاظو څخه الله ﷻ دپاره دموټی او ښی لاس کیدل معلومیږی او دا د بدن د جوارح اندامونو څخه دی . او الله ﷻ د بدن او جسمانیت څخه پاك دې . او د آیت مبارك په آخر کښې ئې دې طرفته اشاره اوکړه چې دا الفاظ په خپلو اندامونو باندې مه قیاس کوئی. الله ﷻ ددې څه پاك دې . ﴿سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ﴾ او متاخرین علماء کرام دا آیت مبارك لره یو تمثیل او مجاز ګرځوی او ددې معنی دا بیانوی چې د یو ځیز په موټی او ښی لاس کښې کیدل د کنایه په طور دی . ددې څخه مکمل قبضه او قدرت مراد دې . والله سبحانه وتعالی اعلم .

| فَصَعِقَ | فِي الصُّوْرِ | وَنُفِخَ |
|---|---|---|
| پس دبې هوښۍ سره به مره راپریوزی | په صور [شپیلۍ] کښې | اوپوکې به اوکړې شی |
| نو د آسمان او زمکې | | او شپیلۍ به پوک وهلې شی |

| مَنْ | اِلَّا | فِي الْاَرْضِ | وَمَنْ | فِي السَّمٰوٰتِ | مَنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغه چانه | ماسوا | چې په زمکه کښې دی | او هغه څوك | چې په اسمانونو کښې دی | هغه څوك |
| په مینځ کښې چې څومره مخلوق دې ټول بۀ بې هوشه شی | | | خو څوك چې الله ﷻ [بچ ساتل] اوغواړی | | |

| قِيَامٌ | فَاِذَا هُمْ | اُخْرٰى | فِيْهِ | ثُمَّ نُفِخَ | شَآءَ اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| ولاړ وی | پس یودم به هغوئ | بل ځل | په هغې کښې | بیا به پوکې اوکړې شی | چې اوغواړی الله |
| او کتل به کوی | نو ټول به راپاځی | | شپیلۍ پوک وهلې شی | بیا به په دویم ځل | |

| وَوُضِعَ الْكِتٰبُ | بِنُوْرِ رَبِّهَا | الْاَرْضُ | وَاَشْرَقَتِ | يَنْظُرُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| او کیښودې به شی کتاب | په نور درب خپل سره | زمکه | اوروښانه به شی | اوګوری به |
| اوعملنامه بۀ [مخامخ] کیخودلې شی | او زمکه به دخپل رب په نور باندې روښانه شی | | | |

[1] تفسیر روح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱۸، ص ۱۱، وکنز العمال (بالفاظ مختلفة) رقم الحدیث: ۴۵۸۲

Scanned with CamScanner

وَجِایْٓءَ بِالنَّبِیّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ وَقُضِیَ بَیْنَهُمْ

او رابه ویستې شي | پیغمبران | او ګواهان | او فیصله به اوکړې شي | په منځ دهغوئ کښې |

اوپیغمبران او [نور] ګواهان به حاضر کړې شي | اودخلقو په مېنځ کښې به په انصاف سره فیصله

بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا یُظْلَمُوْنَ ﴿۶۹﴾ وَوُفِّیَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا

په حقه سره | او دهغوئ سره په ظلم نهٔ کیږي | او پوره به ورکړې شي | هر نفس ته | هغه |

اوکړې شي | اود ذرې بر ظلم به پرې اونکړې شي | اوهر یو کس ته به د خپلو عملونو پوره پوره

عَمِلَتْ وَهُوَ اَعْلَمُ بِمَا یَفْعَلُوْنَ ﴿۷۰﴾ وَسِیْقَ

چې کړې وي هغه | او هغه ښه پوهیږي | په هغه څه | چې کوي ئې دا خلق | اوابه شړلې شي |

بدله ملاو شي | اودوی چې څه کوي الله ﷻ ته ټول په ښه شان معلوم دي | او کافران به ټول

الَّذِیْنَ كَفَرُوْٓا اِلٰی جَهَنَّمَ زُمَرًا ؕ حَتّٰٓی اِذَا

هغه کسان | چې کفر ئې کړې وؤ | دوزخ ته | ډلې ډلې | تر دې پورې | چې کله |

دوزخ طرفته اوشړلی شی | ......څه وخت چې دوزخ ته ورنږدې شي |

جَآءُوْهَا فُتِحَتْ اَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ

راشي هغوئ دوزخ ته | نو بیرته به کړې شي | دروازې دهغې | اووائي به | هغوئ ته |

نودهغې دروازې به ورته پرانستې شي | اود دوزخ محافظان به اووائی | چې

خَزَنَتُهَآ اَلَمْ یَاْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ یَتْلُوْنَ عَلَیْكُمْ

کارندګان ددوزخ | ایا نهٔ وؤ درغلی تاسو ته | رسولان | ستاسو نه | چې لوستل به ئې | په تاسو باندې

آیا تاسو ته د خپل قوم نه پیغمبران نه وو راغلی | چې د خپل رب آیتونه ئې درته آورولی وې

اٰیٰتِ رَبِّكُمْ وَیُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ یَوْمِكُمْ هٰذَا ؕ قَالُوْا

آیتونه درب ستاسو | اویرولې به ئې تاسو | دملاقات | ددې ورځې ستاسو نه | اوبه وائی هغوئ

اوتاسو ئې ددې ورځې د راتلو نه ویرولی وئ | ................ هغوئ به اووائی چې

بَلٰی وَلٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ عَلَی الْكٰفِرِیْنَ ﴿۷۱﴾

هو راغلی وؤ | ولیکن | ثابته شوه | خبره د عذاب | په کافرانو باندې |

ولې نه ، | ..........خود عذاب وعده اخر په کافرانو باندې پوره شوه |

قِیْلَ ادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا ۚ فَبِئْسَ

اوبه ونیلې شي ورته | ننوزئ دروازو | د دوزخ ته | همیشه به یئ | په هغې کښې | پس ډیر بد دې

ورته به اووئیلې شي چې [څئ اوس] ددوزخ په دروازو ورداخل شئ | همیشه به په کښې پراته یئ

مَثْوَی الْمُتَكَبِّرِیْنَ ﴿۷۲﴾ وَسِیْقَ الَّذِیْنَ اتَّقَوْا

ځائې داوسیدو | دتکبر کونکو | او روان به کړې شي | هغه کسان | چې خان به ئې ساتلو دنافرمانئ

د متکبرو خلقو د استوګنې ځائې ډیر خراب دې | اوڅوک چې دخپل رب د نیولو نه اوویریدو

Scanned with Ca

رَبَّهُمْ اِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْهَا

درب خپل نه | جنت ته | ډلې ډلې | تر دې پورې | چې کله | راشي هغوئ دغه جنت ته |

هغوئ به ټولې ټولې جنت ته روان کړې شي | څه وخت چې هغې ته نژدې شي |

وَفُتِحَتْ اَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا

او بيرته کړې شوي به وي | دروازې دهغې | او اوبه واني | هغوئ ته | انتظام کونکې فرښتې دهغې |

او دروازې به ورته پرانستلې شوي وي | او دهغې محافظان به ورته او وائي

سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوْهَا خٰلِدِيْنَ ۝

سلام دې | په تاسو باندې | ډير ښۀ شوئ تاسو | پس ننوزئ دې ته | دهميشه دپاره |

چې په تاسو دې سلام وی | تاسو ښۀ خلق يئ | نو دې جنت ته د هميشه او سيدو دپاره ورداخل شئ

وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ صَدَقَنَا وَعْدَهٗ

او اوبه وائي هغوئ | ثنا ده | الله لره | هغه الله | چې رښتينې ئې کړه زمونږ سره | وعده خپله |

هغوئ به او وائي چې ډير شکر دې | چې الله تعالى مونږ سره خپله وعده په رښتيا پوره کړه | او

وَاَوْرَثَنَا الْاَرْضَ نَتَبَوَّاُ مِنَ الْجَنَّةِ

او په ميراث ئې راکړه مونږ ته | زمکه | چې ځائې جوړولې شو مونږه | دزمکې دجنت نه |

مونږ ئې د دې زمکې مالکان کړو | چې په جنت کښې کوم ځائې غواړو | نو هلته به

حَيْثُ نَشَآءُ ۚ فَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ۝ وَتَرَى

هر ځائې کښې | چې غواړو مونږه | پس ډير ښه دې | اجر دعمل کونکو | او اوبه وينې ته |

ديره شو | غرض دا چې د ښه عمل کونکو بدله هم ښه ده | ............................او ته به

الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّيْنَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ۚ

فرښتې | حلقه جوړونکې | چاپيره دعرش نه | او تسبيح به وائي | سره دثنا درب خپل |

فرښتې او وينې چې دعرش نه گير چاپيره به ئې حلقه جوړه کړې وي | دخپل رب تسبيح او حمد بۀ وائي

وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَقِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ

او فيصله به او کړې شي | په منځ دهغوئ کښې | په حقه سره | او اوبه وئيلې شي | چې ثنا |

او اپه دغه ورځ] به دخلقو په مينځ کښې په انصاف سره فيصله او کړې شي | او اوبه وئيلې شي

رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ ع

الله لره ده | چې پالونکې دمخلوقاتو دې |

چې ټول تعريفونه الله ﷻ دپاره دی | چې دټول مخلوق رب دې

## آسان ترجمه قرآن

او په شپیلۍ کښې به پوک ووهلې شي، نو په آسمانونو او زمکه کښې چه څومره مخلوقات دي، ټول به بې هوشه شي، سوا دهغه چا نه کوم چه الله تعالٰی غواړي، بیا به دوباره پوک ووهلې شي، نوهغه ټول (مخلوقات) به لږ وخت کښې اودریدلې وي ګوری به. او زمکه به د خپل پروردګار د نور نه اوځلیږي، او اعمال نامه به مخښې ته کیخودلې شي، او انبیاء او ټول ګواهان به حاضر کړې شي، او د خلقو په مینځ کښې به بالکل په حق سره فیصله کیږي، او په هغوی به هیڅ ظلم نه کیږي. او هرسړی ته به دهغه د عمل پوره پوره بدله ورکولې شي، او څه چه خلق کوی، الله تعالٰی په هغې باندې ښه پوهیږي، او کومو خلقو چه کفر اختیار کړې وو، هغوی به جهنم طرف ته د ډلو په شکل کښې شړلې شي، تردې پورې چه کله هغوی جهنم ته اورسی، نو دهغې دروازې به پرانستلې شي، او دهغې چوکیداران (فرشتې) به هغوی ته اووائی چه: آیا تاسو ته ستاسو د جنس نه پیغمبران نه وو راغلې، چه تاسو باندې ئې ستاسو د رب آیتونه تلاوت کول، او تاسو ئې ددې ورځې د ملاقات نه خبرداره کولئ. هغوی به اووائی چه: بې شکه راغلې وو، لیکن د عذاب فیصله په کافرانو باندې رشتولې شوه. او به وئیلې شي چه: د جهنم دروازو ته همیشه همیشه دپاره داخل شئ، ځکه چه ډیر بد ځائې د اوسیدلو دې دهغه خلقو دپاره چه تکبر نه کار اخلی. او کومو خلقو چه د خپل پروردګار سره د تقوٰی معامله اختیار کړې وه، هغوی به جنت طرف ته د ډلو په شکل کښې بوتللې شي، تردې پورې چه کله هغوی د جنت خوا ته اورسیږي او د جنت دروازې به هغوی دپاره د مخکښې نه پرانستلې شوې وی، (نوهغه به عجیبه حال وی) او دهغې محافظان به هغوی ته اووائی سلام دې وی په تاسو باندې، خوشحالې دې وی تاسو لره، اوس دې جنت ته همیشه همیشه دپاره راځئ او هغوی (جنتیان) به اووائی چه: ټوله ثنا الله تعالٰی دپاره ده، هغه ذات چه مونږ سره ئې خپله وعده رشتولې کړه، او مونږ ئې ددې زمکې داسې وارثان جوړ کړو، چه مونږ په جنت کښې کوم ځائې غواړو اوسیدلې شو، پس ثابته شوه، چه بهترین انعام د (نیک) عمل کولو دپاره دې، او ته به فرشتو لره وینې، چه د عرش نه ګیر چاپیره ئې حلقه جوړه کړې ده دخپل پروردګار حمد او ثنا سره سره دهغه په تسبیح کښې مشغول دي، او د خلقو په مینځ کښې به په حق سره فیصله اوکړې شي، او ویونکې به اووائی: چه ټول تعریفونه الله تعالٰی دپاره دی، چه د ټولو جهانونو پروردګار دې.

### خلاصه تفسیر

[او] دقیامت په ورځ چه بره ئې ذکر راغلې دې ﴿وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ﴾ [شپیلۍ کښې به پوك وهلې شي ﴿فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ﴾ نو ټول د اسمانونو اومزکې اوسیدونکی به بې هوشه شي] بیا ژوندی خوبه مړه شي او دمړو روحونه به بې هوشه شي ﴿اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ﴾ [مګر چالره چه الله تعالی غواړی] هغه به ددې بې هوشۍ اومرګ نه محفوظ وی ﴿ثُمَّ نُفِخَ فِيْهِ اُخْرٰى﴾ [بیا به دغه شپیلۍ کښې دوباره پوك وهلې شي ﴿فَاِذَا هُمْ قِيَامٌ يَّنْظُرُوْنَ﴾ نو ناڅاپه به ټول] په هوش کښې راشي د روحونو تعلق به د بدنونو سره راشي د قبرونو نه به راوځي [اودریږي] او [څلور واړه طرفوته به ګوری] لکه چه د یوې نا اشنا واقعې کیدو په وخت کښې طبعي عادت دې [او] بیا به الله تعالی دحساب دپاره په مزکه د خپل شان مناسب نزول او تجلی وفرمائی او ﴿وَاَشْرَقَتِ

﴿الْاَرْضُ بِنُوْرِ رَبِّهَا﴾ [مزکه به دخپل رب په نور سره] بې کيف [روښانه شي او] دټولو ﴿وَوُضِعَ الْكِتٰبُ﴾ [عملنامې به] د هريو په وړاند [کيښودې شي] ﴿وَجِایْٓءَ بِالنَّبِيّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ﴾ او پيغمبران او ګواهان به حاضر کړې شي] دګواه مطلب عام دې چه پيغمبران په کښې هم داخل دی او فرښتې هم او امت محمديه ﷺ هم او اعضاء او جوارح هم چه تفصيل ئې مخکښې د معلوماتو په ضمن کښې راغی ﴿وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ﴾ [او په ټولو] مکلفينو [کښې به] د عملونو مطابق [ټيك ټيك فيصله وکړې شي ﴿وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ﴾ او په دوی به ظلم نه وی] چه څه نيك عمل کوم چه د خپلو شرطونو سره واقع شوې وی پټ کړې شي يا څه بدعمل زيات کړې شي ﴿وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ﴾ [او هرسړی ته به دهغه دعملونو پوره پوره بدله ورکړې شي] په نيکو عملونو کښې د پوره بدلې نه مقصود دکمی نفی ده او په بدو عملونو کښې دپوره والی نه مقصود د زياتی نفی ده ﴿وَهُوَ اَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُوْنَ﴾ [او هغه دټولو کارونه ښه پيژنی] پس دوی ته دهريو موافق جزا ورکول څه مشکل نه دی [او] بيان د هغه بدلې کومه چه نتيجه د فيصلې ده دادی چه ﴿وَسِيْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِلٰى جَهَنَّمَ زُمَرًا﴾ [کوم کافران دی هغه به دجهنم طرف ته ډلې ډلې کړې شوی په دکو] ورکولو ذلت او خوارئ سره [روان کړې شی] ډلې ډلې څکه چه اقسام او مرتبې دکفر جدا جدا دی پس ديو يوقسم کفار به يوه يوه ډله وی ﴿حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْهَا﴾ [تردې چه کله دوزخ ته ورسيږی نو] دغه وخت به ﴿فُتِحَتْ اَبْوَابُهَا﴾ [دهغې دروازې پرانستلې شی ﴿وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَآ﴾ او دوی ته به د دوزخ څوکيدارې] فرښتې په طور دملامت [ووائی ﴿اَلَمْ يَاْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ﴾ چه ايا تاسوته ستاسو خلقونه] دکومو نه چه فائده اخستل تاسو دپاره مشکل نه وو [پيغمبران نه وو راغلی ﴿يَتْلُوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِ رَبِّكُمْ﴾ کومو چه تاسو ته ستاسو درب ايتونه اوږول ﴿وَيُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا﴾ او تاسو ئې ستاسو ددې ورځې مخې ته دراتلونه ويرولئ ﴿قَالُوْا بَلٰى﴾ هغه کافران به ووائی چه هو] رسولان هم راغلی وو او ويرول ئې هم کړی وو ﴿وَلٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ﴾ [ليکن د عذاب وعده په کافرانو] چه مونږ په کښې هم داخل يو [پوره شوه] دا اعتذار نه دې بلکه اعتراف دې چه سره د ابلاغ نه مونږ کفر وکړو او دکافرانو دپاره چه کوم عذاب موعود وو هغه زمونږ مخې ته راغې واقعی مونږ مجرمان يو بيابه دوی ته ﴿قِيْلَ﴾ [ووئيلې شی] يعنی هغه فرښتې به ووائی ﴿ادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ﴾ [چه د جهنم په دروازو داخل شئ] او ﴿خٰلِدِيْنَ فِيْهَا﴾ [هميشه په کښې اوسيږئ غرض] ﴿فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ﴾ د الله تعالی د احکامونه [دتکبرکوونکو خرابه ټکاؤنړه ده] بيا به ددې نه پس هغوی په جهنم کښې داخل کړې شی او دروازې په وريسې بندی کړې شی لکه چه الله تعالی فرمائی [انها عليهم مؤصدة][1] داخو د کفارو حال شو ﴿وَسِيْقَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ اِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا﴾ [او کوم خلق چه دخپل رب نه ويريدل] چه ابتدائی مرتبه ئې ايمان دې بيا وړاند ددې مختلفې درجې دی [هغه به ټولی ټولی کړې شی] چه دکومې مرتبې تقوی ئې وی دهغې مرتبې متقيان به يوځائ کړې شی او [جنت طرف ته به] شوق مند کړې شی او زر به [روان کړې شی ﴿حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْهَا وَفُتِحَتْ اَبْوَابُهَا﴾ تردې چه کله دغې] جنت [ته ورسيږی او ددې دروازې به] د وړاند نه [بيرته وی او خلاصی وی] چه وخت په کښې ونه لګی

[1] ترجمه: هغه به په دوی باندې بند کړی شی.

Scanned with Ca

او دارنګ داهل اکرام دپاره داسې وی لکه چه دمیلمه دپاره عادت دې چه د وړاند نه ورته دروازه بیرته کولې شی لکه چه الله تعالی فرمائی [مفتحة لهم الابواب] (۱) ﴿وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا﴾ [او دهغه ځائې څوکیداران] فرښتې [به دوی ته] په طور د اکرام او ثناء [ووائی ﴿سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ﴾ چه السلام علیکم تاسو په مزو کښې وسیږئ ﴿فَادْخُلُوْهَا خٰلِدِيْنَ﴾ پس دې] جنت [ته د همیشه اوسیدو دپاره داخل شئ] نو دغه وخت به دوی داخل شی [او] چه داخل شی ﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ [وبه وائی چه دالله تعالی] لاك لاك [شکر دې ﴿الَّذِيْ صَدَقَنَا وَعْدَهٗ﴾ چاچه مونږ سره خپله وعده رښتونې کړه ﴿وَاَوْرَثَنَا الْاَرْضَ نَتَبَوَّاُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَآءُ﴾ اومونږ ئې ددې مزکې مالکان جوړکړو چه مونږ په جنت کښې کوم ځائې چه غواړو مقام کوؤ] یعنی هرسړی ته ښه دفراغت ځائې ملاؤدې ښه په فراخئ سره کړخی راګرځی کښینی پاڅی دقیام په طور په خپل ځائې کښې او دسیل په طور د نورو جنتیانو په درجو کښې هم ﴿فَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ﴾ [غرض د] نیك [عمل کوونکو ښه بدله ده] داجمله به خپله دجنتیانو وی اوکه د الله تعالی دطرف نه وی د دواړو امکان شته [او] وړاند د اجلاس د اخری فیصلې پورې دې مضمون لره په مختصر او رعب دار الفاظو کښې په طور د نچوړ فرمائی ﴿وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ﴾ چه ته به فرښتولره وینې چه] د نزول اجلاس للحساب په وخت کښې به ئې ﴿حَآفِّيْنَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ﴾ [دعرش نه چار چاپیره حلقه جوړه کړې وی] او ﴿يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ﴾ [د خپل رب تسبیح او تحمید به کوی ﴿وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ﴾ او په ټولو بندګانو کښې به ټیك ټیك فیصله وکړې شی [او] ددې فیصلې په ټیك والی به دهر طرف نه په جوش سره دا شور وی او ﴿وَقِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ [وئیلې به شی چه ټول صفتونه د خدائې لائق دی کوم چه دټول عالم پروردګار دې] کوم چه داسې ښه فیصله وکړه بیا به په دې نعره دتحسین سره دربار برخاست شی.

## معارف او مسائل

﴿فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ﴾ د ﴿صَعِقَ﴾ معنی ده بې هوشه کیدل. او ددې څخه مراد دادې چې اول بۀ بې هوشه شی. بیا به مړۀ شی. او چې کوم مخکښې مړۀ شوی دی دهغوئ روحونه به بې هوشه شی. [کمافی بیا القرآن من سورة النمل وعندابن کثیرمثله] (۲)

﴿اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ﴾ کښې د در منثور د روایتونو مطابق څلورفرښتې جبرائیل، میکائیل، اسرافیل او ملك الموت دی او ځینې روایتونو کښې حملة العرش هم دې کښې داخل دې (۳). د دوئ د استثناء مطلب دادې چې کله شپیلئ پوك وهلې شی نو دوئ ته به مرګ نه رازی. خو دې څخه روستو بۀ دوئ ته مرګ رازی. او د الله ﷻ د لوئې ذات څخه بغیر به بل څوك ژوندې نه وی. ابن کثیر هم دا قول اختیار کړې دې او فرمائیلی ئې دی چې دې ټولو کښې به ملك الموت ته ټولو څخه روستو مرګ رازی. سورة نمل کښې هم دا آیت مبارك تیر شوې دې. هغې کښې د صعق په ځائې د فزع لفظ راغلې دې. او هغه ځائې کښې هم ددې څه تفصیل تیرشوې دې.

---

۱) دپوره ایت ترجمه: یعنی د ہمشہ اوسیدو باغونہ چہ دھغے دروازے بہ ددوی دپارہ کھلاو وی۔

۲) تفسیر بیان القرآن: ج ۱۰، ص ۳۲

۳) تفسیر الدر المنثور تحت هذه الآية: ج ۸، ص ٤٧٦

Scanned with Ca

[وَجِايْٓءَ بِالنَّبِيّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ] مراد دادي چې په میدان حشر کښې به د حساب کتاب په وخت کښې ټول انبیاء ﷺ هم موجود وی. او نور ټول ګواهان به هم حاضر وی. په دې ګواهانو کښې به پخپله انبیاء ﷺ هم وی لکه څنګه چې قرآن عظیم الشان کښې فرمائیلی دی چې [جِئۡنَا مِنۡ كُلِّ اُمَّةٍ بِشَهِيۡدٍ] او فرښتې به هم دې ګواهانو کښې شاملې وی. لکه څنګه چې قرآن پاک کښې [مَّعَهَا سَآئِقٌ وَّشَهِيۡدٌ] په دې کښې د سائق اوشهید څخه مراد فرښتې دی [در منثور][1] سورة قاف کښې ذکر دی. او په دې ګواهانو کښې به امت محمدیه هم وی لکه څنګه چې قرآن عظیم الشان کښې دی چې [لِّتَكُوۡنُوۡا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ] او په دې ګواهانو کښې به پخپله دانسان اندامونه او جوارح هم وی لکه قرآن کریم کښې دی [وَتُكَلِّمُنَآ اَيۡدِيۡهِمۡ وَتَشۡهَدُ اَرۡجُلُهُمۡ]

﴿نَتَبَوَّاُ مِنَ الۡجَـنَّةِ حَيۡثُ نَشَآءُ﴾ مطلب دادي چې جنت والو دپاره به خپل خپل مکانونه او محلونه او باغونه وی. دوئ ته به اختیاروی چې نورو جنتیانوته به ملاقات اوسیل دپاره تلې شی. [طبرانی] ابو نعیم او ضیاء حسن سند سره عائشه صدیقه ﷺ څخه روایت نقل کړې دې چې یو کس د رسول اکرم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چې یارسول الله ﷺ! زما تاسو سره دومره محبت دې چې کله خپل کور ته لاړ شم نو هم تاسو یادوم. او چې تر کومې بیا ستاسو خدمت کښې حاضر نشم نو نه صبریږم. خو چې کله څه خپل مرګ یادوم او ستاسو وفات کیدل یادوم نو داسې ګڼړم چې تاسو به جنت کښې د انبیاء علیهم په مقاماتو کښې یئ. او که چرته څه جنت ته لاړم نو په لاندې درجه کښې به یم. ماسره دا فکر دې چې تاسو به څنګه وینم. رسول اکرم ﷺ دهغوئ خبره واوریده او څه جواب ئې ورنکړو. تر دې چې جبرائیل ﷺ دا آیت مبارک راوړو چې: ﴿وَمَنۡ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوۡلَ فَاُولٰٓـئِكَ مَعَ الَّذِيۡنَ اَنۡعَمَ اللّٰهُ عَلَيۡهِمۡ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيۡقِيۡنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيۡنَ‌ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓـئِكَ رَفِيۡقًا﴾ دې آیت مبارک کښې اووئیلې شو چې د الله ﷻ او رسول اکرم ﷺ اطاعت کوونکی مسلمانان به د انبیاء ﷺ او صدیقین وغیره سره وی[2]، او مذکوره آیت مبارک کښې ددې تشریح اوشوه چې دوئ ته به اعلی مقاماتو ته د تللو هم اجازت وی. الحقنا الله تعالی بهم بمنه وکرم.

........

[1]) تفسیر الدر المنثور: ج ۹، ص ۲۸٤
[2]) المعجم الأوسط للطبرانی رقم الحدیث: ٤٨٤

Scanned with Ca

| اياتونه | سورة المومن مكية وهي خمس وثمانون اٰية وسبع ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۸۵ | شروع كوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زيات رحم كونكې دې | ۹ |

حٰمٓ ۝۱ تَنۡزِيۡلُ الۡكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الۡعَزِيۡزِ الۡعَلِيۡمِ ۝۲

ح . م | نازلیدل | ددې كتاب | دطرفه دالله نه دی | چی غالب دې | په هر څه پوهه دې |

حم داكتاب [يعنى قران پاک] دالله دطرفنه نازل شوې دې | هغه الله چې زبردست په هرڅيز پوهه دې

غَافِرِ الذَّنۡۢبِ وَقَابِلِ التَّوۡبِ شَدِيۡدِ الۡعِقَابِ ذِی الطَّوۡلِ

بښونكې دگناه دې | او قبلونكې دتوبې دې | سخت عذاب وركونكې دې | خاوند دفضل دې |

گناه بښونكې اوتوبه قبلونكې دې | په سزا كښې سخت اود ډير لوئې فضل خاوند دې

لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اِلَيۡهِ الۡمَصِيۡرُ ۝۳ مَا يُجَادِلُ

نشته لائق دعبادت | مگر هغه دې | خاص هم هغه ته | واپس ورتلل دی | نۀ كوی جگړه |

د هغه نه سوا بل معبود نشته | هم هغه ته [دټولو] واپس كيدل دی | دالله ﷻ دآيتونو په باره كښې

فِیۡۤ اٰيٰتِ اللّٰهِ اِلَّا الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا فَلَا يَغۡرُرۡكَ

په آيتونو دالله كښی | مگر هغه كسان | چی كفر ئې كړې دې | پس په دوكه كښی وانچوی تالره |

هغه خلق جگړې كوی | چې كفرئې اختيار كړې دی | نو ته په دې غلط مه شې

تَقَلُّبُهُمۡ فِی الۡبِلَادِ ۝۴ كَذَّبَتۡ قَبۡلَهُمۡ قَوۡمُ نُوۡحٍ

گرځيدل دهغوئ | په ملكونو كښی | دروغ گڼرلې دې [رسول خپل] | مخكښی ددوئ نه | قوم دنوح

چې دوئ په ښارونو كښې [خوشحاله] اوړی راوړی | ددوئ نه مخكښې دنوح قوم اود هغوئ نه پس نورو

وَّالۡاَحۡزَابُ مِنۡۢ بَعۡدِهِمۡ وَهَمَّتۡ كُلُّ اُمَّةٍۢ بِرَسُوۡلِهِمۡ

او نورو ډيرو ډلو هم | روستو دهغوئ نه | او قصد اوكړو | هر امت [قوم] | په رسول خپل |

ډلو [پيغمبران] دروغ اوگڼرل | اوهرې يوې ډلې دخپل پيغمبر دبندی كولو اراده اوكړه

لِيَاۡخُذُوۡهُ وَجٰدَلُوۡا بِالۡبَاطِلِ لِيُدۡحِضُوۡا بِهِ

چی اونيسی هغه | او كوشش اوكړو هغوئ | په باطل سره چې ختم كړيی | ښكته كړی | په هغې سره

او په ناحقه جگړې يئ ورسره شروع كړې | چې پدې سره حق دين ناكامه كړی

الۡحَقَّ فَاَخَذۡتُهُمۡ فَكَيۡفَ كَانَ عِقَابِ ۝۵ وَكَذٰلِكَ حَقَّتۡ

حق | پس اونيول ماهغوئ | پس څرنگې | وو | عذاب زما | او همدارنگې | حقه [ثابته] ده |

نو ما هغوئ [په عذاب سره] راونيول | نو اوگوره زما سزا څنگه وه | اودغه شان ستا

كَلِمَةُ رَبِّكَ | عَلَى الَّذِينَ | كَفَرُوا | أَنَّهُمْ | أَصْحٰبُ

خبره درب ستا | په هغه کسانو باندي | چي کفر ئې کړې دي | چي بيشکه هغوئ | خاوندان

درب فيصله په کافرانو باندې ثابته شوې ده | چې هغوئ دوزخيان دي

النَّارِ ۞ | الَّذِينَ | يَحْمِلُونَ | الْعَرْشَ | وَمَنْ | حَوْلَهُ

دوور دي | هغه فرښتې | چي اوچتوي | عرش | او هغه فرښتې | چي چاپيره دي دعرش نه |

او هغه فرښتې چې عرش ئې اوچت کړې دي | او کومې چې ترې نه ګير چاپيره دي

يُسَبِّحُونَ | بِحَمْدِ رَبِّهِمْ | وَيُؤْمِنُونَ بِهِ | وَيَسْتَغْفِرُونَ

هغوئ تسبيح وائي | دثنا درب خپل سره | او ايمان راوړي په هغه باندي | او دبخښانې دعا غواړي |

هغوئ ټولې دخپل رب تسبيح اوتعريف بيانوي | اوپه هغه ايمان راوړي | اودمومنانو

لِلَّذِينَ | آمَنُوا ج | رَبَّنَا | وَسِعْتَ | كُلَّ شَيْءٍ

دپاره دهغه کسانو | چي ايمان ئې راوړې دي | اے ربه زمونړه | رسيدلې ئې ته | هر څيز ته

دپاره داسې بخښنه غواړي | چې ائې زمونږ ربه ! ستا رحمت او ستا علم په

رَحْمَةً | وَّعِلْمًا | فَاغْفِرْ | لِلَّذِينَ | تَابُوا

په لحاظ درحمت سره | او دعلم سره | پس اوبخښه | هغه کسانو لره | چي توبه ئې ايستلې ده |

هر څه باندې راخور شوې دې | نو هغه کسان اوبخښه چا چې توبه اوويستله

وَاتَّبَعُوا | سَبِيلَكَ | وَقِهِمْ | عَذَابَ | الْجَحِيمِ ۞ | رَبَّنَا

او پيروي ئې کړې ده | دلارې ستا | او بچ کړې هغوئ | دعذاب | ددوزخ نه | اے ربه زمونړه

اوستاپه لار روان دي | اوددوزخ دعذاب نه ئې بچ کړه | ............................. ائې زمونږ ربه!

وَأَدْخِلْهُمْ | جَنّٰتِ | عَدْنٍ | الَّتِي | وَعَدْتَّهُمْ

او داخل کړې دوئ | جنتونو | دهميشه اوسيدو ته | هغه | چي وعده کړې ده تا ددوئ سره |

ته هغوئ دهميشه اوسيدلو باغونو کښې داخل کړه | ذکوموچې ورسره تا وعده کړې وه

وَمَنْ | صَلَحَ | مِنْ اٰبَائِهِمْ | وَأَزْوَاجِهِمْ | وَذُرِّيّٰتِهِمْ ط

او هغه څوک | چي نيکان دي | دپلارانو ددوئ نه | او دښځو ددوئ نه | او داولاد ددوئ نه |

او هغوی هم داخل کړه کوم چې د هغوئ پلارانو ، ببيبانو او اولاد کښې نيکان دي

إِنَّكَ | أَنْتَ | الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۞ لا | وَقِهِمُ | السَّيِّاٰتِ ط | وَمَنْ

بيشکه ته | هم ته | غالب ئې دحکمت خاوند ئې | او اوساته هغوئ | دبدونه | او هغه څوک

بيشکه چې ته زبردست دحکمت خاوند يئ | اوهغوئ دهرقسم تکليفونو نه محفوظ اوساته

تَقِ السَّيِّاٰتِ | يَوْمَئِذٍ | فَقَدْ رَحِمْتَهُ ط | وَذٰلِكَ | هُوَ الْفَوْزُ

چي تا اوساتو دبدونه | په دغه ورځ | نو بيشکه رحم اوکړو تاپه هغه | او دا | هغه کاميابي ده |

اوتا چې په دغه ورځ څوک دتکليف نه محفوظ کړو | نوهغه سره دې لويه مهرباني اوکړه

Scanned with Ca

| الْعَظِيْمُ ۝ |
|---|
| لويه |
| او دا ډيره لويه كاميابي ده |

## آسان ترجمه قرآن

حٰمٓ، دا كتاب د الله تعالىٰ د طرف نه نازل شوى دے چه د لوئے اقتدار مالک دے، او د لوئے علم مالک دے، چه ګناه لره معاف كونكے، توبه قبلونكے، سخته سزا وركونكے او د لوئے طاقت مالک دے، د هغه نه سوا هيڅوک د عبادت لائق نشته، هغه طرف ته د ټولو واپس تلل دى. د الله تعالىٰ په آيتونو كښې جګړے هغه خلق پيدا كوى كوم چه كفر اختيار كړے دے، لهٰذا د دغې خلقو په ښهرونو كښې ګرځيدل راګرځيدل دے تا لره په دهوكه كښې وانه چوى ددوى نه مخكښې د نوح عليه السلام قوم، او د هغوى نه پس ډيرو ډلو هم (پيغمبرانو ته) دروغژن وئيلے وو، او هر قوم دخپل پيغمبر باره كښې دا اراده كړے وه، چه هغه لره ګرفتار كړى، اوهغوى د باطل په مدد سره جګړے كړے وے دے دپاره چه دهغے په ذريعے سره حق ختم كړى، نتيجه دا شوه، چه ما هغوى راونيول، اوس (اوګوره چه) زما سزا څومره (سخته) وه؟ او دغه شان كومو خلقو چه كفر اختيار كړے دے، دهغوى باره كښې ستا د پروردګار دا فيصله مقرر شوے ده، چه هغوى دوزخيان خلق دى. هغه (فرشتے) چه عرش ئے اوچت كړے دے، اوكومے چه د عرش نه ګير چاپيره موجود دى، هغه ټولے دخپل پروردګار دحمد سره د هغه تسبيح كوى، او په هغه باندے ايمان راوړى، او كومو خلقو چه ايمان راوړے دے، هغوى دپاره دمغفرت دعا كوى (چه) اے زمونږ پروردګاره! ستا رحمت او علم په هر څيز باندے راخور دے، ددے وجے نه كومو خلقو چه توبه كړے ده او ستا په لاره باندے روان دى، هغوى اوبخه، او هغوى د دوزخ د عذاب نه بچ كړه. او اے پروردګاره! هغوى د هميشه اوسيدلو هغه جنتونو كښې داخل كړه، د كومو چه تا هغوى سره وعده فرمائيلے ده، او دهغوى په مور پلار او ښځه بچو كښې چه څوک نيک وى، هغوى لره هم. يقيناً صرف هم ستا ذات هغه دے، چه دهغه اقتدار هم كامل دے او د هغه حكمت هم كامل دے. اوهغوى لره د هر قسمه بدو نه محفوظ اوساته او په هغه ورځ چه تا څوک د بدو نه محفوظ كړو نو په هغه باندے تا لوئے رحم اوكړو، او هم دا لويه كاميابي ده.

### خلاصه تفسير

﴿حٰمٓ ۝﴾ددے معنى الله تعالىٰ ته معلومه ده ﴿تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ۝﴾[داكتاب نازل شوے دے دالله تعالىٰ دطرف نه كوم چه زبردست دے په هرڅه پوه دے ﴿غَافِرِ الذَّنْۢبِ﴾ ګناه بخښونكے دے ﴿وَقَابِلِ التَّوْبِ شَدِيْدِ الْعِقَابِ ذِى الطَّوْلِ﴾ دتوبے قبلوونكے دے سخته سزا وركوونكے دے ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ۝﴾دهغه نه سوا څوک د عبادت لائق نشته هغه ته] دټولو [واپس تلل دى] پس دقرآن مجيد او توحيد دحقيقت مقتضاء داده چه په دے كښے انكار او جګړه ونه كړے شى مګر بيا هم ﴿مَا يُجَادِلُ فِىْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ اِلَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾[دالله تعالىٰ په دے ايتونو كښے] يعنى قرآن كښے كوم چه په توحيدهم مشتمل دى [هغه خلق] نا حق [جګړه راوباسى كوم چه] ددے نه [منكردى] او ددے انكارمقتضى داده چه دوى له سزا وركړے شى ليكن زر سزانه وركول استدراج يعنى يو څو ورځے مهلت وركول دى ﴿فَلَا يَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ فِى الْبِلَادِ ۝﴾ [پس

ددې خلقو په ښارونو کښې] په امن امان سره ددنيوى کارو بارډپاره [گرځيدل راگرځيدل دې تاپه اشتباه کښې ونه غورځوى] چه په دې سره دا وګڼړلې شى چه دوى به دغسې دسزا او عذاب نه بچ شى او په آرام سره به وى او دوى ﷺ ته دا خطاب کول نورو ته اورول مقصود دى غرض دوى به خامخا نيولې شى خواه په دنياکښې هم او په اخرت کښې هم يا يوازې په آخرت کښې چنانچه ﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَالْأَحْزَابُ مِنْ بَعْدِهِمْ﴾[د دوى نه وړاند دنوح عليه السلام [قوم او نورو قومونو هم کوم چه د دوى نه وروستو راغلى وو] لکه عاديان ثموديان وغيره دين حق لره [دروغژن کړى وو﴿وَهَمَّتْ كُلُّ أُمَّةٍ بِرَسُولِهِمْ لِيَأْخُذُوهُ﴾ او هرامت] کښې چه کومو خلقو ايمان نه وو راوړى هغوئ د خپل پيغمبر دګرفتارو لو اراده وکړه] چه وئ نيسى او قتل ئ کړى ﴿وَجَادَلُوا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوا بِهِ الْحَقَّ﴾[اوناحق جګړې ئ جوړې کړې چه په دغه ناحق سره حق لره باطل کړى ﴿فَأَخَذْتُهُمْ﴾ پس ما] اخر [هغولره ونيول پس] وګوره ﴿فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ﴾[زما دطرف نه] دوى ته [څنګه سزا ورسيده او] څنګه چه دوى ته په دنياکښې سزا ملاوْ شو﴿وَكَذَٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [همدغه شان په ټولو کافرانو ستا دپروردګار داقول ثابت شوې دې ﴿أَنَّهُمْ أَصْحَابُ النَّارِ﴾ چه دغه خلق به] په اخرت کښې [دوزخيان وى] يعنى دلته ئ هم سزا ومونده او هلته به هم وى دغه شان د کفر په سبب به دا حاضرين کفار هم نيولې شى او سزا به ورله وى خواه په دواړه جهانه خواه په اخرت کښې دا خو حال دمنکرينو دې چه مستحق د سپکوالى او عذاب دى اوکوم خلق چه موحدين او مؤمنان دى هغه داسې عزتمند دى چه مقرب ملائك د هغوى دپاره د استغفار په دعا کښې مشغول وى کوم چه حسب قاعده [يفعلون مايؤمرون] ددې علامت دې چه هغوى دالله تعالى دطرف نه په دې ماموره دى چه مؤمنانو دپاره استغفاروکړى په دې سره دمؤمنانو د الله تعالى په نزد محبوب کيدل ثابتيږى چنانچه ارشاددې چه ﴿الَّذِينَ يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ﴾[کومو فرښتو چه عرش] الهى [لره اوچت کړې دې ﴿وَمَنْ حَوْلَهُ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ﴾ اوکومې فرښتې چه ددې نه چاپيره دى هغوى دخپل رب تسبيح او تحميد کوى ﴿وَيُؤْمِنُونَ بِهِ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ آمَنُوا﴾ او په هغه ايمان لرى او دايماندارو دپاره] داسې دعا او [استغفار کوى ﴿رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَحْمَةً وَعِلْمًا﴾ چه اے زمونږ پروردګاره ستا رحمت] عامه [او علم هرشى لره شامل دې] پس په ايماندارو به په درجه اولى رحمت وى او د دوى دايمان تاته علم هم دې ﴿فَاغْفِرْ لِلَّذِينَ تَابُوا﴾ [پس هغه خلقو لره وبخښې کومو چه] دشرك او کفرنه [توبه کړې ده﴿وَاتَّبَعُوا سَبِيلَكَ﴾ او ستا په لاره باندې چليږى ﴿وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ﴾ او هغوى لره دجهنم د عذاب نه بچ کړې ﴿رَبَّنَا﴾ اے زمونږ پروردګاره او] د دوزخ نه ئ بچ کړې ﴿وَأَدْخِلْهُمْ جَنَّاتِ عَدْنٍ الَّتِي وَعَدْتَهُمْ﴾[هغوى لره د هميشه او سيدو په باغونو کښې دکومو چه تاد هغوى سره وعده کړې ده داخل کړې ﴿وَمَنْ صَلَحَ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ﴾ او دهغوى مور او پلار او بيبيانو او اولاد کښې چه کوم] د جنت [لائق] يعنى مؤمنان [وى] اګر چه ددې مؤمنانو په درجه کښې نه وى [هغوى لره هم داخل کړې ﴿إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾[بيشکه ته زبردست حکمت والايې] چه په مغفرت باند قادريې او دهر يو مناسب هغه ته درجه ورکوې [او] لکه څنګه چه دوى لره دوزخ کوم چه اعظم عذاب دې [نهدبچ کولو دپاره تاته دعا ده دغه شان دا دعاهم ده چه﴿وَقِهِمُ السَّيِّئَاتِ﴾ [هغوى لره] دقيامت په ورځ دهرقسم [تکليفونو نه بچ کړې] اګر چه دغه دجهنم نه

Scanned with Ca

سپک وی لکه دقیامت د میدان پریشانئ ﴿وَمَنْ تَقِ السَّيِّاٰتِ يَوْمَىِٕذٍ فَقَدْ رَحِمْتَهٗ﴾ [اوته چه چالره دغې ورځې دتکلیف نه بچ کړې نو په هغه تادیره مهرباني وفرمائیله ﴿وَذٰلِكَ﴾ او دا] کوم چه ذکر شول مغفرت او حفاظت د عذاب لوئ او وړو کی نه او جنت ته دخول ﴿هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ﴾ [لویه کامیابی ده] پس خپلو مؤمنانو بندګانو لره ددې نه مه محرومه کوې.

## معارف او مسائل

**د سورة مؤمن خصوصیات او فضائل وغیره:** دې ځائې څخه د سورة احقاف پورې اووهٔ سورتونه د ،،حم،، څخه شروع کیږی، دې ته ،،آل حم،، یا حوامیم وئیلې کیږی. ابن عباس ﷺ اوفرمائیل چې آل حم دیباج القرآن دې[۱]. [دیباج ریښمی کپړې ته وئیلې کیږی] مراد ددې څخه زینت دی. او مسعر بن کدام فرمائی چې دې ته عرائس وئیلې کیږی. یعنی ناونیانې. او ابن عباس ﷺ فرمائی چې د هر یو څیز یو مغز او خلاصه وی، دقرآن پاك خلاصه آل حم دی، یا یې اوفرمائیل چې حوامیم دی، دا ټول روایات امام عالم ابو عبید قاسم بن سلام ﷺ پخپل کتاب فضائل القرآن کښې لیکلی دی.

اوعبدالله ﷺ فرمائیلی دی چې د قرآن پاك مثال داسې دې لکه چې یو کس دخپل اهل وعیال د اوسیدو دپاره د ځائې په لټون کښې اوځی. کله چې شین میدان اوګوری نو خوشحالیږی. کله چې مخکښې لاړ شی نو روضات او مثات یعنی داسې باغونه اووینی چې د هغې په زمکه کښې د کروندې ماده د ټولو څخه زیاته وی. دا چې اووینی نو داسې وائی چې ما د باران اولنې ځل اولیدو نو تعجب مې کولو. دا خود هغې څخه زیات تعجب والا دی. نو ده ته بهٔ وئیلې شی چې د اولنئ شینکئ مثال د عام قرآن پاك پشان دې او د روضات اومثات مثال د قرآن پاك د آل حم په شان دې. په دې وجه عبدالله بن مسعود ﷺ اوفرمائیل چې کله څه د قرآن پاك دتلاوت په دوران کښې آل حم ته رااورسم نو ګویا چې ماته په دې کښې سیل ملاویږی.

**د هرې بلا څخه حفاظت:** مسند بزار کښې صاحب بزارپه خپل سند سره د ابوهریره ﷺ څخه روایت کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې کوم کس د ورځې په شروع کښې آیة الکرسی اود سورة مؤمن [رومبی درې آیتونه حم څخه تر الیه المصیر پورې] تلاوت کړی نو هغه به په دې ورځ د هرې بدئی او هر تکلیف څخه محفوظ وی، دا ترمذی هم روایت کړې دې، خو د هغې په سند کښې یو راوی متکلم فیه دې. [ابن کثیر ص/۷۹ ج/۴][۲]

**ددښمن څخه حفاظت:** ابوداؤد او ترمذی کښې په صحیح سندسره د مهلب بن صفره ﷺ څخه روایت دې چې هغوئ فرمائیل ماته یو داسې سړی روایت اوکړوچې هغه پخپله د رسول کریم ﷺ څخه آؤریدلی دی [چې نبی کریم په یو جهاد کښې د شپې د حفاظت دپاره فرمائیل] چې که دشپې په تاسو چاپه پریوځی نو تاسو حم لا ینصرون وایه چې ددې حاصل لفظ حم سره دا دعا کول دی چې زمونږ دښمن دې کامیاب نه وی[۳]. او په ځینې روایاتو کښې حم لا ینصرون

---

[۱] المستدرک للحاکم، رقم الحدیث: ۳۵۹۲

[۲] تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۱۲۶

[۳] سنن ابی داود، کتاب الجهاد، باب فی الرجل ینادی بالشعار: ج ۱، ص ۳۵۶، وجامع الترمذی، أبواب الجهاد، باب ما جاء فی الشعار: ج ۱، ص ۲۹۷

بغیر د نون سره راغلي دي. چې دهغې حاصل دادې چې کله تاسو حم وائې نو دښمن به نه کامیابیږی. ددې څخه معلومه شوه چې حم د دښمن څخه د حفاظت قلعه ده [ابن کثیر](1)

**یو عجیبه واقعه:**: ثابت بنانی رحمه الله فرمائی چې زه مصعب بن عمیر رضی الله عنه سره د کوفې علاقه کښې ووم. زه یو باغ ته داخل شوم چې دوه رکعته مونځ ادا کړم. ما د مونځ څخه وړاندې حم المؤمن آیتونه الیه المصیر پورې تلاوت کړل، څه ګورم چې یو کس زما شاته په سپینه خچره باندې سور ولاړ دې. دهغه په بدن باندې یمنی کپړې وې. هغه کس ماته اووئیل چې کله غافر الذنب وائې نو هغې سره دا دعا کوه [يَاغَافِرَ الذَّنْبِ اغْفِرْلِي] یعنی اې د ګناهونو معاف کوونکیه ما معاف کړه. او کله چې [قَابِلِ التَّوْبِ] اووایې نو دا دعا وایه چې [يَاقَابِلَ التَّوْبِ اقْبَلْ تَوْبَتِيْ] یعنی اې توبه قبلوونکیه زما توبه قبوله کړه. بیا چې کله اووایې چې [شَدِيدِ الْعِقَابِ] نو دې سره دا دعا غواړه چې [يَاشَدِيْدَ الْعِقَابِ لاتعاقبنی] یعنی اې سخت عذاب والا ماته عذاب مه راکوه. او کله چې [ذِي الطَّوْلِ] اووایې نو دا دعا کوه چې [يَاذَالطَّوْلِ طِلْ عَلَيَّ بِخَيْرٍ] یعنی اې انعام او احسان کوونکیه ما باندې انعام اوکړې.

ثابت بنانی رحمه الله فرمائی چې ددې نصیحت کولو نه پس ما چې اوکتل نو هلته هیڅوك نه وو. زه دده په لټون کښې د باغ دروازې ته راغلم، خلقو څخه مې تپوس اوکړو چې یو سړې دې خائې کښې وو چې یمنی لباس یې اغوستې وو. ټولو اووئیل چې مونږ داسې څوك نه دی لیدلی. د ثابت بنانی رحمه الله په یو روایت کښې داسې هم دی چې دخلقو خیال دې چې دا الیاس علیه السلام وو. بل روایت کښې ددې ذکر نشته دې [ابن کثیر رحمه الله](2)

**اصلاح خلق کښې ددې آیتونو مبارك تاثیر او د فاروق اعظم رضی الله عنه مصلحینو دپاره یو عظیم هدایت:**: ابن کثیر رحمه الله د ابن ابی حاتم په سند سره نقل کړې دی چې په اهل شام کښې یو ډیر رعب والا انسان وو. فاروق اعظم رضی الله عنه ته به راتلو. ډیر وخت پورې هغه رانغلو نو فاروق اعظم رضی الله عنه د خلقو څخه دهغه باره کښې تپوس اوکړو. خلقو ورته اووئیل چې اې امیر المؤمنین دهغه دحال تپوس مه کوئی هغه خو د شرابو عادی شوې دې. فاروق اعظم خپل یو منشی راغوښتلو او ورته یې اووئیل چې دا خط اولیکه:

من عمر بن الخطاب الى فلان بن فلان سلام عليك فانى احمد اليك الله الذى لا اله الا هو غافر الذنب وقابل التوب شديد العقاب ذي الطول لا اله الا هو اليه المصير

د عمر بن خطاب دطرفه په نوم د فلانی چې ځویې د فلانی دې، په تا دې سلام وی، دې څخه پس زه ستا دهغه الله جل جلاله حمد بیاوم چې دهغه څخه سوا بل معبود نشته دې هغه دګناهونو معاف کولو والا دې توبه قبلونکې دې، سخت عذاب والا، لوې قدرت والا دې، دهغه څخه سوا بل معبود نشته دې، هم هغه ذات طرفته واپس کیدل دی.

بیا یې حاضرین مجلس ته اووئیل چې ټول دهغه دپاره دعا اوغواړئ چې الله جل جلاله دهغه زړه واړوی او دهغه توبه قبوله کړی. فاروق اعظم رضی الله عنه چې خط کوم قاصد ته ورکړې وو هغه ته یې دا هدایت اوکړو چې تر کومې پورې هغه د نشې څخه په هوش کښې نه وی راغلې نو دا خط

(1) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۱۲۷
(2) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۱۲۹، وتفسیر ابن ابی حاتم تحت هذه الآية، رقم الحديث: ۱۸۴۱۷

Scanned with CamScanner

ورته مه ورکوه او بل چاته یې هم مه ورکوه. کله چې ورته د فاروق اعظم دا خط ملاؤ شو او وې وئیلو نو بار بار یې په دې کلماتو باندې غور کولو چې په دې کښې زه د سزا څخه ویرولې شوې هم یم او د معافی وعده هم شوې ده. بیا په ژړه شو او د شرابو څخه یې توبه اوویستله، نو داسې توبه یې اوویستله چې بیا یې هغه طرفته هم اونه کتل.

فاروق اعظم رضی الله عنه ته چې کله د دې اثر خبر ملاؤ شو نو خلقو ته یې اوفرمائیل چې داسې معاملاتو کښې تاسو ټولو ته دا سې کول پکار دی چې کله ستاسو یو رور په څه ګناه کښې اخته شی نو هغه په راه راست راوستلو د پاره فکر اوکړئی او هغه ته د الله ﷻ د رحمت بهروسه ورمخکښې کړئی، او د الله ﷻ څخه د هغه د پاره دعا اوکړئی چې هغه توبه اوباسی. او تاسو د هغه په مقابله کښې د شیطان مدد کوونکی مه جوړیږئی. یعنی چې تاسو هغه ته بد رد اووایې او هغه په غصه کښې راولی. او نور هم د دین څخه لرې لاړ شی، دا د شیطان سره مدد کول دی. [ابن کثیر رحمه الله] ([1])

**تنبیه**:: کوم خلق چې د خلقو د اصلاح او د دعوت او تبلیغ کار کوی نو هغوئ د پاره په دې حکایت کښې یو عظیم الشان سبق دې چې د کوم کس اصلاح مقصود وی نو هغه د پاره پخپله هم دعا اوغواړی او داسې د نرمۍ تدبیر اوکړی چې صحیح لارې ته راشی. هغه سره سختی مه کوئی، ځکه چې دې سره به هغه ته څه فائده نه رسی بلکه د شیطان سره به مدد کول وی او هغه به دې سره نور هم زیات په ګمراهۍ کښې پریوزی. [وړاندې د آیت مبارک تفسیر اوګورئ]

**حٰمٓ**: ځینې حضرات مفسرین فرمائی چې دا د الله ﷻ نوم دې مګر د متقدمینو په نزد دا حروف مقطعات ټول متشابهات دی، او د دې معنی صرف الله ﷻ ته معلومه ده، یا د الله ﷻ او د رسول کریم ﷺ په مینځ کښې یو راز دې.

**غَافِرِ الذَّنۢبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ**: د [غَافِرِ الذَّنۢبِ] لفظی معنی ده په ګناه باندې پرده اچول، او د [قَابِلِ التَّوْبِ] معنی توبه قبلونکې ده، دا دوه الفاظ جدا جدا راوړلې شوی دی، اګر چې د دواړو مفهوم یو معلومیږی، وجه دا ده چې په [غَافِرِ الذَّنۢبِ] کښې اشاره دې طرفته ده چې الله ﷻ ته په دې هم قدرت حاصل دې چې د یو بنده ګناه بغیر د توبې څخه معاف کړی، او توبه کوونکی ته معاف کول یې بل صفت دې. [مظهری] ([2])

**ذِی الطَّوْلِ**: د طول معنی وسعت او غنا ده، او د قدرت په معنی کښې هم راځی. د فضل و احسان معنی هم ورکوی. [مظهری] ([3])

**مَا یُجَادِلُ فِیْۤ اٰیٰتِ اللّٰهِ اِلَّا الَّذِیْنَ كَفَرُوْا**: دې آیت مبارک جدال فی القرآن کفر ګرځولې دې. او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې [ان جدالاً فی القرآن کفراً] یعنی بعضې جدال [جګړه] په قرآن کښې کفر وی. [رواه البغوی والبیهقی فی الشعب عن ابی هریرة و رواه ابوداؤد والحاکم وصححه. مظهری] ([4])

---

[1]) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۱۲۸

[2]) تفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۸، ص ۲٤۰

[3]) التفسیر المظهری: ج ۸، ص ۲٤۱

[4]) التفسیر المظهری: ج ۸، ص ۲٤۲، وتفسیر البغوی: ج ۷، ص ۱۳۸، وشعب الإیمان للبیهقی، رقم الحدیث: ۲۱۸۱، وسنن ابی داود، (بالفاظ مختلفة) کتاب السنة، باب النهی عن الجدال فی القرآن: ج ۲، ص ۲۸٤، والمستدرک للحاکم، رقم الحدیث: ۲۸۳۷

Scanned with Ca

او حدیث پاك كښې دی چې یوه ورځ نبی كریم ﷺ د دوه كسانو آواز واورید و چې د قرآن كریم په آیتونو كښې یې جگړه كوله. نبی كریم په غصه شو او بهر یې تشریف راوړو، او د نبی كریم ﷺ د مخ مبارك څخه د غصې آثار په نظر راتلل، او وې فرمائیل چې ستاسو څخه وړاندې امتونه هم په دې وجه هلاك شوی وو چې د الله ﷻ په كتاب كښې به یې جدال كولو،
[رواه مسلم عن عبدالله بن عمرو بن شعیب، مظهری] (۱)

دا كوم جدال چې قرآن كریم كفر گرځولې دې ددې څخه مراد دا دې چې په قرآنی آیتونو باندې طعن كول او فضول قسمه شبهات راویستل او په دې باندې جگړه كول. یا د قرآن كریم د یو آیت داسې معنی راویستل چې هغه د قرآن كریم او سنت څخه خلاف وی، چې د تحریف قرآن په درجه كښې دې، ، باقی پاتې شو د یو مبهم یا مجمل كلام تحقیق یا د مشكل كلام حل تلاش كول یا دیو آیت مبارك څخه احكام اومسائل مستنبط كولو كښې خپلو كښې بحث اوتحقیق كول نو دا په دې كښې نه دی داخل، دا خو ډیر د ثواب كار دې. [قاضی بیضاوی، قرطبی، مظهری] (۲)

فَلَا يَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ فِي الْبِلَادِ: د قریشو كفارو به په یخنۍ كښې د یمن او گرمۍ كښې د شام د ملك تجارتی سفر كولو، او د بیت الله شریف د خدمت په وجه په ټولو عربو كښې به ددوئ احترام كیدلو. په دې وجه به ددوئ سفرونه محفوظ وو او تجارتی فائده ورته ملاویده. هم دې سره د هغوئ مالداری او ریاست قائم وو. د اسلام او د رسول كریم ﷺ د مخالفت باوجود دهغوئ دا مقام باقی پاتې كیدل دهغوئ دپاره د فخر او غرور سبب وو. [او دا به ئې وئیل] كه چرې مونږ د الله ﷻ په نزد مجرمان وې نو زمونږ څخه به یې دا نعمتونه اخستی وې. دې سره د څه مسلمانان هم په شك كښې داخته كیدو امكان وو. په دې وجه دې آیت مبارك كښې اوفرمائیل چې الله ﷻ دوئ ته دخپل مصلحت او حكمت په وجه د څو ورځو دپاره مهلت وركړې دې. دې سره ته یا مسلمانان دې ځان په دهوكه كښې نه اچوی، څو ورځې پس په دوئ باندې عذاب راتلونكې دې، او دا ریاست فناكیدونكې دې د كومې ابتداء چې دبدر څخه اوشوه او تر فتح مكه پورې په شپږو كالو كښې دا پوره ښكاره شوه.

الَّذِينَ يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهُ: حاملان عرش فرښتې اوس څلور دی، او د قیامت په ورځ به اته شی. او د عرش څخه گیرچاپیره څومره فرښتې دی، ددې شمیر الله ﷻ ته معلوم دې. ځینې روایاتو كښې ددوئ تعداد ښودلې شوې دې چې لكهونو ته رسی. دوئ ته كروبی وئیلې كیږی . دا ټولې د الله ﷻ مقربې فرښتې دی. دې آیت مبارك كښې دا ښودلې شوی دی چې دا ټولې مقربې فرښتې خصوصی طور هغه مؤمنانو دپاره دعاگانې كوی كوم چې د گناهونو څخه توبه اوباسی او د شریعت او طریقت پابند شی. یا خو دوئ الله ﷻ په دې باندې مامور كړی دی یا ددوئ طبیعت او فطرت هم داشان دې چې هغوئ د الله ﷻ د نیكانو بندگانو دپاره دعاگانې غواړی. د دې وجې مطرف بن عبدالله بن شخیر فرمائیلی دی چې د الله ﷻ په بندگانو كښې د

(۱) التفسیرالمظهری: ج ۸، ص ۲۴۲، وصحیح مسلم، كتاب العلم، باب النهی عن اتباع متشابه–الخ: ج۲، ص ۳۳۹
(۲) تفسیر البیضاوی تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۱۲۲، وتفسیر المظهری، ج ۸، ص ۲۴۲

Scanned with Ca

مؤمنانو دپاره د ټولو څخه خیرخواه دالله ﷻ فرښتې دي . ددوئ یوه دعا خو مؤمنانو دپاره دا وی چې ددوئ مغفرت اوکړه او دوئ دجهنم د عذاب څخه اوساتې . او دوئ همیشه پاتې کیدونکی جنتونو ته داخل کړه . دې سره دا دعا هم کوی چې [وَمَن صَلَحَ مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَاَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ] یعنی ددوئ پلاران ، نیکونه ، اوددوئ بیبیانې اوددوئ اولاد کښې چې کوم د مغفرت صلاحیت لری یعنی ایمان سره وفات شوی دی ، هغوئ هم دې خلقو سره جنت ته داخل کړه.

دې څخه معلومه شوه چې ایمان شرط نجات دې ، او دایمان څخه وروستو نیك عملونه دی . د مسلمان په متعلقینو کښې پلار نیکه یا بی بی او اولاد که ددوئ څخه په درجه کښې کم هم وی نو الله ﷻ به ددوئ کم درکه متعلقین هم دوئ سره جنت ته داخل کړی چې دې سره ددوئ خوشحالی مکمل شی . لکه څنګه چې د قرآن پاك په بل آیت مبارك کښې دی چې : [اَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ] .یعنی مونږ به دوی سره د دوی اولاد یوځائې کړو.

سعید بن جبیر رحمه الله فرمائی چې کله مؤمن جنت ته داخل شی نو خپل پلار ، ځامنو او رور وغیره باره کښې به تپوس کوی چې هغوئ چرته دی ، دوئ ته به اووئیلې شی چې هغوئ ستا پشان عمل نه دې کړې په دې وجه دې ځائې ته رانغلل. دې به اووائی چې ما کوم عمل کړې وو هغه ما صرف ځان دپاره نه وو کړې بلکه ځان دپاره او ددوئ دپاره مې کړې وو. نو حکم به اوشی چې دوئ هم جنت ته داخل کړئی. [ابن کثیر](1)

تفسیر مظهری کښې ددې روایت نقل کولو سره فرمائیلې شوی دی چې دا حدیث موقوف دې خو په حکم د مرفوع کښې دې .او دې باره کښې واضح کړې شوی دی چې دې آیت مبارك کښې هم د صلاحیت باره کښې څه وئیلې شوی دی د هغې څخه مراد نفس ایمان دې(2).

| الْعَظِيمُ ۞ | إِنَّ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | يُنَادَوْنَ | لَمَقْتُ اللَّهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| لویه | بیشکه هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې | | اواز به اوشی هغوئ ته (3) | خامخا غصه دالله |
| اوداډیره لویه کامیابی ده | بیشکه کومو خلقو چې کفر کړې دې | | | هغوئ ته به دا اواز ورکولې شی چې | لکه څنګه |

| أَكْبَرُ | مِن مَّقْتِكُمْ | أَنفُسَكُمْ | إِذْ | تُدْعَوْنَ | إِلَى الْإِيمَانِ |
|---|---|---|---|---|---|
| ډیره زیاته ده | دغصې ستاسو نه | ځانونو خپلو ته | کله چې | به اوبللې شوئ تاسو | ایمان ته |
| [نن]ستاسو دځان نه نفرت دې | اددې نه زیات نفرت به درنه الله ﷻ کولو | | | چې تاسوبه ایمان ته رابللې شوئ | |

(1) التفسیر المظهری: ج ۸، ص ۲۴۵، وتفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۱۳۲

(2) التفسیر المظهری: ج ۸، ص ۲۴۵

(3) **دګناهګارانودوزخ په خواه کښې خراب حالت:-** دقیامت په ورځ چه کله به کافران داوردکویانو (ځاهانو) په خواه کښې وی اودالله ﷻ عذابونه به په وی اوټول کیدونکی عذابونه به دهغوی مخکښې وی هغه وخت به پخپله دخپل نفس دښمنان شی.او ډیرسخت دښمنان به شی.څکه چه د خپل خراب عملونوپه وجه باندې هغه دوزخ ته خی.دغه وخت به فرښتې هغوی ته په اوچت اوازسره وائی چه نن تاسوځومره دخپل ځان نه خفه ئې اوځومره دښمنی چه دستاسونن دخپل ځان سره ده اونن چه څومره تاسوخپل ځان ملامته کوئ دهغې نه زیات خراب تاسو دالله ﷻ په دنیاکښې وې چه تاسوته داسلام دایمان دعوت درکړې کیدواوتاسوهغه نه منلو.

Scanned with CamScanner

| فَتَكْفُرُوْنَ ⑪ | قَالُوْا | رَبَّنَآ | اَمَتَّنَا | اثْنَتَيْنِ |
|---|---|---|---|---|
| نو تاسو به انکار کولو | اوبه وائی هغوئ | اے ربه زمونږه | مړه کړو تا مونږه | دوه ځله |

اوتاسو بهٔ انکار کولو | ..........هغوئ به وائی چې ائې زمونږه ربه ! مونږ دې دوه ځله مړه کړو(۱)

۱) ددې نه پس ایت د ﴿ كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ ﴾ په شان دې.سدی رحمه الله فرمانی دوی په دنیاکښی مړه کړې شول بیائې په قبرونوکښې ژوندی کړل اودسوال جواب نه پس مړې کړې شول اوبیادقیامت په ورځ ژوندی کړې شو.ابن زید رحمه الله فرمانی چه دادم علیه السلام دشانه دوعدې په ورځ ژوندی کړې شول بیادمورخیټه کښې ورکښې روح واچولې شوبیامړه شول اودقیامت په ورځ به بیاژوندی شي.خودادواړه قولونه صحیح نه دی ځکه چه درې مرګونه اودرې ژوندونه لازم راځي اوپه ایت کښې ددوو مرګونو اودوو ژوندونو ذکر راغلې دې.صحیح قول دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما اودهغوی دملګرودې.(یعنی دمور دخیټې نه پیداکیدل یوژونداودقیامت په ورځ دویم ژوند، د دینا د پیدا کیدونه مخکښې رومبې مرګ اود دنیا نه درخصتیدومرګ،دادوه مرګونه اودوه ژوندونه مطلب دی.)

دنیاته د راتلوناکامه غوښتنه:- مقصددا دې چه په دغه ورځ به کافران د الله ﷻ نه د قیامت په میدان کښې دا طلب اوخواهش کوی اوس مونږ دې دنیاته یوځل بیا اولیګه لکه چه ارشاد دې ﴿وَلَوْ تَرٰۤى اِذِ الْمُجْرِمُوْنَ نَاكِسُوْا رُءُوْسِهِمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ رَبَّنَاۤ اَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا اِنَّا مُوْقِنُوْنَ۝ ﴾ (۳۲/السجدة:۱۲) نوته به ګورې چه ګناهګاران خلق به خپل رب ته سرښکته وی اووائی به چه اې الله ﷻ مونږ اولیدل اومونږ واوریدل. اوس ته مونږ بیادنیاته اولیګه نو نیکئی به کوو اوایمان به راوړو خودَ دوی دا تمنا به نه شی قبلولې. بیا چه کله عذاب اوسزا او د دوزخ اور اووینی اودَ دوزخ غاړې له اورسولې شی نوبیابه دغه درخواست کوی اودَ اول ځل نه به ئې زیات په زور سره کوی لکه چه دَ الله ﷻ ارشاد مبارك دې ﴿وَلَوْ تَرٰۤى اِذْ وُقِفُوْا عَلَى النَّارِ فَقَالُوْا يٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِاٰيٰتِ رَبِّنَا وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ۝ ﴾ (۶/الانعام:۲۷)افسوس چه تالیدلی کله چه هغوی دَ دوزخ خواکې اودرولې شوی وی اووائی چه ارمان مونږ یوځل بیا دنیاته واپس کړې شونودَ خپل رب خبرې به دروغ نه ګڼړو اوایماندار به شو بلکه دَ هغوی دپاره خو هغه...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه..

..بقیه د تیرمخ].. ښکاره کړې شو چه دوې اول پټ کړې وو. اوکه بالفرض دوی واپس هم اوګرځولې شی نودوی به بیا هم هغه کوی دَ کوم نه چه منع کړې شوی دی. داخودی دروغژن. دې نه پس چه کله هغوی په دوزخ کښې واچولې شی اوعذاب شروع شی هغه وخت به نور هم په زوردار اوکلك انداز او الفاظو کښې دغه آرزوګانې کوی هلته به په چغوصورو سره وائی ﴿رَبَّنَاۤ اَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ؕ اَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَّا يَتَذَكَّرُ فِيْهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَجَآءَكُمُ النَّذِيْرُ ؕ فَذُوْقُوْا فَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ۝ ﴾ (۳۵/فاطر:۳۷) اې زمونږ پروردګاره مونږ دَ دې ځائ نه اوباسه مونږ به نیك عملونه کوو دَ هغې خلاف به کوو تراوسه پورې چه موکړی دی. جواب به ورکولې شی چه ولې مونږ تاسو ته دومره عمر اومهلت نه وو درکړې که چرې څوك نصیحت حاصلونکی وو نویقین به پرې کولې شوبلکه مونږ خوتاسو له خبردرکونکې هم درلیګلې وو اوس دَ خپلو کړو مزه واخلئی دَ ظالمانو هیڅ څوك امدادی نشته. وائی به چه اې الله مونږ دَ دې ځائ نه اوباسه که مونږ بیاهم هغه شان اوکړه نو مونږ به ظالمان یو. الله ﷻ به فرمانی لرې شئی هم په دې کښې پراته اوسئی ماسره خبرې مه کوئی. په دې آیت کښې دې خلقو دَ خپل سوال نه وړاندې یوه مقدمه قایمولو سره په سوال کښې یوه مزیداره خبره کړې. اې الله ﷻ مونږ مړه وو تامونږ راژوندی کړو بیادې مړه کړو بیا دې راژوندی کړو ته په هرهغه څیز باندې قادرئی کوم چه ته غواړې زمونږ دَ خپلو ګناهونواقرار دې. یقینا مونږ په خپلو ځانونو باندې ظلم اوزیاتې کړې اوس دَ خلاصی څه صورت جوړکړې یعنی مونږ دنیاته بیا واپس کړه چه یقینًا ستا په طاقت کښې دی.....[باقی په راروانه صفحه...

Scanned with Ca

وَأَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوبِنَا فَهَلْ إِلَىٰ خُرُوجٍ

او ژوندی کړو تاموږه | دوه خله | پس اقرار کوو موږه | د ګناهونو خپلو | نو آیا شته د دې خاتې نه وتلو ته

او دوه خله دې راژوندی کړو | نو اوس موږ د خپلو ګناهونو اقرار اوکړو | نو آیا اوس

مِّن سَبِيلٍ ﴿۱۱﴾ ذَٰلِكُم بِأَنَّهُ إِذَا دُعِيَ اللَّهُ وَحْدَهُ

څه لار | دا حالت ستاسو | په سبب د دې دې | چې کله به غوښتلې کيدل خلق | الله ته | يوازې

[د دې عذاب نه د بچ] وتلو څه لار شته ؟ [ا د اخکه [سزا د رکولې شی] چې که صرف د الله نوم بهٔ اخستې شو

كَفَرْتُمْ وَإِن يُشْرَكْ بِهِ تُؤْمِنُوا فَالْحُكْمُ

نو انکار به کوئ تاسو | او که شريك به کړې شو څوك | د هغه سره | نو تاسو به منلو | نو اوس اختيار يا فيصله

نو تاسو بهٔ ترې انکار کولو | او که څوک به ورسره شريکولې شو | نو بيا به مو منله | نو اوس د الله فيصله ده

لِلَّهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيرِ ﴿۱۲﴾

الله لره ده | چې اوچت دې لوئ دې |

چې ډير د اوچتې مرتبې خاوند دې |

## آسان ترجمه قرآن

کومو خلقو چه کفر اختيار کړې دې، هغوی ته به آواز اوکړې شی، چه: (لن) تاسو څومره بيزاری د خپل ځان نه کوئ، د دې نه زياته بيزاری به الله تعالی په هغه وخت کښې کوله، چه کله به تاسو ته د ايمان دعوت درکړې شو، او تاسو به انکار اوکړو. هغوی به اووائی چه: اے زمونږ پروردګاره! تا مونږ ته دوه کرته مرګ را کړو، او دوه کرته دې ژوند را کړو، اوس مونږ د خپلو ګناهونو اعتراف کوو نو آيا (زمونږ د دوزخ نه) د وتلو څه لاره شته؟ (جواب به ورکړې شی چه) ستاسو دا حالت د دې وجې نه دې، چه کله به الله تعالی لره يواځې رابللې شو، نو تاسو به انکار کولو او که هغه سره به نور څوک شريکولې شو، نو تاسو به منل، اوس خو فيصله د الله تعالی ده، چه د هغه شان ډير اوچت دې او د هغه ذات ډير لوئې دې.

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [کوم خلق چه کافران شول] هغوی چه هرکله دوزخ ته لاړشی په خپل کفراو شرك اختيارولو باند افسوس او حسرت وکړی او په خپله د دوی د ځان نه سخت نفرت وشی ترد ې چه په ډيره غصه سره به خپلې ګوتې چيچی او خوری به ئې لکه چه په درمنثور کښې

.....باقی د تيرمخ] ... مونږ چه هلته لاړشونود خپلو اولنوعملونو خلاف به کوو اوس که دې خل بيا مونږ هم هغه کار اوکړو نو مونږ به ظالمان يو. هغوی ته به جواب ورکولې شی چه اوس بيا دنيا ته د تلو هيڅ لار نشته. د دې د پاره که بيا لاړهم شی نو هم هغه کارونه به کوی د کوم نه چه منع کولې شی. بيشکه دوئ دروغجن دی. تاسو اوس هم حق نه قبلوئې بلکه د دې به خلاف کوئې. ستاسو خو دا حال وو چه کله هم د رب واحد ذکر راغلې ستاسو په زړه کښې کفر راغلې دې. او که ده سره څوك شريك کولې شو نو ستاسو يقين او ايمان راتلو. ستاسو به بيا هم هغه حالت شی. که دنيا ته بيا لاړئی نو هم دغه به کوئی.

Scanned with Ca

دحضرت حسن نه روایت دي[1] دغه وخت [به﴿يُنَادَوْنَ لَمَقْتُ اللّٰهِ اَكْبَرُ مِنْ مَّقْتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ﴾ هغوی ته اواز وشی چه لکه څنګه تاسو] دا وخت [دخپلو ځانونو نه نفرت کوئ ددې نه زیات د الله تعالی] ستاسو نه [نفرت وو﴿اِذْ تُدْعَوْنَ اِلَى الْاِيْمَانِ فَتَكْفُرُوْنَ۝﴾ کله چه تاسو] په دنیاکښې [ایمان طرف ته بللې شوئ بیا] دبللو نه پس [به تاسو نه منلو] مقصود ددې نه ددوی په حسرت او ندامت کښې نور زیاتې کول دی ﴿قَالُوْا رَبَّنَآ﴾[دغه خلق به ووائی چه اے زمونږ پروردګاره] مونږ چه د دوباره ژوندی کیدونه انکار کولو اوس مونږ ته خپله غلطی معلومه شوه چنانچه وموليدل چه ﴿اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ﴾[تامونږ دوه خله مړه کړو] يو خل د پيدائش نه وړاند چه مونږ د بې روحه مادې په صورت کښې وو او دويم ځل دې عالم ته دراتلو او ژوندی کیدونه پس په متعارف مرګ مړه شو ﴿وَاَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ﴾[او دوه ځله د ژوندی کړو] يو د دنيا ژوند او بل د اخرت ژونددا څلورحالتونه دی چه په دې کښې انکارصرف ديو اخرت د ژوند نه وو مګر دباقی دريوحالتونو ذکرئ ځکه وکړو چه دغه يقينی وو او ددې اقرارمقصد داوو چه اوس څلورم قسم هم د اولو دريو قسمونو په شان يقينی شو ﴿فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوْبِنَا﴾[پس مونږ دخپلو خطاګانو] چه په دې کښې اصل دمرګ نه پس دوباره ژوندون انکار وو باقی ټول ددې فروع وو [اقرار کوو ﴿فَهَلْ اِلٰى خُرُوْجٍ مِّنْ سَبِيْلٍ۝﴾ نو ايا] ددې ځائ نه [دوتلو څه صورت شته؟] چه دنيا ته لاړ شو ددې خطاګانو تدارک وکړو په جواب کښې به ارشاد وشی چه ستاسو دوتلو هيڅ صورت نشته بلکه هميشه دلته پاتې کيدل دی او﴿ذٰلِكُمْ بِاَنَّهٗٓ اِذَا دُعِيَ اللّٰهُ وَحْدَهٗ﴾ [وجه ددې داده چه هر کله به صرف ديو الله تعالی نوم اخستلې کيدو] يعنی دتوحيد ذکر به کيدو﴿كَفَرْتُمْ﴾[نو تاسو به انکارکولو﴿وَاِنْ يُّشْرَكْ بِهٖ تُؤْمِنُوْا﴾ اوکه ددهٔ سره به چالره شريکولې شو نو تاسو به منلو﴿فَالْحُكْمُ لِلّٰهِ﴾ په دې وجه دا فيصله دالله تعالی] کړې شوې [ده ﴿الْعَلِيِّ الْكَبِيْرِ۝﴾ کوم چه عاليشان] او [لوئ مرتبې والا دې] يعنی چونکه دالله تعالی دلويئ او بړايئ په اعتبار سره دا جرم عظيم وو په دې وجه په فيصله کښې سزا هم عظيمه يعنی دائمی جهنم شو.

| اٰيٰتِهٖ | يُرِيْكُمْ | هُوَالَّذِيْ | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نښې خپلې | چې ښائی تاسو ته | هغه هغه ذات دې | | | | |
| الله هغه ذات دې چې تاسوته خپلې نښې ښائی | | | | | | |
| اِلَّا مَنْ | وَمَا يَتَذَكَّرُ | رِزْقًا | مِّنَ السَّمَآءِ | لَكُمْ | وَيُنَزِّلُ | |
| مګر هغه څوک | اونه قبلوی نصيحت | رزق | دآسمان نه | ستاسو دپاره | او نازلوی | |
| او پورته نه درته روزی رالیږی \| او نصیحت خو بس هغه څوک قبلوی چې الله ﷻ ته | | | | | | |
| الدِّيْنَ | لَهُ | مُخْلِصِيْنَ | اللّٰهَ | فَادْعُوا | يُّنِيْبُ۝ | |
| ددين خپل | هغه لره | حال دا چې خالص کونکی يئ | الله | نو را اوبلئ | چې رجوع کوی الله ته | |
| رجوع کوی \| نو تاسو په خالصه عقيده باندې الله ﷻ نه دعا کوئ \| ..................اګر که هغه په | | | | | | |

[1] التفسير الدر المنثور تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۴۹۳

Scanned with CamScanner

وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۱۴﴾ رَفِيْعُ الدَّرَجٰتِ ذُو الْعَرْشِ

اگر که نه خوښوی | کافران | هغه داوچتو درجو مالك دی | مالك دعرش دی |

کافرانو بده لگی | ........هغه دمرتبو اوچتونکی دی | دعرش مالک دی

يُلْقِي الرُّوْحَ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ

نازلوی روح | په حکم خپل سره | په هغه چا | چی غواړی ئې هغه | دبندگانو خپلو نه

هغه په خپلو بندگانو کښې چې په چا اوغواړی په هغه باندې خپله وحی راولیږی | چې [

لِيُنْذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ ﴿۱۵﴾ يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ ۚ

دپاره ددې چی اویروی خلق | دورځې دملاقات نه | هغه ورځ | چی ټول خلق به بې پردې وی

خلق] دملاقات [دحشر] د ورځې نه اوویریږی | په کومه ورځ چې به ټول خلق [دقبرونونه] بهر راوځی

لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ ۭ لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ۭ

نه به وی پټ | په الله جل جلاله | ددوی نه | هیڅ څیز | چالره ده بادشاهی | نن ورځ | الله لره ده

دالله ﷻ نه به ددوئ هیڅ خبره پټه نه وی | [تپوس به کولې شی] چې نن ورځ د چا بادشاهی ده؟

لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿۱۶﴾ اَلْيَوْمَ تُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ

چې یو دې | قهار یعنی زبردست دې | نن ورځ به | بدله ورکړې کیږی | هر نفس ته

بس صرف دالله ﷻ بادشاهی ده | چې یو او غالب دې | نن به هر سړی ته دخپل عمل بدله ورکولې شی

بِمَا كَسَبَتْ ۭ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۷﴾

دهغه عمل چی کړې وی هغه | نشته ظلم نن ورځ | بیشکه الله | زراغستونکې دې دحساب

[اوپه چاباندې به] نن هیڅ زیاتې نشی کولې | یقینا الله ﷻ ډیر زر حساب اخستونکې دې

وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْاٰزِفَةِ اِذِ الْقُلُوْبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ كٰظِمِيْنَ ۭ

اواویروه دوئ | دورځې نزدې نه | کله چې به زړونه | راختلی وی مرئ ته | غمژن به وی |

او [اې پیغمبره] دوئ د نزدې راتلونکې ورځې دمصیبت نه اوویروه | چې زړونه

مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ حَمِيْمٍ وَّلَا شَفِيْعٍ يُّطَاعُ ﴿۱۸﴾

نه به وی دپاره دظالمانو | څوک خوږدوست | اونه شفاعت کونکې | چې خبره اومنلې شی دهغه

اوساگانې به لنډې شی | اوپه دغه ورځ به دظالمانو دپاره هیڅ دوست نه وی | اونه څوک سفارشی چې دهغه خبره

يَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْاَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُوْرُ ﴿۱۹﴾ وَاللّٰهُ

پوهیږی الله تعالی | په خیانت د سترگو | او په هغه چې پټوی یې سینې | او الله تعالی

واوری | الله ﷻ د سترگو په غلا اود زړونو په پټو رازونو ښه پوهیږی | .........اوالله ﷻ به

يَقْضِيْ بِالْحَقِّ ۭ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَقْضُوْنَ

حکم [فیصله] کوی | په حقه سره | او هغه | چی رابلې ئې دوئ | ابې دالله نه | هغوئ فیصله نه شی کولې

په انصاف سره فیصله اوکړی | اودوئ چې دهغه نه سوا د نور چا بلنه کوی | نوهغوئ هیڅ فیصله نه

بِشَیْءٍ ۚ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّمِیْعُ الْبَصِیْرُ ۝ اَوَلَمْ یَسِیْرُوْا

دهیڅ څیز | بیشکه الله چی دی | هغه اوریدونکی دی | لیدونکی دی | آیا او ګرزیدلی نهٔ دی دوی

شی کولی | بیشکه الله ﷻ هر څه وینی او ګوری | ...... آیا دا خلق په زمکه کښې ګرځیدلی نه دی

فِی الْاَرْضِ فَیَنْظُرُوْا کَیْفَ کَانَ عَاقِبَةُ الَّذِیْنَ کَانُوْا

په زمکه کښی | چی او ګوری | څرنګې وو | انجام | دهغه کسانو | چی ووه هغوی |

چې او ګوری چې ددوئ نه وړاندې خلقو [چې دحق نه منکر وو] انجام څهٔ شو

مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ کَانُوْا هُمْ اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَّاٰثَارًا

مخکښی دوی نه | وو هغوی | زیات سخت | ددوی نه | په قوت کښی | او په نښو پریښودو کښی

هغه ددوئ نه په قوت کښې او د زمکې په مخ په نښو پریښودو کښې زیات وو |

فِی الْاَرْضِ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ۭ وَمَا کَانَ لَهُمْ

په زمکه کښی | پس اونیول هغوئ لره الله | په سبب دګناهونو دهغوئ | او نهٔ وو | هغوئ لره |

نو الله ﷻ هغوی د خپلو ګناهونو په سبب راونیول | او هیڅوک د الله ﷻ د عذاب

مِّنَ اللّٰهِ مِنْ وَّاقٍ ۝ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ کَانَتْ تَّاْتِیْهِمْ

دالله نه | هیڅوک بچ کونکې | دا انجام شو | په سبب ددې چی هغوئ وو | چی راتلل به هغوئ ته |

نه بچ نه کړل | ......دا ځکه چې هغو ته به خپلو پیغمبرانو ښکاره نښې راوړلې

رُسُلُهُمْ بِالْبَیِّنٰتِ فَکَفَرُوْا فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ ۭ

رسولان دهغوئ | د واضحه حکمونو سره | پس هغوئ انکار اوکړو | پس راونیول هغوئ الله |

خو هغوئ بهٔ ترې انکار کولو | ............ نو الله ﷻ راونیول

اِنَّهٗ قَوِیٌّ شَدِیْدُ الْعِقَابِ ۝

بیشکه هغه | زورور دې | سخت عذاب ورکونکې دې |

یقینا هغه ډیر د طاقت خاوند دې | سخت عذاب ورکونکې دې |

## آسان ترجمه قرآن

هم هغه دې چه تاسو ته خپلې نښې ښائی، او ستاسو دپاره د آسمان نه رزق رالیږی، او نصیحت هغه خلق منی، چه (د هدایت دپاره) په زړه سره رجوع اوکړی. لهٰذا (اے خلقو) الله تعالیٰ لره داسې رابلئ چه ستاسو تابعداری صرف د هغه دپاره وی، اګر که کافران دا بد ګنړی. هغه د اوچتو درجو والا عرش مالک دې، هغه په خپلو بندګانو کښې په چا باندې چه اوغواړی په خپل حکم سره روح (یعنی وحی) نازلوی، دې دپاره چه د ملاقات د هغې ورځې نه خلق خبردار کړی. په هغه ورځ چه ټول خلق به رابښکاره شی، د الله تعالیٰ نه به دهغوی هیڅ څیز پټ نه وی (او به وئیلې شی) نن د چا بادشاهی ده؟ (جواب به هم یو وی) چه صرف د الله تعالیٰ چه واحد دې او قهار دې. نن ورځ به هر سړی ته د هغه د عمل بدله ورکولې شی. نن به هیڅ ظلم نه کیږی، یقیناً الله تعالیٰ ډیر زر حساب اخستونکې دې. (اے پیغمبره) دغې خلقو لره د

Scanned with Ca

هغې ورځې د مصيبت نه اوېروه، چه نژدې راتلونکې ده، چه کله به د خلقو زړونه د ډېر غم نه خولو ته راشي، د ظالمانو دپاره به نه څوک دوست وي، او نه داسې سفارشي چه دهغه خبره منلې کيږي، الله تعالیٰ د سترګو په خيانت باندې هم پوهيږي، او په هغې خبرو باندې هم، کومې چه سينو پټې کړې دي، او الله تعالیٰ په حقه سره فيصلې کوي، او د هغه نه ماسوا کوم دروغ خدايان چه دوی رابلي، هغوی د هيڅ څيز فيصله نشي کولې يقيناً الله تعالیٰ هره خبره اوري، او هرڅه ويني. آيا دا خلق په زمکه کښې نه ګرځي، چه اوويني، چه کوم خلق ددوی نه مخکښې وو، دهغوی انجام څرنګه شو، هغوی په طاقت کښې هم ددوی نه زيات مضبوط وو، او په زمکه کښې د پريخودلې شوو نښو په اعتبار سره هم، بيا الله تعالیٰ هغوی د هغوی د ګناهونو د وجې نه راونيول، او نه وو هغوی لره د الله تعالیٰ نه هيڅوک بچ کونکې. دا ټول هرڅه ددې وجې نه اوشو، چه هغوی ته د هغوی رسولانو ښکاره دليلونه راوړې وو، نو هغوی انکار اوکړو، ددې وجې نه الله تعالیٰ راونيول، يقيناً هغه ډير لوئ قوت والا دې، په سزا ورکولو کښې ډير سخت دې.

**خلاصه تفسير**

﴿هُوَ الَّذِیۡ یُرِیۡکُمۡ اٰیٰتِهٖ﴾[هغه هغه ذات دې کوم چه تاسو ته خپلې نښې] دقدرت [ښائي] چه تاسو به ددې سره په توحيد استدلال وکړئ [او] هغه دې کوم چه ﴿وَیُنَزِّلُ لَکُمۡ مِّنَ السَّمَآءِ رِزۡقًا﴾[د اسمان نه ستاسو دپاره رزق رالیږي] يعنی باران رالیږي په کوم سره چه رزق پيداکيږي دا منجمله د ذکرشوو نښونه دی [او] په دې نښو سره ﴿وَمَا یَتَذَکَّرُ اِلَّا مَنۡ یُّنِیۡبُ﴾[صرف هغه سړې نصيحت قبلوی کوم چه د خدائ طرف ته د [رجوع] کولو اراده [کوی] ځکه چه د رجوع په اراده سره غور او تامل نصيب کيږي په دې سره حق ته رسائی کيږي [نو] هرکله چه په توحيددليلونه قائم دی نو ﴿فَادۡعُوا اللّٰهَ مُخۡلِصِیۡنَ لَهُ الدِّیۡنَ﴾[تاسو خلق خدای لره د خالص عقيدې سره] يعنی توحيد سره [بلئ] او مسلمانان شئ ﴿وَلَوۡ کَرِهَ الۡکٰفِرُوۡنَ﴾[اګر چه په کافرانو دا بده لګی] د هغو پرواه مه کوئ ځکه چه ﴿رَفِیۡعُ الدَّرَجٰتِ ذُو الۡعَرۡشِ﴾[هغه رفيع الدرجات دې هغه د عرش مالك دې ﴿یُلۡقِی الرُّوۡحَ مِنۡ اَمۡرِهٖ عَلٰی مَنۡ یَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِهٖ﴾ هغه په خپلوبند ګانو کښې په چاچه غواړی وحی يعنی خپل حکم رالیږی چه هغه] د وحی خاوند خلقو لره ﴿لِیُنۡذِرَ یَوۡمَ التَّلَاقِ﴾[دجمع کيدو دورځې] يعنی دقيامت دورځې [نه وويروی ﴿یَوۡمَ هُمۡ بٰرِزُوۡنَ﴾ په کومه ورځ چه ټول خلق] دالله تعالی [په وړاند راموجود شی] چه ﴿لَا یَخۡفٰی عَلَی اللّٰهِ مِنۡهُمۡ شَیۡءٌ﴾[د هغوی خبره دالله تعالی نه پټه پاتې نه شی ﴿لِمَنِ الۡمُلۡکُ الۡیَوۡمَ﴾ نن ورځ د چا حکومت دې ﴿لِلّٰهِ الۡوَاحِدِ الۡقَهَّارِ﴾ پس دالله تعالی به وی چه يو] او [غالب دې ﴿اَلۡیَوۡمَ تُجۡزٰی کُلُّ نَفۡسٍۭ بِمَا کَسَبَتۡ﴾ نن به هرسړی ته د هغه د کړو] کارونو[بدله ورکولې شی ﴿لَا ظُلۡمَ الۡیَوۡمَ﴾ نن به په چا ظلم نه وی هيڅ ﴿اِنَّ اللّٰهَ سَرِیۡعُ الۡحِسَابِ﴾ الله تعالی ډير زرحساب اخستونکې دې او] په دې وجه ﴿وَاَنۡذِرۡهُمۡ یَوۡمَ الۡاٰزِفَةِ﴾[تاسو ديوې نزدې راتلونکې ورځې د مصيبت نه] يعنی دقيامت نه دوئ لره [ويروی ﴿اِذِ الۡقُلُوۡبُ لَدَی الۡحَنَاجِرِ﴾ کوم وخت چه زړونه خلې له راشی] د غم نه به ﴿کٰظِمِیۡنَ﴾[ويلې کيږی] په دغه ورځ ﴿مَا لِلظّٰلِمِیۡنَ مِنۡ حَمِیۡمٍ وَّلَا شَفِیۡعٍ یُّطَاعُ﴾[دظالمانو] يعنی کافرانو [به نه څوک د زړه دوست اونه څوک سفارشی وی چه دهغه خبره ومنلې شی] او [هغه] داسې دې چه ﴿یَعۡلَمُ خَآئِنَةَ الۡاَعۡیُنِ وَمَا تُخۡفِی الصُّدُوۡرُ﴾[دسترګوغلا پيژنی او هغو] خبرو [لره هم کومې چه په سينو کښې پټې دی] چه بل

Scanned with Ca

پرې نه پوهیږي مطلب دادې چه هغه د بندګانو په ټولو ښکاره او پټو عملونو خبردار دې په کومو چه جزا او سزا موقوف ده ﴿وَاللّٰهُ یَقۡضِیۡ بِالۡحَقِّ ؕ﴾[او الله تعالی به ټیک ټیک فیصله وکړي ﴿وَ الَّذِیۡنَ یَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِهٖ لَا یَقۡضُوۡنَ بِشَیۡءٍ ؕ﴾ او دالله تعالی نه سوا کومو لره چه دا خلق بلی هغه په هیڅ شان هم فیصله نه شی کولی] ځکه چه ﴿اِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّمِیۡعُ الۡبَصِیۡرُ ﴾[الله تعالی په هرڅه پوه هرڅه لیدونکې دې] دغه شان الله تعالی په ټولوصفتونو دکمال موصوف اود دروغو معبودان د هرڅه نه عاری دی په دې وجه فیصله دالله تعالی نه سوا د هیچا په وس کښې نه ده او دا خلق کوم چه ددې واضحو دلیلونو نه پس هم انکار کوی نو ﴿اَوَلَمۡ یَسِیۡرُوۡا فِی الۡاَرۡضِ فَیَنۡظُرُوۡا﴾ [ایا داخلق په ملك کښې نه دی ګرځیدلی نه ئې دی لیدلی ﴿کَیۡفَ کَانَ عَاقِبَةُ الَّذِیۡنَ کَانُوۡا مِنۡ قَبۡلِهِمۡ ؕ﴾ چه کوم] کافر [خلق ددوی نه وړاند تیر شوی دی] د هغوی دکفر په وجه [د هغوی څه انجام شو ﴿کَانُوۡا هُمۡ اَشَدَّ مِنۡهُمۡ قُوَّةً وَّ اٰثَارًا فِی الۡاَرۡضِ﴾ چه هغه خلق په قوت او هغونښو کښې کومې چه ئې په مزکه پریښودی دی] لکه ابادئ باغونه وغیره کښې [ددې] موجوده [خلقو نه ډیر زیات وو ﴿فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوۡبِهِمۡ ؕ﴾ [پس ددوی دګناهونو په وجه سره الله تعالی دوی لره ونیول] یعنی عذاب ئې پرې نازل کړو ﴿وَمَا کَانَ لَهُمۡ مِّنَ اللّٰهِ مِنۡ وَّاقٍ ﴾[او ددوی د الله تعالی نه بچ کوونکې هیڅوك ونه شو] وړاند ددوی دګناهونو تفصیل دې چه ﴿ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ کَانَتۡ تَّاۡتِیۡهِمۡ رُسُلُهُمۡ بِالۡبَیِّنٰتِ﴾[دا ددوی مؤاخذه په دې وجه وشوه چه دوی ته ددوی رسولان د واضحو دلیلونو] یعنی معجزو کوم چه دنبوت دلیلونه وی [سره راغلل ﴿فَکَفَرُوۡا فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ ؕ﴾ بیا هغوی ونه منله نو الله تعالی په دې مواخذه وفرمائیله ﴿اِنَّهٗ قَوِیٌّ شَدِیۡدُ الۡعِقَابِ ﴾ بیشکه هغه لوئ قوت والا سخته سزا ورکوونکې دې] هرکله چه په دې موجوده کافرانو کښې هم دغه موجبات د عذاب جمع دی نو دوی د مؤاخذې نه څنګه بچ کیدې شی؟

## معارف او مسائل

﴿رَفِیۡعُ الدَّرَجٰتِ﴾ ځیني حضراتودرجاتو څخه مراد صفات اخستی دی . او رفیع الدرجات معنی رفیع الصفات یعنی ددهٔ صفات کمال به د ټولو څخه عالیشان وی . ابن کثیر دا پهٔ خپل ظاهر باندې ایخود څخه روستو ددې معنی ئې بیان کړې ده چې ددې څخه مراد د عرش عظیم رفعت دې . ځکه دا په ټولو زمکو او آسمانونو باندې حاوی او په ټولو باندې پورته دې دچت په مثال اوچت دي . لکه څنګه چې د سورة معارج کښې په آیت مبارك کښې دی چې ﴿مِّنَ اللّٰهِ ذِی الۡمَعَارِجِ ؕ تَعۡرُجُ الۡمَلٰٓئِکَةُ وَ الرُّوۡحُ اِلَیۡهِ فِیۡ یَوۡمٍ کَانَ مِقۡدَارُهٗ خَمۡسِیۡنَ اَلۡفَ سَنَةٍ ۚ﴾
د ابن کثیر تحقیق ددې آیت مبارك متعلق داهم دې چې دا پنځوس زره کاله مقدار دهغه مسافت بیان دې چې کوم اوومې زمکې څخه تر عرش پورې دې . او دسلفو او خلفو یو لوئې جماعت دې ته راجح وئیلی دی . او بیان کړی ئې دی چې دټولو علماء کرامو په نزد د رحمان عرش د سرو یاقوتو څخه جوړ دې او ددې قطر دومر غټ دې چې د پنځوسو کلونو دمسافت برابر دې او دا شان ددې ارتفاع اوومې زمکې څخه د پنځوسو کلونو تر مسافت پورې دې[1]

[1]) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۱۳۵

Scanned with Ca

او ځيني حضراتو مفسرينو فرمائيلي دي چې ﴿ رَفِيْعُ الدَّرَجٰتِ﴾ د ﴿ رَافِعُ الدَّرَجٰتِ﴾ په معنى دي يعنى الله تعالى د مؤمنانو متقيانو درجاتو لره پورته كوونكي دي. لكه څنګه چې د قرآن عظيم الشان آيات مباركه په دې باندې ګواه دي ﴿نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ﴾ (۱) او ﴿هُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾ (۲)
﴿يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ﴾ ﴿بٰرِزُوْنَ﴾ څخه مراد دادې چې د حشر په ميدان كښې به زمكه د يوسطح مستوى جوړه كړې شي او دې كښې به غرونه يا غار يا عمارتونه او ونې نه وي.
﴿لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ﴾ دا كلمه په مذكوره آيتونو كښې د ﴿يوم التلاق﴾ او ﴿يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ﴾ څخه روستو راغلې ده. او دا ښكاره خبره ده چې د يوم التلاق مطلب د ملاقات او يو ځائې كيدو ورځ ده. او دا به د نفخ ثانيه څخه روستو وي. او دا شان د ﴿يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ﴾ واقعه به هم په هغه وخت كښې وي. هر كله چې د نفخ ثانيه څخه روستو زمكه د يو مستوى سطحې شكل اختيار كړي، او په دې باندې به غرونه نه وي. نو دې څخه روستو د ﴿لِمَنِ الْمُلْكُ﴾ ذكر كولو څخه په ظاهره دا معلوميږي چې الله ﷻ به دا ارشاد په هغه وخت كښې فرمائي چې كله ټول مخلوق دوباره پيدا كړي. او ددې تائيد علامه قرطبي د نحاس په حوالې سره كړې دې او يو حديث پاك ئې پيش كړې دې. اودا حديث پاك ابو وائل د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت كړې دې.
هغه دادې چې ټول خلق به په يو صفا زمكه باندې جمع كړې شي او په دې زمكه باندې به هيڅ څه ګناه نه وي كړې. په هغه وخت كښې به يو آواز كوونكى ته حكم اوشي چې هغه به دا آواز كوي چې ﴿لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ﴾ يعنى نن د چا بادشاهي ده. نو په دې باندې به ټول مخلوقات جواب كښې اوفرمائي چې ﴿لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾. مسلمانان خو به ډير په خوشالئ سره دا اووائي ولې كافران به د مجبورئ او عاجزئ څخه داسې اووائي او دوئ به ډير خفه وي (۳).
ليكن ځينو نورو روايتونو څخه معلوميږي چې دا ارشاد به الله تعالى پخپله فرمائي. او د نفخه اولى څخه روستو به ټول مخلوقات فنا شي. او دې څخه روستو به څلورو فرښتو جبرائيل عليه السلام، اسرافيل عليه السلام، ميكائيل عليه السلام او ملك الموت ته به مرګ راشي. او دالله تعالى د ذات څخه سوا به نور هيڅوك پاتې نشي. هغه وخت كښې به الله ﷻ اوفرمائي چې ﴿لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ﴾، او ددې جواب وركوونكى به هيڅوك نه وي نو الله ﷻ به پخپله اوفرمائي چې ﴿لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ (۴) حسن بصرى رحمه الله فرمائي چې په دې كښې به سوال كوونكې او جواب وركو ونكې صرف الله ﷻ وي. د محمد بن كعب قرظى رحمه الله هم دا قول دې. او ددې تائيد د ابوهريره رضي الله عنه ددې حديث څخه كيږي چې د قيامت په ورځ به د الله ﷻ په ښى لاس كښې ټولې زمكې او ګس لاس كښې آسمانونه وي. او فرمائي به ﴿انا الملك اين الجبارون واين المتكبرون﴾ يعنى هم زه ملك او مالك يم، نن جبارين او متكبرين چرته دي؟ (۵) تفسير در منثور كښې داشان روايتونه نقل كړې شوى دي او كيدې شي چې دا جمله دوه ځله اووئيلې شي. يو د نفخه اولى

---

۱) ترجمه: مونږ چه چاته اوغواړو نو خاص درجون ته ې اورسوو.
۲) ترجمه: دوى به په دى ذكر شوى درجون كښ مختلف وى د الله تعالى په نزد.
۳) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۳۰۰
۴) شعب الإيمان للبيهقي، رقم الحديث: ۳۶۱
۵) صحيح مسلم، كتاب المنافقين وأحكامهم، باب صفة القيامة والجنة والنار: ج ۲، ص ۳۷۰

Scanned with Ca

او عالم د فنا کیدو په وخت کښې او دویمه نفخه ثانیه او د ټولو مخلوقاتو د دوباره راژوندی کولو په وخت کښې. بیان القرآن کښې دی چې د قرآن کریم تفسیر په دې باندې موقوف نه دې چې بس دوه ځل او کرزولې شی بلکه کیدې شی چې دې مذکوره آیت مبارک کښې دهغې واقعې ذکر وی چې د نفخه اولی څخه روستو شوې وه. دا به ئې په هغه وخت کښې حاضر فرض کولو سره وئیلې وی[1]. والله اعلم.

﴿یَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْاَعْیُنِ﴾ یعنی الْاَعْیُنِ الْخَآئِنَةَ ، د نظر د خیانت څخه مراد دادې چې یو کس داسې څیز ته کورې چې هغې ته کتل حرام او ناجائز کړې شوې وی. لکه چې په یو غیر محرم باندې په شهوت سره نظر اوکړې. او کله چې چاته اوګورې نو نظر اخوا کړې. یا داشان کتل کوی چې کتوونکې نه محسوسوی. دالله تعالی په نزد دا ټول څیزونه ښکاره دی.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا | مُوْسٰی
| او بیشکه اولیږو موږ | موسی |
| اوموږ موسی

بِاٰیٰتِنَا | وَسُلْطٰنٍ مُّبِیْنٍ ۝ | اِلٰی فِرْعَوْنَ | وَهَامٰنَ | وَقَارُوْنَ
دنښو زموږ سره | او دلیل ښکاره سره | فرعون ته | او هامان ته | او قارون ته |
دخپلو نښو او ښکاره دلیل سره اولیږلو [یعنی موږ دوئ] فرعون او هامان او قارون ته [پیغام دحق سره اولیږل]

فَقَالُوْا | سٰحِرٌ | کَذَّابٌ ۝ | فَلَمَّا | جَآءَ | هُمْ | بِالْحَقِّ
پس اووئیل هغوئ | جادوګر دې | دروغژن دې | پس هر کله چې | راغې هغه | هغوئ ته | دحق سره
نو هغوئ اووئیل چې دا جادو ګردې غټ دروغژن دې| نو څه وخت چې موسی زموږ دطرفنه حق راوړو

مِنْ عِنْدِنَا | قَالُوا | اقْتُلُوْٓا | اَبْنَآءَ الَّذِیْنَ | اٰمَنُوْا
دطرفه زموږ نه | نو اووئیل هغوئ | چې اووژنئ | ځامن دهغه کسانو | چې ایمان ئې راوړې دې |
نو هغوئ اووئیل | چا چې ددهٔ سره [په الله ﷻ باندې] ایمان راوړې دې | د هغوئ ځامن قتل کړئ

مَعَهٗ | وَاسْتَحْیُوْا | نِسَآءَهُمْ ؕ | وَمَا کَیْدُ | الْکٰفِرِیْنَ | اِلَّا
دهغه سره | او ژوندئ پریږدئ | ښځې دهغوئ | او نهٔ دې تدبیر | دکافرانو | مګر
اولونړه ئې ژوندئ پریږدئ | ...............او د کافرانو تدبیر بې اثره لاړو

فِیْ ضَلٰلٍ ۝ | وَقَالَ فِرْعَوْنُ | ذَرُوْنِیْٓ | اَقْتُلْ مُوْسٰی
په ګمراهئ کښې [یعنی بې اثره] | او اووئیل فرعون | چې پریږدئ ما | چې اووژنم موسی |
او فرعون اووئیل چې ما پریږدئ چې موسی ﷺ قتل کړم| او بیا دې هغه خپل رب [مدد د پاره]

---

[1] تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآیة: ج ۱۰، ص ۳۷

وَلْيَدْعُ رَبَّهٗ ۚ اِنِّیْۤ اَخَافُ اَنْ يُّبَدِّلَ دِيْنَكُمْ

او دې د رااوغواړي | رب خپل | بیشکه زه یریږم | چې بدل به کړي دې | دین ستاسو |

راوغواړي | زه په دې ویریږم چې ستاسو دین به بدل کړي |

اَوْ اَنْ يُّظْهِرَ فِى الْاَرْضِ الْفَسَادَ ۝ وَقَالَ مُوْسٰٓى اِنِّىْ عُذْتُ

يا به راپورته کړي | په زمکه کښې | فساد | اواووئيل | موسى | بيشکه ما پناه اغستلې ده

اويا به په ملک کښې [بل څه] فساد پيدا کړي | موسى ﷺ اووئيل چې زه دخپل رب

بِرَبِّىْ وَرَبِّكُمْ مِّنْ كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ ۝

درب خپل سره | او درب ستاسو سره | دهر تکبر کونکي نه | چې ايمان نه لري | په ورځ دحساب

اوستاسو ذرب پناه غواړم دهر متکبر نه | چې د حساب په ورځ يقين نه ساتي

وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ ۖ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ اِيْمَانَهٗۤ اَتَقْتُلُوْنَ

او اووئيل | يو سړي مومن | دآل فرعون نه | چې پټوونې | ايمان خپل | آيا تاسو وژنئ: |

اود فرعون د قوم نه يو مومن اووئيل | چې خپل ايمان به ئې پټ ساتلو | اياتاسو يو داسې

رَجُلًا اَنْ يَّقُوْلَ رَبِّىَ اللّٰهُ وَقَدْ جَآءَكُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

يو سړي | چې وائي هغه | رب زما الله دې | او بيشکه راغلي دې تاسو ته | دواضحه نښو سره |

سړي وژنئ | چې هغه وائي چې زما رب الله ﷻ دې | اوتاسوته ستاسو د رب د طرفه په ښکاره دلائلو

مِنْ رَّبِّكُمْ ۭ وَاِنْ يَّكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهٗ ۚ وَاِنْ يَّكُ

دطرفه درب ستاسو نه | او که وي هغه | دروغژن | نو په هغه دې | دروغ دهغه | او که وي هغه |

سره راغلي دې | نوکه دې دروغژن وي | نو دده د دروغوو بال به هم په ده پريوځي | اوکه رښتينې

صَادِقًا يُّصِبْكُمْ بَعْضُ الَّذِىْ يَعِدُكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ

رښتينې | نو رسيږي به تاسو ته | ځينې دهغه عذاب نه | چې يروي دې تاسو دهغې نه | بيشکه الله |

وي | نو د هغه عذاب نه به دربادې راشي | چې تاسو ترې يروي | بيشکه الله تعالى هغه چاته نيغه لار نه

لَا يَهْدِىْ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ ۝ يٰقَوْمِ لَكُمُ

نه ښائي لار | هغه چاته | چې هغه دحدنه اوړيدونکي وي | دروغژن وي | اے قومه زما | تاسو لره ده

ښائي څوک چې د حدنه تيريدونکي اوغټ دروغژن وي | .......... ائې زما قومه

الْمُلْكُ الْيَوْمَ ظٰهِرِيْنَ فِى الْاَرْضِ ۡ فَمَنْ يَّنْصُرُنَا

بادشاهي | نن ورځ | چې غالب يئ | په زمکه کښې | پس څوک به امداد اوکړي زمونږ سره |

نن خو بادشاهي ستاسو ده | چې په دې ملک کښې حاکمان يئ | نو که د الله ﷻ عذاب

مِنْۢ بَاْسِ اللّٰهِ اِنْ جَآءَنَا ۭ قَالَ فِرْعَوْنُ مَآ اُرِيْكُمْ اِلَّا مَآ

دعذاب دالله نه | که راغې مونږ ته | اووئيل فرعون | نه درکوم رائې زه تاسو ته | مګر هغه

راشي | څوک به مونږ دالله ﷻ د عذاب نه بچ کړي ؟ | فرعون اووئيل زه خوبس تاسو ته هغه رائې

Scanned with Ca

أَرٰى وَمَآ أَهۡدِيكُمۡ إِلَّا سَبِيلَ ٱلرَّشَادِ ۝٢٩

چي ښكاري ماته [مناسب] | اونهٔ كوم ښودنه تاسو ته | مگر دلارې صحيح |

دركوم | كومه چي ماته رښتيا ښكاري | اوبله دا چي زه تاسو ته دمصلحت نه ډكه لار ښايم

وَقَالَ ٱلَّذِيٓ ءَامَنَ يَٰقَوۡمِ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُم

اواووئيل هغه سړي | چي ايمان ئې راوړې وو | اے قومه زما | بيشكه زهٔ يرېږم | په تاسو باندې |

اوكوم سړي چې ايمان راوړې وو | هغه اووئيل چي ائي زما قومه ماسره ويره ده | چي د نورو

مِّثۡلَ يَوۡمِ ٱلۡأَحۡزَابِ ۝٣٠ مِثۡلَ دَأۡبِ قَوۡمِ نُوحٖ وَعَادٖ وَثَمُودَ

په مثل دعذاب | دورځې دډلو | په مثل دحال | دقوم دنوح | او دعاديانو | او ثموديانو

قومونو پشان به درباندې بده ورځ راشي | پشان د نوح د قوم ......... اود عاديانو اود ثموديانو اود

وَٱلَّذِينَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡۚ وَمَا ٱللَّهُ يُرِيدُ ظُلۡمٗا

او دهغه كسانو | چي روستو دهغوئ نه وو | اونهٔ دې الله | چي اراده لري | دظلم كولو |

هغو خلقو پشان چې د هغوى نه روسته وو | او الله ﷻ خپلو بندگانو باندې د ذرې هومره ظلم

لِّلۡعِبَادِ ۝٣١ وَيَٰقَوۡمِ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ يَوۡمَ ٱلتَّنَادِ ۝٣٢

دپاره دبندگانو خپلو | او اے قومه زما | بيشكه زهٔ يرېږم | په تاسو باندې | دورځې دچغونه |

كول نه غواړي | ..........ائي زما قومه زه په تاسو باندې د چغو د ورځې نه ويرېږم

يَوۡمَ تُوَلُّونَ مُدۡبِرِينَ مَا لَكُم مِّنَ ٱللَّهِ مِنۡ عَاصِمٖۗ

هغه ورځ چي اوبه گرځئ تاسو | شاكونكي | نهٔ به وي تاسو لره | دالله نه | څوك بچ كونكي |

په هغه ورځ چي تاسو به شا طرف ته تښتئ | دالله ﷻ د عذاب نه به مو څوك بچ كونكي نه وي

وَمَن يُضۡلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِنۡ هَادٖ ۝٣٣ وَلَقَدۡ جَآءَكُمۡ

او هغه څوك چي بې لارې ئې كړي الله | پس نهٔ وي | هغه لره څوك لارښودونكي | اوراغلي وو تاسو ته

او څوك چي الله ﷻ بې لارې كړي | نو هغه څوك په لاره كولي نشي | .......اود دې نه وړاندې

يُوسُفُ مِن قَبۡلُ بِٱلۡبَيِّنَٰتِ فَمَا زِلۡتُمۡ فِي شَكّٖ

يوسف | مخكښې ددې نه | دواضحه نښو سره | پس هميشه به وئ | تاسو په شك كښې |

تاسوته يوسف ﷺ په ښكاره نښو سره راغلي وو | نوتاسو ته چې هغه څه راوړي وو | تاسو هميش د

مِّمَّا جَآءَكُم بِهِۦۖ حَتَّىٰٓ إِذَا هَلَكَ قُلۡتُمۡ

دهغې نه چي هغه راوړې وو تاسو ته | تر دې پورې | كله چي | وفات شو هغه | نو اووئيل تاسو |

هغې نه په شك كښې وئ | ..........تر دې چې هغه وفات شو | نو تاسو اووئيل

لَن يَبۡعَثَ ٱللَّهُ مِنۢ بَعۡدِهِۦ رَسُولٗاۚ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ ٱللَّهُ مَنۡ

هر گز به نهٔ راليږي الله | روستو دهغه نه | بل رسول | همدارنگې | بې لارې كوي الله | هغه څوك

چي هيڅ كله به الله ﷻ بل پيغمبر راونه ليږي | دغه شان الله ﷻ د حد نه تيرېدونكي

Scanned with Ca

| هُوَ مُسْرِفٌ | مُّرْتَابٌ | الَّذِيْنَ | يُجَادِلُوْنَ | فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|
| چې دحدنه اوړيدونکې وي | شك كونكې وي | بيشكه هغه كسان | چې جګړه كوي | په آيتونو دالله كښې |

شک کونکی خلق دهدایت نه محروم ساتی | کوم خلق چې دالله ﷻ په آیتونو کښې د څه دلیل نه بغیر

| بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ | اَتٰىهُمْ | كَبُرَ | مَقْتًا | عِنْدَ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|
| بغير دځه دليل نه | چې راغلي وي هغوئ ته | دا طريقه ډيره دغصې ده | | په نز دالله |

کوم چې هغوی ته راغلی وی جګړې کوی | ..........دا دالله ﷻ اودمومنانو

| وَعِنْدَ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | كَذٰلِكَ | يَطْبَعُ اللّٰهُ | عَلٰى كُلِّ قَلْبِ |
|---|---|---|---|---|
| او په نزد دهغه كسانو | چې ايمان ئې راوړې دې | درانګې | مهروهي الله | په هر زړهٔ باندې |

په نيز ډيره دغصې خبره ده | دغه شان الله ﷻ د هر متکبر ظالم په زړه باندې مهر

| مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ | وَقَالَ | فِرْعَوْنُ | يٰهَامٰنُ | ابْنِ لِيْ | صَرْحًا |
|---|---|---|---|---|---|
| دمتكبر سرې | دظالم سړی | اواووئيل فرعون | اے هامانه | جوړه كړه مالره | يوه مانړئ |

لګوی | .........اوفرعون اووئيل چې ائي هامانه! مادپاره يوه اوچته مانړئ جوړه کړه | شايد چې زه

| لَّعَلِّيْٓ اَبْلُغُ | الْاَسْبَابَ | اَسْبَابَ السَّمٰوٰتِ | فَاَطَّلِعَ |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې اورسيږم زهٔ | لارو ته | لارو د آسمانونو ته | پس چې اووينم زهٔ |

په دې باندې په ختلو سره هغه لاروته اورسم | چې دآسمان دلارو سره [ملاويږی] | بيا د

| اِلٰٓى اِلٰهِ مُوْسٰى | وَاِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ | كَاذِبًا | وَكَذٰلِكَ | زُيِّنَ |
|---|---|---|---|---|
| خدائې دموسى | او بيشكه زهٔ ګمان كوم په هغه | دروغژن | او درانګې | ښائيسته ښكاره كړې شوه |

موسی ﷺ الله ﷻ لره اووينم | اوزه خو موسی ﷺ دروغژن ګنړم | اودغه شان فرعون ته خپل

| لِفِرْعَوْنَ | سُوْٓءُ عَمَلِهٖ | وَصُدَّ | عَنِ السَّبِيْلِ | وَمَا كَيْدُ | فِرْعَوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| فرعون ته | بدى دعمل دهغه | او منع كړې شو | دنيغې لارې نه | اونهٔ وو تدبيرونه | دفرعون |

بدکارونه ښائسته ښکاريدل | اودنيغې لارې نه محرومه وو | ...... اود فرعون هر يو تدبير ناکامه شو

| اِلَّا | فِيْ تَبَابٍ | وَقَالَ الَّذِيْٓ | اٰمَنَ | يٰقَوْمِ |
|---|---|---|---|---|
| مګر ووُ | په لار دتباهئ | او اووئيل هغه سړی | چې ايمان ئې راوړې ووُ | اے قومه زما |

.......................... اوکوم سړی چې ايمان راوړې وو | هغه اووئيل چې ائې زما قومه!

| اتَّبِعُوْنِ | اَهْدِكُمْ | سَبِيْلَ | الرَّشَادِ | يٰقَوْمِ | اِنَّمَا |
|---|---|---|---|---|---|
| پيروى اوكړئ زما | زهٔ ښايم تاسو ته | لاره | دهدايت [نيكئ] | اے قومه زما | بيشكه |

تاسو زما په لار روان شئ | زه به تاسو ته دنيکئ لاره اوښايم | .................ائې زما قومه!

| هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا | مَتَاعٌ | وَّاِنَّ الْاٰخِرَةَ | هِيَ دَارُ الْقَرَارِ |
|---|---|---|---|
| دا ژوند ددنيا | لږه نفعه ده | او بيشكه آخرت | هم هغه دې كور دقرارئ |

دادنيا ژوند خو صرف د يو څو ورځو فائدې دی | اود اوسيدو اصلی ځائې خو آخرت دی

Scanned with Ca

مَنْ عَمِلَ سَيِّئَةً فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا ۚ

چاچې چې عمل اوکړو | بد | پس بدله به نه ورکړې کیږی هغه ته | مګر | برابرئ دهغې |

چاچې ګناه اوکړه | نو هغه ته به دهغه د عمل پوره سزا ورکولې شی

وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ

او چاچې عمل اوکړو | نیک | دنارینو نه | یا دزنانونه | حال دا چې هغه مومن وی |

او چا چې نیک عمل اوکړو | که سړې وی او که ښځه | او هغه مومن هم وی | ........

فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ يُرْزَقُوْنَ فِيْهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝

پس دغه کسان | به داخلیږی جنت ته | رزق به ورکړې کیږی | په هغې کښې | بې حسابه

نو هغه کسان به جنت ته داخلیږی | او هلته به هغوئ ته بې حسابه رزق ورکولې شی

وَيٰقَوْمِ مَا لِيْٓ اَدْعُوْكُمْ اِلَى النَّجٰوةِ وَتَدْعُوْنَنِيْٓ

او اے قومه زما | څه دی مالره | چې زهٔ رابلم تاسو | خلاصی ته | او تاسو رابلئ ما |

او وې وئیل چې ائې زما قومه دا څه چل دې چې زه خو تاسو دنجات طرفته رابلم | او تاسو مې

اِلَى النَّارِ ۝ تَدْعُوْنَنِيْ لِاَكْفُرَ بِاللّٰهِ وَاُشْرِكَ بِهٖ

وور ته | تاسو رابلئ ما | چې زهٔ کفر اوکړم | دالله سره | او شریك جوړ کړم | دهغه سره |

دوزخ ته رابلئ | تاسو خو مادې خبرې ته رابلئ | چې دالله ﷻ نه انکار اوکړم | او داسې څیزورسره شریک کړم

مَا لَيْسَ لِيْ بِهٖ عِلْمٌ ۡ وَّاَنَا اَدْعُوْكُمْ اِلَى الْعَزِيْزِ الْغَفَّارِ ۝

هغه څیزچې نشته مالره | په هغې | هیڅ علم | او زهٔ رابلم تاسو | غالب ښنونکی خدائې ته |

چې ماسره د هغې په باره کښې هیڅ دلیل نشته | او زه تاسو دغالب او ښنونکی الله ﷻ طرفته رابلم

لَا جَرَمَ اَنَّمَا تَدْعُوْنَنِيْٓ اِلَيْهِ لَيْسَ لَهٗ دَعْوَةٌ فِي الدُّنْيَا

حقه خبره داده | چې بیشکه | چه تاسو رابلئ ما | دچا طرفته | نو نشته | هغه لره | بلنه | په دنیا کښې

دامنلې شوې خبره ده | چې تاسو ما کوم څیز ته رابلئ | هغه نه په دنیا کښې د بلنې لائق دې | او نه په آخرت

وَلَا فِي الْاٰخِرَةِ وَاَنَّ مَرَدَّنَآ اِلَى اللّٰهِ وَاَنَّ الْمُسْرِفِيْنَ

او نه په آخرت کښې | او بیشکه واپس تلل زمونږه | الله ته دی | او بیشکه دحدنه اوریدونکی خلق |

کښې د بلنې لائق دې | او مونږ تول به الله ﷻ طرف ته واپس کیږو | او د حد نه ورانډې تیریدونکی تول

هُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ ۝ فَسَتَذْكُرُوْنَ مَآ اَقُوْلُ لَكُمْ ؕ وَاُفَوِّضُ

هغوئ خاوندان دوور دی | پس زر ده چې یاد کړئ تاسو | هغه چې زهٔ وایم تاسو ته | او حواله کوم زهٔ

دوزخیان دی | .........نو هغه وخت لرې نه دې چې زما خبرې به رایاد وئ | او زه خپله معامله

اَمْرِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ ۝ فَوَقٰىهُ اللّٰهُ

کارخپل | الله ته | بیشکه الله | نظر ساتونکې دې | په بندګانو خپلو باندې | پس بچ کړو هغه لره الله

الله ﷻ ته سپارم | بیشکه الله ﷻ خپل بندګان وینې ګوری | ..........نو الله ﷻ هغه (مومن)

| سَيِّاٰتِ | مَا | مَكَرُوْا | وَحَاقَ | بِاٰلِ فِرْعَوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| دخرابو تدبیرونو نه | هغه | چې کړې وو هغوئ | او چاپیره شوه | دال فرعون نه |
| ددوئ دمکرونو فریبونو نه بچ اوساتلو | ..........اوپه فرعونیانو باندې خراب عذاب | | | |
| سُوْٓءُ الْعَذَابِ | اَلنَّارُ | يُعْرَضُوْنَ | عَلَيْهَا | غُدُوًّا |
| سختي دعذاب یعني سخت عذاب | وور دې | چې وړاند کړې کیږي به | هغې ته | صبا |
| راغلو | ..........هغه صبا او ماښام دوزخ ته وړاندې کولې شي | | | |
| وَّعَشِيًّا | وَيَوْمَ تَقُوْمُ | السَّاعَةُ | اَدْخِلُوْٓا | اٰلَ فِرْعَوْنَ |
| او بیگاه | او په کومه ورځ | چې قائم شي قیامت | [حکم به اوشئ:] چې ننباسئ | ال دفرعون |
| او په کومه ورځ چې قیامت قائم شي | [نوحکم به اوشي چې] دفرعون ملگری | | | |
| اَشَدَّ الْعَذَابِ | | | | |
| سخت عذاب ته | | | | |
| سخت عذاب ته داخل کړئ | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ موسیٰ علیه السلام خپلو نښو سره او ډیر واضحو دلائلو سره فرعون، هامان او قارون ته اولیږلو، نو هغوی اووئیل چه دا دروغژن جادوگر دې. پس هر کله چه هغه راغلو خلقو ته په حقې خبرې سره، زمونږ د طرف نه نو هغوی اووئیل چه کومو خلقو چه په ده باندې ایمان راوړې دې د هغوی ځامن قتل کړئ، او دهغوی ښځې ژوندئ پریږدئ. او حالانکه نه وی انجام د چال د کافرانو مکر دا چه هغه مقصد ته نه رسی او فرعون اووئیل : پریږدئ ما چه زه موسیٰ علیه السلام لره قتل کړم. او هغه لره پکار دی، چه خپل رب راوبلی، ماته ویره ده، چه موسیٰ علیه السلام به ستاسو دین بدل کړی، یا به په زمکه کښ فساد جوړ کړی، او موسیٰ علیه السلام اووئیل : پناه غواړم په هغه ذات سره چه زما پروردگار هم دې، او ستاسو پروردگار هم دې، د هر هغه متکبر نه چه په ورځې د حساب باندې ایمان نه لری. او د فرعون د خاندان نه یو مومن سړې، چه اوسه پورې ئې خپل ایمان پټ ساتلې وو، اووئیل چه: آیا تاسو یو سړی لره صرف د دې وجې نه قتلوئ، چه هغه وائی چه زما پروردگار الله تعالیٰ دې؟ حالانکه هغه تاسو ته ستاسو د پروردگار د طرف نه روښانه دلائل راوړې دی، او که هغه دروغژن دې، نو د هغه د دروغو وبال به په هغه باندې وی او که رشتونې وی، نو د کوم څیز نه چه هغه تاسو ویروی، بعضې دهغې نه به تاسو ته اورسیږی، الله تعالیٰ داسې سړی ته هدایت نه ورکوی، چه د حد نه تیریدونکې (او) د دروغ وئیلو عادت وی اے زما قومه! ان خو تاسو ته داسې سلطنت حاصل دې، چه په زمکه کښ ستاسو حکومت دې، لیکن که د الله تعالیٰ عذاب په مونږ باندې راغلو، نو څوک دی چه دهغې په مقابله کښ زمونږ مدد اوکړی؟ فرعون اووئیل : زه خو بس تاسو ته هغه راے درکوم کومه چه زه صحیح گنړم، او زه چه تاسو ته کومه لار ښایم، هغه بالکل د کامیابئ صحیح لاره ده. او کوم سړی چه ایمان راوړې وو، هغه اووئیل : اے زما قومه! ماته ویره ده چه په تاسو باندې هغسې ورځ رانشي، څرنگه چه په ډیرو ډلو باندې راغلې ده.

Scanned with Ca

(اوستاسو حال هم همسې نشي) څرنګه حال چه د نوح علیه السلام د قوم، عادیانو او ثمودیانو او دهغوی نه روستنو خلقو شوې وو، او الله تعالی په بندګانو باندې ظلم کول نه غواړي. او اے زما قومه! ماته په تاسو باندې د هغې ورځې ویره ده، په کومه ورځې چه چغې او غوغا به وي، په هغه ورځ چه تاسو به شا کونکې اوګرزئ نه به وي تاسو لره د الله تعالی نه هیڅوک بچ کونکې. او چا لره چه الله تعالی بے لارې کړي، هغه لره به هیڅوک لار ښودونکې نه وي. اوحقیقت دادې، چه ددې نه مخکښې تاسو ته یوسف علیه السلام روښانه دلیلونو سره راغلې وو نو هغه وخت کښې هم تاسو په شک کښې وئ، دهغې خبرو متعلق، کومې چه هغه راوړې وې، بیا چه کله هغه وفات شو نو تاسو اووئیل چه دهغه نه پس به الله تعالی هیڅوک پیغمبر راونه لیږي، دغه شان الله تعالی هغې ټولو خلقو لره ګمراه کوي، چه د حد نه تیریدونکې او شکیان وي. هغه کسان چه جګړه کوي په آیتونو د الله تعالی کښې. بغیر د څه راوړلې شوې دلیل نه، دا خبره د الله تعالی په نزد هم قابل نفرت ده، او دهغې خلقو په نزد هم، کومو چه ایمان راوړې دې، دغه شان الله تعالی د هر متکبر او جابر سړي په زړه باندې مهر لګوي. او فرعون (خپل وزیر ته) اووئیل چه: اے هامانه! زما دپاره یو اوچت عمارت جوړ کړه، دې دپاره چه زه هغې لارو ته اورسیږم، چه د آسمان لارې دی، بیا د موسٰی علیه السلام خدائې لره اوګورم او یقین اوکړم، چه زه خو هغه لره دروغژن ګنړم، دغه شان فرعون ته دهغه ناکاره عمل خائسته کړې شوې وو، او هغه د حقې لارې نه منع کړې شوې وو، او د فرعون هیڅ یو چل داسې نه وو، چه برباد شوې نه وي. او کوم سړي چه ایمان راوړې وو، هغه اووئیل: اے زما قومه! زما خبره اومنئ، زه به تاسو ته د هدایت لاره اوښایم اے زما قومه دا ژوند د دنیا خو بس لږه شان مزه ده، او یقین اوکړئ، چه آخرت د اوسیدلو دپاره اصل ځائې دې او کوم سړي چه بد عمل ئې کړې وي، هغه ته به هغې برابر بدله ورکولې شي، او چا چه نیک کارونه کړې وي، که هغه سړي وي او که ښځه، هرکله چه مومن وي، نو دا خلق به جنت ته داخل کړې شي. هلته کښې به دوی ته بے حسابه رزق ورکولې شي. او اے زما قومه! څه وجه ده تاسو لره، چه زه تاسو ته دنجات طرف ته دعوت درکوم، او تاسو ما د اور طرف ته رابلئ؟ تاسو ماته دا دعوت را کوئ، چه زه د الله تعالی نه انکار اوکړم، او هغه سره داسې څیزونه شریک اومنم، چه دهغې باره کښې ماته هیڅ علم نشته، او زه تاسو هغه ذات طرف ته رابلم، چه د لوئې اقتدار خاوند، او ډیر بخښونکې دې. خامخا رښتونکې خبره داده چه کومو څیزونو طرف ته تاسو ما رابلئ، هغوی د هیڅ دعوت اهل نه دی، نه په دنیا کښې او نه په آخرت کښې او حقیقت دادې، چه زمونږ د ټولو واپسی الله تعالی طرف ته ده، او کوم خلق چه د حد نه تیریدونکې دی، هغه د اور والا دی پس زر ده چه یاد به کړئ تاسو زما دا خبرے، چه زه ئې تاسو ته وایم، او زه خپله معامله الله تعالی ته سپارم، یقیناً الله تعالی ټولو بندګانو لره لیدونکې دې. نتیجه دا شوه، چه دغې خلقو کوم ناکاره منصوبې جوړې کړې وې، الله تعالی هغه مومن سړې دهغې نه محفوظ اوساتلو، او فرعونیانو باندې ناکاره عذاب راغلو. اور دې، چه هغې ته دوی سحر او ماښام پیش کولې شي او په کومه ورځ چه قیامت راشي، (په هغه ورځ به حکم اوکړې شي چه) فرعونیانو لره په سخت عذاب کښې داخل کړئ.

Scanned with Ca

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ﴾ [او مونږ موسى ﷺ [له خپل احكام اوښكاره دليلونه] يعنى معجزې [وركړې] ﴿اِلٰى فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ وَقَارُوْنَ﴾ فرعون او هامان او قارون ته مو وليږلو ﴿فَقَالُوْا﴾ هغو خلقو] كښې څنو ياتولو [ووئيل چه] نعوذبالله ﴿سٰحِرٌ كَذَّابٌ﴾ [دا جادوګر] او [دروغژن دې] جادوګرئ ورته په معجزوكښې ووئيل او دروغژن ئې په دعوه دنبوت او احكاموكښې ورته ووئيل داقول فرعون هامان او قارون درې واړو طرف ته منسوب شوې دې مګر قارون چونكه په بنى اسرائيلو كښې وو او په ظاهره ئې په حضرت موسى ﷺ ايمان لرلو دده هغه ته ساحر وئيل په ظاهره څه مستبعد شان ښكارى ليكن كيدې شى چه دې دغه وخت هم منافق وو او په حضرت موسى ﷺ ئې په ظاهره دايمان دعوه كوله حقيقة نه وه اوداهم ممكنه ده چه داقول صرف دفرعون او دهامان وى تغليباً درې واړو طرف ته نسبت كړې شوې وى [بيا] ددې نه پس ﴿فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ مِنْ عِنْدِنَا﴾ [هركله چه هغه] عامو [خلقو ته حق دين كوم چه زمونږ دطرف نه وو راوړو] چه په دې ځنې خلق مسلمانان هم شول ﴿قَالُوا﴾ [نوهغو] ذكر شوو [خلقو] په طور دمشورې ووئيل ﴿اقْتُلُوْا اَبْنَآءَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ﴾ [چه كوم خلق دده سره] شول او [ايمان ئې راوړو دهغوى خامنولره قتل كړئ] چه جمعيت او قوت ئې زيات نه شى چه په دې سره ويره د زوال دسلطنت ده [او] چونكه دښځو نه داسې ويره نشته او دارنګ زمونږ په كورو نو كښې دخدمت ګارانو دپاره ددغو ضرورت دې په دې وجه ﴿وَاسْتَحْيُوْا نِسَآءَهُمْ﴾ [د هغوى لونړو لره ژوندئ پريږدئ] غرض هغوى د حضرت موسى ﷺ د غلبې خطره محسوسه كړه دانسداد دا تدبيرئ وكړو ﴿وَمَا كَيْدُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ﴾ [او دهغو كافرانو تدبير محض بې اثره شو] چنانچه په اخر كښې حضرت موسى ﷺ غالب شو د بنى اسرائيلو دتازه پيداشوو بچو دقتل حكم يو خو د حضرت موسى ﷺ دپيدائش نه وړاند وركړې شوې وو چه په نتيجه كښې ئې دحضرت موسى ﷺ درياب ته د غورزولو نو بت راغې او قدرت دغه بچې په خپله دفرعون په كوركښې په دوى وپاللو دا دويمه فيصله ددغو هلكانو دقتلولو دحضرت موسى ﷺ د پيدائش او نبوت نه پس دهغه وخت ده هركله چه دده معجزات ئې وليدل نو فرعونيانو دا خطره محسوسه كړه چه كه دده ډله زياته شى نو زمونږ دسلطنت خير نشته بيا مې داپه يو روايت كښې دنظر نه نه دى تير شوى چه دغه وخت دبچو دقتل داقانون نافذ شو اوكه نه؟ بيا ددې نه پس دحضرت موسى ﷺ د قتلولو خبرې شروع شوې ﴿وَقَالَ فِرْعَوْنُ﴾ [او فرعون] ددربار خلقو ته [ووئيل ﴿ذَرُوْنِيْٓ اَقْتُلْ مُوْسٰى وَلْيَدْعُ رَبَّهٗ﴾ چه ماپريږدئ زه] حضرت [موسى] ﷺ [قتلوم او ده لره پكاردى چه خپل رب لره] دمدد دپاره [راوبلى ﴿اِنِّيْٓ اَخَافُ﴾ زما ويره ده چه هغه] چرته ﴿اَنْ يُّبَدِّلَ دِيْنَكُمْ﴾ [ستاسودين بدل] نه [كړى ﴿اَوْ اَنْ يُّظْهِرَ فِى الْاَرْضِ الْفَسَادَ﴾ ياپه ملك كښې څه فساد خورا] نه [كړى] چه يو ضرر ددين دې او دويم ضرر ددنيا او دفرعون دا ويناچه ماپريږدئ يا په دې وجه سره ده چه درباريانو شايدپه دې وجه دقتل راې نه وى وركړې چه داې دملك دمصلحت خلاف ګڼړلې وى چه عامه چرچه به وشى چه ديوېې سرو سامان سړى نه وويريدو او يا دا وينا په طور د دهوكې وه چه عام اوريدنكى دا وګڼړى چه تراوسه دده په قتل كښې تاخير دمشيرانو دمنع كولو په سبب سره وشو اګر چه په واقع كښې په قتل باندې په خپله ده جرءت نه شوكولې ځكه چه زړه كښې خو په معجزاتو باندې دده يقين راغلې وو په دې وجه دده سره

ویره وه چه که دې مې قتل کړو نو په څه اسماني عذاب او بلاکښې به ګرفتار شم مګر خپل خون ئې ددرباریانو په سرد اچولو دپاره داسې ووئیل دغه شان [ولیدع ربه] وئیل ئې هم په خلقو دخپلې بهادرئ ښکاره کولو دپاره وو اګر چه دننه په زړۀ کښې رپیدو ﴿وَقَالَ مُوسَىٰ﴾ [اوموسی]ﷺ چه داخبره واوریده خواه مخاخ ئې اوریدلې وی یا بالواسطه نو دوی [ووئیل﴿إِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُم﴾ چه زۀ دخپل او ستاسو] یعنی ټولو [د رب پناه غوارم ﴿مِّن كُلِّ مُتَكَبِّرٍ﴾ دهر خردماغه سړی] دشر [نه ﴿لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ﴾کوم چه په ورځ دحساب یقین نه لری] او په دې وجه دحق مقابله کوی [او]په دغه مشورې او مجلس کښې ﴿وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ إِيمَانَهُ﴾ یو [یومؤمن سړی کوم چه دفرعون دخاندان نه وو او تراوسه ئې خپل ایمان پټ ساتلې وو] دا مشوره واوریده او خلقو ته ئې [ووئیل ﴿أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا أَن يَقُولَ رَبِّيَ اللَّهُ﴾چه ایاتاسو داسې سړی لره] محض [په دې خبره باند قتل کوئ چه هغه وائی چه زما پروردګار الله تعالی دې ﴿وَقَدْ جَاءَكُم بِالْبَيِّنَاتِ مِن رَّبِّكُمْ﴾ حال دادې چه هغه ستاسو د رب دطرف نه] په دې دعوی باند [دلیلونه] هم [راوړی دی] یعنی معجزې هم ښائی کوم چه دلیل دې د صدق ددعوې د نبوت او ددلیل دموجودګئ باوجود دصاحب دلیل مخالفت کول او مخالفت هم دداسې درجې چه دقتل قصدئ وشی ډیر نازیبا حرکت دې ﴿وَإِن يَكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهُ﴾[او که چرې] بالفرض [هغه دروغژن وی نو وبال به ئې په هغه پریوځي] او په خپله به دالله تعالی د طرف نه رسوا شی د قتلولو څه ضرورت دې ﴿وَإِن يَكُ صَادِقًا يُصِبْكُم بَعْضُ الَّذِي يَعِدُكُمْ﴾[اوکه هغه رښتوني وی نو هغه چه څه پیشینګوئی کوی] چه دایمان نه راوړو په صورت کښې به داسې داسې عذاب وی [د هغې نه به څه په تاسو] خامخا [پریوځی] نو په دې صورت کښې دقتل کولو نه نوره زیاته بلا په خپل سراخستل دی غرض ددۀ د دروغژن والی په صورت کښې قتل فضول او د رښتونوالی په صورت کښې مضردې بیا داسې کار ولې کولې شی او قاعده کلیه ده چه ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي﴾[بیشکه الله تعالی داسې سړی لره مقصود ته نه رسوی﴿مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ﴾ کوم چه د] خپل [حدنه تیریدونکې] او [ډیر دروغ ویونکې وی] یعنی که دلږ وخته پورې ددۀ خبره وچلیږی نو ممکنه ده مګر اخر ددۀ ناکامی یقینی ده پس ددې قاعدې کلیئ په اعتبارسره که چرې موسیﷺ بالفرض دروغژن وی نو په دې وجه چه په دروغه دنبوت دعوی کول لویه ګناه ده اوسخت جرات دې په داسې دروغژن که قهر ونه شی او هلاك نه کړې شی نو مخلوق لره په خپله په اشتباه او التباس کښې مبتلا کول لازمیږی او داعقلا دالله تعالی نه نه شی کیدې په دې وجه ضروری ده چه دې مغلوب او رسوا شی بیا حاجت د قتلولو څه دې اوکه رښتوني وی نو تاسو خلق بیا یقینی دروغژن یئ او په دروغو کښې بیا اسراف کوونکی هم یئ چه دفرعون د خدایئ دعویداریئ او اسراف کوونکې دروغژن کامیابیږی نه پس تاسو به په قتل کښې کامیاب نه شئ یا خوبه قدرت بیا نه مومئ یا به اخر نتیجه خرابه وی په هرحال د دواړو ارخونو مقتضی داشوه چه دې قتل نه کړې شی او په دې دا شبهه نه شی کیدې چه په دې سره خو دا لازمیږی چه چرته مفسد لره قتل نه کړې شی جواب دادې چه دا تقریر په هغه صورت کښې دې کوم ځائ چه په دروغژن یا صادق کیدو کښې شبهه وی او په معجزو سره خو کمه درجه احتمال د صدق ضرور وو اوکوم ځائ چه په قطعی دلیلونو سره کذب یقینی وی هلته داسې نه وی او اګر چه دې مؤمن ته دحضرت موسیﷺ د صدق پوره یقین وو مګر په دې طرز

سره خبرې کول د خلقو د طبیعت په رعایت سره وو چه دوی غور کولو ته تیارشي وړاند هم ددې قتل نه دمنع کولو متعلق مضمون دې چه ﴿يٰقَوْمِ لَكُمُ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ظٰهِرِيْنَ فِي الْاَرْضِ﴾ [اے زما ورونړو نن خو ستاسو حکومت دې چه په دې مزکه کښې تاسو حاکمان يئ] ﴿فَمَنْ يَّنْصُرُنَا مِنْۢ بَاْسِ اللّٰهِ﴾پس دالله تعالى په عذاب کښې به زمونږ څوك مددوکړی ﴿اِنْ جَآءَنَا﴾که چرې] دده په قتل کولو سره [هغه په مونږ راپریوځی] لکه چه دده دربښتونی کیدو په صورت کښې ددې احتمال شته ﴿قَالَ فِرْعَوْنُ﴾[فرعون] چه داتقریر واوریدو نو په جواب کښې ئې [اووئيل ﴿مَآ اُرِيْكُمْ اِلَّا مَآ اَرٰى﴾ چه زه خو تاسو ته هغه رائ درکوم په کوم چه زه په خپله پوهه يم] چه دده قتل مناسب دې ﴿وَمَآ اَهْدِيْكُمْ اِلَّا سَبِيْلَ الرَّشَادِ﴾ [او زه تاسوته عين دمصلحت لاربنايم او دې مؤمن] هرکله چه ولیدل چه په نصیحت کښې نرمئ او رعایت په مخاطب اثر ونه کړو نو دده د ښودنې او ويرولو نه کار واخستو او ﴿وَقَالَ الَّذِيْٓ اٰمَنَ يٰقَوْمِ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ مِّثْلَ يَوْمِ الْاَحْزَابِ﴾ [او ئې [وئيل چه اے ملګرو زه خو په تاسو دنورو امتونو په شان د بدې ورځې نه ويريږم ﴿مِثْلَ دَاْبِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّعَادٍ وَّثَمُوْدَ وَالَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ﴾ لکه چه دقوم دنوح ﷺ او عاد اوثمود او ددوی نه دورو ستو] یعنی قوم دلوط وغيره [حال شوې وو ﴿وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعِبَادِ﴾ او الله تعالى خو په بندګانو باندې هيڅ قسم ظلم کول نه غواړی] لیکن هرکله چه تاسو داسې حرکتونه وکړل نو خامخا به خپلې سزاته رسيږئ [او] دا ويرول وو ددنيا دعذاب نه وړاند ويرول دی داخرت د عذاب نه چه ﴿وَيٰقَوْمِ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ يَوْمَ التَّنَادِ﴾[اصاحبانو ماسره خو ستاسوپه باره کښې دهغې ورځې ويره ده په کومه کښې چه به ډيرې چغې وی] یعنی دغه ورځ مشتمله ده په عظیمو واقعاتو څکه چه دچغو ډيروالی یعنی یو بل ته اوازونه کول د واقعاتو دعظیموالی په وجه باند وی چنانچه دتولونه اول اواز به دشپيلئ وهلو وی چه په دې سره به مړی ژوندی کيږی الله تعالى فرمائی [يوم يناد المنادمن مكان قريب يوم يسمعون الصيحة بالحق](1) يوه نداء به حساب دپاره وی الله تعالى فرمائی [يوم ندعوا كل اناس بامامهم](2) او يو قسم اوازونه یعنی يو بل ته اوازونه کول به د جنتيانو او دوزخيانو وی لکه الله تعالى فرمائی [في الاعراف ونادی اصحب الجنة الخ] ونادٰی اصحٰب الاعراف الخ ونادٰی اصحب النار الخ] يو قسم اوازونه به په اخير کښې مرګ لره په شکل دګډد ذبح کولو په وخت کښې وی لکه چه په حديث کښې دی [ياأهل الجنة خلود لاموت ويااهل النار خلود لاموت](3) او وړاند ئې ددغې ورځې يو حالت بيان کړې دې چه ﴿يَوْمَ تُوَلُّوْنَ مُدْبِرِيْنَ﴾[په کومه ورځ] دموقف دحساب نه [په شا] دوزخ ته [واپس شئ] لکه چه داسې تفسیرکړې دې بغوی(4) او دغه وخت [به ﴿مَا لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ﴾ تاسولره دالله تعالی] عذاب [نه څوك بچ کوونکې نه وی] او ددې مضمون تقاضا د هدایت قبلول دی لیکن ﴿وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ﴾ [چالره چه الله تعالى ګمراه کړی هغه ته څوك هدايت کوونکې نشته او] وړاندې زورنه او خبردارې دې

(1) ترجمه: په کومه ورځ چه منادی به دنزدے نه چغه کړی په هغه ورځ چه دوئ ټول به دغه چغه په يقين سره واوری۔

(2) ترجمه: په هغه ورځ به مونږ ټولو سړو ته اعمال نامو سره راوغواړو۔

(3) صحيح البخاری، کتاب الرقاق، باب يدخل الجنة سبعون الفا بغير حساب: ج ۲، ص ۲۶۹

(4) تفسير البغوی تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۱۴۸

په دې چه دموسی ﷺ نه وړاند دیوبل پیغمبر تکذیب هم تاسو کړې دې یعنی ﴿وَلَقَدْ جَآءَكُمْ يُوسُفُ مِنْ قَبْلُ بِالْبَيِّنٰتِ﴾ [ددې نه وړاند تاسو خلقو ته یوسف] ﷺ [دلیلونه] دتوحیداو نبوت [راوړې وو] یعنی دې قبطی قوم کښې چه تاسو په کښې هم یئ او دتیرو پلارانو نیکونو نه تاسو ته هم د هغوی خبرمتواتر رارسیدلې دې ﴿فَمَا زِلْتُمْ فِي شَكٍّ﴾ [پس تاسو په هغوکارونو کښې هم برابرشك او انکار] کولو ﴿مِّمَّا جَآءَكُم بِهِ﴾ کوم چه هغوی تاسو ته راوړی وو ﴿حَتّٰٓى إِذَا هَلَكَ﴾ تردې چه هرکله د هغوی وفات وشو ﴿قُلْتُمْ لَن يَبْعَثَ اللّٰهُ مِنۢ بَعْدِهِۦ رَسُولًا﴾ نو تاسو ووئیل چه بس اوس به الله تعالی یو رسول راونه لیږی] داقول په طور دشرارت وو مطلب داچه اول خو یوسف ﷺ هم رسول نه وو اوکه بالفرض وو هم نو هرکله چه مونږ یو هم ونه منلو نو الله تعالی به وائی چه دبل دلیږلو نه څه فائده ده نو دهمیشه دپاره دا جګړه پاکه شوه مقصود اصلی ددې نه نفی دمسئلې درسالت ده لکه چه دوړاندې قول نه معلومیږی چه څنګه په دې مسئله کښې تاسو غلط کاریئ ﴿كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ مُّرْتَابٌ﴾ [دغه شان الله تعالی دحد نه تجاوز کوونکو] او [شبهاتو کښې ګرفتار کیدونکولره په غلطئ کښې غورزولی ساتی ﴿الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِيٓ ءَايٰتِ اللّٰهِ بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ أَتٰىهُمْ﴾ کوم چه بغیر دسند نه چه ددوی سره موجود وی د الله تعالی په ایتونو کښې جګړې راوباسی په دې] کړوبحثونو [سره ﴿كَبُرَ مَقْتًا عِندَ اللّٰهِ وَعِندَ الَّذِينَ ءَامَنُوا﴾ دالله تعالی لوئ نفرت دې او دمؤمنانو هم او] څنګه چه ستاسو په زړونو باندمهر لګیدلې دې ﴿كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ﴾ [دغه شان الله تعالی دهر مغرور جابرپه پوره زړه باند مهر لګوی] چه بالکل په کښې دحق دپوهیدو ګنجائش نه پاتې کیږی دا تقریر وو د هغه مؤمن بزرګ کوم چه دفرعون د خاندان نه وو او لاتراوسه ئې دایمان اظهار نه وو کړې او په دې تقریر سره ددغه بزرګ ایمان پټول ختم شول خواه په اول تقریر سره یا په وروستی تقریر سره یعنی [یقوم انی اخاف علیکم مثل یوم الاحزاب] او ظاهرشق اول دې په وجه د دې قول دالله تعالی [وقدجاءکم بالبینت الخ] ﴿وَقَالَ فِرْعَوْنُ﴾ [او فرعون] چه لاجواب تقریر واوریدو نودغه مؤمن ته ئې هیڅ جواب ورنه کړې شو په خپل پخوانی جهالت باندپه خپل خیال سره دحجت قائمولو دپاره ئې هامان ته [ووئیل ﴿يٰهَامٰنُ ابْنِ لِي صَرْحًا لَّعَلِّيٓ﴾ اے هامان زما دپاره یوه اوچته ابادی جوړه کړه] چه زۀ هغې ته وخیژم وګورم ﴿أَبْلُغُ الْأَسْبٰبَ ۞ أَسْبٰبَ السَّمٰوٰتِ﴾ [شایدزۀ اسمان ته دتلو لاروته ورسیږم بیا] هلته لاړشم ﴿فَأَطَّلِعَ إِلٰٓى إِلٰهِ مُوسٰى﴾ [دموسی] ﷺ [الله تعالی لره ووینم وګورم ﴿وَإِنِّي لَأَظُنُّهُۥ كٰذِبًا﴾ او زۀ خو موسی ﷺ [لره په دې دعوی کښې [دروغژن ګنړم] وړاند دفرعون دزیاتې بدکردارئ ذکر دې ﴿وَكَذٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ سُوٓءُ عَمَلِهِۦ﴾ [او دغه شان دفرعون] نور [بدعملونه] هم [دۀ ته ښائسته معلومیدل ﴿وَصُدَّ عَنِ السَّبِيلِ﴾ او د] نیغې [لارې نه منع شو او] د حضرت موسی ﷺ دمقابلې دپاره ئې لوئ تدبیرونه وکړل مکر ﴿وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ إِلَّا فِي تَبَابٍ﴾ [دفرعون هرتدبیر ناکامه شو] چه دې په کښې کامیاب نه شو ﴿وَقَالَ الَّذِيٓ ءَامَنَ﴾ [او دې مؤمن] هرکله چه ولیدل چه دفرعون نه څه معقول جواب جوړنه شو نو بیائې دوباره [ووئیل ﴿يٰقَوْمِ اتَّبِعُونِ أَهْدِكُمْ سَبِيلَ الرَّشَادِ﴾ چه اے ورونړو تاسو زما په لاړاځئ زۀ تاسوته ټیك ټیك لاره ښایم] یعنی د فرعون ښودلې شوې لاره هرګز سبیل ارشاد یعنی د هدایت لارنه ده بلکه سبیل الرشاد زما دا ښودلې شوې لاره ده ﴿يٰقَوْمِ إِنَّمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا مَتٰعٌ﴾ [اے ورونړو داد نیاژوند محض یو څو ورځې دې او] اصل ﴿وَإِنَّ الْءَاخِرَةَ هِيَ دَارُ

الْقَرَارِ﴾[دپاتې کیدو مقام خو اخرت دې] کوم ځائ چه دبدلې ورکولو داقانون دې چه ﴿مَنْ عَمِلَ سَيِّئَةً فَلَا يُجْزٰى اِلَّا مِثْلَهَا﴾[کوم سړې ګناه کوی نو ده ته به برابر دګناه بدله ملاویږی ﴿وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ﴾ اوکوم چه نیك کار کوی خواه سړې وی او که ښځه په دې شرط چه مؤمنان وی ﴿فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ﴾ بس داسې خلق به جنت ته ځی]او ﴿يُرْزَقُوْنَ فِيْهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾[هلته به دوی ته بې حسابه رزق ملاویږی او] ددې تقریر په وخت کښې دې دفرعون د خاندان مؤمن ته داخبره محسوسه شوه چه داخلق زما په خبرو تعجب کوی او زما دخبرې دمنلو په ځائ مالره خپل کفر طرف ته بلل غواړی په دې وجه دائ هم ووئیل چه ﴿وَيٰقَوْمِ مَا لِيْٓ اَدْعُوْكُمْ اِلَى النَّجٰوةِ﴾[اے زما وروڼو داڅه خبره ده چه زه تاسو لره] لارې [دنجات طرف ته بلم ﴿وَتَدْعُوْنَنِيْٓ اِلَى النَّارِ﴾ او تاسو مالره] لارې د[دوزخ طرف ته بلئ] یعنی ﴿تَدْعُوْنَنِيْ﴾[تاسو مالره هغې خبرې طرف ته بلئ چه] معاذ الله ﴿لِاَكْفُرَ بِاللّٰهِ وَاُشْرِكَ بِهٖ مَا لَيْسَ لِيْ بِهٖ عِلْمٌ﴾[زه په الله تعالی باند کفر وکړم او داسې شي دهغه سره شریك کړم دکوم چه] دشرکت ماسره څه دلیل نشته ﴿وَّاَنَا اَدْعُوْكُمْ اِلَى الْعَزِيْزِ الْغَفَّارِ﴾ او زه تاسولره د الله تعالی زبردست خطابخښونکی طرف ته بلم ﴿لَا جَرَمَ اَنَّمَا تَدْعُوْنَنِيْٓ اِلَيْهِ لَيْسَ لَهٗ دَعْوَةٌ فِي الدُّنْيَا﴾ یقینی خبره ده چه تاسو دکوم شی] دعبادت [طرف ته مالره بلئ هغه نه په دنیاکښې] د څه دنیوی حاجت دپاره [دبلنې لائق دې ﴿وَلَا فِي الْاٰخِرَةِ﴾ اونه] دعذاب دفع کولو دپاره [په اخرت کښې] او یقینی خبره ده چه ﴿وَاَنَّ مَرَدَّنَآ اِلَى اللّٰهِ﴾[زمونږ د ټولو الله تعالی طرفته تلل دی ﴿وَاَنَّ الْمُسْرِفِيْنَ﴾ او یقینی خبره ده چه کوم خلق د دائرې] د عبادت [نه وځی] لکه د غیرالله عبادت کوونکی ﴿هُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ﴾[دغه ټول به دوزخیان وی پس] اوس خو زما خبره ستاسو په زړه نه لګی مګر ﴿فَسَتَذْكُرُوْنَ مَآ اَقُوْلُ لَكُمْ﴾[وړاند به تاسو زما خبره یادوئ او] چونکه دې مؤمن ته دا احتمال د وړاند نه وو چه داخلق به په دې نصیحت زما خلاف شی او تکلیف به راته رسوی او ممکنه ده چه دغه وخت څه نبښې او علامې د دړکې هم دهغوی دطرف نه مخې ته راغلې وی په دې وجه ئ دا هم ووئیل چه ﴿وَاُفَوِّضُ اَمْرِيْٓ اِلَى اللّٰهِ﴾ [زه خپله معامله الله تعالی طرف ته سپارم﴿اِنَّ اللّٰهَ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ﴾ الله تعالی د ټولو بندګانو] په خپله [نګران دې] زه تاسونه بالکل نه ویریږم ﴿فَوَقٰىهُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِ مَا مَكَرُوْا﴾[بیاالله تعالی ده] مؤمن [لره دهغوی دناکاره تدبیرونو نه محفوظ وساتلو] چنانچه هغه دهغو ضررونو نه محفوظ شو او د حضرت قتادهؒ دقول مطابق دې هم د حضرت موسیؑ سره دغرقیدو نه بچ شو لکه داسې په درمنثور([1]) کښې دی ﴿وَحَاقَ بِاٰلِ فِرْعَوْنَ سُوْٓءُ الْعَذَابِ﴾[او په فرعون والؤ باند] سره دفرعون نه [تکلیف ورکوونکې عذاب نازل شو] چه دهغې بیان دادې چه ﴿اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَّعَشِيًّا﴾[دغه خلق] په برزخ کښې [سحرماښام اورته راوړاندې کولې شی] او هغوی ته ښودلې شی چه تاسو به دقیامت په ورځ دې ته داخلولې شئ ﴿وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ﴾[او په کومه ورځ چه قیامت قایم شی] حکم به وشی ﴿اَدْخِلُوْٓا اٰلَ فِرْعَوْنَ اَشَدَّ الْعَذَابِ﴾[چه فرعون والو لره] سره دفرعون نه [په ډیر سخت عذاب کښې داخل کړئ].

[1] الدر المنثور تحت هذه الآية: ج ۹، ص ۷

Scanned with Ca

## معارف او مسائل

**د آل فرعون مؤمن** ﴿وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ﴾ پورته ځائې په ځائې د توحید اورسالت منکرانو ته وعید او زورنه ورکړې شوې ده او په دې ضمن کښې دکافرانو د مخالفت او دښمنئ ذکر دې چې رسول اکرم ﷺ به طبعي طور په دې ډیر زیات خفه وو د رسول اکرم ﷺ د تسلئ دپاره تقریبا دوؤ رکوع ګانو کښې د موسی ﷺ او فرعون واقعه ذکر شوې ده دې قصه کښې د فرعون او یو داسې سړی ذکر دې چې هغه په آل فرعون کښې وؤ خو ددې باوجود هغه د موسی ﷺ معجزاتو څخه ډیر متاثر شوې وو او په موسی ﷺ باندې ئې ایمان راوړې وو. خو تر دې وخته پورې ئې خپل ایمان پټ ساتلې وو. ددې مکالمې په وخت دهغه د ایمان هم حتمی اعلان اوکړې شو.

د تفسیر په امامانو کښې مقاتل رحمه الله، سدی رحمه الله او حسن رحمه الله فرمائی چې دا د فرعون د ترهٔ ځوئې وو. دا هغه سړې وو چې هرکله د فرعون په دربارکښې د موسی ﷺ څخه د قصاص اخستلو مشوره کیدله دې په منډه منډه دښار څخه راغلو او موسی ﷺ ته ئې دا خبر ورکړو او دا مشوره ئې ورته ورکړه چې مصر پریږده. او دا واقعه الله تعالی په سورة قصص کښې بیان فرمائیلې ده. ﴿وَجَآءَ رَجُلٌ مِّنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ يَسْعٰى﴾.

ځینې وائی چې ددې آل فرعون مؤمن نوم حبیب وو. خو صحیح دادی چې حبیب دهغه سړی نوم دې چې د هغه قصه په سورة یاسین کښې راغلې ده. ددهٔ نوم شمعان وو. سهیلی فرمائی دا بالکل صحیح نوم دې. او نور حضرات فرمائی چې ددهٔ نوم حزقیل وو ثعلبی رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنه څخه هم دا قول نقل کړې دې[1].

یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چې صدیقین څو کسان دی. یو حبیب نجار چې دهغه ذکر په سورة یاسین کښې راغلې دې. دویم د آل فرعون مؤمن، دریم ابوبکر او هغه په ټولو کښې افضل دې، [قرطبی][2]

﴿یَکْتُمُ اِیْمَانَهٗ﴾ ددې څخه معلوم شو که یو سړې دخلقو مخکښې د خپل ایمان اقرار اونه کړی خو د زړهٔ پوخه اعتقاد اوساتی نو هغه مؤمن دې. خو د ښکاره نصوصو څخه دا ثابت دی چې د مقبول ایمان دپاره صرف د زړهٔ یقین کافی نه دې بلکه په ژبه ددې اقرار کول شرط دی. تر کومې پورې چې په ژبه اقرار اونه کړی نو مؤمن به نه وی. البته دخلقو په مخکښې په ژبه اقرار کول ضروری نه دی. ددې ضرورت صرف په دې وجه دې چې تر کومې پورې خلقو ته ددهٔ د ایمان علم نه وی. هغوئ به دهٔ سره د مسلمانانو په شان راشه درشه کوی [قرطبی][3]

﴿مُؤْمِنٌ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ﴾ دې مکالمه کښې آل فرعون او فرعون لره مختلفو عنوانانو سره حق او ایمان طرفته راوبلل او کوم خلق چې د موسی ﷺ قتل پسې لګیدلی وو. هغوئ ئې ددې څخه منع کړل

---

[1] تفسير القرطبي: ج ١٥، ص ٣٠٦

[2] تفسير القرطبي: ج ١٥، ص ٣٠٦، وتفسير الدر المنثور تحت هذه الآية: ج ٨، ص ٢٩٦، وكنز العمال رقم الحديث: ٣٢٨٩٧ (بأختلاف في الاسماء)

[3] تفسير القرطبي: ج ١٥، ص ٣٠٨

Scanned with Ca

﴿وَيٰقَوۡمِ اِنِّيۡۤ اَخَافُ عَلَيۡكُمۡ يَوۡمَ التَّنَادِ﴾ ، ﴿التَّنَادِ﴾ بکسر دال مخفف دې د ﴿تَنَادِي﴾ چې دهغې معنی ده خپلو کښې يو بل ته آوازونه کول . د قيامت ورځې ته يوم التناد په دې وجه اووئيلې شو چې په دې ورځ به بې شميره آوازونه وی . او ددې څه ذکر په خلاصه تفسير کښې تير شو بدې . ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دې چې رسول اکرم ﷺ اوفرمائيل : کله چې د قيامت ورځ شی نو د الله ﷻ يو منادی به آواز کوی چې د الله ﷻ مخالف خلق اودريږئ . ددې څخه مراد هغه خلق دی چې دتقدير څخه به ئې انکار کولو . او بيا به اصحاب جنت به دوزخ والو ته او دوزخ والا خلق به اصحاب جنت ته او اصحاب اعراف دواړو ته آواز ورکوی او خپلې خپلې خبرې به کوی . او په هغه وخت کښې به د خوش نصيبه او بد نصيبه نوم ددهٔ د پلار په نوم سره واخلی او د نتيجې اعلان به کوی چې فلانې ځوئې د فلانی کامياب او سعيد شو اودې څخه روستو به د شقاوت څه احتمال پاتې نشی او فلانې ځوئې د فلانی شقی اوبخت شو ، اوس دهغه د نيک بختئ هيڅ احتمال نشته دې . [رواه ابن ابی حاتم فی السنة ، مظهری] (۱)

مسند بزار او بيهقی کښې د انس رضی الله عنه د روايت څخه معلوميږی چې د سعادت او شقاوت دا اعلان به د عملونو د وزن څخه روستو کيږی (۲) .

ابو حازم اعرج رضی الله عنه څخه روايت دې چې هغه به خپل نفس مخاطب کولو او فرمائيل به ئې چې : ائې اعرجه د قيامت په ورځ به آواز کيږی چې چا فلانئ گناه کړې ده هغه اودريږئی نو ته به هغوئ سره اودريږې . بيا به آواز اوشی چې چا فلانئ گناه کړې وی هغه پورته شئ نو ته به هغوئ سره پورته شې . بيا به آواز اوشی چې چا فلانئ گناه کړې وی نو هغه پورته شئ نو ته به هغوئ سره پورته کيږې . او ماته معلومه ده چې ته به دهرې گناه اعلان سره پورته کيږې [ځکه چې تا هر قسمه گناه کړې ده] [اخرجه ابو نعيم ، مظهری] (۳) .

﴿يَوۡمَ تُوَلُّوۡنَ مُدۡبِرِيۡنَ﴾ يعنی کله چې تاسو په شا واپس شئ . خلاصه تفسير کښې په حواله د امام بغوی رحمه الله ددې معنی بيان کړې شوې ده چې دا دهغه حالت بيان دې چې مجرمان به د حساب کتاب ځائې څخه جهنم ته بوتلې شی . ددې حاصل دادې چې مخکښې هغه نداءت او اعلانات چې دهغو ذکر د يوم التناد تفسير کښې شوې دې دا هر څه به کيږی . دې څخه پس به دا خلق د حساب د ځائې څخه جهنم طرفته بوتلې شی .

او د ځينې حضراتو مفسرينو په نزد دا حال به په هغه وخت کښې وی چې کله اوله شپيلئ اووهلې شی . هر کله چې ړومبئ شپيلئ اووهلې شی او زمکه اوشليږی نو دا خلق به يو خوا بل خوا منډې کړی . خو هر طرفته به فرښتې ولاړې وی ، د تيښتې لاره به نه وی . ددې حضراتو په نزد هم ديوم التناد څخه مراد د نفخهٔ اولی وخت دې . او په دې وخت کښې به هر طرفته چغې وی . د آيت مبارك د دويم قراءت څخه ددې تائيد کيږی . او دا د ابن عباس رضی الله عنه او ضحاك رحمه الله څخه منقول دی چې هغوئ به يوم التناد د دال په شد سره وئيلو . او دا د ندّ مصدر څخه مشتق دې او ددې معنی ده تښتيدونکې . او د يوم التناد معنی هم ددې تفسير په لحاظ

۱) تفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۲۵۶

۲) كنز العمال، رقم الحديث: ۳۹۰۲۶

۳) التفسير المظهری: ج ۸، ص ۲۵۵، ۲۵۶

Scanned with Ca

سره د تيښتې ورځ ده. او ﴿تُوَلُّونَ مُدْبِرِينَ﴾ ددې تشريح ده.
تفسير مظهري کښې يو طويل حديث پاك د ابن جرير او مسند ابو يعلى او بيهقي او مسند عبد بن حميد وغيره په حواله د ابوهريره رضي الله عنه څخه نقل دې چې په هغې کښې د قيامت په ورځ د دريو وارو صورو[شپيليو] د نفخ ذکر دې. اولنې نفخه فزع، دويم صعق او دريم نشر دې. نفخه فزع سره به ټول مخلوق کښې ويره او پريشاني پيدا شي. او دا نفخه به نوره هم اوږده شي او ددې څخه به نفخ صعق جوړ شي. او دې سره به ټول بې هوشه شي. بيا به مړۀ شي. عام طور سره ددې دواړو نفخو مجموعې ته نفخه اولى وائى. او ددې وجه په ظاهر کښې داده چې دا د يو وخت دوه حالتونه دى. اول فزع او دويم صعق دې. دې حديث پاك کښې هم د نفخه فزع په وخت د خلقو د تيښتې ذکر راغلې دې او فرمائى چې ﴿وهوالذى يقول الله يَوْمَ التَّنَادِ﴾([1]) او ددې څخه معلوم شو چې په آيت مبارك د يوم التناد څخه مراد د اول نفخه په وخت کښې دخلقو پريشانه کيدل او منډې وهل دى. والله سبحانه وتعالى اعلم.
﴿كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ﴾ يعنى لکه څنګه چې د فرعون او هامان زړونو د موسى عليه السلام او دآل فرعون د مؤمن څخه هيڅ نصيحت وانخستو. نو الله تعالى هر هغه زړۀ باندې مهر لګوى کوم چې متکبر او جبار وى [متکبر يعنى کبر کوؤنکې، او جبار يعنى ظالم قاتل]. او ددې اثر دا وى چې په دۀ کښې د ايمان نور نه وى. او په دې کښې د ښه او خراب تميز نه وى. په دې آيت مبارك کښې متکبر او جبار د زړه صفت وئيلې شوې دې. اوددې وجه داده چې د ټولو عملونو او اخلاقو سرچشمه زړۀ وى. هر نيك او بد عمل د زړۀ څخه پيدا کيږى. يو حديث پاك کښې فرمائيلې شوى دى چې د انسان په زړۀ کښې د غوښې يو ټکړه داسې ده که هغه صحيح شى نو ټول بدن به صحيح شى او که دا خرابه شى نو ټول بدن به خراب شى. [قرطبى]([2]).
﴿وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَا هَامَانُ ابْنِ لِي صَرْحًا﴾ دصرح معنى د اوچت تعمير ده. ددې ظاهر داده چې فرعون خپل وزير هامان ته حکم ورکړو چې د اسې يو اوچت مکان جوړ کړه چې آسمان ته نزدې وى. او چې څه په دې اوخيژم او الله تعالى لره اووينم. دا داسې احمقانه خيال دې چې د يو ادنى عقل والا سړې هم نشى کولې. دمصر د سلطنت مالك د فرعون د ډير حماقت او د بې قوفئ دليل دې او که چرې وزير ددې حکم تعميل کړې وى نو ددې مطلب به دا وى چې ددۀ څخه وزير هم زيات کم عقل وو. د يو ملك د بادشاه څخه داسې د احمقانه کار کار اميد نشى کيدلې. په دې وجه ځينې مفسرينو وئيلې دى چې دا هغه ته ښۀ معلوم وو چې که هر څومره اوچت تعمير اوکړى خو بيا هم آسمان ته نه شى رسيدلې. خو دا حرکت ئې خپلو خلقو لره د بې وقوفه جوړولو دپاره کړې وو. او د يو صحيح او قوى روايت څخه دا ثابت نه دى چې داسې عاليشان او اوچت مکان جوړ کړې شو کنه؟ قرطبى رحمه الله څخه نقل کړې شوى دى چې دا اوچت مکان جوړ کړې شوې وو. او چې کله ډير اوچت شو نو راپريوتو([3]).

[1] ) التفسير المظهرى،سورة الأسراء، ج ۵، ص ۴۷، والبعث والنشور للبيهقى، رقم الحديث: ۵۹۳
[2] ) تفسير القرطبى تحت هذه الآية: ج ۱۵، ص ۳۱۴، وصحيح البخارى، كتاب الإيمان، باب فضل من استبرا لدينه، ج ۱، ص ۱۳
[3] ) تفسير القرطبى، سورة القصص، بألفاظ مختلفة: ج ۱۳، ص ۲۸۹

د دارالعلوم دیوبند د اول مدرس مولانا محمد یعقوب صاحب ﷫ خاص شاګرد ځما پلار مولانا محمد یاسین صاحب ﷫ خپل موصوف څخه نقل کوی او فرمائی چې ددې اوچت عمارت د راپریوتو دپاره د ضروری نه دی چې ګنې پدې باندې به آسمانی عذاب راغلې وی بلکه د تعمیر اوچتوالی ددې په بنیادونو باندې انحصار لری . که هر څومره ژور بنیاد ئې ایخودې وی مګر دا به هم تر یو حده پورې ژور وی ، هر کله چې په دې باندې تعمیر ډیر اوچت کړې شی نو دا لازمه خبره ده چې ددې په بنیادونو کښې به ددې دبرداشت کولو طاقت نه وی او دا به راپریوزی . ددې څخه د فرعون او هامان بې قوفی ثابت شوه . والله اعلم

﴿فَسَتَذْكُرُوْنَ مَآ اَقُوْلُ لَكُمْ ۗ وَاُفَوِّضُ اَمْرِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ﴾ دا د آل فرعون د مؤمن آخری کلام دې . او دا دهٔ خپل قوم ته د حق رابللو په سلسله کښې کړې وو . هغې کښې ددې خبرې اظهار وو چې نن خو تاسو زما خبره نه منئ خو کله چې په تاسو عذاب راشی نو تاسو ته به زما خبره دریاده شی . خو دهغه وخت یادول به بیکاره وی . هرکله چې د طویل مکالمه اودنصیحت او دعوت په ذریعه دمؤمن من آل فرعون ایمان خلقوته ښکاره شو نو دهٔ سره غم شو چې اوس به ددې خلقو څخه نه خلاصیږم . نو په دې وجه ئې اوفرمائیل چې ځه خپله معامله الله ﷻ ته حواله کوؤم . هغه دخپلو بندګانو محافظ او نګهبان دې . امام تفسیر مقاتل ﷫ فرمائی چې د هغه دګمان مطابق د فرعون په قوم هغه پسې شو . دې غرونو طرفته لاړو او ددوئ څخه بچ شو ددې ذکر راتلونکی آیت مبارك کښې راغلې دې .

﴿فَوَقٰىهُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِ مَا مَكَرُوْا وَحَاقَ بِاٰلِ فِرْعَوْنَ سُوْٓءُ الْعَذَابِ﴾ یعنی الله ﷻ هغه د فرعون د خرابو تدبیرونو څخه بچ کړو . او د فرعون په قوم باندې پخپله یو عذاب راغلو . الله ﷻ د آل فرعون دا مؤمن دنیا کښې اول دفرعون د تدبیرونو څخه بچ کړو . او ددې تفصیل قرآن عظیم الشان کښې مذکور نه دې . خو د قرآن عظیم الشان دا الفاظو څخه داسې معلومیږی چې دهغه قتل کولو دپاره او هغه ته د تکلیف رسولو دپاره د فرعون قوم ډیر تدبیرونه کړی وو . او بیا هر کله چې د فرعون قوم غرق شونو موسیٰ ﷵ سره دې بنده ته نجات ملاؤشو . اودآخرت نجات خو یقینی دې .

﴿اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَّعَشِيًّا ۚ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ ۣ اَدْخِلُوْٓا اٰلَ فِرْعَوْنَ اَشَدَّ الْعَذَابِ﴾ عبد الله بن مسعود ﷛ ددې آیت مبارك په تفسیر کښې فرمائیلی دی چې د آل فرعون روحونه هره ورځ سحر مابنام د تورو مارغانو په شکل کښې دوه ځله د جهنم مخې ته راوړې کیږی . او دوئ ته جهنم خودلو څخه روستو وئیلې شی چې ستاسو ځائې دا دې . [اخرجه عبد الرزاق وابن ابی حاتم ، مظهری][1].

او صحیحینو کښې عبد الله بن عمر ﷛ څخه روایت دې چې رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چې کله تاسو کښې څوك مړ شی نو عالم برزخ کښې دهٔ ته سحر مابنام هغه ځائې خودلې شی کوم ځائې ته چې به دې د حساب کتاب څخه روستو بوتلې شی . او ددې مقام خودلو څخه روستو ورته دا وئیلې کیږی چې ته بهٔ آخر هم دې ځائې ته رازې . که چرې دا کس جنتی وی نو دهٔ ته به

[1] التفسیر المظهری تحت هذه الآیة: ج ۸، ص ۳۶۱، وتفسیر ابن ابی حاتم، رقم الحدیث: ۱۸٤۳۵

Scanned with Ca

جنت کښې خپل مقام خودلې کيږي. او که چرې دې جهنمي وي نو دۀ ته بۀ په جهنم کښې خپل مقام خودلې کيږي.[1]

**دقبر عذاب**: دا آيت مبارك د عذاب قبر دليل دې. او متواتر احاديث او د امت اجماع په دې باندې شاهد ده، او دا احقر په يو مستقل رساله کښې راجمع کړې دی، د هغې رسالې نوم السير بعذاب القبردې. او دې سره متعلقه آياتونه هم ذکر کړې شوې دی. دا رساله داحکام القرآن د حزب سادس يوجز دې او په عربئ ژبه کښې شائع کړې شوې ده.

| وَاِذْ | يَتَحَآجُّوْنَ | فِي النَّارِ | فَيَقُوْلُ |
|---|---|---|---|
| او کله چې به | جګړې کوی دا خلق | په وور کښې (۲) | پس اوبه وائي |
| اوڅه وخت چې دوئ په دوزخ کښې ديوبل سره جګړې کوی | | | نو کمزوري |

| الضُّعَفٰٓؤُا | لِلَّذِيْنَ | اسْتَكْبَرُوْٓا | اِنَّا كُنَّا | لَكُمْ | تَبَعًا |
|---|---|---|---|---|---|
| کمزوري خلق | هغه کسانو ته | چې ځان ئې غټ ګڼرلي وؤ | بيشکه وؤ مونږه | تاسو لره | تابع |
| خلق به دمرتبو خاوندانو ته اووائي | | چې مونږ خو ستاسو تابعداري کوله | | | ............نو آيا |

[1] صحيح البخاری، کتاب الجنائز، باب الميت يعرض عليه مقعده: ج ۱، ص ۱۸٤، وصحيح مسلم، کتاب الجنة - الخ، باب عرض مقعد الميت من الجنة او النار عليه واثبات العذاب: ج ۲، ص ۳۸۵

[2] **دوزخ کښې دَ دوزخيانو جنګ جګړې**: - دوزخيان به دَ دوزخ نور عذابونه برداشت کولوسره دَ يو بل عذاب هم ښکاروی دَ کوم بيان چه دلته کولې شی. داعذاب به فرعونيانوته هم وی او نورودوزخيانوته هم يعنی دَ خپل مينځ بحثونه مباحثې اوجنګ جګړې. واړه به لويوته يعنی تابعداری کونکی اوحکم احکام منونکی دَ چادَ لونې اوبزرګئ چه قائل وو اودَ چا خبرې به ئی منلې اودَ چا په وينا چه ئې عمل کولو هغوی ته به وائی چه په دنيا کښې خو مونږ ستاسو تابعدار وو څه چه تاسو وئيل مونږ په ځائ راوړل دَ کفر او ګمراهئ خبرې چه کومې تاسو مونږ ته کولې ستاسو دَ بزرګئ علم اوفضل سردارئ او حکومت په وجه مونږه تولې منلی اوس دلته خو تاسو زمونږ هم په څه کار راشئ. زمونږ دَ عذابونو څه حصه په خپل ځان واچوئ. دا رئيسان مشران بزرګان او سرداران به جواب ورکوی چه مونږ خو هم تاسو سره سوزيږو اولولپه کيږو. مونږ له چه کوم عذاب کيږی ولې دا څه کم دې چه مونږ ستاسو عذاب په ځان واچوو؟ دَ الله ﷻ حکم جاری شوې دې رب ﷻ فيصلې کړی دی هر يوته ئی دَ هغه دَ بدعمل مطابق سزا ورکړې ده په دې کښې کمې نامکن دې. لکه چه بل آيت کښې دی دَ هر يودَ پاره ښه لوئ اوزيات عذاب دی که تاسو پوهيږئی. کله چه دوزخيان پوهه شی چه الله ﷻ دَ هغوی دعا نه قبلوی بلکه اوری هم نه اوهغوی له رټنه ورکوی اوفرمائيلې دی چه هم دلته پراته اوسئ اوماسره خبرې مه کوئ. نو هغوی به دَ دوزخ داروغه ګانو ته وائی چه دَ هغه ځائ څوکيداران دی لکه څنګه چه په دنيا کښې جيل خانو کښې ساتندونکی داروغه اوسپاهيان وی. هغوی ته به وائی لږ شان تاسو الله ﷻ ته دعا اوکړئ چه يوه ورځ خو زمونږ عذابونه لږ شان سپك کړی. هغوی به دوی ته وائی چه ولې په دنيا کښې رسولانو تاسو ته دَ الله ﷻ احکام نه وو رسولی؟ دوی به وائی چه اورسولې وو نوفرښتې به بيا وائی چه ښه ده پخپله الله ﷻ ته فرياد واوروئ. مونږ خودَ هغه په دربارکښې ستاسودَ پاره هيڅ هم نه شو عرض کولې. بلکه اوس خو مونږ ستاسو دَ چغو صورو هم خيال نه شوساتلې اومونږ پخپله تاسو نه ويزاره اوستاسو دښمنان يو. واورئ مونږ تاسو ته وايو که تاسو پخپله دعاکوئ که نور څوك تاسو له دعاکوی نامکن دی چه ستاسو په عذابونوکښې کمې وی. دَ کافرانودعا نامنظوره او مردود ده.

| فَهَلْ اَنْتُمْ | مُّغْنُوْنَ | عَنَّا | نَصِيْبًا | مِّنَ النَّارِ ۝ | قَالَ الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس آيا يئ تاسو | دفع کونکي | زمونږ نه | څه حصه | دوور نه | اوبه وائي هغه کسان |

اوس مونږ نه څه لږ ډيرعذاب کمولې شئ | ..........................غټان خلق به اووائي چې اوس

| اسْتَكْبَرُوْٓا | اِنَّا كُلٌّ | فِيْهَآ ۙ | اِنَّ اللّٰهَ | قَدْ حَكَمَ |
|---|---|---|---|---|
| چې خانونه غټ ګنړل هغوئ | بيشکه مونږه ټول | په دې کښې يو | بيشکه الله | فيصله کړې ده |

خو په کښې ټول دسيلمې پراته يو | ............................ الله ﷻ دخپلو بندګانو په مينځ کښې

| بَيْنَ الْعِبَادِ ۝ | وَقَالَ الَّذِيْنَ | فِي النَّارِ | لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ |
|---|---|---|---|
| په منځ دبندګانو کښې | اواوبه وائي هغه کسان | چې په وور کښې دي | نوکرانو ددوزخ ته |

قطعي فيصله کړې ده|اوخوک چې په دوزخ کښې پراته وي|هغوئ به ددوزخ څوکيداران فرښتوته اووائي

| ادْعُوْا | رَبَّكُمْ | يُخَفِّفْ | عَنَّا | يَوْمًا |
|---|---|---|---|---|
| چې دعا اوغواړئ | درب خپل نه | چې سپک [يعنی کم] کړي | زمونږ نه | يوه ورځ |

چې تاسو خپل رب نه سوال اوکړئ | چې زمونږ نه يوورځ نيمه خو څه عذاب کم کړي

| مِّنَ الْعَذَابِ ۝ | قَالُوْٓا | اَوَلَمْ تَكُ | تَاْتِيْكُمْ | رُسُلُكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| دعذاب نه | اوبه وائي ورته هغوئ | آيا نه وئ تاسو | چې راتلل به تاسو ته | رسولان ستاسو |

فرښتې به ورته اووائی | چې آيا تاسو ته پيغمبرانو ښکاره نښې نه وې راوړې |

| بِالْبَيِّنٰتِ ؕ | قَالُوْا | بَلٰى ؕ | قَالُوْا | فَادْعُوْا ۚ |
|---|---|---|---|---|
| دواضحه حکمونوسره | اوبه وايي هغوئ | هوراتلل به | اوبه وائي نوکران ددوزخ | نوبياخوپه خپله دعا اوغواړئ |

.........هغوئ به اقرار اوکړی چې هو راوړې ئې وې | [فرښتې]به اووائي چې بياهم تاسودعااوکړئ

| وَمَا دُعٰٓؤُا الْكٰفِرِيْنَ | اِلَّا | فِيْ ضَلٰلٍ ۝ |
|---|---|---|
| اونه ده دعا د کافرانو | مګر | په ګمراهۍ کښې ده[بې فائدې ده] |

[اوياد ساتئ چې] دکافرانو دعا هميشه بې اثره پاتې کيږي |

## آسان ترجمه قرآن

اودهغه وخت (خيال اوکړئ) چه کله دا خلق په دوزخ کښې د يو بل سره جګړې کوی، نو چه کوم خلق (په دنيا کښې) کمزورې وو، هغوی به هغې کسانو ته اووائی، چه مشران جوړ شوې وو چه: مونږ خو تاسو پسې تلونکې خلق وو، نو آيا تاسو به د اور څه حصه زمونږ په بدله کښې خپله واخلئ. هغه خلق چه مشران جوړ شوې وو، اوبه وائی چه: مونږ ټول هم په دې دوزخ کښې يو. الله تعالیٰ د ټولو بندګانو په مينځ کښې فيصله کړې ده. او دا ټول کسان چه په اور کښې دی، اوبه وائی د دوزخ څوکيدارانو ته چه: خپل پروردګار ته دعا اوکړئ چه يوه ورځ د عذاب په مونږ باندې آسانه کړی. هغوی به اووائی چه: آيا تاسو ته ستاسو پيغمبران په ښکاره نښو سره نه وو راغلې؟ دوزخيان به جواب ورکړی، بے شکه (راغلي

خوو) هغوی به ورته اووائی: بیا خو هم تاسو دعا اوکړئ، او نه دې انجام د دعا د کافرانو سوا د بربادئ نه.

## خلاصه تفسیر

[او] هغه وخت هم دیادولو قابل دې ﴿وَاِذْ يَتَحَاجُّوْنَ فِي النَّارِ﴾[هر کله چه کفار به په دوزخ کښې دیو بل سره جګړې کوی ﴿فَيَقُوْلُ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا﴾ نو د ادنی درجې خلق] یعنی تابعین [به د لوئ درجې خلقو ته] یعنی متبوعینوته د کومو چه هغوی په دنیاکښې تابعداری کوله [او وائی ﴿اِنَّا﴾ چه مونږ] په دنیا کښې ﴿كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا﴾[ستاسو تابع وو ﴿فَهَلْ اَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ عَنَّا نَصِيْبًا مِّنَ النَّارِ﴾ ایاتاسو زمونږ نه داور څه حصه لرې کولې شئ] یعنی هرکله چه په دنیا کښې تاسو مونږ خپل تابعداران او پیرو جوړ کړی وو نو نن تاسو له پکاردی چه زمونږ مدد وکړئ ﴿قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُلٌّ فِيْهَآ﴾[دغه لوئ خلق به ورته وائی چه مونږ ټول په دوزخ کښې یو] یعنی مونږ خپل عذاب نه شو کمولې نو ستاسو به څه کم کړو ﴿اِنَّ اللّٰهَ﴾[الله تعالی ﴿قَدْ حَكَمَ بَيْنَ الْعِبَادِ﴾ د] خپلو [بندګانو په مینځ کښې [قطعی [فیصله وکړه] اوس ددې دخلاف کولو د هیڅا مجال نشته [او] ددې نه پس ﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ فِي النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ﴾[څومره خلق چه په دوزخ کښې وی] یعنی لوئ او واړه تابع او متبوع ټول به په جمع [دجهنم مؤکلو فرښتوته وائی ] په طور د درخواست ﴿ادْعُوْا رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ﴾[چه تاسو خپل رب ته دعا وکړئ چه یوه ورځ خو زمونږ نه عذاب سپك کړی] یعنی د عذاب بالکل دلرې کیدو یا د همیشه دپاره د کمیدو امید نشته لیکن کم نه کم چه دیوې ورځې چټې خوملاؤ شی ﴿قَالُوْٓا﴾[فرښتې به وائی چه] ښه دا ووایئ ﴿اَوَلَمْ تَكُ تَاْتِيْكُمْ رُسُلُكُمْ بِالْبَيِّنٰتِ﴾[ایا تاسو ته پیغمبرانو معجزې نه وې راوړې] او دوزخ نه بچ کیدو طریقې ئې نه وې ښودلې ﴿قَالُوْا بَلٰى﴾[دوزخیان به وائی چه هو راغلی خو وو] مګر مونږه ئې خبره ونه منله [بلی قدجآء نا نذیر فکذبنا][1] ﴿قَالُوْا فَادْعُوْا﴾[فرښتې به وائی چه بیا خو] مونږ ستاسو دپاره دعانه شو کولې ځکه چه دکافرانو دپاره ددعا کولو مونږ ته اجازت نشته [تاسو] که زړه مو غواړی نو په خپله [دعا وکړئ او] ستاسو د دعا به هم هیڅ نتیجه نه وی ځکه چه ﴿وَمَا دُعٰٓؤُا الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ﴾ [دکافرانو دعا] په اخرت کښې [محض بې اثره ده] ځکه چه په اخرت کښې هیڅ دعابغیر دایمان نه نه شی قبلیدې او دایمان موقع په دنیا کښې وه هغه تاسونه ختمه شوه او داچه اوونیل چه په اخرت کښې ددې فائده داده چه په دنیا کښې خو د کافرانو دعا هم قبلیدې شی لکه چه دټولو نه دلوئ کافر ابلیس د ټولو نه لویه دعا تر قیامته پورې د ژوندی پاتې کیدو قبوله شوې ده.

اِنَّا لَنَنْصُرُ

]بیشکه خامخا مونږه امداد کوؤ

| ......................مونږ دخپلو

| رُسُلَنَا | وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَيَوْمَ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| درسولانو خپلو | او دهغه کسانو | چې ایمان ئې راوړې دې | په ژوند ددنیا کښې | او په هغه ورځ |

پیغمبرانو او دایماندارو کسانو مدد کوؤ | ............ په دنیا کښې هم او په هغه ورځ

[1] ترجمہ: واقعی مونږ طرف ته یو یرونکی راغلی وو نو مونږ هغه دروغژن وګڼړلو۔

Scanned with Ca

يَقُوْمُ الْاَشْهَادُ ۝ يَوْمَ لَا يَنْفَعُ الظّٰلِمِيْنَ مَعْذِرَتُهُمْ

چې ودريږي به ګواهان | هغه ورځ | چې فائيده به نه ورکوی | ظالمانوته | عذرونه دهغوئ

چې خلق به ګواهان راپاڅي | په کومه ورځ چې ظالمانوته به عذر معذرت هيڅ فائده نه ورکوی

وَلَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ ۝ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى

او دهغوئ دپاره لعنت دی | او دهغوئ دپاره | ډير بدکور دي | او ورکړی وو مونږ | موسی ته

اوپه لعنت به ګرفتار وی | او هغوئ دپاره به [ددوزخ] ډيرخراب کور وی | اوبيشکه مونږ موسی ﷺ

الْهُدٰى وَاَوْرَثْنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْكِتٰبَ ۝ هُدًى

هدايت | او وارثان کړل مونږه | بنی اسرائيل دکتاب | چې هغه هدايت وو |

ته [کتاب د] هدايت ورکړو | او بنی اسرائيل مو د دې کتاب وارثان جوړ کړل | چې عقل مندو

وَّذِكْرٰى لِاُولِي الْاَلْبَابِ ۝ فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ

او نصيحت وو | دپاره دخاوندانو دعقلونو | پس صبر کوه | بيشکه وعده دالله | حقه ده |

دپاره هدايت او نصيحت وو | نوته صبر کوه | بيشکه دالله ﷻ وعده رښتينې ده | او دخپلې

وَّاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ

او بخښنه اوغواړه | دپاره دګناهونو خپلو | او تسبيح وايه | دثنا درب خپل سره | په ماښام

کوتاهئ [دالله ﷻ] نه معافي غواړه | او صبا ماښام دخپل رب پاکی بيانوه | اودهغه

وَالْاِبْكَارِ ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ

او په سحر کښی | هغه کسان | چې جګړې کوی | په آيتونو دالله کښې | بغير ددليل نه |

تعريفونه کوه | څوک چې بغير د څه سند نه دالله ﷻ دآيتونو په حق کښې جګړې کوی | کوم چې

اَتٰىهُمْ اِنْ فِيْ صُدُوْرِهِمْ اِلَّا كِبْرٌ مَّا هُمْ

چې راغلې وی هغوئ ته | نه دې په سينو دهغوئ کښی | مګر لوئي ده | چې نه دی هغوئ

دوئ ته [د الله ﷻ دطرفنه] رارسيدلی وی | د هغوئ په زړونو کښې د تکبر نه سوا بل څه نشته

بِبَالِغِيْهِ ۚ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ

رسيدونکي هغې ته | پس پناه غواړه | په الله پورې | بيشکه هغه | هم هغه اوريدونکي دې |

...... | اخو هغوئ دغې لوئي ته [په رښتيا] هيچرې رسيدلي نه شی | نوته دالله پناه غواړه | هغه هرڅه آوری

الْبَصِيْرُ ۝ لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ

ليدونکې دې | خامخا پيدا کول دآسمانونو | او دزمکې | ډير لوئ کار دې | دپيدا کولو دخلقو نه

هرڅه وينې ګوری | داښکاره خبره ده چې دآسمانونو اودزمکې پيدا کول د بنيادمو پيدا کولو نه زيات غټ کار

وَلٰكِنَّ　اَكْثَرَ النَّاسِ　لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۵۷﴾　وَمَا يَسْتَوِي　الْاَعْمٰى

ولیکن | اکثر دخلقو نه | نه پوهیږی | اونه برابریږی | ړوند |

دي | ..........خو زیات خلق پدې نه پوهیږی | ..........او ړوند او بینا

وَالْبَصِيْرُ ۙ　وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا　وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ　وَلَا الْمُسِيْٓءُ ۭ

او بینا | او هغه کسان چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیک | اونه بدکار [برابریږی]

یو برابر کیدې نشی | اونه صاحب ایمان نیکو کار او بدکار [برابر کیدیشی]

قَلِيْلًا　مَّا　تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۵۸﴾　اِنَّ السَّاعَةَ　لَاٰتِيَةٌ

ډیر لږ دي | هغه | چې کوم نصیحت قبلوئ تاسو | بیشکه وقت دقیامت | خامخا راتلونکې دې |

خوتاسو خلق ډیر کم نصیحت قبلوئی | .......... قیامت خو خامخا راتلونکې دې

لَّا رَيْبَ　فِيْهَا　وَلٰكِنَّ　اَكْثَرَ النَّاسِ　لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۹﴾

نشته شك | په هغې کښې | ولیکن | زیات　خلق | نه راوړی ایمان |

په دې کښې هیڅ شک نشته | خو زیات خلق داخبره نه منی |

وَقَالَ رَبُّكُمُ　ادْعُوْنِيْٓ　اَسْتَجِبْ لَكُمْ ۭ　اِنَّ الَّذِيْنَ

اووائی رب ستاسو | اوغواړئ دعا زمانه | زه به قبلوم دعا ستاسو | بیشکه هغه کسان |

او ستاسو رب فرمائیلی دی | چې زمانه دعاغواړئ | زه به ستاسو دعاقبلوم | بیشکه کوم خلق چې

يَسْتَكْبِرُوْنَ　عَنْ عِبَادَتِيْ　سَيَدْخُلُوْنَ　جَهَنَّمَ　دٰخِرِيْنَ ﴿۶۰﴾ۧ

چې په غرور کښې مخ اړوی | دعبادت زمانه | ننوځی به هغوئ | دوزخ ته | ذلیله |

زما دعبادت [دعا] نه تکبر کوی | هغوئ به ډیر ذلت سره په دوزخ کښې داخلیږی

## آسان ترجمه قرآن

یقین اوکړئ، چه مونږ دخپلو پیغمبرانو او د ایمان والو په ژوند د دنیا کښې هم مدد کوؤ، او په هغه ورځ بانـدې هم کوؤ، چه کله ګواهی ورکونکې به اودریږی په هغه ورځ به ظالمانانو ته دهغوی معذرت هیڅ فائده نه ورکوی، او په هغوی بانـدې به لعنت وی، او دهغوی دپاره به د اوسیدلو دپاره ناکاره ځائې وی. او مونږ موسیٰ علیه السلام ته هدایت ورکړې وو، او بنی اسرائیلو لره مو د هغې کتاب وارثان جوړ کړې وو چه عقل والو دپاره هدایت او نصیحت وو. لهٰذا (اے پیغمبره) د صبر نه کار واخله، یقین اوساته، چه د الله تعالیٰ وعده رشتونې ده، او په خپل قصور بانـدې استغفار کوه او سحر ماښام د خپل پروردګار حمد سره سره تسبیح کوه یقین اوکره، چه کوم خلق د الله تعالیٰ په آیتونو کښې جګړې کوی، حالانکه هغوی سره (د خپلې دعوې په دلیل کښې) هیڅ سند نشته او هیڅ نشته د هغوی په سینو کښې سوا د غرور نه، چه نه دی رسیدونکې دوی هغې ته. لهٰذا ته په الله تعالیٰ سره پناه اوغواړه یقیناً هم هغه دې، چه هره خبره اوریدونکې دې، او هر څه لیدونکې دې. یقینی خبره داده، چه د آسمانونو او زمکې پیدا کول د انسانانو د پیدا کولو نه لوئې کار دې. لیکن اکثر خلق (دومره خبره بانـدې هم) نه پوهیږی. او ړوند او لیدونکې دواړه برابر کیدې نشی. او نه هغه خلق چه ایمان ئې راوړې دې، او نیک عمل ئې کړې دې، هغه او هغه

Scanned with

خلق چه بدکار دی، برابر دی (لیکن) تاسو خلق ډیر کم نصیحت اخلئ. یقین او ساتئ، چه د قیامت ساعت ضرور راتلونکې دې، په هغې کښې هیڅ شک نشته، لیکن اکثر خلق ایمان نه راوړی. او ستاسو پروردګار وئیلي دی چه ما راوبلئ، زه به ستاسو دعاګانې قبولې کړم، بے شکه کوم خلق چه د تکبر د وجې نه زما د عبادت نه مخ اړوی، هغوی به ذلیله جهنم ته داخل شي.

## خلاصه تفسیر

﴿اِنَّا لَنَنۡصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا فِی الۡحَیٰوةِ الدُّنۡیَا﴾ [بیشکه مونږ دخپلو پیغمبرانو او ایماندارو په دنیوی ژوند کښې هم مدد کوو] لکه چه بره د موسیؑ د قصې نه معلومه شوه ﴿وَیَوۡمَ یَقُوۡمُ الۡاَشۡهَادُ﴾ [او په هغه ورځ هم په کومه کښې چه ګواهی ورکوونکې] فرښتې کومو چه به عملنامې لیکلې دقیامت په ورځ به ددې خبرې ګواهی ورکوی چه رسولانو د تبلیغ کار وکړو او کافرانو دتکذیب غرض فرښتې به دګواهئ دپاره [ودریږی] مراددې نه دقیامت ورځ ده د هغه ځائ دمدد حال اوس دکفارو په اور باندې د عذابیدو نه معلوم شوې دې وړاندې ددغې ورځې بیان دې یعنی ﴿یَوۡمَ لَا یَنۡفَعُ الظّٰلِمِیۡنَ مَعۡذِرَتُهُمۡ﴾ [په کومه ورځ چه ظالمانو] یعنی کافرانو [ته د هغوی معذرت هیڅ نفع ورنه کړی] یعنی اول خو به څه دکار معذرت نه وی اوکه څه وی هم خو هغه به نافع نه وی ﴿وَلَهُمُ اللَّعۡنَةُ وَلَهُمۡ سُوۡٓءُ الدَّارِ﴾ [او دهغوی دپاره به لعنت وی او دهغوی دپار به په هغه عالم کښې خرابی وی] پس په دې شان سره به ته او ستا تابعداران هم منصور وی او مخالفین به مقهور او ذلیل وی نوته تسلی ساته [او] ستانه وړاندې ﴿وَلَقَدۡ اٰتَیۡنَا مُوۡسَی الۡهُدٰی﴾ [مونږ موسیؑ] [ته هدایت نامه] یعنی تورات [ورکړې وو او] بیا ﴿وَاَوۡرَثۡنَا بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ الۡکِتٰبَ﴾ [مونږ دغه کتاب بنی اسرائیلو ته رسولې وو چه هغه] ﴿هُدًی وَّذِکۡرٰی لِاُولِی الۡاَلۡبَابِ﴾ د[هدایت او نصیحت] کتاب [وو د] روغ [عقل لرونکودپاره] په خلاف دبې عقلونه چه هغوی ددې نه نفع مند نه شول دغه شان دحضرت موسیؑ په شان ته هم صاحب درسالت او صاحب د وحی یې او دغه شان دبنی اسرائیلو په شان ستا تابعداران به ستا دکتاب خدمت کوی او لکه څنګه چه په هغوی کښې دعقل خاوندان تصدیق کوونکی او تابعداران وو او بې عقله منکر او مخالف دغه شان ستاپه امت کښې هم دواړه قسمه خلق دی ﴿فَاصۡبِرۡ﴾ [پس] په دې سره هم [ته] تسلی حاصله کړه او دکفارو په ازارونو [صبرکوه ﴿اِنَّ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ﴾ بیشکه دالله تعالی وعده] چه بره ئې په لننصرالخ کښې ذکر شوې دې بالکل [ربښتونې ده او] که چرې په کمال صبرکښې څه کمی وشی کوم چه دشرعی قاعدو موافق په واقع کښې خوګناه نه ده مګر ستا داوچتې مرتبې په اعتبار سره په وجوب دتدارک کښې په مثل د ګناه دې ددغې تدارک کوه هغه تدارک دادې چه ﴿وَاسۡتَغۡفِرۡ لِذَنۡۢبِکَ﴾ [دخپلې] هغې [ګناه] کوم ته چه مجازاً ستا د اوچت شان په اعتبار سره ګناه وئیلې شوې ده [معافی غواړه او] په داسې شغل وسیږه چه دغمژن کوونکو او خفه کوونکو څیزونو طرف ته بالکل څه فکرنه کیږی هغه شغل دادې چه ﴿وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّکَ بِالۡعَشِیِّ وَالۡاِبۡکَارِ﴾ [سحر او مابنام] یعنی همیشه [دخپل رب تسبیح او تحمید کوه] دا مضمون خو ستا دتسلئ متعلق شو وړاند په منکر ینو او جګړه کوونکو باند رد او ورته زورنه ده یعنی ﴿اِنَّ الَّذِیۡنَ یُجَادِلُوۡنَ فِیۡۤ اٰیٰتِ اللّٰهِ بِغَیۡرِ سُلۡطٰنٍ اَتٰهُمۡ﴾ [کوم خلق چه بغیر د څه سند نه چه ددوی سره موجود وی د الله تعالی په ایتونو کښې جګړې راوباسی] دوی ته د اشتباه هیڅ وجه نشته چه

هغه د جګړې سبب وی بلکه ﴿إِن فِي صُدُورِهِمْ إِلَّا كِبْرٌ﴾ [د هغوی په زړونو کښې محض لوئ] او لوئی [ده ﴿مَّا هُم بِبَالِغِيهِ﴾ چه هغوی هغې ته چرې رسیدونکی نه دی] او دغه لوئ سبب د جګړې دې ځکه چه هغوی خپل ځان لوئ ګڼړې او په تابعدارئ کولو شرمیږی دوی خو په خپله دنورو د ځان تابع کولو په هوس کښې دی لیکن هغوی ته به دا لوئی نصیب نه شی بلکه ډیر زر به ذلیل او خوار شی نو چنانچه په بدر وغیره کښې دمسلمانانو په لاسونو مغلوب شول [پس] هرکله چه دوی خپله لوئی غواړی نو تاسره به حسداو عداوت هرڅه کوی لیکن [ته] اندیښنه مه کوه بلکه د دوی دشرنه ﴿فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ﴾ [دالله تعالی پناه غواړه [إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ] بیشکه هغه دې هرڅه اوریدونکې هرڅه لیدونکې] نو هغه به په خپلو کمالی صفتونو سره په خپله پناه کښې راغلو خلقو لره محفوظ ساتی دا جګړه خو ستاپه رسول منلو کښې وه وړاند د دوی جګړه دقیامت متعلق سره درد نه ذکر ده یعنی هغه خلق کوم چه دمخلوق دوباره ژوندی کیدو نه منکر دی ډیرکم عقله دی په دې واسطه سره چه ﴿لَخَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ﴾ [په یقین سره داسمانونو اومزکو] اول [پیداکول دبنیادمو د] دوباره [پیداکولو په نسبت لوئ کار دې] نو هرکله چه په لوئ کار باند قدرت ثابت شو نو په ورکوټی خو په درجه اولی ثابت دې او دا دلیل دثبوت دپاره کافی شافی دې ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ [لیکن اکثر خلق] په دومره خبره [نه پوهیږی] ځکه چه هغوی غور نه کوی او ځنې داسې هم دی چه غور هم کوی او پوهیږی هم اومنی هم دغه شان دقرآن داوریدونکو دوه قسمونه شول یو په دې پوهیدونکی او منونکی دا صاحب بصیرت او صاحب ایمان دی دویم نه پوهیدونکی او نه منونکی دا په مثل د ړوند او بدعمله دی [او] په دې دواړه قسمه بنیادمو یعنی [وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ] یو [لیدونکې] بل [نه لیدونکې او] یو ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَلَا الْمُسِيءُ﴾ [هغه خلق کوم چه ایمان راوړی او ښه کارونه وکړی او] بل [بدکار د یو بل سره نه شی برابریدې] په دې کښې ستاتسلی هم ده چه خلق هر قسم وی ټول به ځنګه پوه شی او په منکرانو دقیامت د عذاب وعیدهم دې چه مونږ ټولو لره برابر نه ساتو وړاند منکرانو یعنی هغو خلقو ته کوم چه په شان د ړوند او بد عمله دی په طور دالتفات زجر دې فرمائی چه ﴿قَلِيلًا مَّا تَتَذَكَّرُونَ﴾ [تاسو خلق ډیرکم پوهیږئ] ورنه رانده او بدعمله به نه وئ او دقیامت متعلق د جګړې جواب ورکوی وړاندې ددې دواقع کیدو خبر ورکوی چه ﴿إِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا﴾ [قیامت خوبه ضرور راځی ددې په راتلو کښې دهیڅ قسمه شك نشته ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ مګر اکثر خلق] په وجه دعدم تدبر په دلیلونو کښې دې لره [نه منی او] یوه جګړه د دوی په توحید کښې وه چه دالله تعالی سره شریك جوړوی وړاند ددې متعلق خبره ده یعنی ﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي﴾ [ستاسو پروردګار فرمائیلی دی چه] غیرو لره د حاجتونو دپاره مه بلئ بلکه [مالره بلئ زه] په استثناء د نامناسب عرض کولو نه ﴿أَسْتَجِبْ لَكُمْ﴾ [ستاسو] هر [درخواست قبلوم] د دعا متعلق دقرآن ایت [فیکشف ماتدعون الیه ان شاء][1] هم دا مطلب دې چه نامناسب درخواست او دعارد کولې شی ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي﴾ [کوم خلق چه] صرف [زما دعبادت نه] چه دې کښې زمانه دعا غوښتل هم داخل دی [مخ اړوی] او غیرو لره بلی او دهغوی عبادت کوی

[1] ترجمه: بیا څه دپاره چه تاسو رابلی نو که الله وغواړی نو هغه په درنه لرے کړی۔

مطلب داشو چه کوم خلق د توحید نه مخ اړوي او شرك كوي [هغوی به عنقریب] دمړکیدو سره ﴿سَيَدۡخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ﴾ [په ذلت سره جهنم ته داخل کړې شي]

## معارف او مسائل

﴿إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ دې آیت مبارك كښې د الله ﷻ وعده ده چې هغه د خپلو رسولانو او مؤمنانو مدد کوی. په دنیا کښې هم او په آخرت کښې هم. اودا ښکاره ده چې دا مدد کول د مخالفینو او دښمنانو په مقابله کښې دی. د اکثرو انبیاء کرامو علیهم السلام متعلق خو ددې واقع کیدل ظاهر دی. مګر ځینې انبیاء کرام علیهم السلام لکه یحیی علیه السلام، زکریا علیه السلام او شیعب علیه السلام چې هغوئ علیهم السلام لره دښمنانو شهیدان کړی وو یا ځینو خپل وطن پریښودی وو او بل وطن ته ئې هجرت کړې وو. لکه ابراهیم علیه السلام او خاتم الانبیاء ﷺ. ددوئ متعلق شبه کیدې شي.

ابن کثیر د ابن جریر(۱) په حواله دا جواب ورکړې دې چې دې آیت مبارك كښې د نصرت نه مراد انتصار او د دښمنانو نه بدله اخستل دی. که دا ددوئ په ذریعه ددوئ په موجودګئ کښې وی اوکه ددوئ د وفات نه پس وی. په دې کښې ټول انبیاء کرام علیهم السلام او مؤمنان بیشکه بې شبهې راځی. کومو خلقو چې خپل انبیاء علیهم السلام قتل کړل هغوئ په څه څه عذابونو کښې ګرفتار شو او رسوا شو. ددې نه تاریخ ډك پروت دی. د یحیی علیه السلام، زکریا علیه السلام اود شعیب علیه السلام په قاتلانو باندې ئې ددوئ دښمنان مسلط کړل او هغوئ دوئ ذلیل او خوار کړل او قتل ئې کړل. الله تعالی نمردو په څه څه رنګ عذابونو کښې ګرفتار کړو. د عیسی علیه السلام په دښمنانو باندې الله تعالی روم مسلط کړو او هغوئ دوئ لره ذلیل کړل او بیا به د قیامت نه وړاندې وړاندې الله تعالی دوئ په دښمنانو باندې غالب کړی. او الله ﷻ د رسول کریم ﷺ دښمنان د مسلمانانو دلاسه ختم مغلوب کړل او دوئ کښې چې کوم سرکشه وو هغوئ ئې قتل کړل. څه ئې قید کړل. او چې کوم باقی پاتې شو هغوئ ئې د فتح مکه په موقع باندې اونیول. خو رسول کریم ﷺ هغوئ آزاد کړل. ددوئ کلمه سربالا شوه او په ټولو دینونو باندې د رسول کریم ﷺ دین غالب شو، او د رسول کریم ﷺ په زمانه کښې په ټول جزیرة العرب کښې اسلام خور شو.

﴿وَيَوۡمَ يَقُومُ الۡأَشۡهَادُ﴾ یعنی چې په کومه ورځ اودریږی ګواهان، مراد ددې نه د قیامت ورځ ده. هلته بهٔ د انبیاء کرام علیهم السلام او مؤمنانو دپاره دالله تعالی نصرت په خصوصی توګه وی.

﴿إِن فِي صُدُورِهِمۡ إِلَّا كِبۡرٌ مَّا هُم بِبَٰلِغِيهِ﴾ یعنی دا خلق چې د الله ﷻ آیتونو کښې بغیر د څه حجت او دلیل نه جدال یعنی جګړه کوی، او ددې نه اصل مقصد د دین نه انکار کول دی. او ددې صرف یو سبب دې چې ددوئ په زړونو کښې تکبر دې. دوئ صرف خپله لوئی غواړی او د خپل بې وقوف توب په وجه دا ګنړی چې دا لوئې مونږ په خپل مذهب باندې د قائم پاتې کیدو په صورت کښې ملاؤ شوې ده. که مونږ دا پریخودو او مسلمانان شو نو بیا خو به زمونږ دا ریاست او اقتدار پاتې نشی. قرآن عظیم الشان اوفرمائیل چې ﴿﴾ یعنی دوئ د اسلام نه بغیر خپله لوئی او عظمت هیچرې هم حاصلول نشی. البته که اسلام ئې قبول کړو نو ددوئ عظمت او لوئی به قائم پاتې شی، [قرطبی](۲).

---

(۱) تفسیر الطبری تحت هذه الآیة: ج ۲۱، ص ۴۰۰، ۴۰۱، وتفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۱۵۰

(۲) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة: ج ۱۵، ص ۳۲۴

﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِيْٓ اَسْتَجِبْ لَكُمْ ۭ اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دٰخِرِيْنَ﴾

**د دعا حقيقت او ددې فضائل او درجات اود قبوليت شرط:** د دعا لفظي معنى غوښتل دى . او ددې اکثر استعمال د څه حاجت او ضرورت په وخت کښې غوښتلو کښې کيږي . کله مطلق د الله تعالى ذکر ته هم دعاء وئيلې شي . دا آيت مبارك د امت محمديه ﷺ يو خاص اعزاز دې چې دوئ ته د دعا غوښتلو حکم ورکړې شوې دې . او ددې د قبليدو وعده ورسره کړې شوې ده . اوڅوك چې دعا نه غواړي نو هغوئ دپاره د عذاب غندنه راغلې ده .

قتاده رحمه الله د کعب الا احبار رحمه الله نه نقل کړې دى چې پخوا زمانې کښې به دا خصوصيت د انبياء کراموو. يعنى هغوئ ﷺ ته به د الله ﷻ حکم ووچې تاسو دعا اوغواړئ زه به ئې قبلوم . د امت محمديه ﷺ دا خصوصيت دې چې دا حکم د ټول امت دپاره عام دې . [ابن کثير] (١).

نعمان بن بشير رضي الله عنه ددې آيت مبارك په تفسير کښې فرمائى چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې ﴿ان الدعاء هو العبادة﴾ يعنى دعاء هم دا عبادت دې. او بيا دوئ په استدلال کښې دا آيت مبارك تلاوت کړو چې : ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ﴾ [رواه الامام والترمذى والنسائى و ابوداؤد وغيره ، ابن کثير] (٢).

تفسير مظهرى کښې دى چې جمله ﴿ان الدعاء هو العبادة﴾ کښې د عربى قاعدې [قصر المسند على المسند اليه] مطابق دا مفهوم هم کيدې شى چې دعا هم د عبادت يو نوم دې . يعنى هره دعا عبادت ده . او [قصر المسند على المسند اليه] په طور مفهوم دا هم کيدې شى چې هر عبادت هم دعا ده . دلته دواړه احتمالات کيدې شى . او مراد دلته دادې چې دعا او عبادت اګر چې دواړه د مفهوم په اعتبار سره جدا جدا دى خو د مصداق په اعتبار سره دواړه متحد دى ، هره دعا عبادت دې او هر عبادت دعا ده . وجه داده چې عبادت نه مراد د چا په وړاندې عاجزى اختيارول . او ښکاره خبره ده چې خپل ځان محتاج ګڼړل او چا ته سوال کول ډير د عاجزئى کار دې او هم دا د عبادت مفهوم دې . او دا شان د هر عبادت نه مراد الله ﷻ نه مغفرت غوښتل ، جنت غوښتل ، او د دنيا او آخرت عافيت غوښتل دى (٣) . يو حديث قدسى دې چې الله ﷻ فرمائى چې څوك زما په حمدوثناء کښې دومره مشغول وى چې هغه دخپل حاجت غوښتلو دپاره هم وخت نه ملاويږى نو زه هغه ته د غوښتونکو نه زيات ورکوم. يعنى د هغه حاجت به پوره کوم. [رواه الجزرى فى النهايه] (٤).

اود ترمذى و مسلم په يو روايت کښې دا الفاظ دى چې ﴿من شغله القران عن ذکرى ومسئلتى اعطيته افضل ما اعطى السائلين﴾ (٥) يعنى کوم کس چې د قرآن عظيم الشان په تلاوت کښې دومره مشغول وى چې هغه ته زما نه د غوښتلو دپاره وخت نه ملاويږى نو زۀ بۀ هغه ته دومره

---

١) تفسير ابن کثير: ج ٧، ص ١٥٣

٢) تفسير ابن کثير: ج ٧، ص ١٤٣، ومسند أحمد، رقم الحديث: ١٨٣٥٢، وجامع الترمذى، أبواب التفسير، باب تفسير سورة المؤمن: ج ٢، ص ١٦٠، والسنن الکبرىٰ للبيهقى، رقم الحديث: ١١٤٦٤

٣) التفسير المظهرى: ج ٨، ص ٢٦٩

٤) وهکذا فى مصنف عبدالرزاق، رقم الحديث: ٣١٩٩

٥) جامع الترمذى، أبواب فضائل القرآن، باب ما جاء کيف کانت قراءة النبى صلى الله عليه وسلم: ج ٢، ص ١٢٠

Scanned with Ca

ورکړم چې غوښتونکو ته هم دومره نه ورکوم. ددې نه معلومه شوه چې هر عبادت دومره فائده ورکوي لکه څومره چې د دعا فائده ده
او د عرفات په حدیث پاك کښې دي چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې عرفات کښې زما دعا او زما نه د مخکښې انبیاء کرامو ﷺ دعا دا کلمه ده ﴿لااله الاالله وحده لاشريك له له الملك وله الحمد وهوعلی کل شئ قدير﴾ [رواه ابن ابی شيبة ، مظهری] [1]
دې کښې ئې عبادت او د الله ﷻ ذکر ته دعا فرمائیلې ده . او دې آیت مبارك کښې عبادت د دعا په معنی پریخودونکو د پاره چې د جهنم وعید بیان کړې شوې دې. هغه بصورت استکبار دې، یعنی کوم کس چې په طور د استکبار خپل ځان د دعا نه مستثنی اوګڼړي او دعا پریږدي نو دا د کفر علامت دې . په دې وجه د وعید جهنم استحقاق شو. ګنې پخپله عام دعا ګانې فرض یا واجب نه دی . ددې په پریخودو کښې څخه ګناه نشته دې . البته د علماء کرامو په اجماع سره دامستحب او افضل دی [مظهری] [2] او د احادیث د تشریح په رڼړا کښې د برکت موجب دی.
**ددعا فضیلتونه** :: **حدیث** ① :: رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د الله ﷻ په نزد د دعا نه زیات مکرم څیز بل نشته دې [ترمذی ، ابن ماجه ، حاکم عن ابی هریره ﷛] [3].
**حدیث** ② :: رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿الدعاء مخ العبادة﴾ یعنی دعا د عبادت مغز دې [ترمذی ، عن انس ﷛] [4].
**حدیث** ③ :: رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د الله ﷻ نه دهغه فضل غوارئی ځکه چې الله ﷻ سوال او حاجت غوښتل خوښوی . او ټولو نه لوئې عبادت دادې چې سړې د سختئ په وخت کښې د فراخئ انتظار اوکړی .[ترمذی عن ابن مسعود ﷛] [5].
**حدیث** ④ :: رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې کوم کس الله ﷻ نه د خپل حاجت د پاره سوال نه کوی نو په هغه باندې د الله ﷻ غضب وی . [ترمذی ، ابن حبان ، حاکم] [6].
دا ټول روایات ئې په تفسیر مظهری کښې نقل کړی دی او فرمائی چې څوك د الله ﷻ نه دعا نه غواړی نو په هغه باندې د الله ﷻ غضب په هغه صورت کښې دې چې دعا نه غوښتل د تکبر په وجه وی او خپل ځان مستغنی ګڼړی، لکه څنګه چې آیت مبارك کښې فرمائی چې ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ﴾ [7]

---

[1] ) التفسير المظهری: ج ۸، ص ۲۶۹، ومصنف ابن ابی شيبة، رقم الحديث: ۲۹۶۵۶، وشعب الإيمان للبيهقی، رقم الحديث: ۶۰۰
[2] ) التفسير المظهری: ج ۸، ص ۲۷۰
[3] ) جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب ما جاء فی فضل الدعاء: ج ۲، ص ۱۷۴
[4] ) جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب ما جاء فی فضل الدعاء: ج ۲، ص ۱۷۵
[5] ) جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب فی انتظار الفرج وغيره: ج ۲، ص ۱۹۷
[6] ) جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب: ج ۲، ص ۱۷۵، والمستدرك للحاكم، رقم الحديث: ۱۷۶۱، كتاب الدعاء والتكبير.
[7] ) التفسير المظهری: ج ۸، ص ۲۷۰

Scanned with Ca

**حدیث** ⑤ :: رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د دعا نه مه عاجزه کیږئی ځکه چې دعا سره څوك نه هلاکیږي. [ابن حبان، حاکم ان انس رضی الله عنه][1].

**حدیث** :: ⑥ رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې دعا د مؤمن وسله ده او د دین ستن ده او د آسمان او زمکې نور دې. [حاکم فی المستدرك عن ابی هریره رضی الله عنه][2].

**حدیث** :: ⑦ رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې کوم کس دپاره د دعاد دروازې بیرته او خلاصې شوې نو هغه دپاره د رحمت دروازې بیرته او خلاصې شوې. او الله ﷻ ته ددې نه زیاته محبوبه دعا نه ده غوښتلې شوې چې الله ﷻ نه د عافیت سوال اوکړې شی. [ترمذی، حاکم عن ابن عمر رضی الله عنه][3]. د عافیت لفظ ډیر جامع لفظ دې. پدې کښې د مصیبت نه د حفاظت او د هر ضرورت پوره کیدل داخل دی.

**مسئله** :: د یو گناه یا قطع رحمئ دعا غوښتل حرام دی. دا دالله تعالی په نزد نه قبلیږی. [کما فی الحدیث عن ابی سعید الخدری رضی الله عنه][4].

**ددعا د قبلیدو وعده** :: دې مذکوره آیت مبارك کښې ددې وعده ده چې کوم کس د الله ﷻ نه دعا غواړي هغه قبلیږي. خو کله کله انسان دا گوری چې ددهٔ دعا قبوله نه شوه. ددې جواب په حدیث کښې شته دې. ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې مسلمان د الله ﷻ نه کومه دعا هم غواړي نو الله ﷻ ئې قبلوی. په دې شرط چې په دې کښې د څه گناه یا قطع رحمئ دعا نه وی. اود قبلیدو درې صورتونو کښې یو صورت کیږي. یو دا چې څه ئې اوغوښتل هغه ورته ملاؤ شو، دویم دا چې دهٔ کوم څیز غوښتلې وو د هغه بدله کښې ورته د آخرت څه اجرو ثواب ملاؤ شو. دریم دا چې ده څه څیز غوښتلو هغه خو ورته ملاؤ نشو مگر په ده باندې یو مصیبت راروان وو هغه ترې ختم شو، [مسند احمد، مظهری][5].

**د دعا د قبلیدو شرطونه** :: دې مذکوره آیت کښې خو په ظاهره باندې څه شرط نشته دې. تر دې چې مسلمان کیدل هم د دعا د قبلیدو دپاره شرط نه دې. الله ﷻ د کافر دعا هم قبلوی. تر دې چې الله ﷻ د شیطان دعا هم قبوله کړې ده او تر قیامته پورې به ژوندې وی. ددعا دپاره نه خو وخت شرط دې، نه طهارت شرط دې او نه اودس شرط دې. خو معتبرو احادیثو کښې څه څیزونه داسې خودلې شوی دی چې هغې سره دعا نه قبلیږی. ددې څیزونو نه پرهیز کول لازم دی. لکه څنگه چې یو حدیث پاك دی. ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې څینې کسان ډیر سفر کوی او آسمان ته د دعا دپاره لاس پورته کوی، اویارب

---

[1]) صحیح ابن حبان، رقم الحدیث:۸۷۲، کتاب الرقائق، باب الأدعیة۔

[2]) المستدرک للحاکم، رقم الحدیث: ۱۷۶۶

[3]) جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب فی دعاء النبی صلی الله علیه وسلم:ج ۲، ص ۱۹۵

[4]) صحیح مسلم، کتاب الذکر والدعا-الخ، باب بیان انه یستجاب للداعی- الخ،(عن ابی هریرة رضی الله عنه ) ج ۲، ص ۳۵۲

[5]) مسند أحمد، رقم الحدیث: ۱۱۱۳۳، جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب ما جاء ان دعوة المسلم مستجابة:ج ۲، ص ۱۷۵

Scanned with Ca

یارب وائي او دعا غواړي خو ددهٔ خوارك حرام ، څكاك حرام ، لباس حرام ، دهٔ ته د حرامو خوراك ورکړې شو نو ددهٔ دعا بهٔ څنګه قبوله شي . [رواه مسلم][1]
داشان په غفلت او بې پرواهئ سره او بغیر د سوچ او فکر نه که څوك دعا اوغواړي نو حدیث پاك کښې راغلي چې الله ﷻ داسې دعا هم نه قبلوي [ترمذی عن ابی هریره رضی الله عنه][2]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ الَّذِيْ | جَعَلَ لَكُمُ | الَّيْلَ | لِتَسْكُنُوْا | فِيْهِ | |
| الله هغه ذات دې | چې جوړه ئې کړه ستاسو دپاره | شپه | چې تاسو آرام اوکړئ | په هغې کښې | |
| الله تعالی هغه ذات دې | چې ستاسو دپاره ئې شپه جوړه کړه | چې آرام په کښې کوئ | | | |
| وَالنَّهَارَ | مُبْصِرًا | اِنَّ اللّٰهَ | لَذُوْ فَضْلٍ | عَلَى النَّاسِ | وَلٰكِنَّ |
| او ورځ | روښانه | بیشکه الله | خاوند دفضل دې | په خلقو باندې | ولیکن |
| او ورځ ئې درله روښانه جوړه کړه | بیشکه چې الله ﷻ په خلقو ډیرې مهربانئ کړې دی | | | | |
| اَكْثَرَ النَّاسِ | لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۶۱﴾ | ذٰلِكُمُ اللّٰهُ | رَبُّكُمْ | خَالِقُ | |
| زیات دخلقو نه | نهٔ اوباسي شکر | دغه الله | رب ستاسو دې | پیدا کونکې | |
| خو زیات خلق شکر نه کوی | ............هم دا الله ﷻ دې چې ستاسو رب دې | دهر څیز پیدا کونکې دې | | | |
| كُلِّ شَيْءٍ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا هُوَ | فَاَنّٰى | تُؤْفَكُوْنَ ﴿۶۲﴾ | |
| دهر څیز | نشته لائق دعبادت | مګر خاص هم هغه دې | نو کوم طرفته | دوکه کړې کیږئ تاسو | |
| د هغه نه سوا بل څوك دعبادت لائق نشته دې | نودا تاسو کوم خوا اړولې روان یئ | | | | |
| كَذٰلِكَ | يُؤْفَكُ | الَّذِيْنَ | كَانُوْا | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | |
| دارنګې | دوکه کړې شوی دی | هغه کسان | چې وو هغوئ | په آیتونو دالله سره | |
| دغه شان هغه خلق هم اړولې روان وو | چې دالله ﷻ د ایتونو نه به ئې انکار کولو | | | | |
| يَجْحَدُوْنَ ﴿۶۳﴾ | اَللّٰهُ الَّذِيْ | جَعَلَ | لَكُمُ | الْاَرْضَ | قَرَارًا |
| چې انکار به ئې کولو | الله هغه ذات دې | چې جوړه ئې کړه | ستاسو دپاره | زمکه | ځائې دقرار |
| ......الله ﷻ هغه ذات دې | چې زمکه ئې ستاسو د استوګنې ځائې جوړ کړې دې | | | | |
| وَّالسَّمَآءَ | بِنَآءً | وَّصَوَّرَكُمْ | فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ | | |
| او آسمان | چت | او شکل ئې جوړ کړو ستاسو | پس ډیر ښائیسته ئې جوړ کړو شکل ستاسو | | |
| او اسمان ئې درباندې چت جوړ کړې دې | او ستاسو صورتونه ئې جوړ کړې دی | نو څه ښه صورتونه دی | | | |
| وَرَزَقَكُمْ | مِّنَ الطَّيِّبٰتِ | ذٰلِكُمُ اللّٰهُ | رَبُّكُمْ | | |
| او رزق ئې درکړو تاسو له | دپاکو څیزونو نه | دغه الله | رب ستاسو دې | | |
| اوښه پاکیزه خوراکونه ئې درته روزی کړې دی | هم دا الله ﷻ ستاسو رب دې | | | | |

[1] ) صحیح مسلم، کتاب الزکاة، باب الحث علی الصدقة، ج ۱، ص ۳۲۶
[2] ) جامع الترمذی، أبواب الدعوات، باب ما جاء فی جامع الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم: ج ۲، ص ۱۸۶

Scanned with Ca

فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ | رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ | هُوَ الْحَيُّ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا هُوَ

پس برکت ورکونکې دې الله | چې پالونکې دمخلوقاتو دې | هغه ژوندې دې | نشته لائق دعبادت | مگر هغه دې

نو الله ﷻ ډیر دبرکتونو ذات دې | چې د ټول مخلوق پالونکې دې | دې همیشه ژوندې دې | ددهٔ نه سوا

فَادْعُوْهُ | مُخْلِصِيْنَ | لَهُ | الدِّيْنَ ؕ | اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

پس آواز کوئ هغه ته | حال دا چې خالص کونکي يئ | هغه لره | ددين | ثنا الله لره ده |

بل څوک معبود نشته دې | نو تاسو په اخلاص سره ددهٔ بلنه کوئ | ټول تعريفونه الله ﷻ لره دي

رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ | قُلْ | اِنِّيْ نُهِيْتُ | اَنْ اَعْبُدَ

چې پالونکې دمخلوقاتو دې | او وايه | چې زهٔ منع کړې شوې يم | چې زهٔ عبادت اوکړم

چې دټولو مخلوقاتو رب دې | (ائې پيغمبره) ته ورته او وايه چې زه خودډې نه منع کړې شوې يم | چې د الله ﷻ نه

الَّذِيْنَ | تَدْعُوْنَ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | لَمَّا | جَآءَنِيَ | الْبَيِّنٰتُ

دهغه هستيانو | چې تاسو ئې رابلئ | بې دالله نه | هر كله چې | راغلل ماته | واضحه دليلونه |

سوا ستاسو دنورو معبودانو عبادت اوکړم | ددې باوجود چې ماته دخپل رب دطرفنه ښکاره نښې

مِنْ رَّبِّيْ | وَاُمِرْتُ | اَنْ اُسْلِمَ | لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ | هُوَ الَّذِيْ

دطرفه درب زما نه | او حكم شوې دې ماته | چې زهٔ غاړه كيږدم | رب العالمين ته | هغه هغه ذات دې

رارسيدلې دي | او ماته خو بس دا حكم دې | چې درب العالمين وړاندې سرټيټوم | الله ﷻ هغه ذات دې

خَلَقَكُمْ | مِّنْ تُرَابٍ | ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ | ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ

چې پيدا ئې كړئ تاسو | دخاورې نه | بيا دنطفې نه | بيا دوينې دټوټې نه |

چې تاسو ئې دخاورې نه پيدا كړې يئ | بيا ئې دڅاڅكي او بو نه | بيا ئې د وينې له ټوټې نه

ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ | طِفْلًا | ثُمَّ لِتَبْلُغُوْٓا | اَشُدَّكُمْ

بيا هغه راوباسي تاسو | په شكل دبچي | بيا لويوئ تاسو چې اورسيږئ | پوره قوت خپل ته |

بيا ئې ماشوم (دمور دخيټې نه) راوويستلئ | بيا تر دې چې ډكې ځوانئ ته اورسيدئ

ثُمَّ لِتَكُوْنُوْا | شُيُوْخًا ۚ | وَمِنْكُمْ | مَّنْ | يُّتَوَفّٰى

بيا چې شئ تاسو | بوډاګان | او ځينې ستاسو نه | هغه څوك دى | چې وفات كړې شي |

بيا تر دې چې بوډاګان شوئ | او څوك د ركښې وړاندې مړ شي او دپاره ددې چې تاسو ټول

مِنْ قَبْلُ | وَلِتَبْلُغُوْٓا | اَجَلًا مُّسَمًّى | وَّلَعَلَّكُمْ | تَعْقِلُوْنَ ۝

مخكښې ددې نه | او چې اورسئ تاسو | نيټې مقررې ته | او دپاره ددې چې تاسو | دعقل نه كار واخلئ

خپلې مقررې نيټې ته اورسيږئ | او چې دپوهې نه كار واخلئ

هُوَ الَّذِيْ | يُحْيٖ | وَيُمِيْتُ ۚ | فَاِذَا قَضٰٓى

هغه هغه ذات دې | چې ژوندې كول كوې | او مړه كول كوې | پس هر كله چې فيصله او كړې هغه

الله ﷻ هغه ذات دې | چې ژوندې كول او مړه كول كوې | كله چې د يو كار د كولو اراده اوكړي

| آمْرًا | فَاِنَّمَا | يَقُوْلُ | لَهٗ | كُنْ | فَيَكُوْنُ ﴿۶۸﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| ديو كار | پس بيشكه | چې وائي | هغه كار ته | شه | پس شي هغه |
| نو هغې ته اووائي موجود شه | | | | | نو هغه موجود شي |

### آسان ترجمه قرآن

الله تعالى هغه ذات دې، چه ستاسو دپاره ئې شپه پيدا كړه، دې دپاره چه تاسو په دې كښې سكون حاصل كړئ، او ورځ ئې ليدلو والا جوړه كړه. حقيقت دادې، چه الله تعالى په خلقو باندې فضل كونكې دې، ليكن اكثر خلق شكر نه اوباسي. هم هغه الله تعالى دې، چه ستاسو پروردګار دې، د هر څيز پيدا كونكې دې. د هغه نه سوا هيڅوك معبود نشته. بيا كوم خواته اړولې شئ تاسو؟ هم دغه شان هغه خلق اوړى (د حق نه) چه (مخكښې ئې) د الله تعالى د آيتونو نه انكار كولو الله تعالى هغه ذات دې، چه ستاسو دپاره ئې زمكه قرارى والا جوړه كړې ده. او آسمان لره ئې يو ګنبد جوړ كړې دې. او تاسو ته ئې شكلونه دركړې دي. او ستاسو صورتونه ئې ښائسته جوړ كړې دي. او د پاک څيزونو نه ئې تاسو ته رزق دركړو دغه ذات الله تعالى دې، چه ستاسو پروردګار دې، پس بركتونو والا دې الله تعالى. د ټولو جهانونو پروردګار دې هم هغه ژوندې دې. دهغه نه سوا هيڅوك معبود نشته. پس بلئ هغه لره (په دې حال كښې) چه ستاسو تابعدارى خالص دهغه دپاره وى ټول تعريفونه الله تعالى دپاره دى، چه د ټولو جهانونو پروردګار دې. (اے پيغمبره كافرانو ته) اووايه چه: زه د دې خبرې نه منع كړې شوې يم. چه هركله ماته د خپل رب د طرف نه ښكاره ښې راغلې دى، نو بيا هم زه دهغې معبودانو عبادت اوكړم. كوم چه تاسو د الله تعالى نه سوا رابلئ. او ماته دا حكم را كړې شوې دې، چه زه د ټولو جهانونو د پروردګار مخكښې سر ټيټ كړم. هم هغه دې، چه تاسو ئې د خاورې نه پيدا كړئ، بيا د نطفې نه، بيا د ځكه وينې نه، بيا راوباسي تاسو لره د ماشوم په شكل كښې، بيا (هغه ستاسو پرورش كوى) دې دپاره چه تاسو خپلې ځوانئ ته اورسيږئ. او بيا بوډاګان شئ. او په تاسو كښې بعضې هغه خلق دى، چه ددې نه مخكښې وفات شي. او دې دپاره چه تاسو يو مقررې ليټې ته اورسيږئ. او دې دپاره چه تاسو د عقل نه كار واخلئ هم هغه دې، چه ژوند وركوى، او مرګ وركوى. او كله چه هغه ديو كار فيصله اوكړى. نو هغې ته صرف دومره اووائي چه: اوشه. پس هغه اوشي.

### خلاصه تفسير

﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ﴾ [الله تعالى هغه ذات دې چه ستاسو د] نفع د [پاره ئې شپه جوړه كړه ﴿لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ﴾ چه تاسو په كښې ارام وكړئ ﴿وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا﴾ او هغه ورځې لره] دليدلودپاره [روښانه جوړه كړه] چه بې تكليفه په كښې خپل معاش حاصل كړئ ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ﴾ [بيشكه دالله تعالى په خلقو لوئ فضل دې] چه د دوى دمصلحتونو ئې څنګه څنګه رعايت وفرمائيلو ﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ﴾ [ليكن اكثر خلق] ددې نعمتونو [شكر نه ادا كوى] بلكه التبه شرك كوى ﴿ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ﴾ [دا الله تعالى دې ستاسو رب] دكوم چه ذكر وشو نه هغه كوم چه تاسو تراش كړى دى [هغه] الله ﴿خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ [د هرشي پيدا كوونكې دې ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ د هغه نه سوا بل لائق د عبادت نشته پس] دتوحيد ثابتيدونه پس [تاسو خلق كوم خوا

شرك كوئ ﴿فَأَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ۝﴾ [التـه چليږئ] او دمخاطبو څه تخصيص دې لكه څنګه چه په تعصب او عناد سره دوى التـه چليږي ﴿كَذٰلِكَ يُؤْفَكُ الَّذِيْنَ﴾ [دغه شان هغه] ورومبى [خلق هم التـه چليدل ﴿كَانُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ۝﴾ كومو چه دالله تعالى] دتكوينى او تنزيلى [نښونه انكاركولو ﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ قَرَارًا﴾ هم الله تعالى دې چاچه مزكې لره دمخلوق دپاره [ځاى دقرار جوړكړو ﴿وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً﴾ او اسمان لره يې] په دې دپاسه په مثل د [چت جوړكړو ﴿وَّصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ﴾ او ستاسو نقشه يې جوړه كړه پس عمده نقشه يې جوړكړه] چنانچه دانسان داندامونو برابر ديوحيوان داندامونو تناسب نشته او دامشاهد او مسلم ده ﴿وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ﴾ [او تاسو لره يې عمده عمده څيزونه د خوراك دركړل] پس ﴿ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ﴾ [دا الله تعالى دې ستاسو رب ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ۝﴾ پس لوئ عاليشان دې الله تعالى كوم چه دټول جهان پروردګار دې ﴿هُوَ الْحَيُّ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ هغه] ازلى ابدى [ژوندې پاتې كيدونكې [دې د هغه نه سوا څوك لائق د عبادت نشته پس تاسو] ټول ﴿فَادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ﴾ [په خالصه عقيده سره هغه لره بلئ] او شرك مه كوئ ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝﴾ [ټول تعريفونه خاص الله تعالى لره دى كوم چه پروردګار دې دټولو جهانونو ته] دې مشركانو ته د اوږولو دپاره ﴿قُلْ اِنِّيْ نُهِيْتُ﴾ [ووايه چه ماته ددې نه ممانعت شوې دې ﴿اَنْ اَعْبُدَ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ چه زۀ د هغو] شريكانو [عبادت وكړم كومولره چه دالله تعالى نه علاوه تاسو بلئ ﴿لَمَّا جَآءَنِيَ الْبَيِّنٰتُ مِنْ رَّبِّيْ﴾ هركله چه ماته زما درب نښې راغلې] مراد ترې نه عقلى او نقلى دليلونه دى نو مطلب دادې چه دشرك نه زه منع شوې يم ﴿وَاُمِرْتُ اَنْ اُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝﴾ [او ماته داحكم شوې دې چه زۀ] صرف [درب العلمين په وړاندې] په عبادت كښې [څټ ښكته كړم] مطلب دادې چه ماته د توحيد حكم شوې دې ﴿هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ﴾ [هم هغه دې چاچه تاسو لره] يعنى ستاسو پلار لره [د خاورې نه پيدا كړو بيا مخ ته دده نسل ئې د نطفې نه بيا د وينى بوټۍ نه] لكه چه په سوره حج كښې يې بيان شوې دې ﴿ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا﴾ [بياتاسو لره بچى كړى] دمور د ګېډې نه [راوباسي ﴿ثُمَّ لِتَبْلُغُوْٓا اَشُدَّكُمْ﴾ بيا] تاسو لره ژوندى ساتى [چه تاسو خپلې ځوانۍ ته ورسيږئ ﴿ثُمَّ لِتَكُوْنُوْا شُيُوْخًا﴾ بيا] تاسو لره نور ژوندى ساتى [چه تاسو بوډاګان شئ ﴿وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّتَوَفّٰى مِنْ قَبْلُ﴾ او څنې څنې په تاسو كښې] ددې عمرونو نه يعنى ځوانۍ او زوړ والى نه [وړاند مړۀ شى] دا څو دټولو څان څانله حال شو چه څنې ځوانان شى څنې نه شى څنې بوډاګان شى څنې نه [او] داكار اننده په ټولو كښې مشترك دې چه په تاسو كښې هريو ته يو خاص عمر وركوى ﴿وَلِتَبْلُغُوْٓا اَجَلًا مُّسَمًّى﴾ [چه تاسو ټول] خپل خپل [مقرر وخت] مقدر [ته ورسيږئ] پس دا امر كلى دې او جزئيات مختلفه ټول ددې كلى جزئيات دى [او] داټول هرڅه يې څكه وكړل ﴿وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ۝﴾ [چه تاسو خلق] په دې كارونوكښې غور وكړئ د الله تعالى توحيد لره اوپيژنئ ﴿هُوَ الَّذِيْ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ﴾ هم هغه دې كوم چه ژوندى كوى اومړۀ كوى ﴿فَاِذَا قَضٰٓى اَمْرًا﴾ بيا چه هركله هغه دڅه كار] دفعتا [پوره كول غواړى ﴿فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ۝﴾ پس صرف د هغه په نسبت] دومره [وفرمائى چه شه پس هغه وشى].

Scanned with Ca

## معارف او مسائل

دې مذکوره آيتونو کښې د الله ﷻ د انعاماتو او د کامل قدرت ذکر کړې شوې دې او توحيد طرفته رابلل شوي دي.

﴿اَللّٰهُ الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الَّیْلَ لِتَسْكُنُوْا فِیْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا﴾ په دې غور پکار دې چې دا څومره لوئې نعمت دې چې قدرت د انسانانو ټولو طبقو او تر دې چې د ځناورو دپاره فطری طور د خوب يو وخت مقرر کړې دې. اوپه هغه وخت کښې تياره کړې شی او هغه وخت مناسب جوړ کړې شی او د ټولو په طبيعت کښې ئې دا خبره ايخودې ده چې هم په دې وخت کښې ټولو ته خوب رازی. ګنی څنګه چې انسان د خپل کاروبار دپاره د خپل خپل طبيعت مطابق او آسانتيا لحاظ سره وختونه مقرروی ، که خوب دپاره وخت مقررول هم ددهٔ په اختيار کښې وې ، او هر انسان د خوب خپل خپل پروګرام جوړولو نو نه به د خوب کوؤنکو خوب په آرام وو او نه به ويخ خلق په آرام کښې وو. ځکه چې د انسان حاجتونه خپلو کښې يو بل سره متعلق وی. که د خوب وختونه مختلف وې نو د ويښو خلقو هغه کارونه به نيمګړی وو دکومو تعلق چې د اودۀ خلقو سره دې ، او د اودو خلقو هغه کارونه به خراب وو چې د کومو تعلق ويښو خلقو سره دې. او که صرف د انسان د خوب وخت مقرر وې .دبهائمو اوحيواناتود خوب وختونه نور وې نو بيا به هم د انسان کارونو کښې خلل وو.

﴿وَصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ﴾ الله ﷻ د انسان شکل و صورت د ټولو مخلوقاتو څخه ممتاز ، اعلی او بهترين جوړ کړې دې. دهٔ ته ئې د سوچ کولو او پوهې او عقل تعليم ورکړو. ددهٔ پښې لاسونه ئې داسې جوړ کړل چې ددې په ذريعه رنګ په رنګ څيزونه د خپل راحت دپاره جوړی. ددهٔ خوراك هم د نورو ځناورو څخه ممتاز دې. نور ځناور خړيږی او څکل کوی او دې د خپلو لاسونو څخه کار اخلی. د عامو ځناورو خوراك د مفرداتو څخه دی ، څوك غوښهٔ خوری ، څوك واښهٔ خوری او پاڼې خوری او هغه هم بالکل مفرد په خلاف د انسان ځکه دې خپل خوراك کښې مختلف قسم ميوې ، ترکارياني ، غوښې او مصالحې د لذت دپاره پيدا کوی. د يو يو ميوې څخه رنګ په رنګ خوراکونه ، اچار ، مربې او چټنيانې تياروی. فتبارك الله احسن الخالقين.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِیْنَ

آيا تا اونهٔ کتل | هغه کسانوته

| آيا ته هغې خلقو ته نه ګورې

یُجَادِلُوْنَ فِیْٓ اٰیٰتِ اللّٰهِ ؕ اَنّٰى یُصْرَفُوْنَ ۚۛ اَلَّذِیْنَ

چې جګړې کوی | په آيتونو دالله کښې | دکوم ځائې نه اړولې کيږی | هغه کسان |

چې دالله ﷻ دآيتونو په باره کښې جګړې کوی | دوئ کوم طرف ته اړولې شی | هغه څوک چې

كَذَّبُوْا بِالْكِتٰبِ وَبِمَآ اَرْسَلْنَا بِهٖ رُسُلَنَا ۚ

چې دروغ ئې اوګڼړو کتاب | او هغه | چې ليږلی دی مونږه | په هغې سره | رسولان خپل |

داکتاب ئې اوکوم (کتابونه او حکمونه) چې مونږ دنورو پيغمبرانو په لاس راليږلی دی ئې دروغ اوګڼړل

Scanned with Ca

فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ۝ إِذِ الْأَغْلَٰلُ فِي أَعْنَاقِهِمْ وَالسَّلَٰسِلُ

پس زر به پته اولگي دوئ ته | كله چي به پتي | په څټونو ددوئ کښي وي | او زنځيرونه |

نو ډير زر به په پوهه شي | چي څټونو کښي ورته تيزندڼ اوزنځيرونه واچولي شي

يُسْحَبُونَ ۝ فِي الْحَمِيمِ ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُونَ ۝

چي راخکلي کيږي به | په گرمو اوبو کښي | بيا به په وور کښي | ورغورزولي کيږي |

ويشيدلو اوبو ته به راښکلي شي | ......... بيا به اور ته ورغورزولي شي

ثُمَّ قِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ تُشْرِكُونَ ۝

بيا به اوونيلي شي | دوئ ته | كوم خاني دي هغه | چي وئ تاسو | چي شريكول به تاسو |

بيا به تري تپوس اوشي | چي [نن] د الله تعالى نه سوا ستاسو شريکان څۀ شول [کوم چي موجوړول]

مِن دُونِ اللَّهِ ۖ قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا بَل لَّمْ نَكُن نَّدْعُوا

ماسوا دالله نه | اوبه وائي دوئ | ورك شول زمونږ نه | بلكه نۀ وو مونږ | چي بللو به مو |

| ................ هغوئ به وائي چي تول رانه ورک شول | بلکه مونږ خوبه ددي نه وراندي

مِن قَبْلُ شَيْئًا ۚ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ الْكَافِرِينَ ۝ ذَٰلِكُم

مخکښي ددي نه | څه څيز | درانگي | گمراهه کوي الله | کافران | دا انجام ستاسو |

دبل هيچا عبادت نه کولو | دغه شان الله ﷻ کافران په گمراهئ کښي ساتي | دا د دي

بِمَا كُنتُمْ تَفْرَحُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ

په سبب دهغي شو | چي وئ تاسو | چي خوشحالي به مو کوله | په زمکه کښي | په ناحقه سره |

خبري بدله ده | چي تاسو به په دنيا کښي په ناحقه خوشحالئ کولي | اودا دهغي بدله ده

وَبِمَا كُنتُمْ تَمْرَحُونَ ۝ ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ

او په سبب دهغي | چي وئ تاسو | چي غرور به مو کولو | [اوس] ننوزئ | دروازو | ددوزخ ته |

چي تاسو به خان ته خوبن وي | ......... اوس د جهنم دروازي ته ورننوځئ |

خَالِدِينَ فِيهَا ۖ فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ۝ فَاصْبِرْ

هميشه به يئ په هغي کښي | پس ډير خراب دي | خائي | دتکبر کونکو خلقو | پس صبر کوه

هميشه به په کښي پراته ئي | ددغه متكبرو خلقو د استوګني خائي ډير خراب دي | نو [اي نبي ﷺ] ته صبر کوه

إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ ۚ فَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ

بيشکه وعده دالله | حقه ده | پس که اوښايو مونږ تاته | بعضي هغه عذاب | دکوم نه چي يرووو مونږ هغوئ

بيشکه دالله وعده ريښتوني ده | نو مونږ چي دوئ سره دکومي وعده کوو | که دهغي څه لږه

أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ۝ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا

يا وفات کړو مونږ تالره | پس مونږ ته به | واپس کړي کيږي هغوئ | او ليږلي دي مونږه |

حصه تاته اوښايو [يا تا [دهغي دښکاره کيدونه وړاندي] وفات کړو [نو په هرصورت] تول به مونږ ته واپس کيږي

Scanned with Ca

رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ مِنْهُمْ مَّنْ قَصَصْنَا

ډیر رسولان | مخکښې ستا نه | دهغوئ نه ځینې هغه څوک دي | چې حالات ئې بیان کړي دي مونږه

اومونږ ستا نه وړاندې ډیر پیغمبران لیږلي وو | چې دبعضو قصې مونږ تاته بیان کړي دي

عَلَيْكَ وَمِنْهُمْ مَّنْ لَّمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ ؕ

په تاباندې | او ځینې دهغوئ نه هغه څوک دي | چې بیان نه کړل مونږه حالات دهغوئ | په تاباندې

.............. | اود بعضو قصې مونږ تاته نه دي بیان کړې |

وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ اَنْ يَّاْتِيَ بِاٰيَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ فَاِذَا جَآءَ

اونه وو طاقت | یو رسول لره | چې راوړي یوه نښه | مگر | په اجازت دالله | پس هر کله چې | راغلې

اوهر پیغمبر چې یوه نښه خودلې ده | نو بس دالله ﷻ په اذن ئې ښودلې ده | نو کله چې دالله ﷻ

اَمْرُ اللّٰهِ قُضِيَ بِالْحَقِّ وَخَسِرَ هُنَالِكَ

حکم دالله | نو فیصله اوکړې شوه | په حقه | او په نقصان کښې پریوتل | په هغه وخت کښې

حکم راشي | نوسمه فیصله به اوشي | اوهلته به باطل پرست به تاوانیان پاتې شي

الْمُبْطِلُوْنَ ﴿۷۸﴾ اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَنْعَامَ

| غلط کاره خلق | الله هغه ذات دې | چې جوړ ئې کړل ستاسو دپاره | گرځیدونکې ځناور

.............. | الله ﷻ هغه ذات دې چې ستاسو دپاره ئې [قسم قسم] ځاروی پیدا کړي دي

## آسان ترجمه قرآن

آیا تا هغه خلق لیدلې دی، چه د الله تعالی په آیتونو کښې جګړې راوپاسی؟ کوم خوا اړولې شي د حق نه؟ دا هغه خلق دی، چه هغوی دې کتاب ته هم دروغژن وئیلې دی، او هغې (تعلیم ته) هم چه په هغې باندې مونږ خپل رسولان رالیږلي وو، نو زر ده چه دوی به پوهه شي. چه کله ددوی په څټونو کښې طوقونه او زنځیرونه وي، دوی لره به په ګرمو اوبو کښې راښکلې شي، بیا به په اور کښې وسوزولې شي. بیا به اووئیلې شي دوی ته، چه کوم ځائې دی د الله تعالی نه ماسوا ستاسو هغه معبودان چه تاسو به الله تعالی سره په خدائۍ کښې شریک ګنړل؟ دوی به اووائي: هغه ټول خو زمونږ نه ورک شو، بلکه مونږ خو مخکښې هیڅ څیز ته رابللو دغه شان الله تعالی کافرانو لره ګمراه کوي. (دوی ته به د مخکښې نه دا وئیلې شوې وی چه) دا ټول ددې وجې نه اوشو، چه تاسو به په زمکه کښې ناحق خبره باندې خوشحالی کوله. او ددې وجې نه چه تاسو به لوئې کوله. داخل شئ، د جهنم په دروازو کښې همیشه دپاره ځکه چه د تکبر کونکو دپاره بد ځائې د اوسیدو دې. لهٰذا (اے پیغمبره) ته صبر کوه، یقین اوکړه، چه د الله تعالی وعده رښتونې ده، اوس چه مونږ دوی (کافرانو) لره کوم عذاب نه ویروو، نو یا به دهغې څه حصه مونږ تاته (ستا په ژوند) کښې اوښایو، یا به وفات کړو تالره، په هر صورت کښې مونږ ته ددوی واپس کیدل دی. اوحقیقت دادې چه مونږ ستا نه مخکښې هم ډیر پیغمبران لیږلې دی، بعضې دهغوی نه هغه دی چه دهغوی واقعات مونږ تاته بیان کړې دی، او بعضې هغه دی، چه دهغوی واقعات مونږ تاته نه دی بیان

Scanned with Ca

کړي. او هیڅ یو پیغمبر ته دا اختیار نشته چه هغه د الله تعالی د اجازت نه بغیر څه معجزه راوړي بیا چه کله د الله تعالی حکم راشي، نو رښتوني فیصله به اوشي او کوم خلق چه د باطل تابعداري کوي. هغوی به په دغه موقع سخت نقصان کښې وي.

## خلاصه تفسیر

﴿اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِيۡنَ يُجَادِلُوۡنَ فِيۡۤ اٰيٰتِ اللّٰهِ ؕ﴾[ایاتا] د [هغوخلقو] حالت [لره ونه لیدو کوم چه د الله تعالی په ایتونو کښې جګړې راوباسی] دحق نه ﴿اَنّٰى يُصۡرَفُوۡنَ ۛۚ﴾[کوم خوا واپس روان دی ﴿اَلَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِالۡكِتٰبِ﴾ کومو خلقو چه دې کتاب] یعنی قرآن [لره دروغژن کړو﴿وَبِمَاۤ اَرۡسَلۡنَا بِهٖ رُسُلَنَا ۛ﴾ او هغه څیزلره هم] ئې دروغژن کړو [کوم چه مونږ خپلو پیغمبرانوته ورکړل او لیږلي وو] په دې کښې کتابونه احکام او معجزې ټول داخل شول ځکه چه د عربومشرکانو بل یو پیغمبرلره هم نه منلو ﴿فَسَوۡفَ يَعۡلَمُوۡنَ ۙ﴾[پس دوی ته به اوس] یعنی په قیامت کښې چه نزدې دې [معلومه شی﴿اِذِ الۡاَغۡلٰلُ فِيۡۤ اَعۡنَاقِهِمۡ وَالسَّلٰسِلُ ؕ﴾ هرکله چه به طوقونه ددوی په څټونو کښې وی او] په دغو طوقونو کښې به [زنځیرونه] پیلي شوی وی چه بل سر به ئې دفرښتو په لاسو کښې وی او په دې زنځیرونو سره به ﴿يُسۡحَبُوۡنَ ۙ فِي الۡحَمِيۡمِ ۬ۙ﴾[دوی لره راښکو دې شی چه ګرمو اوبو ته ورسولې شی﴿ثُمَّ فِي النَّارِ يُسۡجَرُوۡنَ ۚ﴾ بیا به دوی اور ته ورغورزولې شی ﴿ثُمَّ قِيۡلَ لَهُمۡ اَيۡنَمَا كُنۡتُمۡ تُشۡرِكُوۡنَ ۙ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ؕ﴾ بیا به د هغوی نه تپوس وشی چه هغه] معبودان [غیرالله چرته لاړل کومو لره چه تاسو] په خدایۍ کښې [شریك ګرځول] یعنی ستاسو مدد ولې نه کوی ﴿قَالُوۡا ضَلُّوۡا عَنَّا﴾[هغوی به ووائی چه هغه خو ټول غائب شول ﴿بَلْ﴾ بلکه] رښتونې خبره خو داده چه ﴿لَّمۡ نَكُنۡ نَّدۡعُوۡا مِنۡ قَبۡلُ شَيۡـًٔا ؕ﴾[مونږه ددې نه وړاند] په دنیاکښې دکومو بتانو عبادت کولو نو اوس معلومه شوه چه [د هیڅا عبادت مو هم نه دې کړې] یعنی معلومه شوه چه هغوی محض لاشې وو داسې خبره د غلطۍ ظاهریدو په وخت کښې کولې شی لکه یو سړې چه په تجارت کښې خساره وکړی او دده نه تپوس وشی چه ته د فلانی مال تجارت ولې کوې او هغه ووائی چه ماخو د هیڅ شی هم تجارت نه کولو یعنی هرکله چه ثمره ئې حاصله نه شی نو داسې ګڼړلې شې چه ګویا دغه عمل د سره شوې نه دې وړاند دالله تعالی ارشاد دې چه ﴿كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ الۡكٰفِرِيۡنَ ۞﴾[الله تعالی دغه شان کافرانولره په غلطۍ کښې نښلولی ساتی] چه دکوم شی دنشوالی او غیر نافع کیدو به هلته هغوی په خپله اقرار کوی نن دلته د هغوی په عبادت کښې مشغول دی ارشاد به وشی چه ﴿ذٰلِكُمۡ بِمَا كُنۡتُمۡ تَفۡرَحُوۡنَ فِى الۡاَرۡضِ بِغَيۡرِ الۡحَـقِّ﴾ [دا] سزا [ددې په بدله کښې ده چه تاسو په دنیا کښې ناحقه خوشحالۍ کولې ﴿وَبِمَا كُنۡتُمۡ تَمۡرَحُوۡنَ ۚ﴾ او دهغې په بدله کښې ده چه تاسو تکبر کولو] او ددې نه وړاند به هغوی ته حکم وشی ﴿اُدۡخُلُوۡۤا اَبۡوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَا ۚ﴾[چه دجهنم په دورازو کښې ورننوځئ] او [همیشه همیشه په دې کښې وسیږئ ﴿فَبِئۡسَ مَثۡوَى الۡمُتَكَبِّرِيۡنَ ۞﴾ پس د] ایتونو دالله تعالی نه د [تکبر کوونکو دپاره هغه بدلې ځاۍ داسیدو دې] او هرکله چه به د هغوی نه داسې بدله واخستې شی [نو ﴿فَاصۡبِرۡ اِنَّ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ ۚ﴾[صبرکوه بیشکه ددالله تعالی وعده رښتونې ده﴿فَاِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعۡضَ الَّذِىۡ نَعِدُهُمۡ﴾ بیا چه دکوم] عذاب مطلقا [مونږ دهغوی سره وعده کوو] چه کفر موجب د عذاب دې [په هغې کښې څه لږ شان] عذاب [که مونږتاته وښایو] یعنی ستاپه ژوندکښې په هغوی باندې د هغه نزول وشی ﴿اَوۡ

Scanned with Ca

﴿نَتَوَفَّيَنَّكَ﴾ [يا] دهغې د نزول نه وړاندې [مونږ تالره وفات كړو] بيا خواه وروستوئى نزول وشى اوكه ونه شى [پس] دواړه احتمالونه دى يو شق ضرورى نه دې ليكن په هر حال او هر احتمال باندې ﴿فَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ﴾ [زمونږ خوا ته د دوى راتلل دى] او دغه وخت به په يقين سره په دوى عذاب واقع شى [او] داخبره هم ياده كړه او تسلى حاصله كړه چه ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ﴾ [مونږ تانه وړاند ډير پيغمبران ليږلى دى ﴿مِنْهُم مَّن قَصَصْنَا عَلَيْكَ﴾ چه خنې په كښې هغه دى چه دهغو قصې مونږ تاته] اجمالا يا تفصيلا [بيان كړى دى ﴿وَمِنْهُم مَّن لَّمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ﴾ او خنې هغه دى دكومو چه مونږ تاته بيان نه دې كړې او] دومره امر خو په ټولو كښې مشترك دې چه ﴿وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ [ديو رسول نه دانه دى شوى چه يوه معجزه ئې بغير د اذن د الله تعالى نه ظاهره كړې وى] او دامت هر فرمائش ئې پوره كړې وى پس خنې په دې وجه هم ددوى تكذيب كوى دغه شان داخلق ستاتكذيب كوى نو ته تسلى ساته او صبر كوه ﴿فَإِذَا جَاءَ أَمْرُ اللَّهِ﴾ [بيا چه څه وخت دالله تعالى حكم] دعذاب دنزول دپاره [راشى] خواه په دنياكښې ياپه اخرت كښې لكه داقول دالله تعالى [فاما نرينك بعض الذى نعدهم الخ] ﴿قُضِيَ بِالْحَقِّ﴾ [نوتيك تيك] عملى [فيصله به وشى ﴿وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْمُبْطِلُونَ﴾ او په دغه وخت به اهل باطل په خساره كښې پاتې شى]

## معارف او مسائل

﴿يُسْحَبُونَ ۝ فِي الْحَمِيمِ ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُونَ﴾ حميم ويشيدلو اوبو ته وئيلې شى. ددې آيت مبارك مطلب دادې چې جهنميان به اول په حميم كښې غورزولې شى. ددې څخه روستو به جحيم كښې، او ددې څخه په ظاهره دا مطلب اخستې شى چې حميم د جهنم څخه بهر يو ځائې دې. د سورة صافات آيت مبارك ﴿ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَإِلَى الْجَحِيمِ﴾(۱) څخه هم دا مفهوم واضح دې چې حميم د جهنم څخه بهر يو ځائې دې. ددې د اوبو څكولو دپاره به جهنميان بهر راوستې شى. او د قرآن عظيم الشان د خينې آيتونو څخه دا معلوميږى چې حميم او جحيم يو ځائې دې. لكه ﴿هَٰذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُونَ ۝ يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ آنٍ﴾(۲) دې كښې هم د دې وضاحت دې چې حميم هم په جهنم كښې دې.

غور كولو سره معلوميږى چې په دې دواړو خبرو كښې څه تضاد او تعارض نشته دې. د جهنم ډير طبقات دى او په دې كښې به قسم قسم عذابونه وى. په دې كښې يو طبقه د حميم هم كيدې شى. او كيدېشى چې دې ته يو ممتاز حيثيت حاصل وى او دهغه په وجه وئيلې شوى وى چې دا د جهنم څخه بهر ده. اوچونكه دا هم د جهنم يو طبقه ده نو په دې وجه دې ته جهنم هم وئيلې شى. ابن كثير رحمه الله فرمائيلې دى چې جهنميان به په زنځيرونو كښې تړلې شوى وى اوكله به حميم كښې غورزولې شى او كله به جحيم كښې(۳).

---

۱) ترجمہ: او د دوی آخری ټهكانه به دوزخ وی۔

۲) ترجمہ: دا هغه دوزخ دے چه مجرمانو به دروغ گنړلو، دوی به د دغه اور او دگرمو يشيدلو اوبو ترمينځه په گرځيدلو مجبوره وی۔

۳) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۱۵۷

Scanned with Ca

﴿قَالُوْا ضَلُّوْا عَنَّا﴾ یعنی کله چې مشرکان جهنم ته اورسي نو وائی به چې نن خو هغه بتان او شیطانان غائب شو دکومو چې مونږ عبادت کولو. مطلب دا چې مونږ ئې نه وینو. اګر چې هغوئ به هم دجهنم یو ګوټ کښې پراته وی. لکه څنګه چې د قرآن عظیم الشان نورو آیتونو مبارکو کښې دی: ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾(۱).

﴿بِمَا كُنتُمْ تَفْرَحُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنتُمْ تَمْرَحُونَ﴾ تفرحون د فرح څخه مشتق دې. ددې معنی ده خوشحالیدل. او تمرحون د مرح څخه مشتق دې او ددې معنی ده غرور کول او په مال او دولت باندې فخر کول او د نورو په حقونو کښې کمی کول. مرح مطلقا مذموم او حرام دی. او فرح یعنی خوشحالو کښې دا تفصیل دې چې د مال او دولت په نشه کښې الله ﷻ هیر کړی او په ګناهونو او لذتونو کښې اخته شی او په دې خوشحالیږی، دا حرام او ناجائز دی او په دې آیت مبارك کښې هم دا فرح مراد دې لکه چې د قارون په قصه کښې هم د فرح دا معنی راغلې ده.

﴿لَا تَفْرَحْ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِينَ﴾ یعنی ډیر خوشحالیږمه. الله ﷻ خوشحالیدونکی نه خوښوی. او بله درجه د فرح داده چې ددنیا نعمتونه او راحتونه د الله ﷻ انعام اوګڼړی او په دې باندې د خوشحالئ او مسرت اظهار اوکړی. دا جائز بلکه مستحب او مامور به دی. هم دداسې فرح متعلق قرآن عظیم الشان فرمائی چې ﴿فَبِذَٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوا﴾ یعنی پدې خوشحالیدل پکار دی؛ دې مذکوره آیت مبارك کښې مرح سره هیڅ قید نشته دې، مطلقا دعذاب سبب دی او فرح سره د بغیرالحق قید لګولو سره دا ښکاره کول مقصود دی چې ناحقه او ناجائزه لذتونو باندې خوشحالیدل حرام او حق او جائز نعمتونو باندې دشکر په طور خوشحالیدل عبادت او ثواب دې.

﴿فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَإِمَّا نُرِيَنَّكَ﴾ ددې آیت مبارك څخه معلومیږی چې رسول اکرم ﷺ په خوشحالئ سره ددې منتظر وو چې کافرانو ته دې عذاب ملاؤ شی. په دې وجه د رسول اکرم ﷺ دتسلئ دپاره په دې آیت مبارك کښې فرمائی چې تاسو ﷺ لږ صبر اوکړئ. الله ﷻ چې ددوئ د عذاب دپاره کومه وعده کړې ده هغه به ضرور پوره کیږی. که دا ستاسو په ژوند کښې وی او که ستاسو د ژوند څخه روستو. د کافرانو د عذاب انتظار په ظاهره د رسول اکرم ﷺ د شان څخه خلاف دی. لیکن هر کله چې مجرمینو ته د سزا ورکولو څخه مقصد غیر مجرمانو مؤمنانو ته تسلی ورکول وی په کومو مؤمنانو چې ظلم کړې شوې وو. نو مجرم ته سزا د شفقت او رحمت څخه خلاف نه دی. یو مجرم ته سزا ورکول د چا په نزد هم رحمت څخه خلاف نه دی.

| اَللّٰهُ الَّذِیْ | جَعَلَ لَكُمُ | الْاَنْعَامَ |
| --- | --- | --- |
| الله هغه ذات دې | چې جوړ ئې کړل ستاسو دپاره | ګرځیدونکي څناور |
| ...... | الله ﷻ هغه ذات دې چې ستاسو دپاره ئې [قسم قسم] څاروی پیدا کړی دی | |

| لِتَرْكَبُوْا | مِنْهَا | وَمِنْهَا | تَاْكُلُوْنَ | وَلَكُمْ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| چې سورلي اوکړئ | په بعضو دهغې نه | او بعضې دهغې نه | خورئ تاسو | او دی ستاسو دپاره |
| په هغې کښې په بعضو باندې سورلي کوئ | | او د بعضو نه خوراکونه کوئ | | او ستاسو دپاره |

(۱) ترجمه: بیشکه چه تاسو هم او دالله نه بغیر چه تاسو د چا عبادت کوئ هغه ټول هم ددوزخ خشاک دے تاسو ټول به په هغے کښې داخلیږئ.

Scanned with CamScanner

فِيهَا مَنَافِعُ وَلِتَبْلُغُوا عَلَيْهَا حَاجَةً فِي صُدُورِكُمْ

په هغې کښې | فائيدې ډيرې | اوچې اورسئ تاسو | په هغې باندې | داسې حاجت ته | چې په سينو ستاسو کښې وي

په کښې نورې هم ډيرې فائدې شته | او دې دپاره ئې پيدا کړې دي چې دخپلو زړونو مرادونه پرې ترسره کړئ

وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُونَ ۝ وَيُرِيكُمْ

او په هغوئ باندې | او په کشتئ باندې | تاسو سواره ګرزولې کيږې | او هغه ښائي تاسو ته |

او په دغه څارويو او بيړو باندې تاسو سورلې کوئ | او هغه [الله تعالىٰ] درته دخپل وحدانيت نور قدرتونه

اٰيٰتِهٖ ۖ فَاَيَّ اٰيٰتِ اللّٰهِ تُنْكِرُوْنَ ۝ اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ

نښې خپلې | نو دکومو نښو دالله نه | به تاسو انکار کوئ | آيا نو اونه ګرزيدل دوئ | په زمکه کښې

هم ښائي | نو تاسو به دالله د وحدانيت دکومو کومو نښونه انکار کوئ | آيا دوئ په زمکه کښې ګرځيدلي نه دي

فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ كَانُوْٓا

چې کتلې ئې وې | چې څرنګې وو | انجام دهغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وو | وو هغوئ |

چې دانې کتلې وې | چې ددوئ نه دوړاندينو خلقو انجام څه شو ؟ | هغوئ خو ددوئ نه

اَكْثَرَ مِنْهُمْ وَاَشَدَّ قُوَّةً وَّاٰثَارًا

زيات په شماره کښې | ددوئ نه | او زيات سخت وو | په قوت کښې | او په اثراتو پريښودلو کښې |

ډير وو | او په طاقت کښې ترې نه زيات وو | ............... او دزمکې په مخ ئې ډيرې

فِي الْاَرْضِ فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۝

په زمکه کښې | پس هيڅ دفع نه کړل | ددوئ نه | هغې چې وو دوئ | چې کول به ئې |

نخښې پريښودې وې | نو د هغوئ دا کټه هيڅ په کار رانغله

فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَرِحُوْا بِمَا

پس هر کله چې راغلل هغوئ ته | رسولان دهغوئ | دواضحه نښو سره | نو خوشحاله شو | په هغې |

کله چې ورته پيغمبرانو [زما په وحدانيت او خپل رسالت] ښکاره نخښې راوړې نو هغوئ په خپل

عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا

چې دهغوئ سره وو | دعلم نه | او چاپيره شو | په هغوئ | هغه عذاب | چې وو هغوئ |

علم باندې خوشحالي شروع کړه | او په کوم عذاب پورې چې ئې توقې کولې

بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝ فَلَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا

په هغه پورې | چې توقې به ئې کولې | پس هر کله چې | اوليدو هغوئ | عذاب زمونږ |

هغه ترې نه راتاؤ شو | ..........نو کله چې دغه خلقو زمونږ عذاب اوليدو

قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ وَكَفَرْنَا بِمَا

نو اوونیل هغوئ | ایمان راوړو مونږه | په الله باندې | یوازې | او انکار کوؤ مونږه | په هغې |

نو دائې اووئیل چې مونږ په یو الله ﷻ باندې ایمان راوړې دې | او کوم شریکان

كُنَّا بِهٖ مُشْرِكِيْنَ ﴿۸۴﴾ فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ اِيْمَانُهُمْ

چې وؤ مونږ | دهغه سره شریك کونکی | پس نه وؤ | چې نفع اورسوی دوئ ته | ایمان ددوئ |

چې مونږ جوړول د هغوئ نه ویزاره یو | خو څه وخت چې هغوی زمونږ عذاب اولیدلو نو دغه ایمان

لَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا ۭ سُنَّتَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ

هر کله چې اولیدو هغوئ | عذاب زمونږ | دا طریقه دالله ده | هغه | چې تیره شوی ده |

ورته هیڅ فائده ورنکړه | دا د الله ﷻ عام قانون دې چې دبندګانو په

فِيْ عِبَادِهٖ ۚ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۸۵﴾

په بندګانو دهغه کښې | او په تاوان کښې راغلل | په دغه وخت کښې | کافران |

باره کښې د پخوا راروان دې | او په هغه وخت کښې کافران تاوانیان ثابت شول

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالى هغه ذات دې چه هغه ستاسو دپاره څاروی پیدا کړی دی، دې دپاره چه تاسو سورلی اوکړئ د بعضو دهغې نه، او بعضې دهغې نه هغه دی چه تاسو ئې خورئ او ستاسو دپاره په دې کښې ډیرې فائدې دی، او یو مقصد دا هم دې، چه ستاسو په زړونو کښې (چه چرته د تللو) حاجت وی هغې ته اورسیږئ، او تاسو په دغې څاروؤ باندې او په کشتو باندې سورولې شئ. او الله تعالى تاسو ته خپلې نښې ښائی، بیا تاسو به د الله تعالى د کومو کومو نښو نه انکار کوئ؟ آیا پس دوی په زمکه کښې نه ګرځی، چه ددوی نه مخکښې کوم خلق وو دهغوی انجام څرنګه شو؟ هغوی د دوی نه په تعداد کښې زیات وو، او په طاقت کښې هم ددوی نه زیات سخت وو، او په هغې نښو کښې هم، چه هغوی په زمکه کښې پریخودلې دی. بیا چه کوم عملونه هغوی کول، هغه د هغوی هیڅ پکار رانغلل نو چه کله د هغوی پیغمبرانو هغوی ته ښکاره دلائل راوړل، نو بیا هم هغوی په خپل هغې علم باندې فخر کولو، کوم چه هغوی سره وو، او کوم څیز پورې چه هغوی ټوقې کولې، هم هغې راګیر کړل، بیا چه کله هغوی زمونږ عذاب په خپلو سترګو باندې اولیدو، نو هغه وخت کښې ئې اووئیل چه: مونږ په یو خدائې باندې ایمان راوړې دې. او دهغې ټولو نه مو انکار اوکړو، کوم چه مونږ د الله تعالى سره شریکان ګنړل. لیکن کله چه زمونږ عذاب هغوی اولیدو نو دهغې نه پس د هغوی ایمان راوړلو هغوی ته هیڅ فائده ورنکړه، خبردار شئ، چه د الله تعالى هم دا معمول دې، چه دهغه په بندګانو کښې د مخکښې نه راروان دې، او په دغه موقع کافرانو سخت نقصان اوچت کړو.

## خلاصه تفسیر

﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَنْعَامَ﴾ [الله تعالى هغه ذات دې کوم چه تاسو دپاره څاروی پیدا کړل ﴿لِتَرْكَبُوْا مِنْهَا﴾ چه په دغو کښې په خنوبانو سورلئ کوئ ﴿وَمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ﴿۷۹﴾﴾ او په دغو کښې ځنې

Scanned with Ca

داسې دي چه دغولره [خورئ هم]﴿وَلَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ﴾ او تاسو دپاره په دغو کښې نورې هم ډيرې فائدې دی] چه د دغو وړئ او ويښته په كار راځی [او] په دې وجه ئې پيدا کړل﴿وَلِتَبْلُغُوا عَلَيْهَا حَاجَةً فِي صُدُورِكُمْ﴾ [چه تاسو په هغوی] سوارۀ شئ [خپل مطلب ته ورسيږئ كوم چه ستاسو په زړونو کښې دی] لکه د ځاسره دملاويدودپاره تلل دتجارت دپاره تلل وغيره وغيره [او] په سوريدو کښې څه د دغو تخصيص نشته بلكه ﴿وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُونَ﴾[په دغو] هم [او په كشتو] هم [سواره سواره كرځئ او] ددې نه علاوه ﴿وَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ﴾[تاسوته خپلې] دقدرت [نورې نښې ښائی] چنانچه هر مصنوع دهغه د صنعت يوه نښه ده﴿فَأَيَّ آيَاتِ اللَّهِ تُنكِرُونَ﴾ [پس تاسو دالله تعالى دكومو كومو نښو نه انكاركوئ] او داخلق چه پس ددليلونو دقائميدو دتوحيدنه منكر دى نو ايا دوی دشرك دوبال نه خبر نه دی او ﴿أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ﴾[ايا دا خلق په ملك كښې نه دی كرځيدلی ﴿فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾او ليدلی ئې نه دی چه كوم] مشرك [خلق د دوی نه وړاند تير شوی دی] ددې شرك په وجه [د هغوی څه انجام شو] حال دادې چه ﴿كَانُوا أَكْثَرَ مِنْهُمْ﴾[هغه خلق د دوی نه] په شمير كښې هم [زيات وو﴿وَأَشَدَّ قُوَّةً وَآثَارًا فِي الْأَرْضِ﴾ او په قوت او نښو كښې] هم[كومې چه ئې په مزكه كښې پريښودی دی] لكه ابادئ وغيره [زياتې وې﴿فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ پس ددغو] داټوله [كمائی د هغوی هيڅ په كار رانغله] او دعذاب الهی نه بچ نه شول ﴿فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ﴾[غرض هركله چه دهغو پيغمبرانو هغوته ښكاره دليلونه راوړل ﴿فَرِحُوا بِمَا عِندَهُم مِّنَ الْعِلْمِ﴾ نو هغه خلق په خپل] هغې [علم] دمعاش [باند ډير نازكوونكی وو كوم چه هغوی ته حاصل وو] يعنی معاش ئې مقصود وګڼړلو او په دې كښې چه دوی ته كوم لياقت حاصل وو په هغې خوشحاله شول او دبيا ژوندی كيدو انكارئ وكړو ددې طلب ئې ليونتوب او ددې په انكارباند د عذاب په وعيد پورې ئې مسخرې وكړې [او] ددې په وبال كښې ﴿وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ﴾[په هغوی هغه عذاب راغې په كوم پورې چه ئې مسخرې كولې﴿فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا قَالُوا﴾ بياهركله چه هغوی زمونږ عذاب وليدونو وې وئيل] اوس ﴿آمَنَّا بِاللَّهِ وَحْدَهُ﴾[مونږ په يو الله تعالى ايمان راوړو ﴿وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهِ مُشْرِكِينَ﴾ اود هغه ټولو ځيزونو نه مونږ منكر شو كومو لره چه مونږ د هغه سره شريكول ﴿فَلَمْ يَكُ يَنفَعُهُمْ إِيمَانُهُمْ﴾ پس د هغوی دا ايمان راوړل نفع مندنه شول ﴿لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا﴾هركله چه هغوی زمونږ عذاب وليدو] ځكه چه دغه ايمان اضطراری دې او بنده مكلف دې په ايمان اختياری ﴿سُنَّتَ اللَّهِ الَّتِي قَدْ خَلَتْ فِي عِبَادِهِ﴾[الله تعالى خپل دامعمول مقرر كړې دې كوم چه دهغه په بندګانو كښې د وړاندنه راروان دې ﴿وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكَافِرُونَ﴾ او دغه وخت] يعنی هركله چه ايمان نفع مند نه شو [كافران په خساره كښې پاتې شول] پس دې مشركانو لره هم په دې پوهيدل او ويريدل پكار دی ددوی دپاره به هم داسې كيږی بيا به ئې هيڅ تلافی ونه كړې شئ

**معارف او مسائل**

﴿فَرِحُوا بِمَا عِندَهُم مِّنَ الْعِلْمِ﴾ يعنی دا د خپل عاقبت څخه بې خبره منكرانو ته چې كله د الله ﷻ رسول ﷺ دلائلو سره تشريف راوړو او دوئ ته ئې د ايمان او توحيد تعليم پيش كړو نو دې خلقو خپل علم د نبيانو ﷺ د علم څخه بهتر اوګڼړلو او د نبيانو ﷺ د خبرو رد ئې كولو. په دې علم باندې كافران خوښ او فاخره وو او ددې په مقابله كښې به ئې د نبيانو ﷺ تعليم رد

کولو ، دا خو یا ددوئ جهالت وو چې ناحق او باطل لره ئې حق او صحیح گنړلو . لکه څنګه چې د یونانی فلسفې ډير علوم او تحقیقات کوم چې د الهایات سره تعلق لری هم ددې په شان دی او ددې هیڅ دلیل نشته دې . دې ته جهل مرکب وئیلې شی . دې ته علم وئیل د علم توهین دې . یا بیا ددوئ ددې علم څخه مراد ددنیا د تجارت او صنعت وغیره علم دې او په دې کښې دا خلق واقعی ماهران وو . او قرآن عظیم الشان ددوئ ددې علم ذکر سورة روم کښې کړې دې چې : ﴿يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ۖ وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَٰفِلُونَ﴾ یعنی دا خلق د دنیا په ظاهری ژوند ا وددې د منافعو حاصلولو باندې پوهیږی ، خو د آخرت څخه بې خبره او غافله دی اګر چې دې کښې به دوئ همیشه اوسیږی او دهغه ځائې راحتونه او خوشحالئ همیشه دی . که په دې آیت مبارك کښې هم د ظاهر علم څخه مراد دنیا واخستې شی نو مطلب به داوی چې دا خلق د قیامت او آخرت څخه منکر ا و دهغه ځائې د راحت او خوشحالئ څخه غافل دی . په دې وجه په دې ظاهری هنر او خوشحالئ باندې فخر کولو سره د نبیانو ﷺ علومو ته ئې توجه نه ورکوله . [مظهری] ([1]) .

﴿فَلَمْ يَكُ يَنفَعُهُمْ إِيمَٰنُهُمْ﴾ یعنی کله چې عذاب ښکاره شو او دې څخه روستو دا خلق ایمان راؤړی خو ددې وخت ایمان د الله ﷻ په نزد مقبول او معتبر نه دې . حدیث پاك کښې دی چې ﴿یقبل الله توبة العبد مالم یغرغر﴾[ابن کثیر] ([2]) . یعنی الله ﷻ د بنده توبه دهغه وخت څخه مخکښې مخکښې قبلوی تر کومې چې د نزع روح او غرغرې وخت مخکښې نه راشی . دا شان کله چې آسمانی عذاب راشی نو دې څخه پس د چا توبه او ایمان قبول نه دې .

اللهم انا نسئلك العفو والعافية والتوبة به قبل الموت واليسر والمعافاة عند الموت

والمغفرة والرحمة بعد الموت ببركة ال حلم وصلى الله تعالى على النبى الكريم

تمت سورة المؤمن بحمد الله وعونه للثالث عشر من ربع الاخر ۱۳۹۲ هجری یوم السبت فلحمد اوله وظاهره وباطنه

......

[1] ) التفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۲۷۸

[2] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۱۶۰، وجامع الترمذی، كتاب الدعوات، باب فی فصل التوبة والاستغفار: ج ۲، ص ۱۹۴

Scanned with Ca

| اياتونه | سورة حٰمٓ السجدة مكية وهي اربع وخمسون اٰية وست ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۵۴ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان　زيات رحم كونكي دي | ۶ |

حٰمٓ ۝١ تَنۡزِيۡلٌ مِّنَ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ۝٢ كِتٰبٌ

ح م | نازل كړې شوې دې | دطرفه دبښونكي | مهربانه خدائي نه | يو داسې كتاب دې |

حم　داكتاب درحم كونكى مهربان [الله ﷻ] د طرفه نازل شوې دې | دا يو داسې كتاب دې

فُصِّلَتۡ اٰيٰتُهٗ قُرۡاٰنًا عَرَبِيًّا لِّقَوۡمٍ

چې واضحه بيان كړې شوي دي | ايتونه ددې | قران دې | دعربۍ ژبې | دپاره دهغه قوم |

چې اياتونه ئې واضحه بيان شوي دي | داقران پاك په عربۍ ژه كښې دې | هغه خلقو

يَّعۡلَمُوۡنَ ۝٣ بَشِيۡرًا وَّنَذِيۡرًا ۚ فَاَعۡرَضَ اَكۡثَرُهُمۡ فَهُمۡ

چې هغوئ علم لري | زيرې وركونكې دې | او يرونكې دې | پس مخ واړوؤ | زياتو ددوئ | پس دوئ

دپاره چې پوهيږي [داقران پاك] زيرې وركونكې دې او [دعذاب نه] ويرنكې دې | خو پدوئ كښې زياتو خلقو ترې

لَا يَسۡمَعُوۡنَ ۝٤ وَقَالُوۡا قُلُوۡبُنَا فِيۡۤ اَكِنَّةٍ مِّمَّا

غوږ نۀ ږدي خبرې ته | اووائي | چې زړونه زمونږه | په پردو كښې دي | دهغې نه |

مخ اوګرځولو | اودوئ نه اوري | او [كافرانو] اووئيل چې زمونږ زړونه د هغه خبرې نه په پردو كښې

تَدۡعُوۡنَاۤ اِلَيۡهِ وَفِيۡۤ اٰذَانِنَا وَقۡرٌ وَّمِنۡۢ بَيۡنِنَا

چې تاسو رابلئ مونږه | هغې ته | او په غوږونو زمونږ كښې | دروندوالې دې | او په منځ زمونږ |

دي كوم طرف ته چې تاسو مونږ رابلئ | اوزمونږ په غوږونو كښې كونوالې دې

وَبَيۡنِكَ حِجَابٌ فَاعۡمَلۡ اِنَّنَا عٰمِلُوۡنَ ۝٥

او په منځ ستاسو كښې | يوه پرده ده | نو ته خپل كار كوه | بيشكه مونږه خپل كار كونكي يو |

اوستا او زمونږ په مينځ كښې د زړونو پرده ده | نو ته خپل كار كوه | اومونږ به خپل كارونه كوو

قُلۡ اِنَّمَاۤ اَنَا بَشَرٌ مِّثۡلُكُمۡ يُوۡحٰۤى اِلَيَّ اَنَّمَاۤ

ورته اووايه | بيشكه زه | يو بشر يم | په مثل ستاسو | وحي كيږي | ماته | چې بيشكه |

[اے نبي ﷺ] ته ورته اووايه چې زه خو هم ستا په شان بشر يم | خو ماته دا وحي شوې ده

اِلٰهُكُمۡ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَاسۡتَقِيۡمُوۡۤا اِلَيۡهِ وَاسۡتَغۡفِرُوۡهُ ؕ

معبود ستاسو | معبود يو دې | پس نيغ مخ اوګرزوئ | هغه ته | او بخښنه اوغواړئ دهغه نه |

چې ستاسو معبود يو دې | نو دهغه حكم منلو ته تابعدار اوسئ | اوبخښنه ترې غواړئ

وَوَيۡلٌ لِّلۡمُشۡرِكِيۡنَ ۝٦ الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡتُوۡنَ الزَّكٰوةَ وَهُمۡ

اوهلاكت دې | دپاره　دمشركانو | هغه | چې نۀ وركوي | زكاة | او هغوئ |

اودمشركانو دپاره هلاكت دې | ............ خوك چې زكوة نه وركوي | اود آخرت نه

Scanned with CamScanner

| بِالْاٰخِرَةِ | هُمْ | كٰفِرُوْنَ۝ | اِنَّ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| په آخرت باندي | هغوئ | منکر دی | بیشکه هغه کسان | چي ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل |
| منکر وی \| بیشکه کومو خلقو چې ایمان راوړو \| او نیک عمل ئې اوکړو \| | | | | | |
| الصّٰلِحٰتِ | لَهُمْ | اَجْرٌ | غَيْرُ مَمْنُوْنٍ۝ | | |
| نیک | دپاره دهغوئ | اجر دې | چې نه دې بندیدونکې | | |
| هغوئ دپاره داسې بدله مقرر ده \| چې هیڅ کله به ختمه نشی \| | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

حٰمٓ، دا کلام دهغه ذات د طرف نه نازلولې شی، چه په ټولو باندې مهربان او ډیر مهربان دې. د عربی قرآن په شکل کښې داهغه کتاب دې، چه ددې آیتونه د علم حاصلونکو دپاره تفصیل سره بیان کړې شوې دی. دا قرآن خوشخبری ورکونکې هم دې او خبردارونکې هم دې، بیا هم په دوی کښې اکثر خلق مخ اړوی، چه دهغې د وجې نه هغوی اوری نه. او (پیغمبر (صلی الله علیه وسلم ته) وائی چه: کوم شیز طرف ته چه ته مونږ رابلې، د هغې دپاره زمونږ زړونه په غلافونو کښې پټ دی زمونږ غوږونه کانړه دی، او زمونږ او ستا په مینځ کښې یوه پرده حائله ده، لهٰذا ته خپل کار کوه، او مونږ به خپل کار کوو. (اے پیغمبره) اووایه چه زه خو ستاسو پشان یو انسان یم، (البته) ما باندې دا وحی نازلیږی، چه ستاسو خدائې بس یو خدائې دې، لهٰذا تاسو خپل ځان صرف هغه طرف ته کړئ، او دهغه نه بخښنه غواړئ، او لویه تباهی ده، د دې مشرکانو دپاره ځا هغه خلق دی، چه زکوٰة نه اداکوی او ددوی حال دادې، چه د آخرت نه بالکل منکر دی. البته چه کومو خلقو ایمان راوړې دې، او نیک عملونه ئې کړې دی، دهغوی دپاره بے شکه داسې اجر دې، چه دهغې سلسله چرې هم ختمیدونکې نه ده.

### خلاصه تفسیر

﴿حٰمٓ۝﴾ [حٰم] ددې معنی الله ته معلومه ده ﴿تَنْزِيْلٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ۝﴾ [داکلام د رحمن او رحیم نه نازلیږی دا] کلام ﴿كِتٰبٌ فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ﴾ [یو کتاب دې چه ایتونه ئې صفا صفا بیان شوی دی یعنی ﴿قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا﴾ داسې قرآن دې کوم چه په عربئ] ژبه کښې [دې] ددې دپاره چه کوم خلق بلاواسطه ددې مخاطب دی یعنی عرب خلق هغوی په اسانئ سره په دې باند پوه شی او ﴿لِّقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ۝﴾ [دداسې خلقو دپاره] نفع مند [دې کوم چه هوښیار دی] یعنی اگرچه مکلف او مخاطب د احکامو ټول دی مگر نفع ترې نه هغه خلق اخلی کوم چه پوه لری قرآن داسې خلقو ته ﴿بَشِيْرًا﴾ [خوشخبری ورکونکې دې او] نه منونکولره ﴿وَّنَذِيْرًا﴾ [ویرونکې دې پس] ددې تقاضا دا وه چه ټولو پرې ایمان راوړې وو مگر ﴿فَاَعْرَضَ اَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ۝﴾ [اکثرو خلقو] د دې نه [مخ واړولو بیا اوری نه او] هرکله چه ورته ئې ته اوروې نو ﴿وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَآ اِلَيْهِ﴾ [هغه خلق وائی چه د کومې خبرې طرف ته ته مونږ بلې زمونږ زړونه د هغې نه په پردو کښې] دی یعنی ستاپه خبره مونږ نه پوهیږو ﴿وَفِيْٓ اٰذَانِنَا وَقْرٌ﴾ [او زمونږ په غوږونو کښې بوجې] ایښودې شوی [دی ﴿وَمِنْۢ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ﴾ او زمونږ او ستاپه مینځ کښې یوه پرده ده] ﴿فَاعْمَلْ اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ۝﴾ پس ته خپل کار کوه مونږ خپل کار کوو] یعنی زمونږ نه دقبلیدو امید مه ساته مونږ

Scanned with Ca

خپل طریقه کارنه پریږدو ﴿قُلْ﴾[ته ورتهووایه چه] تاسولره په ایمان مجبوره کول خوزما دوس خبره نه ده ځکه چه ﴿إِنَّمَآ أَنَا۠ بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾[زهٔ خو ستاسوپه شان بشریم] الله تعالی نه یم چه په زړونو تصرف کولي شم البته الله تعالی ماته دا امتیاز راکړې دې چه ﴿يُوحَىٰٓ إِلَيَّ﴾[په ما دا وحی نازلیږی ﴿أَنَّمَآ إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ﴾ چه ستاسو معبود یودې] او دا وحی داسې ده چه هرسړې غوروکړی نو ددې په حقوالی او معقولوالی باندې پوهیدې شی او هرکله چه زما نبوت او وحی په معجزو سره ثابت شو نو زما خبره په هرحال منل په تولو باند فرض دی ستاسود نه قبلولو څه وجه نشته ضرور ئې قبوله کړئ ﴿فَٱسْتَقِيمُوٓا۟ إِلَيْهِ﴾[هغه] معبود برحق [ته نیغ شئ] یعنی د هغه نه سوا دبل چا عبادت طرف ته توجه مه کوئ ﴿وَٱسْتَغْفِرُوهُ﴾[او دهغه نه معافی غواړئ] یعنی دتیرو عملونو دشرك نه توبه وکړئ او دخپلو خطاګانو معافی غواړئ ﴿وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِينَ﴾[او دداسې مشرکانو دپاره لویه خرابی ده کوم چه] دنبوت ددلیلونو لیدو او د توحید د دلیلونو اوریدو باوجود خپله باطله طریقه نه پریږدی او ﴿ٱلَّذِينَ لَا يُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ﴾ چې[زکوات نه ورکوی ﴿وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ كَٰفِرُونَ﴾ او هغه داخرت نه انکار کوی] د دغو برخلاف ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ﴾[کوم خلق چه ایمان راوړی اونیك کارونه وکړی ﴿لَهُمْ﴾ د هغوی دپاره] په اخرت کښې ﴿أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ﴾[داسې اجر دې کوم چه] چرته [موقوف کیدونکې نه دې]

## معارف او مسائل

دا اووهٔ سورتونه چې د حم نه شروع کیږی او دې ته ال حم یا حوامیم وئیلې کیږی. خپلو کښې د یو شان والی په وجه دې سره په نوم کښې څه نور الفاظ هم شاملولې شی. لکه د سورهٔ مؤمن حم ته حم المؤمن او ددې سورة حم الم السجدة یا حم ته حم فصلت وئیلې کیږی. ددې سورت دا دواړه نومونه مشهور دی. یعنی حم فصلت او حم السجده.

ددې سورة اولنی مخاطب د عربو قریش دی. دهغوئ په مخکښې دا قرآن عظیم الشان نازل شو او دهغوئ په ژبه کښې دا قرآن عظیم الشان نازل شو. هغوئ د قرآن عظیم الشان د معجزې مشاهده اوکړه. بیا ئې د رسول کریم ﷺ بې شمیره معجزې اوکتلې. او ددې باوجود ئې د قرآن عظیم الشان نه مخ واړولو. او په پوهیدلو څه کوې چې ددې آوریدل ئې هم خوښ نه کړل. او د نبی کریم ﷺ د مشفقانه نصحیتونو په جواب کښې ئې اووئیل چې ستاسو خبرې خو نه زمونږ په پوهه کښې رازی او نه زمونږ زړونه ددې قبلولو ته تیار دی. او نه زمونږ غوږونه ددې آوریدو ته تیار دی. زمونږ او ستا مینځ کښې خو دبلې پردې دی. بس ته خپل کار کوه او مونږ په خپل حال پریږده.

ددې سورت د ړومبو پنځو آیتونو هم دا مفهوم دې. دې آیتونو مبارکو کښې الله ﷻ د قریشو په خصوصیت سره ذکر فرمائیلې دې چې قرآن عظیم الشان مو ستاسو دپاره په عربئ ژبه کښې نازل کړو چې تاسو ته ددې د مضمونو په پوهیدو کښې تکلیف نه وی. دې سره ئې د قرآن عظیم الشان درې صفات بیان کړل. اول دا چې ﴿فُصِّلَتْ ءَايَٰتُهُ﴾ فصلت د تفصیل نه ماخوذ دې. او ددې معنی مضمونونو لره په فصل فصل سره بیانول او ممتاز کول دی، او ددې نه مراد په وضاحت سره بیانول دی. که هغه په مختلفو فصلونو کښې وی یا په یو ځائې کښې وی. د قرآن عظیم الشان په آیتونو کښې احکام، قصص، عقائد، د اهل باطلو رد وغیره په مختلف

مضامين كولو سره جدا جدا هم بيان شوي دي . او هر مضمون مثالونو سره واضح كړې شو
بدې. دويم او دريم صفت د قرآن عظيم الشان دا بيان شوې دي چې دا بشير او نذير دې ، يعنې
چې څوك دا منې نو هغه ته دائمي خوشحالۍ او راحتونه وركوي او چې څوك ئې نه منې نو
هغوئ د ابدي عذاب نه ويروي.

او ټولو صفاتو بيانولو نه پس آخر كښې فرمائي چې ﴿لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾ يعنې قرآن عظيم الشان په
عربۍ ژبه كښې نازليدل ، واضح او صفا ، په بشارت او نذارت باندې مشتمل كيدل ، دا ټول
داسې خلقو ته فائده وركولې شي چې كومو كښې د سوچ او پوهې ماده وي . د ﴿يَعْلَمُونَ﴾ لفظ
نه دې ځائې كښې د پوهې صلاحيت مراد دې . په دې وجه خلاصه تفسير كښې ددې ترجمه
عقل منديځ سره كړې شوې ده . خو ددې خبرو باوجود عربو ددې نه مخ واړولو ، په دې باندې
پوهيدل لا څه كوي چې ددې آوريدل ئې هم خوښ نه كړل ، او د هغې ذكر دې آيت مبارك كښې
راغلې دې چې : ﴿فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ﴾.

**د نبي كريم ﷺ په وړاندې د كافرانو يو پيشكش:** د قريشو كافران ددې سورت نيغ په نيغه مخاطب دي
. هغوئ د اسلام په شروع كښې ډير په قوت سره د اسلام تحريك ختمولو دپاره او رسول كريم
ﷺ او په رسول كريم ﷺ باندې ايمان راوړونكو ته ئې رنګ په رنګ تكليفونه وركړل او
ډير كوششونه ئې اوكړل چې هغوئ اوويروي. خو ددې باوجود اسلام خوريدو او قوت په
كښې پيدا كيدو. اول د عمر بن خطاب رضي الله عنه په شان قوي شخصيت په اسلام كښې داخل شو.
بيا حضرت حمزه رضي الله عنه چې د قريشو مسلمان سردار وو هغه مسلمان شو نو دې نه پس قريشو د
ويرولو كار پريخودو او دلالچ په ذريعه ئې د اسلام د تبليغ د لارې بندولو فكرونه شروع كړل
. او حافظ ابن كثير رحمه الله دا قسمه يوه واقعه د مسند بزار ، ابو يعلى او بغوي روايتونو سره
نقل كړې ده. دې ټولو روايتونو كښې لږ لږ فرق دې . ابن كثير رحمه الله ټولو كښې د بغوي روايت
زيات قوي ګرځولې دې . او دې نه پس ئې د محمد بن اسحاق كتاب السيرة نه ئې دا واقعه
نقل كړې ده او دې ته ئې ترجيح وركړې ده . په دې وجه دې ځائې كښې دا واقعه د ابن اسحاق د
روايت مطابق نقل كيږي.

محمد بن اسحاق فرمائي چې محمد بن كعب قرظي فرمائي چې ماته دا روايت رارسيدلې دې
چې يوه ورځ د قريشو لوئې سردار عتبه بن ربيعه يوې ډلې سره مسجد حرام كښې ناست وو. بل
طرفته رسول كريم ﷺ يو كوټ كښې ځانله ناست وو. عتبه خپل قوم ته اووئيل كه ستاسو
خوښه وي نو چې څه محمد ﷺ سره خبرې اترې اوكړم او د رسول كريم ﷺ په وړاندې د
ترغيب څه څيزونه پيش كړم. كه رسول كريم ﷺ په هغې كښې څه قبلوي نو چې مونږ رسول
كريم ﷺ ته هغه وركړو چې زمونږ د مذهب خلاف تبليغ كولو نه منع شي . دا د هغه وخت
واقعه ده چې حمزه رضي الله عنه مسلمان شوې وو. او د مسلمانانو قوت ورځ په ورځ زياتيدو. د عتبه
ټول قوم اووئيل چې ائې ابوالوليد تاسو ضرور داسې اوكړئې او خبرې اترې ورسره اوكړئې.
عتبه د خپل ځائې نه پورته شو او د رسول كريم ﷺ خدمت كښې حاضر شو او دا خبرې ئې
شروع كړې چې ائې زمونږ ورارهٔ! تاسو ته معلومه ده چې زمونږ قريش قوم كښې تاسو ته يو
اوچت نسب او شرافت حاصل دې ، ستاسو خاندان وسيع او مونږ دپاره ډيره زيات عزت مند
دې. خو تاسو خپل قوم يو مشكل كښې اچولې دې. تاسو يو داسې دعوت راوړې دې چې

Scanned with Ca

هغې زمونږ ټول قوم په تفرقه کښې اچولې دې. دوئ مو بې وقوفه کړل، د دوئ په معبودانو باندې او د دوئ په مذهب باندې تاسو عیب اولګولو، او د دوئ چې کوم پلار نیکه تیر شوی دی هغوئ مو کافران اوګرځول. په دې وجه ته زما خبرې واؤره. څه ستاسو په وړاندې یو څو څیزونه ایږدم چې تاسو په هغې کښې یو خوښ کړئې. رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې ائې ابوالولید اووایه چې ته وئیل غواړې اووایه، څه به واؤرم.

عتبه ابوالولید اووئیل چې ائې وراره! تاسو چې کوم تحریك شروع کړې دې که د دې نه ستاسو مقصد مال راجمع کول وی نو مونږ تاسره وعده کوؤ چې مونږ ستا د پاره دومره مال راجمع کړو چې تاسو به ټول خاندان کښې مالدار شئ. او که ستاسو مقصد اقتدار او حکومت وی نو مونږ تاسو د قریشو سردار منلو ته تیار یو او ستاسو د حکم نه بغیر به څه کار نه کوؤ. او که تاسو بادشاهی غواړئ مونږ تاسو بادشاه جوړولو ته تیار یو. او که صورت حال څه داسې دې چې تاسو ته څوك رازی هغه یو شیطان یا جنات دی او تاسو په دې کار کولو باندې مجبوره کوی او تاسو د هغې نه خلاصیدې نشئ نو مونږ به تاسو لره داسې علاج کوؤ چې راولو چې هغه به تاسو ته د تکلیف نه نجات ورکړی. او مونږ به د دې د پاره خپل مالونه خرچ کړو. ځکه چې مونږ ته پته ده چې کله کله په انسان باندې جنات مسلط شی او بیا د هغې علاج کولې شی.

عتبه دا اوږد تقریر کولو او رسول کریم ﷺ دا آؤریدو.

د دې نه پس ئې اوفرمائیل چې ابوالولید! تا خپله خبره پوره کړه؟ هغه اوئیل چې آؤ. رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې اوس زما خبره واؤره. عتبهٔ اووئیل چې بیشکه زه ئې آؤرم.

رسول کریم ﷺ د خپل طرفنه د څه جواب ورکولو په ځائې د دې سورة فصلت تلاوت شروع کړو.

﴿بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ..... حٰمٓ ۚ تَنۡزِیۡلٌ مِّنَ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ۚ کِتٰبٌ فُصِّلَتۡ اٰیٰتُهٗ قُرۡاٰنًا عَرَبِیًّا لِّقَوۡمٍ یَّعۡلَمُوۡنَ ۙ﴾ د بزار او بغوی روایت کښې دی چې کله رسول کریم ﷺ د دې سورة آیتونه لوستلو لوستلو کښې د دې آیت مبارك ته راؤرسیدل چې ﴿فَاِنۡ اَعۡرَضُوۡا فَقُلۡ اَنۡذَرۡتُکُمۡ صٰعِقَةً مِّثۡلَ صٰعِقَةِ عَادٍ وَّ ثَمُوۡدَ ﴾ نو عتبه د رسول کریم ﷺ په خله مبارکه باندې لاس کیخودو او د خپل نسب او رشتې قسم ئې ورته ورکړو چې په دوئ باندې رحم اوکړئ. مخکښې هیڅ مه وائې.

او د ابن اسحاق رحمه الله روایت کښې دی چې کله رسول کریم ﷺ دا آیتونه مبارکه لوستل شروع کړل نو عتبه خاموشئ سره آؤریدل او خپل لاسونه ئې روستو اډانره کړل چې غور سره ئې واؤری، تر دې چې رسول کریم ﷺ د دې سورت مبارك د سجدې آیت ته اورسیدو، او رسول کریم ﷺ سجده اوکړه، بیا عتبه ته ئې اوفرمائیل چې:

ائې ابوالولید! تا واؤریدل، څه چې دې واؤریدل نو تا ته اختیار دې چې څه کوې هغه کوه.

عتبه د رسول کریم ﷺ د مجلس نه پورته شو او خپل مجلس طرفته روان شو، هغه خلقو د لرې نه عتبه ته کتل او خپلو کښې یې اووئیل چې په الله قسم د ابوالولید مخ بدلې شوې دې اوس د دهٔ هغه مخ نه دې څنګه چې د دې ځائې نه تلې وو. کله عتبه خپل مجلس ته اورسیدو نو خلقو تپوس اوکړو چې ابوالولید څه خبر دې راؤړې دې. عتبهٔ اووئیل چې ځما خبر دادې چې:

انی سمعت قولا والله ما سمعت مثله قط والله ماهو — ما داسې کلام واؤریدو چې په الله مې دې قسم وی چې ما د دې نه وړاندې نه وو آؤریدلې، په الله مې دې قسم وی چې دا خو نه



Scanned with CamScanner

بالسحر ولا بالشعر ولا بالكهانة يا معشر قريش اطيعوني واجعلوها لي خلوا بين الرجل وبين ما هو فيه فاعتزلوه فوالله ليكونن لقوله الذي سمعت نبأ فان تصبه العرب فقد كفيتموه بغير كم وان يظهر على العرب فملكه ملككم وعزه عزكم وكنتم اسعد الناس به [ابن كثير ص: ۹۱ جلد: ۴] (۱)

جادو دې ، نه شعر دې او نه د کاهنانو کار دې [کوم چې هغوئ شیطانانو نه حاصلوی] ائې زما قریش قومه! تاسو زما خبره واؤرئی ، او دا معامله ماته حواله کړئی ، زما رائې داده چې تاسو ددوئ مقابلې کولو نه او دوئ ته دتکلیف ورکولو نه منع شئ ، ا وهغوئ خپل کار ته پریږدئی ، ځکه چې ددوئ ددې کلام یو خاص شان راتلونکې دې . تاسو اوس انتظار اوکړئی او د باقی عربو انتظار اوکړئ . که د قریشو نه علاوه باقی عربو دوئ ته شکست ورکړو نوستاسو مطلب به ستاسو د کوشش نه بغیر حاصل شی . اوکه هغه په عربو باندې غالب شو نو دهغه حکومت به ستاسو حکومت وی ، دهغوئ عزت کښې به ستاسو عزت وی ، ا وپه هغه وخت کښې به تاسو دهغه په کامیابئ کښې شریك یئ ددهٔ ملګرو قریشیانو چې ددهٔ خبرې واؤریدې نو وې وئیل چې ائې ابوالولید! په تا باندې محمد ﷺ خپلې ژبې مبارکې سره جادو کړې دې . عتبه اووئیل چې زما رائې هم داده ،ما چې څه اووئیل هغه مې اووئیل، مخکښې ستاسو اختیار دې .

﴿وَقَالُوا قُلُوبُنَا فِي أَكِنَّةٍ﴾ دې ځائې کښې د قریشی کافرانو درې اقوال نقل کړې شوی دی . اول دا چې ستاسو د کلام نه زمونږ په زړونو باندې پرده ده . ستاسو خبره زمونږ په پوهه کښې نه رازی بله دا چې ستاسو د کلام نه زمونږ غوږونه کاڼره دی . دریم دا چې زمونږ او ستاسو په مینځ کښې پردې حائل دی . قرآن عظیم الشان کښې دا قول د مذمت په طور نقل کړې شوې دې . او دې سره ددوئ وینا غلطه ثابتیږی . خو بل ځائې کښې قرآن عظیم الشان ددوئ حال همدا شان بیان کړې دې . د سورة انعام په آیت مبارك کښې دی چې : ﴿وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا﴾(۲) و مثله فی سورة بنی اسرائیل والکهف.

ددې جواب دادې چې د کافرانو ددې وینا مطلب دا وو چې مونږ خو مجبور او معذور یو ، ځکه چې زمونږ په زړونو باندې پرده او غوږونو باندې بوج او درمیان کښې حجابات دی . نو مونږ ستاسو خبره څنګه واؤرو او هغه اومنو. یعنی دوئ خپل ځانونه مجبوره ثابتول . او قرآن عظیم الشان چې ددوئ همدا شان ماحال بیان کړو او په دې کښې ئې دوئ مجبوری نه اوګرځول بلکه ددې حاصل دادې چې په دوئ کښې د الله تعالی د کلام د آؤریدو او پوهیدو پوره صلاحیت وو. او هر کله چې دوئ دې طرفته هډو غوږ اونه نیولو اونه ئې په دې باندې د پوهیدو اراده اوکړه نو دوئ باندې د سزا په طور جهالت او غفلت مسلط شو . خو هغه هم په دې درجه کښې نه چې دا خلق مسلوب الاختیار جوړ شی بلکه که اوس هم دوئ اراده اوکړی نو

---

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۱۶۲، ۱۶۳، وتفسیر البغوی تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۱۶۷، ۱۶۸، ومسند ابی یعلی الموصلی، رقم الحدیث: ۱۷۷۷

(۲) ترجمه:او مونږ د هغوی په زړونو پردے اچولی دی چه په هیڅ نه پوهیږی او په غوږونو کښی مو ورله درونوالے (بوج) اچولے دے۔

دوئ ته به بیا د آؤریدو او پوهیدو صلاحت واپس راشی . [بیان القرآن][1].

**د منکرانو د انکار او استهزاء پیغمبرانه جواب :** کافرانو پخپلو زړونو کښې د پردو ، او غوږونو کښې د بوج وغیره اقرار اوکړو ، دا خو ښکاره دی چې ددې نه مراد دا نه وو چې په دوئ کښې عقل نشته دې ، یا خو کاڼړه دی ، بلکه دا یو قسم ته استهزاء او خندا وه . خو ددې ظالمانه جرات او خندا چې کوم جواب رسول کریم ﷺ ته اوخودلې شو چې ددوئ په مقابله کښې هیڅ د تشدد خبره مه کوه . بلکه د خپلې عاجزئ اظهار اوکړه چې څه خدائې نه یم چې په هر کار کښې دې زما اختیار وی اود هغه دې څه مالك یم بلکه هم ستاسو پشان یو انسان یم . فرق صرف دومره دې چې ځما رب ماته وحی کړې ده او تاسو ته ئې رالیږلې یم . ددې د تائید دپاره ئې معجزې راکړې دی . او ددې اثر دا پکار وو چې تاسو ټولو په ما باندې ایمان راوړې وې . او اوس هم څه تاسوته دا وصیت کوم چې په عبادت او اطاعت کښې خپل مخ صرف الله تعالی ته کړځوئ او د مخکښې گناهونونه توبه اوباسئ .

په آخری خطاب کښې ئې د بشارت او ویرې دواړه اړخونه ښکاره کړل چې مشرکانو دپاره لویه خرابی ده او مؤمنانو دپاره دائمی ثواب دې .پدې کښې د مشرکانو د خرابی بیانولو په ضمن کښې یې ددې دا وجه ذکر کړې ده چې :﴿ لَا يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ ﴾ یعنی دې خلقوبه زکوة نه ورکولو. دې کښې څو سوالونه راپیدا کیږی . اول دا چې دا آیت مبارك مکی دې او زکوة په مدینه منوره کښې فرض شوې دې . نو د فرض کیدو نه وړاندې په دې باندې د عدم ادائیگی الزام لگول څنگه درست شو؟

ددې جواب ابن کثیر ﷫ دا ورکړې دې چې اصل زکوة خو د اسلام شروع کښې مونځ سره فرض کړې شوې وو. او ددې ذکر د سورة مزمل په آیت مبارك کښې راغلې دې . خو ددې دنصاب تفصیلات او ددې د وصولئ نظام په مدینه منوره کښې شوې دې . په دې وجه دا نشی وثیلې کیدې چې مکه مکرمه کښې زکوة نه وو فرض شوې . [2]

**آیا کفار د فروع اعمال مکلف او مخاطب دی او که نه ؟ :** دویم اشکال دادې چې د ډیرو فقهاء کرامو ﷭ په نزد کافران مخاطب بالفروع نه دی ، یعنی په دوئ باندې د روژې ، مونځ ، حج او زکوة احکام نه عائد کیږی . په دوئ باندې ړومبی عائد کیدونکی حکم دادې چې دوئ اول ایمان راوړی . د ایمان نه پس دا فرائض په دوئ باندې عائد کیږی . نو هرکله چې په دوئ باندې د زکوة فرض عائد نه دې نو بیا ددې په ترك کولو عتاب څنگه ؟

جواب دادې چې د ډیرو ائمه او فقهاء کرامو ﷭ په نزد کافران هم مخاطب بالفروع دی،نودهغوئ په اعتبار سره خو بالکل دا اشکال نه کیږی . او کوم خلق چې کافران مخاطب بالفروع نه منی نو هغوئ وئیلې شی چې په دې کښې په زکوة ترك کولوباندې اصل غندنه نده بلکه ددوئ زکوة ترك کول د کفر په وجه وو او د زکوة پریخودل ددې علامت وو ، نو په دې وجه په دوئ باندې د عتاب کولو حاصل دا شوچې که دوئ مؤمنان وې نو د زکوة پابندی به ئې

---

[1] ) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآیة: ج ۱۰، ص ۵۱

[2] ) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۱٦٤

Scanned with Ca

کوله . ستاسو قصور ایمان نه راوړل دی . [بیان القرآن][۱] او کافران مخاطب بالفروع دی او که نه دی ، ددې تحقیق دې داحقر کتاب احکام القرآن حزب خامس کښې اوکتلې شی ، چې داپه عربی ژبه کښې شائع شوېدې .

دلته دریم سوال دا پیدا کیږی چې د اسلام په احکامو کښې ټولو نه اول مونځ دې . ددې ذکر او نه کړې شو. زکوة ئې په خصوصیت سره ذکر اوفرمائیلو ، ددې څه وجه ده ؟ ددې جواب قرطبی رحمه الله وغیره دا ورکړې دې چې د عربو قریش مالدار وو او د غریبانانو سره مدد کول او صدقه خیرات کول ددوئ یو صفت وو. نو چې کوم خلق به اسلام کښې داخل شو نو دا خلق به ددوئ د خاندانی او معاشرتی مدد نه محرومه شو ،نو ددې مذمت کول مقصود دی . په دې وجه ئې زکوة په خصوصیت سره ذکر اوفرمائیلو.[۲] والله اعلم.

﴿ لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴾ د ممنون د لفظ معنی مقطوع ده. مراد دادې چې کوم خلق د ایمان ، نیك عمل پابند وی هغوئ ته به آخرت کښې چې کوم اجر ملاویږی هغه به دائمی او غیر منقطع وی . او څینې حضرات مفسرینو ددې مطلب دا ګرځولې دې چې مؤمن د کومو نیك عملونو عادی وی ، که دبیمارئ یا سفر په وجه یا بل څه عذر په وجه په یو وخت کښې دا عمل ترې ترك هم شی نو بیا هم ددې عمل اجر نه منقطع کیږی . بلکه الله ﷻ فرښتو ته حکم کوی چې څما دې بنده د روغتیا په حالت کښې کوم عمل پابندئی سره کولو نو که دهٔ ته عذر وی نو بیا هم ددهٔ په عمل نامه کښې دا بغیر د عمل کولو نه لیکئ . دا قسمه مضمون احادیث په صحیح بخاری[۳] کښې ابوموسی اشعری رحمه الله نه او شرح السنة بغوی[۴] کښې دابن عمر رضی الله عنه او انس رضی الله عنه نه او رزین د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت کړی دی .[مظهری][۵].

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | | قُلْ | أَئِنَّكُمْ |
| | | | ورته اووایه | آیا بیشکه تاسو |
| ته تپوس اوکړه چې آیاتاسو خلق | | | | |
| لَتَكْفُرُونَ | بِالَّذِي | خَلَقَ الْأَرْضَ | فِي يَوْمَيْنِ | وَتَجْعَلُونَ |
| خامخا کفر کوئ | دهغه الله سره | چې هغه پیدا کړه زمکه | په دوؤ ورځو کښې | او جوړوئ تاسو |
| د هغه ذات نه انکار کوئ | چاچې په دوؤ ورځو کښې زمکه پیدا کړې ده ؟ | اوهغه سره | | |
| لَهُ أَنْدَادًا | ذَٰلِكَ | رَبُّ الْعَالَمِينَ | وَجَعَلَ | فِيهَا رَوَاسِيَ |
| هغه لره شریکان | هم دغه | رب د مخلوق دې | او هغه ودرول | په هغې کښې غرونه |
| شریکان جوړوئ | هم دا [الله ﷻ] د ټول جهان رب دې | او د دې زمکې دپاسه ئې | | |

[۱] ) تفسیر بیان القرآن: ج ۱۰، ص ۵۲
[۲] ) تفسیر القرطبی: ج ۱۵، ص ۳۴۰
[۳] ) صحیح البخاری، کتاب الجهاد، باب یکتب للمسافر مثل ما کان یعمل فی الاقامة، رقم الحدیث: ۲۷۷۴
[۴] ) شرح السنة للبغوی، رقم الحدیث: ۱۴۲۹ و ۱۴۳۰
[۵] ) التفسیر المظهری: ج ۸، ص ۲۸۲

Scanned with Ca

مِنْ فَوْقِهَا　وَبٰرَكَ　فِيْهَا　وَقَدَّرَ　فِيْهَآ

دپاسه دهغې | او برکتونه ئې کېښودل | په هغې کښې | او په اندازه ئې کړل | په هغې کښې |

درانه غرونه پیدا کړل| او په زمکه کښې ئې برکتونه کېخودو | او قسم قسم غلې ئې

اَقْوَاتَهَا　فِيْٓ اَرْبَعَةِ اَيَّامٍ ۭ　سَوَآءً لِّلسَّآئِلِيْنَ ۝　ثُمَّ اسْتَوٰٓى

خوراکونه دهغې | په څلورو ورځو کښې | برابر برابر دپاره دغوښتونکو　| بیا هغه توجه اوکړه |

په کښې په څلورو ورځو کښې په اندازه کړل| دغه خیزونه دتپوس کونکو دپاره پوره دی| بیا [الله ﷻ]

اِلَى السَّمَآءِ　وَهِيَ دُخَانٌ　فَقَالَ　لَهَا　وَلِلْاَرْضِ　ائْتِيَا

آسمان ته　| او هغه لوګې وو　| پس وې وئیل | دغه آسمان ته | او زمکې ته | چې راشئ دواړه |

آسمان طرفته متوجه شو |او هغه لوګې غوندې وو| نو آسمان او زمکې ته ئې اووئیل

طَوْعًا　اَوْ كَرْهًا ۭ　قَالَتَآ　اَتَيْنَا　طَآئِعِيْنَ ۝　فَقَضٰهُنَّ

پخپله خوښه سره | یا په زور سره | اووئیل دواړو | راغلو مونږه | پخپله خوښه سره | پس جوړ ئې کړل

چې تاسو دواړه په رضا راشئ یا په زور | دواړو اووئیل چې مونږ درته په رضا حاضر یو

سَبْعَ سَمٰوٰتٍ　فِيْ يَوْمَيْنِ　وَاَوْحٰى　فِيْ كُلِّ سَمَآءٍ　اَمْرَهَا ۭ

اوه　آسمانونه　| په دوه ورځو کښې | اووې لیږلو | په هر آسمان کښې | [کار] قانون دهغې |

نو په دوه ورځو کښې ئې اووه آسمانونه پیدا کړل |اوهر آسمان ته ئې دهغه مناسب حکم وراولیږلو

وَزَيَّنَّا　السَّمَآءَ الدُّنْيَا　بِمَصَابِيْحَ ڰ　وَحِفْظًا ۭ　ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ

اوښائیسته کړو مونږه |آسمان نزدې [ددنیا] | په ډیوو سره | او په ساتنې سره | دا اندازه [منصوبه] ده

او مونږ [دټولو نه نزدې]ددنیا آسمان په ډیوو [یعنی په ستورو] ښائسته کړې دی|اودهغه حفاظت مو کړې دی

الْعَزِيْزِ　الْعَلِيْمِ ۝

دغالب او دپوهه خدای |

داد زبردست [او] علم والا [پروردګار] انتظام دی |

## آسان ترجمه قرآن

اووایه چه: آیا تاسو واقعې د هغې ذات سره د کفر معامله کوئ، چه هغه زمکه په دوؤ ورځو کښې پیدا کړې ده، او د هغه سره نور خلق شریکوئ؟ دغه ذات خو د ټولو جهانونو پرورش کونکې دې. او هغه په زمکه کښې په ځائې بانډې ولاړ غرونه پیدا کړې دی. چه دهغې د پاسه اودریدلې دی. او په هغې کښې ئې برکت اچولې دې او په هغې کښې ئې اندازې سره پیدا کړې ده، روزی دهغې ، ټول هر څه په څلورو ورځو کښې د ټولو سوال کونکو دپاره برابر بیا هغه آسمان طرف ته متوجه شو. او هغه دغه وخت د لوګې په شکل کښې وو او هغه ته او زمکې ته ئې اووئیل : راشئ، که په خوشحالئ سره وی، او که په زور وی، دواړو اووئیل مونږ په خوشحالئ سره راځو نو هغه په دوؤ ورځو کښې د خپلې فیصلې مطابق د هغوی نه اووه

آسمانونه جوړ کړل، او په هر آسمان کښې ئې د هغه مناسب حکم او لیږلو او مونږ دې نزدې آسمان لره په ډیوؤ سره ښائسته کړو، او دې لره مو ښه محفوظ کړو، دا د هغه ذات اندازه ده، چه د هغه اقتدار هم کامل دې، او د هغه علم هم مکمل دې.

## خلاصه تفسیر

﴿قُلْ﴾[ته] دې خلقوته [ووایه ﴿اَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُوْنَ بِالَّذِیْ خَلَقَ الْاَرْضَ فِیْ یَوْمَیْنِ﴾ چه ایا تاسو خلق دداسې الله تعالی نه انکارکوئ کوم چه مزکې لره] سره ددې دومره فراخئ نه [دوه ورځو] په مقدار وخت [کښې پیداکړه ﴿وَتَجْعَلُوْنَ لَهٗۤ اَنْدَادًا﴾ او تاسو هغه لره شریکان جوړوئ ﴿ذٰلِكَ رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ﴾ هم دا] الله تعالی دکوم چه قدرت معلوم شو [دټول جهان رب دې ﴿وَجَعَلَ فِیْهَا رَوَاسِیَ مِنْ فَوْقِهَا﴾ او دۀ دمزکې دپاسه غرونه جوړکړل ﴿وَبٰرَكَ فِیْهَا﴾ او په دغه] مزکه [کښې ئې دفائدې څیزونه کیښودل] لکه بوټی او حیوانات وغیره ﴿وَقَدَّرَ فِیْهَاۤ اَقْوَاتَهَا﴾[او په هغه] مزکه [کښې ئې ددې] د اوسیدونکو [خوراکونه تجویزکړل] لکه چه لیدې شی چه دهرې حصې دمزکې داوسیدونکومناسب جدا جدا خوراکونه دی یعنی په مزکه کښې ئې هرقسم غلې میوې پیداکړې چرته څنګه او چرته څنګه چه سلسله ئې برابر جاری ده داټول ﴿فِیْۤ اَرْبَعَةِ اَیَّامٍ﴾[په څلور ورځوکښې] وشو په دو ورځو کښې مزکه په دوه ورځو کښې غرونه وغیره کوم چه په شمیر کښې ﴿سَوَآءً لِّلسَّآئِلِیْنَ﴾[پوره دی دتپوس کوونکودپاره] یعنی دهغو خلقو دپاره کوم چه د کائناتو د پیدائش د کیفیت او کمیت متعلق تانه تپوسونه کوی لکه یهودو چه د دوی ﷺ نه د [خلق السموات والارض] متعلق تپوس کړې وو لکه چه په الدرالمنثور کښې دی﴿ثُمَّ اسْتَوٰۤی اِلَی السَّمَآءِ﴾ [بیا] چه دا هرڅه ئې پیداکړل [داسمان] د جوړولو [طرف ته متوجه شو﴿وَهِیَ دُخَانٌ﴾ او هغه دغه وخت لوګې شان وو] یعنی د اسمان ماده کومه چه دمزکې دمادې نه پس دمزکې دموجوده صورت نه اول جوړه شوې وه هغه دلوګی په شکل کښې وه ﴿فَقَالَ لَهَا وَلِلْاَرْضِ ائْتِیَا طَوْعًا اَوْ كَرْهًا﴾[پس هغې ته اومزکې ته ئې وفرمائیل چه تاسو دواړه] به زما اطاعت طرف ته ضرور راځئ اوس تاسو ته اختیار دې چه [په خوشحالئ سره راځئ اوکه په زور سره] مطلب دادې چه زمونږ تقدیری احکام چه په تاسو دواړو کښې به جاری کیږی دهغو جاری کیدل خو ستاسو داختیارنه بهردی هغه خو به کیږی لیکن کوم ادراك او شعور چه تاسو ته درکړې شوې دې د هغې په اعتبار سره داهم کیدې شی چه تاسو زمونږ تقدیری احکام په خپله خوشحالئ سره قبول کړئ یا ترې نه په زړۀ سره ناراضه شئ او هغه په زبردستئ په تاسو کښې نافذ کړې شی لکه دانسان دپاره چه دمرضونو او مرګ معامله ده چه دهغې کیدل خو تقدیری کار دې کومو لره چه انسان نه شی واپس کولې مګر څوك هوښیار داپه رضا او خوشحالئ سره قبلوی او دصبر او شکر فائدې حاصلوی څوك ناراض او ناخوښه وی او په غم او ویلی کیدو سره مری نو اوس تاسو وګورئ چه زمونږ په دې احکامو باند راضی کیږئ اوکه بدئ ګڼړئ او مراد ددې تقدیری احکامونه کوم چه په اسمان اومزکه کښې جاری کیدونکی وو دا دی چه اسمان اوس لاصرف ماده دلوګی په شکل کښې وه ددې د اوو اسمانونو په صورت کښې جوړیدل تقدیری حکم وو اومزکه اګر چه جوړه وه مګر په دې کښې هم په زرګونو انقلابونه اوبدلونو نه ترقیامته پورې چلیدونکی وو ﴿قَالَتَاۤ اَتَیْنَا طَآئِعِیْنَ﴾[دواړو عرض وکړو چه مونږ په خوشحالئ سره

Scanned with Ca

[ددې احکامو دپاره] حاضریو ﴿فَقَضٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ فِيْ يَوْمَيْنِ﴾ پس په دوه ورځو کښې ددې اوو اسمانونه جوړشول او] چونکه اووه اسمانونه په فرښتو سره اباد او معموره کړې شوی وو په دې وجه ﴿وَاَوْحٰى فِيْ كُلِّ سَمَآءٍ اَمْرَهَا ۭ﴾ [په هر اسمان کښې ئې د هغه مناسب خپل حکم] فرښتوته [ولیږلو یعنی دکومو فرښتونه چه کوم کار اخستل وو هغه ئې ورته وښودلو﴿وَزَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ ڰ﴾ [اوموږ دې نزدې والا اسمان لره په ستور سره ښانست ورکړو او] شیطانانو لره داسمانی خبرونو دغلاکولو نه دمنع کولو دپاره ﴿وَحِفْظًا ۭ﴾ [د هغه حفاظت وکړو﴿ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ۝﴾ دا تجویزدې د] الله تعالی [زبردست په هرڅه باند د خبردار دطرف نه]

## معارف او مسائل

دې آیتونو مبارکو کښې د توحید منکرانو ته او په کفر او شرك باندې يو ښه بلیغ انداز سره متنبه کړې شوی دی او ددې آیتونو مقصد هم دادې. دې آیتونو کښې د الله تعالی د تخلیقی صفت او ددې عظیم آسمان او زمکې پیدا کولو پوره تفصیل بیان کړې شوېدې او يو زجریه خطاب کړې شوې دې. فرمائی چې تاسو داسې دعقل څخه خلاص یئ چې د عظیم او خالق ذات سره نورو لره شریکوئی. داسې تنبیه په سورة بقره کښې په دریمه رکوع کښې راغلې ده.

﴿كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ۚ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ هُوَ الَّذِيْ خَلَقَ لَكُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ۚ ثُمَّ اسْتَوٰٓى اِلَى السَّمَآءِ فَسَوّٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ۭ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝﴾

دسورة بقرې په آیت مبارك کښې د ایام تخلیق او د تعیین او تفصیل ذکر نشته دې. د سورة فصلت په دې پورتنی آیتونو مبارکو کښې ددې ذکر موجود دې.

**د آسمان او زمکې په پیدا کیدو کښې ترتیب او د ایام تخلیق تعین:** بیان القرآن کښې حکیم الامت اشرف علي تهانوی رحمه الله فرمائی چې هسې خو د قرآن پاك د پیدا کیدو ذکر تفصیلی او مختصر طور سره په ډیرو ځایونو کښې راغلې دې. خو غالبًا دا صرف په درې موقعو باندې راغلی دی چې د ترتیب لحاظ سره اول کوم یو جوړ کړې شو، بیا دې پسې کوم یو جوړ کړې شو. یو دحم سجدې دا آیت مبارك او بل د سورة بقره پورتنې آیت مبارك. دریم د سورة نازعات دا آیت مبارك چې: ﴿ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَآءُ ۭ بَنٰىهَا ۝ رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوّٰىهَا ۝ وَاَغْطَشَ لَيْلَهَا وَاَخْرَجَ ضُحٰىهَا ۝ وَالْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰىهَا ۝ اَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَمَرْعٰىهَا ۝ وَالْجِبَالَ اَرْسٰىهَا ۝﴾ (۱) او که په دې سرسری نظر وا چولې شی نو په دې مضامینو کښې څه قدرې اختلاف هم شته دې. ځکه چې د سورة بقره او سورة حم سجده په آیتونو کښې د زمکې تخلیق د آسمان څخه وړاندې معلومیږی او د سورة نازعات په آیت مبارك کښې ددې برعکس په ظاهره د زمکې تخلیق د آسمان څخه روستو معلومیږی. حضرت رحمه الله فرمائی چې په دې ټولو آیتونو مبارکو باندې د غور کولو څخه روستو ځما خیال کښې خو دا خبره رازی چې داسې اووئیلې شی چې اول د زمکې ماده جوړه شوه او تر دې وخته پورې ددې موجوده شکل نه وو جوړ شوې. او پدې حالت کښې د آسمان شکل جوړ شو اودا د دخان یعنی د لوګی په شکل کښې وو. دې څخه روستو د زمکې موجوده شکل جوړ

---

(۱) ترجمه: ایا ستاسو پیداوښت گران دے اوکه د آسمان چه الله هغه جوړ کړو، دهغے چت ئے اوچت کړو او برابرئے کړو، اوشپه ئے ورله تیاره کړه، او ورځ ئے ورله رڼرا روښانه کړه، او زمکه ئے ددے نه پس وغوړوله دهغے نه ئے اوبه او کیاه راوویستله، او غرونه ئے پرے قائم کړل.

کړې شو. بیا په دې باندې غرونه ، ونې وغیره پیدا کړې شوې. بیا د آسمان د ماده دخانیه سیاله نه اووهٔ آسمانونه جوړ کړې شو. امید دې چې دا ټول آیتونه په دې تقریر باندې منطبق شی مخکښې حالاتو څخه الله تعالی خبر دې. [بیان القرآن سورة بقره رکوع- ۳] ([1])

صحیح بخاری شریف کښې ابن عباس رضي الله عنهما څخه ددې آیت مبارک باره کښې څو سوالات او جوابات ذکر کړې شوی دی. هغې کښې چې کومه تشریح ابن عباس رضي الله عنهما فرمائیلې ده هغه هم تقریبا دا ده([2]) کومه چې حضرت رحمه الله د تطبیق آیت د پاره بیان کړې ده. ابن کثیر رحمه الله چې ددې آیت مبارك لاندې کوم الفاظ نقل کړی دی هغه دادی:

﴿وخلق الارض في يومين ثم خلق السمآء ثم استوى الى السمآء فسوهن في يومين اخرين ثم دحى الارض و دحيها ان اخرج منها المآء والمرعى وخلق الجبال والرمال والجماد والاكام وما بينهما في يومين اخرين قوله تعالى دحاها﴾

او ابن کثیر رحمه الله د ابن جریر په حواله د ابن عباس رضي الله عنهما څخه د حم سجده ددې آیت مبارك په تفسیر کښې دا روایت هم نقل کړې دې چې:

د مدینې منورې یهود د نبی کریم صلی الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شو او د آسمان او زمکې د تخلیق باره کښې ئې سوال اوکړو. رسول کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې الله تعالی زمکه د اتوار او پیر په ورځ پیدا کړه ، او غرونه او څه چې په دې کښې معدنیات وغیره دی هغه ئې د نهې په ورځ پیدا کړل ، او ونې او چینې او ښارونه او عمارتونه او ویران میدانونه ئې د چارشنبې په ورځ پیدا کړل. دا ټولې څلور ورځې شوې. لکه څنګه چې پورته آیت مبارك کښې دی چې:

﴿اَىِٕنَّكُمْ لَتَكْفُرُوْنَ بِالَّذِيْ خَلَقَ الْاَرْضَ فِيْ يَوْمَيْنِ وَتَجْعَلُوْنَ لَهٗۤ اَنْدَادًا ؕ ذٰلِكَ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ وَجَعَلَ فِيْهَا رَوَاسِيَ مِنْ فَوْقِهَا وَبٰرَكَ فِيْهَا وَقَدَّرَ فِيْهَاۤ اَقْوَاتَهَا فِيْۤ اَرْبَعَةِ اَيَّامٍ ؕ سَوَآءً لِّلسَّآىِٕلِيْنَ ۝﴾ یعنی هغه خلقو د پاره چې ددې په تخلیق باندې سوال کوی ، بیا ئې او فرمائیل چې او د زیارت په ورځ ئې آسمان جوړ کړو ، او د جمعې په ورځ ئې ستوری او نمر او سپوږمۍ او فرښتې پیدا کړې. دا ټول کارونه د جمعې د ورځې لا درې ساعاته باقی وو چې دا ټول کارونه پوره شو. او ددې په دویم ساعت کښې ئې آفتونه او مصیبتونه چې په هر څیز باندې راتلونکی وو هغه ئې پیدا کړو. او په دریم ساعت کښې ئې آدم علیه السلام پیدا کړو. او آدم علیه السلام یې جنت ته داخل کړو. او ابلیس ته ئې اوفرمائیل چې آدم علیه السلام ته سجده اوکړه. او د سجدې څخه ئې چې کله انکار اوکړو نو د جنت څخه اوویستلې شو. دا ټول تر دریم ساعت پورې ختم شو. [الحدیث بطوله ابن کثیر] ([3])

ابن کثیر رحمه الله ددې روایت ذکر کولو څخه ورستو فرمائیلی دی چې ﴿هذا الحديث فيه غرابة﴾ اور صحیح مسلم کښې یو حدیث پاك کښې راغلی کوم چې د ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دې ، چې په هغې کښې د تخلیق عالم ابتداء د یوم السبت یعنی خالی په ورځ ښودلې شوې ده([4]). په دې حساب سره د د زمکې او آسمان تخلیق په اووهٔ ورځو کښې معلومیږی. خو د الله جل جلاله په عامو نصوصو کښې دا په شپږو ورځو کښې په صراحت سره مذکور دې. ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ

---

[1]) بیان القرآن: ج ۱، ص ۱۵، تفسیر سورة البقرة آیت: ۲۹
[2]) صحیح البخاری، کتاب التفسیر، باب سورة حم السجدة: ج ۲، ص ۷۱۲
[3]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۱۶۸
[4]) صحیح مسلم، کتاب صفات المنافقین وأحکامهم، باب صفة القیامة---الخ: ج ۲، ص ۳۷۱

Scanned with Ca

﴿وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ وَّمَا مَسَّنَا مِنْ لُّغُوْبٍ﴾ يعنى مونږ آسمان او زمكه پيدا كړل او څه چې په كښې دننه دي په شپږو ورځو كښې ، او مونږ په دې باندې ستړي نه شو.

په دې وجه ددې د سند اعتبار سره اكابر محدثينو دا روايت معلول ګرځولې دې. ابن كثير دا د مسلم او نسائي په حواله نقل كړې دې او فرمائي چې ﴿وهو من غرائب الصحيح المسلم كما في زاد المسير لابن الجوزي﴾ يعنى دا حديث پاك د صحيح مسلم په عجائبو كښې دې. او بيا فرمائي چې امام بخاري رحمه الله په خپل تاريخ كبير كښې دا روايت معلول ګرځولې دې. او څينې خلقو دا روايت دابوهريره رضي الله عنه نه د كعب الاحبار په روايت نقل كړې دې. د رسول كريم ﷺ ارشاد مبارك نه دې. او فرمائي چې هم دا اصح دې. [ابن كثير ص: ۹۴ ، جلد: ۴](۱). داشان ابن مديني رحمه الله او بيهقي وغيره حفاظ حديث هم دا د كعب احبار رحمه الله قول ګرځولې دې. [حاشيه زاد المسير لابن الجوزي ص: ۲۷۳ ، جلد: ۷].

ړومبي روايت كوم چې ابن جرير رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنه نه نقل كړې دې. د ابن كثير رحمه الله دفيصلې مطابق په دې كښې هم غرابت دې. اود غرابت يوه وجه دا هم ده چې په دې روايت كښې د آدم عليه السلام تخليق د آسمانونو د تخليق سره د جمعې په ورځ په آخري وخت كښې مذكور دې او هم په دې وخت كښې د سجدې حكم او د ابليس جنت نه وتل هم مذكور دى.

حالانكه د قرآن عظيم الشان ډيرو آيتونو كښې چې د آدم عليه السلام د تخليق كومه قيصه او د سجدې حكم دې او د ابليس راوتل مذكور دى د هغې د سياق و سباق نه معلوميږي چې د آدم عليه السلام د تخليق واقعه د آسمانونو او زمكې نه ډير روستو شوې ده ، چې كله په دې زمكه باندې تول ضرورتونه پوره شو او دې كښې جنات او شيطانان اوسيدل دې نه پس ئې اوفرمائيل چې ﴿اِنِّىْ جَاعِلٌ فِى الْاَرْضِ خَلِيْفَةً﴾(۲) [كذا قال في المظهري](۳).

خلاصه داده چې د آسمانونو او زمكې د تخليق وختونه او ورځ او دې كښې ترتيب چې په كومو روايتونو د احاديثو كښې راغلى دى په هغې كښې هيڅ يو روايت داسې نه دې چې هغې ته د قرآن عظيم الشان پشان بالكل يقيني اوويلې شى. بلكه دا احتمال غالب دې چې دا اسرائيلي روايتونه وى مرفوع احاديث نه وى لكه څنګه چې ابن كثير رحمه الله د مسلم ، نسائي دحديث متعلق ددې وضاحت كړې دې. په دې وجه د قرآن عظيم الشان آيتونه اصل قرار ګرځول پكار دى او مقصد متعين كول پكار دى. او هر كله چې قرآني آيتونه راجمع كړې شى نو ددې نه يوه خبره خو قطعي طور معلوميږي چې آسمانونونه او زمكه او دې كښې دننه تول څيزونه صرف په شپږو ورځو كښې پيدا شوى دى. بله خبره د سورۀ حم سجده د آيت مبارك نه دا معلومه شوه چې د زمكې او ددې د غرونو په تخليق كښې پوره څلور ورځې تيرې شوې ، دريمه خبره دا معلومه شوه چې د آسمانونو په تخليق كښې صرف دوه ورځې اولګيدې. او په دې كښې د پوره دوؤ ورځو وضاحت نشته دې بلكه يوه اشاره دې طرفته ملاويږي چې په دې پوره دوه ورځې او نه لګيدې د جمعې دورځې آخري حصه بچ شوه. ددې آيتونو د ظاهر نه دا

---

(۱) ابن كثير: ج ۷، ص ۱۶۸، والتاريخ الكبير، رقم الحديث: ۱۳۱۷، ج ۱، ص ۴۱۳

(۲) ترجمه: ضرور به زه په زمكه كے يو نائب جوړوم.

(۳) التفسير المظهرى تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۲۸۵

Scanned with Ca

معلومیږي چې شپږو ورځو کښې رومبۍ څلور ورځې په زمکه باندې ، باقي دوه ورځې د آسمانونو په تخلیق کښې اولګیدې . او د زمکې تخلیق د آسمان نه وړاندې اوشو. مګر د سورۀ نازعات په آیت مبارك کښې د زمکې خورول او مکمل کیدو مرحله ئې د آسمانونو د تخلیق نه پس خودلې ده. پدې وجه هغه صورت څه بعیْد نه دې کوم چې پورته د بیان القران حوالې سره بیان شو هغه دا چې د زمکې پیدائش په دوؤ حصو کښې منقسم دې . رومبو دوؤ ورځو کښې دزمکې او ددې غرونه وغیره ماده تیاره کړې شو. دې نه پس دوه ورځو کښې اووۀ آسمانونه جوړ کړې شو ، دې نه پس دوه ورځو کښې د زمکې خورول او دې کښې دننه چې څه دی لکه غرونه ، ونې ، نهرونه چینې وغیره ئې چې جوړ کړی وو دهغې تکمیل اوشو. داشان د زمکې د تخلیق څلور ورځې متصل نه دی . او د حم سجده په آیت مبارك کښې چې کوم ترتیب بیان کړې شوې دې چې اول د زمکې په دوؤ ورځو کښې د پیدا کولو ذکر ئې اوفرمائیلو: ﴿خَلَقَ الْأَرْضَ فِيْ يَوْمَيْنِ﴾ دې نه پس مشرکانو ته تنبیه ورکړې شوه ، بیا ئې جدا او ځانله دا وفرمائیل چې: ﴿وَجَعَلَ فِيْهَا رَوَاسِيَ مِنْ فَوْقِهَا وَبٰرَكَ فِيْهَا وَقَدَّرَ فِيْهَآ أَقْوَاتَهَا فِيْٓ أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ﴾ په دې کښې په دې باندې خو د ټولو مفسرینو اتفاق دې چې دې څلورو ورځو کښې هغه دوه ورځې شاملې دی. دا ځانله څلور ورځې نه دی. ګنې بیا خو به ټولې اته ورځې شي. او دا د تصریح قرآنی خلاف دی.

اوس دې ځائې کښې په غور کولو سره د مقام د تقاضې مطابق دا معلومیږي چې ﴿خَلَقَ الْأَرْضَ فِيْ يَوْمَيْنِ﴾ فرمائیلو نه پس د غرونو وغیره تخلق هم په ﴿فِيْ يَوْمَيْنِ﴾ لفظ سره که تعبیر کړې وی نو بیا دا ټولې مجموعه څلور ورځې کیدل خود بخود معلومیدل خو قرآن عظیم الشان د د عنوان د تعبیر په ځائې دا اوفرمائیل چې د زمکې په تخلیقاتو کښې باقی مانده ئې ذکر کړل او وې فرمائیل چې دا ټولې څلور ورځې شوې. دې نه په ظاهره دې طرفته اشاره ده چې دا څلور ورځې متواتر اومسلسل نه وې بلکه دوه حصو کښې تقسیم شوې وې. دوه ورځې د آسمانونو د تخلیق نه وړاندې او دوه ورځې ددې نه روستو ، او آیت مبارك کښې چې: ﴿وَجَعَلَ فِيْهَا رَوَاسِيَ مِنْ فَوْقِهَا﴾. ذکر دی دا د آسمانونو د تخلیق نه پس بیان دې. والله سبحانه و تعالی اعلم.

﴿وَجَعَلَ فِيْهَا رَوَاسِيَ مِنْ فَوْقِهَا﴾ په دې زمکه باندې غرونه چې جوړ کړې شوی دی دا ددې د توازن صحیح ساتلو دپاره دی. لکه څنګه چې ډیرو آیتونو مبارکو نه دا واضح دی. ددې دپاره دا ضروری نه وو چې دا غرونه دې ګنی په زمکه باندې اوچت اوچت جوړ کړې شی زمکه کښې دننه هم جوړولې شو. خو ددې په اوچت ساتلو کښې دعامو انسانانو او څناورو دپاره ډیر فوائد دی. په دې وجه دې آیت مبارك کښې د ﴿مِنْ فَوْقِهَا﴾ لفظ سره دې خاص نعمت طرفته اشاره اوکړې شوه.

﴿وَقَدَّرَ فِيْهَآ أَقْوَاتَهَا فِيْٓ أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ سَوَآءً لِّلسَّآئِلِيْنَ﴾ اقوات د قوت جمع ده او ددې معنی رزق او روزی ده چې پدې کښې د انسان عام ضرورتونه داخل دی. [کما قال ابو عبید ، زاد المسیر لابن جوزی][1].

او حسن رحمه الله او سدی رحمه الله ددې په تفسیر کښې فرمائیلی دی چې الله ﷻ د زمکې په هره حصه کښې د هغې د اوسیدونکو د مصلحت مناسب رزق او روزی مقدر فرمائیلې ده. د مقدر کولو

[1]) زاد المسیر تحت هذه الآیة: ج ۵، ص ۲۹۹

Scanned with Ca

مطلب دادې چې دا حکم ئې جاري کړو چې د زمکې په دې حصه کښې دې فلانۍ فلانۍ څيز په دومره دومره مقدار کښې پيدا شي. او د الله ﷻ ددې تقدير نه د زمکې د هرې حصې څه خصوصيات ښکاره شو، هر ځائې کښې مختلف قسم معدنيات او مختلف قسم نباتات او ونې او ځناور يې ددې ځائې ضروريات ددوئ د مزاج او مرغوباتو مطابق پيدا کړل په دې وجه دهر ځائې منصوعات و ملبوسات مختلف وي. يمن کښې عصب، سابور کښې سابوري، رئې کښې طيالسه، په څه ځايونو کښې غنم، په څه ځايونو کښې چاول[ورجې]، او نورې غلې، په څه ځايونو کښې مالوچ [پمبه]، په څه کښې اوربشې، په څه کښې منړه يعنی سيب او انګور او په څه کښې آم. د څيزونو په دې اختلاف کښې د هر ځائې د مزاجونو د مناسبت هم خيال ساتلې شوې دې. او د عکرمه رحمه الله او د ضحاک رحمه الله د قول مطابق دا فائده ئې هم ده چې ددنيا په مختلفو سيمو او ملکونو کښې د تجارت لارې پيدا شي. چې هيڅ يو خطه د بلې نه مستغنی نه وي. په خپلو کښې چې کوم احتياج وی نو دې سره د يوبل سره د تعاون مضبوط تعمير کيدې شي. عکرمه رحمه الله اوفرمائيل چې ځينې ملکونو کښې مالګه د سروزرو سره برابره تلی او خرڅوی يئ.

يعنی الله ﷻ دا يو ګدام جوړ کړې دې چې په دې کښې د اوسيدونکی انسانانو او ځناورو ټول ضروريات، خوراک، استوګنه او لباس وغيره موجود دې. او په د ې کښې يې تر قيامته پورې راتلونکو په اربونو کهربونو انسانانو او بې شميره ځناورو دپاره بې شميره ضروريات پيدا کړې دی. دا به د زمکې په خيټه کښې لوټيږی او دضرورت مطابق به تر قيامت پورې راوُزی. دانسان کار صرف دادې چې د زمکې نه خپل ضروريات راؤباسی او د خپل ضرورت مطابق ئې استعمال کړی. مخکښې آيت مبارک کښې يې اوفرمائيل چې ﴿سَوَآءً لِّلسَّآئِلِينَ﴾. ددې جملې تعلق اکثر مفسرينو حضراتو أربعة ايام سره ګرځولې دې. معنی ئې داده چې دا ټول تخليقات عظيمه صرف په څلورو ورځو کښې شوی دی. او چونکه په عرف کښې چې کوم شئ ته څلور وئيلې شی هغه کله د څلورو نه کم او کله د څلورو نه زيات هم وی. خو کسر لره حذف کړی او دې ته څلور وائی. آيت مبارک کښې دې ځائې کښې لفظ د ﴿سَوَآءً﴾ زياتولو سره دا احتمال ئې ختم کړو او دا ئې اوښودل چې دا کار پوره په څلورو ورځو کښې شوې دې. او د ﴿لِّلسَّآئِلِينَ﴾ فرمائيلو دا مطلب دې چې کوم خلق ستاسو نه د زمکې او آسمان د تخليق باره کښې سوال کوی. لکه څنګه چې د يهودو د سوال متعلق په تفسير ابن جرير او درمنثور کښې منقول دی چې دې سوال کوؤنکو ته دا اوئيلې شو چې دا ټول په څلورو ورځو کښې شوې دې. [ابن کثير، قرطبی، روح][1].

اوځينې مفسرينو ابن زيد وغيره د ﴿لِّلسَّآئِلِينَ﴾ جملې تعلق ئې د ﴿وَقَدَّرَ فِيهَآ أَقْوَٰتَهَا﴾ سره ګرځولې دې اود ﴿لِّلسَّآئِلِينَ﴾ معنی طالبين اومحتاجين دپاره ده. دې صورت کښې به معنی دا شی چې الله ﷻ په زمکه چې کوم مختلف قسم غلې او قسم قسم اقوات او ضروريات پيدا کړی دی، دا دهغه خلقو د فائدې دپاره دی چې ددې طالب او محتاج دی. چونکه چې طالب او محتاج عادتا سوال کوی نو په دې وجه ئې دا ئې د ﴿لِّلسَّآئِلِينَ﴾ په لفظ سره تعبير کړې دې. [بحر محيط][2]

---

[1]) تفسير ابن كثير: ج ۷، ص ١٦٦، ١٦٧، والتفسير القرطبي: ج ١٥، ص ٣٤٣، والدر المنثور: ج ٩، ص ٣١
[2]) البحر المحيط: ج ٩، ص ٤٤٠

Scanned with Ca

او ابن كثير رحمه الله ددې تفسير نقل كولو سره اوفرمائيل چې دا داسې دی لکه څنګه چې قرآن عظيم الشان فرمائيلی دی : ﴿وَاٰتٰىكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا سَاَلْتُمُوْهُ﴾ يعنی الله ﷻ هغه ټول څيزونه درکړل کوم چې تاسو غوښتلی وو. څکه چې دې ځائې کښې هم د غوښتلو نه مراد ددوئ حاجتمند کيدل دی. سوال کول شرط نه دی. څکه چې الله ﷻ دا څيزونه هغه خلقو ته هم ورکړی دې چې چا غوښتلی نه دی[1].

﴿فَقَالَ لَهَا وَلِلْاَرْضِ ائْتِيَا طَوْعًا اَوْ كَرْهًا ؕ قَالَتَاۤ اَتَيْنَا طَآئِعِيْنَ﴾ دا آسمان او زمکې ته خطاب کول او حکم ورکول او دهغوئ د اطاعت او تابعدارئ جواب ورکول د څينې مفسرينو په نزد مجاز دی چې زمکه او آسمان د الله ﷻ د حکم تابع دهر کار دپاره تيار اوموندې شو. خو ابن عطيه رحمه الله او نورو محققينوائمه تفسير فرمائيلی دی چې په دې کښې هيڅ مجاز نشته دې، ټول په خپل حقيقت باندې دی. الله ﷻ زمکې او آسمان ته شعور او ادراك ورکړې وو او بيا ئې ورته خطاب اوفرمائيلو او هغوئ ته يې د وينا طاقت هم ورکړو. تفسير بحر محيط کښې دا نقل کولو سره دا فرمائيلی دی چې هم دا تفسير احسن او بهتر دې[2].

ابن كثير رحمه الله دا نقل کړې دې او دې کښې ئې دځينودا قول هم نقل کړې دې چې د زمکې طرفنه دا جواب هغه حصې ورکړې وو چې په کومه باندې د بيت الله شريف تعمير شوې دې. او د آسمان هغه حصې ورکړې وو چې دبيت الله دپاسه ده[3]. چې [هغې ته بيت المعمور وائی

| | | |
|---|---|---|
| فَاِنْ اَعْرَضُوْا | فَقُلْ | اَنْذَرْتُكُمْ |
| پس که چرې مخ واړوو دوئ | نو ورته اووايه | زه يروم تاسو |
| انوکه اوس هم دوئ [دحق نه] مخ اوګرځوی انوته ورته اووايه | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| صٰعِقَةً | مِّثْلَ | صٰعِقَةِ | عَادٍ | وَّثَمُوْدَ | اِذْ جَآءَتْهُمُ |
| دسخت عذاب نه | په مثل | دسخت عذاب | دعاديانو | او ثموديانو | کله چې راغلل هغوئ ته |
| چې زه مو د داسې آفت نه ويروم \| لکه څنګه چې په عاديانو اوثموديانو راغلې وو \| څه وخت چې هغوئ ته | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الرُّسُلُ | مِنْ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ | وَمِنْ خَلْفِهِمْ | اَلَّا تَعْبُدُوْۤا | اِلَّا |
| رسولان | مخکښې دهغوئ نه | او دروستو د هغوئ نه | چې تاسو بندګي مه کوئ | مګر |
| د وړاندې روستو نه پيغمبران راغلل [او وې وئيل] چې دالله ﷻ نه بغير [دبل چا] عبادت مه کوئ | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اللّٰهَ | قَالُوْا | لَوْ شَآءَ | رَبُّنَا | لَاَنْزَلَ | مَلٰٓئِكَةً |
| خاص دالله کوئ | اووئيل هغوئ | که غوښتلې | رب زمونږه | نو خامخا به ئې رالیږلې وې | فرښتې |
| نو هغوئ اووئيل که چرې زمونږ رب غوښتلې \| نو زمونږ دهدايت دپاره به ئې فرښتې راليږلې وې | | | | | |

[1]) تفسير ابن كثير: ج ۷، ص ۱٦٦

[2]) البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ۹، ص ٤٤١

[3]) تفسير ابن كثير: ج ۷، ص ١٦٧

Scanned with Ca

فَاِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۱۴﴾

پس بیشکه مونږه | په هغه ځیز | چې رالیږلی شوی یئ تاسو | په هغې سره | انکار کونکی یو |

نو مونږ د هغه پیغام نه انکار کوو د کوم د رسولو دپاره چې تاسو رالیږلي شوي يئ |

فَاَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوْا فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَقَالُوْا

پس هر چې عادیان وو | نو تکبر اوکړو هغوئ | په زمکه کښې | په ناحقه سره | اووې وئیل |

نو هر چې عادیان وو | ..........نو هغوئ د زمکې په مخ په ناجائزه تکبر شروع کړو | او وائې اووئیل

مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ۭ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ

چې څوک دې زیات سخت | زمونږ نه | په لحاظ دقوت سره | آیا هغوئ اونه کتل دې ته | چې بیشکه الله

چې زمونږ نه به زیات څوک طاقتور وی؟ | ..........هغوئ دې ته اونه کتل | چې کوم الله ﷻ

الَّذِيْ خَلَقَهُمْ هُوَ اَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً ۭ

هغه [ذات] دې | چې پیدا ئې کړل دوئ | هغه زیات سخت دې | د دوئ نه | په لحاظ دقوت سره |

دوئ پیدا کړی دی | ..........هغه د دوئ نه زیات طاقتور دې ..........

وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿۱۵﴾ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ

اوو هغوئ | په آیتونو زمونږ | چې انکار ئې کولو تر | پس اولیږله مونږه په هغوئ باندې |

او زمونږ د آیتونو نه ئې انکار کولو | نو مونږ پرې په سپیرو ورځو کښې یوه تیزه سیلئ

رِيْحًا صَرْصَرًا فِيْٓ اَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ لِّنُذِيْقَهُمْ

هوا | تیزه | په ورځو سپیرو کښې | دپاره ددې چې وراوڅکوو مونږ هغوئ ته |

رالولیږله | ..........چې په دنیا کښې ورباندې د رسوا کونکی عذاب خوند اوڅکوو |

عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۭ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَخْزٰى

عذاب دشرمندګئ | په ژوند ددنیا کښې | او خامخا عذاب داخرت | زیات دشرمندګئ دې |

..........او د آخرت عذاب به ئې د نور زیات رسوائې سبب شي

وَهُمْ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۶﴾ وَاَمَّا ثَمُوْدُ فَهَدَيْنٰهُمْ

او دهغوئ سره به | هیڅ امداد نه کیږی | او هر چې ثمودیان دی | پس نیغه لار مونږ اوښودله هغوئ ته

او د هغوئ مدد به نشی کولې | ..........او ثمودیانو ته مونږ نیغه لار اوخودله

فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى فَاَخَذَتْهُمْ صٰعِقَةُ

پس غوره کړل هغوئ | بندول دسترګو | په ځائ د کتلو لارې ته | پس اونیول هغوئ لره | یوې چغې

خو هغوئ دهدایت په مقابله کښې ګمراهي غوره کړه | نو دخپلو عملونو په سبب د یو رسوا کونکی

الْعَذَابِ الْهُوْنِ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۱۷﴾ وَنَجَّيْنَا

دعذاب | سپکونکی | په سبب دهغې عملونو | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | او بچ کړل مونږه

عذاب آفت راګیر کړل | ..........او کومو کسانو چې ایمان راوړې وو

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ﴿١٨﴾ وَيَوْمَ

هغه کسان | چې ایمان ئې راوړې وو | او وو هغوئ | چې خان به ئې ساتلو دبدعملئ نه | او هغه ورځ

هغوی ته مو نجات ورکړو | او هغوی زمونږ نه ویریدل | .................. او په کومه ورځ

يُحْشَرُ اَعْدَآءُ اللّٰهِ اِلَى النَّارِ فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ ﴿١٩﴾ حَتّٰى

چې راجمع کړې کیږي به | دشمنان دالله | وور ته | پس هغوئ به | حصار ولي کیږي | تر دې پورې

چې دالله ﷻ دښمنان دوزخ ته راجمع کړې شی | نو بیا به په ډلو کښې تقسیم کړې شی | تردې چې

اِذَا مَا جَآءُوْهَا شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ

کله چې | راشی هغوئ دغه دوزخ ته | گواهی به اوکړي | په هغوئ باندي | غوږونه دهغوئ |

دوزخ ته نزدې ورشی | نو د دوی غوږونه اوسترګې اوڅرمنې به پرې د هغه اعمالو ګواهی

وَاَبْصَارُهُمْ وَجُلُوْدُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٢٠﴾ وَقَالُوْا

اوسترګې دهغوئ | او څرمنې دهغوئ | په هغې | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | او اوبه وائی هغوئ

ورکوی کوم چې دوی [په دنیا کښې] کول | ........................ او دوئ به خپلو

لِجُلُوْدِهِمْ لِمَ شَهِدْتُّمْ عَلَيْنَا ؕ قَالُوْٓا اَنْطَقَنَا

څرمنو خپلو ته | ولې ګواهی اوکړه تاسو | زمونږ خلاف | اوبه وائی هغوئ | چې ګویا نه کړو مونږه

څرمنو ته وائی | چې تاسو ولې په مونږ باندې ګواهی ورکړه؟ هغوئ به اووائی چې مونږ هغه

اللّٰهُ الَّذِيْٓ اَنْطَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَّهُوَ خَلَقَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ

الله | هغه | چې ګویا نه کړې ئې دي | هر څیز | او خاص هغه | پیدا کړئ تاسو | اول ځل |

الله ﷻ ګویا کړې یو | چا چې هر یو څیزته د وئیلو طاقت ورکړې دې | اوهغه تاسو اول ځل پیدا کړی وئ

وَّاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٢١﴾ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ

اوخاص هغه ته به | واپس بوتللې کیږئ | اونه وئ تاسو | چې پټیدلی به په وخت دګناه کښې | چې ګنی ګواهی به کوی

اوهغه ته به تول واپس کولې شئ | اوتاسو [دګناه کولو په وخت د دې خبرې نه] نه پټیدلئ | چې

عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَآ اَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُوْدُكُمْ وَلٰكِنْ

په تاسو باندې | غوږونه ستاسو | اونه سترګې ستاسو | اونه څرمنې ستاسو | الیکن

ستاسو غوږونه ، سترګې اوڅرمنې به ستاسو خلاف ګواهی ورکړی | بلکه تاسو

ظَنَنْتُمْ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿٢٢﴾

ګمان کړې وو تاسو | چې بیشکه الله | نه پوهیږی | په ډیرو کارونو | دهغې نه | چې کوئ ئې تاسو

ګمان کولو | ................ چې الله ﷻ ستاسو په کارونو کښې ډیر کارونه نه پیژنی |

وَذٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِيْ ظَنَنْتُمْ بِرَبِّكُمْ

او دغه ګمان ستاسو | هغه ګمان دې | چې ګمان به کوو تاسو | په رب خپل |

اودا ستاسو ګمان وو | کوم چې تاسو په خپل رب باندې کولو | نو هغه ګمان تاسو

أَرْدٰىكُمْ فَأَصْبَحْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٢٣﴾ فَإِنْ يَّصْبِرُوْا

[دغه گمان] هلاك كړئ تاسو | پس شوئ تاسو | دنقصان موندونكونه | پس كه چرې صبراوكړو دوئ

هلاك كړئ | اوتاسو په تاوانيانو كښې شامل شوئ | ..................نوكه اوس دوئ صبر[هم] كوي

فَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ۚ وَإِنْ يَّسْتَعْتِبُوْا فَمَا هُمْ

پس وور | ځائې دې | دپاره ددوئ | او كه واپس كيدل غواړي دوئ | پس نۀ به وي دوئ

خوهم دوزخ ددوئ ټيكانړه ده | اوكه چرې دوئ توبه اوكړي | نو ددوئ توبه به

مِّنَ الْمُعْتَبِيْنَ ﴿٢٤﴾ وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَآءَ فَزَيَّنُوْا

دواپس كړې شوؤ نه | اومقرركړي وو مونږ | هغوئ لره | داسې ملګرې | چې ښائيسته به ئې ښكاره كولو

نشي قبلولې | اومونږ دوئ سره [په دنيا كښې] څه [بد] ملګرې مقرر كړي وو

لَهُمْ مَّا بَيْنَ أَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَحَقَّ

هغوئ ته | هغه | چې مخكښې دهغوئ نه ووّ | او هغه | چې روستو دهغوئ نه ووّ | او ثابته شوه

نو هغوئ به ورته خپل وړاندې روستو عملونه ښائسته ښكاره كول | اود دوئ په حق كښې هم

عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِيْٓ أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمْ

په هغوئ باندې | خبره دعذاب | په هغه ډلو كښې | چې تيرې شوې وې | مخكښې دهغوئ نه

د پخوانو امتونو پشان دالله ﷻ [دهلاكت] فيصله ثابته شوه |

مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿٢٥﴾ ع

دپيريانونه | او دانسانانونه | بيشكه هغوئ | ووّ | نقصان موندونكې |

كه پيريان وو اوكه انسانان |... بيشكه دوئ تاوانيان دي |

## آسان ترجمه قرآن

بيا هم كه دا خلق مخ واړوي، نو ورته اووايه چه: زه ويروم تاسو د هغې تندر نه، څرنګه تندر چه په عاديانو او ثموديانو نازل شوې وو، دا د هغه وخت خبره ده، چه كله هغوى ته پيغمبرانو (كله) د مخكښې د هغوى نه او كله د روستو د هغوى نه دا پيغام راؤړو، چه د الله تعالىٰ نه سوا د هيڅ څيز عبادت مه كوئ، هغوى اووئيل چه: كه زمونږ پروردګار غوختلې نو فرشتې به ئې راليږلې وې، لهٰذا په كومې خبرې سره چه تاسو راليږلې شوې يئ، مونږ دهغې د منلو نه انكار كوؤ. بيا د عاديانو قصه خو دا رنګې شوه، چه هغوى په زمكه كښې د ناحق تكبر طريقه اختيار كړه، او وې وئيل چه څوک دى چه په طاقت كښې زمونږ نه زيات وى ؟ آيا دوى دا سوچ نه وو كړې، چه كوم الله تعالىٰ دوى پيدا كړې دى هغه په طاقت كښې ددوى نه زيات دې؟ او هغوى زمونږ د آيتونو نه انكار كولو. نو مونږ په سپيرو ورځو كښې هغوى باندې د تيزې سيلۍ په شكل كښې هوا راؤليږله. دې دپاره چه هغوى باندې په ژوند د دنيا كښې د رسوايۍ د عذاب مزه اوڅكوؤ. او د آخرت عذاب ددې نه هم زيات رسوا كونكې دې . او دوى سره به هيڅ مدد نشي كولې او هرچه ثموديان وو، نو مونږ هغوى ته نيغه لار اوښودله. ليكن هغوى نيغه لاره اختيارولو په ځائې ړوند

والې خوښ کړو نو هغوی چه کوم کسب کړې وو، د هغې له وجې نه هغوی د عذاب داسې تندر اونیول، چه ټول ذلت وو. او کومو خلقو چه ایمان راوړې وو، او تقوٰی ئې اختیار کړې وه، هغوی ته مونږ نجات ورکړو. او په هغه ورځ چه کله به د الله تعالیٰ دشمنان اور طرف ته راجمع کړې شی، پس دوی به په ټولګو کښې تقسیمولې شی تردې پورې چه کله هغوی هغې (اور) ته اورسیږی، نو دهغوی غوږونه، دهغوی سترګې، او دهغوی څرمنې به د هغوی خلاف ګواهی ورکړی، په هغې عملونو چه دوی به کول او دوی به خپلو څرمنو ته اووائی چه: تاسو زمونږ خلاف ولې ګواهی ورکړه. هغوی به ورته وائی، چه مونږ ته هغه ذات د خبرو طاقت را کړو، کوم ذات چه هر څیز ته ګویائی ورکړې ده او هم هغه دې، چه تاسو ئې په اول ځل پیدا کړې وئ، اوهغه طرف ته تاسو واپس راګرځولې شئ. او تاسو (د ګناه کولو په وخت کښې) ددې خبرې نه پټیدې نه شوئ، چه ستاسو غوږونه، ستاسو سترګې، او ستاسو څرمنې ستاسو خلاف ګواهی ورکړی، لیکن ستاسو ګمان دا وو، چه الله تعالیٰ ته ستاسو د ډیرو ګناهونو علم نشته او د خپل پروردګار باره کښې ستاسو هم دا ګمان وو، چه هغې تاسو برباد کړئ، او دهغې په نتیجه کښې تاسو په هغې خلقو کښې شامل شوئ، چه سراسر په نقصان کښې دی. اوس ددې خلقو دا حال دې، چه که دوی صبر اوکړی بیا هم اور ددوی ځائې دې، او که دوی معذرت کول غواړی، نو دوی د هغې خلقو نه نه دی، دچا چه معذرت قبلولې شی. اومونږ (په دنیا کښې) په دوی باندې څه ملګری مسلط کړې وو، چه هغوی دوی ته ددوی مخکښې او روستو ټول کارونه خائسته جوړ کړې وو نو چه کوم نور پیریان او انسانان ددوی نه مخکښې تیر شوې دی، د هغوی سره په دوی باندې (د عذاب) خبره رشتیا شوې ده. یقیناً دا ټول د نقصان اوچتونکو نه دی.

## خلاصه تفسیر

د توحید دلیلونه چه واوړی هم ﴿فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَقُلْ اَنْذَرْتُكُمْ صٰعِقَةً﴾ [که داخلق] دتوحید نه [اعراض کوی نو ته ووایه چه زهٔ تاسو لره دداسې افت نه ویروم ﴿مِّثْلَ صٰعِقَةِ عَادٍ وَّثَمُوْدَ﴾ لکه چه په عاد او ثمود باندې] دشرك او كفر په وجه افت راغلې وو] مراد په عذاب سره هلاك كول دی لكه چه دمكې دقریشو سرداران د بدر په غزا كښې هلاك او قید كړې شول او دا قصه د عادیانو او ثمودیانو هغه وخت شوې وه ﴿اِذْ جَآءَتْهُمُ الرُّسُلُ مِنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ﴾ [هر كله چه دوی ته ددوی د وړاند نه هم او د دوی دشاته نه هم پیغمبران راغلل] یعنی كوم پیغمبران چه دوی ته لیږلې شوی وو او ددوی په پوهولو كښې هغوی ترخپله وسه كوشش وكړو لكه چه یوسړې خپل یو عزیز لره دڅه مصیبت یا هلاكت طرف ته په تلو كښې ووینی نو هغه كله د وړاند نه اوكله دشانه هغه منع كوی او ددې مثال په قرآن كښې دابلیس دا قول دې چه دهٔ ونیلی وو [لاتینهم من بین ایدیهم ومن خلفهم] یعنی زهٔ به بنیادم له دګمراه كولو دپاره ددهٔ دمخې نه هم راځم او دشانه هم او هغو پیغمبرانو داسې ووئیل چه ﴿اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ﴾ [بغیر د الله تعالی نه دبل چاعبادت مه كوئ ﴿قَالُوْا﴾ هغو جواب وركړو چه] تاسوچه كوم دالله تعالی دطرف نه د راتلو او توحید طرف ته دبلنې دعوی كوئ داغلطه ده ځكه چه] ﴿لَوْ شَآءَ رَبُّنَا﴾ [كه زمونږ پروردګار ته] دا [منظوره وې] چه چالره یئ پیغمبر رالیږلی ﴿لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً﴾ [نو فرښتې به یئ رالیږلې ﴿فَاِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ﴾ په دې وجه مونږ ددې] توحید [نه هم منكر یو كوم چه یئ تاسولره دركړو] ستاسو دعوې مطابق

Scanned with Ca

[ئ تاسو] پیغمبر جوړکړي [راليږلي يئي بيا] ددې مشترك قول نه پس د هريو قوم چه كوم خاص تفصيل دې هغه دادې چه ﴿فَاَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوْا فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ﴾[كوم دعادخلق وو هغوی په دنياكښې په ناحقه تكبركولواو] هركله چه ئ د عذاب وعيد واورېدو نو﴿وَقَالُوْا مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً﴾ [وئ وئيل هغه څوك دې كوم چه په قوت كښې زمونږ نه زيات وي] چه هغه مونږ په داسې عذاب كښې اخته كولې شي اومونږ ئ په دفع كولو قادر نه يو وړاند جواب دې چه ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِيْ خَلَقَهُمْ﴾[ايا هغه خلق دې ته نه ګوري چه كوم الله تعالى دوی لره پيداكړې دی ﴿هُوَ اَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً﴾ هغه په قوت كښې د دوی نه ډيرزيات دې] مګر سره ددې هم هغوی ايمان رانه وړو ﴿وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ﴾[او زمونږ دايتونو نه ئ انكاركولو ﴿فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا صَرْصَرًا فِيْ اَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ﴾ نو مونږ په هغوی يوه سخته هوا په داسې ورځوكښې وليږله كومې چه] په وجه دالله تعالى دعذاب نازليدو ددوی په حق كښې [منحوسې وې ﴿لِنُذِيْقَهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ چه مونږ دوی ته ددنيا په ژوند كښې درسوا يئ د عذاب مزه وڅكوو﴿وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَخْزٰى﴾ او داخرت عذاب نور هم د رسوايئ سبب دې او] ددې عذاب په وخت ديوطرف نه هم ﴿وَهُمْ لَا يُنْصَرُوْنَ﴾[هغوی ته مدد ونه رسيدو﴿وَاَمَّا ثَمُوْدُ﴾ او هغه كوم چه ثموديان وو نو] د هغوی كيفيت داشو چه ﴿فَهَدَيْنٰهُمْ﴾[مونږ هغوی ته] د پيغمبر په ذريعه [هدايت وكړو﴿فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى﴾پس هغوی ګمراهئ لره د هدايت په مقابله كښې خوښه كړه ﴿فَاَخَذَتْهُمْ صٰعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُوْنِ﴾ نو هغوی لره دسرنه ترپښو پورې د ذلت د عذاب افت ونيول ﴿بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ﴾ د هغوی د بدوعملونو په وجه او مونږه] ددې عذاب نه ﴿وَنَجَّيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾[هغوخلقو لره نجات وركړو كومو چه ايمان راوړو﴿وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ﴾ او زمونږ نه ويريدل] تردې ځائ پورې ددنيوی عذاب ذكر وو وړاند د اخرت د عذاب ذكر دې [او] دوی ته هغه ورځ هم ياده كړه ﴿وَيَوْمَ يُحْشَرُ اَعْدَآءُ اللّٰهِ اِلَى النَّارِ﴾ [په كومه ورځ چه دالله تعالى دښمنان] يعنى كفار [دوزخ طرف ته د جمع كولو دپاره] موقف د حساب ته [رواستې شي بيا] په لارې ددوی د ډيروالى په وجه دګډ وډ كيدو نه دبچ كولو او په جمع ساتلو دپاره [به﴿فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ﴾ هغوی لره راحصارولې شي] ددې دپاره چه وروستوپاتې كيدونكى ورسره يو ځائ شي لكه چه دحضرت سليمانعليه السلام په واقعه كښې ټولو لښكرو لره د جمع كولو دپاره [فهم يوزعون] ئ وفرمائيل يعنى دوی لره به راحصارولې شي ﴿حَتّٰى اِذَا مَا جَآءُوْهَا﴾[تردې چه هركله هغوی] ټول جمع شي [هغه] دوزخ [ته نزدې راشى] مراد ترې نه موقف دحساب دې دكوم ځائ نه چه به دوزخ نزدې په نظر راځي لكه چه په حديث كښې راغلى دی چه دوزخ به موقف د حساب ته نزدې كړې شي او داكافران به خپل څلور واړه طرف ته اور او اور وينى غرض دا چه هركله موقف د حساب ته راشى او حساب شروع شی ﴿شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ وَاَبْصَارُهُمْ وَجُلُوْدُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾[نو ددوی غوږونه او ستركې او څرمنې به د دوی خلاف د دوی دعملونو ګواهى وركوی او] هغه وخت به﴿وَقَالُوْا لِجُلُوْدِهِمْ﴾ [هغه خلق] په تعجب سره [خپلو اندامونو ته ووائى﴿لِمَ شَهِدْتُّمْ عَلَيْنَا﴾ چه تاسو زمونږ خلاف ګواهى ولې كوئ] مونږ خو داهر څه په دنيا كښې تاسو ته د راحت رسولو دپاره كول لكه

Scanned with Ca

چه په حدیث کښې دحضرت انس رضي الله عنه نه داقول نقل دې چه [فعنکن کنت اناضل رواه مسلم](۱) یعنې ماخو تاسو دپاره داټول کوشش کولو ﴿قَالُوٓا۟ أَنطَقَنَا ٱللَّهُ﴾[هغه] اندامونه [به جواب ورکړی چه مونږ هغه] قادر مطلق [ګویاکړی یو﴿ٱلَّذِىٓ أَنطَقَ كُلَّ شَىْءٍ﴾ کوم چه هر] ګویا [شي ته ګویائی ورکړه] چه په دې سره مونږ په خپل ځان کښې په خپله دامشاهده وکړه ﴿وَهُوَ خَلَقَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾[او هغه تاسو اول ځل پیداکړی وئ ﴿وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ او هغه ته اوس بیا] دوباره ژوندی شوی [راوستلې شوئ] نو مونږ دداسې لوئ قدرت لرونکی په تپوس کولو حقه خبره څنګه پټولی شو په دې وجه ګواهی مو ورکړه [او] وړاند الله تعالی دې منکراتو ته خطاب فرمائی چه ﴿وَمَا كُنتُمْ تَسْتَتِرُونَ﴾[تاسو] په دنیاکښې [ددې خبرې نه خو ځانونه] په څه شان [پټ] او بچ [کولې نه شو﴿أَن يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَآ أَبْصَـٰرُكُمْ وَلَا جُلُودُكُمْ﴾ چه ستاسو غوږونه او سترګې او څرمنې ستاسو په خلاف ګواهی ورکړی] ځکه چه د الله تعالی قدرت مطلقه او علم محیط په واقع کښې ثابت دې چه ددې مقتضا داوه چه دبدو عملونو نه موځانونه ساتلې ﴿وَلَـٰكِن ظَنَنتُمْ﴾[لیکن تاسو] په دې وجه ځانونه نه ساتل چه [په دې ګمان کښې وئ ﴿أَنَّ ٱللَّهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيرًا مِّمَّا تَعْمَلُونَ﴾چه الله تعالی ته ستاسو د ډیرو عملونو خبر هم نشته ﴿وَذَٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ ٱلَّذِى ظَنَنتُم بِرَبِّكُمْ﴾او ستاسو هم دغه ګمان کوم چه تاسو په خپل رب باند کړې وو﴿أَرْدَىٰكُمْ﴾ تاسو برباد کړئ] ځکه چه په دې ګمان سره د کفر دکارونو مرتکب شوئ او هغوی موجب دبربادئ شول﴿فَأَصْبَحْتُم مِّنَ ٱلْخَـٰسِرِينَ﴾ [بیاتاسو په] ابدی [خساره کښې پریوتئ پس] دې حالت کښې ﴿فَإِن يَصْبِرُوا۟﴾[که دغه خلق] په دې بربادئ او خساره باند [صبرکوی] او تقدیرته ځان وسپاری عذر معذرت هیڅ نه کوی ﴿فَٱلنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ﴾[بیاهم دوزخ ددوی ځائ دې] داسې نه ده چه ددوی صبر به موجب د رحم شي لکه چه په دنیا کښې به اکثر داسې کیده﴿وَإِن يَسْتَعْتِبُوا۟ فَمَا هُم مِّنَ ٱلْمُعْتَبِينَ﴾ [اوکه هغوی عذر کول غواړی نو هم به مقبول نه وی﴿وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَآءَ﴾ او مونږ] په دنیاکښې د دوی [کفارو] دپاره څه ددوی سره ملګری] شیطانان [مقررکړی وو﴿فَزَيَّنُوا۟ لَهُم مَّا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ پس هغوی د دوی وړاند وروستو عملونه دوی ته ښائسته کړی وو] په دې وجه په هغې ټینګ وو[او] په کفر د اصرار کولو په وجه ﴿وَحَقَّ عَلَيْهِمُ ٱلْقَوْلُ فِىٓ أُمَمٍ﴾[د دوی په حق کښې هم د هغوخلقو سره دالله تعالی خبره] یعنی وعده د عذاب [پوره شوه﴿قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِم مِّنَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ﴾ کوم چه ددوی نه وړاند پیریان او انسانان [کفار] تیرشوی دی ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا۟ خَـٰسِرِينَ﴾ بیشکه هغوی هم په خساره کښې شول].

## معارف او مسائل

﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا﴾ دا دهغه عذاب صاعقه تشریح ده چې ددې نه وړاندې آیت مبارك کښې دعاد او ثمود عنوان سره بیان شوې ده . د صاعقه اصل معنی بې هوشه کوونکې خیز دې ، په دې وجه کوم تندر چې راپریوزی هغې ته صاعقه وئیلې کیږی . او ناساپی آفت او مصیبت دپاره هم دا لفظ استعمالیږی . قوم عاد باندې چې د هوا کوم طوفان راغلو هغه هم ددې صاعقه یو قسم دې او هغې ته ئې د صریح سرسر نوم ورکړې دې . اودا تیزې هوا ته وئیلې کیږی او

(۱) صحیح مسلم، کتاب الزهد، باب قبیل باب النهی عن الدخول علی أهل الحجر الامن یدخل باکیاً: ج ۲، ص ۴۰۹

Scanned with Ca

داسي هوا ته وئيلې کيږي چې په هغې کښې تيزئ سره سره سخت آواز هم وي . [قرطبي] ([1]).
ضحاك رحمه الله فرمائي چې الله ﷻ په دې خلقو باندې تر دريو کالو پورې باران بالکل بند کړو ، خشکې هواګانې به راتلې ، او تر اتو ورځو پورې مسلسل د هوا طوفان وو. ځينې روايتونو کښې دي چې دا واقعه د شوال د آخرې چارشنبې په ورځ شروع شوه او تر بلې چارشنبې پورې جارې وه . او چې په کوم قوم باندې عذاب راغلې نو هغه د چار شنبې په ورځ راغلې دې . [قرطبي ، مظهري] ([2]).
جابر بن عبدالله رضي الله عنه فرمائي چې کله الله ﷻ يو قوم سره نيکي کول غواړي نو په هغوئ باندې باران ورروي. او هغوئ دزياتو تيزو هواګانو نه بچ ساتي . او کله چې يو قوم په مصيبت کښې اخته کوي نو هغوئ باندې باران بند کړي او هوا ګانې پرې زياتې تيزې راولي ([3]).
﴿فِيْ اَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ﴾ د اسلام د اصولو نه او د رسول کريم ﷺ د احاديثونه ثابت دي چې هيڅ يوه ورځ يا شپه پخپل ذات کښې سپيرهٔ نه وي . قوم عام باندې چې کوم طوفان راغلې وو هغې ورځو ته د ﴿نَّحِسَاتٍ﴾ فرمائيلو حاصل دادې چې دا ورځې ددې قوم د بدعملو په وجه ددوئ دپاره سپيرهٔ شوې وې . ددې نه دا نه معلوميږي چې دا ورځې ګنې تولو دپاره سپيرې دي . [مظهري ،بيان القرآن] ([4]). او ددې مسئلې پوره تحقيق دپاره د احقر په احکام القرآن کښې حزب خامس اوګورئې ، په هغې کښې ددې وضاحت دې چې يو څيز پخپل ذات کښې منحوس کيدې شي که نه . او دا کتاب په عربي ژبه کښې دې .
﴿فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ﴾ دا د وزع نه مشتق دې . ددې معنی ده منع کول او ايسارول ، او ددې مطابق دې مذکوره خلاصه تفسير کښې ددې معنی ايسارول کړې شوې ده . او اکثر حضرات مفسرينو هم دا معنی اخستې ده . جهنميان به په ډير لوئې شمير کښې ميدان حشر طرفته او د حساب کتاب ځائې ته چې کله بوتلې شي نو د انتشار نه دبچ کيدو دپاره به مخکښې حصې والا ډله ايساره کړې شي چې روستې خلق هم دې سره يو ځائې شي . او ځينې حضرات مفسرينو د ﴿يُوْزَعُوْنَ﴾ معنی په يساقون او يدفعون سره کړې ده ، ددې معنی داده چې دوئ به په شړلو شړلو سره د حساب کتاب ځائې ته بوتللې کيږي . [قرطبي] ([5]).
﴿وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ الاية﴾ ددې آيت مبارك معنی داده چې که انسان په پټه يوه ګناه کول غواړي نو دې خو به ئې د نورو خلقو نه پټه کړي خو دخپل ځان او خپل بدن نه به ئې څنګه پټه کړي . هرکله چې معلوم شي چې زمونږ سترګې ، لاسونه ، پښې ، بدن ، څرمن او وينسته خپل نه دي بلکه سرکاري ګواهان دي ، او کله چې ددوئ نه زمونږ د عملونو باره کښې تپوس کيږي نو دوئ به رينښتيا ګواهي ورکوي . نو بيا هډو د په پټه د ګناه کولو څه سوال نه پيدا کيږي . ددې رسوائي نه دبچ کيدو صرف يوه لاره ده چې دا ګناه پريښودې شي . خو ائې د

---

[1] ) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۳۴۷
[2] ) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۳۴۸، والتفسير المظهري:ج ۸، ص ۲۸۸
[3] ) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۳۴۸
[4] ) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية: ج ۱۰، ص ۵۳، والتفسير المظهري: ج ۸، ص ۲۸۸
[5] ) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۳۵۰

Scanned with Ca

توحید او رسالت منکرو خلقو ستاسو ذهن به دې طرفته ځنګه راشي چې ګنی زمونږ اندامونه به هم خبرې کوی او زمونږ خلاف به د الله ﷻ په وړاندې ګواهي ورکوی. خو دومره خبره د هر عقل والا په پوهه کښې راتلې شي چې کوم عظیم ذات مونږ دیو حقیر څیز نه پیدا کړی یو او انسان ئې سمیع او بصیر جوړ کړې دې ، دې ئې لوئې کړو ، نو آیا دهغه لوئې ذات علم به زمونږ په ذات باندې نه محیط کیږی؟ په دې وجه تاسو شرك او كفر كولو كښې تیز شوئي.
﴿وَذَٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِي ظَنَنتُم بِرَبِّكُمْ أَرْدَاكُمْ﴾ یعنی ستاسو دې بد ګمان تاسو برباد کړئي.

**محشر کښې د انسان د اندامونو ګواهي**: صحیح مسلم کښې انس رضی الله عنه نه روایت دې چې یوه ورځ مونږ رسول کریم ﷺ سره وو ، رسول کریم ﷺ ته خندا راغله ، بیا رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې تاسو ته معلوم دی چې څه په څه خبره خاندم. مونږ عرض اوکړو چې الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ ته بهتر معلوم دی. رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې ماته خندا په هغه کلام باندې راغله چې کوم به بنده خپل رب سره د حساب کتاب په مقام باندې کوی. دې به عرض اوکړی چې ائې الله ﷻ! آیا تا ما ته د ظلم نه پناه نه وه راکړې. الله ﷻ به اوفرمائی چې بیشکه درکړې مې وه. بنده بهٔ عرض اوکړی چې هر کله دا خبره ده نو څه به دخپل حساب کتاب په معامله کښې د بل چا ګواهئ باندې مطمئن نه یم. سوا ددې نه چې هم څما د بدن یو ګواه راپورته شی. الله ﷻ به اوفرمائی چې ﴿كَفَىٰ بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا﴾ یعنی ښه خبره ده ، هم ته خپل حساب اوکړه. دې نه پس به ددهٔ په خله باندې مهر اولګولې شی او ددهٔ اندامونو ته به اووئیلې شی چې ددهٔ عملونه اوښائی. هر اندام به خبرې کوی او ریښتونی ګواهی بهٔ ورکوی. دې نه پس به ددهٔ ژبه پرانستې شی دا به پخپله دخپلو اندامونو نه خفه وی او وائی به چې:
﴿بعدالكن وسحقا فعنكن اناضل﴾ یعنی تاسو هلاك شئ ما چې دنیا کښې څه اوکړل هغه مې ستاسو د آرام دپاره اوکړل. [اوس څما خلاف ګواهی ورکوئی] ([1]).

او د ابوهریره رضی الله عنه روایت کښې دی چې ددې سړی په خله باندې به مهر اولګولې شی او ددهٔ څرمنې ته به اووئیلې شی چې ته وایه او ددهٔ عملونه بیان کړه ، نو د انسان څرمن او غوښه هډوکی به ددهٔ د ټولو عملونو ګواهی ورکړی. [رواه مسلم ، مظهری] ([2]).

او معقل بن یسار رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې راتلونکې ورځ انسان ته دا آوازی کوی چې څه نوې ورځ یم او ته چې په ما کښې کوم کار کوی نو د قیامت په ورځ به څه دهغې ګواهی ورکوم. نو په دې وجه تاته پکار دی چې زما ختمیدو نه وړاندې وړاندې څه نیکی اوکړه چې څه د هغې ګواهی ورکړم ، او که څه لاړم نو ته به ما هیڅکله اونه مومې. دا شان هره شپه انسان ته دا آواز کوی [ذکره ابونعیم ، کذا فی القرطبی] ([3]).

[1]) صحیح مسلم، کتاب الزهد، باب قبیل باب النهی عن الدخول علی أهل الحجر الامن یدخل باکیاً: ج ۲، ص ۴۰۹

[2]) صحیح مسلم، کتاب الزهد، باب قبیل باب النهی عن الدخول علی أهل الحجر الا من یدخل باکیا: ج ۲، ص ۴۰۹، والتفسیر المظهری: ج ۸، ص ۲۸۹

[3]) تفسیر القرطبی: ج ۱۵، ص ۳۵۳، وکنز العمال، رقم الحدیث: ۴۳۱۶۱

Scanned with Ca

وَقَالَ الَّذِيْنَ

| او وائی | هغه کسان |

او [ائي نبی ﷺ] .......... |

كَفَرُوْا لَا تَسْمَعُوْا لِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَالْغَوْا

چی دحق نه ئې انکار کړې دې | غوږ مه ږدئ | دې قرآن ته | او شور جوړوئ |

کافران وائی چې دا قران پاک مه آورئ | او [د دې د تلاوت په دوران کښې] چغې وهئ |

فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ ۝ فَلَنُذِيْقَنَّ

په وخت دلوستلو دهغې کښې | دپاره ددې چې تاسو | غالب شئ | پس خامخا به مونږ مزه ورڅکوؤ

کیدې شی چې غلبه بیا مومئ | .......................... نو مونږ به په دې کافرانو

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَذَابًا شَدِيْدًا ۙ وَّلَنَجْزِيَنَّهُمْ

هغه کسانوته | چی انکار ئې کړې دې | دعذاب سخت | او خامخا به بدله ورکوؤ مونږ هغوئ ته |

باندې د سخت عذاب خوند اوڅکووا .......... او دخپلو ښکاره بدو کارونو

اَسْوَاَ الَّذِيْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝ ذٰلِكَ جَزَآءُ اَعْدَآءِ اللّٰهِ

دبدترین عمل | هغه | چی وؤ هغوئ | چی کوؤ به ئې | دغه | بدله ده | ددشمنانو دالله |

سزاګانې به ورته ورکړو | .......... دالله ﷻ د دښمنانو هم دغه سزا ده | [یعنی] دوزخ

النَّارُ ۚ لَهُمْ فِيْهَا دَارُ الْخُلْدِ ؕ جَزَآءً ۢ بِمَا

چی وور دې | دهغوئ دپاره | په هغې کښی | کور همیشه دې | دا سزا [دهغوئ] ده | په سبب دهغې |

همدغه د هغوئ د همیشه اوسیدلو کور دې | دا د ددې [خبرې] سزا ده

كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ۝ وَقَالَ الَّذِيْنَ

چی وؤ هغوئ | دآیتونو زمونږ نه | چی انکار به ئې کولو | او اوبه وائی | هغه کسان |

چې هغوئ به زمونږ دآیتونو نه ښکاره انکار کولو | .................. او کافران

كَفَرُوْا رَبَّنَآ اَرِنَا الَّذَيْنِ اَضَلّٰنَا

چی کفر ئې کړې دې | اے ربه زمونږه | اوښایه مونږ ته | هغه دوه | چی ګمراهه کړی ئې وؤ مونږه |

به وائی | چې ائې زمونږ ربه ! مونږ ته هغوئ دواړه ډلې یعنی پیریان او انسانان

مِنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ اَقْدَامِنَا لِيَكُوْنَا

دپیریانونه | او دانسانانونه | چی کړو مونږه هغوئ دواړه | لاند دقدمونو زمونږ نه | چی شی دواړه |

چې مونږ ئې ګمراه کړی وو اوښایه | چې ئې د پښو لاندې چیخنړې کړو | د دې دپاره چې دواړه ډلې

مِنَ الْاَسْفَلِيْنَ ۝

دذلیلانونه |

په ذلیلو خلقو کښې شامل شی |

## آسان ترجمه قرآن

او داکافران (یو بل ته) وائي چه: مه اورئ دې قرآن لره، او ددې په مینځ کښې شور جوړوئ، دې دپاره چه هم تاسو غالب راشئ. ددې وجې نه مونږ به په کافرانو باندې د سخت عذاب مزه اوڅکوو. او دوی چه (په دنیا کښې) کوم بد ترین کارونه کول دهغې به پوره پوره بدله ورکړو. هم دا سزا ده د الله تعالیٰ د دشمنانو، چه د اور په صورت کښې به وي، ددوی دپاره به په دې کښې همیشه دپاره اوسیدل وي، چه ددې خبرې بدله به وي، چه دوی زمونږ د آیتونو نه انکار کولو. او داکافران خلق به اووائي چه: اے زمونږ پروردګاره! مونږ ته دهغې پیریانو او انسانانو شکلونه اوښایه، کومو چه مونږ ګمراه کړي یو، دې دپاره چه مونږ هغوی د خپلو پښو لاندې داسې چخنړې کړو، چه هغوی ښه ذلیله شي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [او داکافران] په خپل مینځ کښې [دا وائي] ﴿لَا تَسْمَعُوا لِهَٰذَا الْقُرْآنِ﴾ چه دې قرآن لره مه اوړئ او] که چرې پیغمبرئی اوروی هم نو ﴿وَالْغَوْا فِيهِ لَعَلَّكُمْ﴾ [ددې په مینځ کښې شور کوئ شاید] په دې تدبیر سره ﴿تَغْلِبُونَ﴾ [تاسو غالب شئ] او پیغمبر ناچارشي خاموشه شي [نو] د دوی ددې ناپاکې ارادې او قصد په بدله کښې ﴿فَلَنُذِيقَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا عَذَابًا شَدِيدًا﴾ [مونږ به دې کافرانو ته دسخت غذاب مزه وڅکوو ﴿وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَسْوَأَ الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ او هغوی ته به د هغوی د بدوبدو کارونو سزا ورکړو ﴿ذَٰلِكَ جَزَاءُ أَعْدَاءِ اللَّهِ النَّارُ﴾ داسزا ده دالله تعالی د دښمنانو یعنی دوزخ ﴿لَهُمْ فِيهَا دَارُ الْخُلْدِ﴾ دهغوی دپاره هلته د همیشه او سیدو مقام وی ﴿جَزَاءً بِمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ﴾ ددې خبرې په بدله کښې چه هغوی به زمونږ د ایتونونه انکار کولو] اوهرکله چه په عذاب کښې مبتلا شی نو ﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [هغه کفاربه ووائی ﴿رَبَّنَا أَرِنَا الَّذَيْنِ أَضَلَّانَا مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ﴾ اے زمونږ پروردګاره مونږ ته هغه دواړه شیطان او انسان وښایه کومو چه مونږه ګمراه کړی وو ﴿نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ أَقْدَامِنَا لِيَكُونَا مِنَ الْأَسْفَلِينَ﴾ چه مونږه یې د خپلو پښو لاند ومړو چه هغوی ښه ذلیله شی] یعنی دوی ته به هغه وخت په هغو خلقو باند غصه راشی کومو چه دوی لره په دنیا کښې لمسولی وو بنیادمو هم او شیطانانو هم خواه یویوی اوکه ډیراو هسې خو به دغه لسموونکی هم په دوزخ کښې وی مګر ددې خبرو په وخت کښې به هغوی دوی ته مخامخ نه وی په دې وجه یې د دغو دمخامخ کیدو درخواست وکړو په یوایت یایو روایت کښې دا ذکر نه دې لیدلې شوې چه ددغو دا درخواست به منظورشی اوکه نه والله تعالی اعلم.

## معارف او مسائل

﴿لَا تَسْمَعُوا لِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ﴾ کفار چې کله د قرآن پاك مقابله کښې عاجزه شو او ددې خلاف دهغوئ تدبیرونه ناکام شو نو په هغه وخت هغوئ دا حرکت شروع کړو. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی ابوجهل خلق په دې راضی کړل چې کله محمد ﷺ قرآن پاك وائي نو تاسو د هغه په مخکښې چغې وهئ او شور کوئې چې خلقو ته معلوم نشي چې دې څه وائي. څینو اووئیل چې شپیلې وهئ او لاسونه پرقوئ او مینځ کښې رنګ رنګ آوازونه کوئی ، چې خلق د قرآن د آوریدو څخه منع شی. [قرطبی] [1]

[1] ) تفسیر القرطبي: ج ۱۵، ص ۳۵۶

**د تلاوت په وخت کښې خاموشه کیدل واجب دي نه خاموشه کیدل د کافرانو عادت دې** :: ددې مذکوره آیت مبارك څخه معلوم شو چې کله د قرآن پاك تلاوت کیږی او خلق په دې کښې خلل اچوی نو د کافرانو علامت دې. ددې څخه دا هم معلوم شو چې خاموشئ سره د قرآن پاك تلاوت آوریدل واجب دی او دا د ایمان علامت دې. نن صبا ریډیو باندې هم داسې صورت حال دې. هوټلونو او ډلو کښې خلق ریډیو باندې د قرآ ن پاك تلاوت آوری. د قرآن پاك تلاوت کیږی او هوټلونو والا پخپلو پخپلو کارونو کښې مصروف وی. او خلق په خوراك کولو کښې مصروف وی. ددې هم هغه صورت دې کوم چې ږکفارو وو. الله تعالی دې مسلمانانو ته هدایت اوکړی چې یا خو په داسې موقعو باندې قرآن پاك تلاوت دپاره نه رااخلی ا و که رااخلی او برکت حاصلول غواړي نو څو منټو د پاره دې ټول کارونه بند کړی ، پخپله دې هم دې طرفته توجه اوکړی او دادې آوری او نورو ته دې هم دا موقع ورکړی.

اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا

| بیشکه هغه کسان | چی وئي ونیل | رب زمونږه الله دي | بیا مضبوط پاتې شو په هغې

| بیشکه کومو خلقو چې اقرار اوکړواچې زمونږ رب الله دې| بیا په دې قائم پاتې

تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا

نازلیږی | په هغوئ باندې | فرښتې | [او ورته وائی] چی مهٔ یریږئ | او غم مهٔ کوئ |

شو|نو په هغوئ به [درحمت] فرښتې نازلیږی| [او وائی به] چې تاسو مه ویریږئ | اومه غمژن کیږئ |

وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ۝ نَحْنُ اَوْلِيٰٓؤُكُمْ

اوخوشحاله شئ | په هغه جنت سره |چی ستاسو سره به ئي وعدې کیدلې | مونږه |دوستان یو ستاسو

اودجنت زیرې واورئ | دکوم چې تاسو سره وعده کولې شوه | ..............مونږ ددنیا

فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَشْتَهِيْٓ

په ژوند ددنیا کښی | او په اخرت کښی | او دی ستاسو دپاره | په هغې کښی | هغه چی غواړی ئې

په ژوند کښې هم ستاسو ملګری وو | او په اخرت کښې هم | اوڅه چې مو زړه غواړی هغه به درته

اَنْفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَدَّعُوْنَ ۝ؕ نُزُلًا

نفسونه ستاسو | او دی ستاسو دپاره | په هغې کښی | هغه چی ارزونې کوئ تاسو |دا میلمستیا ده

په جنت کښې موجود وی | اوتاسو دپاره به هغه هرڅه موجود وی | چې تاسو ئې غواړئ

مِّنْ غَفُوْرٍ رَّحِيْمٍ ۝ؑ وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ

دطرفه دبښونکی | مهربانه الله نه | او څوك دې | ډیر ښائیسته | په لحاظ دخبری سره | دهغه چانه

دادبخښونکی مهربان الله د طرفنه میلمستیا ده| اودهغې بنده نه ښه خبره د چا کیدې شی | چې

دَعَآ اِلَى اللّٰهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَّقَالَ اِنَّنِيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ۝

چی رابلی خلق | الله ته | او عمل کوی نیك | اوونې ونیل | چی بیشکه زهٔ دمسلمانانونه یم

دالله ﷻ طرفته بلنه کوی |او نیک عمل کوی| او دا وائی چې زه له تابعدارو څخې یم

Scanned with Ca

وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ۚ ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ

اونهٔ یو شان کیږي | نیکي اونهٔ بدي | دفع کړه [بدي] | په هغه نیکۍ سره |

او نیکي او بدي هیڅ کله برابریدي نشي | ........... ته په ښه [خوږه] طریقه [دښمن] د خان نه

أَحْسَنُ فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ

چې هغه ډیره ښائیسته وي | پس بیا به وي | هغه سړي چې په منځ ستا | او په منځ دهغه کښې

لرې کړه | نوستا او د چا ترمینځه چې دشمني وي

عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ ۝ وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا الَّذِينَ

دشمني وي | داسې لکه چې هغه | دوست دې | مهربانه | اونهٔ نصیب کیږي داصفت | مګر هغه کسانو ته

هغه به داسې [نرم] شي لکه مهربان دوست | اودا نصیحت دهغه چا نصیب کیږي چې

صَبَرُوا ۚ وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا ذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ۝ وَإِمَّا

چې صبر اوکړو هغوئ | اونهٔ ورکړې کیږي دا مقام | مګر خاوند دحصې لوئې ته | او که چرې

صبر کولې شي | اودا سبق هغه څوک اخستې شي چې د لوئې نصیب خاوندوو | اوکه چرې

يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَانِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ ۖ إِنَّهُ

اورسیږي تاته | دطرفه دشیطان نه | څه وسوسه | نو پناه اوغواړه په الله سره | بیشکه هغه

ستا په زړه کښې د شیطان د طرفه څه وسوسه پیدا شي | نو د الله ﷻ نه پناه غواړه | بیشکه هغه

هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۝

خاص هغه اوریدونکې دې | او ډیر پوهه دې |

هرڅه آوري | په هر څه پوهه دې |

## آسان ترجمه قرآن

(بل طرف ته) کومو خلقو چه وئیلې دي، چه: زمونږ رب الله تعالىٰ دې، او بیا په دې باندې هغوی ثابت قدم پاتې شوې دي نو په هغوی باندې به فرښتې (دې وینا سره) نازلیږي چه: نه څه ویره په زړه کښې راولئ، او نه د څه خبرې غم کوئ او په هغې جنت باندې خوشحاله شئ، د کوم چه تاسو سره وعده کولې شوه. مونږ په ژوند د دنیا کښې هم ستاسو ملګرې وو، او په آخرت کښې به هم یو، او په دې جنت کښې هرهغه څیز ستاسو دپاره دې، کوم چه ستاسو زړه غواړي، او په دې کښې هر هغه څیز ستاسو دې، کوم چه تاسو ئې راغواړئ دا ټول د هغې ذات د طرف نه رومبئ میلمستیا ده، کوم ذات چه بخښش کونکې دې، او رحم کونکې دې. او دهغې سړي نه بهتره خبره به دچا وي چه الله تعالىٰ طرف ته دعوت ورکوي، اونیک عمل کوي، او دا وائي چه زهٔ په فرمانبردارو بندګانو کښې شامل یم او نیکي او بدي برابر کیدې نشي، ته بدي په داسې طریقې سره دفع کړه، چه ډیره ښه وي نتیجه به دا وي چه د کوم سړي او ستا په مینځ کښې دشمني وه، هغه به سمدستي داسې شي، ګویا چه هغه ستا رازدار (ګرم) دوست دې، اودا خصلت صرف هغې کسانو ته ورکولې شي، چه د صبر نه کار اخلي، او دا خصلت هغې کسانو ته ورکولې شي چه د لوئې نصیب

والا وي. او که اوږسيږي تاته د شيطان د طرف نه څه وسوسه، نو د شيطان مردود نه په الله تعالی سره پناه اوغواړه بے شکه هغه هره خبره اورېدونکې، او په هر څه پوهېدونکې دې.

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ﴾ [بيشکه کومو خلقو چه] په زړه سره [اقرار وکړو چه زمونږ رب] حقيقي صرف [الله دې] مطلب دادې چه شرک ئې پرېښودو او توحيدئې اختيار کړو ﴿ثُمَّ اسْتَقَامُوا﴾ [بيا] په دې [ثابت قدم پاتې شول] يعني پرې ئې نښودو ﴿تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةُ﴾ [په هغوی باندې] دالله تعالی دطرف نه د رحمت او خوشخبرئ [فرښتې نازليږي] اول دمرګ په وخت کښې بياپه قبر کښې بياپه قيامت کښې لکه چه په درمنثور کښې دحضرت زيدبن اسلم په روايت سره ثابت دی او وائی به ﴿أَلَّا تَخَافُوا﴾ [چه تاسومه] داخرت د حالاتو نه [ويره کوئ ﴿وَلَا تَحْزَنُوا﴾ اومه] ددنيا په پرېښودو باندې [غم کوئ] ځکه چه وړاندتاسو دپاره ددې نعم البدل اوامن او عافيت دې ﴿وَأَبْشِرُوا بِالْجَنَّةِ الَّتِي كُنْتُمْ تُوعَدُونَ﴾ [او تاسو په جنت] ملاوېدو [خوشحاله اوسيږئ دکوم چه تاسو سره وعده کولې شوه ﴿نَحْنُ أَوْلِيَاؤُكُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ﴾ مونږ ستاسو ملګری وو د دنياپه ژوند کښې هم او په اخرت کښې به هم يو] په دنيا کښې دفرښتو ملګری کيدل دادی چه هغوی دانسان په زړه کښې دنيکو کارونو الهام کوی او څه تکليف او مصيبت چه وريپښيږی نو په هغې صبر او سکون دفرښتو دملګرتيا اثر وی او په آخرت کښې به ئې ملګری کيدل خو په ډاګه او مخامخ وی لکه چه په قرآن کريم کښې دی [وتتلقهم الملئكة]([1]) او په بل ايت [يدخلون عليهم من كل باب]([2]) وغيره کښې ﴿وَلَكُمْ فِيهَا﴾ [او ستاسو دپاره په دې] جنت [کښې ﴿مَا تَشْتَهِي أَنْفُسُكُمْ﴾ کوم شی لره چه ستاسو زړه غواړی موجود دې ﴿وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ﴾ او دارنګ ستاسو دپاره په دې کښې چه څه غواړئ موجود دی] يعني څه چه په ژبه سره غواړئ هغه به ملاويږی بلکه دغوښتوبه هم ضرورت نه وی کوم شې چه ستاسو زړه غواړی موجود کيږی به ﴿نُزُلًا مِنْ غَفُورٍ رَحِيمٍ﴾ [دابه په طور دميلمستياوی د غفور رحيم دطرف نه] يعني دانعمتونه په اعزاز او اکرام سره به داسې ملاويږی لکه څنګه چه ميلمنو ته ملاويږی وړاند د ښه حال نه پس ئې د خبرو او عملونو ښه والې ښودلې دې ﴿وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِمَّنْ دَعَا إِلَى اللَّهِ﴾ [او ددې نه غوره د چاخبره کيدې شی کوم چه] الله تعالی طرف ته [خلق بلی او] په خپله هم ﴿وَعَمِلَ صَالِحًا﴾ [نيک عمل کوی او] داطاعت داظهار دپاره ﴿وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾ [وائی چه زه دفرمانبردارونه يم] يعنی بندګئ لره خپل فخر ګڼری دمتکبرانو په شان پرې شرميږی نه [او] چونکه الله تعالی طرف ته د دعوت کوونکو او دخلقو داصلاح اراده کوونکو ته اکثر دجاهلانو دطرف نه ازارونه او تکليفونه رسيږی په دې وجه وړاند دوی ته دظلم په مقابله کښې دانصاف او دبدئ په بدله کښې دنيکئ کولو تلقين کولې شی دا رنګ په تجربه سره ثابته ده چه ددعوت دموثر اوکاميابيدو هم داطريقه ده چه دمخالفينو په ازارونو صبر وکړی ددوی سره ښه سلوك وکړی په دې وجه نبی کريم ﷺ ته خطاب کوی فرمائی او په دې کښې ټول مسلمانان ضمناشامل دی چه ﴿وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ﴾ [نيکی اوبدی برابرنه دی] بلکه دهريو اثر جدادې او هرکله چه

---

[1] ترجمه: او فرشتے به دهغوی استقبال کوی.

[2] ترجمه: او فرشتے به دوی ته د هر دروازے نه به راځی.

Scanned with Ca

داخبره ثابته شوه نو اوس [ته] سره دخپلو متبعينو ﴿اِدْفَعْ بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ﴾ [په نيك سلوك سره بدئ لره. [منع كره ﴿فَاِذَا الَّذِیْ بَیْنَكَ وَبَیْنَهٗ عَدَاوَةٌ﴾ بيابه يودم] ته ووينې چه [تاسو او دكوم سړي په مينځ كښې چه دښمنى وه هغه به داسې شى ﴿كَاَنَّهٗ وَلِیٌّ حَمِیْمٌ۝﴾ لكه څوك چه دزړه دوستان وى] يعنى دبدئ بدله په بدئ سره په وركولو كښې خو دښمنى زياتيږى او په نيكئ كولو سره په دې شرط چه ددښمن طبيعت سالم وى دښمنى كميږى تردې چه اكثر خو بالكل دښمنى ختمه شي او په دې معامله كښې په شان ددوست شى اگر چه په زړه سره دوست نه وى ﴿وَمَا یُلَقّٰىهَاۤ اِلَّا الَّذِیْنَ صَبَرُوْا﴾ [او دا خبره هغو خلقو ته نصيب كيدې شى كوم چه] داخلاقو په اعتبارسره [لوئ مستقل] مزاج [وى ﴿وَمَا یُلَقّٰىهَاۤ اِلَّا ذُوْ حَظٍّ عَظِیْمٍ۝﴾ او داخبره هغوته نصيب كيږى كوم چه] دثواب په اعتبارسره [لوئ نصيب دار وى ﴿وَاِمَّا یَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّیْطٰنِ نَزْغٌ﴾ اوكه چرې] په داسې وخت كښې [تالره دشيطان دطرف نه] دغصې [څه وسوسه راشى نو] فورا ﴿فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ﴾ [دالله تعالى نه پناه غواړه ﴿اِنَّهٗ هُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ۝﴾ بيشكه هغه ښه اوريدونكې ښه پوهيدونكې دې] په شرط دسلامتيا دطبع په قيدسره داخدشه لرې شوه چه څنې وخت د شرير بنيادم سره په نرمئ كولو الټه اثركيږى ځكه چه ددې صرف د داسې خلقو نه احتمال وى كومو چه خپله سلامتى دطبيعت ختمه كړې وى او هغه كله وى

## معارف او مسائل

د سورة د شروع څخه تر دې ځائې پورې د قرآن پاك منكرينو ته ،د رسالت منكرينو او د توحيد منكرينو ته خطاب دې . او ددې خبرې تفصيل سره بيان شوې دې چې دوئ ته پكار دى چې د الله تعالى په قدرت كامله او د الله تعالى د قدرت په نخښو باندې ژور نظر اوساتى او بيا دوئ ته د توحيد څخه دمنكرينو انجام په گوته كړې شوې دې . او دې پسې د آخرت او دوزخ بيان دې . دې ځائې څخه د كاملو مؤمنانو حالات بيانيږى . اودوئ دپاره چې په دنيا او آخرت كښې دكوم انعاماتو بيان دې دهغوئ دپاره خاص هدايات دى . كامل مؤمنان هغه دى چې پخپله هم په خپلو عملونو باندې قائم اوسى او په شريعت باندې مكمل طور سره عمل كوى . او نورو خلقو لره هم الله تعالى طرفته رابلى او دهغوئ اصلاح كوى . دې سلسله كښې د اسلام دعوت وركوونكوى دپاره د صبر او د بدئى په بدله د نيكئ كولو هدايت كړې شوې دې .

**داستقامت معنى** :: اول جز ئې لفظ استقامت سره تعبير كړو او وې فرمائيل چې ﴿اِنَّ الَّذِیْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا﴾ يعنى چې كومو خلقو الله تعالى لره خپل رب اومنلو او ددې اقرار ئې هم اوكړو. دا بالكل اصل ايمان دې . او بيا دې په دې باندې قائم هم پاتې شى نو دا نيك عمل شو. داشان ايمان او نيك عمل جامع شو. د استقامت د لفظ كوم تفسير چې په خلاصه تفسير كښې بيان شوې دې چې په ايمان او توحيد باندې قائم پاتې شى او دا نه پريږدى . دا تفسير د صديق اكبر ﷛ څخه نقل دې . او تقريبا هم دا مضمون عثمان ﷛ څخه هم نقل دې . هغوئ فرمائى چې د استقامت تفسير دعمل اخلاص دې . او فاروق اعظم ﷛ فرمائى چې:

﴿الاستقامة ان تستقيم على الامروالنهى ولاتروغ روغان الثعالب﴾ [مظهرى] [1]

[1] ) تفسير المظهرى تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۲۹۲

Scanned with Ca

استقامت دي ته وائي چې ته د الله تعالی په ټولو احکامو ، اوامرو او نواهي باندې بالکل مستقیم پاتې شي. او ددې څخه د لومړې [ګیدړې] په شاند تیښتې لار نه اوباسي.
په دې وجه علماء کرامو فرمائیلي دي چې استقامت خو یو مختصر لفظ دې. خو ددې جامعیت په ټولو شرائع اسلامیه باندې دې. او په دې کښې د الله تعالی په ټولو احکامو باندې عمل ، ټولو محرماتو او مکروهاتو څخه همیشه دپاره ډډه کول شامل دي.
تفسیر کشاف کښې دي چې د انسان ﴿رَبُّنَا اللّٰهُ﴾ وئیل هله صحیح کیدیشي چې هغه په زړه سره ددې یقین اوکړي چې زهٔ په هر حال او هر قدم باندې دالله تعالی د تربیت لاندې یم. زه دهغه لوئې ذات د رحمت څخه بغیر یو ساه هم نشم اخستې. او ددې تقاضا داده چې انسان د عبادت په طریقه باندې داسې مضبوط او مستقیم پاتې شي چې ددهٔ زړهٔ او قالب دواړه د الله تعالی د ربوبیت څخه انکاري نه وي.
هم په دې وجه کله چې رسول کریم ﷺ څخه سفیان بن عبد الله ثقفي رضي الله عنه سوال اوکړو چې یارسو الله ﷺ ماته د اسلام یو جامع خبره اوکړئ چې هغې څخه روستو .زهٔ د چا څخه تپوس اونه کړم. نو نبي کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې ﴿قل امنت بالله ثم استقم﴾ [رواه مسلم] (۱) یعنې ته په الله تعالی باندې د ایمان راوړلو اقرار اوکړه او بیا په دې باندې مستقیم پاتې شه د مستقیم پاتې کیدو څخه ظاهري مراد دادې چې په ایمان باندې مضبوطیا سره ولاړ اوسه او ددې د تقاضا مطابق په نیکو عملونو باندې هم.
هم ددې وجې علي رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چې د استقامت څخه مراد د فرض ادا کول دي. او حسن بصري رحمه الله فرمائي چې استقامت دې ته وائي چې په ټولو عملونو کښې دالله تعالی اطاعت اوکړې شي او دهغه نافرمانۍ څخه ځان بچ اوساتي. ددې څخه معلوم شو چې د استقامت جامع تعریف هغه دې کوم چې پورته د فاروق اعظم رضي الله عنه څخه نقل کړې شوې دې. او ابوبکر صدیق رضي الله عنه او عثمان رضي الله عنه تعریف هم دې ته طرفته راجع دې. اود هغې نیکو عملونو سره سره د عمل د اخلاص هم تاکید کړې شوې دې. [تفسیر مظهري] (۲) جصاص رحمه الله هم مذکوره تفسیر د ابو العالیه څخه نقل کړې دې او دا ئې اختیار کړې دې (۳) او ابن جریر رحمه الله هم دا اختیار کړې دې (۴).
﴿تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ﴾ د فرښتو نازلیدل او هغه خطاب کوم چې په دې آیت مبارک کښې دې ، ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چې دا به د مرګ په وخت کښې وي. او قتاده رحمه الله فرمائي چې دا به په محشر کښې قبرونو څخه د راپورته کیدو په وخت کښې وي. او وکیع بن جراح رحمه الله فرمائي چې دا به دریو وختونو کښې وي. اول د مرګ په وخت کښې ، بیا په قبرونو کښې او بیا په محشر کښې قبرونو څخه د راپورته کیدو په وخت کښې. او ابو حیان بحر محیط کښې فرمائي چې زه خو وایم چې مؤمنانو باندې د فرښتو نزول هر وخت کیږي او ددې اثرات او

---

(۱) صحیح مسلم، کتاب الإیمان، باب جامع أوصاف الاسلام: ج ۱، ص ۴۸
(۲) التفسیر المظهري: ج ۸، ص ۲۹۲، ۲۹۳
(۳) أحکام القرآن للجصاص تحت هذه الآیة: ج ۸، ص ۳۸۴
(۴) تفسیر ابن جریر: ج ۲۱، ص ۴۶۵

Scanned with Ca

برکات هر وخت موندې شي. البته مشاهده کول او دهغوئ د کلام آؤریدل به په دې موقعو کښې وي.

او ابو نعیم ثابت بناني رحمه الله ځخه نقل کړې دي چې هغوئ د سورة حم السجده تلاوت اوکړو او چې کله آیت ﴿تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلَٰٓئِكَةُ﴾ ته راؤرسیدو نو وې فرمائیل چې مونږ ته دا حدیث پاك رارسیدلې دې چې کله مؤمن د خپل قبر ځخه پورته کیږي نو دهٔ سره به هغه دوه فرښتې وي کومې چې به د نیا کښې دهٔ سره وې. او دهٔ ته به وائي چې ته هیڅ غم مه کوه بلکه د جنت زیرې واؤره. اوتاسره ددې وعده کړې شوې وه. او دهغوئ د کلام آؤریدو سره به مؤمنان په اطمینان کښې شي. [مظهری] (۱)

﴿وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِيٓ أَنفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ ۞ نُزُلًا مِّنْ غَفُورٍ رَّحِيمٍ﴾ فرښتې به مؤمنانو او مخلصانو ته اوفرمائي چې تاسو ته به جنت کښې هر هغه ځیز ملاویږي کوم چې ستاسو زړهٔ غواړي او هر هغه ځیز کوم چې تاسو غواړئ. ددې حاصل دادې چې ستاسو به هر خواهش پوره کیږي که تاسو یئ غواړئ او که نه غواړئ. مخکښې یې نزلا معنی میلمستیا اوفرمائیله او دې طرفته ئې اشاره اوکړه چې ډیر هغه نعمتونه به هم تاسوته ملاویږي چې د هغې خواهش لا ستاسو په زړونو کښې نه وي راغلې. لکه ځنګه چې د یو میلمه په مخکښې ډیر ځیزونه کیخودې شي او ددې د هغه په زړهٔ کښې هډو تصور نه وي. خاص کر کله چې د یو مالدار سړي میلمه وي. [مظهری] (۲)

**حدیث پاك:** رسول کریم ﷺ فرمائي جنت کښې به تاسو یو مرغئ اووینئ نو ستاسو زړهٔ کښې به دهغې د خوړلو خواهش پیدا شي. نو هم په هغه وخت کښې به هغه وریته شوې ستاسو مخکښې حاضره شي. ځینې روایاتو کښې دي چې هغه نه په اوور وریته کولې شي اونه به په لوګی. بلکه پخپله به پخه شوی ستاسو مخکښې حاضره شي. [رواه البزار، والبیهقی عن ابن مسعود رضي الله عنه، مظهری] (۳)

**حدیث پاك:** یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې رسول کریم ﷺ ا وفرمائیل چې که مؤمن په جنت کښې دا خواهش اوکړي چې دهٔ دې اولاد پیدا شي، نو حمل به شي وضع حمل به اوشي، بیا دهٔ دپیئوپریښودل ،بیا دهٔ ځوانیدل به یو ساعت کښې اوشي. [ترمذی وبیهقی وغیره، مظهری] (۴)

﴿وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّن دَعَآ إِلَى ٱللَّهِ﴾ دا د کاملو مؤمنانو د دویمې حصې حال دې چې دوئ پخپل ایمان او عمل باندې قناعت نه کوي. بلکه نورو خلقو ته ددې دعوت هم ورکوي. فرمائي چې دهغه چا ځخه احسن قول د چا کیدیشي چې د الله تعالی طرفته خلق رابلي. معلومه شوه چې د انسان په کلام کښې تولو ځخه ښه کلام هغه دې چې په هغې کښې خلقو ته دعوت ورکړې

(۱) التفسیر المظهری: ج ۸، ص ۲۹۳
(۲) التفسیر المظهری: ج ۸، ص ۲۹٤
(۳) التفسیر المظهری: ج ۸، ص ۲۹٤، ومسند البزار، رقم الحدیث: ۲۰۳۲، ومجمع الزوائد، رقم الحدیث: ۱۸۷۳٤
(۴) التفسیر المظهری: ج ۸، ص ۲۹٤، وجامع الترمذی، أبواب صفة الجنة، باب ما جاء ما لادنی اهل الجنة من الکرامة: ج ۲، ص ۸۳، وصحیح ابن حبان، رقم الحدیث: ۷۵۲۷

Scanned with Ca

شوې وي. دې کښې د دعوت الی الله ټول صورتونه داخل دي. ژبې سره، تحرير سره يا څه عنوان سره، مؤذن هم په دې کښې داخل دې. ځکه چې دې نورو ته دعوت ورکوي. په دې وجه عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چې دا آيت مبارک د مؤذن باره کښې نازل شوې دې. او د ﴿دَعَآ إِلَى اللَّهِ﴾ څخه روستو ﴿وَعَمِلَ صَالِحًا﴾ راغلې دې. ددې څخه مراد دادې چې د اذان او اقامت مينځ کښې دوه رکعته مونځ اوکړي.

يو حديث پاک کښې راغلى دى چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل: د اذان او اقامت مينځ کښې چې کومه دعا غوښتلې کيږي هغه نه رد کيږي. [رواه الترمذي و ابوداؤد عن انس رضي الله عنه، مظهري] [1] اذان او د اذان دجواب فضائل او برکات په صحيح احاديثو کښې ډير زيات راغلي دى. خو په دې کښې شرط دادې چې اذان ئې اخلاص سره کړې وي. او په دې کښې اجرت يا معاوضه نه وي. دا احاديث ددې [آيت مبارک لاندې] په تفسير مظهري کښې جمع کړې شوي دى.

﴿وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ﴾ دې ځائې څخه هغه خلقو ته يو خاص هدايت ورکړې شوې دې کوم چې دعوت الی الله کوي چې د هغه حاصل دادې چې هغوئ د بدئ بدله په بدئ سره نه ورکوي. بلکه د صبر او احسان څخه کار اخلئ. [ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ] يعنى د داعيان حق خصلت دا کيدل پکار دي چې خلقو لره په ښۀ طريقه د بدو څخه منع کړي. او هغه دا چې د بدئ بدله په بدئ سره نه ورکول دا عمل حسن دې. او احسن دادی چې چا تا سره بد اوکړل ته هغه معاف هم کړه او هغه سره احسان هم اوکړه. ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چې دې آيت مبارک کښې دا حکم دې چې کوم کس په باندې غصه اوکړي او ته دهغه په مقابله کښې د صبر څخه کار واخلې، څوک چې تاسره د جهالت ملاويدل کوي او ته هغه سره دحلم څخه کار واخلې او چاچې ته اوځپلې ته هغه معاف کړې، [مظهري] [2]

ځينې روايتونو کښې راغلى دى چې يو کس صديق اکبر رضي الله عنه ته کنځل اوکړل يا ئې ورته بدرد اووئيل نو دوئ رضي الله عنه دهغې په جواب کښې اوفرمائيل که ته په خپل کلام کښې رينښتونې يئ او زه مجرم او خطاکار يم نو الله تعالى دې ما معاف کړي. او که تا دروغ وئيلى وى نو الله تعالى دې تا معاف کړي. [قرطبي] [3]

| وَالنَّهَارُ | الَّيْلُ | وَمِنْ اٰيٰتِهِ |
|---|---|---|
| او ورځ | دا شپه | او دنښو دهغه نه دی |
| او ددهٔ [دقدرت په نښو کښې شپه، ورځ | | |

[1] ) التفسير المظهري: ج ۸، ص ۲۹۴، وسنن ابى داود، كتاب الصلاة، باب ما جاء فى الدعاء بين الاذان والاقامة: ج ۱، ص ۸٤

[2] ) التفسير المظهري: ج ۸، ص ۲۹٦

[3] ) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۳٦۱

Scanned with CamScanner

وَالشَّمۡسُ　وَالۡقَمَرُ ؕ　لَا تَسۡجُدُوۡا　لِلشَّمۡسِ　وَلَا لِلۡقَمَرِ　وَاسۡجُدُوۡا

او نمر | او سپوږمۍ | سجده مه کوئ تاسو | نمر ته | او نه سپوږمۍ ته | او سجده کوئ

نمر ، او سپوږمۍ دی| نو تاسو مه نمر ته سجدې کوئ | او مه سپوږمۍ ته | او صرف

لِلّٰهِ الَّذِیۡ　خَلَقَهُنَّ　اِنۡ كُنۡتُمۡ　اِیَّاهُ　تَعۡبُدُوۡنَ ﴿۳۷﴾

هغه الله ته | چې پیدا کړي ئې دي دا | که یئ تاسو | خاص هغه لره | چې عبادت کوئ

الله ﷻ ته سجدې کوئ | چاچې دا ټول څیزونه پیدا کړي دي | که تاسو صرف د الله ﷻ عبادت کول غواړئ

فَاِنِ اسۡتَكۡبَرُوۡا　فَالَّذِیۡنَ　عِنۡدَ رَبِّكَ　یُسَبِّحُوۡنَ لَهٗ

پس که چرې لوئي اوکړه دوئ | نو هغه څوک [فرښتې] | چې په نز درب ستا دی | تسبیح وائي هغه لره

نو که دوئ تکبر اوکړو | نو کومې [فرښتې] چې ستا درب سره دی | هغه شپه ورځ

بِالَّیۡلِ وَالنَّهَارِ　وَهُمۡ لَا یَسۡـَٔمُوۡنَ ﴿۳۸﴾　وَمِنۡ اٰیٰتِهٖۤ　اَنَّكَ

په شپه او ورځ کښې | او هغوئ نه ستړي کیږي | او دنښو دهغه نه داده | چې بیشکه ته

دده تسبیح وائي | او هیڅري نه ستړي کیږي | او د الله ﷻ د قدرت یوه نښه داده | ......چې ته زمکه

تَرَی الۡاَرۡضَ　خَاشِعَةً　فَاِذَاۤ　اَنۡزَلۡنَا　عَلَیۡهَا　الۡمَآءَ

وینې زمکه | او دهٔ [یعنی وچه] | پس کله چې | نازلې کړې مونږه | په هغې باندې | اوبهٔ

اوچه [خشکه] وینې | خو کله چې پرې مونږ اوبه نازلې کړو | نو هغه راپورته شي

اهۡتَزَّتۡ　وَرَبَتۡ ؕ　اِنَّ الَّذِیۡۤ　اَحۡیَاهَا

نو اوخوزیده [تازه شوه] | او اوپړسیدله | بیشکه هغه ذات | چې ژوندئ ئې کړه دا زمکه

اوتازه شي او اوپړسیږي | ..........بیشکه کوم ذات چې زمکه ژوندئ کړه | هغه د مړو

لَمُحۡیِ الۡمَوۡتٰی ؕ　اِنَّهٗ　عَلٰی كُلِّ شَیۡءٍ　قَدِیۡرٌ ﴿۳۹﴾

خامخا ژوندي کونکې دې دمړو | بیشکه هغه | په هر څیز باندي | قادر دې |

ژوندی کونکې هم دې| په دې کښې شک نشته چې هغه په هر څه قادر دې

## آسان ترجمه قرآن

او بعضې د نښو د الله تعالیٰ نه شپه او ورځ . او نمر او سپوږمۍ ده. مه نمر ته سجده کوئ، او مه سپوږمۍ ته، او سجده کوئ صرف هغې الله تعالیٰ ته. کوم الله تعالیٰ چه دا څیزونه پیدا کړي دي، که واقعي تاسو خالص هم د هغه عبادت کونکې یئ. بیا هم که (دا کافران) د تکبر نه کار واخلي. نو (اخلي دې) ځکه چه کومې (فرشتې) ستا رب سره دي، هغوی شپه او ورځ د هغه تسبیح بیانوی، او هغوی ستړې کیږی نه او دهغه د نښو نه دا هم ده، چه ته زمکه وینې، چه مړه ده بیا چه کله مونږ په هغې باندې اوبه نازلې کړې، هغه په حرکت کښې راغله. او اوپړسیده، حقیقت دادې، چه کوم ذات دا زمکه ژوندئ کړه، هم هغه مړو لره ژوندې کونکې دی، یقیناً هغه په هر څیز باندې قادر دې.

Scanned with Ca

## خلاصه تفسير

﴿وَمِنْ اٰيٰتِهِ الَّيْلُ﴾ [او دهغه د] قدرت او توحيد د [نښونه شپه ده ﴿وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ﴾ او ورځ ده اونمر دي او سپوږمۍ] پس ﴿لَا تَسْجُدُوْا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ﴾ [تاسو خلق مه نمر ته سجده کوی اونه سپوږمۍ ته] لکه چه صابئینویه دستورو عبادت کولو لکه چه په کشاف[1] کښې دی [او] صرف ﴿وَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِیْ خَلَقَهُنَّ﴾ [هغه خدای ته سجده کوئ چاچه دې] ټول [نښولره پيداکړي دي ﴿اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ﴾ که تاسو دالله تعالی عبادت کوونکی يئ] يعنی که دالله تعالی عبادت کوئ نو هغه صرف په دې صورت کښې کيدې شی چه دهغه سره دبل چا عبادت مه کوئ د مشرکينو په شان دالله تعالی دعبادت سره که نورو لره په عبادت کښې شريك کړل نو بيا هغه دالله تعالی عبادت نه پاتې کيږی ﴿فَاِنِ اسْتَكْبَرُوْا﴾ [بياکه داخلق] د توحيدپه عبادت اختيارولو او خپل ابائی رسمونو شرك لره دپريښودنه عار [اوتکبرکوی [نو دهغوی حماقت دې ﴿فَالَّذِیْنَ عِنْدَ رَبِّكَ يُسَبِّحُوْنَ لَهٗ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْئَمُوْنَ﴾ ځکه چه کومې فرښتې ستا درب مقربې دی هغه شپه ورځ دهغه پاکی بيانوی او هغه] په دې سره ذرا [نه ستړی کيږی] هرکله چه دالله تعالی مقربې فرښتې کومې چه ددې خلقو نه په لاکونو درجه مکرمې او معظمې دی هغوی لره عارنه ورځی نو ددې احمقانو د عارکولو څه موقع ده ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖۤ اَنَّكَ تَرَى الْاَرْضَ خَاشِعَةً﴾ [اومنجمله دهغه د] قدرت اوتوحيد د [نښونه يوه داده چه ته مزکې لره وينې په عاجزئ سره] پرته [ده ﴿فَاِذَاۤ اَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ﴾ بيا چه هرکله مونږ په دې اوبه وور وو نو هغه زرغونه او تازه شی] ددې نه په توحيدباند هم استدلال کيدې شی اومرګ نه پس په دوباره ژوندی کيدو باندې هم ځکه ﴿اِنَّ الَّذِیْۤ اَحْيَاهَا لَمُحْیِ الْمَوْتٰى﴾ [چه چامزکې لره] په دې شان [ژوندئې کړه هغه به مړو لره] د هغو په مناسب [ژوندی کړی ﴿اِنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ﴾ بيشکه هغه په هرڅه باندقادر دې].

## خلاصه تفسير

**الله تعالی څخه سوا بل چاته سجده کول جائز نه دی** :: ﴿لَا تَسْجُدُوْا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِیْ خَلَقَهُنَّ﴾ ددې آيت مبارك څخه ثابت شو چې سجده صرف يو الله تعالی ته جائزده . د هغه لوئې ذات څخه علاوه ستوری يا انسان ته سجده کول حرام دی . که هغه د عبادت په نيت سره وی او که د تعظيم په نيت سره . په دې دواړو صورتونو کښې باجماع امت حرام دی . فرق په دې کښې صرف دومره دې چې څوك د عبادت په نيت سره سجده کوی نو هغه به کافر وی ا و چې څوك د تعظيم د پاره سجده اوکړی نو هغه ته به کافر نه وايو خو داسې کوؤنکې به سزاوار او مجحرم او فاسق وی.

د عبادت سجده خو د الله تعالی څخه سوا بل چاته کول په يو امت کښې هم حلال نه وو. ځکه چې دا شرك دې. او شرك په ټولو شريعتونو کښې حرام وو. البته د تعظيم سجده پرومبی شريعتونو کښې جائز وه. دنيا ته د راتلو څخه وړاندې آدم ﷺ ته ټولو فرښتو ته دسجدې کولو حکم وو. يوسف ﷺ ته د دوئ رونړو او پلار سجده اوکړه . او د دې ذکر قرآن کريم کښې راغلې دې.

---

[1] ) تفسير الکشاف تحت هذه الآية: ج ٦، ص ١٦١

Scanned with Ca

باتفاق فقهاء امت دا حكم دغې شريعتونو كښې وو خو اسلام كښې منسوخ شو. او غير الله ته سجده كول حرام كرې شو. ددې مسئلې پوره تفصيل د احقر په رساله المقالة المرضية فى حكم سجدة التحية كښې مذكوردې. دا په عربى ژبه كښې دې اوددې اردو كښې ترجمه شوې ده.

﴿وَهُمْ لَا يَسْـَٔمُونَ ۩﴾ په دې باندې د ټول امت اجماع ده چې په دې سورت كښې د تلاوت سجده واجب ده. په مقام سجده كښې د عالمانو اختلاف دې. قاضى ابوبكر ابن العربى په احكام القرآن كښې ليكلى دى چې على رضی الله عنه او ابن مسعود رضی الله عنه به د رومبى آيت مبارك په خاتمه باندې سجده كوله يعنى ﴿إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ۝﴾ باندې. او امام مالك رحمه الله هم دا اختيار كړى دى او ابن عباس رضی الله عنه به د دويم آيت مبارك ﴿وَهُمْ لَا يَسْـَٔمُونَ ۝﴾ په آخر باندې سجده كوله. او عبدالله بن عمر رضی الله عنه هم دا فرمائيلى دى چې په دويم آيت مبارك سجده كوئ. مسروق رحمه الله، ابو عبدالرحمان سلمى رحمه الله، ابراهيم نخعى رحمه الله، ابن سيرين رحمه الله، قتاده رحمه الله وغيره او جمهور فقهاء كرامو به هم په دې آيت مبارك ﴿وَهُمْ لَا يَسْـَٔمُونَ ۝﴾ باندې سجده كوله. امام ابوبكر جصاص رحمه الله احكام القرآن كښې فرمائى چې هم دا د ټولو امامانو مذهب دې. او فرمائى چې د اختلاف په وجه احتياط هم په دې كښې دې چې په دويم آيت مبارك دې سجده اوكړې شى ځكه كه سجده په رومبى آيت مبارك باندې واجب وى نو دا به ادا شى. او كه دې آيت مبارك سره واجب وى نو ددې ادا كيدل خو ظاهر دى[1]

| إِنَّ الَّذِينَ |
|---|
| بيشكه هغه كسان |
| ......... كوم خلق |

| يُلْحِدُونَ | فِىٓ ءَايَٰتِنَا | لَا يَخْفَوْنَ | عَلَيْنَآ | أَفَمَن |
|---|---|---|---|---|
| چې اوړى دحق نه باطل ته | په آيتونو زمونږ كښې | نۀ دى پټ | په مونږ باندې | آيا پس هغه څوك |
| چې زمونږ په آيتونو كښې گمراهى اختياروى | هغوئ زمونږ نه پټ نه دى | | | نو آيا څوك چې اورته |

| يُلْقَىٰ | فِى النَّارِ | خَيْرٌ | أَم مَّن | يَأْتِىٓ | ءَامِنًا |
|---|---|---|---|---|---|
| چې غورزولې كيږى به | په وور كښې | هغه بهتر دې | يا هغه څوك | چې راځى به | په حالت دامن كښې |
| اوغورځولى شى | ......... هغه بنه شو يا څوك چې دقيامت په ورځ په امن او امان | | | | |

| يَوْمَ الْقِيَٰمَةِ | اعْمَلُوا | مَا شِئْتُمْ | إِنَّهُۥ | بِمَا | تَعْمَلُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په ورځ دقيامت | عمل كوئ | هغه چې غواړئ تاسو | بيشكه هغه | په هغه څه | چې تاسو ئې كوئ |
| [الله ﷻ ته مخامخ] پيش شى | ستاسو چې څه زړه غواړى هغه كوئ | بيشكه الله تعالى ستاسو د كړو | | | |

| بَصِيرٌ ۝ | إِنَّ الَّذِينَ | كَفَرُوا | بِالذِّكْرِ | لَمَّا |
|---|---|---|---|---|
| ليدونكې دې | بيشكه هغه كسان | چې انكار ئې اوكړو | د ذكر [نصيحت] نه | هر كله چې |
| ليدونكې دې | كوم خلق چې ددې قران نه څه وخت چې دوئ ته راغلو | | | |

---

[1] أحكام القرآن للجصاص تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۳۸۶

Scanned with Ca

جَآءَهُمْ ۚ وَاِنَّهٗ لَكِتٰبٌ عَزِيْزٌ ﴿۴۱﴾ لَّا يَاْتِيْهِ الْبَاطِلُ

راغي هغوئ ته | او بيشكه هغه | خامخا كتاب دې | قوي | چي نۀ شي راتلي هغه ته | باطل

انكار او كړو [برباد شول] او دا قران ډير دعزت كتاب دې | چې غلطه خبره ورته نه د وړاندې

مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهٖ ۭ تَنْزِيْلٌ مِّنْ حَكِيْمٍ

دمخکښې طرف ددې نه | اونۀ دروستو طرف ددې نه | نازل کړې شوې دې | دطرفه ديو حکيم |

نه راتلې شی| اونه د روستو نه | داد حکمت والا او ستائيلی شوې [الله ﷻ] نازل شوې [كتاب] دې

حَمِيْدٍ ﴿۴۲﴾ مَا يُقَالُ لَكَ اِلَّا مَا قَدْ قِيْلَ لِلرُّسُلِ

ستائيلې شوی الله نه | نۀ وئيلې کيږی | تاته | مگر هغه څه | چې وئيلې شوی دی | رسولانوته |

............تاته هم هغه شان خبرې كولې شی | څنگه چې ستانه وړاندې پيغمبرانو ته وئيلې شوې وې

مِنْ قَبْلِكَ ۭ اِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ وَّذُوْ عِقَابٍ اَلِيْمٍ ﴿۴۳﴾

مخکښې ستانه | بيشكه رب ستا | خاوند دبخښنې دې | او ورکونکې دعذاب دردناک دې |

............ | بيشكه ستارب بښونكې دې | ................او ددردناک عذاب خاوند هم دې

وَلَوْ جَعَلْنٰهُ قُرْاٰنًا اَعْجَمِيًّا لَّقَالُوْا

او كه جوړ كړې وې مونږه دا كتاب | قرآن عجمي | نو خامخا به وئيلې دې خلقو |

اوكه مونږ دا قران پاک په عجمی [ژبه کښې] رالیږلې وې | نو دوئ به وئیل چې

لَوْلَا فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ ۭ ءَاَعْجَمِيٌّ وَّعَرَبِيٌّ ۭ

ولې واضحه بيان نۀ کړې شو | آيتونه ددۀ | آيا كتاب عجمی دې | او مخاطب عربی دې |

ددې آيتونو ولې صفا صفا نه دی بيان شوی | دالا څنگه خبره ده چې [كتاب] عجمی او [پيغمبر] عربی دې

قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هُدًى وَّشِفَاۗءٌ ۭ

ورته اووايه | دا قرآن | دپاره دهغه كسانو | چی ايمان ئې راوړې دې | هدايت دې | او شفا ده |

[اې نبی ﷺ] نه ورته اووايه | چې دا كتاب ايماندارو دپاره هدايت او شفاء ده

وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ فِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرٌ وَّهُوَ

او هغه كسان | چی ايمان نه راوړی | په غوږونو دهغوئ كښې | درونوالې دې | او دا |

او څوک چې ايمان نه راوړی | د هغوئ په غوږونو كښې كوڼوالې دې | ..........او

عَلَيْهِمْ عَمًى ۭ اُولٰۗىِٕكَ يُنَادَوْنَ مِنْ مَّكَانٍۢ

په هغوئ باندې | پټئ ده | دا كسان چې دی | لكه چې آواز كيدې شی دوئ ته | دخائې

قران پاک دهغوئ په حق كښې ړوندوالې دې | داهغه كسان دی چې د ډيرې لرې خائې نه

Scanned with Ca

| بَعِيدٍ | وَلَقَدْ آتَيْنَا | مُوسَى الْكِتَابَ | فَاخْتُلِفَ | فِيهِ |
|---|---|---|---|---|
| لرې نه | او ورکړې وو مونږه | موسى ته کتاب | پس اختلاف اوکړې شو | په هغې کښې |

ورته آواز کولې شي | او مونږ موسى ﷺ ته کتاب ورکړې وو | بيا په هغې کښې هم اختلاف اوکړې شو

| وَلَوْلَا كَلِمَةٌ | سَبَقَتْ | مِن رَّبِّكَ | لَقُضِيَ |
|---|---|---|---|
| اوکه نه وې خبره | ړومبې مقرر شوې | دطرفه درب ستانه | نو خامخا به فيصله شوې وه |

اوکه چرې ستا درب د طرفه يوه خبره د وړاندې نه فيصله شوې نه وه | نو ددوئ معامله به

| بَيْنَهُمْ | وَإِنَّهُمْ | لَفِي شَكٍّ | مِّنْهُ | مُرِيبٍ |
|---|---|---|---|---|
| په منځ ددوئ کښې | او بيشکه دوئ | خامخا په شک کښې دي | دطرفه دهغه نه | په شک پريشانه کونکي کښې |

خلاصه شوې وه | او دوئ ددې کتاب په حق کښې په شک کښې پريشانه پراته دي

| مَنْ عَمِلَ | صَالِحًا | فَلِنَفْسِهِ | وَمَنْ أَسَاءَ |
|---|---|---|---|
| چاچې عمل اوکړو | نيک | پس وې کړه دپاره دخان خپل | او چاچې بدعملي اوکړه |

چا چې نيک عمل اوکړو | نو فائده هم هغه ته ملاويږي | ................اوچا چې گناه اوکړه |

| فَعَلَيْهَا | وَمَا رَبُّكَ | بِظَلَّامٍ | لِّلْعَبِيدِ |
|---|---|---|---|
| نو سزا ئې په هغه باندې ده | او نه دې رب ستا | ظلم کونکې | بندګانو لره |

نقصان ئې هم هغه ته رسيږي | او ستارب په خپلو بندګانو زياتې کونکې نه دې |

**آسان ترجمه قرآن**

يقيناً هغه خلق چه زمونږ د آيتونو باره کښې کږه لاره اختياروي هغوی زمونږ نه پټيدې نشي، آيا پس هغه څوک چه په اور کښې غورزولې شي، هغه بهتر دې، يا هغه سړې چه دقيامت په ورځ په امن سره راشي؟ (صحيح دا) چه څه غواړئ، کوئ يقين اوکړئ چه هغه ستاسو هر کار لره وينې. بې شکه (هغې کسانو ډير بد اوکړل) چه هغوی ددې نصيحت والا کتاب نه انکار اوکړو هر کله چه هغه دوی ته راغلو. حالانکه هغه ډير عزت والا کتاب دې. چه هغې ته باطل نشي راتلې، نه دمخکښې نه او نه د روستو نه، دا د هغه ذات د طرف نه نازلولې شي، چه د حکمت مالک دې، ټول تعريفونه هغه دپاره دي (اے پيغمبره) تاته چه کومې خبرې بيانولې شي، دا هم هغه خبرې دي، چه ستا نه مخکښې پيغمبرانو ته به بيانولې شوې يقين اوساته، چه ستا پروردګار مغفرت کونکې هم دې، او دردناکه سزا ورکونکې هم دې. او که مونږ دې (قرآن) لره عجمي جوړ کړې وې، نو دې خلقو به وئيل چه: ددې آيتونه ښکاره ولې بيان نه کړې شو؟ دا څرنګه خبره ده، چه قرآن عجمي دې، او پيغمبر عربي؟ اووايه چه: کومو خلقو چه ايمان راوړې دې، د هغوی دپاره دا هدايت او شفا ده، او کوم خلق چه ايمان نه راوړي، دهغوی په غوږونو کښې کوڼړ والې دې، او دا قرآن هغوی دپاره په تياره کښې د وُرکيدلو ذريعه ده، دغه کسان چه دي، دوی ته د لرې ځائې نه آواز ورکولې شي او مونږ موسٰى عليه السلام ته هم کتاب ورکړې وو بيا په هغې کښې هم اختلاف اوشو، او که ستا د پروردګار د طرف نه يوه خبره د مخکښې نه مقرر کړې شوې نه وه نو ددغې خلقو په مينځ کښې به

Scanned with Ca

ئې فیصله کړې وه، اوحقیقت دادې، چه دا خلق په داسې شک کښې پراته دی، چه هغې دوی لره په تردد (پریشانۍ) کښې اچولې دی څوک چه نیک عمل کوی، نو هغه د خپلې فائدې دپاره کوی، او څوک چه بدی کوی، نو هغه د خپل نقصان دپاره کوی او ستا پروردګار په بندګانو باندې ظلم کونکې نه دې.

## خلاصه تفسير

﴿ اِنَّ الَّذِیْنَ یُلْحِدُوْنَ فِیْۤ اٰیٰتِنَا ﴾ [بیشکه کوم خلق چه زمونږ په ایتونو کښې کوږوالې کوی] یعنی داچه زمونږ دایتونو تقاضا په دې ایمان راوړل بیاپرې استقامت ساتل دی داپریږدی او دروغژن کوی ئې لکه چه په درمنثور([1]) کښې دی دقتاده رحمه الله نه ﴿لَا یَخْفَوْنَ عَلَیْنَا﴾ [دغه خلق زمونږ نه پټ نه دی] دغولره به مونږ د جهنم عذاب ورکړو ﴿اَفَمَنْ یُّلْقٰی فِی النَّارِ﴾ [پس ایاکوم سړې چه په دوزخ کښې وغورزولې شی] لکه کافر ﴿خَیْرٌ اَمْ مَّنْ یَّاْتِیْۤ اٰمِنًا یَّوْمَ الْقِیٰمَةِ﴾ [هغه ښه دې یا هغه سړې کوم چه دقیامت په ورځ په امن اوامان سره] جنت ته [راشي] وړاند ددوی د ویرولو دپاره ارشاد دې چه ﴿اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ﴾ [څه مو زړه غواړی کوئ ﴿اِنَّهٗ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِیْرٌ﴾ هغه ستاسو هر څه وینی] په یو وار به سزا درکړی ﴿اِنَّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِالذِّكْرِ لَمَّا جَآءَهُمْ﴾ [بیشکه کوم خلق چه ددې قرآن کله چه هغه دغوته ورسیږی انکارکوی] په دغو کښې په خپله د تدبیر کمې ده [او] په دې قرآن کښې هیڅ کمې نشته ځکه چه ﴿وَاِنَّهٗ لَكِتٰبٌ عَزِیْزٌ﴾ [دا] قرآن [لوئ باوقعت کتاب دې ﴿لَّا یَاْتِیْهِ الْبَاطِلُ مِنْۢ بَیْنِ یَدَیْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهٖ﴾ چه په دې کښې غیرواقعی خبره نه ددې دوړاند دطرف نه راتلې شی اونه ددې دوروستو طرف نه] یعنی په دې کښې په هیڅ اړخ او هیڅ طرف کښې ددې احتمال نشته چه داقرآن منزل من الله نه وی او بیاخلاف واقعه دې ته منزل من الله ووئیلې شی لکه چه کفارو به په دهٔ داشبهه کوله الله تعالی په یوه قاعده کلیه سره ددې شبهې خاص ازاله وفرمائیله دغه شان ددې اعجاز دټولو په نزد مسلم دې په دې وجه داخبره ثابته شوه چه ﴿تَنْزِیْلٌ مِّنْ حَكِیْمٍ حَمِیْدٍ﴾ [دا دالله تعالی حکیم محمود] الذات والصفات [دطرف نه نازل کړې شوې دې] او باوجود ددې کوم چه دا خلق ستا تکذیب کوی نو په دې پوه شه اوتسلی لره چه ﴿مَا یُقَالُ لَكَ﴾ [تاته هغه خبرې] دتکذیب او ازار [کولې شی ﴿اِلَّا مَا قَدْ قِیْلَ لِلرُّسُلِ مِنْ قَبْلِكَ﴾ کومې چه ستا نه وړاند رسولانو ته وئیلې شوی دی] هغوی صبرکړې وو ته هم صبرکوه او په دې سره هم تسلی حاصله کړه چه ﴿اِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ﴾ [یقینا ستا رب لوئ مغفرت والا دې ﴿وَّذُوْ عِقَابٍ اَلِیْمٍ﴾ او دردناکه سزا ورکوونکې دې] پس که دا مخالفین دخلاف نه واپس نه شول او مستحق د مغفرت نه شول نو دوی ته به سزا هم ورکړم بیا ته پریشان ولې ئې [او] داخلق یوه شبهه داکوی چه داقرآن څه حصه عجمی هم پکار وه لکه چه په درمنثور کښې د قریشو داسې قول دحضرت سعیدبن جبیر رحمه الله نه نقل کړې دې چه په دې سره به ددې اعجاز ښه ظاهرشوې وو چه نبی کریم ﷺ کوم چه په عجمیٔ ژبه نه پوهیږی هغه په عجمیٔ کښې خبرې کوی([2]) پس خبره داده چه ﴿وَلَوْ جَعَلْنٰهُ قُرْاٰنًا اَعْجَمِیًّا﴾ [که مونږ دې لره] ټول یاخنې [په عجمیٔ] ژبه قرآن جوړولې] نو دابه هرګز نه کیده چه دائ منلې وې بلکه په دې کښې به ئې یوبل حجت راویستلې وو ځکه چه هرکله دمنلو او پوهیدو اراده ئې نشته نو څه ناڅه بهانې جوړولې شی چنانچه که داسې

---

[1]) الدر المنثور تحت هذه الآية: ج ۹، ص ٤٨
[2]) الدر المنثور تحت هذه الآية: ج ۹، ص ٥١

وی ﴿لَقَالُوۡا لَوۡلَا فُصِّلَتۡ اٰيٰتُهٗ﴾ [نو داسې به يې وئيل چه ددې ايتونه] داسې [صفاصفا ولې بيان نه کړې شول] چه مونږ پرې پوهيدې يعنی په عربئ کښې ولې رانغې که ځنې عجمی وې نو وئيل به يې چه دا ځنې هم عربی ولې نه دې او داسې به يې وئيل چه ﴿ءَاَعۡجَمِیٌّ وَّعَرَبِیٌّ﴾ [داځه خبره ده چه عجمی کتاب او رسول عربی] لنډه داچه اوس کوم قرآن عربی دې نو وائی چه عجمی ولې نه دې اوکه عجمی وې نو وئيل به يې چه عربی ولې نه دې په يو حال ددوی قرار نشته بيا دعجمی کيدو نه ځه فائده وه وړاند د دې مضمون سره دجواب ورکولو حکم دې چه اے پيغمبر ﴿قُلۡ هُوَ لِلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا هُدًی﴾ [ته ووايه چه دا قرآن دايماندارو دپاره خو] دنيکو خبرو په ښودنه کښې [رهنمادې او] د بدوکارونو نه چه کوم مرض په زړونو کښې پيداکيږی هرکله چه ددې قرآن په رهنمايئ باند عمل وکړې شی نو داد هغه مرضونونه ﴿وَّشِفَآءٌ﴾ [شفاء ده] پس چونکه په ايماندارو کښې دتدبر اوطلب حق کمې نه وو د دوی په حق کښې قرآن د خپل حقانيت په سبب نافع شو ﴿وَالَّذِيۡنَ﴾ [اوکوم چه] سره دظهور د حق نه عنادا ﴿لَا يُؤۡمِنُوۡنَ فِیۡۤ اٰذَانِهِمۡ وَقۡرٌ﴾ [ايمان نه راوړی د هغوی په غوږونو کښې دروندوالې دې] چه حق لره په انصاف او تدبرسره نه اوری او هغه کمی هم دغه ده [او] ددې کمئ په وجه ﴿وَّهُوَ عَلَيۡهِمۡ عَمًی﴾ [هغه قرآن ددوی په حق کښې ړوند والې دې] دانصاف او تدبر په کموالی سره تعصب ته قوت رسيږی او تعصب دهدايت قبلولو نه مانع بلکه دزياتې ګمراهئ سبب کيږی د ړوندوالی سبب کيدو وجه داده لکه نمر چه عالم ته رڼا ورکوی ليکن ښاپيرك ړندوی او ﴿اُولٰٓئِكَ﴾ [داخلق] دحقې خبرې اوريدو باوجود دنفع نه محروم کيدو کښې داسې دی چه ګويا ﴿يُنَادَوۡنَ مِنۡ مَّكَانٍۭ بَعِيۡدٍ﴾ [دځه لرې ځائ نه] دوی لره [بللې شی] چه اواز اوری خو پوهيږی پرې نه [او] ستا دتسلئ دپاره لکه ځنګه چه بره په اجمال سره درسولانو ذکر شوې دې اوس خاص دموسیؑ ذکر کيږی چه ﴿وَلَقَدۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسَی الۡكِتٰبَ﴾ [مونږ موسیؑ [لره هم کتاب ورکړې وو ﴿فَاخۡتُلِفَ فِيۡهِ﴾ پس په هغې کښې هم اختلاف وشو] چا ومنلو چاونه منلو داځه نوې خبره نه ده شوې پس ته غمژن کيږه مه [او] دامنکران داسې مستحق دعذاب دی چه ﴿وَلَوۡلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتۡ مِنۡ رَّبِّكَ﴾ [که يوه خبره نه وی کومه چه ستا درب دطرف نه مقرر شوې ده] چه پوره عذاب به دوی ته په اخرت کښې ورکوم ﴿لَقُضِیَ بَيۡنَهُمۡ﴾ [نو دهغوی قطعی [فيصله به] په دنيا کښې [شوې وه ﴿وَاِنَّهُمۡ﴾ او داخلق] سره د قائميدو ددليلونو نه ﴿لَفِیۡ شَكٍّ مِّنۡهُ مُرِيۡبٍ﴾ [تراوسه پورې ددې] فيصلې يعنی عذاب موعود [دطرف نه داسې په شك کښې دی کوم چه دوی لره په تردد کښې اچولی دی] چه د عذاب يې هډو يقين نه راځی حال دادې چه فيصله به ضرور واقع شی او ددې فيصلې حاصل دادې چه ﴿مَنۡ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفۡسِهٖ﴾ [کوم سړې نيك عمل کوی هغه دخپلې نفع دپاره] يعنی هلته به ددې نفع او ثواب بيامومی ﴿وَمَنۡ اَسَآءَ فَعَلَيۡهَا﴾ [اوکوم سړې چه بدعمل کوی د هغې وبال] يعنی ضرر او عذاب [به په دهٔ پريوځی ﴿وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِّلۡعَبِيۡدِ﴾ او ستارب په بندګانو ظلم کوونکې نه دې] چه ځه نيکی کومه چه دشرطونو مطابق عملی کړې شی هغه شميرنه پاتې شی يا ځه بدی زياته شمير کړې شی.

**معارف او مسائل**

**دکفر يو خاص قسم الحاد دې . ددې تعريف او احکام ::** ﴿اِنَّ الَّذِيۡنَ يُلۡحِدُوۡنَ فِیۡۤ اٰيٰتِنَا﴾ ددې نه وړاندې آيت مبارك کښې د توحيد او رسالت منکرينوته زجر او دهغوئ د عذاب ذکر وو. هغوئ د رسالت

Scanned with Ca

ښکاره انکار کولو. دي ځاني کښې د انکار د یو خاص قسم ذکر کیږي چې هغې ته الحاد وئیلې شي. د لحد او الحاد معنی یو طرفته مائل کیدل ده. دقبر لحد ته هم په دې وجه لحد وئیلې کیږي چې هغه یو طرفته مائل وي. د قرآن وحدیث په اصطلاح کښې د آیات قرآنی نه انحراف کولو ته الحاد وئیلې کیږي. دا خو د لغوي معنی اعتبار سره عام دې که دا انحراف په ښکاره طور سره وي او که په فاسدو تاویلاتو سره وي. خو عام طور سره الحاد داسې انحراف ته وئیلې کیږي چې په ظاهره خو د قرآن عظیم الشان په آیتونو باندې ایمان راوړي او ددې د تصدیق دعوی اوکړي خو ددې داسې معنې اوکړي چې هغه د قرآن و سنت او د جمهور امت نه خلاف وي او هغې سره د قرآن عظیم الشان مقصد الټه شي. ابن عباس رضی الله عنهما نه د الحاد هم دا معنی منقول ده. فرمائي چې ﴿الالحاد هو وضع الکلام علی غیر موضعه﴾([1]) او مذکوره آیت مبارك کښې ارشاد دې چې ﴿لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا﴾، دا هم ددې یوه قرینه ده چې الحاد یو د اسې کفر دې چې دوئ ئې پټول غواړي خو الله ﷻ فرمائي چې دوئ زمونږ نه خپل کفر نه شي پټولې.
او مذکوره آیت مبارك نه دا ښکاره دي چې د قرآني آیتونو مبارکو نه په صفا طور سره انکار کول، یا په معنی کښې باطل تاویلات کول چې د قرآن کریم د بدلون فکر اوکړي دا ټول کفر او ضلالت دي.
خلاصه دا ده چې الحاد یو قسم کفر او نفاق دې چې په ظاهره د قرآن پاك آیتونه مني او ددې اقرار کوي خو د قرآن پاك د آیتونو داسې معنی اوکړي چې هغه د قرآني نصوصو او سنت او د اسلام د اصولو خلاف دي. امام ابو یوسف رحمه الله په خپل کتاب الخراج کښې فرمائي چې:
﴿کذلك الزنادقة الذین یلحدون وقد کانوا یظهرون الاسلام﴾([2])[همدا شان هغه زندیقان خلق دي چې هغوئ الحاد کوي او په ظاهره د اسلام دعوی کوي]
ددې نه معلومه شوه چې ملحد او زندیق دواړه یو معنی لري. او دا داسې کافر ته وائي چې په ظاهره د اسلام دعوې کوي او په حقیقت کښې ددې د احکامو نه د انحراف کولو خیال ئې په زړه کښې وي او د قرآن کریم داسې معنی کوي چې هغه د قرآن وسنت د نصوصو نه خلاف وي.
**د یوې غلطئ ازاله:** د عقائدو په کتابونو کښې یوه ضابطه بیان شوې ده چې متاؤل ته کافر نه دې وئیل پکار. یعنی هغه کس چې باطل عقائد او کفریه کلمات په څه تاویل سره اختیار کړي نو هغه کافر نه دې. خو ددې ضابطې مفهوم که عام واخستې شي چې په یقیني او قطعي حکم کښې څنګه تاویل اوکړي، او څنګه هم فاسد تاویل اوکړي، نو هغه بهر حال کافر نه دې، نو ددې نتیجه خو دا راوځي چې په دنیا کښې مشرکانو، بت پرستو او یهودیانو او نصرانیانو ته کافر وئیل نه دي پکار. ځکه چې د بت پرست مشرك تاویل خو په قرآن پاك کښې مذکور دې. ﴿مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَىٰ﴾ یعنی مونږ خو في نفسه د بتانو عبادت نه کوؤ بلکه ددې دپاره کوؤ چې هغوئ به زمونږ سفارش الله ﷻ ته کوي او مونږ به الله ﷻ ته نزدې کړي. عبادت خو په حقیقت کښې د الله تعالی دې. خو قرآن کریم ددې تاویل باوجود دوئ ته کافر

---

[1] ) الدر المنثور: ج ۹، ص ۴۸، وتفسیر القرطبي: ج ۱۵، ص ۳۶۶

[2] ) کتاب الخراج لأبي یوسف، باب في الزیادة والنقصان والضیاع في الزکاة، فصل في حکم المرتد عن الاسلام والزنادقة: ج ۱، ص ۱۹۶

Scanned with Ca

اووئیل . د یهودیانو او نصاری تاویلونه خو ډیر مشهور او معروف دی . او ددې باوجود قرآن کریم هغوئ ته کافر وئیلی دی . ددې نه معلوم شو چې متاؤل ته د کافر وئیلو مفهوم عام نه دې .
په دې وجه علماء کرامو او فقهاء کرامو ددې وضاحت کړې دې چې دا تاویل چې د تکفیر نه مانع ګرځی دهغې شرط دادې چې د دین په ضرورتونو کښې دهغې قطعی مفهوم خلاف وی . د دین دضرورتونو نه مراد هغه احکام او مسائل دی چې هغه په اسلام او مسلمانانو کښې دومره متواتر او مشهور وی چې د مسلمانانو یو جاهل هم په هغې باندې پوهیږی لکه پنځه وخته مونځ فرض کیدل . دسحر دوه ، ماسپخین څلور رکعته فرض کیدل . د رمضان روژې فرض کیدل . سود ، شراب ، د خنزیر حرامیدل وغیره . که یو کس ددې مسائلو متعلق په قرآنی آیتونو مبارکو کښې نه داسې تاویل اوکړی چې هغې دمسلمانانو چې کوم مشهور او معروف مفهوم دې هغه الټه شی ، نو هغه بیشکه بې شبهې باجماع امت کافر دې . ځکه چې دا په حقیقت کښې د رسول کریم ﷺ د تعلیماتو نه انکار دې . او د جمهورو په نزد د ایمان تعریف دادې چې :
﴿تصدیق النبی صلی الله علیه وسلم فیما علم مجیئه به ضرورة﴾ [یعنی د نبی کریم تصدیق کول په هغه تولو امورو کښې چې دهغې بیانول او حکم کول د رسول کریم ﷺ نه ضرورةً ثابت وی یعنی داسې یقینی ثابت وی چې علماء کرامو نه سوا عام هم په هغې باندې پوهیږی]
پدې وجه به دکفر تعریف ددې په مقابل کښې دا وی چې د کومو څیزونو راوړل د رسول کریم ﷺ نه ضروری او قطعی طور سره ثابت وی په هغې کښې یو نه هم انکار کول کفر دې .
نو کوم کس چې ددین په ضرورتونو کښې تاویل اوکړی او دا حکم بدل کړی نو هغه د رسول کریم ﷺ راوړلې شوی تعلیم نه انکار کوی .

**دې زمانه کښې د کفر او الحاد صورت حال** :: دې زمانه کښې یو طرفته ددین اود دین د احکامو نه جهالت او غفلت دومره انتهاته رسیدلې دې چې نوی لیک لوست والا خلق هم ددین د ضرورتونو نه ناخبره دی . او بل طرف ته جدید تعلیم چې د هغې بنیاد په ماده پرستئ باندې دې ، څه ددې د اثر په وجه ، په دې باندې د یورپی مستشرقینو خور شوی اسلام خلاف شکونو نه خلق دومره متاثر شو چې اسلام او د اسلام په اصولو کښې ئې خبرې شروع کړی دی . او حالانکه دوئ د اسلام په اصول و فروع او د قرآن وحدیث په علومو باندې بالکل نه پوهیږی . دوئ سره که د اسلام متعلق څه معلومات وی نو هغه یې هم د یورپ والو نه حاصل کړی دی او هغوئ خو د اسلام دښمنان دی . داسې خلقو د قرآن و حدیث نصوص قطعیه ضروریه کښې رنګ په رنګ باطل تاویلونه اوکړل او د اسلام متفق علیه او نصوص قطعیه نه ثابت شوؤ احکامو کښې ئې تحریف اوکړو . او دې ته د اسلام خدمت وائی . کله چې دوئ نه اووئیلې شی چې دا خو ښکاره کفر دې نو دوئ مشهوره ضابطه وائی چې مونږ خو ددې حکم نه انکار نه کوؤ بلکه یو تاویل کوؤ په دې وجه مونږ باندې کفر نه عائد کیږی .
د وخت د ضرورت مطابق زمونږ استاد محترم حجة الاسلام مولانا سید محمد انورشاه کشمیری رحمه الله ددې مسئلې د تحقیق دپاره یو مستقل کتاب تصنیف فرمائیلې دې چې دهغې نوم اکفار الملحدین والمتاولین فی شئ من ضروریات الدین . په دې کښې د هرې ډلې او هر مسلک علماء او فقهاء د تشریحات نه ثابت شوی دی چې په ضروریات دین کښې د چا تاویل مسموع نه دې . اودا تاویل د دوئ د تکفیر نه مانع نه دې . دا کتاب د عربی په ژبه کښې شائع شوېدې .

Scanned with Ca

احقر ددې خلاصه په اردو ژبه کښې د "كفر واسلام قرآن كى روشنى ميں" نوم سره شائع کړې ده. او احكام القرآن حزب خامس کښې ددې خلاصه په عربي ژبه کښې بيان کړې شوې ده. دا کتلې شئ. دې ځائې کښې ددې خلاصه د حضرت شاه عبدالعزيز محدث دهلوی رحمه الله د يو تحرير نه نقل کولو باندې اکتفاء کوم.

شاه عبدالعزيز دهلوی رحمه الله فرمائي چې د قرآن په آيتونو کښې تاويل کول باطل دی او دې ته د قران په مذکوره آيت مبارك کښې الحاد وئيلې شوې دې. ددې دوه قسمونه دی. اول هغه تاويل چې هغه د نصوص قطعيه متواتره يا اجماع قطعي خلاف وی نو هغه خو بيشکه کفر دې. دويم دا چې دداسې نصوص خلاف وی چې هغه اګر چې ظنی وی خو يقين ته نزدې وی يا د اجماع عرفی خلاف وی ، نو داسې تاويل ګمراهی او فسق دې ، کفر نه دې. ددې دوؤ قسمو تاويلونو نه سوا باقی تاويلات چې هغه د قرآن وحديث په الفاظو کښې د مختلفو احتمالاتو په بناء باندې وی نو هغه تاويل د عام فقهاء امت اجتهاد دې. او د حديث پاك د تشريح مطابق هغه د اجرو ثواب سبب دې.

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِالذِّكْرِ لَمَّا جَاءَهُمْ ۖ وَإِنَّهُ لَكِتَابٌ عَزِيزٌ ۝ لَا يَأْتِيهِ الْبَاطِلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِ ۖ﴾ جمهور مفسرين فرمائی چې دې ځائې کښې د ذکرنه مراد قران پاك دې. اوجمله ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِالذِّكْرِ﴾ د مخکښې جملې ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُلْحِدُونَ﴾ نه بدل دې. او د عربئ قاعدې مطابق د بدل او مبدل منه يو حکم وی. ددې حاصل دا شو چې دا خلق زمونږ نه نشی پټيدې نو په دې وجه د عذاب نه نشی بچ کيدې. مخکښې فرمائی چې دا محفوظ قرآن پاك د الله تعالی د طرفه نازل شوې دې ، فرمائی چې ﴿وَإِنَّهُ لَكِتَابٌ عَزِيزٌ﴾ ،يعنی دا کتاب د الله ﷻ په نزد عزيز او کريم دې. په دې کښې هيڅ يو باطل لاره نشي موندې. [كما روى عن ابن عباس رضي الله عنه ، مظهری][1]

﴿لَا يَأْتِيهِ الْبَاطِلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِ ۖ﴾ ورانـدې ددې خبرې بيان دې چې دا کتاب الله تعالی د طرفه محفوظ دې. قتاده رحمه الله او سدی رحمه الله فرمائی چې د باطل نه مراد شيطان دې. او ﴿مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِ ۖ﴾ يعنی د مخکښې نه راتلې شی او نه د روستو نه راتلې شی ، ددې نه مراد ټول اطراف دی. مطلب دادې چې په دې کتاب کښې د شيطان هيڅ تصرف او تدبير نه چليږی چې هغه په دې کتاب کښې کمې زياتې اوکړی يا دې په کښې څه تحريف اوکړی.

تفسير مظهری ددې نقل کولو سره فرمائيلی دی چې دې ځائې کښې شيطان عام دې که هغه شيطان الجن وی اوکه د سړی په شکل کښې شيطان وی ، هيڅوك په دې قرآن پاك کښې تحريف او بدلون نشی کولې. لکه ځينې روافضو قرآن پاك کښې د لسو پارو او ځينو د خاص خاص آيتونو اضافه کول غوښتل خو د هيچا خبره نه اوچليده.[2]

ابو حيان رحمه الله بحر محيط کښې فرمائي چې د باطل لفظ د خپل الفاظو په اعتبار سره د شيطان دپاره مخصوص نه دې. هر باطل او مبطل که د شيطان د طرفه وی او که د بل چا د طرفه هغه په قران پاك کښې نه شی چليدلې. بيا د طبری په حواله د آيت مبارك مفهوم دا فرمائی چې يو

[1] ) تفسير المظهری تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۳۰۰
[2] ) تفسير المظهری: ج ۸، ص ۳۰۰، ۳۰۱

Scanned with Ca

باطل کښې دا مجال نشته دې چې هغه رامخامخ شي او په دې کتاب کښې څه تحریف او بدلون راولي . او نه هغه کښې دا مجال شته دې چې دې کتاب کښې پټ په پټه ددې په معنو کښې تحریف او الحاد اوکړي[1] .

د طبري تفسیر دې ځائې کښې ډیر زیات مناسب دې . ځکه چې قرآن پاك کښې د الحاد او تحریف دوه صورتونه کیدې شي . اول دا که اهل یو باطل په ښکاره په دې قرآن پاك کښې څه کمې زیاتې کول غواړي دا ئې ﴿مِنۢ بَيۡنِ يَدَيۡهِ﴾ سره تعبیر کړل ، او بله دا که یو سړې په ظاهره د ایمان دعوی اوکړي او پټ پټه د باطلو تاویلاتو په ذریعه ددې قرآن پاك په معنو کښې تحریفات اوکړي ، نو دائې ﴿مِنۡ خَلۡفِهِۦ﴾ سره تعبیر کړل .

خلاصه دا شوه چې دا کتاب د الله ﷻ په نزد دومره عزیز او کریم دې چې نه ددې په الفاظو کښې څوك کمې زیاتې کولې شی او نه په معنو کښې تحریف کولې شی ، او چا کښې د امجال نشته دې چې ددې قرآن پاك احکام بدل کړي . کله چې هم یو بدبخت ددې اراده کړې ده هغه رسوا شوې دې . قرآن دهغه د ناپاك تدبیر نه پاك پاتې شو . ددې په الفاظو کښې تحریف او بدلون نه کیدل خو هر کس ته معلوم دی چې د څوارلس سوؤ کالوراسې دا په ټوله دنیا کښې لوستلې کیږي ، د لکهونو انسانانو په زړونو کښې دا محفوظ دې . که یو کس نه په دې کښې د زیر یا زبر غلطي اوشي نو بوډاګان خو لا څه کوې چې ماشومان ، عالمان لا څه کوې چې جاهلان ، او په لکهونو مسلمانان هغه غلطي نیولې شی . دې سره د ﴿مِنۡ خَلۡفِهِۦ﴾ الفاظوسره دې طرفته اشاره اوکړه چې د قران پاك حفاظت الله ﷻ پخپله ذمه اخستې دې او هغه صرف دې الفاظو ﴿وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ﴾[2]، سره مخصوص نه دې . بلکه الله ﷻ ددې د معنو د حفاظت هم ذمه داری اخستې ده . هغه عظیم ذات دخپل پیغمبرانو ﷺ او دهغوئ د بلا واسطه شاګردانو یعنی صحابه کرامو ﷡ په ذریعه د قرآن پاك معنی او ددې احکام محفوظ کړی دی . که چرته یو ملحد او بې دینه په دې قرآن کښې د باطلو تاویلاتو په ذریعه په دې کښې د تحریف کولو اراده اوکړي نو هر ځائې کښې او هره زمانه کښې په زرګونو علماء کرام د هغه تردید دپاره اودریږي او حقیقت دادې چې آیت ﴿وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ﴾ کښې ضمیر د له قران پاك طرفته راجع دې . او قرآن پاك صرف د الفاظو نوم نه دې بلکه د نظم او معنو دواړو مجموعه ده .

ددې مذکوره آیتونو مبارکو خلاصه داده چې کوم خلق په ظاهره مسلمانان دی ، په دې وجه هغوئ په ښکاره خو د قرآن پاك نه انکار نشي کولې ، خو هغوئ په د قرآن پاك په آیتونو کښې باطل تاویلات کوی او داسې مطلبونه ترې راؤباسي چې هغه د قرآن او د رسول کریم ﷺ د قطعي تصریحاتو بالکل خلاف دی . الله ﷻ خپل کتاب مبارك دهغوئ د تحریفاتو نه هم محفوظ کړې دې چې ددوئ دا غلطې معنې په دې کښې نه شی ځائې کیدې . د قرآن و حدیث

---

[1]) البحر المحيط تحت هذه الآية: ج ۹، ص ٤٦٠، وتفسير الطبري تحت هذه الآية: ج ۲۱، ص ٤٨٠

[2]) ترجمه: او مونږ ددوے حفاظت کونکی یو۔

Scanned with Ca

نور نصوص او د امت عالمان ددوئ رازونه ښکاره کوي . او د صحيح احاديثو د تصريح مطابق تر قيامته پورې به دا سې يوه ډله قائمه وي چې هغه د هغه خلقو نه پرده پورته کوي چې کوم په قرآن پاك كښې تحريف كوي. او كه هغوئ ددنيا نه هر څومره خپل كفر پټ كړي خو د الله ﷻ نه ئې نشي پټولې . او هر كله چې الله ﷻ ددوئ د سازشونو نه خبر دار دې نو هغوئ د سزا نه نشي بچ كيدې .

﴿ءَاَعْجَمِيٌّ وَّعَرَبِيٌّ﴾ د عربو نه سوا چې په دنيا كښې څومره قومونه دي هغوئ تولو ته عجم وئيلې كيږي . او كله چې په دې كښې همزه حرف زيات كړې شي او اعجم شي نو بيا ددې معنى ده غير فصيح . په دې وجه عجمي هغه كس ته وئيلې كيږي چې هغه عربي نه وي . اګر چې ددهٔ كلام فصيح وي . او اعجمي هغه كس ته وئيلې كيږي چې كلام ئې فصيح نه وي . [قرطبي][1].

دې مذكوره آيت مبارك كښې ﴿ءَاَعْجَمِيٌّ﴾ فرمائيلې شوي دي ، ددې مطلب دادې چې كه مونږ دا قرآن پاك د عربي ژبې نه سوا په نورو ژبو كښې ليږلې وې نو د عربو قريشو به دا شكايت كولو چې دا كتاب زمونږ په پوهه كښې نه رازي . او ډير په تعجب سره به ئې وئيل چې نبي خو عربي دې او كتاب اعجمي دې چې فصيح نه دې .

﴿قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هُدًى وَّشِفَآءٌ﴾ دې ځائې كښې د قرآن پاك دوه صفات بيان شوي دي . يو دا چې دا هدايت دې . د ژوند په هره شعبه كښې انسان ته داسې لاره ښائي چې ددهٔ دپاره نافع او مفيد وي . بل دا چې دا شفاء ده ، دا ظاهره خبره ده چې قرآن پاك د باطني مرضونو ، كفر او شرك ، كبر او حسد ، حرص و طمع وغيره نه شفاء كيدل ظاهر دي ، په دې كښې ظاهري او بدني مرضونو نه شفاء كيدل هم داخل دي . لكه څنګه چې مشاهده ده چې د ډيرو بدني مرضونو علاج د قرآن پاك په دعاګانو سره كيږي او كامياب دي .

﴿اُولٰٓئِكَ يُنَادَوْنَ مِنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ﴾ دا يو تمثيل دې ، كوم كس چې په كلام باندې پوهيږي عرب هغه ته وائي چې ﴿انت تسمع من قريب﴾ يعنى ته نزدې نه آوري . او څوك چې په كلام نه پوهيږي نو وائي چې ﴿انت تنادي من بعيد﴾ يعنى تاته د لرې نه آواز كيږي [قرطبي][2].

مطلب دا دې چې دا خلق د قرآن د هداياتو د آوريدو او په دې باندې د پوهيدو اراده نه لري . په دې وجه ددوئ غوږونه كاڼه دي ، او سترګې ئې ړندې دي . دوئ ته د هدايت تعليم وركول داسې دي لكه څنګه چې ورته دلرې نه آواز كولې شي چې د دوئ غوږونو ته ددې آواز نه رسي

[الحمد لله پاره نمبر ۲۴ ختمه شوه]

---

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۱۵، ص ۳۶۸

[2] ) تفسير القرطبي: ج ۱۵، ص ۳۶۹

Scanned with Ca